[۵۳۲۵]د ميانه روی فضيلت ........ ۲۴۲
[۵۳۲۶]دَ مشهورتيا ژوند سره خطرات ........ ۲۴۳
اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ ........ ۲۴۴
[۵۳۲۷]دَ رياكارئ مذمت ........ ۲۴۴
[۵۳۲۸]دَ اولياء الله لوئى شان ........ ۲۴۶
[۵۳۲۹]دَمخلص مسلمان ظاهر او باطن يوشان وی ........ ۲۴۸
[۵۳۳۰]دَ رياكاره خلقو مذمت ........ ۲۴۹
[۵۳۳۱]د رياكار مونځ، روژه او صدقه هم شرک دي ........ ۲۴۹
[۵۳۳۲]د نبى عليه السلام په خپل امت باندې د ريا كارئ ويره ........ ۲۵۰
[۵۳۳۳]رياكارى دَ دجال دَ فتنې نه هم زياته خطرناكه ده ........ ۲۵۲
[۵۳۳۴]رياكاري شرك اصغر دی ........ ۲۵۳
[۵۳۳۵]په اخلاص سره عمل پخپله خلقو ته ښكاره كيږی ........ ۲۵۳
[۵۳۳۶]د ښه اوبد اثر ښكاره كيدل ........ ۲۵۴
[۵۳۳۷]دوه مخى پاليسى دَاسلام دَپاره دَ ټولو نه زياته خطرناكه ده ........ ۲۵۵
[۵۳۳۸]د حسن نيت اهميت ........ ۲۵۵
[۶]بَابُ الْبُكَاءِ وَالْخَوْفِ] ........ ۲۵۷
دَژړا اودَ الله تعالى نه دَويرې بيان ........ ۲۵۷
اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ ........ ۲۵۸
[۵۳۳۹]دَ آخرت استحضار دَ ژړا سبب دي ........ ۲۵۸
[۵۳۴۰]أخروى انجام صرف دَ الله تعالى په علم كښې وی ........ ۲۵۹
[۵۳۴۱]په دوزخ كښې دَ بنى اسرائيلو د يوې ښځې كيفيت ........ ۲۶۰
[۵۳۴۲]د گناهونو په وجه هلاكت ........ ۲۶۲
[۵۳۴۳]دَ قرب قيامت دَ وخت يوځو عذابونه ........ ۲۶۴
[۵۳۴۴]دَ الله تعالى عذاب عام وی ........ ۲۶۶
[۵۳۴۵]اصل اعتبار خاتمې لره وی ........ ۲۶۷
اَلْفَصْلُ الثَّانِي ........ ۲۶۷
[۵۳۴۶]جنت غوښتونكې او دوزخ نه ويريدونكې دَ شپې نه اوده كيږی ........ ۲۶۷
[۵۳۴۷]د الله تعالى د بندگئ عظمت ........ ۲۶۸
[۵۳۴۸]يو د حكمت نه ډک نصيحت ........ ۲۶۹
[۵۳۴۹]د ذكرالله باوجود دَ الله تعالى نه ويريدل پكاردی ........ ۲۷۰

[۵۳۵۰]په نيکو کې وړاندې کيدونکی خلق څوک دی؟ ..... ۲۷۱
[۵۳۵۱]دَ ذکر الله فضيلت او اهميت ..... ۲۷۲
[۵۳۵۲]مرګ اوقبر هروخت ياد ساتل پکار دی ..... ۲۷۳
[۵۳۵۳]دَ آخرت فکر رسول الله ﷺ لره بوډا کړو ..... ۲۷۶
[۵۳۵۴]د قيامت د ويرې په رسول الله ﷺ باندې اثر ..... ۲۷۷
اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ ..... ۲۷۷
[۵۳۵۵]هيڅ يوه ګناه سپکه مه ګڼړئ ..... ۲۷۷
[۵۳۵۶]د وړو وړو ګناهونو نه هم ځان ساتئ ..... ۲۷۸
[۵۳۵۸]رسول الله ﷺ ته دَ نهو خبرو حکم ..... ۲۸۱
[۵۳۵۹]دَ الله تعالى دَ ويرې نه دَ ژړلو فضيلت ..... ۲۸۴
[۷]بَابُ تَغَيُّرِالنَّاسِ ..... ۲۸۵
**په خلقوکښې دَبدلون بيان** ..... ۲۸۵
اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ ..... ۲۸۵
[۵۳۶۰] د نيکانو خلقو کميدل ..... ۲۸۵
[۵۳۶۱]مسلمانان به دَ يهوديانو اونصارى تقليد کوى ..... ۲۸۶
[۵۳۶۲]ښه خلق به مړه شى او فضول خلق به پاتې شى ..... ۲۸۷
اَلْفَصْلُ الثَّانِي ..... ۲۸۷
[۵۳۶۳]يوه پيشنګوئی چه پوره شوه ..... ۲۸۷
[۵۳۶۴]قيامت به کله راځی؟ ..... ۲۸۹
[۵۳۶۵]د قيامت نشانى ..... ۲۸۹
[۵۳۶۶]دَعيش اوراحت دَ ژوند نه دَ قناعت ژوندښه دې ..... ۲۹۰
[۵۳۶۷]په آخره زمانه کښې به په دين باندې قائم پاتې کيدل ډير ګران وی ..... ۲۹۲
[۵۳۶۸]په ژوند کښې ښه او بد حالات ..... ۲۹۳
[۵۳۶۹]دَ دنيا محبت او د مرګ نه ويره دَ ذلت اسباب دی ..... ۲۹۴
اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ ..... ۲۹۵
[۵۳۷۰]دَ يو څو متعدى ګناهونو نقصان او وبال ..... ۲۹۵

# فهرست اختلافِ مذاهب

| شمار | مضمون | صفحه |
| --- | --- | --- |

دنبی علیه السلام په نوم د کنیت دعدم جواز په زمانه کښې مذاهب ............. ۴۸
د موسیقۍ په جواز اوعدم جواز کښې دوه مذاهب ............................ ۷۳
د پخوانئ زماني د محفل سماع په جواز اوعدم جواز کښې دوه مذاهب ........ ۷۷
د مالدارۍ اوغریبۍ په افضلیت کښې مذاهب ................................ ۵۳۵

# [۶] بَابُ الْعُطَاسِ وَالتَّثَاؤُبِ

## دا نتروشي او اسويلي کولو بيان

**خلاصة الباب:**

**فيه ثلاثة عشر حديثاً مشتملة على ست مسائل:**

① الذكر وقت العطاس وجوابه: ۱، ۲، ۸،۵، ۹، ۱۰.
② رد التثاؤب ماستطاع: ۱، ۶.
③ تعلق جواب التشميت بحمد العاطس: ۱،۳،۴.
④ أداب العطاس: ۷.
⑤ النهي عن بعض الأذكار وقت العطاس: ۱۰، ۱۳.
⑥ سقوط جواب العاطس وقت الحرج : ۱۱، ۱۲.

**دعطاس لغوی معنی:** د عین په ضمې سره ﴿عطاسا﴾ او ﴿عطسا﴾ مصدر دې په معنی د انتوشی کولو.

**دتثاؤب لغوی معنی:** د طبعي ثقل نه پس د ضعف د لاحق کیدو د وجې نه چه خوله وازه شی هغې ته اسویلې وائی.

**دانتوشی څخه روسته دالحمد لله وئیلو وجه:** انتروشې کول دَانسان دَ صحت علامت وی دَ دماغو خرابی په دې سره ختمیږی بدن خوشحاله او تازه شی دَ دماغو دروندوالې او بوج کوزیږی په دې وجه دَالله تعالی دَ طرف نه حکم ورکړې شوې دې چه دَ شکردَپاره الحمد لله اووایئې

**دتشمیت جواب:** اوکوم سړې چه دا واوری په هغه باندې واجب دی چه هغه دې یرحمك الله اووائی دَدې نه پس دَ انتروشی والا دَپاره مستحب دی چه هغه دې یهدیکم الله ویصلح بالکم سره هغه ته دعا اوکړی.که انتروشی والا الحمدالله نه وی وئیلې یائی په مزه اووئیل چا وانوریده نو جواب ورکول به په چاباندې هم واجب نه وی یعنی دا ضروری نه دی چه یرحمك الله ورته اووائی

که دَانتروشی والا په جواب کنبې دَ دلې نه یوسړی هم یرحمك الله اووئیل نودَ ټولودَطرف نه داکافی دی اوکه انتروشی والا بار بار انتروشی کوی نودا زکام اوبیمارئی کنبې اخته دې لهذا هرځل جواب ورکول په چا باندې لا زم نه دی.بعضې روایاتوکنبې الحمدلله علی کل حال الفاظ راغلی دی دادیربهترالفاظ دی اوعام فهم اوآسان دی اسلام چونکه کامل

مکمل بلکه اکمل ضابطه حیات دي په دې وجه هغه د مسلمانانو دټولو مسائلو حل وړاندې کوی والتثاؤب اسویلی ته وائی ددې مسائل هم راځی

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [٤٧٣٢] په انتروشی سره رحمن اوپه اسویلی سره شیطان خوشحالیږی

٤٧٣٢-[١]( )[١]عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ[٢]: "«إِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْعُطَاسَ وَيَكْرَهُ التَّثَاؤُبَ،[٣]فَإِذَا عَطَسَ أَحَدُكُمْ وَحَمِدَ اللّٰهَ [٤]كَانَ حَقًّا عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ سَمِعَهُ أَنْ يَقُولَ لَهُ: يَرْحَمُكَ اللّٰهُ.[٥]فَأَمَّا التَّثَاؤُبُ فَإِنَّمَا هُوَ مِنَ الشَّيْطَانِ،[٦]فَإِذَا تَثَاءَبَ أَحَدُكُمْ فَلْيَرُدَّهُ مَا اسْتَطَاعَ،[٧]فَإِنَّ أَحَدَكُمْ إِذَا تَثَاءَبَ ضَحِكَ مِنْهُ الشَّيْطَانُ» ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.[٨]وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ: " فَإِنَّ أَحَدَكُمْ إِذَا قَالَ: هَا، ضَحِكَ الشَّيْطَانُ مِنْهُ"

**ترجمه:** [١]حضرت ابوهریره رضی الله عنه د رسول الله ﷺ نه نقل کوي چې حضور ﷺ وفرمایل [٢]خداي تعالی نوږي (انتوشې) کونکی خوښوي او ارږمې نه خوښوي [٣]په تاسو کې چې چاته نوږۍ راشي او د الله تعریف وکړي [٤]نو اوریدونکي هرمسلمان باندې حق دي چې د هغه نوږۍ کونکی په جواب کې یرحمك الله [٥]اووائي پاتې شوه د ارږمئ خبره نو د ارږمئ راتلل شیطاني اثر دي [٦]په تاسو کې چې کله چاته ارږمئ راشي نو پکار ده چې بخلیله وسه هغه ارږمئ منعه کړي [٧]واضحه دي وي چې کله په تاسو کې څوك ارږمئ کوي (یعنې خوله وازوي) نو په هغه شیطان خاندي (بخاري) [٨]او د مسلم په روایت کې دا الفاظ دي که (نه غواړي نو حتی الامکان هغه ارږمئ منع کړه) ځکه چې په تاسو کې کوم سړي هاء کوي یعنی ارږمئ کوي نو په هغه باندې شیطان خاندي

**حل اللغات:** - ① الْعُطَاسَ: انتوشی. پرنجې. ② التَّثَاؤُبَ: آسویلی

**تسهیلات:**

**قوله:** إِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْعُطَاسَ-

**دانتوشی خوښولو وجه:** یعنی الله تعالی انتروشې خوښوی داځکه چه په انتروی سره سړې بیداریږی او چستی او چالاکی پیداکیږی کوم سره چه پوهه او ادراك زیاتیږی پوره بدن تازه شی په دې وجه د الله تعالی داخوښ دې او په اسویلوسره بوج او دروندوالې زیاتیږی خوب غفلت سستی او بدفهمی زیاتیږی په دې وجه دا الله تعالی ناخوښه دې او شیطان خوښ دي

( ) اخرجه البخاری فی کتاب الأدب/باب إذا تثاءب فلیضع یده علی فیه (رقم-۶۲۲۶) وابوداود فی کتاب الأدب/باب ما جاء فی التثاؤب (رقم-۵۰۲۸) والترمذی فی کتاب الأدب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء إن الله یحب العطاس ویکره التثاؤب (رقم-۲۷۴۷) واحمد فی المسند:۴۲۸/۲

عطاس او تثاؤب دواړه دَخپل انجام اوخپلې نتیجې په اعتبا سره خوښ اوناخوښ دي دَ اسويلو اوستومانتيا انجام اوثمره شيطان خوښوی اود رحمان ناخوښ دی اودَ عطاس انجام اوثمره دَرحمان خوښ دی اودَ شيطان ناخوښه دی آسيب زده سړي هروخت اسويلی کوی او ستومانتياکوی

**قوله**: كَانَ حَقًّا عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ" دَدې لفظ په وجه علماؤ مختلف رائې قائم کړی دی چه دَ انتروشی جواب فرض دې که واجب دې اوکه مستحب دې دَ احنافو په نيز د انتروشی جواب واجب على الكفاية دې دَحنابله مسلك هم دغه شان دې دَ شوافع په نيز دَ انتروشی جواب سنت على الكفاية دې.دَمالکيه په نيز مختلف اقوال دی دَ وجوب قول هم دې دَ سنت هم دې اودَمستحب هم دې.دَ غيرمقلدينو حضراتو دَ يوې طبقې په نيز د انتروشی جواب فرض دې

بهرحال دَ احناف سره دَ جمهور علماؤ په نيز دَ انتروشی جواب واجب على الكفاية دې مگرهغه شرط به په ځائی وی چه انتروشی والابه په زوره الحمدلله وائی

اسویلی کولوسره متعلق يو آدب دادې چه سړې دې دَخپل لاس شا په خپله خله باندې کيږدی يا څه کپړا دې کيږدی دې دَپاره چه خله ئی پټه شی ځکه چه شيطان دَ انسان ښکاره دښمن دې.دَ اسویلی په وخت باندې دَ انسان شکل وران شی نوشيطان خاندی اومسخرې کوی چه دَ ده شکل ته اوګوره هم دَده دَ وجې نه زه مردود ګرځولې شوې يم

**[۴۷۳۳]دَانتروشی دَجواب مسنون طریقه**

۴۷۳۳—[۲] ()[۱]وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:[۲]" «إِذَا عَطَسَ أَحَدُكُمْ فَلْيَقُلِ: الْحَمْدُ لِلّٰهِ، [۳]وَلْيَقُلْ لَهُ أَخُوهُ أَوْ صَاحِبُهُ: يَرْحَمُكَ اللهُ.[۴]فَإِذَا قَالَ لَهُ: يَرْحَمُكَ اللهُ، فَلْيَقُلْ: يَهْدِيكُمُ اللهُ وَيُصْلِحُ بَالَكُمْ» "رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه** : [۱] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل [۲]هرکله چې په تاسو کې چاته نوږي (انتوشې) راشي نو پکار دي چې هغه الحمد لله اووائي [۳]او د هغه مسلمان ورور يا د هغه دوست ته پکار دي چې هغه نوږی کونکي ته د الحمدلله ويلو په جواب کې يرحمك الله اووائي [۴]او هرکله چې د هغه په جواب کې يرحمك الله اووائي نو نوږي (انتوشې) کونکي ته پکار دي چې داسې اووائي يَهْدِيكُمُ اللهُ وَيُصْلِحُ بَالَكُمْ يعنى خداي جل جلاله دې تاته هدايت وکړي او ستا زړه او ستا احوال دې درست کړي (بخاري)

**حل اللغات**:- ① بَالَكُمْ: احوال ستاسو

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب الأدب/باب إذا عطس کیف یشمت (رقم-۶۲۲۴) والترمذی فی کتاب الأدب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء کیف یشمت العاطس (رقم-۲۷۴۱) وابن ماجه فی کتاب الأدب/باب تشمیت العاطس (رقم-۳۷۱۵) واحمد فی المسند: ۴۱۲/۴

**تسهيلات: قوله: إِذَا عَطَسَ أَحَدُكُمْ فَلْيَقُلْ: اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ:**
نبی علیه السلام دې ته نعمت وئیلی دی نو ددې نه بعد حمد بیانول مسنون دی
**قوله: أوصاحبه:** راوی ته شک دې چه کوم الفاظ ئې فرمائیلی وو
**قوله: فَإِذَا قَالَ لَهٗ: يَرْحَمُكَ اللّٰهُ،** د "مشمت" د طرف نه ئې ترحم مشروع ګرخولې دې ځکه چه هغه د خپل رب رحمت ته نیزدی دې داسې چه هغه د خپل رب تعظیم کړې دې. د خپل رب په نعمت باندی ئې حمد وثناء کړی ده او د خپل رب نعمت قدر ئې پیژاندلې دې
**قوله: يَهْدِيكُمُ اللّٰهُ وَيُصْلِحُ بَالَكُمْ:** په يَهْدِيكُمُ اللّٰهُ کښې د مخاطب دپاره د جمع صیغه راوړلو مختلف وجوه بیان کړې شوی دی
① دا په اعتبار د غالب دې چه عام طور باندې انتوشی والا سره ډیر خلق وی لهذا مذکوره دعا کښې دا ټول شریکول پکار دی
② مخاطب دپاره جمع صیغه ذکر کول د تعظیم وتکریم دپاره دی.
③ په دې دعا کښې د مخاطب په واسطه ټول امت مرحومه شاملول مراد دی
**د جواب تشمیت حکمت:** بل کس ته به د رحمت دعا وکړی نو دۀ ته به پخپله هم د خیر دعا ملاو شی. کوم چه د تالیف قلب باعث دی.

**[۴۷۳۳] انتروشی والا که الحمدلله او وائی نوهغه دَجواب مستحق دې**

۴۷۳۳-[۳] ()[1] ①وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ②: «عَطَسَ رَجُلَانِ عِنْدَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَشَمَّتَ أَحَدَهُمَا وَلَمْ يُشَمِّتِ الْآخَرَ.③فَقَالَ الرَّجُلُ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! شَمَّتَّ هٰذَا وَلَمْ تُشَمِّتْنِي④قَالَ: "إِنَّ هٰذَا حَمِدَ اللّٰهَ وَلَمْ تَحْمَدِ اللّٰهَ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ①او حضرت انس رضی الله عنه وایي ②چې یوه ورځ رسول الله ﷺ سره ناست د وو سړو ته نوړې (انتوشې) راغلې نو حضور ﷺ په هغوئ کې یو سړي ته د نوړی جواب ورکړي یعنی یرحمك الله یي اووئیلو او دویم ته یي د نوړی جواب ورنه کې ③کوم سړي ته چې یي د نوړې (انتوشې) جواب نه وو ورکړي هغه عرض وکړو یارسول الله څه وجه ده چې تاسو ﷺ دي سړي ته خو جواب ورکړو لیکن ماته مو جواب رانه کې ④حضور ﷺ ورته وفرمایل دي سړي د الله جل جلاله حمد اووئیلو او تا د الله جل جلاله حمد ونه وئیلو نو ته د جواب مستحق نه شوي (بخاري، مسلم)
**حل اللغات:** - ① فَشَمَّتَ: پرنجې اوکړو،

[1] اخرجه البخاری فی کتاب الأدب/باب لا یشمت العاطس إذا لم یحمد الله (رقم-۶۲۲۵) ومسلم فی کتاب الزهد والرقائق/باب تشمیت العاطس، وکراهة التثاؤب (رقم-۵۳ - (۲۹۹۱) وابن ماجه فی کتاب الأدب/باب تشمیت العاطس (رقم-۳۷۱۳) واحمد فی المسند: ۴۱۲/۴

**تسهيلات: قوله** : فَشَمَّتَ أَحَدَهُمَا وَلَمْ يُشَمِّتِ الآخَرَ

**دويم د تشميت جواب نه ورکولو وجه**: دادَ تشميت نه دي دانتروشي والا چه کله الحمدلله وائی اوددې په جواب کښې څوك يرحمك الله وائی نودې جواب ته تشميت وائی نبي عليه السلام دَهغه سړی دَ انتروشی په جواب کښې يرحمك الله اوفرمائيل کوم چه الحمدلله وئيلې وو اوچاچه نه وو وئيلې هغه ته ئې جواب ورنه کړو هغه شکايت اوکړو دَدغه شکايت اوددې دَ جواب بيان په دغه حديث کښې دې

**[۴۷۳۵] انتروشی والا که الحمدلله اونه والی نوهغه دَجواب مستحق نه دې**

۴۷۳۵- [۴] ( ) [۱] وَعَنْ أَبِي مُوسَى - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: [۲] "«إِذَا عَطَسَ أَحَدُكُمْ فَحَمِدَ اللَّهَ فَشَمِّتُوهُ، [۳] وَإِنْ لَمْ يَحْمَدِ اللَّهَ فَلَا تُشَمِّتُوهُ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** : [۱] او حضرت ابوموسی ﷛ وايی ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل [۲] هرکله چې په تاسو کې يو سړي و نوړي (انتوشي) او د الله حمد اووائي يعنی نوړی راتلو باندې الحمدلله اووائي نو هغه ته جواب ورکړه يعنی يرحمك الله ورته اووئيلو [۳] او كه هغه د الله حمد ونه وايي نو هغه ته جواب مه ورکوه (مسلم)

**حل اللغات**: - ① فَشَمِّتُوهُ: د پرونجی کونکی د الحمدلله جواب ورکړئ. يرحمک الله ورته اووايئ

**[۴۷۳۶] دَزکام وهلي سړی په انتروشی باندې جواب ورکول لازم نه دی**

۴۷۳۶-[۵] ( ) [۱] وَعَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - أَنَّهُ [۲] «سَمِعَ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَعَطَسَ رَجُلٌ عِنْدَهُ، فَقَالَ لَهُ: "يَرْحَمُكَ اللَّهُ" [۳] ثُمَّ عَطَسَ أُخْرَى، فَقَالَ: "الرَّجُلُ مَزْكُومٌ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ، [۴] وَفِي رِوَايَةٍ لِلتِّرْمِذِيِّ أَنَّهُ قَالَ لَهُ فِي الثَّالِثَةِ: "إِنَّهُ مَزْكُومٌ".

**ترجمه** : [۱] او د حضرت سلمه ابن اکوع ﷛ نه روايت دي [۲] هغه يوه ورځ د رسول الله ﷺ نه د هغه سړي د نوړي (انتوشي) جواب ورکول واوريدل چې هغه وخت حضور ﷺ سره ناست وو نو حضور ﷺ د هغه په جواب کې وفرمايل يرحمك الله [۳] بيا چې هغه ته په دويم ځل نوړی راغلونو حضور ﷺ وفرمايل دا سړي زکام شوي دي د مسلم [۴] او ترمذي په يو روايت کې داسې دي چې حضور ﷺ هغه سړي ته په دريم ځل نوړی باندې دا وفرمايل چې دا سړي زکام شوي دي.

**حل اللغات**: - ① مَزْكُومٌ: زکام وهلې سړی.

[1]) اخرجه مسلم فی کتاب الزهد والرقائق/باب تشميت العاطس. وکراهة التثاؤب (رقم-٥٤ - (٢٩٩٢) واحمد فی المسند:٤١٢/٤

[2]) اخرجه مسلم فی کتاب الزهد والرقائق/باب تشميت العاطس. وکراهة التثاؤب (رقم-٥٥ - (٢٩٩٣) وابوداود فی کتاب الأدب/باب کم مرة يشمت العاطس (رقم-٥٠٣٧) والترمذی فی کتاب الأدب عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء کم يشمت العاطس (رقم-٢٧٤٣) وابن ماجه فی کتاب الأدب/باب تشميت العاطس (رقم-٣٧١٤)

**تسهيلات:**

**قوله: ثُمَّ عَطَسَ أُخْرَى:**

**دبار بار انتوشی کونکی د تشمیت د جواب حکم:** ددې حديث تعلق د بل صورت سره دې چه کوم کس ته دوه یا دری ځل انتوشې (پرنجې) راشی یا ددې نه زیات نو بیا ددې جواب ورکول ضروری نه دی

**سوال:** په شرح مسلم کښې امام نووی رحمه الله فرمائی چه کله انتوشې والا کس بیمار وی نو ددې دپاره دعا کول پکار دی ځکه چه دا کس د نورو خلقو په نسبت ډير د دعا مستحق دې؟

**جواب:** داسی کس ته دعا کول مستحب دی لیکن د انتوشی والا دعا نه علاوه بله دعا دې ورته وکړې شی. مثلاً د عافيت او سلامتئ دعا.

**[۴۷۴۳]داسويلي په وخت په خله لاس کيخودل پکار دی**

۴۷۴۳-[۱۱] ()[1] ⑴وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: " ⑵«إِذَا تَثَاءَبَ أَحَدُكُمْ فَلْيُمْسِكْ بِيَدِهِ عَلَى فِيهِ، ⑶فَإِنَّ الشَّيْطَانَ يَدْخُلُ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ⑴او د حضرت ابوسعيد خدري ﷛ نه روايت دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ⑵هركله چې په تاسو کې يوسړي ته اررمي راشي نو هغه ته پکار ده چې خپل لاس په خوله کيږدي ⑶ځکه چې شيطان که خوله خلاصه پيدا کي نو په هغه کې ننوځي (مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله: فَلْيُمْسِكْ بِيَدِهِ عَلَى فِيهِ فَإِنَّ الشَّيْطَانَ يَدْخُلُ:**

**د شيطان په خُله کښې د داخليدو په مفهوم کښې دوه اقوال:**

① په خله کښې د شيطان د داخليدو ځخه مراد حقيقةً داخليدل دی

② چه کوم کس د اسويلی په وخت کښې خله نه بندوی نو شيطان په هغه باندې خپل اثر کوی او هغه لره په وساوسو او وهمونو کښې مبتلا کولو باندې شيطان قادر شی.

[1]) اخرجه مسلم فی كتاب الزهد والرقائق/باب تشميت العاطس، وكراهة التثاؤب (رقم-۵۷ - (۲۹۹۵) وابوداود فی كتاب الأدب/باب ما جاء فی التثاؤب (رقم-۵۰۲۶) والترمذی فی كتاب الأدب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء إن الله يحب العطاس ويكره التثاؤب (رقم-۲۷۴۶) وابن ماجه فی كتاب إقامة الصلاة، باب ما يكره فی الصلاة (رقم-۹۶۸) واحمد فی المسند:۳/۹۶

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۴٧٣٨] دَ انتروشى په وخت خله پټولو سره آواز ښكته كول پكار دى**

۴٧٣٨ – [ ٧ ] (١) ١عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - ٢«أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ إِذَا عَطَسَ غَطَّى وَجْهَهُ بِيَدِهِ أَوْ ثَوْبِهِ، وَغَضَّ بِهَا صَوْتَهُ». ٣رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ. وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.

**ترجمه** : ١د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي ٢چې رسول الله ﷺ ته به كله نوړي (انتوشي) راغلونو خپل مخ مبارك به يي په خپلو لاسونو يا څه كپړي وغيره سره پټوي او د خپل نوړي اواز به يي خكته كوي ٣دا روايت ترمذي او ابوداود نقل كړي دي او ترمذي ويلي دي چې دا حديث حسن صحيح دي

**حل اللغات** :- ① غَطّٰى : پټولو به ئې، ② غَضَّ :ښكته كوى.

**تسهيلات: قوله : إِذَا عَطَسَ غَطَّى وَجْهَهُ بِيَدِهِ أَوْ ثَوْبِهِ:**

**د انتوشى په وخت په خُله باندې لاس كيخودل** : دَانتروشى دَ آدابو نه يو ادب دادې چه مخ او خله دې سرې پټوى دې دَپاره چه خراب شكل ئى نه ښكاره كيږى او آواز چه څومره كميدې شى دومره دې كم كړى.بعضې سړې په ډير اخلاص سره په آواز كنبې دومره تيزه دهماكه پيدا كړى چه خواكې ورسره خلق ويريږى.

**[۴٧٣٩] دا نتروشى دعا او دَهغې مسنون جواب**

۴٧٣٩ – [ ٨ ] (٢) ١وَعَنْ أَبِي أَيُّوبَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ٢ " «إِذَا عَطَسَ أَحَدُكُمْ فَلْيَقُلْ: الْحَمْدُ لِلّٰهِ عَلَى كُلِّ حَالٍ، ٣وَلْيَقُلِ الَّذِي يَرُدُّ عَلَيْهِ: يَرْحَمُكَ اللّٰهُ، ۴وَلْيَقُلْ هُوَ: يَهْدِيكُمُ اللّٰهُ وَيُصْلِحُ بَالَكُمْ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه** : ١او د حضرت ابوايوب رضي الله عنه نه روايت دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢هركله چې په تاسو كې يو سړي ته نوړي (انتوشې) راشي نو پكار دي چې هغه داسې اووائي الحمد لله علٰي كلِ حال يعنى په هرحال كې د خداي تعالیٰ تعريف دي ٣او كوم سړي چې د هغه جواب وركوي هغه ته داسې وئيل پكار دي يرحمك الله ۴او بيا د هغه په جواب كې نوړى والا ته داسې وئيل پكار دي يَهْدِيكُمُ اللّٰهُ وَيُصْلِحُ بَالَكُمْ يعنى خداي تعالیٰ دي تاسو ته هدايت وكړي او ستاسو زړه يا ستاسو احوال دي درست كړي.(ترمذي اودارمي)

---

(١) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الأدب /باب فى العطاس (رقم-٥٠٢٩) والترمذى فى كتاب الأدب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما جاء فى خفض الصوت وتخمير الوجه عند العطاس (رقم-٢٧٤٥) وابن ماجه فى كتاب الأدب /باب تشميت العاطس(رقم-٣٧١٥)

(٢) اخرجه ابوداود فى السنن رقم الحديث ٥٠٣٣ والترمذى فى السنن رقم الحديث ٢٧٤١ وابن ماجة رقم الحديث ٣٧١٥ والدارمى فى السنن رقم الحديث ٢۶۵٩

**تسهيلات:**

**قوله: يَهْدِيكُمُ اللهُ وَيُصْلِحُ بَالَكُمْ،**

د مذکوره جملې په مفهوم کښې درې اقوال

① الله تعالی دې ستا زړه ښه ساتی دا معنی اخستل هم مناسب دی

② الله تعالی دې ستا ژوند ښه کړی

③ الله تعالی دې ستا حالات ښه کړی دا معنی اخستل زیات بهتر دی

**[۴۷۳۰] دَ یهودی د تشمیت جواب**

۴۷۳۰ - [۹] (١) ①وَعَنْ أَبِي مُوسَى - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: ② «كَانَ الْيَهُودُ يَتَعَاطَسُونَ عِنْدَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ③يَرْجُونَ أَنْ يَقُولَ لَهُمْ: يَرْحَمُكُمُ اللهُ، ④فَيَقُولُ: " يَهْدِيكُمُ اللهُ وَيُصْلِحُ بَالَكُمْ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**: ①او حضرت ابوهریره ﷺ وايي یهودیان چې به کوم وخت د حضور ﷺ سره ناست وه نو هغوئ به قصداً نوړې (انتوشې) کوې ②په دې امید چې حضور ﷺ به په جواب کې ورته یرحمك الله اووائي ④لیکن حضور ﷺ به د هغوئ د نوړې جواب کې محض دافرمایل یهدیکم الله ویصلح بالکم [یعنی خدای ﷻ دې تاسو ته هدایت وکړي او ستاسو زړونه یا ستاسو د احوال دې اصلاح وکړي.] رواه الترمذي وأبو داود

**حل اللغات**:- ①يَتَعَاطَسُونَ: پرنجی (انتوشی) به ئې کول، ②يَرْجُونَ: امید ئې لرلو

**تسهيلات:**

**قوله: كَانَ الْيَهُودُ يَتَعَاطَسُونَ:**

**یهودیان د نبی علیه السلام د دعا په انتظار**: یهود یو منصوبه سازقوم دې دَهغوی منصوبه داوه چه دَاسلام قبلولو نه بغیردَ الله تعالی دَرحمت مستحق جوړ شی اودَ نبي علیه السلام دَ ژبې مبارکې نه دَدې اعلان وی په دې وجه به هغوی دَ نبي علیه السلام په مجلس کښې انتروشی کول اودَ نبي علیه السلام دَ طرفه به دَ یرحمك الله په انتظارکښې وو.نبي علیه السلام هغوی ته همیشه دَهدایت دعا کړې ده اودَ ایمان نه اول ئی هغوی ته دَ رحمت دعانه ده کړې "یهدیکم الله" به ئی فرمائیل.

(١) اخرجه ابو داود فی کتاب الأدب/باب کیف یشمت الذمی (رقم-٥٠٣٨) والترمذی فی کتاب الأدب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء کیف یشمت العاطس (رقم-٢٧٣٩) واحمد فی المسند: ٤/٤٠٠

[۴۷۴۱]دا نتروشى په وخت السلام عليكم با ندې د نبي عليه السلام ﷺ خفګان

۴۷۴۱-[۱۰] () ۱وَعَنْ هِلَالِ بْنِ يِسَافٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ ۲: كُنَّا مَعَ سَالِمِ بْنِ عُبَيْدٍ، فَعَطَسَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ، فَقَالَ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ. ۳فَقَالَ لَهُ سَالِمٌ: وَعَلَيْكَ وَعَلَى أُمِّكَ. ۴فَكَأَنَّ الرَّجُلَ وَجَدَ فِي نَفْسِهِ، ۵فَقَالَ: أَمَا إِنِّي لَمْ أَقُلْ إِلَّا مَا «قَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذْ عَطَسَ رَجُلٌ عِنْدَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " عَلَيْكَ وَعَلَى أُمِّكَ، ۶إِذَا عَطَسَ أَحَدُكُمْ فَلْيَقُلْ: الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ، وَلْيَقُلْ لَهُ مَنْ يَرُدُّ عَلَيْهِ: يَرْحَمُكَ اللّٰهُ، ۷وَلْيَقُلْ: يَغْفِرُ اللّٰهُ لِي وَلَكُمْ» " رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**: ۱او حضرت هلال ابن يساف تابعي رحمه الله وايي ۲چې يوه ورځ مونږ د حضرت سالم ابن عبيد رضي الله عنه سره ناست وو چې په مسجد کې يو سړي ته نوږي (انتوشي) راغلو او هغه د الحمد لله په ځاي السلام عليكم وئيل (په دې خيال چې دنوږي نه پس د الحمد لله په ځاي السلام عليكم وئيل هم جائز دي) ۳حضرت سالم رضي الله عنه د هغه سړي په جواب کې اوويل په تا او ستا په موردې هم سلام وي ۴هغه سړي ګويا په خپل زړه کې دا الفاظ (او ستا په مور دې هم سلام وي) بد وګنل ۵حضرت سالم رضي الله عنه (هغه ناخوښی محسوس‌ولو سره. اوويل (په دی کی دناخوښی څه خبره ده) تاته دې معلومه وي چې ما هغه الفاظ اوويل کوم چې رسول الله ﷺ هغه وخت فرمايلي وو کله چې يوسړي د رسول الله ﷺ مخکې ونوږل، او هغه د الحمد لله په ځاي السلام عليكم ويلي وو نو حضور ﷺ د هغه په جواب کې فرمايلي وو په تا او ستا په موردي هم سلام وي ۶بيا حضور ﷺ وفرمايل کله چې په تاسو کې يوسړي ته نوږی راشي نو هغه ته پکار دي چې الحمد لله رب العلمين اووائي او جواب ورکونکي ته پکار دي چې يرحمك الله اووائي ۷او بيا نوږی کونکي ته بطريقه استحباب پکار دي چې داسې اووائي: يغفر الله لي ولكم يعنى الله ﷻ دې ما او ستاسو مغفرت وفرمايي. (ترمذي، ابوداود)

**تسهيلات:**

**قوله: فَكَأَنَّ الرَّجُلَ وَجَدَ فِي نَفْسِهِ:**

**د تشميت په جواب کښې د امک اضافه کول:** جد د موجدة نه دې د سخت غصه کيدو په معنى کښې دې غصه کيدونکې دا سړې صحابى نه وو بلکه تابعى وو دې عاجز په مجلس کښې په انتروشى باندې اووئيل السلام عليكم ددې په جواب کښې سالم بن عبيد رضي الله عنه صحابى اوئيل وعليك وعلى امك السلام د سلام په دې انداز سره دهغه سړي

[1] اخرجه ابو داود فى كتاب الأدب/باب ما جاء فى تشميت العاطس (رقم-۵۰۳۱) والترمذى فى كتاب الأدب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء كيف يشمت العاطس (رقم-۲۷۴۰) واحمد فى المسند:۷/۶

دَمور ذکر په مجلس کښې راغلو په دې وجه دې غصه شو صحابی چه دَهغه غصه محسوس کړه نو بیا ئې ورته اووئیل ته خفه کیږه مه ماچه کوم طریقه اختیارکړې ده دا نبي علیه السلام هم دَیو سړی باره کښې اختیارکړې وه ما په سنت باندې عمل اوکړو

**اشکال:** نبي ﷺ دَ انتروشی کونکې سړی په غلطئ باندې دَهغه مور ولې یاده کړه؟

**داشکال دوه جوابونه:**

① دې سړی سلام بې موقع اوبې محل استعمال کړو نودا هم داسې شوه لکه چه څوك دَ مخاطب په ځائی دَ هغه مور له دَ سلام جواب ورکړی لکه څنګه چه به دغه بې موقع او بې محل وی دغه شان دَ انتروشی په جواب کښې به هم بې موقع او بې محل وی

② نبي علیه السلام اشاره اوکړه دا څه چه تانه اوشو دا ستا قصور نه دې بلکه دا ستا دَ مور قصور دې چه هغې تاته صحیح تعلیم نه دې درکړې اوستا صحیح تربیت ئې نه دې کړې په دې وجه ته دَدې آدابو نه محروم پاتې شوې

**د حدیث څخه د دوو مسئلو معلومیدل:** ① په دې حدیث سره امت ته داتعلیم حاصل شو چه دَ شریعت اصطلاحات او اطلاقات بې ځایه او بې محل استعمالول جائز نه دی کوم حکم چه دکوم مقام دَپاره وی هم په هغې کښې استعمالول پکاردی

② د حدیث څخه دا تعلیم حاصل شو چه دَ شریعت دَ وضع کړې شوی الفاظو په ځائی نور الفاظ استعمالول جائز نه دی سره دَدې چه دَهغې معنی ډیره ښه وی

### [۴۷۴۳]دریو ځلوپورې دَانتروشی جواب آخری حد دې

| ۴۷۴۳–[۱۱] ()[۱]وَعَنْ عُبَيْدِ بْنِ رِفَاعَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [۲] «شَمِّتِ الْعَاطِسَ ثَلَاثًا [۳] فَإِنْ زَادَ فَشَمِّتْهُ، وَإِنْ شِئْتَ فَلَا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ. |
|---|

**ترجمه:** [۱]او حضرت عبید ابن رفاعه د رسول اللهﷺ نه نقل کوي چې حضورﷺ وفرمایل [۲]د نوړي (انتوشې) کونکي مسلسل دري نوړی پورې جواب دي ورکول شي [۳]او که یوسړي دري ځلي نه زیات نوړی وکړي نوپه دي صورت کې ورته اختیاردي که هغه ته جواب ورکړي او که جواب ورنه کړي دا روایت ابوداود او ترمذي نقل کړي دي او ترمذي ویلي دي چې داحدیث غریب دي

**حل اللغات:** - ① شَمِّتِ: د پرنجی کونکی د الحمد لله جواب ورکوه ② الْعَاطِسَ: پرنجی کونکې.

**تسهیلات:**

**قوله: وَإِنْ شِئْتَ فَلَا:**

[1] اخرجه ابو داود فی کتاب الأدب/باب کم مرة یشمت العاطس (رقم-۵۰۳۶) والترمذی فی کتاب الأدب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء کم یشمت العاطس (رقم-۲۷٤٤(

یعنی د یو نه زیات انتوشی کولو والا ته په جواب ورکولو کښې اختیار دې که خوښه ئې وی نو هر ځل دی جواب ورکوی او په هر ځل نه ورکولو کښې څه گناه هم نشته کمامر

**[۴۷۴۳] چې انتروشی دریو ځلو نه زیات شی نو دا زکام دې**

۴۷۴۳-[۱۲] ()[۱]وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ[۲]: "«شَمِّتْ أَخَاكَ ثَلَاثًا، فَإِنْ زَادَ فَهُوَ زُكَامٌ»". [۳]رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ، وَقَالَ: لَا أَعْلَمُهُ. إِلَّا أَنَّهُ رَفَعَ الْحَدِيثَ إِلَى النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-.

**ترجمه**: [۱] او حضرت ابوهریره رضی الله عنه فرمایي [۲]تاسو د خپل مسلمان ورور د نوږي (انتوشي) دري ځلي پورې جواب ورکړئ که هغه د دې نه زیات نوږي (انتوشي) وکړي نو پوهه شئ چې هغه زکام شوي دي [۳]دا روایت ابوداود نقل کړي دي او ویلي یي دي زه خو پوهیږم چې حضرت ابوهریره رضی الله عنه دا حدیث رسول الله ﷺ ته رسولي دي

**تسهیلات:**

**قوله**: وَقَالَ: لَا أَعْلَمُهُ. إِلَّا أَنَّهُ رَفَعَ الْحَدِيثَ إِلَى النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ،

امام ابوداود رحمه الله د عبارت مطلب دا دې چه دا حدیث د ابو هریره رضی الله عنه خپل قول نه دې بلکه د نبی کریم ﷺ ارشاد مبارک دې ځکه چه حضرت ابو هریره رضی الله عنه د دریو د عدد تعین د شارع علیه السلام نه بغیر نه شی کولې دا کلام د امام ابو داود رحمه الله خپل دې

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۴۷۴۴] دَ شارع دَ وضع کړې شوی الفاظو پابندی ضروری ده**

۴۷۴۴-[۱۳] ()[۱]عَنْ نَافِعٍ: [۲]«أَنَّ رَجُلًا عَطَسَ إِلَى جَنْبِ ابْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- فَقَالَ الْحَمْدُ لِلَّهِ وَالسَّلَامُ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [۳]قَالَ ابْنُ عُمَرَ: وَأَنَا أَقُولُ: الْحَمْدُ لِلَّهِ وَالسَّلَامُ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ، وَلَيْسَ هَكَذَا [۴]عَلَّمَنَا رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- أَنْ نَقُولَ: الْحَمْدُ لِلَّهِ عَلَى كُلِّ حَالٍ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه**: [۱]او حضرت نافع تابعي رحمه الله وایي [۲]د یوي ورځي واقعه ده چې حضرت ابن عمر رضی الله عنهما ناست وو چې یو سړي نوږي (انتوشي) وکړې بیایي اوویل الحمد لله والسلام علی رسول الله، [۳]نو حضرت عمر رضي الله عنه هم اوویل الحمد لله والسلام علی رسول الله لیکن داسې نه ده (یعني د دې خو نه حکم ورکول شوي دي او نه دا مستحب دي او نه د ادابو نه دي چې نوږي راتلو باندې الحمد لله سره د سلام الفاظ دې یوځای شی [۴]بلکي اصل ادب او د حکم نبوي ﷺ د اتباع تقاضه داده چې نوږي راتلو باندې بغیر څه کمي او

[1]) اخرجه ابو داود فی کتاب الخراج والإمارة والفیء/باب فی إیقاف أرض السواد وأرض العنوة (رقم-۳۰۳۵)
[2]) اخرجه الترمذی فی کتاب الأدب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما یقول العاطس إذا عطس (رقم-۲۷۳۸)

زياتي هغه اووائي] كوم چې رسول اللهﷺ مونږ ته ښودلي دي او هغه دادي چې مونږ داسې اووايو الحمدلله علىٰ كُلِّ حَالٍ [يعنى په هرحال كې الله لره تعريف دي] دا روايت ترمذي نقل كړي دي او ويلي يي دي چې دا حديث غريب دي

**تسهيلات:**

**قوله:** أَنْ نَقُولَ: الْحَمْدُلِلّٰهِ عَلَىٰ كُلِّ حَالٍ:

**دشريعت په اصطلاحاتو كښې د كمى زياتى عدم جواز:** په دې حديث كښې هم هغه خبره ذكر ده كومه چه پورته ليكلې شوې ده چه دَ شريعت دَ اصطلاحاتو اواطلاقاتو خيال ساتل ډير ضروري دى سره دَدې چه يوسړې دَخپل طرف نه ډيرې ښې ښكلې جملې وائى ليكن دا مستقل خبره نه ده په دې باندې دَ شريعت مهر نه دې لګيدلې لهذا دَدې هيڅ اعتبارنشته دې اوس ګوره چه دې سړى درود وئيلې دې كوم چه ښكلې جمله ده ليكن دَ بې محل كيدو دَ وجې نه حضرت ابن عمرؓ اوفرمائيل چه دا ښه خبرې خو زه هم كولې شم اوجائز هم دى ليكن دې وخت كښې دَدې موقع اومحل نه دې بلكه دابې محل دى په دې وجه دَدې څه اعتبار نشته دې

## [۷]بَابُ الضَّحِكِ]

**دَخندابيان**

| خلاصة الباب |
|---|
| **فيه خمسة أحاديث مشتملة على مسئلتين:** |
| ① تبسم النبي صلي الله عليه وسلم: ۱، ۲، ۳،۴۔ |
| ② ضحك الصحابة: ۳،۵۔ |

**دخندا كولو حكم:** الله تعالى په انسان كښې دَخند اماده كيخودې ده لهذا خندل منع نه دى بلكه جائز دى ليكن په دې كښې دَاعتدال دَحدنه تجاوز كول مناسب نه دى ځكه چه په دې سره دَ مخ رونق اووقار ختميږى او په روحانى اعتبارسره زړه مړكيږى.

**دخندا درې درجې:**

① تبسم: دا مسكې كيدو ته وائى دټولو نه ښه تبسم دې

② ضحک: دا داسې خندا ته وائى چې غاښونه ښكاره شى خواوچت آواز ورسره نه وى.

③ قهقه: دا په كړس كړس (ېرق ېرق) خندا ته وائى دا دټولوڅخه خرابه خندا ده

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[٤٧٣٥] د نبي عليه السلام تبسم (خندا)**

٤٧٣٥ - [١] ([1]) ①عَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا - قَالَتْ②: «مَا رَأَيْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مُسْتَجْمِعًا ضَاحِكًا③حَتّٰى أَرٰى مِنْهُ لَهَوَاتِهِ④إِنَّمَا كَانَ يَتَبَسَّمُ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه** : ①بي بي عائشه ﷞ فرمايي ②ما د حضور ﷺ دومره زيات خندا هيڅ کله نه ده ليدلي چې د حضور ﷺ خوله مبارکه خلاصه شوي وي ③او ماته د حضور ﷺ تالو يا وري په نظر راغلي وي ④بلکي اکثره دحضور ﷺ خندا به دمُسکي حده پورې وه (بخاري)

**حل اللغات** :- ① مُسْتَجْمِعًا: په تيز آواز سره خندل. ② لَهَوَاتِهِ: په تالو کښې دننه غوښه.

**تسهيلات:**

## د بعضې مشکلو جملو وضاحت:

① مُسْتَجْمِعًا ضَاحِكًا" استجماع په مکمل توګه باندې خندا ته وئيلې شوې ده دکوم نه چه په زوره خندا مراد ده

② لَهَوَاتِهِ" دَ حلق اوتالو په مينځ کښې چه کوم دَ غوښې ټکړه زوړندوى هغې ته لهوات وائي مکمل تيزه خندا مراد ده چه نبي عليه السلام کله داسې نه دی کړی

**قوله**: إِنَّمَا كَانَ يَتَبَسَّمُ"

**نوټ**: د تبسم سره د خندا نور دوه قسمونه دی د هغې تفصيل د دې باب په اول کښې تيرشوې دی

**[٤٧٣٦] دَ نبي عليه السلام ﷺ جرير بن عبدالله سره خصوصي معامله**

٤٧٣٦ -[٢] ([2]) ①وَعَنْ جَرِيرٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ②: «مَا حَجَبَنِي النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مُنْذُ أَسْلَمْتُ، ③وَلَا رَآنِي إِلَّا تَبَسَّمَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** : ① او حضرت جرير ﷛ وايي ② دکوم وخت نه چې زه مسلمان شوي يم رسول الله ﷺ زه هيڅ کله نه يم منع کړي ③ او کله چې به حضور ﷺ زه وليدم نو مسکي کيدلو به (بخاري، مسلم)

**حل اللغات** :- ① مَا حَجَبَنِي: نه يم منع کړې.

---

[1]) اخرجه البخارى فى كتاب الأدب/باب التبسم والضحک (رقم-٦٠٩٢) ومسلم فى كتاب صلاة الاستسقاء /باب التعوذ عند رؤية الريح والغيم، والفرح بالمطر(رقم-١٦ - (٨٩٩)

[2]) اخرجه البخارى فى كتاب الأدب/باب التبسم والضحک(رقم-٦٠٨٩) ومسلم فى كتاب فضائل الصحابة رضى الله تعالى عنهم/باب من فضائل جرير بن عبد الله رضى الله تعالى عنه (رقم-١٣٤ - (٢٤٧٥)واحمد فى المسند: ٣٥٩/٤

**تسهیلات:**

**قوله**: مَا حَجَبَنِي النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مُنْذُ أَسْلَمْتُ:

**د جریربن عبدالله حسن**: حضرت جریربن عبد الله بجلی ﷛ دَ نبي علیه السلام دَ وفات نه یو څو ورځې مخکښې مسلمان شوې وو الله تعالی هغه له قدرتی دومره حسن ورکړې وو چه هغوی ته دَ دې امت یوسف وئیلې شوې دې دې دَ خپل ځان باره کښې دَ رسول الله ﷺ دَطرف نه دَدوو خصوصیاتو ذکرکوی

**قوله**: مَا حَجَبَنِي النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "یو خصوصیت دا وو چه ما کله هم غوښتل چه نبي علیه السلام سره ملاقات اوکړم هغوی زه کله هم نه یم منع کړې بلکه دَملاویدو اجازت ئې راکړې دې دَدې نه دکور بې پردګی مراد نه ده بلکه دَ نبي علیه السلام سره تعلق او ملاویدل مراد دی دویم خصوصیت دا چه کله هم نبي علیه السلام ماته کتلی دی مسکې شوې دې کیدې شی چه نبي علیه السلام ته دَ حضرت جریر ﷛ په مخ کښې دَ الله تعالی دَ انواراتو اشاره ښکاریدله یا دَالله تعالی دَ قدرت حسین اوجمیل نظاره کتلوسره (فَتَبٰرَكَ اللّٰهُ اَحْسَنُ الْخٰلِقِيْنَ) باندې به ئې تبسم فرمائیلو.

**[۴۷۴۷] په تیره شوې خبره باندې د خندا جواز**

۴۷۴۷-[۳] ()① وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا - قَالَ② «كَانَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لَا يَقُومُ مِنْ مُصَلَّاهُ الَّذِي يُصَلِّي فِيهِ الصُّبْحَ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ، ③ فَإِذَا طَلَعَتِ الشَّمْسُ قَامَ، ④ وَكَانُوا يَتَحَدَّثُونَ فَيَأْخُذُونَ فِي أَمْرِ الْجَاهِلِيَّةِ فَيَضْحَكُونَ، ⑤ وَيَتَبَسَّمُ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ» -. ⑥ رَوَاهُ مُسْلِمٌ. وَفِي رِوَايَةٍ لِلتِّرْمِذِيِّ: يَتَنَاشَدُونَ الشِّعْرَ.

**ترجمه**: ① او حضرت جابر ابن سمره ﷛ وایي ② چې د رسول الله ﷺ دامعمول وو چې په کوم مصلي به يي د سهار مونځ وکړو د هغه ځاي نه به ترهغه وخته پورې نه پاڅیدلو ترڅو پورې چې نمر به په ښه شان نه وو راختلي ③ چې نمر به راوختني او ښه پورته به شو نو حضور ﷺ به د اشراق مونځ کوي یا کورته تشریف وړلو د پاره به پاڅیدلو ④ په دي دوران کې به صحابه ؓ د مذاق په طور د زمانه جاهلیت خبري کولي او خندل به يي ⑤ حضور ﷺ به هم ورسره مسکي کیدي ⑥ (مسلم) او د ترمذي په روایت کې داسې دي چې په دي دوران کې به صحابه ﷡ اشعار وئیل او په اوریدو کې مشغول وو.

**تسهیلات:**

**قوله**: يَتَنَاشَدُونَ الشِّعْرَ "یعنی دَ جائز حده پورې به ئې اشعار وئیل دَ الله تعالی وحدانیت

[1] اخرجه مسلم فی کتاب الفضائل/باب تبسمه صلی الله علیه وسلم وحسن عشرته (رقم-۶۹ - (۲۳۲۲)) والترمذی فی کتاب الأدب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی إنشاد الشعر (رقم-۲۸۵۰)

او د رسول مقبول منقبت او يه انسانی حکمت باندې مشتمل اشعار به ئې وئیل دا د زنده دل خلقو نښانی ده او جائز دی

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۴۷۴۸]د نبي عليه السلام زيات تبسم (مسکی کیدل)**

۴۷۴۸-[۲] (۱) ۱عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ جَزْءٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ۲: «مَا رَأَيْتُ أَحَدًا أَكْثَرَ تَبَسُّمًا مِنْ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ» -. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه** : ۱حضرت عبد الله ابن حارث ابن جزء ﷜ وايي ۲چې ما د رسول الله ﷺ نه هيڅ سړی زيات په مسکا نه دي ليدلي (ترمذي)

**تسهيلات:**

**قوله: مَارَأَيْتُ أَحَدًا أَكْثَرَ تَبَسُّمًا:**

د حديث الباب حاصل دا دي چه نبی کريم ﷺ کله هم قهقهه او ضحک نه دي کړي او کله چه به هم د خندا موقع راتله نو نبی کريم ﷺ به صرف تبسم کولو او ددې حديث مطلب دا نه دې چه نبی کريم ﷺ به هميشه تبسم کولو بلکه کله چه به د خوشحالئ خبره وه نو تبسم به يی کولو

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۴۷۴۹]د صحابه کرامو رضی الله عنهم خندل**

۴۷۴۹-[۵] (۲) ۱عَنْ قَتَادَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ۲: «سُئِلَ ابْنُ عُمَرَ: هَلْ كَانَ أَصْحَابُ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَضْحَكُونَ؟ ۳قَالَ: نَعَمْ وَالْإِيمَانُ فِي قُلُوبِهِمْ أَعْظَمُ مِنَ الْجَبَلِ. ۴وَقَالَ بِلَالُ بْنُ سَعْدٍ: أَدْرَكْتُهُمْ يَشْتَدُّونَ بَيْنَ الْأَغْرَاضِ ۵وَيَضْحَكُ بَعْضُهُمْ إِلَى بَعْضٍ، ۶فَإِذَا كَانَ اللَّيْلُ كَانُوا رُهْبَانًا». رَوَاهُ فِي "شَرْحِ السُّنَّةِ"

**ترجمه** : ۱ابو قتاده ﷜ وايي ۲د حضرت ابن عمر ﷠ نه پوښتنه وشوه آيا د رسول الله ﷺ صحابه ﷢ به خندل ۳حضرت ابن عمر ﷠ وفرمايل هو حالانکي د هغوئ په زړونو کي د غره نه هم لوي ايمان وو ۴او بلال ابن سعد تابعي ﷫ وايي ماصحابه ﷢ داسي حال کې پيدا کړي دي چې هغوئ به (د ورځي د تير اندازي مشق کولو په وخت ، د تير د نښو په منځ کې زغليدل ۵او د يوبل په خبرو به يي خندل ۶خو کله چې به شپه راغله نو هغوئ به د الله نه ډير زيات ويرېونکي جوړ شوه (شرح السنة)

[1]) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم /بابٌ فی بشاشة النبی صلی الله علیه وسلم (رقم-۳۶۴۱) واحمد فی المسند:

[2]) اخرجه البغوی فی شرح السنن (۳۱۸/۱۲) رقم ۳۳۵۱).

**حل اللغات**: ① يَنْتَدُونَ منډې به ئې وهلې. ② الأَغْرَاض: نښې. نشانه. ③ رُهْبَانًا: راهبان. ویریدونکی.

**تسهیلات**:

**قوله**: قَالَ: نَعَمْ وَالْإِيمَانُ فِي قُلُوبِهِمْ أَعْظَمُ مِنَ الْجَبَلِ

**د خندا دکمال ایمان سره عدم منافات**: پوښتنه کونکې تابعی دې چه دحضرت ابن عمر رضی الله عنهما صحابی نه تپوس کوی چه آیا صحابه کرامو به خندل هم؟ دَ سائل خیال دا وو چه خندل خویودَ غفلت کار دې اوصحابه کرام دَغفلت نه ډیر لرې وو په دې وجه به هغوی نه خندل دَدې په جواب کښې حضرت ابن عمر رضی الله عنهما اوفرمائیل او صحابه کرامو به ښه خندل لیکن دَهغوی په زړونو کښې به په خندا سره غفلت نه راتلو بلکه په زړونوکښې به ئې دَ غرپه شان ایمان وو په دې جمله کښې حضرت ابن عمر رضی الله عنهما دَ دغه سړی دَ زړه دَخدشې جواب ورکړې دې اواشاره ئې اوکړه چه دَجائزحده پورې خندل انسانی فطرت دې اودادَژوندو زړونووالو علامت دې.

**دیحی اوعیسی علیهما السلام واقعه**: حیات الحیوان کښې لیکلی دی چه یوځل دَ حضرت یحیٰی علیه السلام حضرت عیسیٰ علیه السلام سره ملاقات اوشو دَملاقات په وخت حضرت عیسیٰ علیه السلام اوخندل په کوم چه حضرت یحیٰی علیه السلام اوفرمائیل تا خدائی هیرکړې دې چه خاندې؟ حضرت عیسیٰ علیه السلام اوفرمائیل ولې ته دَالله تعالی نه دومره ناامیده شوې؟ په دې باندې دواړو غوښتل چه دَالله تعالی دَ طرف نه څه اشاره ملاؤشی چه په دې دواړو کښې څوک په ښه حالت دې دَالله تعالی دَطرف نه وحی راغله چه تاسو دواړو کښې الله تعالی ته هغه څوك ډیر محبوب دې دچااخلاق چه زیات ښهٔ وی یعنی فیصله دَ حضرت عیسیٰ علیه السلام په حق کښې اوشوه

**قوله**: فَإِذَا كَانَ اللَّيْلُ كَانُوا رُهْبَانًا:

**د ورځې خندا د ژړا**: زیر بحث حدیث کښې یوراوی بلال بن سعد تابعی رحمه الله فرمائی چه مااوکتل چه صحابه کرامودَ غشو ویشتلو دَ نښو په مینځ کښې منډې وهلې او په یوبل پورې به ئې خندل لیکن دَ شپې به راهبان جوړشو اوعبادت به ئې کولو یعنی دَ ورځې شهسواران اودَ شپې تهجدګذار وو. رهبان اللیل وفرسان النهار.

# [۸] بَابُ الْأَسَامِي

## دَنومونو بیان

**خلاصة الباب**

**فيه ثلاثون حديثاً مشتملة على سبع مسائل:**

① النهي عن الإكتناء بكنية النبي صلي الله عليه وسلم والرخصة فيه: ۱، ۲، ۱۹، ۲۰، ۲۱، ۲۲۔

② أحب الأسماء إلى الله تعالى: ۳، ۳۰۔

③ النهي عن بعض الأسماء والأمر بتبديلها: ۴، ۵، ۶، ۷، ۸، ۹، ۱۰، ۱۷، ۲۴، ۲۵، ۲۸، ۲۹۔

④ النهي عن بعض الألفاظ الموهمة للشرک: ۱۱، ۱۲، ۱۳، ۱۵، ۲۶، ۲۷۔ ⑤ النهي عن سب الدهر: ۱۴۔

⑥ الحكم بتسمية الأسماء الحسنة: ۱۸۔

⑦ حكم التكنى ببعض الأعمال: ۲۳۔

**داسم لغوی تحقیق:** الأسامیٰ د یاء په تشدید او تخفیف سره د اسم جمع أسامي او أسام او أسماء راځی په دې باب کښې د نومونو د احکامو بیان دې، چه کوم نوم کیخودل پکار دی او کوم نه دی کیخودل پکار او په کوم نوم سره رابلل پکار دی او کوم نوم ښه دې او کوم بد دې،

**په شریعت کښې د نوم کیخودو طریقه:** اسلام چونکه کامل مکمل بلکه اکمل ضابطه حیات دې په دې وجه ده دَمسلمانانو په هرځائی کښې لارخودنه کړې ده تردې چه په نوم کیخودوکښې ئی هم لارخودنه کړې ده.په دې باب کښې به هغه احادیث راځی په کوم کښې چه دَخو نومونود کیخودو تعلیم ورکړې شوې دې اودَخرابو نومونو نه دَ ځان ساتلو حکم ورکړې شوې دې یادَدې دَ بدلولو رهنمائی ئی شوې ده

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

**[۴۷۵۰] دَنبي عليه السلام ﷺ په کنیت باندې دَخپل کنیت کیخودو حکم**

۴۷۵۰-(۱) (۱) [۱] عَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ [۲]: «كَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي السُّوقِ، [۳] فَقَالَ

[۱]) اخرجه البخاري في كتاب البيوع/باب ما ذكر في الأسواق (رقم-۲۱۲۰) ومسلم في كتاب الآداب/باب النهي عن التكني بأبي القاسم وبيان ما يستحب من الأسماء (رقم-۱ - (۲۱۳۱) وابوداود في كتاب الأدب/بابٌ في الرجل يتكنى بأبي القاسم (رقم-۴۹۶۵) والترمذي في كتاب الأدب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب م[illegible]اء في كراهية الجمع بين اسم النبي صلى الله عليه وسلم وكنيته (رقم-۲۸۴۱) وابن ماجه في كتاب الأدب/باب الجمع بين [illegible]سم النبي صلى الله عليه وسلم وكنيته (رقم-۳۷۳۵) واحمد في المسند: ۱۷۰/۳

رَجُلٌ: يَا أَبَا الْقَاسِمِ! ۴فَالْتَفَتَ إِلَيْهِ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ۵فَقَالَ: إِنَّمَا دَعَوْتُ هٰذَا. ۶فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "سَمُّوا بِاسْمِي، وَلَا تَكْتَنُوا بِكُنْيَتِي» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه :** ۱حضرت انس ﷛ وايي ۲چې يوه ورځ رسول الله ﷺ په بازار کې وو ۳يو سړي چاته ابو القاسم ويلو سره اواز وکړو ۴حضور ﷺ په ګرځيدلو سره د هغه سړي طرف ته وکتل ۵هغه عرض وکړو حضور ﷺ ما تاسو ته اواز نه دي کړي بلکې هغه سړي ته مې اواز کړي وو او په دې ويلو سره هغه سړي طرف ته يې اشاره وکړله چې هلته موجود وو ۶په دې اوريدو سره رسول الله ﷺ وفرمايل تاسو څما په نوم خپل نوم ايږدئ ليکن څما کنيت باندې کنيت مه مقرر وئ (بخاري، مسلم)

**حل اللغات :** - ① أَبَا الْقَاسِمِ: د نبي ﷺ کنيت دې، ② فَالْتَفَتَ: متوجه شو. ورته ئې اوکتل

**تسهیلات:**

**قوله :** وَلَا تَكْتَنُوا بِكُنْيَتِي:

**دنوم باره کښې بعضې اصطلاحات:** يو اسم محضه وی چه مور پلار دَخپل اولاد دَپاره دَ پيدائش په وخت ايږدی يو لقب وی چه په معاشره کښې خلق يو بل ته ورکوی لکه ولی الدين مصلح الدين وغيره يو کنيت وی يو سړې دَ خپل ځوئی لور يا پلار وغيره په نوم سره خپل ځان متعارف اومشهورکوی لکه ابوبکر، ابوذر، ابوحفص، ابن عباس، ابن مسعود وغيره

**دابوالقاسم کنيت کيخودو عدم جواز :** اسلام دکنيت کيخودو اجازت ورکړې دې ليکن په صحيح احاديثو کښې داخبره موجود ده چه دَ نبي عليه السلام کنيت کوم چه ابوالقاسم وو په دې باندې چاته دکنيت کيخودو احازت نه وو دَ رسول الله ﷺ دَ يو ځوئی نوم قاسم وو دَ نبي عليه السلام کنيت هم دَهغه دَ وجې نه ابوالقاسم وو.

**دنبي عليه السلام په نوم د کنيت دعدم جواز په زمانه کښې مذاهب:**

① دَ شوافع او اهل ظواهر په نيزيو سړی له ابوالقاسم کنيت کيخودل جائز نه دی

② امام محمد ﷫ فرمائی چه دَ يو سړی دَپاره داخو جائز نه دی چه هغه خپل نوم محمد کيږدی اوکنيت ابوالقاسم کيږدی که چرته جدا جدا کيخودل غواړی نومحمد نوم کيخودل هم جائزدی اوچه نور نوم ئی بل وی نو ابوالقاسم کنيت کيخودل هم جائز دی.

③ امام مالك ﷫ فرمائی چه نوم اوکنيت ټول جائز دی دَ نبي عليه السلام په حيات طيبه کښې دَهغوی کنيت کيخودلو ممانعت وو اوس ټول جائز دی

④ ائمه احناف دا راجح ګرځولی دی چه دَ نبي عليه السلام په حيات طيبه کښې دَ هغوی په کنيت باندې کنيت کيخودل سخت منع وو اوس اګرچه داسې سخت ممانعت نشته مګريو قسم ممانعت اوس هم شته

**دنبی علیه السلام د وفات څخه روسته د ابوالقاسم کنیت کیخود جواز**: چنانچه ملاعلی قاری رحمه الله واضحه فیصله کړې ده لیکی چه راجح او صحیح دغه دی چه دکنیت ممانعت دَ نبي علیه السلام حیات طیبه پورې محدود وو ځکه چه نبي علیه السلام په حیات کښې دَدې لفظ په استعمال سره اشتباه راتله لکه چه حدیث نمبر(۴۷۵۰) کښې تفصیل دې یو سړی اووئیل یا اباالقاسم، نبي علیه السلام چه دَهغه آواز واورېدو نو مخ مبارك ئې ورواړولو وئی کتل دغه سړی وئیل تاسو نه زه بل یوسړې رابلم دَ کوم کنیت چه ابوالقاسم دې په دې باندې نبي علیه السلام ابوالقاسم کنیت کیخودل منع کړل ځکه چه په دې سره به نبي علیه السلام خفه کیدو بل دَ یهودو په کتابونوکښې دَ نبی آخرالزمان باره کښې دَ ابوالقاسم کنیت کیدې شی چه کافی مشهور وو په دې وجه به یهودو نبي علیه السلام هم دَ ابوالقاسم په کنیت سره رابللو دَدې اشتباه په وجه هم داکنیت ممنوع وو لیکن کله چه دَ نبي علیه السلام انتقال اوشو نودَ کنیت دا ممانعت ختم شو لکه چه دلته انتهاء دَحکم دَ انتهاء دَ علت په وجه اوشو

**[۴۷۵۱]زه خپل رب قاسم(تقسیمونکې) جوړکړې یم**

| ۴۷۵۱-[۲] (۱) ①وَعَنْ جَابِرٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ②"«سَمُّوا بِاسْمِي وَلَا تَكْتَنُوا بِكُنْيَتِي، ③فَإِنِّي إِنَّمَا جُعِلْتُ قَاسِمًا أَقْسِمُ بَيْنَكُمْ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
|---|

**ترجمه**: ①او د حضرت جابر رضی الله عنه نه روایت دې ②چه رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل تاسو څما په نوم باندې نوم ایږدئ خو څما کنیت باندې کنیت مه مقرر وئ. ③ځکه چې زه قاسم ګرځول شوی یم او زه ستاسو په منځ کې تقسیم کوم (بخاري. مسلم)

**تسهیلات:**

**قوله**: **إِنَّمَا جُعِلْتُ قَاسِمًا أَقْسِمُ بَيْنَكُمْ**:

**دنبی علیه السلام د ابوالقاسم کنیت دوه وجوهات**:

① د نبی علیه السلام کنیت ابوالقاسم ځکه ووچې د دوی د یوځوی نوم قاسم وو

② قاسم تقسیم کونکی ته وائی دَنبي علیه السلام ابوالقاسم کنیت د دې وجې وو چط هغوی به د مال غنیمت تقسیم کولو.

---

[1]) اخرجه البخاری فی کتاب فرض الخمس/باب قول الله تعالی: {فأن لله خمسه وللرسول} [الأنفال: ٤١] " (رقم-٣١١٤) ومسلم فی کتاب الآداب/باب النهی عن التکنی بأبی القاسم وبیان ما یستحب من الأسماء (رقم-٣ - (٢١٣٣) والترمذی فی کتاب الأدب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی کراهیة الجمع بین اسم النبی صلی الله علیه وسلم وکنیته (رقم-٢٨٤٢) وابن ماجه فی کتاب الأدب/باب الجمع بین اسم النبی صلی الله علیه وسلم وکنیته (رقم-٣٧٣٦) واحمد فی المسند: ٣/٣٦٩

[۳۷۵۳] عبدالله او عبدالرحمن د ټولو نه ښه نومونه دي

۳۷۵۳-[۳] (۱) [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«إِنَّ أَحَبَّ أَسْمَائِكُمْ إِلَى اللهِ: عَبْدُ اللهِ وَعَبْدُ الرَّحْمٰنِ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت ابن عمر رضي الله عنهما وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د الله عز وجل په نزد ستاسو په نومونو کې د ټولو نه زيات ښه نوم عبد الله او عبد الرحمن دي (مسلم)

**تسهيلات**:

**قوله**: عَبْدُ اللهِ وَعَبْدُ الرَّحْمٰنِ:

دا دې په شان نومونو کښې په اوچته درجه باندې توحيد او دکمال د درجې عبديت دې په دې وجه د امحبوب نومونه دي ليکن بعضې علماء وائي چه دا نومونه د انبياء کرامو د نومونو نه پس خوښ کړې شوي دي لهذا د محمد ﷺ د نوم نه دا دواړه نومونه زيات خوښ کړې شوي نه دي يا به کم تروي يا به اسم محمد سره په خوښيدو کښې برابر وي

[۳۷۵۴] د غلام نوم يسار او افلح کيښودو ممانعت

۳۷۵۴-[۴] (۲) [۱] وَعَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«لَا تُسَمِّيَنَّ غُلَامَكَ يَسَارًا، وَلَا رَبَاحًا، وَلَا نَجِيحًا، وَلَا أَفْلَحَ، [۳] فَإِنَّكَ تَقُولُ: أَثَمَّ هُوَ؟ [۴] فَلَا يَكُونُ، [۵] فَيَقُولُ لَا» [۶]". رَوَاهُ مُسْلِمٌ. وَفِي رِوَايَةٍ لَهُ، قَالَ: "«لَا تُسَمِّ غُلَامَكَ رَبَاحًا، وَلَا يَسَارًا وَلَا أَفْلَحَ وَلَا نَافِعًا»".

**ترجمه**: [۱] او حضرت سمره ابن جندب رضي الله عنه وايي [۲] چې رسول الله ﷺ وفرمايل د خپل غلام نوم ① يسار ② رباح ③ نجيح او ④ افلح مه ايږدئ [۳] ځکه که تاسو څه وخت د هغه سړي نه پوښتنه وکړئ چې آيا هغه (مثلاً يسار يا رباح) دلته شته [۴] او فرض کړه (هغه هلته نه وي [۵] نو جواب ورکونکي به وايي چې هغه (يسار يا رباح) دلته نشته [۶] (مسلم) او د مسلم په يو روايت کې داسې دي چې حضور ﷺ وفرمايل د خپل غلام نوم (رباح يسار افلح او نافع) مه ايږدئ

**حل اللغات**: ① يَسَارًا: د يسرنه دې د آسانئ په معنى کښې. ② رَبَاحًا: د ربح نه د نفع په معنى کښې دې ③ نَجِيحًا: د کاميابئ په معنى کښې دې ④ أَفْلَحَ: د کاميابئ په معنى کښې دې

[۱] ) اخرجه مسلم في كتاب الآداب/باب النهي عن التكني بأبي القاسم وبيان ما يستحب من الأسماء (رقم-۲ - (۲۱۳۲) كتاب الأدب/بابٌ في تغيير الأسماء (رقم ۴۹۴۹) والترمذي في كتاب الأدب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء ما يستحب من الأسماء (رقم ۲۸۳۳) وابن ماجه في كتاب الأدب/باب ما يستحب من الأسماء (رقم-۳۷۲۸) واحمد في المسند: ۴/۳۴۵

[۲] ) اخرجه مسلم في كتاب الآداب/باب كراهة التسمية بالأسماء القبيحة وبنافع ونحوه (رقم-۱۰ - (۲۱۳۶) وابوداود في كتاب الأدب/بابٌ في تغيير الاسم القبيح (رقم-۴۹۵۸) والترمذي في كتاب الأدب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما يكره من الأسماء (رقم-۲۸۳۶) وابن ماجه في كتاب الأدب/باب ما يكره من الأسماء (رقم-۳۷۳۰) واحمد في المسند: ۷/۵

**تسهيلات:**

**قوله**: لَا تُسَمِّيَنَّ غُلَامَكَ يَسَارًا، وَلَا رَبَاحًا، وَلَا نَجِيحًا، وَلَا أَفْلَحَ:

**دبعضې نومونو کیخودو ممانعت**: رباح نجیح اوافلح هم د کامیابئی او خلاصی په معنی کښې دي ددې حدیث مطلب دادې چه داسې نومونه مه ایږدئی دکوم ظاهری معنی چه دَ خوصفاتو او کامیابوطرف ته اشاره کوی مثلاً سعددې نجیح اویسارشو کله چه په کورکښې خوك آواز ورکوی چه دننه یسار شته افلح شته نوجواب به راځی چه یسار نشته دې افلح نشته دې په دې سره په ظاهره دَ بوخیرنفی کیږی کوم ته چه بددعاونیلی شی به دې وجه نبي علیه السلام دَداسې نومونوکیخودونه منع کړې ده په دې کښې سره ددې چه دَ دې نومونودَ ذات نفی مرادوی لیکن دَ ظاهری الفاظونه معلومیږی چه په دې نومونوکښې کوم صفات دی دَهغې هم نفی کیږی سره دَدې چه په غیرارادی توگه سره وی په دې وجه به ممانعت راغی لیکن داممانعت دَ مکروه تنزیهی په درجه کښې دې کوم چه خلاف اولی دې او دَ افضل او غیرافضل خبره ده راتلونکې دَحضرت جابر ﷺ روایت نه پښپله په واضحه توگه معلومیږی چه نبي علیه السلام په شروع کښې داحکم فرمائیلې وو مگردَامت په حرج کښې دَ پریوتلوپه رنړاکښې نبي علیه السلام په دې باندې بیاخاموشی اختیارکړه اومنع ئی اونه کړه.

**[۴۷۵۳] اوس افلح او یسار نوم کیخودل جائزدی**

۴۷۵۳-[۵] ([1]) [۱] وَعَنْ جَابِرٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ [۲]: «أَرَادَ النَّبِيُّ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-أَنْ يَنْهَى عَنْ أَنْ يُسَمَّى بِيَعْلَى وَبِبَرَكَةَ وَبِأَفْلَحَ وَبِيَسَارٍ وَبِنَافِعٍ وَبِنَحْوِ ذٰلِكَ. [۳] ثُمَّ سَكَتَ بَعْدُ عَنْهَا، ثُمَّ قُبِضَ وَلَمْ يَنْهَ عَنْ ذٰلِكَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت جابر ﷺ وایي [۲] چې رسول الله ﷺ دا اراده فرمایلي وه چې یعلي برکة افلح یسار نافع او دغه شان نورو نومونو ایخودلو نه خلق منع کړي [۳] لیکن بیا ما ولیدل چې د دې ارادې نه پس حضور ﷺ سکوت وفرمایه تردې چې حضور ﷺ دې دنیا نه تشریف یووړې او دې نومونو ایخودلو نه یې منع ونه فرمایله (مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله**: ثُمَّ سَكَتَ بَعْدُ عَنْهَا:

**دبعضې ممنوع نومونو کیخودو اجازت**: په دې حدیث سره په واضحه توگه معلومه شوه چه

[1] اخرجه البخاری فی صحیحه رقم ۶۲۰۶) واخرجه مسلم فی کتاب الآداب/باب کراهة التسمیة بالأسماء القبیحة وبنافع ونحوه (رقم-۱۳ - (۲۱۳۸) وابوداود فی کتاب الأدب/بابٌ فی تغییر الاسم القبیح (رقم-۴۹۶۰) والترمذی فی کتاب الأدب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما یکره من الأسماء (رقم-۲۸۳۶) وابن ماجه فی کتاب الأدب/باب ما یکره من الأسماء (رقم-۳۷۲۹)

هغه سابقه حکم روستو موقوف شو چونکه په دې کښې دَ امت دَپاره لوئى حرج وو په دې وجه نبي عليه السلام روستو په دې باندې خاموشي اختيار کړه ګنې بيا به عبد الله نوم کيخودل هم مشکل کيدل چه په کورکښې دَالله تعالى بنده نشته دې په دې دوه قسم رواياتو کښې هيڅ تعارض نشته دې بلکه دَابتداء اوانتهاء فرق دې په شروع کښې منع کړې شو او په آخره کښې اجازت ورکړې شو

**[٤٧٥٥]قبيح ترين نوم او لقب شهنشاه دې**

٤٧٥٥-[١] ( ) [١]وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] "«أَخْنَى الْأَسْمَاءِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عِنْدَ اللهِ رَجُلٌ يُسَمَّى مَلِكَ الْأَمْلَاكِ»". [٣]رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ. وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ، قَالَ: "«أَغْيَظُ رَجُلٍ عَلَى اللهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَأَخْبَثُهُ رَجُلٌ كَانَ يُسَمَّى مَلِكَ الْأَمْلَاكِ [٤]لَا مَلِكَ إِلَّا اللهُ»".

**ترجمه** : [١]او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢]دَ قيامت په ورځ به د خداي ﷻ په نزد بدترين نوم والا هغه سړي وي چې هغه ته شهنشاه نوم ورکول کيدي [٣](بخاري) او د مسلم په روايت کې داسې دي چې حضور ﷺ وفرمايل د قيامت په ورځ به د خداي ﷻ په نز مبغوض ترين او د ټولو نه بدتر هغه سړي وي چې هغه ته د شهنشاه نوم ورکول کيدي [٤](يادلرئ) د الله نه ما سوا بل څوک بادشاه نشته او د باچاهانو باچا هم يوازې يو الله ﷻ دی (بخاري)

**حل اللغات**:- ① أَخْنَى: دَ قبيح په معنى کښې دی أغلظ او أخبث هم دغه څيز دې

**تسهيلات**:

**قوله**: مَلِكَ الْأَمْلَاكِ:

**د ملک الاملاک نوم کيخودو ممانعت**: دَدې ترجمه په فارسئی کښې شهنشاه ده په پښتو کښې دَدې ترجمه دَبادشاهانو بادشاه ده چونکه بادشاه على الاطلاق دَالله تعالى ذات دې نودغه شان نوم کښې دَمخلوق دَپاره په الله تعالى باندې دَ بادشاهئى دعوىٰ لا زم راځى اودا خبره ډير لوئى جرم دې په دې وجه دا ډير زيات قبيح ګرځولې شوې دې

د ايران بادشاه دا نوم کيخودې وو بيا دَ معزول کيدونه پس دَ سمندر طرف ته تختيدونکې ښکاريدو يوسيې هغه پسې شوې وو هيڅ يوملك هغه دَ قبلولو دَپاره تيارنه وو په کينسر باندې مړشو په مصرکښې مجبوراً دفن کړې شو اودَ فرعون ګاونډې جوړشو

---

[١]) اخرجه البخاری فی کتاب الأدب/باب أبغض الأسماء إلى الله (رقم-٦٢٠٦)ومسلم فی کتاب الآداب/باب تحريم التسمی بملک الأملاک. وبملک الملوک (رقم-٢٠ - (٢١٤٣) وابوداود فی کتاب الأدب/بابٌ فی تغيير الاسم القبيح (رقم-٤٩٦١) والترمذی فی کتاب الأدب عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما يکره من الأسماء (رقم-٢٨٣٧) واحمد فی المسند:٢/٣١٥

[۴۷۵۶] داسې نوم مناسب نه دې په کوم کښې چه د ځان پاکی بیا نول وی

۴۷۵۱-[۷] ()[۱]وَعَنْ زَيْنَبَ بِنْتِ أَبِي سَلَمَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا - قَالَتْ: [۲]سُمِّيتُ بَرَّةَ، [۳]فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "«لَا تُزَكُّوا أَنْفُسَكُمْ، اللّٰهُ أَعْلَمُ بِأَهْلِ الْبِرِّ مِنْكُمْ، [۴]سَمُّوهَا زَيْنَبَ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱]او بي بي زينب بنت ابي سلمه رضي الله عنها وايي [۲]چې زما نوم برّه (يعني نيكو كاره) كيخودل شوي وو [۳]نو رسول الله ﷺ وفرمايل د خپل نفس تعريف مه كوئ په تاسو كې چې كوم سړي نيكو كاردي خداي ﷻ هغه ښه پيژني [۴]ددې بچې نوم زينب كيږدئ (مسلم)

**حل اللغات:** - ①بَرَّةَ: نيكو كاره، نيک عمله، ②لَا تُزَكُّوا: ځان پاک مه ګڼرئ

**تسهیلات:**

**قوله:** لَا تُزَكُّوا أَنْفُسَكُمْ، اللّٰهُ أَعْلَمُ بِأَهْلِ الْبِرِّ مِنْكُمْ، سَمُّوهَا زَيْنَبَ:

**د بره نوم بدلولو وجه:** داسې نوم كيخودلو كښې دځان پاك ګڼړلو احتمال دې او په دې كښې دخپل نفس دتزكيې دعوىٰ هم ده كوم چه مناسب نه دى. په دې وجه دانوم نبي عليه السلام بدل كړو ليكن دا ياد ساتل پكاردى چه لكه څنګه چه يسار اونجيح ممانعت ووبيا اجازت ملاؤشو هم دغه شان د بره معامله هم ګڼړل پكاردى.

[۴۷۵۷] د نبی علیه السلام بره رضی الله عنها لره نوم بدلول

۴۷۵۲-[۸] ()[۱]وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - قَالَ[۲]: "«كَانَتْ جُوَيْرِيَةُ اسْمُهَا بَرَّةَ، [۳]فَحَوَّلَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - اسْمَهَا جُوَيْرِيَةَ، [۴]وَكَانَ يَكْرَهُ أَنْ يُقَالَ: خَرَجَ مِنْ عِنْدِ بَرَّةَ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱]او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما وايي د رسول الله ﷺ [اد يوي زوجي مطهري بي بي] جويريه رضي الله عنها نوم برّه وو [۳]ليكن رسول الله ﷺ د هغه دانوم بدلولو سره جويريه رضي الله عنها كيخودو [۴]ځكه چې حضور ﷺ دانه خوښول چې يو سړي داسې اووائي چې تاسو ﷺ د بره دخوانه راووتلاست. (مسلم)

**تسهیلات:**

**قوله:** خَرَجَ مِنْ عِنْدِ بَرَّةَ:

**دبرة نوم كيخودلو د كراهت وجه:** په دې حديث كښې د برة نوم د كيخودلو نه ممانعت اصل وجه دا ده چه كه ددې اصل معنىٰ طرف ته نظر وكړې شي يعنى كوم كس چه د برة د

[۱]) اخرجه البخاری فی کتاب الأدب/باب تحویل الاسم إلی اسم أحسن منه (رقم-۶۱۹۲) ومسلم فی کتاب الآداب/باب استحباب تغییر الاسم القبیح إلی حسن، وتغییر اسم برة إلی زینب وجویریة ونحوهما (رقم-۱۹ - (۲۱۴۲) و ابوداود فی کتاب الأدب/بابٌ فی تغییر الاسم القبیح(رقم-۴۹۵۳) واحمد فی المسند:۳۱۵/۲

[۲]) اخرجه مسلم فی کتاب الآداب/باب استحباب تغییر الاسم القبیح إلی حسن، وتغییر اسم برة إلی زینب وجویریة ونحوهما (رقم-۱۶ - (۲۱۴۰) واحمد فی المسند: ۳۱۶/۱

خوانه پاڅیدلو او بهر اوتو نو داسې به وئیلي کیږي چه تاسو د برة یعنی د نیکانو خلقو نه د خوا اوتلی ځکه چه د نیکانو خلقو د صحبت نه تلل ښه خبره نه ده

**سوال:** په دې روایت کښې د برة نوم کیخودلو ممانعت وجه یو خودلې شوې ده او په ماقبل حدیث کښې د ممانعت وجه بله خودلې شوې ده نو په دواړو کښې په ظاهره تعارض معلومیږي؟

**جواب:** په ظاهره دواړو کښې هیڅ تعارض نشته ځکه چه د یو څیز ډیر اسباب کیدې شي او کیدې شي چه د حضرت زینب رضی الله عنها نوم برة واقعتاً ددوې د نفس د تعریف او د مدح وثناء په وجه کیخودلې شوې وو او د حضرت جویریه رضی الله عنها په حق کښې ددې د ممانعت سبب هم په دې حدیث الباب کښې مذکور دې

**[۴۷۵۸] خراب نوم بدلول پکاردي**

۴۷۵۸-[۹] ()[1] «[۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا-[۲] أَنَّ بِنْتًا كَانَتْ لِعُمَرَ يُقَالُ لَهَا: عَاصِيَةُ [۳] فَسَمَّاهَا رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- جَمِيلَةَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما نه روایت دې [۲] چې د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه یوه لور وه چې هغه ته یې عاصیه (یعني ګنهګاره) ویله [۳] نو رسول الله ﷺ د هغه نوم جمیله کیخودله (مسلم)

**حل اللغات:** - ① عَاصِيَةٌ: ګناهګاره، ② - جَمِيلَةٌ: ښائسته.

**تسهیلات:**

**قوله:** أَنَّ بِنْتًا كَانَتْ لِعُمَرَ يُقَالُ لَهَا: عَاصِيَةُ فَسَمَّاهَا رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- جَمِيلَةَ:

**په جاهلیت کښې د نومونو کیخودو نظریه:** په جاهلیت کښې دعربو دستور وو چه هغوی به ویرونکی نومونه کیخودل بل د نافرمانئی او آزادئی طرف ته اشاره کونکی نومونه به ئی کیخودل په دې وجه دهغوی په نومونو کښې جبل، حجر، حرب، صخرة، حمار، اسد، فهداو ددې قسم بارعب نومونه ملاویږي نبي علیه السلام دداسې نومونو اصلاح اوفرمائیله اودائی بدل کړی دی دغه شان هر عالم له کول پکاردي چه دعلاقې د خلقو خراب نومونه دې بدل کړی په قومونو کښې نن صبا دتولو نه ښکلې نومونه د ښګله دیش دخلقو دی اود ټولو نه بې کاره نومونه د سندهیانو پښتنو پنجابیانو دی پښتنو کښې چه کله په آخره کښې د خان نوم راشی نودا کافی دي که اصل نوم هیڅ هم نه وی. که د ونې پاڼې سره دې دخان نوم اولګولو نو پتې خان یو بهترین نوم دې

[1] اخرجه مسلم في كتاب الآداب/باب استحباب تغيير الاسم القبيح إلى حسن، وتغيير اسم برة إلى زينب وجويرية ونحوهما(رقم-١٥ - (٢١٣٩) وابوداود في كتاب الأدب/بابٌ في تغيير الاسم القبيح(رقم-٤٩٥٢) والترمذي في كتاب الأدب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في تغيير الأسماء (رقم-٢٨٣٨)

**[۴۷۵۹] نبي عليه السلام يو ماشوم لره منذر منذر کيښودل**

۴۷۵۹-[۱۰] (۱) [۱] «وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ [۲]: أُتِيَ بِالْمُنْذِرِ بْنِ أَبِي أَسِيدٍ إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - حِينَ وُلِدَ، [۳] فَوَضَعَهُ عَلَى فَخِذِهِ [۴] فَقَالَ: "مَا اسْمُهُ؟" [۵] قَالَ: فُلَانٌ. [۶] قَالَ: "لَا، لٰكِنِ اسْمُهُ الْمُنْذِرُ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت سهل ابن سعد رضي الله عنه وايي [۲] منذر ابن ابي اسيد چې پيدا شو نو هغه د رسول الله ﷺ په خدمت کې راوستل شو [۳] حضور ﷺ هغه په خپل ورون مبارک کيخودو [۴] او پوښتنه يي وکړه چې د ده څه نوم دي [۵] راوستونکي اوويل د ده فلاني نوم دي [۶] حضور ﷺ وفرمايل دانوم ښه نه دي بلکي د ده نوم منذر دي (بخاري مسلم)

**حل اللغات**: - ① الْمُنْذِرُ: د ا سم فاعل صيغه ده د انذار نه. يرونکې.

**تسهيلات**:

**قوله: قَالَ: "لَا، لٰكِنِ اسْمُهُ الْمُنْذِرُ:**

**دنبی عليه السلام يوماشوم ته منذر نوم کيخودل**: منذر په اصل کښې د إنذار نه مشتق دې او معنى ئي ده د الله تعالى د عذاب نه ويروونکې.د حديث حاصل دا دې چه کله منذر ابن ابی اسيد پيدا شو نو دې د نبی کريم ﷺ خدمت کښې حاضر کړې شو نو نبی کريم ﷺ دې په خپل پتون مبارک باندې کينولو او ابو اسيد هم نيزدې ناست وو نو نبی کريم ﷺ څه کار کښې مشغوله شو نو ابو اسيد خپل څوې د نبی کريم ﷺ د پتون مبارک نه راپاڅولو نو بيا نبی کريم ﷺ په خيال کښې راغلل او وفرمائيل چه هغه ماشوم کوم ځائی کښې دې نو ابو اسيد جواب ورکړو چه هغه ماشوم مونږ کور ته اوليږلو نو بيا نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه د هغې نوم څه دې نو په جواب کښې وفرمائيل چه فلانکې نوم ئی دې نو بيا نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه دا نوم ئي نه دې بلکه ددې نوم منذر دې نو ددې ورځ نه ورستو د هغې ماشوم نوم منذر شو

**[۴۷۶۰] خپل غلام او وينځې ته عبدی وأمتی نه دی ونيل پکار**

۴۷۶۰-[۱۱] (۲) [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] "لَا يَقُولَنَّ أَحَدُكُمْ عَبْدِي وَأَمَتِي، [۳] كُلُّكُمْ عَبِيدُ اللّٰهِ، وَكُلُّ نِسَائِكُمْ إِمَاءُ اللّٰهِ". [۴] وَلٰكِنْ لِيَقُلْ غُلَامِي وَجَارِيَتِي، وَفَتَايَ

---

[1] اخرجه البخاري في كتاب الأدب/باب تحويل الاسم إلى اسم أحسن منه (رقم-۶۱۹۱) ومسلم في كتاب الآداب/باب استحباب تحنيک المولود عند ولادته وحمله إلى صالح يحنكه، وجواز تسميته يوم ولادته، واستحباب التسمية بعبد الله وإبراهيم وسائر أسماء الأنبياء عليهم السلام (رقم-۲۹ - (۲۱۴۹))

[2] اخرجه البخاري في كتاب الإجارة/باب كراهية التطاول على الرقيق، وقوله: عبدي أو أمتي (رقم-۲۵۵۲) ومسلم في كتاب الألفاظ من الأدب وغيرها /باب حكم إطلاق لفظة العبد، والأمة، والمولى، والسيد (رقم-۱۵ - (۲۲۴۹)) وابوداود في كتاب الأدب/باب لا يقول المملوک ربي وربتي (رقم-۴۹۷۵) واحمد في المسند:۲/۴۹۶

وَفَتَاتِي. ٥ وَلَا يَقُلِ الْعَبْدُ: رَبِّي، وَلَكِنْ يَقُلْ: سَيِّدِي» ". ٦ وَفِي رِوَايَةٍ: " «لِيَقُلْ: سَيِّدِي وَمَوْلَايَ» ٧ ". وَفِي رِوَايَةٍ: " «لَا يَقُلِ الْعَبْدُ لِسَيِّدِهِ: مَوْلَايَ، فَإِنَّ مَوْلَاكُمُ اللَّهُ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** : ١ او حضرت ابوهريره ﷛ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ په تاسو کې دي هيڅوك خپل غلام او منځې ته عبدي (ځما بنده) او امتي (ځما منځه) نه وايي ٣ تاسو ټول سړي د الله بندګان او ستاسو ټولي ښځي د الله منځي دي ٤ بلکې داسې دي وايي چې ځما غلام يعنى ځما ځوي او ځما جاريه يعنى ځما لور يا ځما خادم او ځما خادمه ٥ دغه شان هيڅ غلام دي خپل مالك ته ځمارب نه وايي بلکې ځما سردار وئيل پکار دي ٦ او په يو روايت کښې دى داسې دې وائى زما سردار زما آقا ٧ او په يوروايت کې داسې دي چې هيڅ غلام دي خپل مالك ته ځما مولى نه وايي ځکه چې ستاسو مولى صرف الله دي (مسلم)

**تسهيلات**:

**قوله**: لَا يَقُولَنَّ أَحَدُكُمْ عَبْدِي وَأَمَتِي:

**خپل ځان ته د عبد نسبت کولوممانعت**: دجاهليت په دورکښې به عربو خپل غلام ته ياعبدى اې زمابنده وئيلو اووينځې ته به ئې ياأمتى اې زما مملوکې وئيلو په دې کښې به يوانسان خپل بنده ګنړلې کيدو حالانکه انسانان ټول دالله تعالى بنديګان دى دغه شان به ئې امة د مملوکه په معنى کښې اخستله حالانکه حقيقى ملکيت خودالله تعالى دي په دې وجه به دا الفاظ موهم شرك جوړيدل نونبي عليه السلام ددې ممانعت اوفرمائيلو

**اشکال**: دعبد اوامة نسبت خو په قرآن کښې موجوددي ﴿مِنْ عِبَادِكُمْ وَإِمَائِكُمْ﴾ [سورة نور:٣٢] نو په دې حديث کښې ممانعت څنګه کړې شوې دې؟

**داشکال جواب**: ممانعت په هغه صورت کښې دې چه يوسړې دتکبر تجبر غرور اوسرکشئى په توګه داسې اطلاق کوى اوغلطه معنى اخلى لکه د عبدى نه خپل بنده مراد اخلى چه ما پيداکړې دې ليکن که يوسړې داسې نه کوى نوبيادااطلاق جائزدې لکه څنګه چه په قرآن اوحديث کښې دى لکه چه دعبد او امة يومفهوم غلط دې په هغه مفهوم کښې آواز کول جائزنه دى اودويم مفهوم صحيح دې په هغې کښې آواز کول جائزدى

اسلام چه څنګه د آقا اصلاح کړې ده هم دغه شان ئې دغلامانو او وينځوهم اصلاح کړې ده چه خپل آقا ته رب يا ربى وئيل جائزنه دى په دې کښې هم هغه خبره ده چه درب يومفهوم داسې دې چه الله تعالى سره خاص دې په دې صفت يا دې مفهوم سره څوك په

رب سره رابلل جائزنه دی لیکن د رب یومفهوم داسې دې چه دهغې اطلاق په غیرالله باندې کیږی هغه صرف د مالك اوآقاپه معنی کښې دې په دې وجه دهغې اجازت دې لهذا د رب د اطلاق نفی هم ده او اثبات هم دې دغه شان لفظ د مولی دې ددې پنځه معنې راځی د بعضې معانیو په اعتبارسره یومخلوق ته هم مولی ونیلو سره نه شی رابللې کیدې کوم چه دخالق اومالك په معنی کښې دې لیکن د بعضې معانیو په اعتبارسره په غیرالله باندې د دې اطلاق کیدې شی په دې وجه دنفی او اثبات جدا جدا مواقع دی

**[۴۷۶۰]انګورته دکرم ونیلوممانعت**

۴۷۶۰-[۱۳] (¹) ۱وَعَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ۲" «لَا تَقُولُوا: الْكَرْمُ، ۳فَإِنَّ الْكَرْمَ قَلْبُ الْمُؤْمِنِ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** : ۱او حضرت ابوهریره ﷛ د رسول الله ﷺ نه نقل کوي چې حضور ﷺ وفرمایل ۲د انګور ونې ته کرم مه وایئ ۳ځکه چې کرم د مؤمن زړه دي (مسلم)

**حل اللغات** :- ① الْكَرْمُ: عزت مند.

۴۷۷۲ -(²) ۱وَفِي رِوَايَةٍ لَهُ عَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ قَالَ: ۲" «لَا تَقُولُوا: الْكَرْمُ، وَلَكِنْ قُولُوا: الْعِنَبُ وَالْحَبَلَةُ» ".

**ترجمه** : ۱او د مسلم په یو بل روایت کې د وائل ابن حجر ﷛ نه داسې منقول دي چې حضور ﷺ وفرمایل ۲د انګورو ونې ته کرم مه وایئ بلکې عنب او حبله وایئ

**حل اللغات** :- ① الْعِنَبُ: انګورو. ① الْحَبَلَةُ: زیلئ، ښاخ،

**تسهیلات: قوله: لَا تَقُولُوا: الْكَرْمُ:**

**انګور ته د کرم ونیلو د ممانعت وجه:** دعربوخلقوبه انګوروته ځکه کرم ونیلو چه دانګورونه به شراب جوړیدل چه کرام الناس به څکل یوحماسی شاعر وائی

إِنَّا مُحَيُّوكِ يَا سَلْمَى فَحَيِّينَا وَإِنْ سَقَيْتِ كِرَامَ النَّاسِ فَاسْقِينَا

بهرحال د کرم په لفظ کښې د شراب پس منظرپروت وو نبي علیه السلام دده اطلاق منع کړو چه یونجس څیز کوم چه شراب دی دهغې ماده اومبدء اوبنیاد د کرم په نوم سره ولې یاد کړې شی په دې وجه نبي علیه السلام اوفرمائیل چه کرم مه وایئ عنب ورته وایئ یا حبله وایئ د انګورو ونې یا ددې ښاخ یا جرړې ته حبله وائی

¹) اخرجه البخاری فی کتاب الأدب /باب قول النبی صلی الله علیه وسلم: «إنما الكرم قلب المؤمن» (رقم-۶۱۸۳) ومسلم فی کتاب الألفاظ من الأدب وغيرها /باب كراهة تسمية العنب كرمًا (رقم-۷ - (۲۲۴۷) وابوداود فی کتاب الأدب /باب فی الكرم وحفظ المنطق (رقم-۴۹۷۴) واحمد فی المسند:۳۱۶/۲

²) اخرجه مسلم فی کتاب الألفاظ من الأدب وغیرها /باب كراهة تسمية العنب كرمًا (رقم-۱۲ - (۲۲۴۸)

**[٤٧٣] زماني ته بد ونيل نه دی پکار**

٤٧٣-[١٣] (١) [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] "لَا تُسَمُّوا الْعِنَبَ الْكَرْمَ، [٣] وَلَا تَقُولُوا: يَا خَيْبَةَ الدَّهْرِ! [٤] فَإِنَّ اللّٰهَ هُوَ الدَّهْرُ» ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه** : [١] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چی رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] انګورو ته کرم مه وايئ [٣] او مه دا وايئ چې اي د زماني نا اميدي (يعني زماني ته بد مه وايئ) [٤] ځکه چې بلا شبه د الله په اختيار کې زمانه ده (بخاري)

**حل اللغات** :- ① خَيْبَةَ: نا أُميدی.

**تسهيلات: قوله** : وَلَا تَقُولُوا: يَا خَيْبَةَ الدَّهْرِ! فَإِنَّ اللّٰهَ هُوَ الدَّهْرُ:

**اشکال**: دَ الله تعالی خومره نومونه دی هغه توقيفی نومونه دی په هغې کښې الدهر نوم نشته دې نو دلته ځنګه اووئيلې شو چه الله تعالی دهر دې؟

**داشکال جواب**: دَدې جواب دادې چه "الله الدهر" په معنی دَ "متصرف فی الدهر" يا "الله هو الدهر" يعنی په زمانه کښې تصرف کونکې او په هغې کښې اړول رااړول کونکې الله تعالی دې اوس دهر ته دَ بد رد وئيلونه ولې منع کړې شو نو ددې حقيقت دادې چه زمانه خوپخپله هيڅ هم نه شی کولې په زمانه کښې چه کوم څه کيږی هغه ټول الله تعالی کوی دزمانې شاته دَ الله تعالی لاس دې نو کوم سړې چه زمانې ته کنځلې کوی هغه په حقيقت کښې دَدې شاته مؤثر حقيقی ته په غيرشعوری توګه کنځلې کوی. داکنځلې دَحال متعلقه په اعتبارسره دي په دې کښې دَ فاعل مختار دَبې ادبئی خطره ده په دې وجه منع کړې شو چه زمانې ته بدرد مه وايئی. دَدې تفصيل د تسهيلات اول جلد کتاب الايمان کښې تيرشوې دې

**[٤٧٤] زمانې ته د بد رد ونيلو د ممانعت وجه**

٤٧٤-[١٤] (٢) [١] وَعَنْهُ، قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] "لَا يَسُبَّ أَحَدُكُمُ الدَّهْرَ، [٣] فَإِنَّ اللّٰهَ هُوَ الدَّهْرُ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** : [١] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چی رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] په تاسو کې دي هيڅ سړي زماني ته بد نه وايي [٣] ځکه چې حقيقت کې خداي تعالیٰ زمانه ګرځونکي دي (مسلم)

(١) اخرجه البخاری فی کتاب الأدب/باب: لا تسبوا الدهر (رقم-٦١٨٢) ومسلم فی کتاب الألفاظ من الأدب وغيرها /باب النهی عن سب الدهر(رقم-٤ - (٢٢٤٦) واحمد فی المسند:٢/٢٥٩

(٢) اخرجه مسلم فی کتاب الألفاظ من الأدب وغيرها /باب کراهة تسمية العنب کرمًا(رقم-٦ - (٢٢٤٧) وابوداود فی کتاب الأدب/بابٌ فی الرجل يسب الدهر(رقم-٥٢٧٤) واحمد فی المسند:٢/٢٧٢

**[۴۷۶۵] خپل ځان ته خبیث مه وایه**

۴۷۶۵-[۱۵] (¹) [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا - قَالَتْ: «قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] " لَا يَقُولَنَّ أَحَدُكُمْ: خَبُثَتْ نَفْسِي، [۳] وَلَكِنْ لِيَقُلْ: لَقِسَتْ نَفْسِي» " مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. [۴] وَذُكِرَ حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ: " يُؤْذِينِي ابْنُ آدَمَ " فِي " بَابِ الْإِيمَانِ ".

**ترجمه**: [۱] او بي بي عائشه رضي الله عنها وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] په تاسو کې دې هيڅ سړي (د امتلاء په وخت) داسې نه وايي چې ځما نفس خبيث شو. [۳] بلکې لقست نفسي دې وايي يعنی خوامې ډکه شوه (بخاري مسلم) [۴] او د حضرت ابوهريره رضي الله عنه روايت يُؤْذِينِي ابنُ آدمَ باب الايمان کې نقل شوي دي

**حل اللغات**: ① خَبُثَتْ: قبيح يا پليت شو. ② لَقِسَتْ: موړ شو.

**تسهيلات:**

**قوله: لَا يَقُولَنَّ أَحَدُكُمْ: خَبُثَتْ نَفْسِي، [۳] وَلَكِنْ لِيَقُلْ: لَقِسَتْ نَفْسِي:**

**ځان ته دخبث نسبت کولو د ممانعت وجه:** "خبثت" او "لقست" دواړ هم معنی دی. د معنی په اعتبار سره په دواړو کښې هيڅ فرق نشته. بلکه په عربی ژبه کښې ددې دواړو معنی يوه ده يعنې زړه خرابيدل او طبعيت فاسديدل. ليکن نبی کريم ﷺ "خبثت نفسی" ويلو ته ناخوښ اوفرمائيل ځکه چه د لفظ "خبثت" په وجه نه صرف دا جمله قبيح کيږی بلکه د مؤمن لفظ د خبث لره خپل نفس طرف ته منسوب کول هم د مؤمن د شان لائق نه دی او په عرف کښې خبيث کنځل او نجس څيز ته وائی.

**اَلْفَصْلُ الثَّانِي**

**[۴۷۶۶] ابوالحکم کنيت کيښودل مناسب نه دی**

۴۷۶۶-[۱۶] (²) [۱] «عَنْ شُرَيْحِ بْنِ هَانِئٍ، عَنْ أَبِيهِ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - [۲] أَنَّهُ لَمَّا وَفَدَ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مَعَ قَوْمِهِ سَمِعَهُمْ [۳] يَكْنُونَهُ بِأَبِي الْحَكَمِ، [۴] فَدَعَاهُ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ [۵]: " إِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْحَكَمُ، وَإِلَيْهِ الْحُكْمُ، فَلِمَ تُكَنَّى أَبَا الْحَكَمِ؟ [۶] " قَالَ: إِنَّ قَوْمِي إِذَا اخْتَلَفُوا فِي شَيْءٍ أَتَوْنِي فَحَكَمْتُ بَيْنَهُمْ، فَرَضِيَ كِلَا الْفَرِيقَيْنِ بِحُكْمِي. [۷] فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَا أَحْسَنَ هَذَا، [۸] فَمَا لَكَ مِنَ الْوَلَدِ؟ " [۹] قَالَ: لِي شُرَيْحٌ، وَمُسْلِمٌ، وَعَبْدُ اللّٰهِ. [۱۰] قَالَ: " فَمَنْ أَكْبَرُهُمْ؟ " قَالَ: قُلْتُ: شُرَيْحٌ. قَالَ: " فَأَنْتَ أَبُو شُرَيْحٍ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

¹) اخرجه البخاری فی کتاب الأدب/باب لا يقل: خبثت نفسی (رقم-۶۱۷۹) ومسلم فی کتاب الألفاظ من الأدب وغيرها/باب النهی عن سب الدهر (رقم-۲ - (۲۲۴۶) وابوداود فی کتاب الأدب/باب لا يقال خبثت نفسی (رقم-۴۹۷۸) واحمد فی المسند: ۲۸۱/۶

²) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب/بابٌ فی تغيير الاسم القبيح(رقم-۴۹۵۵) والنسائی فی کتاب آداب القضاة/باب إذا حكموا رجلًا فقضی بينهم (رقم-۵۳۸۷)

**ترجمه** :۱ حضرت شریح ابن هاني رضی الله عنه د خپل پلار حضرت هانئ رضی الله عنه نه نقل کوي ۲ کوم وخت چې هغه یعنی حضرت هاني رضی الله عنه دخپل قوم سره د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو نو حضور ﷺ واوریدل ۳ چې د هغه قوم هغه د ابو الحکم کنیت په ذریعه یاد وي او مخاطب کوي ۴ نو رسول الله ﷺ هغه را وغوښتي او ورته یي وفرمایل چې حکَم خو صرف الله جل جلاله دي او حُکم د هغه طرف ته گرځي بیا تا خپل کنیت ابو الحکم ولي مقرر کړي دي ۵ حضرت هاني رضی الله عنه عرض وکړو (ځما قوم ما د ابو الحکم کنیت په ذریعه ځکه یاد وي چې) کله ځما قوم په یو معامله کې د اختلآفاتو ښکارسي نو ماته راځي او زه د هغوئ په معامله کې چې کوم حکم (فیصله) وکړم دواړه فریقه ځما هغه فیصله تسلیموي ۶ رسول الله ﷺ په دي اوریدو سره وفرمایل د خلقو په منځ کې تنازعات فیصله کول ډیره ښه خبره ده ۷ لیکن (دا راته اووئیلو) ستا څو بچي دي او د هغوئ نومونه څه څه دي ۸ هغه اوویل ځما دري بچي دي د هغوئ نومونه شریح مسلم او عبد الله دي ۹ حضور ﷺ ځني پوښتنه وکړه دي دریو سره وو کې مشرکوم یودي ۱۰ حضرت هاني رضی الله عنه وایي ماعرض وکړي شریح نو حضور ﷺ وفرمایل بیاته د نن نه ابو شریح یي (نسائي)

**تسهیلات**: **قوله** :إِنَّ اللَّهَ هُوَ الْحَكَمُ، وَإِلَيْهِ الْحُكْمُ، فَلِمَ تُكَنَّى أَبَا الْحَكَمِ؟:

**دابوالحکم کنیت د کراهت وجه**: دَالله تعالی دَنومونونه یونوم دي.دَدغه سړی کنیت ابوالحکم ووپه کوم کنبي چه دَالله تعالی دَ بې ادبئی اړخ راوتلې شو نبي علیه السلام داکنیت ناخوښه کړو اودائی دَ ابوشریح په نوم سره بدل کړو ابوالحکم یعنی دَ حکم پلار اوحکم دَالله تعالی نوم دي.

**[۴۷۶۷] اجدع نوم کیخودل ښه نه دی**

۴۷۶۷-[۱۰] (۱) ۱ «وَعَنْ مَسْرُوقٍ قَالَ ۲: لَقِيتُ عُمَرَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - فَقَالَ: مَنْ أَنْتَ؟ ۳ قُلْتُ: مَسْرُوقُ بْنُ الْأَجْدَعِ. ۴ قَالَ عُمَرُ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: "الْأَجْدَعُ شَيْطَانٌ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ

**ترجمه** : ۱ حضرت مسروق تابعي رحمه الله وایي ۲ کوم وخت چې زه د حضرت عمر رضی الله عنه سره یوځاي شوم نو هغوئ پوښتنه وکړه ته څوك يي؟ ۳ ماعرض وکړو زه د اجدع ځوي مسروق یم ۴ حضرت عمر رضی الله عنه ځما د پلار نوم اوریدو سره وفرمایل ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلي دي چې اجدع د شیطان نوم دي.(ابوداؤد ابن ماجه)

**حل اللغات** :- ① الْأَجْدَعُ: غوږ او پوزه پرې کړي شوی سړي.

---

(۱) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب/بابٌ في تغيير الاسم القبيح(رقم-۴۹۵۷) وابن ماجه في كتاب الأدب/باب ما يكره من الأسماء (رقم-۳۷۳۱) واحمد في المسند:۳۱/۱

**تسهيلات:**

**قوله: قُلْتُ: مَسْرُوقُ بْنُ الْأَجْدَعِ:**

**دمسروق سره دعمر رضي الله عنه ظرافت:** دَمسروق تاريخ او وجه تسميه دې څخه وړاندې د حديث نمبر (۳۳۴۵) په تسهيل كښې ليكلې شوې ده اجدع غوږ او پوزه پرې كړې شوى سړى ته وائى حضرت عمر رضي الله عنه تفنن اودَظرافت طبع په توګه باندې دااوفرمائيل په كوم كښې چه اشاره وه چه كه ستا پلار دغه وخت ژوندې وې نو دَهغه نوم به بدلولې شو

**[۴۷٦۸] ښه نومونه ايږدئ**

۴۷٦۸-[۱۸] () [۱] وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "تُدْعَوْنَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ بِأَسْمَائِكُمْ وَأَسْمَاءِ آبَائِكُمْ، [۳] فَأَحْسِنُوا أَسْمَاءَكُمْ» " رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابودرداء رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل [۲] د قيامت په ورځ به تاسو ستاسو دپلرونو په نومونو سره بللي شئ [۳] نو تاسو ښه نوم ايږدئ (احمد ابوداود)

**تسهيلات:**

**قوله: تُدْعَوْنَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ بِأَسْمَائِكُمْ وَأَسْمَاءِ آبَائِكُمْ فَأَحْسِنُوا أَسْمَاءَكُمْ:**

**د ښه نومونو كيخودلو حكم:** د ماشومانو نوم ښكلي كيخودل پكار دى دې دپاره چه د قيامت په ورځ په ښه نوم باندې ورته آواز وكړې شي.

**اشكال:** ددې روايت نه معلوميږى چه د قيامت په ورځ به د پلارانو په نومونو سره آوازكيږى حالانكه په بل روايت كښې راځى چه د ميندو په نوم سره به آواز كيږى، نو په دواړو كښې په ظاهره تعارض نظر ته راځى؟ ددې مختلف جوابات وركړې شوى دى

**داشكال جوابونه:**

① كله به د مور په نوم سره آواز كيږي او كله به د پلار په نوم سره آواز كيږى

② د ميندو په نوم سره د آواز كولو حكمت وعلت دا دې چه اولاد الزنا (حرامى) په دې صورت كښې د شرمندګى او رسوائى نه بچ شى

③ د حضرت عيسى ابن مريم د رعايت حال په وجه چه الله تعالى دوى لره بغير د پلار نه پيدا كړې وو

④ په بعضې مقاماتو كښې به د پلار په نوم سره آواز كيږي او په بعض مقاماتو كښې به د مور په نوم سره آواز كيږى

() اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأدب/بابٌ في تغيير الأسماء(رقم-٤٩٤٨) واحمد في المسند:١٩٤/٥

⑤ حدیث الباب کنبي والد تغلیبا ذکر کړي شوي دي لکه څنګه چه مور او پلار دواړو ته ابوین وئیلي کیږي (التعلیق الصبیح ج۵، ص۱۵۳)

**[۴۷۶۹] د نبي علیه السلام ﷺ نوم اوکنیت په یو ځائی د ایښودلو ممانعت**

۴۷۶۹-[۱۹] (١) [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- [٢] «أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- نَهَى أَنْ يَجْمَعَ أَحَدٌ بَيْنَ اسْمِهِ وَكُنْيَتِهِ، [٣] وَيُسَمَّى مُحَمَّدٌ أَبَا الْقَاسِمِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه**: [١] او حضرت ابوهریره ﷺ وایي [٢] رسول الله ﷺ د دې خبرې نه منعه فرمایلي وه چې یو سړي دې د حضور ﷺ نوم او کنیت دواړه یوځاي اختیار کړي [٣] یعنی د چانوم چې محمد وي هغه ته دې ابو القاسم هم اوویل شي (ترمذي)

مذکوره ترجمه به په دې صورت کنبي وی چه کله لفظ "**محمد**" مرفوع او یسمی به صیغهٔ مجهول وی لکه څنګه د ترمذی او شرح السنة او مصابیح اکثر نسخو کنبي نقل دی لیکن جامع الاصول او د مصابیح په بعضو نسخو کنبي **محمد** په نصب سره نقل کړې شوې دې په دې صورت کنبي به یسمی په صیغه معروف سره وی او ترجمه به دا شی چه کوم کس چه د هغه چا ته ابو القاسم وائی کوم کس نوم چه **محمد** وی د حدیث حاصل دا دې چه د کوم کس نوم محمد وی نو هغه دپاره جائز نه دی چه هغه خپل کنیت ابو القاسم مقرر کړی او نه بل کس له پکار دی چه هغه د محمد نوم والا کس په ابو القاسم سره راو بلې ددې مسئلې تفصیل مخکې تیر شوې دې.

**[۴۷۷۰] یا د نبي علیه السلام ﷺ نوم ایږدئ یا دهغوی کنیت ایږدئ**

۴۷۷۰-[۲۰] (٢) [١] وَعَنْ جَابِرٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- «أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [٢] "إِذَا سَمَّيْتُمْ بِاسْمِي فَلَا تَكْتَنُوا بِكُنْيَتِي». [٣] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ. وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ. [٤] وَفِي رِوَايَةِ أَبِي دَاوُدَ، قَالَ: " «وَمَنْ تَسَمَّى بِاسْمِي لَا يَكْتَنِ بِكُنْيَتِي، [٥] وَمَنْ تَكَنَّى بِكُنْيَتِي فَلَا يَتَسَمَّ بِاسْمِي» ".

**ترجمه**: [١] او د حضرت جابر ﷺ نه روایت دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢] که تاسو خمانوم باندې خپل نوم محمد کیږدئ نو خما کنیت باندې کنیت ابوالقاسم مه مقرروئ [٣] (ترمذي ابن ماجه) او ترمذي ویلي دي دا حدیث غریب دي [٤] او د ابوداود په روایت کې داسې دي حضور ﷺ وفرمایل کوم سړي چې خما په نوم نوم کیږدي نو هغه دي خما

[1]) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الأدب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی کراهیة الجمع بین اسم النبی صلی الله علیه وسلم وکنیته (رقم-۲۸۴۱) واحمد فی المسند: ۴۳۳/۲

[2]) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب/باب من رأی أن لا یجمع بینهما (رقم-۴۹۶۶) والترمذی فی کتاب الأدب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی کراهیة الجمع بین اسم النبی صلی الله علیه وسلم وکنیته (رقم-۲۸۴۱) واحمد فی المسند: ۳۶۹/۳

كنيت باندې كنيت نه مقرروي [٥] او كوم سړي چې څما كنيت باندې كنيت مقرر كړي نو څما په نوم دي نوم نه ايږدي

**تسهيلات**: **نوټ**:د دې حديث تشريح دې څخه وړاندې د حديث نمبر(٤٧٥٠) په تسهيل كښې تيره شوې ده

**[٤٧٧١] دَنبي عليه السلام دَ نوم او كنيت كيخودو اجازت**

٤٧٧١-[٢١] (١) «[١] عَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - أَنَّ امْرَأَةً قَالَتْ[٢]: يَا رَسُولَ اللَّهِ! إِنِّي وَلَدْتُ غُلَامًا فَسَمَّيْتُهُ مُحَمَّدًا، وَكَنَّيْتُهُ أَبَا الْقَاسِمِ، فَذُكِرَ لِي أَنَّكَ تَكْرَهُ ذَلِكَ. [٣] فَقَالَ: "مَا الَّذِي أَحَلَّ اسْمِي وَحَرَّمَ كُنْيَتِي؟ [٤] أَوْ مَا الَّذِي حَرَّمَ كُنْيَتِي وَأَحَلَّ اسْمِي؟"» رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ. وَقَالَ مُحْيِي السُّنَّةِ: غَرِيبٌ.

**ترجمه** : [١] او بي بي عائشه رضي الله عنها فرمايي يوه ښځه په بارګاه نبوت كې حاضره شوه عرض يې وكړو [٢] چې يا رسول الله! څما يوځوي پيدا شوي دي او ما د هغه نوم محمد او كنيت ابو القاسم ايښي دي ليكن ماته ښودل شوي دي چې تاسو ﷺ دانه خوښوئ (يعني ښوونكي ماته دابنودلي دي چې تاسو خپل نوم او كنيت په يوځاي اختيارول حرام ګرځولي دي) [٣] حضور ﷺ ورته وفرمايل داسې څه شي دي چې هغه څما نوم باندې نوم ايخودل خو حلال او جائز كړي دي او څما كنيت باندې كنيت مقررول يې حرام كړي دي [٤] يا دايي وفرمايل داسې څه شي دي چې څما كنيت باندې كنيت ايخودل خو يې حرام كړي دي او څما په نوم باندې نوم ايخودل يې حلال كړي دي (ابوداؤد) او محي السنه ويلي دي دا حديث غريب دي.

**تسهيلات**: **نوټ**:د دې حديث تشريح دې څخه وړاندې د حديث نمبر(٤٧٥٠) په تسهيل كښې تيره شوې ده

**[٤٧٧٢] دَنبي عليه السلام ﷺ د وفات نه پس دَهغوى د نوم او كنيت كيخودو اجازت**

٤٧٧٢-[٢٢] (٢) «[١] وَعَنْ مُحَمَّدِ ابْنِ الْحَنَفِيَّةِ، عَنْ أَبِيهِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [٢] قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَرَأَيْتَ إِنْ وُلِدَ لِي بَعْدَكَ وَلَدٌ أُسَمِّيهِ بِاسْمِكَ وَأُكَنِّيهِ بِكُنْيَتِكَ؟ [٣] قَالَ: "نَعَمْ"» رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه** : [١] او حضرت محمد ابن حنفيه رحمه الله د خپل پلار بزرګوار (حضرت علي كرم الله وجهه) نه نقل كوي [٢] هغوئ اوويل ماعرض وكړو چې يا رسول الله! ماته ونبايه كه زه ستاسو ﷺ د وصال نه پس څما [د بي بي فاطمي رضي الله عنها نه يابلي يوي بي بي نه] يوبچي

[1]) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الأدب/بابٌ فى الرخصة فى الجمع بينهما (رقم-٤٩٦٨) والترمذى فى كتاب الأدب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى كراهية الجمع بين اسم النبى صلى الله عليه وسلم وكنيته (رقم-٢٨٤٣)

[2]) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الأدب/بابٌ فى الرخصة فى الجمع بينهما (رقم-٤٩٦٧) والترمذى رقم ٢٨٤٣) واحمد فى المسند ٩٥/١)-

پيدا شي نو آيا زه د هغه نوم ستاسو ﷺ په نوم او د هغه كنيت ستاسو په كنيت ايخودلي شم [۳]حضور ﷺ ورته وفرمايل هو

**تسهيلات:**

**قوله: قَالَ: "نَعَمْ":**

ددې حديث نه معلوميږي چه د ممانعت تعلق اول وو نو بيا ورستو منسوخ شو

**[۴۷۷۳]د نبي عليه السلام انس رضي الله عنه لره ،،بقله،، كنيت كيخودل**

۴۷۷۳-[۲۳]()[۱]«وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ[۲]: كَنَّانِي رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- بِبَقْلَةٍ كُنْتُ أَجْتَنِيهَا». [۳]رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. وَفِي "الْمَصَابِيحِ": صَحَّحَهُ.

**ترجمه** : [۱]او حضرت انس رضي الله عنه وايي [۲]رسول الله ﷺ خما كنيت د هغه سبزي په نوم مقرر كړي وو كوم چې به ما اوخكل (يعني حضور ﷺ يوه ورځ زه يو ساګ (چي هغه ته په عربي كې حمزه وئيلو) په اوخكلو باندې وليدلم نو په دي مناسبت سره خما كنيت يي ابو حمزه كيخودو) [۳]دا روايت ترمذي نقل كړي دي او ويلي يي دي اود سند په اعتبار سره زمونږ علم دادي چې دا حديث ددي سند نه علاوه (چي جامع ترمذي نقل كړي دي) بل څه سند سره نه پيژنو

**حل اللغات**:- ①بَقْلَةٍ: سبزى. ②أَجْتَنِيهَا: چه ما راؤښكلو هغه (ساګ)

**تسهيلات:**

**قوله: كَنَّانِي رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- بِبَقْلَةٍ كُنْتُ أَجْتَنِيهَا:**

**د كنيت دپاره د اولاد د وجود عدم ضرورت**: كوم وانبه او ساګ چه به حضرت انس رضي الله عنه راغونډول دهغې نوم به حمزه وو په دې وجه دهغوى كنيت ابوحمزه كيخودې شو ددې نه معلومه شوه چه د كنيت ساتلو دپاره دا ضرورى نه دى چه د اولاد د وجې نه دې وى بلكه د نورو څيزونو د وجې نه هم كنيت كيخودې شى البته هغې سره تعلق اوواسطه ضرورى ده لكه ابوهريره ابوحمزه او ابوالكلام وغيره. دغه شان داهم ضرورى نه دى چه سړې دې بالغ وى نو بيابه د هغه كنيت كيخودې شى بلكه داهم جائز دى چه يوووړوكې ماشوم په كنيت سره يادكړې شى لكه ابوعمير ووړوكې ماشوم وو چه نبي عليه السلام ورله كنيت وركړې وو.

[1]) اخرجه الترمذى فى كتاب الأدب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى كراهية الجمع بين اسم النبى صلى الله عليه وسلم وكنيته (رقم-۲۸۴۳) واحمد فى المسند: ۱۲۷/۳)

[۴۷۷۴] بد او خراب نومونه بدلول پکاردي

۴۷۷۴-[۲۳] (۱) [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا - قَالَتْ [۲]: «إِنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ يُغَيِّرُ الِاسْمَ الْقَبِيحَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه** : [۱] او بي بي عائشه رضي الله عنها فرمايي [۲] چې رسول الله ﷺ به خراب نومونه بدلول (ترمذي)

**حل اللغات**: - ① الْقَبِيحَ: خراب. بې كاره.

**تسهيلات**:

**قوله**: كَانَ يُغَيِّرُ الِاسْمَ الْقَبِيحَ:

**د سوء المعنی نوم بدلول**: نبی کریم ﷺ به بد (خراب) نومونه بدلول او په رواياتو کښې راځي چه د يو کس نوم اسود وو نو نبی کریم ﷺ د هغه نوم بدل کړو او ابيض نوم ئي ورله کيخودلو

[۴۷۷۵] نبي عليه السلام ﷺ ډير نومونه بدل كړل

۴۷۷۵-[۲۵] (۲) [۱] وَعَنْ بَشِيرِ بْنِ مَيْمُونٍ، عَنْ عَمِّهِ أُسَامَةَ بْنِ أَخْدَرِيٍّ، [۲] «أَنَّ رَجُلًا يُقَالُ لَهُ أَصْرَمُ كَانَ فِي النَّفَرِ الَّذِينَ أَتَوْا رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۳] فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا اسْمُكَ؟" قَالَ: أَصْرَمُ [۴] قَالَ: "بَلْ أَنْتَ زُرْعَةُ"». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه** : [۱] او حضرت بشير ابن ميمون تابعي رحمه الله د خپل تره حضرت اسامه رضي الله عنه ابن اخدري نه نقل کوي [۲] چې يو سړي چې هغه ته أصرم وئيلې کيدو په هغه ډله کښې د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شوي وه. [۳] رسول الله ﷺ د هغه نه پوښتنه وکړه ستانوم څه دی؟ هغه اوويل ماته اصرم وايي [۴] حضور ﷺ ورته وفرمايل نه بلکي د نن نه ستا نوم زرعه دي دا روايت ابوداود نقل کړي دي

**حل اللغات**: - ① النَّفَرِ: ټولګې. جماعت، ② أَتَوْا: راوستلي شوی وو ③ أَصْرَمُ: پريكول (د ونې يا فصل)، ④ زُرْعَةُ: فصل، پټې.

[۴۷۷٦] بعضې هغه نومونه کوم چې نبي عليه السلام بدل کړل

۴۷۷٦ - (۳) [۱] وَقَالَ: وَغَيَّرَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - اسْمَ الْعَاصِ، وَعَزِيزٍ، وَعَتَلَةَ، وَشَيْطَانٍ، وَالْحَكَمِ، وَغُرَابٍ، وَحُبَابٍ، وَشِهَابٍ، [۲] وَقَالَ: تَرَكْتُ أَسَانِيدَهَا لِلِاخْتِصَارِ.

**ترجمه** : [۱] او هغه (ابو داود بطريق تعليق) دا هم نقل کړي دي چې رسول الله ﷺ ① عاص

(۱) اخرجه الترمذی فی السنن كتاب الأدب عن رسول الله صلی الله عليه وسلم /باب ما جاء فی تغيير الأسماء (رقم-۲۸۳۹)
(۲) اخرجه ابوداود فی السنن كتاب الأدب /بابٌ فی تغيير الاسم القبيح (رقم-٤٩٥٤)
(۳) اخرجه ابوداود فی السنن كتاب الأدب /بابٌ فی تغيير الاسم القبيح (رقم ٤٩٥٦)-

②عزيز ③عتله ④شيطان ⑤حكم ⑥غراب ⑦حباب ⑧او شهاب نومونه بدل کړي وه
[٢] ابوداود وايي ما د اختصار پيښ نظر هغه روايتونه چې په هغه کې د مذکوره نومونو د
بدلولو ذکر دي بغير اسناد نقل کړي دي

**حل اللغات:** - ① الْعَاصِ: سخت. ② عَزِيز: غالب، زورآور. ③ عَتَلَة: غليظ شديد اوسرکش ته وائى ④ شَيْطَان: دبدو جرړه، سوزيدل اوهلاك كيدل ⑤ الْحَكَم: فيصله كونكې. ⑥ غُرَاب: كارغه. ⑦ حُبَاب: دشيطان نوم. دمار نوم. ⑧ شِهَاب: هغه ستورى چه شيطان پرې ويشتلې كيږى

**تسهيلات:**

**د بعضې مشکلو جملو وضاحت:**

① أَصْرَمُ داد پرې كولو په معنى كښې دې لکه څنګه چه يوه ونه يا فصل پرې کولې شى دانبه نوم نه ووددې په بدله كښې نبي عليه السلام تعميرى نوم زرعه كيخودو كوم چه فصل اوپټى ته وائى. عاصى عاص نافرمانى او سركشئى په معنى كښې دې په دې وجه نبي عليه السلام دا بدل كړو.

② وَعَزِيز داد الله تعالى دنومونونه دې عبدالعزيز خو ښه نوم دې ليكن صرف عزيزمناسب نه دې بل ددې په معنى كښې تعلى اوزبردستى ده چه د بندګئى د شان خلاف ده.

③ وَشَيْطَانٍ، دانوم په دې وجه كيخودل غلط دى ځكه چه شيطان ياد شط نه جوړ دې دكوم معنى چه سوزيدل دى اوهلاك كيدل دى يا شيطان د شطن نه وتلې دې دكوم معنى چه دالله تعالى د رحمت نه وتلې شوې اولرې كيدل دى دواړه معنې بيكاره دى اوپخپله شيطان بدكرداردې لهذا دانوم بيكاردې.

④ وَالْحَكَمِ، دا دالله تعالى د نومونونه دې كله چه نبي عليه السلام ابوالحكم منع كړو نوصرف حكم نوم كيخودل خو په طريقه اولى باندې ناجائزدې.

⑤ وَغُرَابٍ، كارغه ته غراب وائى چه يومكروه مرغئى ده او مرداره هم ده.

⑥ وَحُبَابٍ، دشيطان نوم دې اود مارنوم هم دې په دې وجه د نوم په توګه كيخودل ښه نه دى

⑦ وَشِهَابٍ، په شيطان باندې ويشتونكو ستورو ته شهاب ثاقب وائى كه ددې اضافت ددين طرف ته اوشى لكه شهاب الدين نوبيا جائزدې.

**[٤٧٧٤] دزعموا لفظ خرابه سورلي او د دروغو پل دي**

٤٧٧٤-[٢٦]()[١] «وَعَنْ أَبِي مَسْعُودٍ الْأَنْصَارِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ [٢] قَالَ لِأَبِي عَبْدِ اللَّهِ - أَوْقَالَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ لِأَبِي مَسْعُودٍ -: [٣] مَا سَمِعْتَ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ فِي (زَعَمُوا) [٣] قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -

() اخرجه البغوى في شرح السنة رقم ٣٣٩٢) واحمد في المسند(١١٩/٤)-

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: "بِئْسَ مَطِيَّةُ الرَّجُلِ». ⑤رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَقَالَ: إِنَّ أَبَا عَبْدِ اللّٰهِ حُذَيْفَةُ.

**ترجمه**: ①او د حضرت ابو مسعود انصاري ﷺ نه روايت دي ②چې هغه د حضرت ابوعبد الله ﷺ نه يا حضرت ابوعبد الله د حضرت ابومسعود انصاري ﷺ نه پوښتنه وکړه ③چې تاسو د رسول الله ﷺ نه د لفظ زعموا باره کي څه اوريدلي دي ④هغه جواب ورکړو هو ما د رسول الله ﷺ نه دا اوريدلي دي چې دالفظ د سړي خرابه سورلي ده ⑤ابوداود دا روايت نقل کړي دي او ويلي يي دي چې ابوعبد الله د حضرت حذيفه بن ايمان ﷺ کنيت دي چې د اوچتي درجي صحابه وْ ﷺ نه دي

**حل اللغات**:- ①زَعَمُوا: زعم گمان او خيال ته وائی ②مَطِيَّةُ: سورلی.

**تسهیلات**:

**قوله: يَقُولُ فِي (زَعَمُوا):**

**د زعموا لفظ استعمال**: يعني دَ زعموا چه کوم لفظ دې دادَ انسان يوبدترين سورلی ده اهل لغت ليکلی دی چه دَ زعم لفظ سره کوم قول اوکړې شی دا هغه خبرې او هغه قول ته وائی په کوم کښې چه پوره اعتماد اوتسلی نه وی سره دَدې چه کله کله زعم لفظ دَ يويقينی خبرې دَپاره هم استعمالولې شی ليکن عام قاعده هم دغه ده چه دا لفظ دَ شك او گمان په موقع باندې استعماليږی.

**د دروغو دپاره د زعموا لفظ استعمال**:زيربحث حديث کښې يوصحابی دَبل نه تپوس اوکړو چه آيا تادَ نبي عليه السلام نه دَ لفظ زعموا باره کښې څه اوريدلی دی صحابی جواب ورکړواو ما اوريدلی دی.نبي عليه السلام فرمائيل چه دادَ سړی بدترين سورلی ده مطلب دا چه څنگه يو سړې په څه حيله بهانه باندې خپل منزل ته دَ رسيدودَپاره ذرائع استعمالوی دغه شان که يوسړې يوه دروغ خبره خورول غواړی نوهغه دَ يوثبوت يا سند يا څه نوم نه بغير وائی چه دَ خلقو داسې خيال دې.خلق داسې وائی داسې وئيلې کيږی دکلام په دې اندازکښې سړې دَ دې لفظ په آړکښې ډيرزيات دروغ وائی اوخوروی ئی

**[۴۷۷۸] دَ فعلی شرك په شان دَ قولی شرك نه بچ کيدل هم ضروری دی**

۴۷۷۸–[۲۷] ( ) ①وَعَنْ حُذَيْفَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - «قَالَ: ②"لَا تَقُولُوا: مَا شَاءَ اللّٰهُ وَشَاءَ فُلَانٌ، ③وَلَكِنْ قُولُوا: مَا شَاءَ اللّٰهُ ثُمَّ شَاءَ فُلَانٌ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**: ①او حضرت حذيفه ﷺ د رسول الله ﷺ نه نقل کوي چې حضور ﷺ وفرمايل ②خلقو داسې مه وايئ چې هغه به کيږي څه چې الله غواړي او فلاني سړي غواړي [ځکه چې د داسې ويلو مطلب اراده او مشيت کې الله او بنده ته برابره درجه ورکول دي هرکله

( ) اخرجه ابوداود في السنن کتاب الأدب/باب لا يقال خبثت نفسي (رقم-۴۹۸۰) واحمد في المسند: ۳۸۴/۵

چې د يو كار كول يانه كول صرف د الله مشيت او مرضي باندې منحصر دي! [۲] البته د ظاهري اسباب او وسائلو پيش نظر انسان طرف ته د ارادي او مشيت نسبت كول منظور وي نو! بيا داسي واييئ چې هغه به كيږي څه چې الله غواړي او بيا فلاني غواړي (يعني په دي صورت كې د خداي ﷻ مشيت مقدم كيدل او د بنده مشيت د هغه تابع كيدل به مفهوم وي چې صحيح دي (احمد ابوداود)

**تسهيلات:**

**قوله: قَالَ: "لَا تَقُولُوا: مَا شَاءَ اللَّهُ وَشَاءَ فُلَانٌ.**

**د ماشاء الله وشاء فلان وئيلو ممانعت:** يعنى دَ مشيت په الفاظو كنبې دَالله تعالى مشيت سره دَ بل چا مشيت اورضا نه دى شاملول پكار چه څوك وائى چه الله او رسول څه غواړى هم هغه به كيږى دغه شان يوه جمله جوړول او يوځائى كول جائزنه دى بلكه داسې فاصله كول پكاردى چه كله الله تعالى اوغواړى او بيا فلانكي سړې اوغواړى په دې صورت كښې به دَالله تعالى رضامقدم وى اودَ سړى رضابه دَهغې تابع شى دا صورت صحيح دي خلق په داسې خبرو كښې ډيرې غلطياني كوى حالانكه څنګه چه دَ شرك فعلى نه سړې ډډه كوى دغه شان دَ شرك قول نه هم ځان ساتل ضرورى دى.

۴۷۷۹- (¹) [۱] وَفِي رِوَايَةٍ مُنْقَطِعًا قَالَ: [۲] " «لَا تَقُولُوا: مَا شَاءَ اللَّهُ وَشَاءَ مُحَمَّدٌ، [۳] وَقُولُوا: مَا شَاءَ اللَّهُ وَحْدَهُ» ". رَوَاهُ فِي "شَرْحِ السُّنَّةِ".

**ترجمه:** [۱] او په يوه روايت كې (چې د هغه سلسله متصله نه ده) بطريق انقطاع دا الفاظ نقل شوي دي چې حضور ﷺ وفرمايل [۲] داسې مه واييئ چې هغه به كيږي څه چې الله غواړي او محمد غواړي [۳] بلكي داسې واييئ هغه به كيږي چې تنها الله يې غواړي [كه يې څوك دويم غواړي يانه غواړي] دا روايت بغوي رحمه الله په شرح السنه كې نقل كړي دي

**تسهيلات:**

**قوله: وَقُولُوا: مَا شَاءَ اللَّهُ وَحْدَهُ:**

يعنى كه دوئم كس ئې غواړى او كه نه خو هغه به كيږى چې الله اوغواړى د دې اعتبار نه پورته روايت ماشاء الله ثم شاء.فلان جواز ثابتيږي او په دې روايت كې تضاد نه واقع كيږي

**[۴۷۸۰] منافق ته سيد (سردار) مه وايئ**

۴۷۸۰-[۲۸] (²) [۱] وَعَنْهُ، «عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ [۲]: " لَا تَقُولُوا لِلْمُنَافِقِ سَيِّدٌ، [۳] فَإِنَّهُ إِنْ يَكُ سَيِّدًا فَقَدْ أَسْخَطْتُمْ رَبَّكُمْ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

---

¹) اخرجه البغوي في شرح السنة (۲۶۱/۱۲) والدارمي رقم ۲۶۹۹) واحمد في المسند (۲۸۹/۴).

²) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الأدب/باب لا يقول المملوك ربى وربتى (رقم-۴۹۷۷) واحمد فى المسند: ۲۴/۵

**ترجمه :** [۱] او حضرت حذیفه رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه نقل کوي چې حضور ﷺ وفرمایل منافق ته سید (سردار) مه وایئ [یعنی سردار او آقامه وایي] [۲] ځکه که هغه سید وي او تاسو هغه ته سید اوونیلو) نو تاسو خپل پروردګار ناراضه کړې (ابوداؤد)

**حل اللغات :-** ① سَيِّدٌ: سردار، آقا ② أَسْخَطْتُمْ: ناراضه کړو تاسو.

**تسهیلات:**

**قوله : فَإِنَّهُ إِنْ يَكُ سَيِّدًا فَقَدْ أَسْخَطْتُمْ رَبَّكُمْ:**

**منافق ته د سردار وئیلو د ممانعت وجه:** سردار اوآقا ته سید وائی منافق چونکه دالله تعالی دَ دین او مسلمانانو دښمن وی په ژپه که ئی هرڅه وی خو په قلبی توګه اسلام سره دښمنی لری نو داسې دَالله تعالی دښمن دَ سید او آقا دَ احترام په الفاظوسره یادول جائزنه دی الله تعالی منافقان دَ ذلت خوراتی رسوایئی اوبربادئی په الفاظوسره یادکړی دی دَدې باوجودکه یو سړې دَ منافق سړی داسې تعریف اوصفت کوی نوهغه دَالله تعالی کلام دروغ ګڼړی په کوم سره چه الله تعالی ناراضه کیږی.

**د فاسقانوفاجرانوحکمرانانو خوشامدې کول:** که یو سړې واقعةً دَ خپل خاندان سردار دې یا دَ ملك مشر دې بیاهم هغه ته سردار اوآقا نه دی وئیل پکار ځکه چه هغه په دغه ښکلی الفاظوسره دَ یادولو اهل نه دې.نن صبادَ مسلمانانودَمنافقانو حکمرانانو په تعریف کښې چه کوم خوشامدی خلق دَهغوی مدحې اوقصیدې وائی هغوی له پکاردی چه دې نه منع شی اوخپل رب دې ناراضه کوی نه ګنی دآخرت دَعذاب دَپاره دې تیارشی

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [۴۷۸۱] دَبد نوم بد اثر پریوځی

۴۷۸۱-[۲۹] (۱) [۱] «وَعَنْ عَبْدِ الْحَمِيدِ بْنِ جُبَيْرِ بْنِ شَيْبَةَ، قَالَ [۲]: جَلَسْتُ إِلَى سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، فَحَدَّثَنِي أَنَّ جَدَّهُ حَزْنًا قَدِمَ عَلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ [۳]: "مَا اسْمُكَ؟" قَالَ: اسْمِي حَزْنٌ، [۴] قَالَ: "بَلْ أَنْتَ سَهْلٌ" [۵] قَالَ: مَا أَنَا بِمُغَيِّرٍ اسْمًا سَمَّانِيهِ أَبِي. [۶] قَالَ ابْنُ الْمُسَيَّبِ: فَمَا زَالَتْ فِينَا الْحُزُونَةُ بَعْدُ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه :** [۱] حضرت عبد الحمید ابن جبیر ابن شیبه رحمه الله وایي [۲] چې یوه ورځ زه د حضرت سعید ابن مسیب رحمه الله په خدمت کې حاضروم هغه مانه داحدیث بیان کې چې ځما نیکه چې د هغه نوم حزن وو د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو [۳] حضور ﷺ پوښتنه ترینه وکړه ستا نوم څه دي؟ هغه اوویل ځمانوم حزن دي [۴] په دي اوریدو سره حضور ﷺ ورته وفرمایل حزن څه ښه نوم نه دي بلکي زه ستا نوم سهل ایږدم [۵] ځما نیکه اوویل ځما

---

(۱) اخرجه البخاری فی کتاب الأدب/باب تحويل الاسم إلى اسم أحسن منه (رقم-۶۱۹۳) وابوداود فی کتاب الأدب/باب فی تغيير الاسم القبيح(رقم-۴۹۵۶)واحمد فی المسند:۵/۴۳۳

پلار چې کوم نوم ایښي دي هغه زه اوس بدلولي نشم ٦ حضرت سعيد رحمه الله وفرمايل د
هغه وخت نه پس تر اوسه پورې زمونږ په خاندان کې هميشه سختي وي (بخاري)
**حل اللغات:** - ① حَزْنٌ: غم. تکلیف، سختی ② سَهْلٌ: آسانی.

**تسهيلات:**

**قوله:** قَالَ: "بَلْ أَنْتَ سَهْلٌ:

**د نوم اثر په مسمى کښې:** دا نوي مسلمان صحابى وو کيدې شي چه د نبي عليه السلام
کلام ئې د حکم په ځائې اختيارى ګنړلې وو اونوم بدلول ئې خوښ نه کړل ليکن د نوم
ترجمه چونکه سختی او مصيبت وو په دې وجه دې نوم اثر د هغه په خاندان باندې پروت
وو اوهميشه د حکمرانانو د طرف نه د مصيبتونو اوتکليفونو ښکار پاتې شو حضرت
سعيد بن المسيب جليل القدر تابعى دې دې افسوس کوى چه کاش زما نيکه د نبي عليه
السلام خودلې شوې نوم سهل خپل کړې وې نو زمونږ په خاندان باندې به هم نرمى
اوسهولت وې ځکه چه د ښه او بد نوم اثر ضرور پريوځى.حزن سخت اومشکل کانړيزې
زمکې ته وائى اوسهل نرم مئين اوهوارې زمکې ته وائى.

**[٤٧٨٣] ښه اوښکلي نومونه**

٤٧٨٣-[٣٠] (¹) ١ وَعَنْ أَبِي وَهْبٍ الْجُشَمِيِّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ٢ " تَسَمَّوْا أَسْمَاءَ الْأَنْبِيَاءِ، وَأَحَبُّ الْأَسْمَاءِ إِلَى اللَّهِ: عَبْدُ اللَّهِ وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ، ٣ وَأَصْدَقُهَا حَارِثٌ وَهَمَّامٌ، ٤ وَأَقْبَحُهَا حَرْبٌ وَمُرَّةُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ١ او حضرت ابو وهب جشمي رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل ٢ د انبياوو
په نومونو خپل نومونه ايږدئ او د خداي جل جلاله په نزد بهترين نوم عبد الله او عبد الرحمن
[او دغه شان عبد الرحيم او عبد الكريم وغيره دي] ٣ او زيات رينښتيني نوم حارث او
همّام دي ٤ او د ټولو نه خراب نومونه حَرب او مُرّه دي.(ابو داؤد)
**حل اللغات:** - ① حَارِثٌ: زميندار. کارکسب کونکې. ② هَمَّامٌ: غم او فکرکونکې. ③ حَرْبٌ: جنګ.
④ مُرَّةٌ: تريخ.

**تسهيلات:**

**قوله:** تَسَمَّوْا أَسْمَاءَ الْأَنْبِيَاءِ

**د پيغمبرانو د نومونو کيښودلو استحسان:** يعنى د انبياءکرامو په نومونوباندې خپل
نومونه ايږدئى په دې کښې پټه اشاره کيدې شي چه د فرښتو په نومونوباندې خپل
نومونه مه ايږدئى.په دې حديث کښې داخودلى شوى دى چه د جاهليت د زمانې په طرز

---

¹) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الأدب/بابٌ فى تغيير الأسماء (رقم-٤٩٥٠) واحمد فى المسند: ٣٤٥/٤

باندې بد او ویرونکي نومونه مه ایږدئی لکه حرب یا مره شو مره تریخ اوترپوته وائی دَ ابلیس کنیت هم ابومره دې اوحرب جنګ ته وائی دَ جاهلیت په زمانه کښې به حمار، کلب، عبدالشمس وغیره نومونه هم کیخودې شو داهم قبیح نومونه دی

**قوله**: **وَأَصْدَقُهَا حَارِثٌ وَهَمَّامٌ** دَ زمیندارئی کسب اوګټې دپاره دَحارث لفظ استعمالیږی اوس دَ دنیا هرسړې په کسب اوګټه کښې مشغول دې په دې وجه دا رښتوني نوم دې دغه شان همام اهتمام او قصد او ارادې ته وائی اوهرسړې په څه نه څه اهتمام. قصد اوارادې کښې اخته دې په دې وجه داهم رښتوني نوم دې

## [۹] بَابُ الْبَيَانِ وَالشِّعْرِ

### دَ وعظ او تقرير او دَ شعر بيان

**خلاصة الباب**

**فيه سبعة وعشرون حديثاً مشتملة على سبع مسائل:**

① ذم بعض البيان : ۳، ۱۴، ۱۵، ۱۶، ۱۷، ۱۸، ۱۹، ۲۰۔

② مدح بعض البيان : ۱، ۲۰، ۲۱-

③ مدح تنشيد بعض الشعر: ۲، ۴، ۵، ۲۱، ۲۲-

④ ذم تنشيد بعض الشعر:۳، ۱۴، ۱۵، ۱۶، ۱۷، ۱۸، ۱۹، ۲۰ -

④ الترغيب في تنشيد بعض الشعر: ۷، ۸، ۹، ۱۳-

⑤ تكلم النبي في بالكلام الموزون: ۶، ۱۰، ۱۱-

⑥ ذم بعض الشعر: ۱۲،۲۴، ۲۵، ۲۶، ۲۷-

⑦ النهي عن إنشاد الشعر بالصوت الحسن عند الوقوع في الفتنة: ۲۳-

**د لفظ البيان تحقيق :**

**دبيان لغوی معنی**:بیان په لغت کښې وضاحت او دَ مقصود اظهار ته وائی بنایه کښې لیکلی دی چه خپل مقصود په ډیر فصاحت اوبلاغت سره اودَ زړه په زور والی او صفائیی سره پیش کولونوم بیان دې ونیلی شی "فلان أبين من فلان" یعنی دَ فلانکی سړی نه فلانکې سړې دَ خپل مافی الضمیر اظهار په بهترینه طریقه سره کوی اوښه بیان کوی.

**د شعر لغوی معنی**: په لغت کښې فهم او ذکاوت او هوښیارتوب او دانائیی ته شعر وائی لکه چه دا دَ شعور نه جوړشوې دې کوم چه دَعلم اوفهم په معنی کښې دې

**دشعر اصطلاحی تعریف**: "الشعر هو كلام مقفىً موزون عن قصدٍ" یعنی په قصد او ارادې سره دَ

مقفى اودَ موزون كلام پيش كولونوم شعر دي

**په تعريف دعن قصد وضاحت:** په دي تعريف كښې دَ قصد اوارادې لفظ قيد احترازي دې دې سره هغه موزون كلام خارج شو دكوم دَ وزن چه اراده نه وي كړې شوې لكه چه په قرآن اوحديث كښې موزون كلام وي دا ددې باوجود چه موزون دې ليكن ددې دَ وزن قصد او اراده نه ده كړې شوې اونه وزن مقصود دې

بل دَ قرآن اوحديث داموزون كلام دَ شعر دَ قوافي دَ اصولو مطابق هم نه وي اونه دادَ شعر دَ قوافي مطابق دي دغه شان په حديث كښې موزون دعاگانې دي هغه دَ شعر دَ تعريف نه خارج دي ځكه چه دَهغې وزن دَ قصد اوارادې لاندې نه دي

**حضور پاک صلى الله عليه وسلم لره د شعر او شاعرى نه د لرى ساتلو حكمت:**

نبي عليه السلام ﷺ الله تعالى دَ شعر اوشاعرئى نه لرې اوساتلو دې دَپاره چه څوك دا شك اونه كړي چه دَشاعرئى په زور باندې ده په دې نوى طرز باندې داكلام ايجاد كړې دې چنانچه نبي عليه السلام په شعر جوړولوباندې نه پوهيدو بلكه بعضې وخت به ئې په وئيلو كښې هم وړاندې روستو كيدو اودَ اصولو اوقواعدو مطابق ئې شعر نه شو وئيلې خو كه بغيردَ قصد او اراده ئې كله چرته دَ چا شعر وئيلې وى نوهغې ته شاعرى نه شى وئيلې كيدې.خلاصه دا چه نبي عليه السلام ﷺ چه په كوم كلام سره دَ عربو دَ فصحاؤ مقابله اوكړه هغه دَ الله تعالى كلام دې اودَ نبي عليه السلام لويه معجزه ده كوم ته چه قرآن وائى

**د شعروئيلو حكم:**

دَ شريعت په رڼړا كښې دَشعر داحكم دې چه دا يو كلام دې كه چرې ښه كلام وي نو ښه دې اوكه چرې خراب دې نو بيا خراب دې.

**درې مشهور صحابه شاعران:** ① حضرت حسان بن ثابت رضي الله عنه

② حضرت كعب بن مالك رضي الله عنه

③ حضرت عبد الله بن رواحه رضي الله عنه.

**په عربو كښې درې لوئى شاعران:**

دَ تخليق آدم عليه السلام نه واخله تر ننه پورې درې لوئى شاعران تيرشوى دى.

① امرألقيس چې په مشهور سبعه معلقات كښې ئې يوه معلقه ده.

② طرفة بن العبد ځوان كم عمره چه دَ شلو كالو په عمر كښې قتل كړې شو.

③ لبيد بن ربيعه عامرى دَحضرت لبيد عمر ۱۲۰ كاله وو ۶۰ كاله په كفر كښې پاتې شوې دې او ۶۰ كاله ئې په اسلام كښې تيركړى دى.

**دَ موسیقئ کولو اودَ هغې د اوریدلو شرعی حکم:**

په دې آیاتونو کښې دَ موسیقئ اوګانوبجانو دَحرمت په واضحه توګه ذکرکړې شوې دې دې مسئلې ته مسئلة الغناء وائی دَ ډیرو احادیثو اومذکوره آیاتونو دَ وجې نه دې مسئلې ډیرزیات اهمیت اختیارکړې دې اودَعلماؤ او فقهاؤ په نیز دا یومعرکة الآراء مسئله جوړه شوې ده علماء کرامو دَدې متعلق مستقل کتابونه لیکلی دی او په ټولووړو او لویو کتابونو کښې ئی دې ته اهم مقام ورکړې دې "کف الرعاع فی مسئلة الغناء" دَابن حجر هیتمی یومشهور تصنیف دې په کوم کښې چه دا مسئله په ډیر تفصیل سره بیان کړې شوې ده

مفتی اعظم پاکستان حضرت مولانامفتی محمدشفیع رحمه الله په خپل عربی تفسیر تفسیر أحکام القرآن کښې موسیقی اوغنا او سماع باندې پوره کلام کړې دې دغه شان عوارف المعارف او نوروکتابونوکښې علماؤ دا مسئله ښه واضحه کړې ده چونکه بعضې ناپوهه خلقو په بعضو روایاتوسره دَ موسیقی دَجائز کولو کوشش کړې ده په دې وجه دَعلماؤ په نیز دَغناء مسئله دَ بحث محل جوړشوې دې اوچونکه نن صبا دا وبا عام شوې ده نودَعاموخلقو په ذهن کښې داخبره پرته ده یاڅولې شوې ده چه موسیقی اوغناء خو یو تفریح ده دَدې دَحرام کیدوسره هډو څه تعلق نشته دې

**د موسیقی په جواز اوعدم جواز کښې دوه مذاهب:**

① د بعضې پیرانو او اهل هوی په نیزموسیقی جائز ده

② دجمهورو علماء کرامو په نیزموسیقی حرامه او ناجائز ده

**داول فریق دلیل:**

**داول فریق اول دلیل:** ① ﴿وَإِذَا سَمِعُوا مَا أُنزِلَ إِلَى الرَّسُولِ تَرَىٰ أَعْيُنَهُمْ تَفِيضُ مِنَ الدَّمْعِ مِمَّا عَرَفُوا مِنَ الْحَقِّ﴾ [سورة مائده: ۸۳]

دوی د دې آیت څخه استدلال کوی چه ګورئی قرآن ئی واورید و نو وئی ژړل او خلق دَ غناء په اوریدو سره هم ژاړی اهل سماع هم دَدې آیت نه دَ سماع په اباحت باندې استدلال کړې دې

**د اول فریق داول دلیل جواب:** دَ غناء دَ اثبات دَپاره دَدې آیت نه استدلال تحریف فی القرآن دې کوم چه حرام دې دلته دَ ګانې اوریدو خبره نه ده بلکه دَ حق اوریدو خبره ده باقی دَ سماع خبره وراندې راخی

داول فریق دویم دلیل: ② ﴿تَقْشَعِرُّ مِنْهُ جُلُودُ الَّذِينَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ ثُمَّ تَلِينُ جُلُودُهُمْ﴾ [سورة زمر: ۲۳] دوی د دې آیت څخه استدلال کوی.

**داول فريق د دويم دليل جواب**: دا هم په قرآن کښې تحريف دې اودا دَ دغه خلقو ښکاره گمراهي ده دلته ئې دَ گاني اوريدو اثر نه دې خودلې دلته خود قرآن اوريدو اثر خودلې شوې دې البته دَ سماع والا ددې نه استدلال کوی چه دَهغې بحث راروان دې

**داول فريق دريم دليل**: ③ ﴿قُلْ مَنْ حَرَّمَ زِيْنَةَ اللّٰهِ الخ﴾ [سورة العراف: ۳۲]
دوی د دې آيت څخه استدلال کوی اودا وائی چې دلته د زينت څخه موسيقی مراد ده

**د اول فريق د دريم دليل جواب**: دَ دوی دا استدلال هم غلط دې ځکه چه دَ زينت نه باجې او دوېرئ مراد نه دی اونه يو مفسر داسې تفسير کړې دې نه په حديث کښې څه موجود دی.

**د اول فريق څلورم دليل**: دَنبي عليه السلام ﷺ په موجودگئی کښې حضرت عائشه رضي الله عنها په کور کښې دوو ماشومانو جينکو گانا وئيله صديق اکبر رضي الله عنه منع کړه نونبي عليه السلام اوفرمائيل «دعهما يا ابابكر فانها أيام عيد» دوی دا وائی چې دلته دوو جينکو گانې وئيلې نبی عليه السلام ورته اجازت ورکړو.

**داول فريق د څلورم دليل جواب**: دا استدلال کول هم غلط دی ځکه چه دلته دَ ساده شعرونو وئيلو خبره ده. وړې جينکئی دی په دې باندې دَ دوېړو او بين باجو دَ گانو قياس کول اودَ بالغ ښځو دانس دَپاره استدلال کول حماقت دې.

**داول فريق پنځم دليل**: يوځل جبرائيل امين نبي عليه السلام له راغلو او وئی فرمائيل چه يارسول الله! ستاسو دَ امت فقراء به دَ اغنياؤ نه پنځه سوه کاله مخکښې جنت ته ځی په دې باندې نبي عليه السلام ډير خوشحال شو اووئی فرمائيل څوک گانې والا شته؟ يوباندچی اووئيل چه زه گانا وايم هغه دا شعر اووئيل:

| | |
|---|---|
| قدلسعت حية الهوي كبدي | فلا طبيب له ولا راقي |
| إلا الحبيب الذي شغفت به | فعنده رقيتي وترياقي |

په دې شعر باندې نبي عليه السلام او صحابه کرام په وجد کښې راغلل دَنبي عليه السلام څادر دَ اوږونه راکوز شو. نبي عليه السلام دغه څادر اوشلولو اوڅلور سوه ټکړې ئې کړو او صحابه کرامو باندې ئې تقسيم کړو.

**داول فريق د پنځم دليل جواب**:

**داول فريق د پنځم دليل جواب**: "كف الرعاع في مسئلة الغناء" دَابن حجر هيتمي رحمه الله او عوارف المعارف کښې دَدې مؤلف داقصه ليکلې ده اوبيائی په دې باندې رد کړې دې چه دَدې قصې نه غنا ثابتول فضول دی. البته دَ سماع والا دا ډيرمخکښې مخکښې کوی اوخوشحاليږی. اوس راشئی او دَ سماع متعلق څه اوگورئی. دلته دَ سماع نه مراد سماع موتی نه ده بلکه دَ ژوندې مدهوش اودَجوش نه ډك دَمست قلندرانودَ محفل سماع مراد

ده چه پخوانئی زمانه کښې زيات وو اونن هم دَدوی وجود دَ اهل بدعت سره ملاويږی په کوم چه دَ قوالئی اطلاق زيات مشهور اومعروف دې.

**د دويم فريق دلائل:**

**د قرآن پاک په رڼا کښې د موسيقۍ حرمت:**

① دَ سورة لقمان آيت کښې ﴿لَهْوَالْحَدِيْثِ﴾لفظ راغلې دې دا لفظ سره دَدې چه بې هوده کلام او قصو دَپاره وئيلې کيږی ليکن فتاویٰ حماديه اوعوارف المعارف کښې ليکلی دی چه حضرت ابن عباس او حضرت ابن مسعود رضي الله عنهما دواړو قسم خوړلو سره فرمائيلی دی چه ﴿لَهْوَالْحَدِيْثِ﴾ نه غناء او باجې مراد دی.

② دغه شان دَ سورت نجم په آخره کښې ﴿وَاَنْتُمْ سٰمِدُوْنَ﴾ آيت تفسير په "انتم مغنون" سره کړې شوې دې يعنی تاسو بې هوده ګانې وائې.

**د احاديثو په رڼا کښې د موسيقۍ حرمت:**

① په مشکاة کښې دَحضرت ابوامامه رضي الله عنه د حديث څخه د موسيقۍ حرمت معلوميږی (مشکاة ص: ٤١٠)

② په مشکاة کښې دَحضرت ابوهريره رضي الله عنه د حديث څخه د موسيقۍ حرمت معلوميږی. (مشکوة شريف ص: ٤٠٩)

③ په مشکاة کښې دَحضرت جابر رضي الله عنه د حديث څخه د موسيقۍ حرمت معلوميږی. (مشکاة ص: ٤١١)

④ په مشکاة کښې دَحضرت ابوسعيد خدری رضي الله عنه د حديث څخه د موسيقۍ حرمت معلوميږی. (مشکاة ص: ٤١١)

⑤ په يوحديث کښې رسول الله ﷺ فرمائيلی دی چه ما تاسو دَ دوو فاسق آوازونو او دوو احمق آوازونو نه منع کړی يئی يو په مړی باندې دَ وير ژړا کولو دَ آواز نه او بل دَ غناء دآواز نه.

⑥ په مشکاة کښې دَحضرت ابن عمر رضي الله عنهما د حديث څخه د موسيقۍ حرمت معلوميږی. (مشکاة ص: ٤١١)

⑦ يوحديث کښې دی چه هم ابليس هغه رومبې سړې دې چاچه ګانا وئيلې ده او وير ئی کړې دې.

⑧ يوحديث کښې دی چه کله يو سړې ګانا وائی اودَهغه آواز اوچتيږی نوالله تعالی دَهغه طرف ته دوه شيطانان ورليږی يو شيطان دَهغه په يوه اوږه باندې او بل شيطان په بله اوږه باندې کينی او مسلسل ئی په خپلو خپو باندې وهلو سره دغه سړی ته شاباش

ورکوی تردي چه هغه سرې دَ دغه ګانې نه پخپله منع شي

⑨ په یو حدیث کښې دی چه «الغناء حرام في الأديان كلها» یعنی په ټولو دینونو کښې ګانې بجانې حرام دی

⑩ یو حدیث کښې دی چه ګانا اوریدل حرام دی اودې نه خوند اخستل کفر (کفران نعمت) دي اودې دَ پاره راجمع کیدل ګناه او فتنه ده

**دصحابۀ داقوالو په رڼړا کښې د موسیقۍ حرمت:**

① حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه فرمائی "الغناء ينبت النفاق في القلب كما ينبت الماء البقل" یعنی موسیقی په زړه کښې داسې نفاق پیدا کوی لکه څنګه چې په اوبو سره سبزی راټوکیږی

② حضرت عثمان رضي الله عنه فرمائی "ماتغنيت ولا تمنيت ولا مسست ذكري بيميني منذ بايعت رسول الله صلى الله عليه وسلم" یعنی ما نه ګانا وئیلې ده اونه مې دَ دې خواهش کړې اودکله نه چه مې دَنبي علیه السلام نه بیعت کړې دې په خپل ښی لاس سره مې ذکر نه دې مسحه کړې.

**د تابعینو د اقوالو په رڼړا کښې د موسیقۍ حرمت:**

① دَ بعضي تابعينو طرف ته منسوب دی فرمائی "إياكم والغناء فإنه يزيد الشهوة ويهدم المروءة"

② فضيل بن عياض رحمه الله فرمائی "الغناء رقية الزنا" موسیقی د زنا دم درها ده

③ علامه ضحاك رحمه الله فرمائی "الغناء مفسدة للقلب سخطة للرب" موسیقی زړه خرابوی اورب کریم غصه کوی

**د فقهاء کرامو د اقوالو په رڼړا کښې د موسیقۍ حرمت:**

① امام مالك رحمه الله فرمائی چه که چرته چا وینځه واخستله اوهغه مغنیه ښکاره شوه نودا په دغه سودا کښې عیب دې داسې سودا فسخ کولې شي.

② امام ابو حنيفه رحمه الله هم دَ غناء دَ حرمت قائل دې فرمائی زه یوځل په دې مصیبت کښې راګیرشوې وم نوما صبرا وکړو لیکن چه کله زه مقتدیٰ جوړشوم اوبیا راګیرشوم نودَمجلس نه پاسیدم لاړم. واضح دې وی چه ابتلا دَ حرام دَ وجې نه کیږی لهذا په دې کلام کښې دَ غناء دَ حرمت طرف ته اشاره ده

③ امام شافعي رحمه الله فرمائی چه کوم سړې زیاتې ګانې وائی هغه احمق بې وقوف او مردود الشهادة دې.

بهرحال دا ټول دلائل دَ غناء په حرمت باندې موجود دی لهذا دَدې په حرمت کښې دَ چا هیڅ اختلاف نه شی کیدې او خواهش پرستی یو بیل څیزدې.

**د غناء او سرو حرمت:**

دَ غناء حرمت اتفاقی مسئله ده په دې کښې دَ اختلاف گنجائش نشته دې اونه دَدې اختلاف څه شرعی حیثیت شته څه خلقو ته په بعضې نصوصو کښې شك شوې دې یا دَ فساد باطن دَ وجې نه هغوی دَ نصوصو غلط مطلب بیان کړې دې دا زه څکه دلته ذکر کول غواړم چه یو خواهش پرست سړې عامو خلقو ته دهوکه ورنه کړې شی گنی دلته نه څه دلیل شته اونه څه استدلال

**د پخوانئ زمانې د محفل سماع په جواز اوعدم جواز کښې دوه مذاهب:**

① دَاهل تصوف یو مختصر طبقه دَیوڅو شرطونو نه پس دَسماع قائل دی هغه شرطونه دادی

② جمهور علماء فقهاء اوصلحاء دَ امت مطلقًا دَسماع انکارکوی او په دې باندې ردکوی

**د اهل تصوف په نیزد سماع دجواز دپاره شرطونه:**

① کله چه بې ږیرې هلکانو سره گډوډوالې نه وی اونه په هغوی باندې شعرونه وائی

② کله چه صرف وجد اوجوش پیدا کونکی اشعار وی.

③ دَ هیڅ قسم دوپړئی باجې ورسره نه وی.

④ په دغه محفل کښې دَ ښځې ذات بالکل وجودنه وی.

⑤ دَ آخرت دَ یاد اودَ حبیب دَ تذکرې دَپاره وی او په هغې کښې قبیح اشعارنه وی

⑥ په اجرت باندې محفل سماع جوړ شوې نه وی اونه ویونکی اجرت اخستونکی وی

⑦ اوریدونکی ریاکار نه وی نه ئې دنیاوی اغراض وی اونه ئې نیت خراب وی

**په تنهائي کښې د وحشت لرې کولودپاره داشعارو وئیلو حکم:** مفتی محمد شفیع رحمه الله په احکام القرآن کښې لیکلی دی که یو سړې په ځان له څائی کښې دَ وحشت اوویرې لرې کولودَ پاره اشعار وائی نوداجائز دی خوشرط دادې چه دې سره دوپړئی او سازونه نه وی سوچ کونکی له سوچ پکاردې چه دَ دغه پورتنو شرائطو وجود په یومحفل سماع کښې تقریبًا ناممکن دې نوسماع ته څنګه جائز وئیلی شی؟

**دموجوده قوالۍ حکم:** نن صبا خو دَ الله تعالی ذکر سره په تی وی کښې میوزك شامل دې په هره قوالئی کښې ډهول سرنو سره مجلس گرمولې شی چرته هغه صالح سماع او چرته دا دَ نن صبا خرافات؟ او نن صباچه کوم نظمونه په جلسو وغیره کښې وئیلی شی کیدې شی چه دَدې نه بعضې مجالس په دغه شرائطو باندې پوره خیژی اوهغه جائز وی

**دسماع باره کښې د شیخ جنیدبغدادی قول:** دَ سید الطائفه شیخ جنید بغدادی رحمه الله قول

دي فرمائي د سماع ناقص ته اجازت نشته کامل ته ئي ضرورت نشته داخبره هم په ذهن کښې ساتل بکار ده چه يو نفس آماره په وجد کښې راځي او خوشحاليږي او کله روح په وجد کښې راځي خلق د روح او د نفس په وجد کښې فرق نه شي کولې مزه خو نفس آماره اخلي کوم چه شهوانيت دې او دا گنړي چه دا د انسان روحانيت دې

**د شيخ سعدي د سماع د محفل څخه د منع کيدو قصه**: د سماع د اوريدو باره کښې سعدي بابا رحمه الله په خپل کتاب گلستان کښې خپله قصه ليکلې ده چه زه به د سماع په محفلونو کښې شامليدم زما استاذ ابوالفرج ابن جوزي رحمه الله زه بار بار منع کړم ليکن زه منع نه شوم يو ځل يوه شپه په يو محفل کښې د شرکت دپاره لاړم چنانچه توله شپه د يو مکروه آواز والا سړي په محفل کښې اشعار وئيل خلق پريشان وو زه هم پريشان ووم مونږ د سحر کيدو تمنا کوله چه د دغه مصيبت نه مو ځان خلاص شي سحر کيدو سره ما خپل پټکي د دغه ګاني ويونکي په سرباندې کيخودو او هغه مې ښکل کړو او لاړم زما دوستانو زه ملامت کړم چه دومره لوئي سړي ئې دا تاخه حرکت او کړو خپل پټکي دې يودم له ورکړو ما وئيل چپ شئ دې سړي ماته ډيره فائده اورسوله زه د خپل استاذ په منع کولو سره د محفل سماع نه منع نه شوم ليکن دې ډم شکل او صورت او خراب آواز زه د هميشه دپاره د سماع نه متنفر کړم دا زما لوئي استاذ جوړ شو په دې وجه مې ورته پټکي په سر کړو

**د دوه انګريزانو د وجد قصه**: حکيم الامت حضرت تهانوي رحمه الله په خپل ملفوظاتو کښې يوه قصه ليکلې ده چه يو ځل په هندوستان کښې په يو محفل سماع کښې دوه انګريزان راغله کيناستل په سماع کښې په هغوی ډير وجد راغلو خلقو وئيل چه واه واه د سماع به څه وايئي په انګريزباندې ئې هم اثر او کړو کله چه حضرت تهانوي رحمه الله ته معلومه شوه نو وئې فرمائيل د هغوی نفس ته وجد راتلو روح ته نه دا شهوانيت وو نه روحانيت بيا هغوی او فرمائيل چه ګورئې کله د مار په مخکښې بين غږولې شي نو هغه خومره خوشحاليږي او نڅيږي نو هغه دا د هغه روحانيت نه دې بلکه نفسانيت دې

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [۴۷۸۳] بعضې تقرير او بيان د سحر پشان اثر لري

۴۷۸۳ - (۱)[۱] [۱]«عَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - [۲]قَالَ: قَدِمَ رَجُلَانِ مِنَ الْمَشْرِقِ فَخَطَبَا، فَعَجِبَ النَّاسُ لِبَيَانِهِمَا، [۳]فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ مِنَ الْبَيَانِ لَسِحْرًا"». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

[۱] اخرجه البخاري في كتاب الطب/باب: إن من البيان سحراً (رقم-۵۷۶۷) وابوداود في كتاب الأدب/باب ما جاء في الشعر (رقم-۵۰۱۱) والترمذي في كتاب البر والصلة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ماجاء في إن من البيان سحراً (رقم-۲۰۲۸) ومالك في الموطا كتاب الكلام/باب مايكره من الكلام بغير ذكر الله (رقم-۷) واحمد في المسند: ۲۶۳/۴

**ترجمه** : [١] حضرت ابن عمر رضي الله عنه وايي [٢] چې يوه ورځ د مشرقي علاقي نه دوه سړي راغلل او خپلو کې ښه فصاحت او بلاغت سره خبري کول يي شروع کړلي خلقو چې د هغوئ خبري واوريدي نو د هغوئ فصيح او بليغ خبرو باندي د حيرت او تعجب اظهاريي وکړو [٣] رسول الله ﷺ وفرمايل بلاشبه بعضې بيان د سحر اثر لري (بخاري)

**حل اللغات** : ① لسحرا: يعني بعضې بيان زړه دَ خان طرف ته راخکلو کښې د جادو په شان اثر لري.

**تسهيلات:**

**قوله: قَالَ: قَدِمَ رَجُلَانِ مِنَ الْمَشْرِقِ فَخَطَبَا:**

**د حديث پس منظر** : دادَهغه وخت قصه ده چه کله دَمشرقي علاقې نه دَبنوتميم يو وفددَرسول الله ﷺ دربارته راغلو. په دغه وفد کښې دوه فصيح اوبليغ سړي راغلې وو دَ يونوم زبرقان وو اودَ بل نوم عمرو بن هتَم وو. دَ نبي عليه السلام په مجلس کښې دَ صحابه کرامو په ډکه مجمع کښې زبرقان په ډير فصاحت اوبلاغت سره خپل مفاخراوماثر په ډير مؤثر انداز سره پيش کړل اوبيائی اووئيل يا رسول الله ﷺ دا عمرو بن هتَم هم زما بيان کړې شوې خوبيانې پيژنی چه زه څنګه سړې يم او زما څه کارنامې دی. دې نه پس عمرو بن هتم پاسيدو اوهغه دَ زبرقان بيان کړې شوې تولې کارنامې دروغ ثابتې کړې اووئی وئيل په دې سړی کښې هيڅ خوبی نشته دې. دَعمرو دَ بيان انداز هم ډير مؤثر او موزون وو په کوم سره چه خلق دَ زبرقان متعلق په شك کښې پريوتل دې نه پس زبرقان بيا پاسيدو او په ډير زړه راښکونکې انداز کښې اووئيل چه دَدې سړی زړه پيژنی چه زه څنګه سړې يم ليکن حسد دې په داسې وينا کولوباندې مجبورکړو. دَ صحابه کرامو مجمع چه دَدې دواړو بيانونه واوريدل نودواړولـه ئی شاباش ورکړو اوحيران شو اوتعجب ئی اوکړو. په دې باندې نبي عليه السلام اوفرمائيل

دادَهغه وخت قصه ده چه کله دَمشرقی علاقې نه دَبنوتميم يو وفددَرسول الله ﷺ دربارته راغلو. په دغه وفد کښې دوه فصيح اوبليغ سړی راغلې وو دَ يونوم زبرقان وو اودَ بل نوم عمرو بن هتَم وو. دَ نبي عليه السلام په مجلس کښې دَ صحابه کرامو په ډکه مجمع کښې زبرقان په ډير فصاحت اوبلاغت سره خپل مفاخراوماثر په ډير مؤثر انداز سره پيش کړل اوبيائی اووئيل يا رسول الله ﷺ دا عمرو بن هتَم هم زما بيان کړې شوې خوبيانې پيژنی چه زه څنګه سړې يم او زما څه کارنامې دی. دې نه پس عمرو بن هتم پاسيدو اوهغه دَ زبرقان بيان کړې شوې تولې کارنامې دروغ ثابتې کړې اووئی وئيل په دې سړی کښې هيڅ خوبی نشته دې. دَعمرو دَ بيان انداز هم ډير مؤثر او موزون وو په کوم سره چه خلق دَ زبرقان متعلق په شك کښې پريوتل. دې نه پس زبرقان بيا پاسيدو او په ډير زړه راښکونکې انداز کښې اووئيل چه دَدې سړی زړه پيژنی چه زه څنګه سړې يم ليکن حسد

دي په داسې وينا کولو باندې مجبور کړو دَ صحابه کرامو مجمع چه ددې دواړو بيانونه واوريدل نودواړوله ئې شاباش ورکړو اوحيران شو اوتعجب ئې اوکړو په دې باندې نبي عليه السلام دا مذکوره جمله اوفرمائيله

**قوله**: إِنَّ مِنَ الْبَيَانِ لَسِحْرًا:

**د بيان سحر سره د تشبيه وجه**: يعنی بعضې بيان زړونه مائل کولو کښې دَ جادو په شان اثر لري بعضې محدثينودَ نبي عليه السلام دا کلام دَ بيان په مذمت باندې حمل کړې دي لکه چه نبي عليه السلام داسې وئيل غواړي چه تکلف کولو سره خلق خپل طرف ته مائل کول اوخله وازولو سره عجيبه کلام پيش کول اوخله چلولو سره دَ فصاحت اوبلاغت په سکنجو کښې خلق راګيرول دَ اووری دَدانې نه غرونه جوړول اودَخبرې نه باتينګړ جوړول حقيرشئ عظيم خودل اوعظيم حقير کول دا ښه کارنه دي بلکه دادَ خالص جادو په شان مداری توب دې کوم چه قابل نفرت دي.ليکن بعضې نورو محدثينو حضراتو دَ نبي عليه السلام داکلام اوتقرير اوبيان په مدح باندې حمل کړې دي چه په ښه اندز اوښه طريقه باندې خپل مافی الضمير دَنورو په مخکښې وړاندې کول اوخلق متاثر کول په ښه طريقې سره خبره پيش کول ډير زيات اثر لري چه ښکلې اودَ تعريف قابل دي.

**[۴۷۸۴] بعضې اشعارد حکمت اودانایئ نه ډکوی**

۴۷۸۴-()[۲] ۞ وَعَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۞ "إِنَّ مِنَ الشِّعْرِ حِكْمَةً» ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه**: ۞ و حضرت ابي ابن کعب ﷺ وايي چی رسول الله ﷺ وفرمايل ۞ بعضې شعر د حکمت حامل وي.(بخاري)

**تسهيلات**:

**قوله**: إِنَّ مِنَ الشِّعْرِ حِكْمَةً:

**د حكمة دوه مطلبونه**: يعنی بعضې اشعار دَ حکمت نه ډك وی په هغې کښې دَ حق خبره وی اوهغه په صداقت او هوښيارتوب باندې مبنی وی.بعضې شارحينو دلته حکمت دَ نفع په معنی کښې اخستې دي يعنی بعضې شعرونه داسې فائده ورکونکی وی چه انسان دَ جهالت اوبې وقوفتيانه منع ساتی اودَ غلطوکارونونه ئې بندوی دا په عام توګه دَ شاعرانو هغه شعرونه وی په کوم کښې چه مواعظ مثالونه اودَ هوښيارتوب خبرې وی.حقيقت دادې چه شعرهم دکلام حصه ده په هغې کښې چه کوم ښه دي هغه ښه دي

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب الأدب/باب ما یجوز من الشعر والرجز والحداء وما یکره منه (رقم-۶۱۴۵) وابوداود فی کتاب الأدب/باب ما جاء فی الشعر(رقم-۵۰۱۰) والترمذی فی کتاب الأدب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء إن من الشعر حکمةً (رقم-۲۸۴۴) وابن ماجه فی کتاب الأدب/باب الشعر (رقم-۳۷۵۵) واحمد فی المسند:۱۲۵/۵

اوچه کوم خراب دي نو هغه خراب دي که چرې او کتلې شي نو ښه شعر سمندر په کوزه کښې د بندولو په شان دي په زړه او دماغو باندې ذهني اثر د اوږدو خطبو نه زيات اثر کوی بهرحال حکمت د نفع په معنی کښې اخستل بعيد دی لهذا پورته ليکلې شوي مضمون او مفهوم د دې حديث واضح مضمون دي

## [۴۷۸۵] په خبرو کې مبالغه کول هلاکت او تباهي ده

۴۷۸۵-( )[۳] [۱] وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "هَلَكَ الْمُتَنَطِّعُونَ" قَالَهَا ثَلَاثًا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن مسعود رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] په کلام کې مبالغه کونکي په هلاکت کې راغلل حضور ﷺ دا الفاظ درې خلې وفرمايله (مسلم)

**حل اللغات:** - ① الْمُتَنَطِّعُونَ: په خبرو کښې مبالغه کونکې. په بناوټ او چالاکۍ سره خبرې کونکی

**تسهيلات:**

**قوله:** هَلَكَ الْمُتَنَطِّعُونَ:

**د لفظ تنطع تحقيق:** تنطع د باب تفعل نه دې. خله ارتولو سره د مبالغې سره کلام کونکی ته متنطع وائي يعنی د چا په کلام کښې چه تصنع او بناوټ هم وی او بې ځايه چاپلوسی هم وی د خوشامد په غرض سره بې فائدې عبارت هم وی، د الفاظو نمائش هم وی او د تيزو جملو عياشی هم وی دا کار ښه نه دې په دې وجه نبي عليه السلام د دې مذمت او کړو ښکاره خبره ده دروغ مروغ يو ځائی کولو سره د حقيقت خلاف خبره کول او باطل حق ثابتول څه کمال نه دې.

## [۴۷۸۶] په حقيقت باندې مبنی يو شعر

۴۷۸۶-( )[۴] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "أَصْدَقُ كَلِمَةٍ قَالَهَا الشَّاعِرُ كَلِمَةُ لَبِيدٍ [۳]: أَلَا كُلُّ شَيْءٍ مَا خَلَا اللّٰهَ بَاطِلٌ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د ټولو نه رېښتيا خبره چې يو شاعر ويلې ده هغه د لبيد رضي الله عنه دا کلام دي [۳] چې خبردار د الله نه ماسوا هرشي فناء کيدونکي دي (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** - ① مَا خَلَا: ما سيوا. بغير

---

(۱) اخرجه مسلم في كتاب القدر /باب هلك المتنطعون (رقم-۷ - (۲۶۷۰)

(۲) اخرجه البخاري في كتاب الأدب/باب ما يجوز من الشعر والرجز والحداء وما يكره منه (رقم-۶۱۴۷) ومسلم في كتاب الشعر (رقم-۲ - (۲۲۵۶))والترمذي في كتاب الأدب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في إنشاد الشعر (رقم-۲۸۴۹) وابن ماجه في كتاب الأدب/باب الشعر (رقم-۳۷۵۷)

تسهيلات:

**قوله**: أَصْدَقُ كَلِمَةٍ قَالَهَا الشَّاعِرُ كَلِمَةُ لَبِيدٍ:

**په حقيقت باندې د حمل وجه**: يعني دټولو ژبو اوكلماتونه زياته رښتوني كلمه كه چرې يو شاعر وئيلې وي نو هغه دَ لبيد دا كلمه ده چه هغه اووئيل خبردار د الله تعالى جل جلاله دَ ذات نه علاوه ټول فاني اوختميدونكي دي دا معياري او رښتوني كلمه ده په دې كلمه كښې دَ قرآن پاك دَدې آيت مفهوم ته اشاره ده ﴿كُلُّ شَيْءٍ هَالِكٌ إِلَّا وَجْهَهُ﴾ اودَدې آيت ته هم اشاره ده ﴿كُلُّ مَنْ عَلَيْهَا فَانٍ ۝ وَيَبْقَىٰ وَجْهُ رَبِّكَ ذُو الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ﴾ [سورة رحمن: ۲۷-۲۶] دَ لبيد شاعر متعلق په ابتداء كښې ليكل شوى دى پوره شعرداسې دې

ألاكل شئ ماخلا الله باطل　　وكل نعيم لا محالة زائل

**[۴۷۸۶] دعلم او حكمت اشعار وئيل او اوريدل جائز دى**

۴۷۸۶-()[۵] ۱ «وَعَنْ عَمْرِو بْنِ الشَّرِيدِ، عَنْ أَبِيهِ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: ۲ رَدِفْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَوْمًا ۳ فَقَالَ: "هَلْ مَعَكَ مِنْ شِعْرِ أُمَيَّةَ بْنِ أَبِي الصَّلْتِ شَيْءٌ؟" قُلْتُ: نَعَمْ. قَالَ: "هِيهِ" ۴ فَأَنْشَدْتُهُ بَيْتًا. فَقَالَ: "هِيهِ" ثُمَّ أَنْشَدْتُهُ بَيْتًا فَقَالَ: "هِيهِ" ۵ حَتَّى أَنْشَدْتُهُ مِائَةَ بَيْتٍ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: ۱ و حضرت عمرو ابن شريد رضي الله عنه د خپل پلار نه نقل كوي هغه اوويل ۲ چې يوه ورځ د سفر په دوران كې رسول الله ﷺ پسې (د حضور ﷺ په سورلي) سپور وم حضور ﷺ ماته وفرمايل ۳ آيا تاته د اميه ابن ابي الصلت څه اشعار ياد دي؟ ما عرض وكړو هو حضور ﷺ وفرمايل ښه دي واوروه ۴ حضور ﷺ ته مايو شعر واوروي حضور ﷺ وفرمايل نور واوروه مابيا يوشعر واوروي حضور ﷺ وفرمايل نور واوروه دغه شان د مزيد اورولو فرمائش يې كوي او ماورته اورول ۵ تردې چې ماورته سل اشعار واورول (بخاري، مسلم) [مسلم: ۳۰۲/۲]

**حل اللغات**:- ① هِيهِ: واؤروه. ② بَيْتًا: شعر.

تسهيلات:

**قوله**: هَلْ مَعَكَ مِنْ شِعْرِ أُمَيَّةَ بْنِ أَبِي الصَّلْتِ شَيْءٌ؟:

**د اميه بن ابى الصلت تعارف**: دَ جاهليت په زمانه كښې چه كومو خلقو دَ بت پرستئى مخالفت كړې وو اودَ توحيد اجمالي اعلان ئى كړې وو هغه خلق دَ حنفاء او موحدينو په نوم سره يادولې شو هم دَدغه خلقو نه يو اميه بن ابى صلت وو دا ډير لوئى شاعر او ډير لوئى حقيقت خوښونكې سړې وو. په خپلو اشعاروكښې به ئى دَ الله تعالى وحدانيت په

---

[1]) اخرجه مسلم فى كتاب الشعر (رقم-۱ - (۲۲۵۵) وابن ماجه فى كتاب الأدب/باب الشعر (رقم-۳۷۵۸)واحمد فى المسند: ۳۹۰/۴

ډير ښه او مدلل انداز سره بيانولو دَهغه په زړه کښې داخيال پروت وو چه کيدې شي نبي آخرزمان هغه جوړ شي کله چه الله تعالى محمد ﷺ رسول جوړولو سره راوليږلو نو اميه مسلمان خونه شو ليکن دَنبي عليه السلام مخالفت ئې هم اونه کړو په خاموشئ سره ئې داهرڅه کتل ليکن چه کله د جنګ بدر واقعه پيښه شوه اود کافرانو لوئې لوئې سرداران دوزخ ته اورسيدل نو اميه بن ابى صلت دَهغوى په همدردئې کښې اشعار اوونيل اودَ اسلام او دَ اسلامى لښکر مذمت ئې اوکړو دغه شان هغه په کفرباندې مړشو

**د غير مسلم په نصيحت باندې مبنى اشعار اورول او اوريدل جائز دى:**

نبي عليه السلام دَهغه باره کښې اوفرمائيل دَاميه ژبه مسلمانه شوې وه ليکن زړه ئې کفر اوکړو نبى ﷺ دَ اميه بن ابى صلت په حقيقت باندې مبنى اشعارو تعريف کړې دې دې سره امت ته دا تعليم ملاؤ شو چه غيرمسلم سړې که چرې څه ښه اونيک کار اوکړى يا دَ پند اونصيحت شعرونه اووائى يا دَمسلمانانو په حمايت کښې څه خبره اوکړى نودَ هغه دَ ښه کارتعريف کول جائز دى او په نصيحت باندې مبنى اشعار اورول او اوريدل جائز دى

**[۴۷۸۸] درسول الله ﷺ شعرونيل**

| ۴۷۸۸-()[۲] ۱ وَعَنْ جُنْدُبٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ: ۲ «أَنَّ النَّبِيَّ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-كَانَ فِي بَعْضِ الْمَشَاهِدِ وَقَدْ دَمِيَتْ أُصْبُعُهُ ۳ فَقَالَ: "هَلْ أَنْتِ إِلَّا أُصْبُعٌ دَمِيتِ وَفِي سَبِيلِ اللّٰهِ مَا لَقِيتِ» "مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
|---|

**ترجمه:** ۱ او حضرت جندب ﷺ وايي ۲ چې رسول الله ﷺ يو جنګ (يعني غزوه احد کي) شريك وو چې (د معرکه آرائي په دوران کي) د حضور ﷺ ګوته مبارکه زخمي شوه چې د هغه په وجه هغه خون آلوده شوه ۳ نو حضور ﷺ (بطور استعاره يادرحقيقت) ګوتي ته تسلي ورکولو د پاره هغه مخاطب کولو سره دا شعر يي وفرمايه.

**هَلْ أَنْتِ إِلَّا أُصْبُعٌ دَمِيْتِ ــــ وَفِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ مَا لَقِيْتِ**

**ترجمه:** يعنى ته څه يي يوه ګوته يي خون الوده شوي او بيا تاته چې څه شوي دي د الله په لار کې شوي دي.

**حل اللغات:** - ① اَلْمَشَاهِدِ: غزوات او جنګونه،

**تسهيلات:**

**قوله: كَانَ فِي بَعْضِ الْمَشَاهِدِ:**

**د مشاهد نه مراد:** دَمشاهد اطلاق په غزواتو اوجنګونو باندې کيږى.دلته دَبعضې مشاهدنه جنګ احد مراددې.

---

[۱]) اخرجه البخارى فى كتاب الجهاد والسير/باب من ينكب فى سبيل الله (رقم-۲۸۰۲)ومسلم فى كتاب الجهاد والسير/باب ما لقى النبى صلى الله عليه وسلم من أذى المشركين والمنافقين (رقم-۱۱۲ - (۱۷۹۶)) واحمد فى المسند: ۳۱۲/۴

هل أنت إلا إصبع دميت وفي سبيل الله مالقيت

يعنى ته يو داسې په وينو ککړه زخمی ګوته ئی کومې ته چه دَ الله تعالی په لار دَ جهاد کښې تکليف رسيدلې دې

**اشکال**: دَنبي عليه السلام باره کښې دَالله تعالى فرمان دې چه ﴿وَمَا عَلَّمْنٰهُ الشِّعْرَ وَمَا يَنْۢبَغِيْ لَهٗ﴾ سورة يسين: ۶۹ دې نه پس نبي عليه السلام دا شعرڅنګه اووئيل؟

**دَ اشکال درې جوابونه**: ① بعضې علماؤ وئيلى دى چه ﴿وَمَا عَلَّمْنٰهُ الشِّعْرَ﴾ کښې دَ فن شاعرئى نفى ده يو شعر نيم جوړولو اووئيلو سره سړى ته شاعر نه شى وئيلې

② دا شعر دَ عبد الله بن رواحه دې يا دَ وليد بن وليد دې نبي عليه السلام کله کله دَ يو شاعر شعر په توګه دَ مثال او امتثال وئيلې دې په دې سره سړې شاعر نه جوړيږی دَ شاعرئى دَپاره لوئى قواعد اوضوابط پکاروى.

③ په دې کلام کښې قصداً دَ وزن اراده نه ده کړې شوې اودَ شعر دَپاره ضرورى دى چه په دې کښې دَ وزن اراده اوکړې شى لهذا دا يو کلام دې شعر نه دې دا جواب هغه وخت دې کله چه دا اومنلې شى چه دا دَ نبي عليه السلام خپل کلام دې.

**د نبى عليه السلام څخه د طرفه بن العبد په شعر کښې غلطى**: دَمزې خبره داده چه دَ بل شاعر شعر وئيلو کښې به هم کله کله دَنبي عليه السلام نه وزن ماتيدو چنانچه نبي عليه السلام په توګه دَعبرت او مثال دَ طرفه بن العبد شعر وئيلې دې:

ستبدي لك الأيام ما كنت جاهلا ويأتيك من لم تزود بالاخبار

په دې کښې دويم مصرعه وړاندې روستو شوه او وزن مات شو اصل شعر داسې دې ويأتيك بالأخبار من لم تزود. هم دغه وجه ده چه صديق اکبر رضي الله عنه نبي عليه السلام ته شعر اوخودلو او اعتراف ئى اوکړو چه واقعي [وما علمناه الشعر وما ينبغي له] دَ الله تعالى رښتونې کلام دې الله تعالى نبي عليه السلام ته دَ شعر فن نه دى خودلې

### [۴۷۸۹] دَحضرت حسان رضي الله عنه فضيلت او مرتبه

۴۷۸۹-(۱)[-] ① وَعَنِ الْبَرَاءِ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: ② «قَالَ النَّبِيُّ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-يَوْمَ قُرَيْظَةَ لِحَسَّانَ بْنِ ثَابِتٍ: ③ "اهْجُ الْمُشْرِكِينَ، فَإِنَّ جِبْرِيلَ مَعَكَ" ④ وَكَانَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-يَقُولُ لِحَسَّانَ: ⑤ "أَجِبْ عَنِّي، اللّٰهُمَّ أَيِّدْهُ بِرُوحِ الْقُدُسِ"». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: ① او حضرت براء رضي الله عنه وايي ② چې رسول الله ﷺ د قريظه په ورځ حضرت حسان ابن ثابت رضي الله عنه ته وفرمايل ③ چې ته د مشرکينو هجو (بدګويي) وکړه حضرت جبرائيل عليه السلام

(۱) اخرجه البخاري في كتاب بدء الخلق/باب ذكر الملائكة (رقم-۳۲۱۲) ومسلم في كتاب فضائل الصحابة رضى الله تعالى عنهم/باب فضائل حسان بن ثابت رضى الله عنه (رقم-۱۵۳ - (۲۴۸۶)

ستاسره دي يعنی دمضامينو د القاء او الهام په سلسله کي به هغه ستا مدد کوي [۴] او رسول اللهﷺ چې به د کفارو او مشرکينيو هجو او زيدله چې هغوئ د حضورﷺ په شان کي نازيبا (نامناسبه) خبري کوي او حضورﷺ په بدو الفاظو سره يادوي نو حضرت حسان ؓ ته به يي فرمايل [۵] چې ته څما د طرف نه کفارو ته جواب ورکړه او بيابه يي دا فرمايل اي الله! د جبرائيل عليه السلام په ذريعه د حسان مدد وکړي او د هغه ژبي او بيان ته طاقت او قوت ورکړي (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** - ① اهْجُ: بد ونيل، مذمت کول ② أَيِّدْهُ: مدد اوکړي دده.

**تسهيلات:**

**قوله: قَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَوْمَ قُرَيْظَةَ لِحَسَّانَ بْنِ ثَابِتٍ:**

**د يوم قريظه پس منظر:** دې نه دَ بنوقريظه جنګ مراددې په مدينه منوره کښې دَ يهودو درې لوئی قبيلې آبادې وې ① بنوقينقاع ② بنو نضير ③ بنوقريظه دَمکې نه چه نبي عليه السلام هجرت اوکړو نو بنوقينقاع نبي عليه السلام دَ مديني نه اوويستل اوبنونضير او بنوقريظه سره معاهده اوشوه چه دَميثاق مدينه په نوم باندې مشهوره ده بنوقريظه ډير زر بغاوت اوکړو په دې وجه هغوی دَ مديني نه دَ خيبرطرف ته جلاوطن کړې شو دې نه پس چه اهل مکه دَ جنګ خندق په موقع باندې دَ مديني محاصره اوکړه نوبنوقريظه نبي عليه السلام سره کړې شوې وعده ماته کړه اوبغاوت ئی اوکړو دَ جنګ خندق نه چه نبي عليه السلام کله فارغ شو اوغسل ئی کولونو حضرت جبرائيل امين اوفرمائيل چه دَ الله تعالی حکم دې چه په بنوقريظه باندې حمله اوکړئی چنانچه مسلمانانو تقريبًا دَ يوې مياشت پورې دَ بنوقريظه دَ علاقو محاصره اوکړه اوپه آخره کښې ئی دَهغوی ځوانان قتل اودَهغوی ښځې اوبچې غلامان جوړکړل

**قوله: اهْجُ الْمُشْرِكِينَ، فَإِنَّ جِبْرِيلَ مَعَكَ:**

**د يوم القريظه په موقع باندې د مشرکينو هجوه کولو وجه:** دَ جنګ خندق دويم نوم جنګ احزاب دې پنځم هجری کښې دَمکې مشرکانو دَمکې مکرمې دَ اطرافونه ټول قبائل راجمع کړه ۱۲ زره لښکرجرار سره دَمديني منورې دَ لښکر مسلمانانو محاصره کولو سره ئی په هغوی باندې حمله اوکړه تقريبًا دَ يوې مياشتې پورې دامحاصره جاری وه نبي عليه السلام دَ سلمان فارسي ؓ په مشوره باندې خندق اوکنستلو او په دې نيک کارکښې ئی پخپله هم حصه واخستله حضرت حسان ؓ ته نبي عليه السلام هم په دې موقع باندې اوفرمائيل چه مشرکينوپسې شعرونه وايه ځکه چه دَ بنوقريظه دَ بغاوت اصل جرړه مشرکين مکه وو

**قوله** : اللّٰهُمَّ أَيِّدْهُ بِرُوحِ الْقُدُسِ:

**د روح القدس مصداق او وجه تسميه** : يعنى پاك روح دې نه مراد جبرائيل عليه السلام دي ده ته روح څكه ونيلې شي چه ده به انبياء كرامو ته روح اچونكې څيز راوړلو كوم ته چه وحي وائي القدس دپاك په معنى دې يعنى جبرائيل امين دهرقسم عيبونو نه پاك دې د جبرائيل امين د تائيد مطلب دادې چه هغه په القاء د مضامينو كښې دحضرت حسان امداد كوى

**[۴۷۹۰]كافرانوته د بدرد وئيلو حكم**

۴۷۹۰-( )[۸] [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا-«أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-قَالَ: [۲] "اهْجُوا قُرَيْشًا، [۳] فَإِنَّهُ أَشَدُّ عَلَيْهِمْ مِنْ رَشْقِ النَّبْلِ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** : [۱] او د بي بي عائشه رضي الله عنها نه روايت دي [۲] چې رسول الله ﷺ خپلو شعراوو ته فرمايلي وه چې د قريشو د كفارو هجو (بدگويي) كوئ [۳] څكه دا هجو په هغوئ د تير لګيدو نه هم زياته سخته ده. (مسلم)

**حل اللغات** :- ① رَشْق: غشې ويشتل. النَّبْل: غشې

**تسهيلات**:

**قوله** : اهْجُوا قُرَيْشًا، فَإِنَّهُ أَشَدُّ عَلَيْهِمْ مِنْ رَشْقِ النَّبْلِ:

**په جهاد كښې دكافرانود هجو اجازت**:

څكه چې په كافرانود نبى عليه السلام دغه شان د دوى د صحابه كرامو هجو او مذمت په خپلو اشعارو كښې كولو نونبى عليه السلام هم خپلو صحابه كرامو ته دهغوى د هجو كولو اجازت وركړې وو بالخصوص په ميدان جهاد كښې د دې اجازت دائره نوره هم فراخه وه نوځكه نبى عليه السلام په دې حديث كښې صحابؤ ته حكم كوى چې د قريشو هجو او مذمت كوئ څكه چې دا په هغوى باندې د غشى څخه زياته بده لګى

**قوله** : فَإِنَّهُ أَشَدُّ عَلَيْهِمْ مِنْ رَشْقِ النَّبْلِ:

يعنى كافران مادى څيزونوته ترجيح وركوى اوپه روحانى نقصان باندې نه پوهيږى لهذا دهغوى مذمت كولو سره هغوى ته سخت تكليف رسيږى

اودا خپل نقصان ګڼرى لكه چه هغوى په غشى باندې ويشتلې شى

ددې حديث نه معلومه شوه چه ميدان جهاد كښې زبانى توګه باندې كافرانوته بدرد وئيل اوكنځلې كول هم جائز دى داد جهاد حصه ده اود معمول خبره ده

---

( ) اخرجه مسلم فى كتاب فضائل الصحابة رضى الله تعالى عنهم/باب فضائل حسان بن ثابت رضى الله عنه(رقم ۱۵۷ - ۲۴۹۰)

**[۴۷۹] د کافرانو په هجوه کولو حسان رضی الله عنه ته د حضور پاک ﷺ فرمان**

۴۷۹-(¹)[۹] [۱] وَعَنْهَا قَالَتْ: «سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] يَقُولُ لِحَسَّانَ: [۳]" إِنَّ رُوحَ الْقُدُسِ لَا يَزَالُ يُؤَيِّدُكَ مَا نَافَحْتَ عَنِ اللهِ وَرَسُولِهِ» ". [۴] وَقَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ. :[۵]" «هَجَاهُمْ حَسَّانُ فَشَفَى وَاشْتَفَى» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او بي بي عائشه رضي الله عنها وايي [۲] ما د رسول الله ﷺ نه حسان رضي الله عنه ته دا ونيل واوريدل [۳] هر کله چي ته د الله او د هغه د رسول د طرف نه د کفارو مشرکينو د هجو مقابله کوئ نو حضرت جبرائيل عليه السلام برابر ستا مدد او اعانت کوي [۴] بي بي عائشه رضي الله عنها وايي د رسول الله ﷺ نه مي داهم واوريدل [۵] چي حسان رضي الله عنه د کفارو هجو وکړه نو دي هجو سره يي مسلمانانو ته شفاء ورکړله او خپله يي هم شفاء پيدا کړله [يعني هغه د کفارو د هجو جواب سره ورکولو سره مسلمانانو د پاره هم د تسلي او تشفي سامان مهيا کي او خپله يي هم سکون اوطمانيت حاصل کي] (مسلم)

**حل اللغات:** - ① يُؤَيِّدُكَ: ستا مدد او اعانت کوی ② نَافَحْتَ: منافحه او مقابلي او دفاع ته وائی ③ فَشَفَى: دَمسلمانانو زړونه ئي يخ کړل. ④ وَاشْتَفَى: دکفارو په غصه کولو ئې خپلو زړونو ته شفا حاصله کړه. يعنی زړه ئې يخ شو.

**تسهيلات:**

**قوله: إِنَّ رُوحَ الْقُدُسِ لَا يَزَالُ يُؤَيِّدُكَ مَا نَافَحْتَ عَنِ اللهِ وَرَسُولِهِ:**

يعنی ترکومې پورې چه ته دَ الله تعالی اودَ هغه دَ رسول دفاع کوې اودَمشرکانو غلط الزامونو اودَ تهمتونو او اعتراضونو جواب ورکوې جبرائيل آمين به يوشان ستا امداد کنې لګياوی اوستا په زړه باندې به دَ مضامينو القاء کوی

**[۴۸۰] د جهاد په ميدان کې د حضور ﷺ په ژبه مبارکه رجزي کلام**

۴۸۰-(²)[۱۰] [۱] وَعَنِ الْبَرَاءِ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - [۲] «كَانَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَنْقُلُ التُّرَابَ يَوْمَ الْخَنْدَقِ [۳] حَتَّى اغْبَرَّ بَطْنُهُ [۴] يَقُولُ: وَاللهِ لَوْلَا اللهُ مَا اهْتَدَيْنَا وَلَا تَصَدَّقْنَا وَلَا صَلَّيْنَا فَأَنْزِلَنْ سَكِينَةً عَلَيْنَا وَثَبِّتِ الْأَقْدَامَ إِنْ لَاقَيْنَا إِنَّ الْأُلَى قَدْ بَغَوْا عَلَيْنَا إِذَا أَرَادُوا فِتْنَةً أَبَيْنَا [۵] يَرْفَعُ بِهَا صَوْتَهُ: " أَبَيْنَا أَبَيْنَا» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت براء رضي الله عنه وايی [۲] چی رسول الله ﷺ د خندق اوخکلوپه ورځ به خپله بنفس نفيس خاوره پورته کولو سره غورځوله يعنی د غزوه احزاب په موقع چې خندق

---

¹) اخرجه مسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم/باب فضائل حسان بن ثابت رضی الله عنه (رقم۱۵۷ - ۲۴۹۰)

²) اخرجه البخاری فی کتاب المغازی/باب غزوة الخندق وهی الأحزاب (رقم-۴۱۰۴) ومسلم فی کتاب الجهاد والسير/باب غزوة الأحزاب وهی الخندق (رقم-۱۲۵ - (۱۸۰۳) واحمد فی المسند: ۳۰۲/۴

اوخکلي شو نو سرکار دوعالم ﷺ بنفسِ نفیس په ټول کار کې شریك وو صحابه ؤ ﷺ سره به خپله يي هم درانه درانه کاني پورته کول او خاوره پورته کولو سره به يي غورځوله ③تردي چې نس (خيټه) مبارك يي غبار الود شوي وو ④او په دي موقع د حضرت عبد الله ابن رواحه ﷺ رجزيه کلام به يي ونيلو چې هغه دادي

وَاللهِ لَوْلَا اللهُ مَا اهْتَدَيْنَا ***** وَلَا تَصَدَّقْنَا وَلَا صَلَّيْنَا
فَأَنْزِلَنْ سَكِيْنَةً عَلَيْنَا ***** وَثَبِّتِ الْأَقْدَامَ إِنْ لَاقَيْنَا
إِنَّ الْأُوْلَى قَدْ بَغَوْا عَلَيْنَا ***** إِذَا أَرَادُوْا فِتْنَةً أَبَيْنَا

يَرْفَعُ بِهَا صَوْتَهُ أَبَيْنَا أَبَيْنَا. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

وَاللهِ لَوْلَا اللهُ مَا اهْتَدَيْنَا ***** وَلَا تَصَدَّقْنَا وَلَا صَلَّيْنَا

قسم په الله. که دالله هدايت نه واى، نو مونږ سيده لار نه شواى پيداکولى. نه مونږ صدقه ورکولي شوه، او نه به مونږ مونځ کولو شو.

فَأَنْزِلَنْ سَكِيْنَةً عَلَيْنَا ***** وَثَبِّتِ الْأَقْدَامَ إِنْ لَاقَيْنَا

نو اې الله ﷻ په مونږ وقار او اطمنان نازل کړې، او کله چې د دين د دښمنانو سره زمونږ مقابله وی، نو مونږ ثابت قدم لرې

إِنَّ الْأُوْلَى قَدْ بَغَوْا عَلَيْنَا ***** إِذَا أَرَادُوْا فِتْنَةً أَبَيْنَا

بلا شبه دی دمکی کفارو په مونږ زياتوب کړی دی، چې هرکله هغوی مونږ په فتنه کی مبتلا کوي. يعنی دکفر طرف ته واپس دتللو اراده کوی، نومونږ ورنه انکار کوو

⑤نبي عليه السلام دا اشعار په پورته آواز سره ونيل، خصوصاً ابينا ابينا باندی به يی آواز زيات بلند کوی (بخاری، ومسلم)

**حل اللغات:** - ①يَنْقُلُ التُّرَابَ: خاوره ئې چلوله. ②اغْبَرَّ: د خاورو شوه. ③سَكِيْنَةً: اطمينان. ④لَاقَيْنَا: مخامخ شو مونږ (دشمن سره) ⑤الْأُوْلَى: رومبو خلقو يعنی کافرانو. ⑥بَغَوْا: ظلم او زياتې ئې کړې دي ⑦أَبَيْنَا: مونږ ترې انکار اوکړو

**تسهيلات:**

**قوله**: كَانَ رَسُوْلُ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-يَنْقُلُ التُّرَابَ يَوْمَ الْخَنْدَقِ:

**د غزوه خندق وجه تسميه**: دَ يوم خندق نه مراد جنګ احزاب دې دې ته جنګ خندق ځکه وائی چه په دې کښې مسلمانانو دَ مدينې منورې دَ دفاع دپاره دهغې نه ګيرچاپيره خندقونه کنستلي وو. دهجری کښې دَ جنګ احزاب په موقع باندې ۱۲زره کافرانو دَمدينې محاصره کړې وه نبي ﷺ دَ سختې تنګدستئی په حالت کښې دَ خندقونو کنستلو حکم ورکړې وو سخته يخنی وه وخت هم ډير مختصر وو دَ خوراك دپاره هم څه نه ملاويدل صحابه کرام به شپه ورځ دَ کنستلو په کارکښې اختـه وو بعضو په کښې دَ

اولګې د وجې نه په خیټه پورې کاڼړې تړلې وو نبي علیه السلام پخپله هم په کارکښې مشغول وو او په خپله مبارکه خیټه پورې ئې دوه کاڼړې تړلې وو په دوړو باندې د نبي ﷺ مبارك بدن پټ شوې وو اونبي علیه السلام مذکوره اشعار وئیل

**قوله**: إِنَّ الْأُلَى قَدْ بَغَوْا عَلَيْنَا:

دا قصرسره دې أولآء کښې یولغت دې کافرانو طرف ته اشاره ده یعنی دغه کافرانو په مونږ باندې سرکشی کولوسره تجاوز کړې دې اوزمونږ نه دفتنې یعنی شرك مطالبه کوی لیکن مونږ د دوی د مطالبې نه مکمل توګه باندې انکار کوو أبینا الفاظ په اوچت آواز سره نبي علیه السلام بار بار وئیل اوصحابه کرامو به هم دا لفظ په اوچت آواز سره بار بار وئیلو دا د میدان جهاد یوه عظیمه ترانه ده چه د حقائقو اوصحیح عقائد په تعلیم اوپه بهادرئی اوشجاعت باندې مبنی دی

**[۴۷۳] په غزوه خندق کې رجز ویونکو صحابه کرامو ته د حضور ﷺ دعا**

۴۷۳-()[۱] ⓵ وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ⓶: «جَعَلَ الْمُهَاجِرُونَ وَالْأَنْصَارُ يَحْفِرُونَ الْخَنْدَقَ وَيَنْقُلُونَ التُّرَابَ⓷ وَهُمْ يَقُولُونَ: نَحْنُ الَّذِينَ بَايَعُوا مُحَمَّدًا عَلَى الْجِهَادِ مَا بَقِينَا أَبَدًا⓸ يَقُولُ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَهُوَ يُجِيبُهُمْ: "اللَّهُمَّ لَا عَيْشَ إِلَّا عَيْشُ الْآخِرَةْ فَاغْفِرْ لِلْأَنْصَارِ وَالْمُهَاجِرَةْ» "مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

نَحْنُ الَّذِينَ بَايَعُوا مُحَمَّدًا ... عَلَى الْإِسْلَامِ مَا بَقِينَا أَبَدًا

يَقُولُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يُجِيبُهُمْ:

اَللَّهُمَّ لَا عَيْشَ إِلَّا عَيْشُ الْآخِرَةْ ... فَاغْفِرْ لِلْأَنْصَارِ وَالْمُهَاجِرَةْ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: ⓵ او حضرت انس رضی الله عنه وايي ⓶ هرکله چې د غزوه احزاب په موقع مهاجرینو رضی الله عنهم او انصارو رضی الله عنهم خندق (کنده، ډیر لوی جور ډوغل) کنیستي او خاوره پورته کولو سره غورځول شروع کړل ⓷ نو هغوئ به په دې دوران کې دا رجز وایه نَحْنُ الَّذِينَ بَايَعُوا مُحَمَّدًا عَلَى الْجِهَادِ مَا بَقِينَا أَبَدًا مونږ هغه خلق یو چې هغوئ د ژوند آخري ساه پورې جهاد کولو د پاره د محمد ﷺ په لاس بیعت کړي دي، ⓸ او رسول الله ﷺ به د هغوئ د دې رجز په جواب کې دا دعا فرمايله. اې الله ژوند خو بس د آخرت ژوند دې ته انصار او مهاجرین وبخښي (بخاري. مسلم)

**حل اللغات**:- ⓵ يَحْفِرُونَ: کنستلو ئې. ⓶ عَيْشَ: ژوند. زندګی

**تسهیلات:**

**قوله**: اَللَّهُمَّ لَا عَيْشَ إِلَّا عَيْشُ الْآخِرَةْ:

[۱] اخرجه البخاري فی کتاب الجهاد والسير /باب حفر الخندق (رقم-۲۸۳۵) ومسلم فی کتاب الجهاد والسير /باب غزوة الأحزاب وهی الخندق (رقم-۱۳۰ - (۱۸۰۵) واحمد فی المسند: ۱۷۲/۳

**د نبی علیه السلام صحابه کرامو ته تسلی ورکول:** په دي الفاظو سره صحابه کرامو ته تسلي ورکول مقصود دي چه تاسو له پکار دی چه په دي موقع محنت او مشقت برداشت کړئ او په تاسو چه کوم سخت حالات راغلي دی په هغي صبر اوکړئ نو الله تعالي به تاسو ته د دي په بدله کښې نه ختميدونکی انعامات درکړی **كقوله تعالى** [وَاَنَّ الْاٰخِرَةَ هِيَ دَارُ الْقَرَارِ]، [وَالْاٰخِرَةُ خَيْرٌ وَّاَبْقٰى]، [وَالْاٰخِرَةُ خَيْرٌ لِّمَنِ اتَّقٰى] داسي نور ډير آياتونه په دي دلالت کوی

**قوله: فَاغْفِرْ لِلْأَنْصَارِ وَالْمُهَاجِرَةْ:**

**د جهاد په ميدان کښې د مغفرت دعا کول:** دَدې حديث نه معلوميږی چه ميدان جهاد او ميدانِ جنګ په جهادی نظمونو سره ګرمول دَ جهاد حصه هم ده او دَ رسول الملاحم ﷺ مسنون طريقه هم ده.

**[۴۷۴] هروخت په شعر وشاعرئ کي د مشغول اوسيدو او د غلط شعرونو مذمت**

۴۷۴-()[۱۲] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] " لَأَنْ يَمْتَلِئَ جَوْفُ رَجُلٍ قَيْحًا يَرِيهِ [۳] خَيْرٌ مِنْ أَنْ يَمْتَلِئَ شِعْرًا» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چي رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] يادلرئ د يو سړي نس (خيټه) د نو (پيپ) نه ډكيدل چې د هغه نس خراب کړي [۳] د دې نه ښه دي چې نس د مذموم اشعارو نه ډك کړي. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** - ① يَمْتَلِئَ: ډک شی، ② جَوْفُ: خيټه، ③ قَيْحًا: پيپ، نو. ④ يَرِيهِ: وری يری وريا وعد يعد وعدًا په شان دې داهغه بيمارئ ته وائی په کوم سره چه خيټه فاسد اوبرباد شی.

**تسهيلات:**

**قوله: لَأَنْ يَمْتَلِئَ جَوْفُ رَجُلٍ قَيْحًا يَرِيهِ:**

**د لفظ يريه تحقيق او د حديث مطلب:** دا دَ قيح صفت دې او قيح نه وينه او نونه مراد دی مطلب دا چه دَ يو سړی خيټه دَ وينې او نوونونه ډکه شی او خيټه ئی بالکل خرابه کړی دا دَ هغي نه بهتر ده چه هغه خيټه دَ ګنده او پليتو او غليظ شعرونونه ډکه شی په دې حديث کښې دَمذموم اشعارو مذمت دې او په دې کښې اشاره ده چه هغه ګنده اشعار دَ دغه سړی په زړه باندې داسې احاطه اوکړی چه په زړه کښې دَ ذکر الله تلاوت قرآن او علوم شرعيه دَپاره هيڅ ځائی پاتې نه شی ښکاره خبره ده چه دا صورت حال په ګنده اشعارو سره نه بلکه دَ خو اشعارو دَ وجې نه هم جائز نه دی

[۱]) اخرجه البخاري في كتاب الأدب/باب ما يكره أن يكون الغالب على الإنسان الشعر، حتى يصده عن ذكر الله والعلم والقرآن (رقم-۶۱۵۵) ومسلم في كتاب الشعر (رقم-۷ - (۲۲۵۷) وابوداود في كتاب الأدب/باب ما جاء في الشعر(رقم-۵۰۰۹)والترمذي في كتاب الأدب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء لأن يمتلئ جوف أحدكم قيحًا خيرٌ له من أن يمتلئ شعراً (رقم-۲۸۵۱) كتاب الأدب/باب ما كره من الشعر (رقم-۳۷۵۹) واحمد في المسند:۱/۱۷۵

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۴۷۹۵] جهادی شعرونه ویل د جهاد باللسان اهمیت لری**

۴۷۹۵-()[۱۳] [۱] «عَنْ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- [۲] أَنَّهُ قَالَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۳] "إِنَّ اللَّهَ تَعَالَى قَدْ أَنْزَلَ فِي الشِّعْرِ مَا أَنْزَلَ، [۴] فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۵] "إِنَّ الْمُؤْمِنَ يُجَاهِدُ بِسَيْفِهِ وَلِسَانِهِ، [۶] وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَكَأَنَّمَا تَرْمُونَهُمْ بِهِ نَضْحَ النَّبْلِ». [۷] رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ. وَفِي "الِاسْتِيعَابِ" لِابْنِ عَبْدِ الْبَرِّ: «أَنَّهُ قَالَ [۸]: يَا رَسُولَ اللَّهِ! مَاذَا تَرَى فِي الشِّعْرِ [۹] فَقَالَ: "إِنَّ الْمُؤْمِنَ يُجَاهِدُ بِسَيْفِهِ وَلِسَانِهِ».

**ترجمه:** [۱] د حضرت کعب ابن مالک رضی الله عنه نه روایت دي [۲] چې یوه ورځ هغه رسول الله ﷺ ته عرض وکړو [۳] خدای تعالیٰ چې د شعر وشاعري په حق کې کوم حکم کړي دي هغه د دې آیت نه ښکاره دي کوم چې هغه نازل کړي دي [۴] رسول الله ﷺ د هغه د دې خبري په جواب کې وفرمایل [۵] حقیقت دادي چې مؤمن خپلي توري سره هم جهاد کوئ او خپلي ژبې سره هم [۶] قسم دي په هغه ذات چې د هغه قبضه کې ځما ساه ده تاسو کافرو ته د اشعارو په ذریعه هغه نقصان رسوئ څرنګه چې د تیرونو په ذریعه وي [۷] «شرح السنه» او د ابن عبدالبر رحمه الله کتاب په استیعاب کې داسې دي [۸] چې حضرت کعب رضی الله عنه عرض وکړو یارسول الله! د شعرو شاعري متعلق تاسو څه حکم فرمایي داڅه ښه شي دي یاخراب [۹] حضور ﷺ وفرمایل مؤمن په خپلي توري سره هم جهاد کوي او په خپلي ژبې سره هم

**حل اللغات:** -① تَرْمُونَهُمْ: چه تاسو اولئ هغوی، ② نَضْحَ: اوبه شیندل، «دلته تري غشي وروّل مراد دی» ③ النَّبْلِ: غشی.

**تسهیلات:**

**قوله: إِنَّ اللَّهَ تَعَالَى قَدْ أَنْزَلَ فِي الشِّعْرِ مَا أَنْزَلَ:**

**د ښه اشعارو وئیلو ستائنه:** دَ قرآن آیت ﴿وَالشُّعَرَاءُ يَتَّبِعُهُمُ الْغَاوُونَ﴾ طرف ته اشاره ده حضرت کعب رضی الله عنه دَدې نه اوویریدلو چه چرته ګمراه خلقو کښې دې شامل نه شی په دې وجه ئې سوال اوکړو نبي علیه السلام په جواب کښې اوفرمائیل چه هغه په دې کښې داخل نه دې ځکه چه دَ ګمراهو په کندو کښې ورکید ونکی کافران دی مسلمانان نه دی ددین بلکه دین حق دَ دفاع دَپاره اشعار وئیل خودَ مسلمانانو دَپاره دَ جهاد باللسان په حکم کښې دې ځکه چه په دې سره کافران سوزیږی ځکه چه دَژبې زخم دَ غشی دَزخم نه سخت وی.

[1] اخرج البغوی فی شرح السن رقم الحديث ۳۴۰۹- احمد فی السند: ۴۵۶/۳

جراحات السنان لها التیام　　　ولا یلتام ما جرح اللسان

**قوله**: لَكَأَنَّمَا تَرْمُونَهُمْ بِهِ نَضْحَ النَّبْلِ:

**د اسلام په دفاع کښې د اشعارو تشبیه د غشو سره**: نضح او به چنړکاؤ کولو ته وائی او نبل غشی ته وائی مطلب دا چه د کافرانو په مذمت کښې ستاسو شعرونه په هغوی باندې داسې سخت لګی لکه چه په هغوی باندې غشی ورولې شی او هغوی په دې سره زخمی کیږی

**قوله**: إِنَّ الْمُؤْمِنَ يُجَاهِدُ بِسَيْفِهِ وَلِسَانِهِ:

**دجهاد باللسان مصداقات**: ① په توره سره جهاد کول خو معلوم او معروف دی او دلته د جهاد نه مراد جهادی نظمونه دی شعرونه او ترانې دی په کوم سره چه جهد ته فائده رسیږی

② جهاد باللسان هغه وعظ او تقریر ته هم شامل دې په کوم کښې چه د جهد ترغیب وی

③ د جهاد په موضوع باندې څه تالیف او تصنیف وی په کوم سره چه د جهاد فائده وی دا ټول په جهاد باللسان کښې داخل دی.

**[۴۷۹] ژبه قابو کښې ساتل او حیاء دواړه د ایمان دوه څانګې دي**

۴۷۹-()[۱۳] ① وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ② "«الْحَيَاءُ وَالْعِيُّ شُعْبَتَانِ مِنَ الْإِيمَانِ» ③ «وَالْبَذَاءُ وَالْبَيَانُ شُعْبَتَانِ مِنَ النِّفَاقِ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه**: ① او حضرت ابوامامه رضی الله عنه د رسول الله ﷺ نه نقل کوي چې حضور ﷺ وفرمایل ② شرم وحیاء او ژبه کنټرول کې ساتل د ایمان دوه څانګې دي ③ او فحش ګویي او لاحاصل بکواس د نفاق دوه څانګې دي (ترمذي)

**حل اللغات**: - ① الْحَيَاءُ: شرم. ② الْعِيُّ: ستړی کیدل او عاجز کیدل، دلته تري په خبرو کښې احتیاط او کمې خبرې کول مراد دی. ③ الْبَذَاءُ: بې حیائی. خرابې او فحش خبرې. ④ الْبَيَانُ: ډیرې خبرې. بې احتیاطۍ سره خبرې کول

**تسهیلات**:

**قوله**: الْحَيَاءُ وَالْعِيُّ شُعْبَتَانِ مِنَ الْإِيمَانِ:

**په خبرو کښې احتیاط کول**: دلته په حدیث کښې کمې خبرې کول او په خبرو کښې مکمل احتیاط کول مراد دی لکه څنګه مقوله ده «لسان العاقل في قلبه وقلب الجاهل فی لسانه» یعنی هوښیار سړې چې په ژبه باندې کومه خبره کوی نو اول پرې په زړه کښې سوچ وکړی دا کومه خبره زه د خولې څخه راوباسم د دې نتیجه بنه ده که خرابه که بنه وی نو وې

---

[1]) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی العی (رقم ۲۰۲۷) واحمد فی المسند: ۲۶۹/۵

کړي او که خرابه وي نو خاموشي اختیار کړي او ودې په خلاف د جاهل سړي به زړه کښې چې څه راځي په خلې باندې ئې کوي د هغې په نتیجه باندې سوچ او فکر نه کوي

**دګناهونو څخه په منع کولو کښې د حیاء کردار**: چونکه مسلمان د هغه ایمان د حیاء په کارونو باندې راوچنوي نو هغه د بې حیایئ د ټولو شعبونه ځان ساتي او دغه شان ایمان هغه د کثرت کلام نه رامنع کوي دې د پاره چه د خلې نه ئې غلطه خبره او نه ځي یه دې وجه حیاء او قلت کلام یعنې کمې خبرې د ایمان دوه شعبې ګرځولې شوې دي

**قوله**: وَالْبَذَاءُ وَالْبَيَانُ شُعْبَتَانِ مِنَ النِّفَاقِ:

**فحش اوزیاتې خبرې د نفاق شبعې**: والبیان یعنې کثرت کلام. بې احتیاطي دروغ او بهتان تړل او بې ځایه دَ ژبې تیزوالې او دحدنه زیات متکلفانه فصاحت او بلاغت دا ټولې دَ نفاق شعبې دي

**[۴۷۹۷] بې احتیاطئ او تکبر سره دَ خبرو کولو مذمت**

۴۷۹۷-(۱)[۱۵] ۱ وَعَنْ أَبِي ثَعْلَبَةَ الْخُشَنِيِّ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ۲ " إِنَّ أَحَبَّكُمْ إِلَيَّ وَأَقْرَبَكُمْ مِنِّي يَوْمَ الْقِيَامَةِ، ۳ أَحَاسِنُكُمْ أَخْلَاقًا، ۴ وَإِنَّ أَبْغَضَكُمْ إِلَيَّ وَأَبْعَدَكُمْ مِنِّي ۵ مَسَاوِيكُمْ أَخْلَاقًا، ۶ الثَّرْثَارُونَ، الْمُتَشَدِّقُونَ، الْمُتَفَيْهِقُونَ». رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ".

**ترجمه**: ۱ او حضرت ابو ثعلبه خشني ﷛ وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ۲ د قیامت په ورځ به ماته د ټولو نه زیات عزیز ومحبوب او ماته زیات نزدې هغه خلق وي ۳ کوم چې په تاسو کې زیات خوش اخلاقه وي ۴ او ځما په نزد په تاسو کې د ټولو نه خراب او زمانه د ټولو نه زیات لرې به هغه خلق وي ۵ کوم چې په تاسو کې بد اخلاقه دي ۶ او د بد اخلاقو نه مراد هغه خلق دي چې ① ډیر جوړولو جوړولو سره خبرې کوي ② بغیر احتیاط بک بک کوي ③ او تکبر سره خبرې کونکی. دا روایت بیهقي ﷫ په شعب الایمان کې نقل کړي دي

**حل اللغات**: - ① الثَّرْثَارُونَ: په تکلف سره خبرې کول. فضول خبرې کول. ② الْمُتَشَدِّقُونَ: په وازه خله خبرې کول یعنی بې احتیاطئ سره دروغ او مسخرې کول ③ الْمُتَفَيْهِقُونَ: په قینج قینج سره خبرې کول. فصیح او بلیغ جملې جوړول په غرور او تکبر سره خبرې کول

۴۷۹۸-(۲) ۱ وَرَوَى التِّرْمِذِيُّ نَحْوَهُ عَنْ جَابِرٍ، وَفِي رِوَايَتِهِ ۲ «قَالُوا: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! قَدْ عَلِمْنَا الثَّرْثَارُونَ وَالْمُتَشَدِّقُونَ، فَمَا الْمُتَفَيْهِقُونَ؟ ۳ قَالَ: "الْمُتَكَبِّرُونَ"».

---

[۱] اخرجه احمد فی المسند: ۱۹۳/۴

[۲] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ماجاء فی معالی الأخلاق (رقم۲۰۱۸)

**ترجمه** : [۱]او ترمذي رحمه الله هم د حضرت جابر رضی الله عنه نه دغه شان روایت نقل کړي دي او د ترمذي رحمه الله په یوروایت کې داسې دي [۲]چې صحابه وو دا ارشاد اوریدو سره عرض وکړو چې یارسول الله د ثرثارون او متشدقون معنی خو مونږ ته معلومې دي د متفیهقین نه څه مراد دی؟ یعنی متفیهق چانه وایي [۳]حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل تکبر کونکي ته وایي

**تسهیلات**:

**قوله** قَدْعَلِمْنَا الثَّرْثَارُونَ:

**دثرثارون معنی**:ثرثره په لغت کښې زیاتوخبرو اودخبرو بار بار تکرار ته وائي اوثرثار دغه چا ته وائي چې په تکلف اوتصنع سره زیاتې خبرې کوی زیاتې خبرې په دې وجه د شریعت په نظر کښې ښه خبره نه ده ځکه چې څوک زیاتې خبرې کوی نو ګناهونه به ئې زیات وی لکه په یوحدیث مبارک کښې چې راخی چې جهنم ته به زیات خلق دخپلو ژبو دلاسه ځی.

وَالْمُتَشَدِّقُونَ:

**د متشدقون څلور معانی**: ① غیر محتاط کلام کولو والا،

② چه مخ واړی او خلقو پسې ټوقې کوی،

③ یا په وازه خُله فحش کلامې او اشعار ویونکي،

④ یا پیغې او نقل کونکي

**قوله**: فَمَا الْمُتَفَيْهِقُونَ؟:

**د متفیهقون څخه مراد**: خپله لوئی اوعظمت خلقو ته دَخودلو په غرض سره فصیح اوبلیغ تیزې جملې جوړول دې دَپاره چه خلق دَهغه په رعب کښې راشی داټول کارونه دَ کبرژنو خلقو دی لهذا په حدیث کښې دَ دې لفظ تفسیر پخپله نبي علیه السلام ارشاد فرمائیلې دې "قال المتکبرون"یعنی "متفیهقون"نه متکبرین مراد دی

**[۱۱-۳]بې ځایه تعریفونه کولوسره پیسه ګټل اوپیشه کرځول د قیامت علامه ده**

۴۷۹۹-( )[۱۱] [۱]وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللَّهِ [۲] "لَا تَقُومُ السَّاعَةُ [۳]حَتَّى يَخْرُجَ قَوْمٌ- يَأْكُلُونَ بِأَلْسِنَتِهِمْ [۴]كَمَا تَأْكُلُ الْبَقَرَةُ بِأَلْسِنَتِهَا». رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه**: [۱]او حضرت سعد ابن ابي وقاص رضی الله عنه وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل [۲]قیامت به ترهغه پورې نه قائمیږي [۳]ترڅو پورې چې یو داسې جماعت پیدا نشي چې د خپلو ژبو

( ) اخرجه احمد في المسند:۱/۱۸٤

په ذريعه به داسې خوري [۴] لکه څرنګه چې غوايي په خپلو ژبو سره خوري (احمد)

**حل اللغات:** - ① أَلْسِنَتِهِمْ: دلسان جمع ده ژبه مراد ده

**تسهيلات:**

**قوله:** لَاتَقُوْمُ السَّاعَةُ حَتّٰى يَخْرُجَ قَوْمٌ- يَأْكُلُوْنَ بِأَلْسِنَتِهِمْ:

**د ياکلون بالسنتهم مطلب:** مطلب دادې چه داخلق به ژبه د خوراك څنباك ذريعه جوړوی اوهغه داسې چه د فاسقانو فاجرانو به بې ځايه مدح اوتعريف کوی دهغوی په تعريف کنبې به شعرونه او قصيدې وائی او ژبه تاوولو راتاوولو سره به دهغوی تعريفونه کوی اوپه دې سره به پيسه ګټی او خوری به ئې يا به د يوبې ګناه مذمت کوی اوپيسه ګټلو سره به ئې خوری داخلق د حلالو اوحرامو فرق نه کولو د وچې نه به دهغه څناور او غوا په شان وی چه د خپلې ژبې په ذريعه سره هرقسم اوچ لامده بنه اوخراب وابنه راغونډولو سره جمع کوی اوبياد څه فرق کولونه بغيرئی خوری دې نه غلط قسم خطيبان او شاعران مراد دی چه دحق اوباطل حرام اوحلال فرق نه کوی دې پسې راروان حديث تشريح هم دغه شان ده.

**[۴۸۰۰] دالله تعالی بې ځايه مبالغه کونکی لره ناخوښه ګڼل**

> [۴۸۰۰] () [۱۷] [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ قَالَ [۲] إِنَّ اللهَ يُبْغِضُ الْبَلِيْغَ [۳] مِنَ الرِّجَالِ الَّذِيْ يَتَخَلَّلُ بِلِسَانِهٖ كَمَا يَتَخَلَّلُ الْبَاقِرَةُ بِلِسَانِهَا. [۴] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُوْ دَاوُدَ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت عبد الله ابن عمر رضي الله عنه نه روايت دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د خداي تعالیٰ په نزد هغه سړي سخت ناخوښه دي چې په کلام او په بيان کې د حد نه زيات د فصاحت او بلاغت مظاهره کوي په دي طور [۳] چې هغوئ خپله ژبه داسې تاوولو سره خبري کوي څرنګه چې غوايي خپله چاره رانغاړلو سره په تيزی تيزی د خپلي ژبي په ذريعه خوراک کوي [۴] دا روايت ترمذي او ابوداود نقل کړي دي او ترمذي رحمه الله ويلي دي چې دا حديث غريب دي

**حل اللغات:** - ① يُبْغِضُ: ناخوښه دي، ② الْبَلِيْغَ: په خبرو کنبې بې ځايه مبالغه کونکې. ③ يَتَخَلَّلُ: اي يلف الكلام بلسانه كما تلف البقرة بلسانها العلف "يعنی ژبه تاوولو راتاوولو سره کلام کونکې داسې دې لکه چه غوا وابنه راتاووی او خوری ئی ④ الْبَاقِرَةُ: دا دې مفرد بقرة دې جماعت د بقرو مراد دې

[1]) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب/باب ما جاء فی المتشدق فی الكلام (رقم-۵۰۰۵) والترمذی فی کتاب الأدب عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی الفصاحة والبيان (رقم-۲۸۵۳) واحمد فی المسند:۱۸۷/۲

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّ اللّٰهَ يُبْغِضُ الْبَلِيغَ مِنَ الرِّجَالِ:

**د بليغ څخه مراد:** بلاغت او فصاحت كښې تكلف سره بې ځايه مبالغه كونكې مراد دې چه خله ارتولو سره اوژبه تاوولو سره دَحق اوباطل په مينځ كښې دَ فرق كولو نه بغير كلام كوى اودَشرعى حدنه تجاوز كوى په شرعى حدودو كښې كلام كولو كښې هيڅ قباحت

**[۴۸۰۱] دَبې عمله خطيبانو او واعظانو عذاب**

۴۸۰۱-(۱) [۱۸] ١ وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ٢ "مَرَرْتُ لَيْلَةَ أُسْرِيَ بِي بِقَوْمٍ ٣ تُقْرَضُ شِفَاهُهُمْ بِمَقَارِيضَ مِنَ النَّارِ، ٤ فَقُلْتُ: يَا جِبْرِيلُ! مَنْ هٰؤُلَاءِ؟ ٥ قَالَ: هٰؤُلَاءِ خُطَبَاءُ أُمَّتِكَ الَّذِينَ يَقُولُونَ مَا لَا يَفْعَلُونَ». ٦ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ١ او حضرت انس رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ د معراج په شپه زه په داسې خلقو تير شوم ٣ چې د هغوئ ژبې د اور په قينچيانو سره پريكيدلې ٤ په دې ليدو سره ما د جبرائيل عليه السلام نه پوښتنه وكړه چې داكوم خلق دي؟ ٥ جبرائيل عليه السلام اوويل دا ستا د امت هغه واعظان او خطيبان دي چې داسې خبرې يې كولو چې په خپله به يې عمل نه باندې كاوي ٦ ترمذي دا روايت نقل كړي دي او ويلي يې دي چې دا حديث غريب دي (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① أُسْرِيَ: چه بوتلې شوم. (په شپه دمعراج). ② تُقْرَضُ: پريكولې شوې. ③ شِفَاهُهُمْ: شونډې دهغوى. ④ مَقَارِيضَ: د مقراض جمع ده قينچى

**تسهيلات:**

**قوله:** مَرَرْتُ لَيْلَةَ أُسْرِيَ بِي بِقَوْمٍ تُقْرَضُ شِفَاهُهُمْ بِمَقَارِيضَ مِنَ النَّارِ:

**دبې عمله واعظ سزا:** دادَ قرض نه دې دَ پرې كولو په معنى دې مطلب دا چه كوم خطيبان په ژبه سره څه وائى اوعمل دهغې خلاف كوى اودَ شريعت دَحدودو خيال نه ساتى دمعراج په شپه دغه خلق نبي عليه السلام ته اوخودلې شو چه دَهغوى شونډې دَ سزا په توګه په قينچيانو باندې پرې كولې شوې ځكه چه دَهغوى باطن دَهغوى دَ ظاهر نه مخالف وو

**[۴۸۰۲] په خوشامندئ سره دژبې چلولو سزا**

۴۸۰۲-(۲) [۱۹] ١ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ٢ "مَنْ تَعَلَّمَ صَرْفَ الْكَلَامِ ٣ لِيَسْبِيَ بِهِ قُلُوبَ الرِّجَالِ أَوِ النَّاسِ، ٤ لَمْ يَقْبَلِ اللّٰهُ مِنْهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ صَرْفًا وَلَا عَدْلًا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

---

(۱) اخرجه احمد فى المسند: ۳/۱۸۰

(۲) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الأدب /باب ما جاء فى المتشدق فى الكلام (رقم-۵۰۰۶)

**ترجمه :** [۱] او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] کوم سړي چې د دې مقصد د پاره ژبه تاوولو سره د خبرې کولو طريقه زده کوي [۳] چې په هغه د سړو يا خلقو په زړونو قبضه حاصل کړي [۴] نو خداي ﷻ به د قيامت په ورځ نه د هغه نفل عبادت قبول کړي او نه فرض (ابوداؤد)

**حل اللغات :** - ① صَرْفَ الكَلَامِ: خبره تاوول راتاوول. ② لِيَسْبِيَ: دَ ضرب يضرب نه دې قيد کولو ته وائي ③ صَرْفًا: نفل عبادت، توبه کول، ④ عَدْلًا: فرض عبادت، فديه ورکول

**تسهيلات:**

**قوله : مَنْ تَعَلَّمَ صَرْفَ الْكَلَامِ:**

**د صرف الكلام مفهوم:** په حديث مبارک کښې د قيامت علاماتو کښې د يو علامت تذکره ده چه خلق به خپلې ژبې صرف او صرف د خوراکونو د پاره استعمالوي. يعنې د چا بې خايه تعريف يا د بغض و حسد په وجه د چا دروغ مذمت بيانول او په خپل تحرير و تقرير کښې د زبان داني او د فصاحت و بلاغت مظاهره کول دي د پاره چه خلق د فريب په جال کښې راګير کړم.

**قوله : لِيَسْبِيَ بِهِ قُلُوبَ الرِّجَالِ أَوِالنَّاسِ:**

**دخپل باطل غرض دپاره دخلقود زړونومتاثر کول :** د دې جملې مطلب دا دې چه دَ خلقو زړونه دَژبې په زور او مبالغه کولو سره خپل طرف ته مائل کوي. حقيقت پټولو سره دَ ضرورت نه زيات دَ فصاحت اودَ بلاغت مظاهره کوي دې دَپاره چه خلق دَ ده طرف ته متوجه شي اودا سړې خپل مطلب اوويستلې شي.

**قوله : لَمْ يَقْبَلِ اللّٰهُ مِنْهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ صَرْفًا وَلَا عَدْلًا:**

**دصرف اوعدل مفهوم :** بعضې علماؤ دَ صرف نه توبه کول مراد اخستې دي اودَعدل نه فديه ورکول مراد اخستې دي. مطلب دا چه دَ داسې سړي عبادت به نه قبليږي په دې حديث دَ خلې تيزوالي مبالغه کولو اودَ ژبې دَ غوړوالی سخت مذمت کړې شوې دې.

**[۴۸۰۳] په تقرير کې اعتدال کول غوره دي**

۴۸۰۳- (¹)[۲۰] [۱] «وَعَنْ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - [۲] أَنَّهُ قَالَ يَوْمًا وَقَامَ رَجُلٌ فَأَكْثَرَ الْقَوْلَ، [۳] فَقَالَ عَمْرٌو: لَوْ قَصَدَ فِي قَوْلِهِ لَكَانَ خَيْرًا لَهُ، [۴] سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: "لَقَدْ رَأَيْتُ - أَوْ أُمِرْتُ - أَنْ أَتَجَوَّزَ فِي الْقَوْلِ، [۵] فَإِنَّ الْجَوَازَ هُوَ خَيْرٌ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه :** [۱] او د حضرت عمرو ابن العاص ﷺ نه روايت دي [۲] چې يوه ورځ هغوئ هغه وخت وفرمايل کله چې يو سړي وعظ کولو يا خطبه ورکولو د پاره ودريدلو او د خپل

(¹) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأدب /باب ما جاء في المتشدق في الكلام(رقم-۵۰۰۸)

فصاحت او بلاغت د اظهار د پاره ډير اوږود تقرير يي وکړو تردي چې اوريدونکي تنګ شوه [۳] نو هغه وخت حضرت عمرو رضي الله عنه هغه سړي ته وفرمايل که تا په خپل تقرير کې د اعتدال او ميانه روي نه کار اخستي وې يعنی مختصر تقرير دي کړي وای نو بيشکه هغه تقرير به د اوريدونکو په حق کې ډير ښه وو [۴] ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلي دي چې زه پوهه شوی يم يا دايي وفرمايل چې ماته حکم راکول شوي دي چې زه په تقرير کې د اختصار نه کار اخلم [۵] حقيقت دادي چې مختصر تقرير ښه وي (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - (۱) أَتَجَوَّزَ: چه د اختصار نه کار واخلم.

**تسهيلات:**

**قوله: فَقَالَ عَمْرٌو: لَوْ قَصَدَ فِي قَوْلِهِ لَكَانَ خَيْرًا لَهُ:**

**حضرت عمرو رضی الله عنه د واعظ په تقرير باندې تبصره:** يعنی حضرت عمروبن العاص رضي الله عنه دَ دغه واعظ په تقرير باندې تبصره کولو سره اوفرمائيل چه که دې سړی خپل تقرير مختصر کړې وې نو ښه به وه ځکه چه تقرير معتدل کيدو سره دکمی زياتی نه محفوظ پاتې کيږی او په اوريدونکې به دَدې بوج نه پريوتلو بلکه ښه اثر به کيدو. په دې روايت کښې فقال عمرو دَ اعادهٔ بعدَ عهد په توګه مکرر راوړلې شوې دې. چونکه کلام طويل شو په دې وجه اعاده او مکرر راوړل ضروری شوی وو.

**قوله: أَتَجَوَّزَ:**

**په کلام کښې د اختصار استحسان:** مطلب داچه ماته حکم دې چه زه دکلام په بيان کښې دَاختصار نه کارواخلم ځکه چه په دې کښې خيردې.

ملاعلی قاری رحمه الله په حواله دَ جامع صغيريو حديث نقل کړې دې دکوم الفاظ چه دادی.

«لقد أمرت أن أتجوز في القول فأن الجواز في القول هو خير»

**[۴۸۰۳] بعضې تقرير پشان د جادو اثر کوی خو بعضې علم جهالت وی**

۴۸۰۳-(۱)[۲۱] [۱] وَعَنْ صَخْرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: [۲] "«إِنَّ مِنَ الْبَيَانِ سِحْرًا، [۳] وَإِنَّ مِنَ الْعِلْمِ جَهْلًا، [۴] وَإِنَّ مِنَ الشِّعْرِ حُكْمًا، [۵] وَإِنَّ مِنَ الْقَوْلِ عِيَالًا»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت صخر ابن عبد الله ابن بريده رضي الله عنه خپل پلار (حضرت عبد الله) نه او هغه د صخر د نيکه (دادا) حضرت بريده رضي الله عنه نه نقل کوي هغه اوويل ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلي دي [۲] چې بعضې بيان د جادو په شان وي [۳] بعضې علم جهالت وي [۴] بعضې

(۱) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأدب/باب ما جاء في الشعر(رقم-۵۰۱۲)

اشعار فائده مند يعنى د حكمت او د دانايي نه ډك وي ۵ او بعضې قول وكلام د ځان دپاره مصيبت وي (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① سِحْرًا: جادو. ② حُكْمًا: حكمت. دانائى. ③ عِيَالًا: بوج. وبال

**تسهيلات:**

**قوله: وَإِنَّ مِنَ الْعِلْمِ جَهْلًا:**

**د ان من العلم جهلا دوه مطالب:** دَدې جملې يو مطلب دادې چه فرض كړه يو سړى بې فائدې علم حاصل كړو مثلاً هغه علم نجوم اوعلم رمل اوجفر زده كړو يا دَ منطق او فلسفې اوږده بحثونه ئى زده كړل يا دَ جديد تعليم وساوس او فضولياتو كښې لګيا شو په كوم كښې چه نه دَهغه څه فائده شته اونه دَامت څه فائده ده بلكه دَ دغه فضولياتو په زده كړه سره دغه كس دَ قرآن اوحديث او شرعى علوم دَ زده كولونه محروم پاتې شو اوكوم څه ئى چه حاصل كړل هغه دا علم ګڼړى حالانكه دغه خو جهالت دې ځكه چه هغه دَ خدائى او رسول ﷺ نه لرې كوى. باباسعدى رحمه الله څه ښه فرمائيلى.

سعدی بشوئے لوح دل از نقش غیر حق　　علمے کہ رہ حق نہ نماید جہالت است

يعنى اې سعدى دَخپل زړه سختى دَ الله تعالى دَ نوم نه علاوه دَ بل هرڅه نه اووينځه ځكه چه كوم علم دَ حق طرف ته لار خودنه نه كوى هغه جهالت دې. دَدې جملې دويم مطلب دادې چه علم حاصلونكې كله په خپل علم باندې عمل نه كوى نوهغه علم دَ ده دَپاره جهالت دې ځكه چه دَعلم اصل مقصد خو عمل دې كله چه دې په خپل علم باندې پخپله عمل نه كوى نولكه چه هغه جاهل دې.

د دې نه علاوه د دې حديث دا مطلب هم كيدې شى چه كوم سړي د علم دعوي كوى او د خپل ګمان مطابق ځان عالم ګڼړى ليكن په حقيقت كښې هغه عالم نه وى نو د ده دا علم چه د كوم هغه دعوي كړي ده علم نه دې بلكه خالص جهالت او نادانى ده

**قوله: وَإِنَّ مِنَ الْقَوْلِ عِيَالًا:**

عيال دَعين زير سره دې. مطلب دا چه بعضې خبره داسې وى چه اوريدونكې هغه نه خوښوى اونه هغه اوريدل غواړى يا هغه خبره بې موقعې وى نوداسې خبره كول دَ كونكى دَپاره بوج او وبال جان ثابتيږى. يا هغه خبره كوونكې او اوريدونكې دَ دواړو دَ پوهې نه اوچته وى نودَ دواړو دَپاره وبال جان جوړيږى. يا وخت تنګ دې او كلام اوږد شو داهم دَ بوج سبب دې. دَدې حديث مخكښې جمله باندې دَدې نه مخكښې كلام شوې دې.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۴۸۰۵] دَحضرت حسان رضي الله عنه فضیلت

۴۸۰۵ -() [۲۲] [۱] عَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا - قَالَتْ[۲]: «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " يَضَعُ لِحَسَّانَ مِنْبَرًا فِي الْمَسْجِدِ يَقُومُ عَلَيْهِ قَائِمًا، [۳] يُفَاخِرُ عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَوْيُنَافِحُ. [۴] وَيَقُولُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِنَّ اللّٰهَ يُؤَيِّدُ حَسَّانَ بِرُوحِ الْقُدُسِ [۵] مَا نَافَحَ أَوْفَاخَرَ عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه**: [۱] بي بي عائشه رضي الله عنها وايي [۲] چې رسول الله ﷺ به په مسجد نبوي کې مشهور شاعرِ اسلام د حضرت حسان رضي الله عنه د پاره منبر کیخودو چې په هغه به دریدی هغه خپل اشعار اورول [۳] او په هغه اشعارو کې به يې د رسول الله ﷺ د طرف نه د فخر اظهار کوي یا دا الفاظ دي چې د رسول الله ﷺ د طرف نه (د کفارو د دین مخالف اشعار او هجو) مقابله به يې کوله [۴] او رسول الله ﷺ به فرمایل خداي جل جلاله د حضرت جبرائیل علیه السلام په ذریعه د حسان رضي الله عنه تائید کوي [۵] ترڅو پورې چې هغه د رسول الله ﷺ د طرف نه مقابله کوي یا دا الفاظ دي ترڅو پورې چې هغه د رسول الله ﷺ د طرف نه د فخر اظهار کوي (بخاري)

**حل اللغات**: - ① يَضَعُ: کیخودو به ئې، ② يُفَاخِرُ: د فخر اظهار به ئې کولو، ③ يُنَافِحُ: مقابله به ئې کوله. ④ يُؤَيِّدُ: امداد او اعانت کوي.

**تسهیلات**:

**قوله**: كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَضَعُ لِحَسَّانَ مِنْبَرًا فِي الْمَسْجِدِ:

**په صحابه کرامو کښې څلور لوئی شاعران**: یعنی نبي علیه السلام به دَ حضرت حسان رضي الله عنه دَپاره دَ منبر اهتمام کولو اوحضرت حسان رضي الله عنه به په هغې باندې اودریدلو اودَ نبي علیه السلام په تعریف اومدح کښې به ئې اشعار وئیل اودَ کافرانودَ مذمت جواب به ئې ورکولو. دادَ حضرت حسان رضي الله عنه دَ پاره یولوئی اعزاز وو هم دغه وجه ده چه هغوی دَ شاعرِ رسول ﷺ په عظیم لقب سره یادولې شي هغوی دَ قریشو په کافرانو باندې دَ هغه وخت دَ دستور اورواج مطابق دَ نسب حسب اوچتوالي او دَ کمترئی په اعتبارسره چوټونه لګولې دي چه دَ قریشو کافرانودَپاره ډیر سخت وو دوی انصاری دی دَ غسانی بادشاهانو په مدح کښې ئې زیات وخت اولګیدو دَ ایمان راوړلونه پس په سفر اوحضر کښې نبي علیه السلام سره وو او په نبي علیه السلام باندې قربان وو په صحابه کرامو

[۱]) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأدب/باب ما جاء في الشعر(رقم-۵۰۱۵) والترمذي في كتاب الأدب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في إنشاد الشعر(رقم-۲۸٤۶)واحمد في المسند:۷۲/۶

کښې څلور لوئی شاعران تیرشوی دی (۱) یو حضرت حسان رضي الله عنه دي (۲) دویم حضرت لبید رضي الله عنه دي (۳) دریم عبدالله بن رواحه رضي الله عنه (۴) او څلورم حضرت کعب بن مالک رضي الله عنه دي حضرت کعب رضي الله عنه به د مکې دقریشو مذهبی حیثیت په نښه کولو خو حضرت حسان بن ثابت رضي الله عنه به دهغوی خاندانی حیثیت په نښه کولو

**قوله: إِنَّ اللَّهَ يُؤَيِّدُ حَسَّانَ بِرُوحِ الْقُدُسِ:**

دې نه مراد حضرت جبریل دې د روح اضافت قدس ته د دې وجه نه شوې دې چه الله تعالي دا روح پاک پیدا کړې دې بعضې حضرات وائی چه د قدس نه مراد الله تعالي دې نو بیا دا اضافت د تشریف د پاره دې لکه څنګه چه په بیت الله کښې د بیت اضافت الله ته شوي دې.باقي دا خبره چه جبریل ته ئې روح ولې وئیلی دی نو دا ځکه چه ده به انبیاء کرامو علیهم السلام ته داسې وحې راوړه چه په هغې کښې به حیات ابدیه وو ددې وجه نه ورته روح وئیلی شوی دی

**[۴۸۰۶] دحُدی خوانی(لوری) حکم**

۴۸۰۶-() [۲۳] ۱ وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: ۲ «كَانَ لِلنَّبِيِّ حَادٍ يُقَالُ لَهُ: أَنْجَشَةُ ۳ وَكَانَ حَسَنَ الصَّوْتِ.فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۴ "رُوَيْدَكَ يَا أَنْجَشَةُ لَا تَكْسِرِ الْقَوَارِيرَ» ۵" قَالَ قَتَادَةُ: يَعْنِي ضَعَفَةَ النِّسَاءِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** : او حضرت انس رضي الله عنه وایي ۲ چې د رسول الله ﷺ یوحدي خوان وو چې د هغه نوم انجشه وو ۳ هغه ډیر خوش اواز وو (د یو سفر په دوران کې) رسول الله ﷺ هغه ته وفرمایل ۴. انجشه! اوښان قلار قلار بیایي او شیشې مه ماتوه ۵ حضرت قتاده رضي الله عنه (د حدیث راوي) وایي شیشو نه د رسول الله ﷺ مراد ښځې وي (بخاري، مسلم)

**حل اللغات** :- ① حَادٍ: د اسم فاعل صیغه ده. حُدی خوانی کونکې. د سورلو تیزولو د پاره په سُر کښې اشعار یا سندرې وئیل. ② أَنْجَشَةُ: دنبی علیه السلام غلام وو ③ رُوَيْدَكَ: لږ شان نرمی اوکړه. مهلت ورکړه زیاته تیزی مه بیایه ④ لَاتَكْسِرِ: مه ماتوه. ⑤ الْقَوَارِيرَ: شیشې. ⑥ ضَعَفَةَ: کمزورې،

**تسهیلات:**

**قوله: كَانَ لِلنَّبِيِّ حَادٍ يُقَالُ لَهُ: أَنْجَشَةُ،**

**د حاد معنی**: دا د اسم فاعل صیغه ده دباب نصر ینصر نه حدواً وحداءً حدی خوانی ته وائی.په سفرکښې چه کله د قافلې د اوښانو رفتار د سترې کیدو د وجې سستیږی نو په

۱) اخرجه البخاري فی کتاب الأدب/باب: المعاریض [ص:۴۷] مندوحةٌ عن الکذب (رقم-۶۲۱۱) ومسلم فی کتاب الفضائل/باب فی رحمة النبی صلی الله علیه وسلم للنساء وأمر السواق مطایاهن بالرفق بهن (رقم-۷۰ - (۲۳۲۳) واحمد فی المسند:۲۷۰/۱

اوچت آواز سره په خاص سُر سره سندره وئیلې کیږی په کوم سره چه اوښان تیزیدو سره منډه وهی هم دغه سندره او شعرونه وئیلو ته حدی وائی

**د حدی خوانۍ شروع**: دَدې شروع په عجیبه طریقه سره شوې ده هغه داسې چه دَبنومضر یوسړې وو هغه دَ قافلې دَ سفر په دوران کښې خپل غلام اووهلو اودَ هغه په لاس ئی چکونه اولګول نوغلام په چغو سره ژړل او وئیلې وایداه وایداه وایداه کله به ئی داسې وئیل دی دی یعنی یدی یدی یدی دَدغه ژړا نه به یو سرود پیدا کیدو دکوم په وجه به چه ستړې ستومانه اوښانو تیزې منډې وهلې په دې باندې آقا غلام ته اووئیل چه اوس هم دغه شان وایه نوهم داسې دَحدی بنیاد کیخودې شو اوبیا په دې کښې ترقی اوشوه

**دحدی خوانۍ شرعی حکم**: دَحدی خوانۍ شرعی حیثیت دادې که په دې کښې باجې او شپیلئی اودولکی دوپړئی نه وی نوصرف شعرونه وئیل جائز دی دکوم چه فائده هم شته گنی جائز نه دی

**د حدی خوانۍ یو عجیبه قصه**: په حدی خوانئی سره اوښ بالکل مستیږی ملاعلی قاری رحمه الله په مرقات کښې یوه قصه لیکلې ده چه یوکلی وال کره یوسړې میلمه شو او هلته ئی اوکتل چه یوتك تور غلام په زنځیرونو کښې تړلې شوې پروت وو دغه غلام دې میلمه ته اووئیل چه دَخدائی دَپاره زما آقاته زما دَ خلاصولو سفارش اوکړه ځکه چه هغه دَمیلمه خبره چرې هم نه ردکوی میلمه سفارش اوکړو نو دَغلام آقا هغه ته اووئیل چه دې غلام یوه یرلوئی جرم کړې دې هغه داسې چه زما لس اوښان وو دې ظالم په یوسفرکښې داسې حدی خوانی اوکړه چه دَ څو شپو سفرپه یوه شپه کښې مکمل شو کله چه اوښان منزل مقصود ته اورسیدل نو په تیز منډو وهلو سره ټول مړه شوصرف یو اوښ پاتې شو لیکن خه تیك ده زه ستا په سفارش سره داغلام پریږدم میلمه چه کله داقصه واؤریده نو وئی وئیل چه دې غلام ته اووایه چه مونږ ته دې هم خپله حدی خوانی واؤروی هغه غلام ته حکم ورکړو کله چه غلام په خپل خاص انداز سره حدی خوانی شروع کړه نوهلته موجود ټول اوښان دَ صحرا طرف ته لاړل اوتختیدل اوهغه میلمه هم دَ لیونو په شان دَ صحرا طرف ته اوتختیدو

**قوله**: لَاتَكْسِرِ الْقَوَارِيرَ:

**دښځو شیشې سره د تشبیه وجه**: قواریر دَ قارورة جمع ده دَ شیشې بوتل ته وائی دادَ قرار نه دې ځکه چه په دې کښې اوبه وغیره حصاریدوسره قرار نیسی دې نه مراد ښځې دی ځکه چه ښځې هم صنف نازك دی دَدوی کمزورې اونازك بدن اولطیف جوړخ هم دَ شیشې په شان کمزورې وی په دې وجه شیشې سره دَدوی تشبیه ورکړې شوه.

**د شیشې نه ماتولو په مفهوم کښې دوه اقوال**: ① په قافله کښې ښځې هم وی ستا په آواز او

اشعارو سره به دهغوی جذبات هم راوچت شي په هغوی کښې به مستي راشي او جذبات بې قابو کيدو سره به په فتنه کښې پريوځي په دې وجه په آرام سره حدی خواني کوه ملاعلی قاري رحمه الله دا مطلب غيرمناسب ګرځولې دې

④ په حدی خوانئي سره او ښ ذوق شوق اومستئي کښې راتلو سره تيزې منډې وهي د کوم په وجه چه به هغه ډينجقي وهي او ښځې خو کمزورې مخلوق دې پريوبه ځي اومړې به شي په دې وجه په آرام سره حدی خواني کوه ملاعلی قاري رحمه الله دا مطلب راجح ګرځولې دې

[۴۸۰۷] دَشعرونو د ښه والي اوبدوالي تعلق دَهغې مضمون سره دې

۴۸۰۷-(')[۲۴] ①وَعَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا- قَالَتْ②: «ذُكِرَ عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- الشِّعْرُ ③فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ④" هُوَ كَلَامٌ فَحَسَنُهُ حَسَنٌ، وَقَبِيحُهُ قَبِيحٌ». رَوَاهُ الدَّارَقُطْنِيُّ.

**ترجمه** : ①او بي بي عائشه رضي الله عنها ②يو وخت د رسول الله ﷺ په مخکې يو شعر ذکر کړ يعني دا پوښتنه وشوه چې شعر او شاعري څه ښه شي دي يا خراب ③نو رسول الله ﷺ وفرمايل ④چې شعر هم يو کلام دي نو ښه شعر ښه کلام دي او خراب شعر خراب کلام دي (دارقطني)

۴۸۰۸- وَرَوَى الشَّافِعِيُّ، عَنْ عُرْوَةَ، مُرْسَلًا.

**ترجمه** :او امام شافعي رحمه الله دا روايت د حضرت عروه رضي الله عنه نه بطريقِ ارسال نقل کړي دي

**تسهيلات**:

د حديث الباب حاصل دا دې چه د شعر ښه والي او بد والي دار و مدار د شعر په مضمون باندي دي که د شعر مضمون ښه وي نو شعر هم ښه دي او که د شعر مضمون ښه نه وي نو بيا شعر هم بد دي.

[۴۸۰۹] په شعر اوشاعرئ کښې مشغول اوسيدل ښه کار نه دې

۴۸۰۹-(')[۲۵] ①«وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ②: بَيْنَا نَحْنُ نَسِيرُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- بِالْعَرْجِ ③إِذَا عَرَضَ شَاعِرٌ يُنْشِدُ. ④فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ⑤" خُذُوا الشَّيْطَانَ، أَوْ أَمْسِكُوا الشَّيْطَانَ، ⑥لَأَنْ يَمْتَلِئَ جَوْفُ رَجُلٍ قَيْحًا خَيْرٌ لَهُ مِنْ أَنْ يَمْتَلِئَ شِعْرًا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** : ①او حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه وايي ②مونږ رسول الله ﷺ سره د سفر په دوران کې عرج کې وو ③چې نا څاپه يوشاعر مخې ته ښکاره شو چې په اشعار ويلو کې مشغول وو ④رسول الله ﷺ د هغه په ليدو سره وفرمايل ⑤دا شيطان راونيسئ يا دايي

---

(') اخرجه الدارقطني في السنن رقم الحديث ٢ من باب الخبر الواحد يوجب العمل-

(') اخرجه مسلم في كتاب الشعر (رقم-٩ - (٢٢٥٩) واحمد في المسند:٨/٣

وفرمایل چې دا شیطان د شعر ویلو نه منع کئ ⑥یاد لرئ د انسان خپل نس (خیټه) د نَو نه د کول په هغه کې اشعار ډکولو نه ښه دي (مسلم)

**حل اللغات :-** ①الْعَرْجِ: دَ مکې اومدینې په مینځ کښې دَ یوځائی نوم دې ②عَـرَضَ: مخامخ شو. ښکاره شو، ③يُنْشِدُ: اشعار ئې وئیل ④يَمْتَلِئَ: چه ډکه کړی، ⑤قَيْحًا: پیپ، نو.

**تسهیلات:**

**قوله: خُذُوا الشَّيْطَانَ، أَوْ أَمْسِكُوا الشَّيْطَانَ:**

راوی ته شك شوې دې چه نبي علیه السلام کوم یو لفظ استعمال کړې وو دغه شاعرته نبي علیه السلام یا خو په دې وجه شیطان وئیلې دې چه دې په خپلو شعرونو کښې بالکل ډوب شوې وو نه دَده په مسلمانانو باندې څه پرواه وه او نه دَ خپل احرام دَ حالت خیال ورسره وو که چرې هغه دَ حج په سفرکښې وو اونه ورته دَ نبي علیه السلام نه څه حیا ورتله بس صرف په خپلو شعرونو کښې ورډوب او مست وو. دَحدیث آخری کلماتو نه دَدې مطلب تائید هم کیږی. دَ حدیث نه دا مطلب هم اخستې شی چه دا سړې په قبیح اومذموم اشعاروکښې مشغول وو چه پخپله دَ هغه دَ پاره هم اودَ عامو مسلمانانو دَپاره هم مضرووپه دې وجه نبي علیه السلام هغه شیطان اوګرځولو.

**[۴۸۰]تنګ تکور اوسندرې په زړه کښې نفاق پيدا کوي**

۴۸۰-()[۲۶] ①وَعَنْ جَابِرٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ②"الْغِنَاءُ يُنْبِتُ النِّفَاقَ فِي الْقَلْبِ كَمَا يُنْبِتُ الْمَاءُ الزَّرْعَ». رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي (شُعَبِ الْإِيمَانِ).

**ترجمه :** ①او حضرت جابر ﷛ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ②رباب وغزلې په زړه کې نفاق داسې پیدا کوي څرنګه چې اوبه فصل زرغونوي. (بیهقي)

**حل اللغات :-** ①الْغِنَاءُ: لوبې او ګانې وئیل، ②يُنْبِتُ: رازرغونوی. ③الزَّرْعَ: فصل.

**تسهیلات:**

**قوله: الْغِنَاءُ يُنْبِتُ النِّفَاقَ فِي الْقَلْبِ كَمَا يُنْبِتُ الْمَاءُ الزَّرْعَ:**

**د سندرو په اوريدوسره په زړه کښې نفاق پيدا کيدل:** دَ باران موسم کښې ډیرې زیاتې اوبه راوریږی په کوم سره چه ډیر زیات شینکې او واښه پیدا کیږی هم دغه حالت دَ سازونو او ګانو بجانو دې چه په دې سره ډیر زر او په زیات مقدار کښې دَ انسان په زړه کښې نفاق پیدا کیږی او په زړه باندې چه کله دَ نفاق قبضه اوشی نو په پوره بدن باندې دَ نفاق کنټرول کیږی لکه چه په ګانې بجانې سره انسان په پوره توګه دَ شیطان په قبضه کښې ورځی. دَهغه په زړه اودَ هغه په روح باندې دَ شیطان راج قائم شی. دَدې په مقابله

---

[1]) اخرجه البیهقی فی شعب الایمان رقم الحدیث ۵۱۰۰

کښې د الله تعالی ذکر او د قرآن پاك تلاوت سره د انسان په زړه کښې ایمان پیدا کیږي او راټو کیږي

علامه نووي رحمه الله په خپل کتاب روضه کښې لیکلي دي چه سازونو او باجو دوپړو او طنبلونو سره ګانا حرام ده او د دې اوریدل هم حرام دی دا د شرابیانو شغل دې

**دمذکوره مضمون تائید په بل حدیث سره:** د دیلمي په روایت کښې دي چه حضرت انس نه د نبی علیه السلام ارشاد داسې نقل شوي دې چه ((إن الغناء واللهو ينبتان النفاق كما ينبت الماء العشب والذي نفس محمد بيده ان القرآن والذكر ينبتان الإيمان في القلب كما ينبت الماء العشب))

**ترجمه:** چه حقیت دا دي چه د ګاني او لوبي دواړه په زړه کښې نفاق داسې پیدا کوی لکه چه په اوبو سره سبزی راخیژی او قسم په هغه ذات چه د هغه په لاس کښې د محمد علیه السلام ساه ده چه قرآن و ذکرِ الهی دا دواړه په زړه کښې ایمان داسې راخیژئ لکه چه په اوبو سره سبزی راخیژی.

## [۴۸۱] د شپیلی د آواز د وجې نه په غوږونو کښې ګوتې ایخودل

۴۸۱-()[۲۶] [۱] «وَعَنْ نَافِعٍ - رَحِمَهُ اللَّهُ - قَالَ[۲]: كُنْتُ مَعَ ابْنِ عُمَرَ فِي طَرِيقٍ، فَسَمِعَ مِزْمَارًا، [۳] فَوَضَعَ أُصْبُعَيْهِ فِي أُذُنَيْهِ وَنَاءَ عَنِ الطَّرِيقِ إِلَى الْجَانِبِ الْآخَرِ، [۴] ثُمَّ قَالَ لِي بَعْدَ أَنْ بَعُدَ: يَا نَافِعُ! هَلْ تَسْمَعُ شَيْئًا؟ قُلْتُ: لَا، [۵] فَرَفَعَ أُصْبُعَيْهِ مِنْ أُذُنَيْهِ، [۶] قَالَ: كُنْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ فَسَمِعَ صَوْتَ يَرَاعٍ، فَصَنَعَ مِثْلَ مَا صَنَعْتُ. [۷] قَالَ نَافِعٌ: فَكُنْتُ إِذْ ذَاكَ صَغِيرًا». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت نافع تابعي رحمه الله وایي [۲] چې یوه ورځ د حضرت ابن عمر رضی الله عنه سره په لار کې وم (یعني مونږ دواړه یوځای تلو چې په لار کې) حضرت ابن عمر رضی الله عنه د شپیلي تـولکي آواز واوریـدلو [۳] او سمدستي خپلې دواړي ګوتي یـي پـه خپلـو غوږونـو کـې ورکړلي او د لاري نه اخواکیدو سره دویم طرف ته شو (چې د هغه د اواز نه خپل ځان بچ کي) [۴] بیا هغه د لاري نه اخواکیدو نه پس هغوئ زما نه پوښتنه وکړه اي نافع! آیا ته څه اوري یعنی د شپیلي چې کوم اواز راځي هغه اوس هم جاري دي یابند شوي دي ما اوویل. نه (اوس هغه اواز بند شوي دي) [۵] نو هغوئ خپلي دواړي ګوتي د غوږونو نه واوخکلي [۶] او بیا بیان یي وکړو چې یوه ورځ زه د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره وم چې حضور صلی الله علیه وسلم د شپیلي آواز واوریدلو بیا حضور صلی الله علیه وسلم هغه وکړل څه چې داوقت ما کړي دي [۷] حضرت نافع رحمه الله وایي هغه وخت زه کم عمره هلك وم یعنی کوچني وم (احمد ابوداود)

**حل اللغات:** - (۱) مِزْمَارًا: شپیلی، (۲) نَاءَ: او اخوا لاړو، جدا شو، (۳) يَرَاعٍ: شپیلی، باجه، (۴) إِذْ ذَاكَ: په هغه وخت،

(۱) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأدب/باب كراهية الغناء والزمر (رقم-٤٩٢٤)

**تسهيلات:**

**قوله:** كُنْتُ مَعَ ابْنِ عُمَرَ فِي طَرِيقٍ، فَسَمِعَ مِزْمَارًا:

**دمزمار لغوي تحقيق:** شپيلئى كومه چه دَ بانړس او لرګى نه جوړولې شى. صحيح او راجح هم دغه دى چه دَ شپيلئى اوريدل او بل ته اورول حرام دى. په رواياتو كښې دې ته قضيب او يراع هم وئيلې شوې دې كوم چه دَ بانړس په معنى دې.

**قوله:** فَكُنْتُ إِذْ ذَاكَ صَغِيرًا:

**يو سوال مقدر:** دا جملـه دَ يو مقدر سوال جواب دې. سوال دا دې چه كله حضرت ابن عمر ﷺ دَ شپيلئى دَ آواز نه دومره څان ساتى چه په غوږونو كښې ئى ګوتې وركړې او دَ لارې نه اخوا شو لرې لاړو نو نافع دَ شپيلئى آواز څنګه اوريدو؟ ولې دَ هغه دَ پاره دا اوريدل جائز وو؟ **دسوال مقدر جواب:** دَدې جواب په دې جمله كښې نافع پخپله وركړې دې چه زه هغه وخت نابالغ ماشوم ووم په دې وجه مكلف نه وو. اوس سوال پيدا كيږى چه دَ نبي عليه السلام په مخكښې حضرت ابن عمر ﷺ څنګه دَ شپيلئى آواز واؤريدو؟ نو دَدې جواب هم هغه دې چه كيدې شى چه حضرت ابن عمر ﷺ هم هغه وخت نابالغ وى. باقى غوږونو كښې ګوتې وركول دَ احتياط او دَ تقوىٰ په بنياد باندې دى ګنى بغير دَ قصد نه په غوږونو آواز لګيدل قابل مواخذه نه دى ځكه چه دا دَ انسان دَ اختيار نه بهر دى او شپيلئى غږونكې سړې كيدې شى چه يهودى وو.

**د ګانو بجانو حرمت:** بهرحال دَدې حديث نه په واضحه توګه ثابتيږى چه آلات دَ لهو لعب ډولكى باجې شپيلئى وغيره سره موسيقى اوريدل حرام دى. علامه قاضى خان په خپله فتاوىٰ قاضى خان كښې ليكلى دى. "إما استماع صوت الملاهى كالضرب بالقضيب ونحو ذلك حرام ومعصية لقوله عليه السلام استماع الملاهى معصية والجلوس عليها فسق والتلذذ بها من الكفر". دَغنا په حرمت باندې دَدې باب په شروع كښې پوره بحث ليكلې شوې دې.

# [۱۰] بَابُ حِفْظِ اللِّسَانِ وَالْغِيبَةِ وَالشَّتْمِ

## دژبې دَ حفاظت، او د غیبت او دَ کنځلو بیان

**خلاصة الباب**

**فيه ستون حديثاً مشتملة على ست مسائل:**

① فضيلة حفظ اللسان: ۱، ۲۵، ۲۶، ۲۷، ۲۸، ۵۰، ۵۱، ۵۲، ۵۳، ۵۴، ۵۵، ۵۶-

② ضرر عدم حفظ اللسان: ۲، ۲۱، ۲۲، ۲۴، ۲۹، ۳۰، ۴۲، ۴۳، ۴۴-

③ قباحة الشتم واللعن والبخل عموماً وخصوصاً: ۳، ۴، ۵، ۶، ۷، ۸، ۹، ۱۰، ۳۴، ۳۵، ۳۶، ۳۷، ۳۸، ۴۱، ۴۵، ۵۴-

④ قباحة النمامة والنفاق والمدح: ۱۱، ۱۲، ۱۵، ۱۶، ۳۳، ۳۹، ۴۶، ۵۶ -

⑤ ذم الكذب: ۱۳، ۱۴، ۲۰، ۲۳، ۳۰، ۳۲، ۴۷، ۴۸، ۴۹-

⑥ ذم الغيبة: ۱۷، ۱۸، ۱۹، ۴۰، ۵۸، ۵۹، ۶۰-

**قوله: وَالْغِيبَةِ:**

### د غیبت تعریف:

دَ غیبت تعریف راتلونکی حدیث نمبر (۴۸۲۹) کښې پخپله راغې چه "ذکرك أخاك بما يكره" یعني په غائبانه توګه دَ یو مسلمان رور داسې تذکره کول چه که دَهغه په مخامخ دغه تذکره اوکړې شي نو هغه دا ناخوښه کړي. دَ غیبت دَپاره دا شرط دې چه عیب په هغه سړي کښې وي او که عیب په هغه کښې نه وي او څوك ئې بیانئ نودا بهتان دې دَ غیبت دَ پاره دَمُغتاب غائب کیدل هم شرط دې. مخامخ دَ عیب بیانول په بده وینا او کنځلو کې راځي

**غیبت د حقوق العباد نه دې یا حقوق الله نه دې؟**

غیبت دَ حقوق العباد نه دې لهذا ترکومې پورې چه هغه سړې دَ چاچه غیبت شوې وي معاف نه کړي په توبه کولو سره نه معاف کیږي حضرت تهانوی رحمه الله لیکلي دي غیبت هغه وخت دَ حقوق العباد نه کیږي کله چه مُغتاب سړي ته دَدې خبر اوشي که چرې خبر نه وي شوې نودا په حقوق الله کښې داخل دي. والله اعلم حضرت تهانوی رحمه الله دا هم لیکلي دي که یو سړې خامخا غیبت کول غواړي نو هغه له پکار دي چه دَخپل مور او پلار غیبت اوکړي دې دَپاره چه دَ غیبت کونکي نیکیانې دَ هغه مور پلار ته لاړې شي چرته غیر ته لاړې نه شي. دَ حضرت حسن بصري رحمه الله یو سړي غیبت اوکړو نو هغوی پلیټ ډك کړو اوتحفه ئې وراولیګله چه تا په ما باندې احسان کړې دې چه خپلې نیکئي دې ماته راکړې یو سړي حضرت حسن بصري رحمه الله ته اووئیل ما ستاسو غیبت کړې دې تاسو

زمادپاره دغه حلال کړئی هغوی اوفرمائیل چه کوم څیز الله تعالی حرام کړې دې زه هغه څنګه حلالولې شم دَ غیبت نه د بچ کیدو طریقه داده چه په یو مجلس کښې دَ چا تذکره دې اونه کړې شی

**قوله**: وَالشَّتْمِ: کنځلوته شتم وائی یوسب او سباب دې دَ بدې وینا په معنی کښې دې که هغه کنځلې وی اوکه په بل څه طریقه وی دَ غیبت په نسبت په شتم کښې عموم دې دا مړ ژوندې. حاضر غائب نیزدې اولرې ټولو ته شاملیدې شی چا سره فحش خبرې اترې کول هغه ته بد ونیل هغه سره خله وهل او نامناسب اوغیري سنجیده الفاظو سره هغه یادول داهرڅه شتم او کنځلو کښې داخل دی هم په دې وجه دا دَ غیبت نه پس ذکر کړې دې

**د باب خلاصه:**

په دې باب کښې به داسې احادیث بیانولې شی په کوم کښې چه دَ ژبې دَحفاظت تذکره وی نامناسب او غیرسنجیده الفاظونه ژبه دَ بچ کولو ترغیب به وی.په شرعی عرفی اواخلاقی توګه خرابو خبرونه دَ ژبې دَ بچ ساتلو تعلیم به وی.خاص کر چغلی کنځلې اوغیبت نه دَ بچاؤ تعلیم ورکړې شوې دې څکه چه غیبت اوچغلی اوکنځلې داسې څیزونه دی چه په معاشره کښې کینه بغض حسد عداوت او نفاق پیدا کوی.په دې وجه شریعت دَ امن او دَ محبت په غرض سره په دې ناخوښه څیزونوباندې پابندی لګولې ده.دَ قرآن پاك دَ سورتونونه سورت حجرات په خاص توګه دَ دغه معاشرتی بدو حوصله شکنی کوی دَ غیبت باره کښې دَ الله تعالی حکم دې ﴿ وَلَا يَغْتَبْ بَعْضُكُمْ بَعْضًا أَيُحِبُّ أَحَدُكُمْ أَنْ يَأْكُلَ لَحْمَ أَخِيهِ مَيْتًا فَكَرِهْتُمُوهُ ﴾[سورة الحجرات: ۱۲] دا اعلان هم دې ﴿ لَا يَسْخَرْ قَوْمٌ مِنْ قَوْمٍ عَسَىٰ أَنْ يَكُونُوا خَيْرًا مِنْهُمْ وَلَا نِسَاءٌ مِنْ نِسَاءٍ عَسَىٰ أَنْ يَكُنَّ خَيْرًا مِنْهُنَّ ﴾ [سورة الحجرات: ۱۱]

بهرحال په هرمسلمان سړی او ښځه باندې لازم دی چه هغوی دې دَ الله تعالی دَ حکم په وړاندې خپل سرتیټ کړی اود رسول الله ﷺ سنت دې خپل کړی او دَ غیبت نه دې خپل ځان اوساتی

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [۴۸۱۲] دَژبې او دَ شرمګاه په حفاظت دَ جنت زیرې

۴۸۱۲-(۱)[۱] [۱] عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "مَنْ يَضْمَنْ لِي مَا بَيْنَ لَحْيَيْهِ وَمَا بَيْنَ رِجْلَيْهِ، [۳] أَضْمَنْ لَهُ الْجَنَّةَ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه**: [۱] حضرت سهل ابن سعد رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] کوم سړي چې

[۱] اخرجه البخاري في كتاب الرقاق /باب حفظ اللسان (رقم-۶۴۷۴)

ماته د دي خبري ضمانت راكړي چې هغه به د خپل هغه شي حفاظت وكړي چې د هغه د دواړو زامو په منځ كې دي يعنى ژبه او غاښونه او د هغه د دواړو پښو په منځ كې دي يعنى عورت ③نو زه د هغه د جنت ضمانت اخلم (بخاري)

**حل اللغات:** - ①مَابَيْنَ لَحْيَيْهِ: د دواړو جامو مينځ (يعنى ژبه) ②مَابَيْنَ رِجْلَيْهِ: د دواړو خپو په مينځ كښې (يعنى شرم گاه)

**تسهيلات:**

**قوله: مَنْ يَضْمَنْ لِي مَابَيْنَ لَحْيَيْهِ:**

**دجامو په مينځ كښې د اندام څخه مراد:** لحييه تثنيه ده ددې مفردلحى دې دواړو جامنوته وائى په كوم كښې چه غاښونه ښكته پورته لګيدلې وى ددې دواړو جامو په مينځ كښې ژبه وى په دې حديث كښې هم دَ ژبې طرف ته اشاره ده دَحديث مطلب دادې چه نبي عليه السلام ﷺ فرمائى چه كوم سړې ماته دَخپلې ژبې دَ حفاظت ضمانت راكړى چه هغه سړې به په خپله ژبه سره كنځلې نه كوى چغلى خورى نه كوى غيبت به نه كوى دروغ به نه وائى اوبيا به په پوره خله سره حرام نه خورى نوزه دغه سړى ته دَ جنت ضمانت وركوم

**قوله: مَنْ يَضْمَنْ لِي......مَابَيْنَ رِجْلَيْهِ،**

**د خپو په مينځ كښې داندام څخه مراد:** دَدوو خپو په مينځ كښې ځيزنه مراد شرمګاه ده دَ شرمګاه ضمانت دادې چه دا به په څه بدكارئى اوبدكردارئى كښې نه استعمالوى دَحديث خلاصه دا شوه چه كوم سړې دَ قوت بطنيه او دَ قوت شهويه چه دَخلې اوشرمګاه په ذريعه سره حاصليږى دَدې دواړو قوتونو دَحفاظت ضمانت وركړى نوهغه ته به دَ جنت ضمانت ملاويږى

**قوله: أَضْمَنْ لَهُ الْجَنَّةَ:**

**دژبې اوشرمګاه په حفاظت د جنت ذمه وارى:** په انسان كښې درې اندامونه داسې دى كه يوكس دهغې حفاظت وكړو نو د ډيرو ګناهونوڅخه محفوظ پاتې كيږى يعنى ژبه،شرمګاه او دريم اندام خيټه ده لكه څنګه چې په يوبل روايت ورسره د ((ما بين جنبيه)) اضافه هم راغلې ده يعنى چې څوک ماته د خيټې د حرامو څخه دحفاظت ذمه وارى راكړى اودا څكه چې خيټه كله د حرام رزق څخه محفوظ وى نوانسان د ډيرو ګناهونوڅخه محفوظ وى اوجهنم ته سړې د ګناهونو په وجه باندې ځى نوچې ګناهونه نه وى جنت ته د تلوقابل جوړيږى څكه نبى عليه السلام داسې كس ته د جنت ذمه وارى وركوى

**[۴۸۳] ژبه په قابو کښې د ساتلو ضرورت او اهمیت**

۴۸۳-()[۲] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "إِنَّ الْعَبْدَ لَيَتَكَلَّمُ بِالْكَلِمَةِ مِنْ رِضْوَانِ اللّٰهِ [۳] لَا يُلْقِي لَهَا بَالًا، [۴] يَرْفَعُ اللّٰهُ بِهَا دَرَجَاتٍ، [۵] وَإِنَّ الْعَبْدَ لَيَتَكَلَّمُ بِالْكَلِمَةِ مِنْ سَخَطِ اللّٰهِ [۶] لَا يُلْقِي لَهَا بَالًا، [۷] يَهْوِي بِهَا فِي جَهَنَّمَ» "رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ [۸] وَفِي رِوَايَةٍ لَهُمَا: " «يَهْوِي بِهَا فِي النَّارِ أَبْعَدَ مَا بَيْنَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ» ".

**ترجمه**: [۱] او حضرت ابوهریره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] حقيقت دادي چې کله بنده د خپلي ژبي نه څه داسې خبره وباسي چې په هغه کې د حق تعالى خوشنودي وي [۳] نو اګرچه دېکه هغه بنده د هغه خبري اهميت نه پيژني [۴] ليکن خداي تعالى د هغه په سبب د هغه درجات بلند کوي (يعني اګر که هغه بنده د خپلي هغه خبري د قدر او اهميت نه واقف نه وي او هغه د يوي ډيري معمولي درجي خبره ګڼي خو د حق تعالى په نز هغه خبره ډيره بلند پايه او د لوي مرتبي وي) [۵] دغه شان بنده چې څه داسې خبره د خولي نه اوباسي چې دحق تعالى د ناخوښي ذريعه جوړيږي [۶] نو اګر که هغه بنده د هغه خبري اهميت نه پيژني يعنى هغه خبره ډيره معمولي ګڼي او هغه د ژبي نه اوخکلو کې څه حرج نه ګڼي [۷] ليکن په حقيقت کې هغه خبره د نتيجي د اعتبار نه دومره هيبتناکه وي چې د هغه په سبب هغه بنده دوزخ کې ولويږي (بخاري) [۸] او د بخاري او مسلم په يو روايت کې دا الفاظ دي چې هغه د هغه په سبب دوزخ کې دومره لري ولويږي چې د مشرق او مغرب درمياني فاصلي نه زيات دي [يعنى هغه چې چيرته په دوزخ کې لويږي هغه دوزخ کوم خاي چې ولويږي د دي دواړو په منځ کې دومره اوږده فاصله ده چې څومره د مشرق او مغرب په منځ کې هم نه ده]

**حل اللغات**:- ① بَالًا: پرواه. اهم نه ګڼل. ② سَخَطِ: خفګان. ناخوښي. ③ يَهْوِي: غورزيږي به. ④ أَبْعَدَ: ډير لري.

**تسهيلات**:

**قوله**: وَإِنَّ الْعَبْدَ لَيَتَكَلَّمُ بِالْكَلِمَةِ مِنْ سَخَطِ اللّٰهِ لَا يُلْقِي لَهَا بَالًا:

يعنى دغه سړى چه په ژبه سره کومه خبره کړي ده هغه ته دَدې هيڅ پرواه اونه دې دا څه اهم ګڼړي اونه په زړه اودماغو کښې دَدې څه پرواه ساتى ليکن دَدې ډير لرې پورې اثرات پريوځى اودَ دغه کلمې په وجه انسان دَ چرته نه چرته رسيږي

[۱]) اخرجه البخاري في كتاب الرقاق/باب حفظ اللسان (رقم-٦٤٧٧) ومسلم في كتاب الزهد والرقائق/باب التكلم بالكلمة يهوى بها في النار (رقم-٥٠ - (٢٩٨٨) والترمذي في كتاب الزهد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب في قلة الكلام (رقم-٢٣١٩) وابن ماجه في كتاب الفتن/باب كف اللسان في الفتنة (رقم-٣٩٦٩) ومالك في الموطا كتاب الكلام/باب ما يؤمر به من التحفظ في الكلام (رقم-٥) واحمد في المسند:٤٦٩/٣ .

**د حدیث مقصد:**

دَحدیث شریف مطلب دادې چه یو ښه خبره یا خرابه خبره نظرانداز کول نه دی پکار اګرچه هغه خبره بالکل معمولی شان ولې نه وی بهرحال دَ ژبې حفاظت دَ یو مسلمان ذمه واری ده چرته داسې او نه شی چه یو طرف ته هغه نیکی کوی او بل طرف ته هغه ضائع کوی او دَدې متل مصداق جوړیږی "چه نیکی کوه او کوهی کښې ئې غورزه وه" دَدې حدیث نه مونږ ته دا تعلیم ملاویږی چه ژبه په قابو کښې ساتل ډیر ضروری دی

**[۲۸۳] مسلمان ته د کنځل کولو او دهغه د وژلو انجام**

۲۸۳-() [۳] ۱ وَعَنْ "عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ "سِبَابُ الْمُسْلِمِ فُسُوقٌ، وَقِتَالُهُ كُفْرٌ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت عبد الله ابن مسعود ﷺ وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ۲ چې یو مسلمان ته کنځل کول فسق دي او د یو مسلمان وژل کفر دي (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** - ① سِبَابُ: کنځل، ② فُسُوقٌ: بنکاره ګناه، غټه ګناه، نافرمانی

**تسهیلات:**

**قوله: سِبَابُ الْمُسْلِمِ فُسُوقٌ، وَقِتَالُهُ كُفْرٌ:**

**اشکال:** دَاهل سنت والجماعت په نیز دګناه کبیره په ارتکاب سره سړې کافرکیږی نه حالانکه دلته په حدیث کښې د مسلمان سره جنګ کول یا هغه قتلولو ته کفر وئیلې شوې دې دې نه خودَ خوارج او معتزله مسلك ثابتیږی.

**داشکال دوه جوابونه:** ① دې سړی دومره لویه ګناه اوکړه لکه چه هغه دکفر په حد راغلو. دَدې سړی دَایمان کمال ختم شو نودکمال ایمان نفی ده خالص کافرشوې نه دې داسې کلام تشدید تغلیظ او تهدید او توبیخ باندې حمل کولې شی.

② په دې حدیث کښې تاویل کولی شی هغه داسې چه کوم سړې دَمسلمان قتل اوقتال حلال او جائز ګنړی دا کفر دې ځکه چه هغه حلال حرام او ګرځول کوم چه کفر دې.

[1]) اخرجه البخاری فی کتاب الإیمان/باب خوف المؤمن من أن یحبط عمله وهو لا یشعر (رقم-۴۸) ومسلم فی کتاب الإیمان/باب بیان قول النبی صلی الله علیه وسلم: «س کتاب الایمان/باب السلم فسوق وقتاله کفر» (رقم-۱۱۶ - (۶۴) والترمذی فی کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/بابٌ (رقم-۱۹۸۳) والنسائی فی کتاب تحریم الدم/باب قتال المسلم (رقم-۴۱۰۵) وابن ماجه فی کتاب الفتن/باب سباب المسلم فسوق، وقتاله کفر (رقم-۳۹۳۹) واحمد فی المسند: ۳۸۵/۱

## [۴۸۱۵] مسلمان ته دَ کفر د نسبت کولو انجام

۴۸۱۵-()[۳] [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا- قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "أَيُّمَا رَجُلٍ قَالَ لِأَخِيهِ كَافِرٌ، [۳] فَقَدْ بَاءَ بِهَا أَحَدُهُمَا» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت ابن عمر ﷠ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] کوم سړي چې خپل مسلمان ورور ته کافر اووئيلو [۳] نو په هغه دواړو کې په يوه باندې کفر راغلو يعنې يا خو ويونکي خپله کافر شو يا هغه سړي چې هغه ته کافر وئيل شوي دي[۱] بخاري، مسلم.

**حل اللغات**: - ① بَاءَ: واپس راځي، اخته کيږي.

**تسهيلات**:

**قوله** أَيُّمَا رَجُلٍ قَالَ لِأَخِيهِ كَافِرٌ، فَقَدْ بَاءَ بِهَا أَحَدُهُمَا:

**د حديث د مفهوم دوه صورتونه**: يعنې يو مسلمان يو بل مسلمان رور ته اووئيل ته کافرئې اوس به دا کلمه په يو باندې صادق راځي او دې دواړو کښې به يو سړې ضرور دَدې کفر کلمه سره واپس راګرځي.

① چاته چې ئې کافر وئيلي دي که هغه واقعي کافر وي نو دا کلمه به لاړه شي هم په هغه پورې به اولګي

② چاته چې ئې کافر وئيلي دي که هغه سړې کافر نه وي نو دا کلمه به واپس کيږي او ويونکي پورې به لګي او هغه به پخپله کافر کيږي.

**د حديث په مفهوم کښې مختلف توجيهات**: دې حديث ته په کتلو سره علماء په دې حديث باندې پوهيدل ډير ګرانو احاديثو کښې شميري. دَدې وجه دا ده چه دَ ګناه کبيره په ارتکاب سره دَاهل سنت په نيز سړې کافر کيږي نه حالانکه دلته هغه ته کافر وئيلې شوې دې؟ علماء کرامو دَدې څو توجيهات بيان کړي دي:

① چه کوم سړي ته کافر اوئيلې شو داسره دَدې چه ډيره لويه ګناه وه ليکن هغه پخپله اقرار اوکړو چه او دا تاماته کافر وئيلي دي ټيک ده زه کافر يم نو دَغه اقرار په وجه داسې کافر کيږي دغه شان د کفر دا کلمه په هغه باندې راؤګرځيده او دې کافر شو.

② دَ حديث مطلوب او مقصود دادې چه يو مسلمان دې بل مسلمان ته کافر نه وائي دامنع دي که چرې څوک داسې وائي نو بيا به کتلې شي چه مخامخ سړې کافر دې نو ټيک ده خبره ختمه شوه ليکن که مخامخ سړې کافر نه دې نو دَدې ويونکي ګناه دومره لويه ده

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب الأدب/باب من كفر اخاه بغير تأويل فهو كما قال (رقم-۶۱۰۴) ومسلم فی كتاب الإيمان/باب بيان حال إيمان من قال لأخيه المسلم: يا كافر(رقم-۱۱۱ - (۶۰) ومالک فی الموطا کتاب الکلام/باب ما یکره من الکلام (رقم-۱) واحمد فی المسند:۲/۴۷

چه لکه دې کافر شو دا په تشدید تهدید، تغلیظ او توبیخ باندې محمول دې
③ چه ویونکې سړې دا عقیده لری چه مسلمان ته کافر وئیل حلال او جائز دی نو بیکاره خبره ده چه کوم سړی اسلام کفر جوړوی هغه یخپله کافر کیږی
④ د دې حدیث مصداق خوارج دی چه هغوی مسلمانانو ته کافر وائي لیکن دا تاویل ډیر ضعیف دې ځکه چه د دې تاویل مطلب به دا وی چه خوارجو ته کافر اوئیلې شی حالانکه د اکثرو علماؤ په نیز ډیره صحیح او قابل قبول قول دا دې چه د خوارجو فرقې سره تعلق لرونکی خلق بې شکه گمراه دی لکه د اهل بدعتو په شان خو دوی ته کافر نه دی وئیل بکار اگرچه ملا علي قاري وضاحت کړې دې چه دې تاویل ته د دوی به حقله ضعیف نه شي ویلې کیدې ځکه چه دوی صرف اهل سنت و الجماعت نه بلکه د کبر او چنې درجې والا صحابه کرامو په باره کښې نعوذ بالله د کفر عقیده لرونکی دی

**[۴۷۸۳] یو مسلمان ته د فسق د نسبت کولو انجام**

۴۷۸۳-(۱)[د] ①وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ②" لَا يَرْمِي رَجُلٌ رَجُلًا بِالْفُسُوقِ، ③وَلَا يَرْمِيهِ بِالْكُفْرِ ④إِلَّا ارْتَدَّتْ عَلَيْهِ إِنْ لَمْ يَكُنْ صَاحِبُهُ كَذَلِكَ» " رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه**: ①او حضرت ابوذر رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ②هیڅ سړې دې چه ته فسق نه وایې ③او نه دې په هغه د کفر تهمت لگوي ④ځکه که هغه سړې د فسق یا کفر حامل نه وي نو د هغه وئیل شوي خبره به هغه ته واپس راجع کیږي (بخاري)

**حل اللغات**:- ①لَا يَرْمِي: نه دې اولی. نشانه دې نه جوړوی. ②ارْتَدَّتْ: راگرځی. راواپس کیږی
د حدیث الباب حاصل دا دې چه هیڅ یو مسلمان ته هم فاسق مه وایه او نه هغه ته د کفر نسبت کوه ځکه که چرته یو کس داسې یو مسلمان ته فاسق اوئیل چه هغه په حقیقت کښې فاسق نه وی نو هغه وئیونکې به پخپله فاسق شی دغه شان یو مسلمان ته د کافر وئیونکی هم حکم دې

**[۴۷۸۴] یو مسلمان ته د الله تعالی د دښمن وئیلو انجام**

۴۷۸۴-(۲)[۲] ①وَعَنْهُ، قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ②" مَنْ دَعَا رَجُلًا بِالْكُفْرِ، أَوْ قَالَ: عَدُوَّ اللهِ ③وَلَيْسَ كَذَلِكَ، ④إِلَّا حَارَ عَلَيْهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: ①او حضرت ابوذر رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ②کوم سړي چې چا ته د الله دښمن اووایی ③او هغه حقیقتاً داسې نه وي ④نو د هغه ویلې خبره خپله هغه ته

(۱) اخرجه البخاري في كتاب الأدب/باب ما ينهى من السباب واللعن (رقم-۶۰۴۵) واحمد في السند: ۱۸۱/۵
(۲) اخرجه مسلم في كتاب الإيمان/باب بيان حال إيمان من رغب عن أبيه وهو يعلم (رقم ۱۱۲ - (۶۱) واحمد في السند:۱۶۶/۵

واپس راجع کیږي یعنی ویونکي خپله کافر یا د الله دښمن کیږي (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:-** ① حَارَ: را واپس کیږي، راجع کیږي

**[۴۸۱۸] د کنځلو کولو ټوله سزا په کنځل شروع کونکی باندې ده**

۴۸۱۸-( )[۷] ① وَعَنْ أَنَسٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ سَلَّمَ - قَالَ: ② "الْمُسْتَبَّانِ مَا قَالَا، ③ فَعَلَى الْبَادِئِ ④ مَا لَمْ يَعْتَدِ الْمَظْلُومُ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه :** ① او د حضرت انس ﷛ او ابوهریره ﷛ نه روایت دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② که دوه سړي په خپل منځ کې کنځل وکړي ③ نو د هغوئ ټولو کنځلو ګناه به په هغه سړي راځي کوم یو چې مخکې والي کړي وي ④ ترڅو پورې چې مظلوم تجاوز ونه کړي (مسلم)

**حل اللغات:-** ① الْمُسْتَبَّانِ: دوه کنځل کونکی. ② الْبَادِئِ: مخکښې کیدونکې. شروع کونکې. ③ يَعْتَدِ: اعتداء تجاوز او د حد نه مخکښې کیدو ته وائي.

**تسهيلات:**

**قوله:** قَالَ: "الْمُسْتَبَّانِ مَا قَالَا، فَعَلَى الْبَادِئِ مَا لَمْ يَعْتَدِ الْمَظْلُومُ:

**مظلوم ته دخپل مظلومیت په اندازه د بدلې اخستلو اجازت:** دحدیث مطلب دادې چه په کنځلو کښې چاچه ړومبې والې اوکړو ټوله ګناه به دهغه په ذمه وی ړومبې والې کونکې ظالم دې لهذا مظلوم که صرف جواب ورکوی نود جواب د ورکولود حده پورې په هغه باندې څه ګناه نشته دې. اوکه مظلوم ورمخکښې شو اود ظالم نه ئی د یو دوو قدمو وړاندې تلو کوشش اوکړو او په کنځلو کولو کښې تجاوز کولوسره د حدنه وړاندې شو نو اوس دا مظلوم پخپله ظالم جوړشو او ړومبې والې کونکې مظلوم شو خو د کنځلو د ړومبې والی د وجې نه هغه به هم په دې جرم کښې شریک وی

**[۴۸۲۰] په چا باندې لعنت ویل د ښو خلقو کار نه دې**

۴۸۲۰-( )[۸] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ② "لَا يَنْبَغِي لِصِدِّيقٍ أَنْ يَكُونَ لَعَّانًا» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه :** ① او حضرت ابوهریره ﷛ وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② صدیق د پاره دا جائز نه دي چې هغه ډیر زیات لعنت کونکي وي (مسلم)

**حل اللغات:-** ① صِدِّيقٍ: رښتیا ویونکې. ② لَعَّانًا: لعنت کونکې.

( ) اخرجه مسلم فی کتاب البر والصلة والآداب/باب النهی عن السباب (رقم-۶۸ - (۲۵۸۷) وابوداود فی کتاب الأدب/باب المستبان (رقم-۴۸۹۴)واحمد فی المسند: ۲/۲۳۵

( ) اخرجه مسلم فی کتاب البر والصلة والآداب/باب النهی عن لعن الدواب وغيرها (رقم-۸۴ - (۲۵۹۷) والترمذی فی کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی اللعن والطعن (رقم-۲۰۱۹)واحمد فی المسند: ۲/۳۳۷

**تسهيلات: قوله**: لَايَنْبَغِي لِصِدِّيقٍ أَنْ يَكُونَ لَعَّانًا:

**د صديق تعريف**: دَ كوم سړي په قول اوفعل كښې چه تضاد نه وى اودَ نبى قول دَ دليل اوحجت نه بغير اومنى هغه ته صديق وائى دَ نبى نه پس دَ صديق درجه وى. په زير بحث حديث كښې دا اوخودلې شو دَ صديق شان سره دا مناسب نه دى چه هغه په خلقو لعنتونه اووائى ځكه چه دَ لعنت يو مطلب دادې چه دا سړې دعاكوى چه يا الله دا سړې دَ خپل رحمت نه لرې كړه. داسې خيرې كول ډير نامناسب او لوئى بخل دې چه دَ الله تعالى دَ وسيع رحمت نه دَ يو سړى دَ ويستلو كوشش كوى حالانكه هغه له پكار وو چه دَ الله تعالى په رحمت كښې دَ راوستو دعا ئى كړې وه

دَ لعنت دويم مطلب دادې چه لعنت ويونكې خبر وركوى چه فلانكې سړې دَ الله تعالى دَ رحمت نه خارج شوې دې دا هم لوئى جرم دې ځكه چه دا سړې دَغيب خبره كوى ده ته څه معلومه ده چه فلانكې سړې دَ الله تعالى دَ رحمت نه خارج شوې دې اوكه يو سړې په كفر باندې مړشوې دې نو په هغه باندې لعنت وئيل جائز دى مگر فرض او ضرورى هغه هم نه دى

قوله: أَنْ يَكُونَ لَعَّانًا:

**دَ لعنت دوه مفهومه**: ① يو قسم كافرانو سره خاص دې هغه دادې چه سړې دَ الله تعالى دَ رحمت نه بالكل اوځى اودَ رحمت نه لرې شى اودَ رحمت نه بالكل نااميده شى دَدې مفهوم دَ لعنت تعلق صرف كافرانو سره دې. داقسم لعنت په مسلمان باندې وئيل حرام دى دَ لعنت

② دويم مفهوم دادې چه يو سړې مثلاً دَ الله تعالى دَ رضا نه لرې شى دَ هغه دَ قرب نه لرې شى دَ داسې قسم لعنت نسبت او دَدې بددعا دَهغه مسلمان دَپاره كيدې شى چه دَ يونامناسب كار ارتكاب كوى.

**په مړى باندې د لعنت ليږلو دوه صورتونه**: دَ صحابه كراموياعلماؤ او اولياؤ په كلام كښې كه چرې دَلعنت ذكر راغلې دې نودَهغې نه دَ لعنت هم دغه قسم مراد دې.

① علماؤ ليكلى دى چه دَمرگ نه پس په چاباندې لعنت وئيل دَ هغه په كفرباندې متفرع دى كه چرې هغه په يقينى توگه باندې په كفرمړشوې دې نولعنت وئيل ممكن اوجائز دى سره دَدې چه فرض او ضرورى نه دى

② كه دَهغه مرگ په يقينى توگه باندې په كفر نه دې شوې نو په هغه باندې دَ مرگ نه پس لعنت نه شى وئيلې كيدې. په يزيدباندې دَ لعنت وئيلو مسئله هم دغه شان ده. كله چه دَهغه مرگ په كفرباندې په يقينى توگه باندې نه دې نولعنت هم جائز نه دې. دَ جمهورو هم دغه مسلك دې.

**[٣٨٢١] د لعنت كونكى سزا**

٣٨٢١-(١)[٩] [١] وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: [٢] "«إِنَّ اللَّعَّانِينَ لَا يَكُونُونَ شُهَدَاءَ وَلَا شُفَعَاءَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابودرداء رضي الله عنه وايي ما د رسول الله ﷺ نه دا واوريدل [٢] كوم خلق چې زيات لعنت كوي هغوئ به د قيامت په ورځ نه ګواه جوړ شي او نه به يې شفاعت وكړل شي (مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله** إِنَّ اللَّعَّانِينَ لَا يَكُونُونَ شُهَدَاءَ وَلَا شُفَعَاءَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ:

**د لعنت ويونكو د قيامت په ورځ د شهادت اوشفاعت څخه محرومتيا:** د حديث حاصل دا دي چه د قيامت په روځ به د دي امت خلق د پخوانو امتونو په باره كښې د ګواه په طور پيش كيږي چه د هغوی رسولانو او پيغمبرانو د الله تعالي احكام هغوی ته رسولی دی او هغوې ئي د الله تعالي طرف ته رابللی وو ليكن هغوی د خپلو رسولانو او پيغمبرانو خبره او نه منله لكه چه الله تعالي فرمائيلی دی [وَكَذَٰلِكَ جَعَلْنَٰكُمْ أُمَّةً وَسَطًا لِّتَكُونُوا۟ شُهَدَآءَ عَلَى النَّاسِ..الخ] الآية(البقرة:١٤٣) په مذكوره حديث كښې د دغي ګواهي متلعق ارشاد دي چه د قيامت په روځ به داسي خلقو ته د ګواه جوړيدو اعزاز نشي وركيدي چه كوم په نورو خلقو ډير زيات لعنت وائی بلكه داسي خلق به د قيامت په روځ د شفاعت د درجي نه محرومه كړي شی يعني كه دا خلق اوغواړی چه مونږ د نورو خلقو د پاره شفاعت اوكړو نو هغه به هم نشي كولي لهذا دا خلق به د قيامت په روځ د دي انعاماتو نه محرومه وی

**[٣٨٢٢] چاته دأخروی هلاكت نسبت كول په خپله هلاكيدل دی**

٣٨٢٢-(٢)[١٠] [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] "إِذَا قَالَ الرَّجُلُ: هَلَكَ النَّاسُ فَهُوَ أَهْلَكُهُمْ» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چی رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] كه يو سړي دا اووائي چې خلق هلاك شو يعنی د جهنم د اور مستحق شو نو داسې ويونكي د ټولو نه زيات هلاكيدونكي دي (مسلم)

---

[١] اخرجه مسلم فى كتاب البر والصلة والآداب/باب النهى عن لعن الدواب وغيرها (رقم-٨٥ - (٢٥٩٨) واحمد فى المسند: ٦/٤٤٨

[٢] اخرجه مسلم فى صحيحه رقم الحديث (٢٦٢٣،١٣٩) وابوداود فى السنن رقم ٤٩٨٣ ومالك فى الموطا رقم ٢ من كتاب الكلام. واحمد فى المسند ٢/ ٣٤٢

**تسهيلات:**

**قوله: إِذَا قَالَ الرَّجُلُ: هَلَكَ النَّاسُ فَهُوَ أَهْلَكُهُمْ:**

**خلقوته د هلاكت نسبت كولوسزا:** يعنى كرم سړى چه دا اووئيل چه ټول خلق هلاك شو نو په حقيقت كښې هغه د ټولو نه زيات هلاك شده دې ځكه چه دا سړې د نورو خلقو په عيبونو لټولو كښې اخته دې اوخپلې نيكوتـه ګورى دغه شان دې د ځان خوښئى په مرض كښې راګيردې اونورو خلقوتـه د سپكاوى په نظركتلو سره داسې وائى لهذا دې د ټولو نه زيات هلاك شده دې ځكه چه د ده نورو سره همدردى مقصود نه ده او د هغوى په خراب حال باندې ئى افسوس نه دې اونه ئى څه غم اوخيرخواهى ده صرف هغوى نااميده كول ذليل كول اوسپك ګڼړل مقصوددى اوكه د ده د هغوى د هدايت فكر دې او د هغوى خيرخواهى مقصود ده او د هغوى په خراب حالت باندې افسوس كول مقصود دى او د يو درد اظهار دې نو په دې صورت كښې داسې وئيل به منع نه وى

**[۴۸۲۳] د قيامت په ورځ بدترين سړې هغه دې چې دوه مخيزې وى**

۴۸۲۳-( ) [۱] ① وَعَنْهُ، قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: -② "تَجِدُونَ شَرَّ النَّاسِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ذَا الْوَجْهَيْنِ، ③ الَّذِي يَأْتِي هَؤُلَاءِ بِوَجْهٍ، وَهَؤُلَاءِ بِوَجْهٍ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② د قيامت په ورځ به د ټولو نه بد تر سړي هغه وي چې (د فتنه آنګيزي په اعتبار) دوه مخونه لري يعنى د منافق خاصيت اوصفت لري ③ چې يو جماعت ته راشي نو يو څه ورته وايي او چې بل جماعت ته ورسي نو بل څه ورته وايي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① ذَا الْوَجْهَيْنِ: دوه مخيزسړې (يعنى منافق).

**تسهيلات:**

**قوله: تَجِدُونَ شَرَّ النَّاسِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ذَا الْوَجْهَيْنِ:**

**د ذوالوجهين نه څه مراد دى:** دا هغه سړې وى چه د حق اوباطل اصول پريږدى او د خلقو په خيالاتو او رجحاناتو باندې روان وى. د هريو د مزاج مطابق خبرې جوړوى لكه چه ذې د راختلى نمر عبادت كونكې دې او د دې شعر مصداق دې:

معشوقِ من بشیوہ ہر کس موافق اند　　باما شراب خورد و بزاہد نماز کرد

[۱] اخرجه البخارى فى كتاب الأدب/باب ما قيل فى ذى الوجهين (رقم-۶۰۵۸) ومسلم فى كتاب البر والصلة والآداب/باب ذم ذى الوجهين وتحريم فعله (رقم-۱۰۰ - (۲۵۲۶) وابوداود فى كتاب الأدب/باب ما يقال عند الغضب (رقم-۴۷۸۲) والترمذى فى كتاب البر والصلة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى ذى الوجهين (رقم-۲۰۲۵) ومالك فى الموطا كتاب الكلام/باب ما جاء فى إضاعة المال، وذى الوجهين(رقم-۲۱)واحمد فى المسند:۴۹۵/۲

لکه چه د دې دوه مخيز سړی هډو څه عقيده او نظريه يعنی که چرې د هغه نه څوک تپوس اوکړی "مامذهبك؟" يعنی ستا دين او مذهب کوم يو دې؟ نو هغه جواب ورکوی "فی أي بلد؟" يعنی دکوم ښار د مذهب تپوس کوې زه خو يهوديانو سره يهودی عيسايانو سره عيسائی. قاديانانو سره قاديانې، بريليانو سره بريلې، ديوبنديانو سره ديوبندی. سنيانو سره سنی او شيعه ګانو سره شيعه يم ته دکوم ځانی باره کښې تپوس کوې؟ نن صبا زيات تر د دې قسم خلقو زور دې او هم په دې بې عزتئی هغوی فخر کوی نبي عليه السلام داسې خلق بدترين خلائق ګرځولی دی اودوی ته ئی شرارتی او فسادی وئيلی دی

**[۴۸۲۳] چغل خور به جنت ته نه داخليږی**

۴۸۲۳-()[۱۳] ۱ وَعَنْ حُذَيْفَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: " ۲ «لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ قَتَّاتٌ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ، ۳ وَفِي رِوَايَةِ مُسْلِمٍ: "نَمَّامٌ".

**ترجمه** : ۱ او حضرت حذيفه رضی الله عنه وايی چې ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل ۲ چې چغل خور به په جنت کې نه داخليږي يعنی هغه به نجات پيدا کونکو خلقو سره په ابتداء کې په جنت کې نه دا خليږي (بخاري، مسلم) ۳ او د مسلم په يو روايت کې د قتات په ځاي د نمام لفظ دي

**حل اللغات**:- ① قَتَّاتٌ: چغل خور. فساد اچونکې.

**تسهيلات**:

**قوله: لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ قَتَّاتٌ:**

**د قتات معنیٰ او جنت ته د داخيلدو مطلب**: د فساد اچولو په غرض سره د يو سړی خبره بل سړی ته رسونکې او د اخو نه خبره ديخوا او ديخوانه اخوا اوړونکی سړی ته قتات او نمام چغل خور وائی که چرې دا سړې چغلی خوړل حلال ګڼړی نو دې کافر شو نو جنت ته به کله هم نه ځی او که چغلی ګناه ګڼړلو باوجود کوی نو بيا به د سزا خوړلو نه پس جنت ته ځی نو د حديث مطلب نشته دېبه داشی چه بغير د سزا نه به جنت ته نه داخليږی چا ښه وئيلی دی

وهم نقلوا عنی الذي لم أقل به      وما آفة الأخبار إلا رواتها

---

) اخرجه البخاری فی کتاب الأدب/باب ما يکره من النميمة (رقم-۶۰۵۶) ومسلم فی کتاب الإيمان/باب بيان غلظ تحريم النميمة (رقم-۱۶۹ - (۱۰۵) وابوداود فی کتاب الأدب/بابٌ فی القتات (رقم-۴۸۷۱) والترمذی فی کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی النمام (رقم-۲۰۲۶)واحمد فی المسند:۳۷۲/۵

**[۴۸۲۵] رښتيا وئيل او دَ دروغونه د ځان ساتلو تاکيد**

۴۸۲۵-()[۱۳] ۱ وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " ۲ «عَلَيْكُمْ بِالصِّدْقِ فَإِنَّ الصِّدْقَ يَهْدِي إِلَى الْبِرِّ، ۳ وَإِنَّ الْبِرَّ يَهْدِي إِلَى الْجَنَّةِ، ۴ وَمَا يَزَالُ الرَّجُلُ يَصْدُقُ وَيَتَحَرَّى الصِّدْقَ حَتَّى يُكْتَبَ عِنْدَ اللّٰهِ صِدِّيقًا ۵ وَإِيَّاكُمْ وَالْكَذِبَ، فَإِنَّ الْكَذِبَ يَهْدِي إِلَى الْفُجُورِ، وَإِنَّ الْفُجُورَ يَهْدِي إِلَى النَّارِ، ۶ وَمَا يَزَالُ الرَّجُلُ يَكْذِبُ وَيَتَحَرَّى الْكَذِبَ حَتَّى يُكْتَبَ عِنْدَ اللّٰهِ كَذَّابًا» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. ۷ وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ قَالَ: " «إِنَّ الصِّدْقَ بِرٌّ، وَإِنَّ الْبِرَّ يَهْدِي إِلَى الْجَنَّةِ. ۸ وَإِنَّ الْكَذِبَ فُجُورٌ، وَإِنَّ الْفُجُورَ يَهْدِي إِلَى النَّارِ» ".

**ترجمه**: ۱ او حضرت عبد الله ابن مسعود ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ رښتيا وئيل په ځان باندې لازم کئ ځکه چې (هميشه او پابندي سره) رښتيا وئيل نيکو کاري طرف ته سړي بيايي (يعني د رښتيا ويلو خاصيت دادي چې د نيکي کولو توفيق پيدا کيږي) ۳ او نيکو کاري (نيکو کار د) جنت (اعلي درجاتو) ته رسوي ۴ او ياد لرئ، کوم سړي چې هميشه رښتيا وايي او هميشه د رښتيا ويلو کوشش کوي نو هغه د الله ﷻ په نزد صديق ليکل کيږي ۵ او تاسو خپل ځان د دروغ ويلو نه وساتی ځکه چې دروغ وئيل سړي فسق وفجور طرف ته بيايي (يعني د دروغ ويلو خاصيت دادي چې بد يو او بد عملو طرف ته رغبت وي) او فسق وفجور (فاسق او فاجر) د دوزخ اور ته (ورديکه کوي) ۶ او (ياد لرئ) کوم سړي چې ډير دروغ وايي (او زيات نه زيات) د دروغ ويلو کوشش کوي نو هغه د خداي ﷻ په نزد کذاب يعنی ډير دروغجن ليکل کيږي (بخاري. مسلم) ۷ او د مسلم په يو روايت کې دا الفاظ دي حقيقت دادي چې رښتيا وئيل نيکي ده او نيکي سړي جنت ته بيايي، ۸ او دروغ وئيل فسق وفجور دي او فسق وفجور يې د دوزخ اورته ورديکه کوي.

**حل اللغات**: -① الْبِرّ: نيکی. ② الْفُجُوْر: دنافرمانئ کارونه، ګناهونه. ③ يَتَحَرّٰي: احتياط کوی. خيال ساتی.

**تسهيلات**:

## قوله: وَمَا يَزَالُ الرَّجُلُ يَصْدُقُ وَيَتَحَرَّى الصِّدْقَ:

**د رښتيا په وئيلو صديق ليکلې کيدل**: يعنی دَ رښتيا وئيلو خيال ساتی په خبرو کښې احتياط کوی دَ دروغو نه ځان بچ کوی نودَ الله تعالی په نيز رښتونې ليکلې کيږی په

[1] اخرجه البخاری فی کتاب الأدب/باب قول الله تعالى: {يا أيها الذين آمنوا اتقوا الله وكونوا مع الصادقين} [التوبة: ۱۱۹] وما ينهى عن الكذب (رقم-۶۰۹۴) ومسلم فی کتاب البر والصلة والآداب/باب قبح الكذب وحسن الصدق وفضله (رقم-۱۰۵ - ۲۶۰۷) وابوداود فی کتاب الأدب/بابٌ فی التشديد فی الكذب (رقم-۴۹۸۹) والترمذی فی کتاب البر والصلة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی الصدق والكذب (رقم-۱۹۷۱) ومالک فی الموطا کتاب الكلام/باب ما جاء فی الصدق والكذب (رقم-۱۶) واحمد فی المسند: ۱/۳۹۳

علیین او د فرښتو په دفترونو کښې دَهغه نوم صدیق لیکلې کیږی اوکه په خبره خبره کښې دَ رښتیا ونیلو په ځائی دروغ وائی

**قوله** :وَمَا يَزَالُ الرَّجُلُ يَكْذِبُ وَيَتَحَرَّى الْكَذِبَ:

**د دروغو په ونیلو کذاب لیکلې کیدل**: او که پاسیدو کیناستو تلو راتلو کښې هم د دروغو خیال ېخوی نودَ داسې سړی نوم دَالله تعالی په نیز اودَ فرښتو په دفترونو کښې کذاب لیکلې کیږی دَ انسان دَ بدن اعتبار او اعتماد دَزړه او ژبې دَ وجې قائم پاتې کیږی که ژبه چرې بې اعتباره شی نودَ انسان پوره بدن اودَ هغه پوره ژوندون دَ خلقو په نظر کښې پریوځی.دنیا هم لاړه اوآخرت هم لاړ چا ونیلی دی "الإنسان بأصغریه" یعنی انسان خودَ دوو وړو اندامونو زړه او ژبې دَ وجې نه انسان دې.

**[۴۸۳۲]دَصلح کولو دَپاره دروغ ونیل په دروغو کښې نه راځی**

۴۸۳۲-()[۱۲] ۱ وَعَنْ أُمِّ كُلْثُومٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا- قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ " «لَيْسَ الْكَذَّابُ الَّذِي يُصْلِحُ بَيْنَ النَّاسِ وَيَقُولُ خَيْرًا وَيَنْمِي خَيْرًا» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** : ۱ او بي بي ام کلثوم رضی الله عنها وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ۲ هغه سړي دروغجن نه دي ① چې د خلقو په منځ کې صلح او صفایي کوي ② د نیکي خبره کوي او یوبل ته د نیکي خبري رسوي (اګر که صلح او صفائي کولو او د هغه خبري ویلو او رسولو کې د دروغو نه کار واخلي ) (بخاري، مسلم)

**د راوي مختصر تعارف:**

**حضرت ام کلثوم بنت عقبه رضی الله عنها**: ام کلثوم رضی الله عنها کنیت دې دَ پلارنوم عقبه بن ابی معیط دَ مور نوم اروی بنت کریز وو.دَ هغوی پلار عقبه دَ مکې په سختو مشرکانو کښې وو دَ چا چه اسلام نه سخت نفرت وو.

په ۷کال دَ هجرت حضرت ام کلثوم رضی الله عنها مدینې طرف ته هجرت اوکړوورپسې دَ هغې رونړه هم راغلل اوچه کومه صلح نامه لیکلې شوې وه په هغې کښې دا ووچه د قریشویوسړې دَ مکې نه مدینې ته راشی نوهغه به واپس کولې شی.په دې وجه حضوراکرم ﷺ ته فکر شو نودَ قرآن پاك دا آیت نازل شو.﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا جَاءَكُمُ الْمُؤْمِنَاتُ مُهَاجِرَاتٍ﴾ چه په دې صلح کښې ښځې داخل نه دی.

اول نکاح دَ هغې حضرت زیدبن حارثه رضی الله عنه سره بیادَ هغه دَ وفات نه پس زبیربن العوام سره بیا عبدالرحمن بن عوف او بیا آخری نکاح دَهغې عمرو بن العاص رضی الله عنهما سره اوشوه.

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب الصلح/باب: لیس الکاذب الذی یصلح بین الناس (رقم-۲۶۹۲) ومسلم فی کتاب البر والصلة والآداب/باب تحریم الکذب وبیان ما یباح منه (رقم-۱۰۱ - (۲۶۰۵)واحمد فی المسند:۴۰۳/۶

**مرویات:** - دَ هغې نه تقریباً لس احادیث نقل کولې شی.پورتنې حدیث په صحیحینوکښې دې باقی دَ احادیثو په نورو کتابونوکښې دی

**حل اللغات:** - ① يَنْمِي: خورَوی،

**تسهیلات:**

**قوله :** لَيْسَ الْكَذَّابُ الَّذِي يُصْلِحُ بَيْنَ النَّاسِ وَيَقُولُ خَيْرًا وَيَنْمِي خَيْرًا:

**د اصلاح راوستلو دپاره د دروغو وئیلو جواز:** مثلاً دَ دوو مسلمانانو په خپل مینځ کښې جګړه ده یا لریوالې دې او یو دریم سړې دا فتنه فساد او بغض اوبُعد لرې کولودَپاره خلافِ واقعه دروغ خبره کوی.مثلاً یو ته وائی چه روره هغه سړې خوستا ډیر خیرخواه دې هغه ستا تعریف کوی تاسره مینه کوی اوستا باره کښې خودهغه ډیرې ښې ارادې دی دغه شان خبرې لاړشی دویم ته کوی په دې کښې سره دَدې چه دروغ وائی لیکن دا دَ انسانانو په مینځ کښې اصلاح او اخلاص باندې مبنی دی لهذا دَ دروغو دَ وعید نه بهر دی دغه شان دَ ښځې اوخاوند په مینځ کښې نفرت ختمولودَپاره داسې خبرې کول دَ دروغو دَوعیدنه بهر دی.دغه شان دَ چادَ بچ کولودَپاره دروغ وئیل جائز بلکه بعضې وخت فرض کیږی.مثلاً یو سړې چا پسې وسله اخستې شاته منډې وهی نوچا ورته اووئیل چه یار هغه خو په دې لار نه دې تلې بلکه په فلانکی لار باندې تلې دې داسې غلط بیان کول جائز بلکه ضروری دی.

**[۴۸۲۷] دَمدحې کونکو په خُلو کښې د خاورې اچولو حکم**

> ۴۸۲۷-()[۱۵] ①وَعَنِ الْمِقْدَادِ بْنِ الْأَسْوَدِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " ②«إِذَا رَأَيْتُمُ الْمَدَّاحِينَ فَاحْثُوا فِي وُجُوهِهِمُ التُّرَابَ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه :** ①او حضرت مقداد ابن اسود رضی الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ②هرکله چې تاسو تعریف کونکي ووینئ نو د هغه په خوله کې خاوري واچوئ.(مسلم)

**حل اللغات:** - ②الْمَدَّاحِينَ : دَ مداح جمع ده مدح اوتعریف کونکی ته وائی ③فَاحْثُوا: نو واچوئ.

**تسهیلات:**

**قوله :** إِذَا رَأَيْتُمُ الْمَدَّاحِينَ فَاحْثُوا فِي وُجُوهِهِمُ التُّرَابَ:

**خاورې اچولو نه څه مراد دې؟:** دلته بې ځایه دَ ریاکاری مکاری عیاری او دَ دنیاداری په غرض سره دَ دروغو تعریف کونکی خلق مراد دی په دې حدیث کښې دی چه دَ داسې

[1] اخرجه مسلم فی کتاب الزهد والرقائق/باب النهی عن المدح. إذا کان فیه إفراطٌ وخیف منه فتنةٌ علی الممدوح (رقم-۶۹ - (۳۰۰۲) وابوداود فی کتاب الأدب/بابٌ فی کراهیة الرفعة فی الأمور(رقم-۴۸۰۳)والترمذی فی کتاب الزهد عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی کراهیة المدحة والمداحین (رقم-۲۳۹۳) وابن ماجه فی کتاب الأدب/باب المدح (رقم-۳۷۴۲) واحمد فی المسند:۵/۶

خلقو په خله باندې خاوره واچوئی اوس دَ خاورې اچولونه څه مراد دې؟ نوبعضې شارحین وائی چه دا کلام په حقیقت باندې مبنی دې چه واقعی خاوره اوچته کړه اودَ دغه مداح په خله باندې ئې ورواچوه بعضو ونیلی دی چه په دې کلام کښې مجاز دې مطلب دا چه دغه تعریف کونکی نه څه نه څه ورکړه ځکه چه دَ نه ورکولو په صورت کښې به هغه ستا مذمت کوی یا دا مطلب دا دې چه ده ته څه نه څه ورکړه، خاورې ورکړه دې دَ پاره چه بیا رانلوسره ستا بې ځایه تعریف اونه کړی

**[۳۸۲۸] مخامخ دَ چا تعریف کونکی ته درسول الله ﷺ هدایت**

۳۸۲۸-(۱)[۱۲] ١ وَعَنْ أَبِي بَكْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ ٢: «أَثْنَى رَجُلٌ عَلَى رَجُلٍ عِنْدَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ٣ فَقَالَ: "وَيْلَكَ قَطَعْتَ عُنُقَ أَخِيكَ" ثَلَاثًا " ٤ مَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَادِحًا لَا مَحَالَةَ ٥ فَلْيَقُلْ: أَحْسِبُ فُلَانًا، وَاللَّهُ حَسِيبُهُ، ٦ إِنْ كَانَ يُرَى أَنَّهُ كَذَلِكَ، وَلَا يُزَكِّي عَلَى اللَّهِ أَحَدًا» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: ١ او حضرت ابوبکره رضی الله عنه وایی ٢ یوه ورځ د رسول الله ﷺ په مخکې چا د یو سړي (ترحدزیات) تعریف شروع کې او هغه سړي هم هلته موجود وو (د چاچې تعریف کیدي) ٣ نو حضور ﷺ تعریف کونکي ته وفرمایل په تا افسوس دي تا د خپل ورور سټ کټ کړي حضور ﷺ دا الفاظ دري ځلي وفرمایل ٤ بیایي وفرمایل که په تاسو کې یو سړي د چا تعریف کول ضروري وګڼي نو هغه ته پکار دي ٥ چې مثلاً داسې اووائي چې زه د فلاني سړي باره کې داګمان لرم چې هغه یونیك سړي دي باقي د هغه سړي د حقیقي حالت نه الله جل جلاله بنه واقف دي او هغه د هغه د اعمالو حساب اخستونکي دي ٦ او که تعریف کونکي داګمان لري چې هغه د کوم سړي تعریف کړي دي هغه واقعتاً داسې دي نو په هغه صورت کې هم هغه دي د خداي د طرف نه په یو سړي دي یقین سره حکم نه لګوي (بخاري. مسلم)

**حل اللغات**: - ① أَثْنَى: صفتونه ئې بیان کړل، تعریفونه ئې اوکړل. ② وَيْلَكَ: تباه شې. افسوس دې په تا. ③ عُنُقَ: څټ. ④ مَادِحًا: تعریف کونکې. ⑤ أَحْسِبُ: زه ګمانه کوم

**تسهیلات:**

**قوله: وَيْلَكَ قَطَعْتَ عُنُقَ أَخِيكَ:**

**دچا په مخامخ د تعریف کولوممانعت**: د چا سټ پري کول اګرچه هغه لره د ذبح کولو او د هغه د جسماني هلاکت هم معني دی لیکن دلته د سټ پرې کولو نه مراد روحاني هلاکت

[1]) اخرجه البخاری فی کتاب الأدب/باب ما جاء فی قول الرجل ویلك(رقم-۶۱۶۲) ومسلم فی کتاب الزهد والرقائق/باب النهی عن المدح. إذا کان فیه إفراطٌ وخیف منه فتنةٌ علی الممدوح (رقم-۶۵ - (۳۰۰۰)وابوداود فی کتاب الأدب/بابٌ فی کراهیة التمادح (رقم-۴۸۰۵) وابن ماجه فی کتاب الأدب/باب المدح (رقم-۳۷۴۴) واحمد فی المسند:۴۷/۵

دي چه د هغي مطلب دا دي چه كوم كس د چا تعريف كوى نو هغه (ممدوح) خپل تعريف اوريدو سره په غرور كښې مبتلا شى لهذا لكه څنګه چي د چا سټ پرې كول هغه لره دنياوى طور سره د هلاكولو مرادف دى نو هم دغه شان د چا مخامخ تعريف كولو سره ګويا چه هغه ديني او اخروي طور سره هلاكت كښې اچول دى او كله كله خو دا تعريف دنياوي طور د هلاكت سبب هم جوړ يږى لكه چه يو كس خپل تعريف واورى نو دومره زيات مغروره شى چه ناحقه څوک مړ كړى او بيا د عدالت طرف نه ورته د مرګ سزا واوروليږ شى نو ده د خپله لاسه خپل ځان نه لاس وينځلو

{كه تاسو د چا تعريف كول ضروري ګڼړي} د دي مطلب دا دي چه تاسو په چا كښې يو داسي وصف اومندلو چه د هغې په وجه هغه قابل تعريف وى مثلا يو كس ډير زيات نيک او صالح وى يا يو كس ډير زيات خه اخلاقو والا وى او ته د هغه تعريف كول غواړي نو په داسي صورت كښې دا ضرورى ده چه ته صرف د خپل ګمان تر حده د هغه تعريف اوكړه، د هغه په باره كښې په جزم و يقين سره فيصله مه كوه بلكه داسي اوايه چه خه فلانكي كس داسي ګڼړم يا د فلانكي كس په باره كښې ځما دا ګمان دي د دي جملې وجه دا ده چه د چا حقيقي حال د الله نه علاوه چا ته هم معلوم نه دي چه په كوم كس په ظاهر خه او نيک ګمان اوكړي شى نو كيدي شى چي د هغي باطني احوال داسي درجه كښې نه چه هغه د الله خوښ وى لهذا چه كوم كس قابل د تعريف وى نو د هغه په تعريف كولو كښې د احتياط لاره اختيارول پكار دى.د هغه په باره كښې بالكل آخري فيصله نه دى كول پكار چه دا فلانكي كس يقيني خه او نيک او د الله په نيز پسنديده دي البته د هغه خلقو معامله بالكل بدله ده چه كوم خلق په احاديثو كښې په صراحت سره قابل د تعريف ګرځولي شوى دى او چه د چا په باره كښې دا ثابته شوي ده چه هغه د الله تعالي په نيز يقينا پسنديده دي لكه عشره مبشره وغيره د داسي خلقو نه علاه د هيڅ يو كس په باره كښې په جزم ويقين سره دا نه دى ظاهرول پكار چه فلانكي كس د الله په نيز خه او نيک دي

**دَتعريف صورتونه**:

دَ يوسړى دَتعريف كولو درې صورته كيدې شى.

دَ تعريف ① اول صورت دا چه په مخامخ باندې دَ چا تعريف وى دا ناجائز دې اودَدې حديث روميې مصداق هم دغه صورت دې.

دَ تعريف ② دويم صورت دا كيدې شى چه تعريف په مخامخ نه وى بلكه پشى شا وى ليكن چه په دې انداز سره وى چه تعريف كونكى ته يقين دې چه دا تعريف به هغه سړى ته اورسيږى.دا صورت هم دَ اول صورت په شان ناجائز دې.١

د تعریف ③ دریم صورت دادې چه پښتی شا یو سړی د بل سړی تعریف او کړو او دا مقصد ئې بالکل نه وی چه دا تعریف دې هغه سړی ته اورسی د چا تعریف ئې چه کړې دې او هغه به په دې تعریف سره خوشحال شی ددې خبرې ئې مطلق اراده نه وی د تعریف دا صورت جائز دې لیکن ددې دپاره شرط دادې چه د چا تعریف کیږی هغه سړې د دغه تعریف مستحق وی هسې بې ځایه تعریف نه وی

**[٤٨٢٩] د غیبت او بهتان تعریف او تفصیل**

٤٨٢٩-( )[١٤] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: "② «أَتَدْرُونَ مَا الْغِيبَةُ؟» قَالُوا: اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ. ③ قَالَ: "ذِكْرُكَ أَخَاكَ بِمَا يَكْرَهُ". ④ قِيلَ: أَفَرَأَيْتَ إِنْ كَانَ فِي أَخِي مَا أَقُولُ؟ ⑤ قَالَ: "إِنْ كَانَ فِيهِ مَا تَقُولُ فَقَدِ اغْتَبْتَهُ، ⑥ وَإِنْ لَمْ يَكُنْ فِيهِ مَا تَقُولُ فَقَدْ بَهَتَّهُ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ. ⑦ وَفِي رِوَايَةٍ: "«إِذَا قُلْتَ لِأَخِيكَ مَا فِيهِ فَقَدِ اغْتَبْتَهُ، وَإِذَا قُلْتَ مَا لَيْسَ فِيهِ فَقَدْ بَهَتَّهُ»".

**ترجمه** : ① او د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چې یوه ورځ رسول الله ﷺ صحابه ؤ رضی الله عنهم ته وفرمایل ② آیا تاسو ته معلومه ده چې غیبت څه ته وایي صحابه ؤ رضی الله عنهم عرض وکړو الله او د هغه رسول ښه پوهیږي ③ حضور ﷺ وفرمایل غیبت دادې چې تاسو د خپل مسلمان ورور ذکر داسې وکړئ که هغه یې واوري نو ناخوښه به یې کړي ④ بعضې صحابه ؤ رضی الله عنهم دا اوریدو سره عرض وکړو چې یا رسول الله دا راته وښایه که څما په هغه ورور کې چې د هغه مابدې سره ذکر کړې دې هغه عیب وي کوم چې مابیان کړي دي نو آیا بیابه هم غیبت وي ایعنی ما د یو سړي باره کې د هغه پښې شا دا ذکر وکړو چې په هغه کې فلانې خرابي ده هر کله چې په هغه کې واقعتاً هغه خرابي شته او ماچې څه ویلي دي هغه بالکل رینښتیا دي او ښکاره ده که هغه سړي خپل باره کې څما داسې ذکر کول واوري نو یقیناً به خوابدی شی نو آیا څما هغه طرف ته څه داسې خرابي منسوب کول چې په حقیقت کې په هغه کې وي هغه ته به غیبت وئیل کیږي؟! ⑤ حضور ﷺ وفرمایل تاچې د هغه د خرابي کوم ذکر کړي دي که هغه واقعي په هغه کې موجود وي نو تا د هغه غیبت وکړو ⑥ او که په هغه کې هغه خرابي موجوده نه وي نو تا په هغه باندې بهتان (تهمت، ولګوئ یعنی داخو غیبت دي چې ته د چا عیب د هغه پښې شا بالکل رینښتیا بیان کړې او که ته د هغه عیب بیانولو کې رینښتینې نه یې نو تاچې هغه طرف ته د کوم عیب نسبت کړي دي هغه په هغه کې نه وي نو دا افتراء او بهتان دي چې بذات خود یوه ډیره لویه ګناه ده. (مسلم)

⑦ او د مسلم په یو بل روایت کې دا الفاظ دي چې حضور ﷺ وفرمایل که تا د خپل

---

[1]) اخرجه مسلم فی کتاب البر والصلة والآداب/باب تحریم الغیبة (رقم-٧٠ - (٢٥٨٩) وابوداود فی کتاب الأدب/باب فی الغیبة (رقم-٤٨٧٤) والترمذی فی کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الغیبة (رقم-١٩٣٤) و مالک فی الموطا کتاب الکلام/باب ما جاء فی الغیبة (رقم-١٠)واحمد فی المسند:٢/٣٨٤

بو مسلمان ورور هغه خرابي بيان كړه كومه چې واقعي هغه كې موجود وه نو تا د هغه غيبت وكړو او كه تا هغه طرف ته د داسې خرابي نسبت وكړو چې په هغه كې موجود نه ده نو تا په هغه بهتان ولګوي

**حل اللغات:** - ① اغْتَبْتَهُ: تا د هغه غيبت اوكړو ② بَهَتَّهُ: تا په هغه بهتان اولګولو

**تسهيلات:**

**قوله: قَالَ: "ذِكْرُكَ أَخَاكَ بِمَا يَكْرَهُ:**

**د درې قسمه خلقو غيبت كول جائز دى:** دا دَ غيبت تعريف دې كوم چه پخيله په حديث كښې ذكر دې دا ناجائز اوحرام دى البته دَ درې قسمه خلقو غيبت كول جائز دى په دې كښې ① رومبې فاسق مجاهر دې دَ ده غيبت په دې نيت سره جائز دې چه خلق د ده د شرارت اوخباثت نه محفوظ پاتې شى ② دويم دَ ظالم حاكم غيبت كول جائز دى قرآن كښې دى ﴿لَا يُحِبُّ اللّٰهُ الْجَهْرَ بِالسُّوْءِ مِنَ الْقَوْلِ اِلَّا مَنْ ظُلِمَ﴾ [سورة نساء:۱۴۸] ③ دريم هغه بدعتى دَ چا بدعت چه خوريږى اودَ غيبت كونكى په غيبت سره فائده هم وى اوهغه دَ اصلاح په نيت سره غيبت كوى يا دَ حفاظت په اراده سره ئى كوى كه چرې دا فوائد او شرائط نه وى نودَ بدعتى غيبت دَپاره دَ غيبت جائز نه دې

**[۴۸۳۰] فحش خبرې كونكې د قيامت په ورځ بدترين سړې دې**

۴۸۳۰ - (')[۱۸] ①«وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا - ②أَنَّ رَجُلًا اسْتَأْذَنَ عَلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ③فَقَالَ: ائْذَنُوا لَهُ، فَبِئْسَ أَخُو الْعَشِيرَةِ" ④فَلَمَّا جَلَسَ تَطَلَّقَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي وَجْهِهِ وَانْبَسَطَ إِلَيْهِ، ⑤فَلَمَّا انْطَلَقَ الرَّجُلُ قَالَتْ عَائِشَةُ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! قُلْتَ لَهُ: كَذَا وَكَذَا، ثُمَّ تَطَلَّقْتَ فِي وَجْهِهِ، وَانْبَسَطْتَ إِلَيْهِ. ⑥فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَتَى عَاهَدْتِنِي فَحَّاشًا؟ ⑦إِنَّ شَرَّ النَّاسِ عِنْدَ اللّٰهِ مَنْزِلَةً يَوْمَ الْقِيَامَةِ مَنْ تَرَكَهُ النَّاسُ اتِّقَاءَ شَرِّهِ" ⑧وَفِي رِوَايَةٍ: "اتِّقَاءَ فُحْشِهِ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ①او د بي بي عائشه رضي الله عنها نه روايت دې ②چې يوه ورځ يو سړې د رسول الله ﷺ په خدمت كې د حاضريدو اجازت وغوښتل ③نو حضور ﷺ وفرمايل هغه راپريږدئ چې راشي هغه د خپل قوم خراب سړي دي ④بيا چې هغه سړي راغلو كينا سو نو حضور ﷺ دهغه سره په خندا سره ملاقات وكړو او په خندا خندا يې هغه سره خبرې كولې ⑤كوم وخت چې هغه لاړلو نو بي بي عائشه رضي الله عنها عرض وكړو يا رسول الله! تاسو ﷺ خو د دې

---

') اخرجه البخارى فى كتاب الأدب/باب «لم يكن النبى صلى الله عليه وسلم فاحشًا ولا متفحشًا» (رقم-۶۰۳۲) ومسلم فى كتاب البر والصلة والآداب/باب مداراة من يتقى فحشه (رقم-۷۳ - (۲۵۹۱) وابوداود فى كتاب الأدب/بابٌ فى حسن العشرة (رقم-۴۷۹۲) والترمذى فى كتاب البر والصلة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى المداراة (رقم ۱۹۹۶) ومالك فى الموطا كتاب حسن الخلق/باب ما جاء فى حسن الخلق (رقم-۴)

سړي باره کې داسي ويلي وه يعنی دامو فرمايلي وه چې هغه سړي د خيل قوم خراب سړي دي خو تاسو ﷺ دهغه سره په ډيره خندا سره ملاقات وکړو او په خندا خندا مو ورسره خبري کولي [٦] حضور ﷺ ورته وفرمايل تازه فحش ګوکله پيدا کړي يم [٧] بې شکه د قيامت په ورځ به د الله په نزد درجي په اعتبار سره په ټولو کې بدتر سړي هغه وي چې خلق يي د هغه د خرابي به وجه پريږدي [٨] او په يو روايت کې دا الفاظ دي چې د هغه فحش ګويي نه دويريږدو په وجه خلق د هغه نه پرهيز کوي (بخاري. مسلم)

**حل اللغات**:- ① اِئْذَنُوا: اجازت ورکړئ. ② أَخُو الْعَشِيرَةِ: د قوم قبيلې خراب سړې. ③ تَطَلَّقَ: په روڼ تندي. به خندا خوشحالئ سره. ④ انْبَسَطَ: په فراخئ سره، په خوشحالئ. ⑤ انْطَلَقَ: واپس شو. ⑥ عَهِدْتِنِي: موندلي يم ⑦ فَحَّاشًا: فحش ګويه، خرابې خبرې کونکې.

**تسهيلات**:

**قوله**: أَنَّ رَجُلًا اسْتَأْذَنَ عَلَى النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

**د رجل مصداق**: دَدې حديث نه معلومه شوه چه دَ فاسق مجاهر دَ شرارت او خباثت نه دَ بچ کيدو په غرض دَهغه دَ شرارت تذکره کول جائز دی. دغه شان دَدې حديث نه دا هم معلومه شوه چه دَ داسې سړی دَ شرارت نه دَ بچ کيدو دَپاره دَهغه په مخامخ باندې دَ بدې خبرې کولو په ځائې ښه خبره کوه

او په روحانی اعتبارسره داسې سړې ځومره پريوتې وی چه خلق دَ هغه په مخکښې دهغه د اصلاح خبره هم نه شی کولې. دا سړې عيينه بن حصن فزاری وو روستو مرتد شوې وو بيا دَ مرتدينو په جنګ کښې دَ صديق اکبر ﷺ فوج هغه راګير کړو بيا داسې مسلمان شو اوبيا مړ شو

**[۴۸۳۱] خپله ګناه ښکاره کونکې به په ډير سخت عذاب کې وی**

۴۸۳۱-(١)[١٩] [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[٢] «كُلُّ أُمَّتِي مُعَافًى إِلَّا الْمُجَاهِرُونَ، [٣] وَإِنَّ مِنَ الْمَجَانَةِ أَنْ يَعْمَلَ الرَّجُلُ عَمَلًا بِاللَّيْلِ ثُمَّ يُصْبِحَ وَقَدْ سَتَرَهُ اللَّهُ [٤] فَيَقُولَ يَا فُلَانُ عَمِلْتُ الْبَارِحَةَ كَذَا وَكَذَا، [٥] وَقَدْ بَاتَ يَسْتُرُهُ رَبُّهُ وَيُصْبِحُ يَكْشِفُ سِتْرَ اللَّهِ عَنْهُ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. [٦] وَذَكَرَ حَدِيثَ أَبِي هُرَيْرَةَ: "مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ" فِي بَابِ الضِّيَافَةِ.

**ترجمه**: [١] حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] ځماهر امتې معاف کيدونکي دي علاوه د هغه خلقو نه چې په ښکاره ګناه کوي (يعني ځما د امت هغه ټول ګنهګاران چې د ايمان حالت کې مړه شي) نو د خداي ﷻ سخت عذاب کې به نه مبتلا

[١] اخرجه البخاری فی کتاب الأدب/باب ستر المؤمن [ص:٢٠] علی نفسه (رقم-٦٠٦٩) ومسلم فی کتاب الزهد والرقائق/باب النهی عن هتک الإنسان ستر نفسه (رقم-٥٢ - (٢٩٩٠)

کيږي البته هغه خلق به يقيناً سخت ترين عذاب کې اونخلي چې نه صرف ګناه کوي بلکې خپله ګناه دنيا والو ته هم ښکاره کوي ③بلا شبه دا خبره د ډيرې بې پروايي (بې حسي او بې شرمي) ده چې يو سړي په شپه کې يو خراب کار وکړي او بيا صبا کيدو باندې هرکله چې خداي ﷻ د هغه خراب کار باندې پرده اچولي وه يا د هغه د بدعملي په وجه يې په شپه کې په عذاب کې مبتلا نه کړي تردې چې ورځ کيدو پورې تپيک تپاك وو بيا هغه ګرځي ④خلقو ته وايي چې اي فلاني سړيه! ما د شپې داسې داسې يعنى فلاني خراب کار کړي دې ⑤حالانکې د هغه پروردګار خو د شپې د هغه په ګناه پرده اچولي وه او هغه په صبا کيدو سره د خداي ﷻ پرده وشلوله (بخاري، مسلم) ⑥او د حضرت ابوهريره رضي الله عنه روايت "من كان يؤمن بالله الخ باب الضيافة کې نقل شوي دي.

**حل اللغات:** - ① مُعَافٰى: دَ باب مفاعله نه دَاسم مفعول صيغه ده.دَعافيت او سلامتيا په معنى يعنى معاف کړې شوى. ② الْمُجَاهِرُونَ: ښکاره ګناه کونکى. ③ الْمَجَانَةِ: د شپې ګناه کول او د ورځې خلقو ته بيانول. ④ الْبَارِحَةَ: تيره شپه.

**تسهيلات:**

## قوله: كُلُّ أُمَّتِي مُعَافًى إِلَّا الْمُجَاهِرُونَ:

**د الا المجاهرون دوه مطلبونه:**

① ملاعلى قارى رحمه الله فرمائى "كل أمتي لايؤاخذون ولايعاقبون عقاباً شديداً الا المجاهرون". يعنى زما دَامت دَ ټولو کسانو به په ګناهونو باندې دومره سخته مواخذه اوسخت عذاب او عقاب نه کيږى لکه څنګه چه به مجاهرين او په ښکاره ګناه کونکو ته کيږى

② علامه طيبى رحمه الله دَدې حديث مطلب داسې بيان کړې دې چه نبي عليه السلام فرمائى چه زما دَ امت ټول خلق به دَ غيبت نه محفوظ او مامون وى دَ دوى غيبت جائز نه دې مګر څوك چه په ښکاره باندې ګناه کوى دَهغوى غيبت جائز دې ځکه چه دَ فاسق مجاهر غيبت غيبت نه دې.

**ملاعلى قارى رحمه الله د علامه طيبى قول رد کړې دې:**

ملاعلى قارى رحمه الله په دې مطلب باندې رد کړې دې اوليکلى ئى دى چه دا حديث غيبت سره خاص کول دَ سياق اوسباق منافى دى.لهذا دادَ عام ګناهونودَپاره عام کول پکاردى چه دَ عامو ګناهونو به دومره سخته سزا نه وى څومره چه په ښکاره ګناه کولوباندې مواخذه کيږى والله اعلم.

## قوله: وَإِنَّ مِنَ الْمَجَانَةِ أَنْ يَعْمَلَ الرَّجُلُ عَمَلًا بِاللَّيْلِ:

يعنى دا جنون بې شرمى اوبې حيائى ده چه سړې پټه ګناه دَ شپې کوى او دَورځې دَهغې

د هندوره وهی چه ما فلانکي فلانکي گناه کړي ده حالانکه الله تعالی په هغه باندې ستر اوپرده اچولې وه دې نه مخکښې لیکلې شوی دی چه د دریې قسمه خلقو غیبت کول جائز دی (۱) یو ظالم حکمران (۲) دویم متعدی مفسد بدعتی (۳) اودریم فاسق مجاهر په دې حدیث کښې هم د دغه مجاهر فاسق بیان کړې شوې دې

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [۴۸۳۲] دروغ او دښمنی پریښودل او خپل اخلاق ښائسته کولو ثواب

۴۸۳۲-() [۲۰] ۱ عَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " ۲ «مَنْ تَرَكَ الْكَذِبَ وَهُوَ بَاطِلٌ بُنِيَ لَهُ فِي رَبَضِ الْجَنَّةِ، ۳ وَمَنْ تَرَكَ وَهُوَ مُحِقٌّ بُنِيَ لَهُ فِي وَسَطِ الْجَنَّةِ، ۴ وَمَنْ حَسَّنَ خُلُقَهُ بُنِيَ لَهُ فِي أَعْلَاهَا» ". ۵ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. وَكَذَا فِي " شَرْحِ السُّنَّةِ ". وَفِي " الْمَصَابِيحِ ". قَالَ: غَرِيبٌ.

**ترجمه** : ۱ حضرت انس رضي الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ۲ کوم سړي چې دروغ وئیل پریږدي او هغه دروغ ناحق او ناروا وي نو د هغه د پاره د جنت په غاړه محل جوړول کیږي. ۳ او کوم سړي چې جګړې بحث او تکرار پریږدي باوجود د دې چې هغه په حقه وي نو د هغه د پاره د جنت په منځ کې محل جوړول کیږي ۴ او چا چې خپل اخلاق ښائسته کړل نو د هغه د پاره به د جنت په اوچت ځاي باندې محل جوړول کیږي. ۵ دا روایت ترمذي نقل کړي دي او ویلي يې دي دا حدیث حسن دي دغه شان روایت شرح السنه او مصابیح کې هم منقول دي
او ویلي یې دي چې دا حدیث غریب دي

**حل اللغات** - ① رَبَض غاړه. ② مُحِقٌّ: د باب افعال نه د اسم فاعل صیغه د ه. په حقه وی.

**تسهیلات**

**قوله** : مَنْ تَرَكَ الْكَذِبَ وَهُوَ بَاطِلٌ بُنِيَ لَهُ فِي رَبَضِ الْجَنَّةِ:

**د جنت مختلفو درجاتو او مقاماتو ورکولو بشارت** : په دې حدیث کښې دریې قسم خلقو ته په جنت کښې د مختلفو درجاتو او مقاماتو ورکولو زیرې اورولې شوې دې اول قسم د هغه خلقو دې چه دروغ وئیل پریږدی

**قوله** : وَهُوَ بَاطِلٌ:

یعنی هغه دروغ چه په حقیقت کښې جرم وی داسې دروغ نه وی چه فی الجمله جائز وی لکه د خلقو په مینځ کښې اصلاح یا میدان جهاد وغیره کښې د دې اجازت وی هم د دغه

---

۱) اخرجه الترمذي في السنن كتاب البر والصلة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في المراء (رقم-۱۹۹۳) وابن ماجه في كتاب في الإيمان وفضائل الصحابة والعلم باب اجتناب البدع والجدل (رقم ۵۱)

احتراز دپاره دا قيد لګولي شوي دي دويم قسم هغه خلق دي چه د تواضع او شرافت نفس په بنياد باندې د شرفساد او جنګ جګړې نه شاته کيږي باوجود د دې چه د هغوی دنياوي حق جوړيږي مګر هغه خپل حق پريږدي د شر د دفع کولو په غرض د جګړې نه لاس واخلي او دريم قسم د هغه خلقو دې چه خپل اخلاق ډير ښکلي او ښه ساتي

د اول قسم خلقو انعام "ربض الجنة" دې يعني د جنت د دننه حصې په ادنی غاړو باندې به د هغوی د پاره محل تيارولې شي د دويم قسم خلقو انعام "وسط الجنة" دې چه د هغوی نه اعلی او افضل دې ځکه چه د جنت په غاړه کښې نه بلکه د جنت په مينځ او مرکزی مقام کښې به د هغوی محل جوړولې شي د دريم قسم خلقو انعام "اعلى الجنة" دې يعني د جنت په بالا خانو کښې په اوچتو ځايونو باندې به د هغوی محل جوړولې شي داخلق به د ټولو نه اعلی وي ځکه چه د هغوی کارنامه لويه ده ځکه چه دروغ پريخودل او د جګړې نه لاس اخستل ټول د خو اخلاقو نتائج دي

## [۴۸۳۲]جنت اودوزخ ته بوتلونکی عملونه

۴۸۳۲-()[۲۱] [۱]وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[۲]«أَتَدْرُونَ مَا أَكْثَرُ مَا يُدْخِلُ النَّاسَ الْجَنَّةَ؟ [۳]تَقْوَى اللَّهِ، وَحُسْنُ الْخُلُقِ. [۴]أَتَدْرُونَ مَا أَكْثَرُ مَا يُدْخِلُ النَّاسَ النَّارَ؟ الْأَجْوَفَانِ: الْفَمُ وَالْفَرْجُ» " رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه :** [۱]او حضرت ابوهريره ﷛ وايي چي رسول الله ﷺ وفرمايل [۲]پوهيږئ چې خلق عام طور سره کوم څيز په جنت کې داخلوي (يعني آيا تاسو ته معلومه ده چي کوم څيزونه د خلقو په جنت کې د داخليدو سبب دي په هغه کې کوم څيز د ټولو نه زيات سبب جوړيږي) [۳]هغه ①تقوٰي يعني د الله نه ويره ②او حسن خلق دي [۴]او پوهيږئ خلق عام طور سره کوم څيز دوزخ ته بيايي، [۵]هغه دو ه څيزونه دي يعني ①خوله ②او عورت (ترمذي، ابن ماجه)

**حل اللغات :-** ①الْأَجْوَفَانِ: دا د جوف تثنيه ده، دوه ده څيزونه.

**تسهيلات: قوله :** الْأَجْوَفَانِ: الْفَمُ وَالْفَرْجُ:

**د خلې او شرمګاه په وجه جهنم ته داخليدل:** د انسان په بدن کښې يوه خله او دويم شرمګاه ده څيزونه دی او هم دغه څيزونه د ټولو ګناهونو جرړې دی د يو تعلق شهوة البطن سره دې او د دويم تعلق شهوة الفرج سره دې د دوزخ په ټولو اسبابو باندې که نظر اوکړې شي نو مخې ته به هم دغه دوه څيزونه راځي.

---

[1]) اخرجه الترمذي في السنن كتاب البر والصلة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في حسن الخلق (رقم-۲۰۰۴) وابن ماجه في كتاب الزهد/باب ذكر الذنوب (رقم-۴۲۴۶) واحمد في المسند:۲/۲۹۱

**[۴۸۳۳] د ښه خبرې کولو ثواب او د بدې خبرې کولو انجام**

۴۸۳۳-(۱)[۲۲] [۱] وَعَنْ بِلَالِ بْنِ الْحَارِثِ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «إِنَّ الرَّجُلَ لَيَتَكَلَّمُ بِالْكَلِمَةِ مِنَ الْخَيْرِ [۳] مَا يَعْلَمُ مَبْلَغَهَا [۴] يَكْتُبُ اللّٰهُ لَهُ بِهَا رِضْوَانَهُ إِلَى يَوْمِ يَلْقَاهُ. [۵] وَإِنَّ الرَّجُلَ لَيَتَكَلَّمُ بِالْكَلِمَةِ مِنَ الشَّرِّ [۶] مَا يَعْلَمُ مَبْلَغَهَا [۷] يَكْتُبُ اللّٰهُ بِهَا عَلَيْهِ سَخَطَهُ إِلَى يَوْمِ يَلْقَاهُ» . رَوَاهُ "فِي شَرْحِ السُّنَّةِ". وَرَوَى مَالِكٌ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ نَحْوَهُ.

**ترجمه** : [۱] او حضرت بلال ابن حارث رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] انسان چې يو کلمه خير، د نيکي خبره، خپلي ژبي نه اوباسي ؟ [۳] په داسې حال کې چې هغه د هغه د قدر ومنزلت نه آگاه نه وي [۴] ليکن خداي ﷻ د هغه کلمه خير په سبب د هغه په حق کې هغه ورځې پورې خپله خوشنودي ثابتوي چې هغه خداي ﷻ سره ملاقات وکړي [۵] او دغه شان يو انسان کلمه شر (يعني يو خرابه خبره) خپلي ژبي نه وباسي [۶] حالانکې هغه د هغه داهميت نه واقف نه وي [۷] خداي ﷻ د هغه کلمه شر په سبب د هغه په حق کې هغه ورځې پورې خپله خفگان ناراضتيا ثابتوي چې هغه خداي ﷻ سره ملاقات وکړو (شرح السنه) او امام مالک رحمه الله ترمذي رحمه الله او ابن ماجه رحمه الله هم د دې قسم روايت نقل کړي دي

**حل اللغات**:- ① مَبْلَغَهَا: حقيقت او انجام دهغې (خبرې)، ② سَخَطَهُ: خفگان، ناراضگی

**تسهيلات**:

**قوله**: إِنَّ الرَّجُلَ لَيَتَكَلَّمُ بِالْكَلِمَةِ مِنَ الْخَيْرِ:

**د کلمه خير او کلمه شر نه څه مراد دی**: يعنی انسان په ژبه سره دَالله تعالی دَ رضا او دَ خوشحالئ څه خبره راؤباسی هغه ته پخپله دَ دغه خبرې اهميت معلوم نه وی ليکن دَ الله تعالی دَ طرف نه دغه سړی ته دَ دغه کلمې دَ وجې نه په دنيا کښې داسې خوشحالی حاصليږی چه دا خوشحالی سړی سره په عالم برزخ او قبرکښې وی بيا دَقبر نه پاسيدو سره دَمحشر ميدان کښې ورسره وی بيا دَ پل صراط نه تيريدو سره په جنت کښې ورسره وی اوبيا په جنت کښې دَ الله تعالی جل جلاله سره دَملاقات دَ وخت پورې داخوشحالی ورسره وی هم دغه شان دَ شرکلمه ده داهم دَ الله تعالی غضب ته دعوت ورکوی اوبيا هغه غضب هم دغه شان قبر او برزخ اوبيا محشر اودوزخ کښې ورسره وی.

علماء کرامو داهم ليکلی دی چه کلمة الخير نه دَ ظالم بادشاه په مخکښې دَ حق کلمه وئيل مراد دی اودکلمة الشر نه دَ ظالم بادشاه په مخکښې دَهغه تعريف توثيق او تائيد مراد دې خو دَحديث مفهوم عام دې داهم دغه شان عام ساتل پکاردی خاص کول نه دی پکار.

---

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الزهد عن رسول الله صلی الله عليه وسلم /باب فی قلة الکلام (رقم-۲۳۱۹) وابن ماجه فی کتاب الفتن /باب کف اللسان فی الفتنة (رقم-۳۹۶۹) ومالک فی الموطا کتاب الکلام /باب ما يؤمر به من التحفظ فی الکلام (رقم-۵) واحمد فی المسند:۳/۴۶۹

**[۴۸۳۵] په دروغو قصو او لطيفو سره د خلقو د خندونکي دپاره هلاکت دي**

۴۸۳۵-()[۲۳] [۱] وَعَنْ بَهْزِ بْنِ حَكِيمٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «وَيْلٌ لِمَنْ يُحَدِّثُ فَيَكْذِبُ [۳] لِيُضْحِكَ بِهِ الْقَوْمَ، وَيْلٌ لَهُ، وَيْلٌ لَهُ». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه**: [۱] بهز ابن حکیم رضی الله عنه د خپل پلار (حکیم ابن معاویه) نه او هغه د بهزد نیکه (دادا) حضرت معاویه ابن عبده رضی الله عنه نه روایت کوي، چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] افسوس په هغه سړي چې خبره کوي نو دروغ وايي [۳] چې د هغه په ذريعه خلق وخاندي افسوس دي په هغه سړي افسوس دي په هغه سړي (احمد ترمذي ابوداود دارمي)

**حل اللغات**:- ① وَيْلٌ: هلاکت، د دوزخ يوه کنده ده.

**تسهيلات:**

**قوله**: وَيْلٌ لِمَنْ يُحَدِّثُ فَيَكْذِبُ لِيُضْحِكَ بِهِ الْقَوْمَ:

**د لفظ ويل تحقيق او د حديث مصداق**: يعنی دَ داسې سړی دَپاره هلاکت دي يا په دوزخ کښې دَ ټولو نه لاندې طبقه ده. دَدې حديث مصداق هغه خلق دی چه دَدروغو قصې او کهانئی اودَ دروغو فضول لطيفې بيانولو سره خلق خندوی او يا داسې لطيفې او قصې اوروی په کوم سره چه نعوذبالله دَ شريعت دَ يوحکم توهين کيږی اکثر کتلې شوی دی چه بعضې مسخرې کونکې خلق دَعامو خلقودَ خندولو دَپاره دَژبې نه دکفر کلمه هم راوباسی که چرې په قصو او لطيفو کښې ظرافت وی او په هغې کښې دَ طبيعت دَ خوشحالولو اسباب وی اودَ يو مکروه يا حرام په دې کښې دخل نه وی نو داسې لطيفې اوريدل او اورول جائز دی.

**[۴۸۳۶] صرف دَ خندولو په غرض د خبرو کولو او د ژبې د لغزش سزا او انجام**

۴۸۳۶-()[۲۴] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «إِنَّ الْعَبْدَ لَيَقُولُ الْكَلِمَةَ لَا يَقُولُهَا إِلَّا لِيُضْحِكَ بِهِ النَّاسَ، [۳] يَهْوِي بِهَا أَبْعَدَ مَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ، [۴] وَإِنَّهُ لَيَزِلُّ عَنْ لِسَانِهِ أَشَدَّ مِمَّا يَزِلُّ عَنْ قَدَمِهِ». رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ".

**ترجمه**: [۱] او حضرت ابوهريره رضی الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] حقيقت دا دي چې کله بنده يوه خبره کوي او صرف ددې د پاره يې کوي چې د هغه په ذريعه خلق وخندوي [۳] نو هغه د هغه خبرې په ذريعه دوزخ کې ولويږي او دومره لرې ولويږي چې د زمکې او

[1] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب/بابٌ فی التشديد فی الکذب(رقم-۴۹۹۰) والترمذی فی کتاب الزهد عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب فيمن تکلم بکلمة يضحک بها الناس (رقم-۲۳۱۵)واحمد فی المسند:۵/۵

[2] اخرجه البيهقی فی شعب الايمان رقم الحديث ۴۸۳۲

آسمان درمیانه فاصلې نه هم زیاته وي [۴] او دا هم حقیقت دي چې بنده د خپلو قدمونو په ذریعه ښوییدو نه زیات د خپلې ژبې په ذریعه ښوییږي (بیهقي)

**[۴۸۳۷] چپ پاتې کیدل په لکهونو مصیبتونو نه لرې کوي**

۴۸۳۷-(۱)[۲۵] [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا- قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «مَنْ صَمَتَ نَجَا» . رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ".

**ترجمه:** [۱] او حضرت عبد الله ابن عمرو رضی الله عنهما وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] کوم سړي چې خاموش پاتې شو هغه نجات (خلاصون) پیدا کړ (احمد، ترمذي، دارمي، بیهقي)

**حل اللغات:** - ① صَمَتَ: چپ شو. خاموش شو.

**تسهیلات: قوله: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ صَمَتَ نَجَا»:**

**په خاموشی کښې کامیابی ده:** دژبې استعمال سره بلاګانې تړلې شوی دی چنانچه چه انسان چه په کومو دنیاوی یا اخروی بلاګانو کښې راګیرېږی دهغه ټولو بلاګانو تعلق بالواسطه یابغیرد واسطې دانسان ژبې سره دی. په دې وجه چه کوم سړې دژبې د لغزشونو نه محفوظ پاتې شو هغه کامیاب شو اوخاموش اوسیدل د دغه کامیابئی جرړه ده

**د کلام قسمونه:**

امام غزالی رحمه الله فرمائی انسان چه په ژبه سره کوم کلام کوی دهغې څلور قسمونه دی

① هغه کلام خالص هم نقصان او نقصان وی.

② هغه کلام خالص هم خیر اوخیر وی.

③ هغه کلام په نفع اونقصان دواړو باندې مشتمل وی.

④ په هغه کلام کښې نه نفع وی اونه نقصان وی.

فرمائی چه د اول قسم کلام غیرمفید دې دې نه هم خاموشی بهتر ده دویم قسم کلام ښه اوبهتر دې لهذا د خاموشئی نه کلام ښه دې دریم قسم کلام نه بچ کیدل افضل دی ځکه چه فائدې سره نقصان لګیدلې دې څلورم قسم کلام هم د فضولیاتونه دې که ګناه نه هم وی خوبیاهم ژبه محفوظ ساتل پکاردی

حاصل دا شو چه په هر حالت او په هر صورت کښې خاموشي اختیارول غوره او د نجات ذریعه ده ځکه چه د ژبې آفتونه بې شمیره دی او د هغې نه بچ کیدل ډیر ګران دی مګر چه کله ژبه بنده اوساتلې شی نو بیا کیدې شی چا ډیره خه خبره کړې ده.

**اللسان جسمه صغیر وجرمه کبیر وکثیر:** د ژبې جثه وړه ده خو د دې جرمونه غټ او ډیر دی

---

[۱]) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب صفة القیامة والرقائق والورع عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/بابٌ (رقم-۲۵۰۱)واحمد فی المسند:۱۷۷/۲

## [۴۸۳۸] په دنیا او آخرت کې د نجات دپاره درې اعمال

۴۸۳۸-()[۲۶] [۱] وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ[۲]: «لَقِيتُ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَقُلْتُ: مَا النَّجَاةُ؟ [۳] فَقَالَ: " أَمْلِكْ عَلَيْكَ لِسَانَكَ، وَلْيَسَعْكَ بَيْتُكَ، وَابْكِ عَلَى خَطِيئَتِكَ» " رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت عقبه ابن عامر ﷺ وايي [۲] چې ما د رسول الله ﷺ سره ملاقات وکړو او عرض مي وکړو ماته وښايه چې په دنيا او آخرت کې د نجات ذريعه څه ده [۳] حضور ﷺ وفرمايل ① خپله ژبه په قابو کې ساته ② او ستا کوردي ستا کفايت وکړي ③ او په خپلو ګناهونو ژاړه (احمد ترمذي)

**حل اللغات**:- ① أَمْلِكْ: قابو کړه، ② وَلْيَسَعْكَ: کافی دې شی تالره، ③ بَيْتُكَ: کور ستا

**تسهيلات**:

**قوله**: لَقِيتُ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَقُلْتُ: مَا النَّجَاةُ؟:

**دآخرت دنجات درې خبرې**:

① ژبه قابو کښې اوساته هيڅ قسم کنځلو غيبت اودهوکه اودرغو کښې ژبه مه استعمالوه.

② ستاکوردې ستاسو دپاره ارت وی يعنی توله ورځ اوتوله شپه خپل کورکښې د الله تعالی په ذکر فکر اوعباداتو کښې اوسيږه دبهر دمجلسونو اونشستونو او جلسو جلوسونو نه اود عامو خلقو دملاويدو نه خپل ځان جدا اوساته ځکه چه په دې مواقع کښې سړې په قسم قسم فتنو کښې اخته کيږی.

③ په خپلو ګناهونو باندې ستومانه او خپيمانه کيدو سره ښه ژړا کوه اومکمل توبه اوباسه ژړا نه درځی نود ژړا صورت جوړکړه

**دنبی عليه السلام جواب علی اسلوب الحکيم**: امام طيبي فرمائی چه د نبي عليه السلام دا جواب د اسلوب حکيم په طور دي مطلب دا چه د سائل سوال د نجات د حقيقت په باره کښې وو ليکن جواب کښې د حقيقت نه اعراض اوکړي شو او د نجات سبب طرف ته ئي نشاندهي کړي ده ځکه چه دحقيقت پيژندلو په مقابله کې د سبب پيژندل اهم او اعلي دی

[۱]) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الزهد عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی حفظ اللسان (رقم-۲۴۰۶)واحمد فی المسند:۲۵۹/۵

## [۴۸۳۹] تول اندامونه هره ورځ ژبې ته عاجزۍ سره درخواست کوی

۴۸۳۹-( )[۲۷] ۱ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- رَفَعَهُ قَالَ ۲: "«إِذَا أَصْبَحَ ابْنُ آدَمَ ۳ فَإِنَّ الْأَعْضَاءَ كُلَّهَا تُكَفِّرُ اللِّسَانَ، ۴ فَتَقُولُ: اتَّقِ اللهَ فِينَا، ۵ فَإِنَّمَا نَحْنُ بِكَ، ۶ فَإِنِ اسْتَقَمْتَ اسْتَقَمْنَا، وَإِنِ اعْوَجَجْتَ اعْوَجَجْنَا» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه** : ۱ او حضرت ابوسعید خدري رضی الله عنه د حضور ﷺ نه بطریق مرفوع نقل کوي چې حضور ﷺ وفرمایل ۲ هرکله چې بني آدم سهار کوي نو ټول د جسم اعضاء د ژبې مخکې عاجزي کوي ۴ او وايي چې زمونږ په حق کې د الله نه ویریږه ۵ ځکه چې زمونږ تعلق ستا سره دې ۶ که ته درسته یې نو مونږ به هم درست یو او که ته کږه شې نو مونږ به هم کاږه شو (ترمذي)

**حل اللغات** :- ① تُكَفِّرُ: عاجزی او انکساری کوی، ② اسْتَقَمْتَ: ته صحیح او درسته شې. ③ اعْوَجَجْتَ کږه شې ته.

**تسهیلات**:

**قوله** : فَإِنِ اسْتَقَمْتَ اسْتَقَمْنَا وَإِنِ اعْوَجَجْتَ اعْوَجَجْنَا:

**د ټولو اندامونو د صحیح استعمال باره کښې ژبې ته عاجزی کول**: یعنی ټول اندامونه د ژبې په وړاندې عاجزی تواضع او انکساری کوی که چرې ته ټیک وې نو مونږ به هم ټیک یو او که ته کږه وې نو مونږ به هم کاږه یو زمونږ انحصار په تاباندې دې.

**اشکال**: په صحیح حدیث کښې د زړه متعلق داسې راغلی دی «ألا إن في الجسد مضغة إذا صلحت صلح الجسد كله» یعنی د زړه په وجه د انسان ټول بدن صحیح کیږی او خرابیږی حالانکه په زیر بحث حدیث کښې د ژبې باره کښې دی چه د دې په ذریعه سره ټول بدن صحیح کیږی او خرابیږی. دا تعارض دې؟

**د اشکال جواب**: ژبه د زړه ترجمان دې نو د زړه طرف ته نسبت حقیقت دې او د ژبې طرف ته نسبت مجازاً دې په شرح عقائد کښې دا شعر ذکر دې

إن الكلام لفي الفؤاد وإنما     جعل اللسان على الفؤاد دليلا

علماؤ لیکلی دی چه "الانسان بأصغرية" یعنی انسان د دوو وړو څیزونو د وجې نه انسان دې یو زړه دې او بل ژبه ده

[1] اخرجه الترمذي في السنن كتاب الزهد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في حفظ اللسان (رقم-٢٤٠٧)واحمد في المسند:٩٦/٣

**[۴۸۴۰] فضول خبرې پرېښودل د اسلام په محاسنو کې داخل دی**

۴۸۴۰-( )[۴۸]۱ وَعَنْ عَلِيِّ بْنِ الْحُسَيْنِ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ "«مِنْ حُسْنِ إِسْلَامِ الْمَرْءِ تَرْكُهُ مَا لَا يَعْنِيهِ»". رَوَاهُ مَالِكٌ، وَأَحْمَدُ.

**ترجمه**: ۱ او حضرت علي رحمه الله ابن حسين رضي الله عنهما يعنی حضرت امام زين العابدين رحمه الله وايي چی رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ د انسان خوبي داده چې هغه شي پرېږدي کوم چې بې فائدی دي مالك احمد

**حل اللغات**: - ①لَا يَعْنِيهِ: بې فائدې او فضول خبرې،

**تسهيلات**:

**قوله: مِنْ حُسْنِ إِسْلَامِ الْمَرْءِ تَرْكُهُ مَا لَا يَعْنِيهِ:**

**دبې ضرورته خبروپرېښودل**:

د يو كس د اسلام د حسن و خوبي او د ايمان د كامل والى علامت دا دي چه هغه به د داسي څيزونو نه اجتناب او پرهيز كوی چه د كوم څيز اهتمام څوک نه كوی او چه د كوم څيز سره چه څه غرض نه وی متعلق او چه د كوم څيز دا شان نه وی چه څوک ئي اهتمام اوكړی او د هغې په حصول كښې مشغوله شي.حاصل دا چه هغه څه امر ضروری نه وی چنانچه د امر لا يعني تعريف او وضاحت هم دا دي.د دي په خلاف چه كوم څيز امر ضروری وی او د هغې خلق اهتمام كوی نو هغه داسي څيز وی چه د هغې سره په دنيا كښې ضروريات زندگي او په آخرت كښې سلامتي او نجات متعلق وی.

**دنيا سره متعلق ضروريات**:

① غذا ده چه هغه لوږه ختموی

② اوبه دی چه تنده لرې كوی

③ جامې چه ستر پټوی

④ ځلورمه ښځه (زوجه) ده چه عفت و پاكدامني د حفاظت ذريعه ده او هم دغه شان نور هغه څيزونه چه نور ضروريات زندگي پوره كوی،

نه كه هغه څيزونه چه د هغې سره صرف د نفس د لذت، د حرص و هوس د پوره والي او د دنياوي محبت سره يئ تعلق وی، دارنګ هغه افعال و اقوال و حركات و سكنات هم نه چه كوم فضول و بې فائدې وی.

**آخرت سره متعلق ضروري څيزونه**:هم دغه شان هغه څيز چه د كوم سره د آخرت سلامتي او نجات متعلق وی، ايمان، اسلام او احسان چه د هغې وضاحت د دي كتاب په شروع

[1] اخرجه مالک فی الموطا کتاب حسن الخلق /باب ما جاء فی حسن الخلق (رقم-۳) واحمد فی المسند:۲۱۱/۱

کښي په حديث جبرئيل کښې ذکر شوي دي حاصل دا چه کوم څيز دنيا و آخرت کښي ضروري وې او چه په کوم د دنيوي و اخروي زندګي انحصار و مدار وی او چه کوم د مولی د رضا سبب وی نو هغه لا يعني نه دې د دي نه علاوه باقی ټول څيزونه لا يعني دي خواه که د هغي تعلق د عمل سره وی او که د قول سره

**د لايعنى خبرو مثال:** امام غزالی رحمه الله فرمائی چه بې فائدې اولايعنى خبرې هغه دی دکوم په نه کولو سره چه په يو سړې باندې ګناه نه لازميږی او په کولو کښې دَ لغزش خطره وی مثلاً يو سړې دَ پخوانئی زمانې دَ خپل مختلف سفرونو اوږدې اوږدې قصې اوروی که چرې دې هغه قصې بيان نه کړی نو هيڅ ضروری نه دی او که بيانوی ئې نو په دې کښې لغزش او دَ غلطئی خطره شته دا فضول اولايعنى خبرې دی که لغزش نه هم وی خو بيا هم په دې سره قيمتی وخت خو ضائع کيږی. امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائی دا حديث دَ اسلام په څلورو حصو کښې څلورمه حصه او ربع الإسلام دې

۴۸۳۱-()① وَرَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ" عَنْهُمَا.

**ترجمه:** ①او دا روايت ابن ماجه د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه او ترمذي او بيهقي رحمه الله په شعب الايمان کې دواړو يعنى حضرت ابوهريره رضي الله عنه او حضرت علي ابن الحسين رضي الله عنه نه نقل کړي دي.

**تسهيلات: قوله:** مِنْ حُسْنِ إِسْلَامِ الْمَرْءِ تَرْكُهُ مَا لَا يَعْنِيهِ:

**په کلمه د ،، من،، کښې دوه احتمالات:**

① امام طيبي فرمائي چه دا من تبعيضيه ده او دا د نبي عليه السلام هغه قول طرف ته اشاره ده چه الإحسان أن تعبد الله كأنك تراه.

② من بيانيه شي نو دي صورت کښې به عبارت داسي شي **ترکه ما لا يعنيه هو حسن اسلام المرء** يعني لايعني خبري پريخودل د انسان د اسلام د خوبيانو نه يوه خوبي ده

**اسلام سره متعلق څلور بنيادی احاديث:**

امام نووي فرمائي چه دا حديث په هغه څلورو احاديثو کښي شمارلي کيږی چه په هغه څلورو باندي د اسلام دارو مدار دي.

① حديث نعمان بن بشير: الحلال بين والحرام بين وبينهما مشتبهات لا يعلمهن إلا الله.

② من حسن إسلام المرء تركه ما لا يعنيه.

③ لا يؤمن عبد حتى يحب لأخيه ما يحب لنفسه.

[1]) اخرجه الترمذی فی السنن كتاب الزهد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب(رقم-۲۳۱۷، ۲۳۱۸) وابن ما جه فی السنن كتاب الفتن/باب كف اللسان فی الفتنة (رقم-۳۹۷۶)

④ إنما الأعمال بالنيات،

بعضي حضراتو د دريم حديث په ځاي دا حديث ليکلي دي چه ازهد في الدنيا يحبك الله وازهد فيما في أيدي الناس يحبك الناس. خو مشهور رومبني دي (التعليق الصبيح ج ٥ص: ١٨٦

**[٤٨٣٢] په يقين سره دَ چا دَ آخرت فيصله کول مناسب نه دی**

٤٨٣٢ -() [٢٩] [١] وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ[٢]: «تُوُفِّيَ رَجُلٌ مِنَ الصَّحَابَةِ.[٣] فَقَالَ رَجُلٌ: أَبْشِرْ بِالْجَنَّةِ.[٤] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " أَوَلَا تَدْرِي،[٥] فَلَعَلَّهُ تَكَلَّمَ فِيمَا لَا يَعْنِيهِ، أَوْ بَخِلَ بِمَا لَا يَنْقُصُهُ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه**: [١] او حضرت انس رضي الله عنه وايي [٢] چې يوه ورځ په صحابه ؤ رضي الله عنهم کې يو سړي وفات شو [٣] نو يو دويم سړي مرحوم مړي مخاطب کولو سره اوويل د حضور ﷺ د صحبت له برکته دي تاته د جنت بشارت وي [٤] رسول الله ﷺ (دي خبري اوريدو سره) هغه سړي ته وفرمايل ته دا خبره څرنګه کوي هرکله چې د حال حقيقت تاته معلوم نه دي [٥] کيدي شي چې دي سړي څه معامله کې ① خپلي ژبي نه داسې الفاظ ويستلي وي چې د هغه د پاره ضرر رسان وي ② يا يو په داسې شي کې يي بخل کړي وي چې په هغه کې کمي نه راځي (ترمذي)

**حل اللغات**: - ① لَايَنْقُصُهُ: کمی نه راځی په هغې کنبې.

**تسهيلات**:

**قوله**: أَوَلَا تَدْرِي، فَلَعَلَّهُ تَكَلَّمَ فِيمَا لَا يَعْنِيهِ، أَوْ بَخِلَ بِمَا لَا يَنْقُصُهُ:

**بې ضرورته خبرې کونکې باندې د جنتي حکم لګولو ممانعت**: يعنی دَ چاباره کنبې په يقين او جزم سره داسې فيصله نه دی کول پکار چه دا سړې جنتي دې ځکه چه دا دَ غيب معامله ده کومه چه الله تعالی ته حواله ده تاسو ته دَ دغه سړی دَ ظاهری او باطنی ټولو اړخونو علم نشته دې سره دَدې چه په ظاهره دا سړې دَ پاکيزه ژوندون مالك دې بلکه صحابی هم دې ليکن تاسو ته دَ هغه دَ ټولو معاملاتو علم نشته دې ډير ممکن دی چه ده څه بې فائدې خبره کړې وی يا په داسې څيز کنبې بخل کړې وی په کوم کنبې چه بخل نه دی کول پکار مثلاً په صدقه کولو کنبې ئی سستی کړې وی يا لايعنی خبره ئی کړې وی.

**د حديث خلاصه**:

**د حديث خلاصه**: يقين سره داسې فيصله کول دَ يوبنده دَپاره مناسب نه ده دکوم دَ مستقبل باره کنبې چه هغه ته علم نه وی دَ بخل کولو مطلب دادې چه سلام کولو صدقه ورکولو او علم خورولو کنبې بخل کوی په کوم سره چه دَ يو څيز دَ کميدو خطره

[1]) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الزهد عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب(رقم-٢٣١٦)

**[٤٨٤٣] دَ ژبې دَ فتنې نه بچ اوسئ**

٤٨٤٣-( )[٣٠] ⃝١«وَعَنْ سُفْيَانَ بْنِ عَبْدِ اللهِ الثَّقَفِيِّ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ⃝٢: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ مَا أَخْوَفُ مَا تَخَافُ عَلَيَّ؟⃝٣ قَالَ: فَأَخَذَ بِلِسَانِ نَفْسِهِ وَقَالَ: "هٰذَا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَصَحَّحَهُ.

**ترجمه** : ⃝١ او حضرت سفيان ابن عبد الله ثقفي ﷺ وايي ⃝٢ يوه ورځ ما عرض وکړو چې يا رسول نشته دبالله' تاسو ﷺ چې خما باره کې د کومو څيزونو نه ويرېږې په هغه کې د ټولو نه زيات خوفناك شي کوم يودي ⃝٣ حضرت سفيان ﷺ وايي (په دي اوريدو سره) حضور ﷺ خپله ژبه مبارکه ونيوله او وي فرمايل چې داشي [يعنی ستا باره کې ماته د ټولونه زياته ويره دي ژبې نه لګيږې چې د ګناه اکثره خبرې دي نه صادر کيږې نو ته د دې ژبې دفتنې نه محفوظ اوسه] ترمذي دا روايت نقل کړې دي اودايي صحيح ګرځولي دي

**د راوي مختصر تعارف:**

**حضرت سفيان ابن عبدالله ثقفي:** د حديث د راوی نوم سفيان، کنيت ئې ابوعمرو يا ابوعمرة دواړه دی د پلار نوم ئې عبدالله دې د طائف د مشهورې قبيلې ثقيف سره تعلق ساتی حضرت عمر ﷺ عثمان بن ابی العاص ﷺ معزوله کړو او د هغوی په ځائې ئې دوی عامل مقرر کړلو. د دوی صرف دا يو روايت دې کوم کو چه د مسلم نه علاوه په ترمذي او ابن ماجه کښې شته.

**تسهيل:**

**قوله ما أخوف:** کښې ما استفهاميه او أخوف خبر دي.

**قوله: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ مَا أَخْوَفُ مَا تَخَافُ عَلَيَّ؟:**

دا ما مضاف اليه دي. ما أخوف کښې ما موصوله ده د دي ضمير د محذوف طرف ته راجع دي **أی شیء أخوف أشياء تخاف منها علی.** امام طيبي فرمائي چه ما يخاف کښې ما موصوله. موصوفه يا مصدريه دريواړه کيدي شی

**قوله قال هذا:** هذا کښې دوه ترکيبي احتمالات دی مبتدا يا خبر

**[٤٨٤٤] دَدروغ ويونکی نه د حفاظت کونکو فرښتو تختيدل**

٤٨٤٤-( )[٣١] ⃝١وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ⃝٢ "«إِذَا كَذَبَ الْعَبْدُ تَبَاعَدَ عَنْهُ الْمَلَكُ مِيلًا مِنْ نَتْنِ مَا جَاءَ بِهِ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

---

[1]) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الزهد عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی إنذار النبی صلی الله عليه وسلم قومه (رقم-٢٤١٠) وابن ماجه فی کتاب الفتن/باب کف اللسان فی الفتنة (رقم-٣٩٧٢) واحمد فی المسند:٤١٣/٣

[2]) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی الصدق والکذب (رقم-١٩٧٢)

**ترجمه** : [۱] او حضرت ابن عمرو رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] هركله چې يوبنده دروغ وايي نو دهغه پيدا شوى شي ايعنى د دروغو بدبويي په وجه حفاظت كونكي] فرښتي هغه نه يه ميلونو لري ځي (ترمذي)

**حل اللغات** : - ① نَتْن: بدبوئى

**تسهيلات**:

**قوله** : إِذَاكَذَبَ الْعَبْدُ تَبَاعَدَ عَنْهُ الْمَلَكُ مِيلًا مِنْ نَتْنِ مَا جَاءَ بِهِ:

**د دروغو د بدبوئي څخه دفرشتو تيخته** : يعنى محافظ فرښتي د يو ميل په فاصله بندى د هغه سړى نه لري تختى كوم سړې چه دروغ وائى خكه چه دهغه د دروغو ونيلو د وجې نه دهغه د خلې نه ډير زيات سخت بدبوئى راوڅتيږى دكوم نه چه فرښتې تختى

**[۴۸۴۵] په دروغ اعتماد سره دهوكه وركول ډير لوئي خيانت دې**

د۴۸۴۵-() [۳۲] [۱] وَعَنْ سُفْيَانَ بْنِ أَسِيدٍ الْحَضْرَمِيِّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ[۲]: " «كَبُرَتْ خِيَانَةً أَنْ تُحَدِّثَ أَخَاكَ حَدِيثًا [۳] هُوَ لَكَ بِهِ مُصَدِّقٌ وَأَنْتَ لَهُ كَاذِبٌ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه** : [۱] او حضرت سفيان ابن اسيد حضرمي رضي الله عنه وايي چې ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل. وي فرمايل [۲] دا ډير لوي خيانت دي چې ته خپل (مسلمان) ورور ته يوه خبره وكړي [۳] او هغه په هغه خبره كې تاريښتيا وګڼي اوحال دا چې تا په حقيقت كې هغه ته دروغ ويلي وي (ابوداؤد)

**تسهيلات**:

**قوله** : كَبُرَتْ خِيَانَةً أَنْ تُحَدِّثَ أَخَاكَ حَدِيثًا هُوَ لَكَ بِهِ مُصَدِّقٌ وَأَنْتَ لَهُ كَاذِبٌ:

**په ظاهرى وضع قطع باندې څوک دهوكه كولووعيد** : يعنى هغه ملګرې دَدې دهوكه وركونكى شكل او شباهت ته ګورى د هغه معصوم وضع اوقطع ته ګورى د هغه شرافت او ظاهرى طهارت ته په كتلوسره پوره اعتمادپرې كوى چه داخو انسان نه بلكه فرښته ده د تصوف جُغې اود پټكى په دې جامه كښې دا سړې دهغه د پاره ليوه ثابتيږى او هغه ته ډيره خرابه دهوكه وركوى او دروغ ونيلوسره خپل مطلب اوباسى اوتختى ځى دادَ ټولو نه لوئى خيانت دې چه د ګډې په شكل كښې ليوه ثابت شو

**د سليمان عليه السلام په دربار كښې د مرغو شكايت** :بعضې كتابونو كښې ليكلى دى چه بعضې مرغود حضرت سليمان عليه السلام په مخكښې د يوښكارى شكايت اوكړو چه دې مونږ

() اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الأدب/بابٌ فى المعاريض (رقم-۴۹۷۱)

ښكاركوي حضرت سليمان عليه السلام هغه عدالت ته راؤغوښتو او دَ هغه نه ئې تپوس اوكړو چه دا مرغئي تاتـه دَ ښكاركولو شـكايت كـوي دغـه سـړي وئيـل اې دَ الله نبـي الله تعـالى خو دا مرغئي دَ انسانانو دَ ښكاردپاره پيدا كړې دى نوزه هم ښكاركوم پـه دې كښې دَ شكايت څه خبره ده؟ حضرت سليمان عليه السلام مرغوتـه اوفرمائيـل چه ددې سړي خبره خو معقول ده تاسو ولې شكايت كوئي؟ مرغو جواب وركړو اې دَ الله نبي مونږ دا شكايت نه كوو چه دې زمونږ ښكاركوي بلكه شكايت خو دادې چه دا سړې دَ ښكارى په شكل كښې نه راځي چه مونږ دې اوپيژنو او دَ ده نه خان بچ كړو بلكـه دې دَ يوصوفي پـه شكل كښې جغـه اوقبـه كـښې دَ يـو عابـد اوزاهـد پـه صورت كښې راځـي او وسله دَ جُغـې لانـدې پټوي مونږ خيال كووچه دې عبادت له ځي په دې كښې دې توپك راوباسـتي او مـونږ پـه دهوكه سره اوولي تاسو ده تـه حكم وركړئي چه دې دَ ښكارى پـه شـكل كښې راځـي چه مونږ دَ بچاؤ انتظام اوكړې شو.

## [٤٨٣٦] دَ دوه مخي منافق بد انجام

٤٨٣٦-()[٣٣] ① وَعَنْ عَمَّارٍ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«مَنْ كَانَ ذَا وَجْهَيْنِ فِي الدُّنْيَا، كَانَ لَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ لِسَانَانِ مِنْ نَارٍ» ". رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه** : ① او حضرت عمار رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل ② كوم سړي چې په دنيا كـې دو مخـي (منـافق) وي د قيامـت پـه ورځ بـه د هغـه پـه خولـه كـې د اور دوه ژبـې وي (دارمي)

**حل اللغات** :- ① ذَاوَجْهَيْنِ: دوه مخې، منافق.

**تسهيلات**:

**قوله: مَنْ كَانَ ذَاوَجْهَيْنِ فِي الدُّنْيَا كَانَ لَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ لِسَانَانِ مِنْ نَارٍ:**

**د قيامت په ورځ د چغلى خور سزاذو وجهين**، دوه مخيز اصل كښې منافق ته وئيلى كيږى چه هغه د چا سره هم مخلص نه وى په ژبه يو څه وائى او په زړه كښې يئ بل څه وى ليكن دلته مراد هغه كس دي چه چا سره مخامخ خبري كوى نو داسي وى چه مخاطب پري ګمان اوكړى چه دا خو ماسره ډير مخلص دي ليكن چه كله د ده نه پشي شاه خبره كوى نو د ژبي نه داسي الفاظ راوباسي چه ده ته پري تكليف رسى بعضي حضراتو وئيلى دى چه ذو وجهين هغه كس ته وئيلى كيږى چه كوم يو د بل سره جنګ كولو كښي هر كس ته د هغه د خوښي خبره كوى چه يو كس ته لاړ شي نو د هغه د مرضي خبره اوكړى او چه هغه بل كس ته ورشى نو د هغه د خوښي خبره اوكړى او دواړه په جنګ كړى.

---

[١] اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأدب /بابٌ في ذي الوجهين (رقم-٤٨٧٣) والدارمي رقم الحديث ٢٧٦٤

## [۴۸۴۷] دَ کمال ایمان سره منافي اعمال

۴۸۴۷-() [۳۴] ① وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "② «لَيْسَ الْمُؤْمِنُ بِالطَّعَّانِ، ③ وَلَا بِاللَّعَّانِ، وَلَا الْفَاحِشِ، وَلَا الْبَذِيءِ» " ④ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي " شُعَبِ الْإِيمَانِ ". وَفِي أُخْرَى لَهُ: " «وَلَا الْفَاحِشِ الْبَذِيءِ» "، وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه**: ① او حضرت ابن مسعود رضی الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② کامل مؤمن نه خو طعن کونکي وی ③ نه لعن کونکي او نه فحش ويونکي وي نه زبان درازی کونکي وي ④ (ترمذي بيهقي) او د بيهقي رحمه الله په روايت کې نه فحش ويونکي زبان دراز الفاظ دي (يعني په دي روايت کې بذي، د فاحش صفت گرځول شوي دي د دې مطلب دادي چې هغه سړي کامل مؤمن نشي کيدي چې د حد نه زيات فحش گووي او ترمذي ويلي دي چې دا حديث غريب دي.

**حل اللغات**:- ① الطَّعَّانِ: دا دَ مبالغې صيغه ده. کثير الطعن يعنی ډير طعن کونکې. ② اللَّعَّانِ: دا هم دَ مبالغې صيغه ده کثير اللعن يعنی سخت لعنت ويونکې. ③ الْفَاحِشِ: بدې خبرې يا گنده کونکې. ④ الْبَذِيءِ: فحش خبرې کونکې، بد اخلاقه.

**تسهيلات:**

**قوله**: لَيْسَ الْمُؤْمِنُ بِالطَّعَّانِ:

**دايمان د نفي په مفهوم کښې تاويلات:**

① د دې څخه مراد هغه کس دي چې دا څيزونه حلال گڼړی او د ((تحليل الحرام کفر)) قاعده مطابق دا کس کافر دي.

② دَ اسلوب حکيم په توگه دا کلام دي چه دَدې خرابو صفتونو والا خو مومن هډو کيدې نه شي

③ دې څخه کامل مومن مراد دې مطلق مؤمن مراد نه دي

④ د دې کارونو کونکی ته عدم مؤمن تشديداً تغليظاً تهديداً او توبيخاً ويلې شوې دي

**قوله**: وَلَا الْفَاحِشِ، وَلَا الْبَذِيءِ:

**دفاحش او بذي په مينځ کښې فرق**: لاالبذي" په باء باندې فتحه ذال باندې کسره ده او په ياء باندې شد دې فحش خبرې اترې کونکې بداخلاق سړی ته وائی

دَ فاحش نه پس دا دوباره راوړلې شو لهذا دَتکرار نه دَ بچ کيدو دَپاره شارحين فرمائی

① ملاعلی قاری رحمه الله البذی دَ الفاحش دَپاره عطف تفسيری گرځولې دې. دَ روايت آخری

---

[١] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی اللعنة (رقم ١٩٧٧) واحمد فی المسند: ٤٠٥/١، والبهقی فی الشعب رقم الحديث ٥١٤٩

حصه د دې تائید کوی ځکه چه په دې کښې عطف تفسیری موجود دې بهرحال دا افعال
د ایمان منافی دی لهذا په هرمسلمان باندې لازم دی چه د دې نه ځان اوساتی
② چې فاحش په قولی فحاشی باندې محمول دې اوبذي په فعی فحاشی کونکې باندې
حمل کړې دي

**[۲۸۳۸] لعنت کونکې سړې کامل مؤمن نه شی کیدې**

۲۸۳۸-(¹) [۳۵] ۱ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ "«لَا يَكُونُ الْمُؤْمِنُ لَعَّانًا". ۳ وَفِي رِوَايَةٍ: "لَا يَنْبَغِي لِلْمُؤْمِنِ أَنْ يَكُونَ لَعَّانًا»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه** : ۱ او حضرت ابن عمر رضی الله عنهما وايي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ۲ هغه سړي کامل مؤمن نشي کیدي کوم سړي ډیر زیات لعنت کونکي او د لعنت کولو عادي وي ۳ او په یوبل روایت کې دا الفاظ دي او د هیڅ مؤمن د پاره دا موزون نه دي چې هغه ډیر زیات لعنت کونکي وي (ترمذي)

**تسهیلات:**

**قوله : لَا يَكُونُ الْمُؤْمِنُ لَعَّانًا:**

**د لعنت وئیلو د کمال ایمان سره منافات** : امام طیبي فرمائي چه ته یو مسلمان ته هم دا مه وایه چه په تا دې لعنت وی د الله غضب دي وی یا دوزخ ته لاړ شه یا هغه د الله د رحمت نه مه لرې کوه البته په خاص وصف باندې لعنت کول جائز دی لکه **لعنة الله علی الکاذبین و الیهود و الفاسق و آکل الربوا و الزانی و السارق** او هم دغه شان هغه کس چه په کفر مړ شوي وی په هغه لعنت کول جائز دی لکه فرعون او ابو جهل وغیره (التعلیق الصبیح ج٥ ص:١٨٨)

**[۲۸۳۹] د لعنت وئیلو او د خیرو کولو نه ځان اوساتئ**

۲۸۳۹-(²) [۳۶] ۱ وَعَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ «لَا تَلَاعَنُوا بِلَعْنَةِ اللَّهِ، وَلَا بِغَضَبِ اللَّهِ، وَلَا بِجَهَنَّمَ". ۳ وَفِي رِوَايَةٍ "وَلَا بِالنَّارِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه** : ۱ او حضرت سمره ابن جندب رضی الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ۲ په خپل منځ کې یو بل د پاره مه ① خو د خداي جل جلاله د لعنت بددعا کوئ ② نه د خداي جل جلاله د غضب ③ او نه جهنم ته د تلو بد دعا کوئ (ترمذي، ابوداود)

---

¹) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم /باب ما جاء فی اللعن والطعن (رقم-۲۰۱۹) واحمد فی السند:۲/۳۶۶

²) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب /بابٌ فی اللعن (رقم-۴۹۰۶) والترمذی فی کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم /باب ما جاء فی اللعنة (رقم-۱۹۷۶) واحمد فی السند:۱۵/۵

**تسهيلات:**

**قوله:** لَاتَلَاعَنُوا بِلَعْنَةِ اللّٰهِ:

**په مسلمان باندې دلعت وئيلو ممانعت:** د حديث الباب حاصل دا دي چه هيڅ يو مسلمان له دا مناسب نه دی چه په بل مسلمان باندي لعن طعن اوکړی يا هغه ته خيري اوکړی چه خيري کول نا پسنديده دی نو لعن طعن کول خو د هغي نه زيات ناپسنديده دي او هم دغه شان چا له دا جائز نه دی چه هغه بل مسلمان ته اوائي چه په تا دي د الله تعالي لعنت يا غضب وي يا خدائي دي اوکړی چه ته جهنم ته لاړ شي

**[۴۸۵۰] په ناجائزه لعنت ويونکی باندې لعنت واپس راګرځی**

۴۸۵۰-(١)[۳۷] [١] وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-يَقُولُ: [٢] «إِنَّ الْعَبْدَ إِذَا لَعَنَ شَيْئًا [٣] صَعِدَتِ اللَّعْنَةُ إِلَى السَّمَاءِ، [۴] فَتُغْلَقُ أَبْوَابُ السَّمَاءِ دُونَهَا، [۵] ثُمَّ تَهْبِطُ إِلَى الْأَرْضِ فَتُغْلَقُ أَبْوَابُهَا دُونَهَا، [٦] ثُمَّ تَأْخُذُ يَمِينًا وَشِمَالًا، [٧] فَإِذَا لَمْ تَجِدْ مَسَاغًا [٨] رَجَعَتْ إِلَى الَّذِي لُعِنَ، [٩] فَإِنْ كَانَ لِذَلِكَ أَهْلًا، [١٠] وَإِلَّا رَجَعَتْ إِلَى قَائِلِهَا» "رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابودرداء رضی الله عنه وايي ما د رسول الله ﷺ نه دا واوريدل [٢] هرکله چې يوبنده يو شي [يعنی يو انسان يا غير انسان] باندې لعنت وايي [٣] نو هغه لعنت آسمان طرف ته ځي [۴] او د آسمان دروازي هغه لعنت باندې بندول کيږي. [۵] بيا هغه لعنت زمکې ته راخکته شي نو د زمکي دروازي هم په هغه لعنت بندي شی [٦] بيا هغه لعنت ښي او چَپ طرف ته تلل غواړي [خو هلته هم وشړل شي] [٧] هرکله چې هغه هيڅ طرف ته هم لار پيدا نه کړي [٨] نو د هغه شي طرف ته متوجه کيږي چې په هغه لعنت شويدي [٩] تردي که هغه شي د هغه لعنت اهل او سزا وار وي [نو په هغه واقع کيږي] [١٠] ګينی خپل ويونکي طرف ته واپس واپس کول کيږي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① صَعِدَتِ: خيجی. پورته ځی. ② فَتُغْلَقُ: نو بندولې شی. ③ تَهْبِطُ: راکوزيږی. ④ مَسَاغًا: لار. ځای.

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّ الْعَبْدَ إِذَا لَعَنَ شَيْئًا صَعِدَتِ اللَّعْنَةُ إِلَى السَّمَاءِ، فَتُغْلَقُ أَبْوَابُ السَّمَاءِ دُونَهَا:

**د لعنت آسان ته ختل:** يعنی دَ الله تعالی دَ نظام لاندې دا لعنت غواړی چه اخوا ديخوا لاړشي ضائع شی يا لرې په چا باندې واقع شی هم دَدې مقصد دَپاره دا آسمان ته خيژی کله چه هلته لار نه ملاويږی نوزمکې ته راشی او ښی طرف او ګس طرف ته دَ وتلو

[١] اخرجه ابرداود فی السنن کتاب الأدب/بابٌ فی اللعن (رقم-۴۹۰۵)

کوشش کوی. چرته دَ ننوتلو کوشش کوی کله چه هلته لار نه ملاویږی نو دَ بنی او گس طرف ته دَ وتلو کوشش کوی چه کله هلته هم د وتلو څه لار نه ملاویږی نو لاړشی او هم هغه سړی یورې دَ اینختو کوشش کوی په چاباندې چه لعنت وئیلې شوې وو که هغه دې مستحق وی نو لعنت هم په هغه ځائی پورې اونخلی گنی د هغه ځائی نه واپس شی هم په هغه سړی باندې اولگی چاچه بې موقع اوبې محل لعنت کړې وو

**[٢٨٥١] په نورو څیزونو باندې د لعنت وئیلو ممانعت**

٤٨٥١-( ) [١] [٣٨] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- [٢] «أَنَّ رَجُلًا نَازَعَتْهُ الرِّيحُ رِدَاءَهُ فَلَعَنَهَا، [٣] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "لَا تَلْعَنْهَا فَإِنَّهَا مَأْمُورَةٌ، [٤] وَإِنَّهُ مَنْ لَعَنَ شَيْئًا لَيْسَ لَهُ بِأَهْلٍ [٥] رَجَعَتِ اللَّعْنَةُ عَلَيْهِ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**: [١] او د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه روایت دې [٢] چې د یوې ورځې واقعه ده چې د یو سړي پټو په هوا کې والوتي نو هغه په هوا لعنت اووئیلو [٣] رسول الله ﷺ ورته وفرمایل په هوا لعنت مه کوه ځکه چې هغه خو د حکم تابع ده [٤] او حقیقت دادې چې کوم سړي یو داسې شي باندې لعنت اووائي چې هغه دَلعنت قابل نه وي [٥] نو هغه لعنت په هغه واپس واقع کیږي (ترمذي ابوداود)

**حل اللغات**:- ① نَازَعَتْهُ: لرې کړو دهغه نه، ② الرِّيحُ: هوا، ③ رِدَاءَهُ: څادر دهغه

**تسهیلات**:

**قوله**: لَا تَلْعَنْهَا فَإِنَّهَا مَأْمُورَةٌ:

**ایا په اجمال سره لعنت وئیلې شی ؟**: یعنی هوا خو په خپل حکم سره نه چلیږی بلکه دَ الله تعالی په حکم باندې چلیږی انسان له پکاردی چه دا پوره نظام په خیال کښې اوساتی نه دا چه زړه تنگیدو سره په ظاهری سبب باندې حمله اوکړی هوا خو یو ظاهری سبب دې اصل حکم خودَ الله تعالی دَ طرف نه دې چرته داسې اونه شی چه په دې کښې دَ الله تعالی دَ شان بې ادبی او گستاخی اوشی دَ دې حدیث نه معلومه شوه چه دَ انسانانو نه علاوه په نورو څیزونو باندې لعنت وئیل هم منع دی او اجمال سره لعنت وئیلې شی لکه چه اووئیلې شی په غلو دې دَ الله تعالی لعنت وی په شرابیانو باندې دې دَ الله تعالی لعنت وی په قاتلانِ حسین باندې دې دَالله تعالی لعنت وی

[١] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب/باب فی اللعن(رقم -٤٩٠٨) والترمذی فی کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی اللعنة (رقم -١٩٧٨)

**[۴۸۵۲] دَ مشرانو په مخکښې دَ خلقو عیبونه ښکاره کولو ممانعت**

۴۸۵۲-(۱) [۱] [۳۹] وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «لَا يُبَلِّغُنِي أَحَدٌ مِنْ أَصْحَابِي عَنْ أَحَدٍ شَيْئًا، [۳] فَإِنِّي أُحِبُّ أَنْ أَخْرُجَ إِلَيْكُمْ وَأَنَا سَلِيمُ الصَّدْرِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت ابن مسعود رضی الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] ځما صحابه ؤ رضی الله عنهم کې د یو سړي باره کې ماته هیڅ داسې خبره مه رسوئ اچې د هغه نه د هغه بدي ښکاره کیږي یعنی ماته راتلو سره د چا باره کې دا مه وایئ چې فلاني سړي دا بدکار کړي دي یا دا خرابه خبره یي کړي ده یا هغه دي خراب عادت کې مبتلا دي [۳] ځکه چې زه داخوښوم چې زه د کور نه راوتلو سره تاسو ته راسم نو ځما سینه دي صفا وي چې ځما زړه کې په تاسو کې د هیچا د طرف نه څه نلراضتیا غصه او بغض نه وي (ابوداؤد)

**حل اللغات**: - ① سَلِيمُ: روغ او صفا وی. ② الصَّدْرِ: سینه، زړه

**تسهیلات:**

**قوله: لَا يُبَلِّغُنِي أَحَدٌ مِنْ أَصْحَابِي عَنْ أَحَدٍ شَيْئًا:**

**د مشرانو په مجلس کښې د یو مسلمان چغلی غیبت یا بدې خبرې نه دی کول پکار:**

یعنی کوم څه چه انسان اوری نو هغه ته څه نه څه خیال ضروری راځی دَ حدیث مطلب دا شو چه نبي علیه السلام خپل صحابه دَدې نه منع کړل چه دَهغوی په مخکښې دَ یوصحابی باره کښې څوك څه اونه وائی ځکه چه په دې سره په زړه کښې څه نه څه خیری راځی اونبي علیه السلام اوفرمائیل چه زه غواړم چه دَدې دنیا نه داسې اوچت کړې شم چه زما زړه دَ هرصحابی دَپاره صفا او راضی وی.دَدې حدیث نه دَ صحابه کرامو دَ لوئی شان اندازه کیږی او په دې سره امت ته داتعلیم هم ملاؤ شو چه دَ حاکم اومقتداء او دَ مشرانو په مجلس کښې دَ یومسلمان چغلی غیبت یا بدې خبرې نه دی کول پکار په کوم سره چه دَ مشر په زړه کښې خیرې پیدا کیدې شی.

**[۴۸۵۳] دَ چا په اندامونو کښې د عیب راویستلو ممانعت**

۴۸۵۳-(۲) [۱] [۴۰] «وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا - قَالَتْ: قُلْتُ لِلنَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] حَسْبُكَ مِنْ صَفِيَّةَ كَذَا وَكَذَا - تَعْنِي قَصِيرَةً - [۳] فَقَالَ: "لَقَدْ قُلْتِ كَلِمَةً لَوْ مُزِجَ بِهَا الْبَحْرُ لَمَزَجَتْهُ"». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ.

---

[۱]) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب/بابٌ فی رفع الحدیث من المجلس (رقم-۴۸۶۰) والترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/بابٌ فی فضل أزواج النبی صلی الله علیه وسلم (رقم-۳۸۹۷) واحمد فی المسند: ۳۹۶/۱

[۲]) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب/بابٌ فی الغیبة (رقم-۴۸۷۵) والترمذی فی کتاب صفة القیامة والرقائق والورع عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/بابٌ (رقم-۲۵۰۲) واحمد فی المسند: ۱۸۹/۶

**ترجمه** :۱ او بي بي عائشه رضي الله عنها فرمايي چې يوه ورځ ما رسول الله ﷺ ته دا اوويل ۲ چې بي بي صفيه رضي الله عنها ستاسو ﷺ د پاره دومره کافي ده چې هغه داسې داسې ده دي خبري نه د بي بي عائشه رضي الله عنها مراد بي بي صفيې رضي الله عنها د قد لنډوالي ذکر کول وو ۳ رسول الله ﷺ (ځما داخبره اوريدو سره ناګواري سره يې) وفرمايل چې تا دخپلې ژبې نه يوه داسې خبره وويستله که هغه درياب کې يوځاي شي نو بلا شبه داخبره به په درياب غالب شي (احمد ترمذي ابوداود)

**حل اللغات** :- ۱ قَصِيرَةٌ: لنډوالي، ۲ مُزِجَ: ګډ کړې شي.

**تسهيلات**:

**قوله** :حَسْبُكَ مِنْ صَفِيَّةَ كَذَا وَكَذَا- تَعْنِي قَصِيرَةً:

**د حديث پس منظر** : يعني دَ صفيه دَ معيوب کيدو دَپاره دا کافي دی چه دَهغې قد وړوکې دې حضرت صفيه رضي الله عنها دَ خيبر په مال غنيمت کښې راغلې وه نبي عليه السلام حضرت صفيه رضي الله عنها آزاده کړه او بيائې ورسره نکاح اوکړه چه ام المؤمنين جوړه شوه دَ خيبر دَ لوئی سردار حئی بن اخطب لور وه اودَ اولاد هارو عليه السلام نه وه حضرت صفيه رضي الله عنها په خوراك پخولو کښې ډيره ماهره وه دَ کوم په وجه چه نورو بيبيانو ته خطره وه چه دَنبي عليه السلام توجيه په مکمل توګه دَهغې طرف ته متوجه نه شی.په بنو کښې دا يو طبعی امر وی که بشريت وې نو دا څيزونه نه شی نظرانداز کولې حضرت عائشه رضي الله عنها دَ حضرت صفيه رضي الله عنها باره کښې دَ يو امر واقعی تذکره دَنبي عليه السلام په مخکښې اوکړه چه دَ حضرت صفيه رضي الله عنها قد وړوکې دې.دا خبره دَ غيبت په زمره کښې راتله ځکه چه که هم دغه خبره دَ حضرت صفيه رضي الله عنها په مخکښې شوې وې نو هغې به دا نه خوښوله او غيبت هم دَ دغه څيز نوم دې په دې وجه نبي عليه السلام اوفرمائيل چه تا داسې ترخه کلمه اووئيله چه که دا دې په سمندر کښې واچوله نو هغه به په دې باندې تريخ شی.

**قوله** :لَوْمُزِجَ بِهَا الْبَحْرُ لَمَزَجَتْهُ:

**دغيبت په وجه د سمندراوبه ترخې کيدل** :يعني دا کلمه به سمندر هم بدل کړی او هغه به دَدې په خراب اثر سره تريخ او بدبودار شی بعضې شارحينو ليکلی دی چه حضرت عائشه رضي الله عنها کذا وکذا په الفاظو سره خپل ليشت طرف ته اشاره اوکړه چه هغه دومره لنډئی ده لکه دا ليشت چه دې.

**[۴۸۵۴] بدګوئی د عیب داره کولو او حیا دَ زینت سبب ګرځی**

۴۸۵۴-()[۴۱] [۱] وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«مَا كَانَ الْفُحْشُ فِي شَيْءٍ إِلَّا شَانَهُ، [۳] وَمَا كَانَ الْحَيَاءُ فِي شَيْءٍ إِلَّا زَانَهُ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت انس رضی الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] په کوم څیز کې چې بدګویي او سخت کلامي وي هغه عیب دار جوړ وي [۳] او کوم څیز کې چې حیاء او نرمي وي هغه ته زیب وزینت ورکوي. (ترمذي)

**حل اللغات**: - ① اَلْفُحْشُ: فحش ګوئی، غلطې خبرې، ② زَانَهُ: ښائسته کوی ئې

**تسهیلات:**

**قوله: مَا كَانَ الْفُحْشُ فِي شَيْءٍ إِلَّا شَانَهُ:**

**د فحش وینا کولو نقصان**: دَ فحش اطلاق قول او فعل دواړو ته عام دي فحش خبرې کول دادی چه قبیح امور په صریح الفاظوسره ذکر کړې شی مثلاً دَ شرمګاه نوم اخستل کنځلې وغیره هم په دې کښې داخل دی بلکه داسې کلمات چه دَ هغې په اوریدو باندې عرفًا حیا راځی هغه ټول په فحش کښې داخل دی. فحش فعلی وائی داسې حرکتونه کولو ته کوم ته په کتو چه شرم محسوسیږی بهرحال فحش خبرې او کارونه دواړه خراب دی دَ دې منبع خبث باطن او دنائت دې حضورپاک دَ دې نه دَ بچ کیدو سخت تاکید فرمائیلې دې فرمائی إياكم والفحش فإن الله تعالى لايحب الفحش ولا الفاحش.

**قوله: إِلَّا شَانَهُ:**

**دفحش په ګډون سره پاک ناپاکه کیدل**: ماخوذ من الشین په معنی د معیوب جوړولو دَدې مصلحت دادې چه فحش هر څیز لره که هغه قول وی که فعل وی معیوب جوړوی که فحش خبرې دی نوداهم دَعیب سبب دې اوفحش فعلی هم انسان لره معیوب جوړولو دَپاره کافی دی.

**قوله: وَمَا كَانَ الْحَيَاءُ فِي شَيْءٍ إِلَّا زَانَهُ**

**د حیاء تعریف**: دلته دَ حیاء نه مراد دَ فحش مقابل دې یعنی داسې قول اوفعل په کوم کښې چه هیڅ قباحت نه وی داڅیز دَ انسان دَ ښائست سبب دې.

بعضې شارحینو دَ فحش نه دَمزاج نشته دېسختی مراد اخستې ده اودَ حیا نه ئې نرمی مراد اخستې ده.

() اخرجه الترمذی فی السنن کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الفحش والتفحش (رقم-۱۹۷٤) وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب الحیاء (رقم-٤۱۸۵) واحمد فی المسند:۱۶۵/۳

**[٤٨٥٥] د ګناه نه توبه کونکي ته د پيغور ورکولو سخته سزا**

٤٨٥٥-()[٣٢] ① وَعَنْ خَالِدِ بْنِ مَعْدَانَ، عَنْ مُعَاذٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② «مَنْ عَيَّرَ أَخَاهُ بِذَنْبٍ لَمْ يَمُتْ حَتَّى يَعْمَلَهُ» ". ③ يَعْنِي: مِنْ ذَنْبٍ قَدْ تَابَ مِنْهُ. ④ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ وَلَيْسَ إِسْنَادُهُ بِمُتَّصِلٍ; ⑤ لِأَنَّ خَالِدًا لَمْ يُدْرِكْ مُعَاذَ بْنَ جَبَلٍ.

**ترجمه:** ① او حضرت خالد رحمه الله ابن معدان د حضرت معاذ رضي الله عنه نه نقل کوي هغوئ اوويل چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② کوم سړي چې خپل مسلمان وررور تـه يو ګناه باندې عار ورکوي ايعني کـه د يو مسلمان نـه څه ګناه سرزد شي او يو سړي هغـه تـه شرم او غيرت ورکوي او سرزنش او ملامت کوي يې! نو هغه عار ورکونکي به د مرګ نـه مخکې خپله هغه ګناه کې څه ناڅه طريقي سره ضرور مبتلا کيږي ③ د حضور ﷺ مراد هغه ګناه وه چې د هغه نه هغه توبه کاړلي وي ④ ترمذي رحمه الله دا روايت نقل کړي دي او ويلي يې دي چې داحديث غريب دي او د دې سند متصل نه دي ⑤ ځکه چې خالد رحمه الله د حضرت معاذ رضي الله عنه زمانه نه ده پيدا کړي.

**حل اللغات:** - ① عَيَّرَ: عار او شرم ورکول، ملامته کول.

**تسهيلات:**

**قوله: مَنْ عَيَّرَ أَخَاهُ بِذَنْبٍ لَمْ يَمُتْ حَتَّى يَعْمَلَهُ:**

**بار بار جرم کولو والا ته پيغور ورکول جائز دی:** يعنی يو سړی دَ بشری تقاضې دَ وجې نه څه ګناه اوکړه او بيا ئی په کمال اخلاص سره دَ هغې ګناه نه توبه اوکړه مګر يو سړې دَتوبې نه پس هم هغه پسې لګيدلې دې او دَهغه زړې ګناه پيغور ورکوی. په کوم کښې چه بغيردَ تذليل نه نوره هيڅ فائده. نوداسې سړې به ترهغه وخته پورې نه مری ترکومې پورې چه هم په هغه ګناه کښې راګيرنه شی. مطلب دا چه په مخکينې ګناه باندې دَ توبې نه پس يو سړې ملامته کول جائز نه دی که چرې څوك داسې کوی نو سزا به خوری اوکه دغه ګناهګار توبه اونه کړه اوس هم هغه پخپله هغه پخوانئی ګناه کښې اخته دې نو پيغور ورکول او دَ هغه رټل جائز دی ځکه چه بار بار دَ جرم ارتکاب دَهغه ناموس تار تار کړې دې

په دې شرط چه هغه ته شرم او غيرت ورکول (پيغور ورکول) او ملامته کول د تکبر په طريقه او د تحقير په قصد نه وی بلکه د تنبيه او نصيحت په طريقه او هغه لره د ګناه نه منع کولو په قصد وی

په دې حديث کښې دا الفاظ (يعني من ذنب قد تاب منه) د امام احمد بن حنبل نه منقول

[1] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/بابٌ (رقم-٢٥٠٥)

دی او دا الفاظ د حدیث په آخر کښې نقل کولي شی
امام ترمذي دا روایت غریب گرځولي دې او په حدیث کښې ئي کلام کړې دې لیکن عراقي وائي چه دا روایت احمد و طبراني په صحیح سند سره نقل کړې دې

**[۴۸۵۶] دَ چاپه تکلیف باندې دَ خوشحالۍ ښکاره کولو سخته سزا**

۴۸۵۶–(۱)(۴۳) [۱] وَعَنْ وَاثِلَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "[۲] «لَا تُظْهِرِ الشَّمَاتَةَ لِأَخِيكَ [۳] فَيَرْحَمَهُ اللّٰهُ وَيَبْتَلِيَكَ» ". [۴] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت واثله رضی الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] د خپل مسلمان ورور په تکلیف دومره خوشحالي مه ښکاره کوه (یعنی که یو داسې مسلمان څه دنیاوي یادیني مصیبت او آفت کې مبتلا ووینې یادیني مصیبت او آفت کې مبتلا ووینې د چاسره چې ته عداوت لرې نو د هغه په تکلیف د خوشحالي اظهار مه کوه) [۳] څکه کیدی شي چې (ستا د بې ځایه خوشحالي نه ناراضه کیدو سره) خدای تعالی په هغه خپل رحمت نازل کړي (یعني هغه ته د هغه مصیبت او آفت نه نجات ورکړي) او تا په هغه آفت او مصیبت کې مبتلا کړي [۴] دا روایت ترمذي رحمه الله نقل کړي دي او ویلي یې دي چې دا حدیث حسن غریب دي.

**حل اللغات**:- ① الشَّمَاتَةَ: دچا په تکلیف باندې خوشحالیدل.

**قوله: وَعَنْ وَاثِلَةَ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ**: دا ابن الأسقع اللیثی دي. نبي علیه السلام چه کله غزوه تبوک له تلو نو ده هغه وخت اسلام قبول کړو. دي د نبي علیه السلام په خادمانو کښې شمارلي کیږی چه کله ده اسلام قبول کړو نو دغه وخت د ده عمر دیرش (۳۰) کاله وو او دي د اهل صفه نه هم شمارلي کیږی. دوی د سلو کالو په عمر کښې په بیت المقدس کښې وفات شوي دي

**قوله: لَا تُظْهِرِ الشَّمَاتَةَ لِأَخِيكَ:**

**أى الفرح ببلية عدوك** یعني د چا سره د دشمني په وجه په هغه باندې راتلونکی ازمینبت باندې مه خوشالیږه. برابره ده که هغه ازمینبت دیني وی او که دنیاوی، بدني وی او که مالي څکه چه دا څه لرې خو نه ده چه الله تعالي په هغه باندې رحم اوکړی او هغه ازمینبت په تا باندې راولی بلکه چه څوک په مصیبت کښې اویني نو د عافیت دعا اوغواړه او د خپل رور مرسته اوکړه.

(۱) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب صفة القیامة والرقائق والورع عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۲۵۰۶)

**[۴۸۵۷] دَچا نقل کول ناجائز دي**

۴۸۵۷-()[۳۴] ۱ وَعَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا- قَالَتْ: قَالَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "۲ «مَا أُحِبُّ أَنِّي حَكَيْتُ أَحَدًا ۳ وَأَنَّ لِي كَذَا وَكَذَا»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَصَحَّحَهُ.

**ترجمه**: ۱ او بي بي عائشه رضي الله عنها وايي چي رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ زه دا خبره هيڅ کله نه خوښوم چې زه د يو سړي نقل وکړم ۳ اګر که زما د پاره داسې اوداسي وي [يعنی که څوک ماته بي حسابه مال او زر او هرڅومره زياتي روپي پيسي هم راکړي نو هم د چا نقل کول به ګوارا نه کړم] ترمذي دا روايت نقل کړي دي او دا يي صحيح ګرځولي دي.

**حل اللغات**:- ۱ حَكَيْتُ: دچا نقل کول، پيښې کول.

**تسهيلات**:

**قوله: مَا أُحِبُّ أَنِّي حَكَيْتُ أَحَدًا**:

**دچا په نقل اختيارولو کښې مذمت**: داحکايت نه دي اوحکايت نقل کولو ته وائی مثلاً دَ يوګوډ نقل کولو سره ګوډ ګوډ تلل يا دَ يو کاڼه سړی نقل کوی. الغرض دَ چا دَ تګ راتګ، کيناستو پاسيدو، کتلو اوخبرو کولو نقل کول منع ګرځولې شوی دی. لهذا نبي عليه السلام اوفرمائيل که چرې ماته دَ چا نقل کولو سره ټوله دنيا هم ملاؤ شی نو زه به بيا هم دَ چا نقل اونه کړم.

**[۴۸۵۸] دَالله تعالی فراخه رحمت د محدود کولو ممانعت**

۴۸۵۸-()[۳۵] ۱ وَعَنْ جُنْدُبٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: «جَاءَ أَعْرَابِيٌّ ۲ فَأَنَاخَ رَاحِلَتَهُ، ثُمَّ عَقَلَهَا، ۳ ثُمَّ دَخَلَ الْمَسْجِدَ فَصَلَّى خَلْفَ رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ۴ فَلَمَّا سَلَّمَ أَتَى رَاحِلَتَهُ فَأَطْلَقَهَا، ثُمَّ رَكِبَ، ۵ ثُمَّ نَادَى: اللَّهُمَّ ارْحَمْنِي وَمُحَمَّدًا ۶ وَلَا تُشْرِكْ فِي رَحْمَتِنَا أَحَدًا، ۷ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "أَتَقُولُونَ هُوَ أَضَلُّ أَمْ بَعِيرُهُ؟ ۸ أَلَمْ تَسْمَعُوا إِلَى مَا قَالَ؟" قَالُوا: بَلَى». ۹ رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَذُكِرَ حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ "وَكَفَى بِالْمَرْءِ كَذِبًا" فِي "بَابِ الِاعْتِصَامِ" فِي الْفَصْلِ الْأَوَّلِ.

**ترجمه**: ۱ او حضرت جندب رضي الله عنه وايي چې يوه ورځ يو باندچي (کليوال) سړي خپل اوښ باندې سپور مديني ته راغلو ۲ مسجد نبوي ﷺ ته نزدې رسيدو سره خپل اوښ يي کينوي او د هغه پښې يې اوتړلې ۳ بيا مسجد کې داخل شو بيا هغه رسول الله ﷺ پسي مونځ وکړو ۴ اوسلام ګرځولو نه پس يعنی مونځ نه فارغيدو سره خپل اوښ ته راغلو او هغه کهولاؤولو سره په هغه سپور شو ۵ او بيا هغه په اوچت اواز دا اوويل چې اي الله!

---

[1] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/بابٌ (رقم-۲۵۰۳) واحمد فی المسند: ۱۲۸/۶

[2] اخرجه ابوداودفی السنن کتاب الأدب/باب من ليست له غيبةٌ (رقم-۴۸۸۵) واحمد فی المسند: ۳۱۲/۴

په مابانديې او محمد ﷺ باندي خپل رحمت نازل کړي ⑥ او زمونږ په رحمت کې بل څوك زمونږ سره شريك مه کړي ⑦ رسول الله ﷺ چې هغه نه داقسم دعا واوريده نو صحابه ؤ ﷺ ته يي وفرمايل تاسو ښودلي شی چې دا باندچي (کليوال) زيات جاهل دي يا د هغه اوښ؟ ⑧ تاسو وانه وريدل چې هغه څه اوويل صحابه وَ ﷺ عرض وکړو چې هو مونږ اوريدلي دي ⑨ (ابوداؤد) او د حضرت ابوهريره ﷺ روايت. کفی بالمرءِ کذباً الخ باب الاعتصام کې نقل شوي دي

**حل اللغات** :- ① فَأَنَاخَ: کينولو (د اوښ کينول مراد دی)، ② عَقَلَهَا: خپې ئې ورله اوترلې. ③ أَطْلَقَهَا: خپې ئې ورله پرانستلې، ④ أَضَلُّ: زيات ګمراه، زيات جاهل. ⑤ بَعِير: اوښ

**تسهيلات**:

**قوله**: فَلَمَّا سَلَّمَ أَتَى رَاحِلَتَهُ فَأَطْلَقَهَا:

**په سلم کښې دوه احتمالات**: ① چه کله ئی دَ واپسئی په وخت نبي عليه السلام ته سلام اوکړو اولاړو.

② چه کله ئی دَ مانځه سلام واړولو او په سورلئی باندي راغلو نو دا دعائی اوغوښتله

**قوله**: اللَّهُمَّ ارْحَمْنِي وَمُحَمَّدًا وَلَا تُشْرِكْ فِي رَحْمَتِنَا أَحَدًا:

**د الله تعالى فراخه رحمت تنګول**: دا لفظ دَ أتظنون په معنى کښې دې يعنى ستا څه خيال دي اوته څه وئيلي شې چه دا سړې زيات جاهل دې که دَ ده اوښ زيات جاهل دی؟ ولې تا وانوريده چه ده اوس کومه دعا اوغوښتله.واؤره چه هغه دَ الله تعالى خومره وسيع رحمت رامحدود کړو بلکه دَ نورو مسلمانانو په حق کښې ئی بددعا اوکړه چه په چاباندې رحم اونه کړې صرف په مونږ دواړو باندې رحم اوکړه بعضې شارحينو ليکلی دی چه دا هم هغه باندچی اوکلی وال دې چا چه دَ جمات په صحن متيازې کړې وې

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [۴۸۵۹] دَ فاسق په تعريف باندې الله غصه کيږی

۴۸۵۹-(¹)[۳۶] ① عَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "②«إِذَا مُدِحَ الْفَاسِقُ غَضِبَ الرَّبُّ تَعَالَى ③ وَاهْتَزَّ لَهُ الْعَرْشُ» "رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ".

**ترجمه**: ① حضرت انس ﷺ وايي چی رسول الله ﷺ وفرمايل ② هرکله چې د فاسق مدحه او تعريف کيږي (يعني يو سړي د هغه په حق کې د تعظيم او توقير الفاظ استعمالوي) نو خداي ﷻ مدح او تعريف کونکي باندې غصه کيږي ③ او د هغه د مدحي او تعريف په

¹) اخرجه البيهقی فی شعب الايمان رقم الحديث ۴۸۸۶

وجه عرش رپيږي (بيهقي)

**حل اللغات:-** ① مُدِحَ: تعريف كولې شي، ② اهْتَزَّ: رپيږي، خوزيږي

**تسهيلات:**

**قوله : إِذَامُدِحَ الْفَاسِقُ غَضِبَ الرَّبُّ تَعَالَى:**

**د فاسق تعريف كولو سره په عرش كښې د زلزلې راتللو وجه** : يعنى كله چه دَ فاسق فاجر تعريف شروع كيږى نودَ الله تعالى دَ غضب په وجه عرش په رچيدو شى دَ عرش داسې رچيدل يا خو په حقيقت باندې مبنى دى چه واقعةً په عرش كښې زلزله راځى يا داكلام ددې خبرې نه كنايه دې چه دَ فاسق تعريف دومره لويه گناه ده دكوم چه تصورنه شى كيدې په دې وجه خو داسې نازك صورت حال پيدا كيږى لكه چه په عرش كښې زلزله راځى دَ فاسق تعريف دومره لوئى جرم دَ دې وجې نه دې چه په دې كښې دَ هغه فسق اوفجور اودَ هغه دَ ظلم او زياتى تائيد اوحمايت دې او يوحرام كار لكه چه حلالولې شى په كوم كښې چه دَ كفر خطره ده.

**[٤٨٦٠] په يومسلمان كښې خيانت اودروغ نه شى جمع كيدې**

٤٨٦٠-()[٤٧] ① وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "② «يُطْبَعُ الْمُؤْمِنُ عَلَى الْخِلَالِ كُلِّهَا ③ إِلَّا الْخِيَانَةَ وَالْكَذِبَ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه :** ① او حضرت ابو امامه رضي الله عنه وايى چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② مسلمان د دروغ او خيانت نه ③ ماسوا هرشان خصلت باندې پيدا كيږي (احمد)

**حل اللغات:-** ① الْخِلَالِ: خصلت، خوبى.

٤٨٦١-() ① وَالْبَيْهَقِيُّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ"، عَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ.

**ترجمه :** ① بيهقي شعب الايمان كې دا روايت د حضرت سعد ابن ابي وقاص رضي الله عنه نه نقل كړي دي

**تسهيلات:**

**قوله : يُطْبَعُ الْمُؤْمِنُ عَلَى الْخِلَالِ كُلِّهَا إِلَّا الْخِيَانَةَ وَالْكَذِبَ:**

**په مؤمن كښې د دوو بدخصلتونونه جمع كيدل** : يعنى مسلمان بزدل كنجوس شرابى كبابى او په هرقسم گناهونو كښې ككړ كيدې شى ليكن دوه خراب خصلتونه داسې دى چه دَ يو مسلمان دَايمان سره راجمع كيدې نه شى په نورو الفاظو كښې داسې اووايا: چه دَايمان روښانه چراغ سره دَ دروغو او خيانت تورې تيارې يوځائى نه شى پاتې

[1] اخرجه احمد فى المسند:٥/٢٥٢

[2] اخرجه البيهقى فى شعب الايمان رقم الحديث ٤٨٠٩٠

کیدې دکامل مؤمن په هر رګ او هراندام کښې ایمان وردننه شوې وی هغه په طبعی او تخلیقی توګه باندې دَدې دوو خصلتونو نه لرې وی

① یو دَ خیانت خصلت

② دې او دویم دَ دروغو

**دحدیث مقصد:** دَ رسول الله ﷺ دَدې فرمان مقصد دادې چه دَدې دوو خرابو خصلتونو نه هرمسلمان له په خاص توګه ډډه کول او ځان ساتل پکار دی دَدې حدیث نه پس راتلونکې دَصفوان روایت کښې دا مضمون په زیات واضح توګه باندې بیان کړې شوې دې په هغې کښې صرف دَ دروغو ذکردې.

**[۴۸۶۳]مسلمان بزدل او بخیل کیدې شی خو دروغژن نه شی کیدې**

۴۸۶۳-() [۴۸] ١ وَعَنْ صَفْوَانَ بْنِ سُلَيْمٍ، أَنَّهُ «قِيلَ لِرَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ٢ أَيَكُونُ الْمُؤْمِنُ جَبَانًا؟ قَالَ: "نَعَمْ". ٣ فَقِيلَ لَهُ: أَيَكُونُ الْمُؤْمِنُ بَخِيلًا؟ قَالَ: "نَعَمْ". ٤ فَقِيلَ: أَيَكُونُ الْمُؤْمِنُ كَذَّابًا؟ قَالَ: "لَا». ٥ رَوَاهُ مَالِكٌ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ" مُرْسَلًا.

**ترجمه :** او حضرت صفوان ابن سلیم رحمه الله وایی د رسول الله ﷺ نه پوښتنه وشوه ٢ چې آیا مؤمن بزدل کیدې شي؟ حضور ﷺ وفرمایل کیدې شي ٣ بیا پوښتنه ځینې وشوه آیا مؤمن بخیل کیدې شي؟ حضور ﷺ وفرمایل کیدې شي ٤ بیاچې حضور ﷺ نه پوښتنه وشوه چې آیا مومن ډیر دروغجن کیدې شي؟ نو حضور ﷺ وفرمایل چې نه ٥ دا روایت مالک رحمه الله او بیهقي رحمه الله په شعب الایمان کې بطریق ارسال نقل کړې دي

**حل اللغات:** - ① جَبَانًا: بزدل، ویریدونکې.

**تسهیلات:**

**قوله : وَعَنْ صَفْوَانَ بْنِ سُلَيْمٍ:**

**د حضرت صفوان بن سلیم زهری رحمه الله تعارف او فضیلت :**

حضرت صفوان بن سلیم زهری رحمه الله دَ لوئی شان والا تابعی دې. خلویښت کاله ئی په ناسته ناسته ژوند تیر کړو په زمکه باندې ئی اړخ نه دې لګولې تردې چه مرګ هم ورله په ناسته ناسته راغلو. دَ ډیرو سجدو دَ وجې نه ئی په تندی کښې کنده شوې وه. کله ئی دَ بادشاهانو ورکړه نه وه قبوله کړې. دَ حضرت انس بن مالک رضی الله عنه نه زیات روایت کوی تابعی دې. لهذا دامذکوره حدیث مرسل دې

[۱] اخرجه مالک فی الموطا کتاب الکلام/باب ما جاء فی الصدق والکذب (رقم-۱۹) واحمد فی المسند:۲/۲۸۸

**[۴٨٣]شيطان د سړي په شکل کې مسلما نا نوکښې دروغ حديثونه خوروي**

۴٨٣-( )[۴٩] ١ وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: "٢ «إِنَّ الشَّيْطَانَ لَيَتَمَثَّلُ فِي صُورَةِ الرَّجُلِ، ٣ فَيَأْتِي الْقَوْمَ فَيُحَدِّثُهُمْ بِالْحَدِيثِ مِنَ الْكَذِبِ فَيَتَفَرَّقُونَ ،٤ فَيَقُولُ الرَّجُلُ مِنْهُمْ: سَمِعْتُ رَجُلًا أَعْرِفُ وَجْهَهُ ٥ وَلَا أَدْرِي مَا اسْمُهُ يُحَدِّثُ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: ١ او حضرت ابن مسعود رضي الله عنه فرمايي ٢ کله کله داسې هم کيږي چې شيطان د يو سړي صورت اختيارکړي ٣ او يو جماعت ته راشي او هغوئ ته څه دروغ خبر رسوي بياچې د هغه جماعت خلق اخوا ديخوا منتشرشي ٤ نو په هغوئ کې يو سړي وايي ما د يو سړي نه اوريدلي دي چې د هغه صورت خوپيژنم اکه هغه ووينم نو ښودلي شم چې داهغه سړي دي ٥ خو د هغه نوم نه پيژنم هغه داخبره بيانوله. (مسلم)

**تسهيلات**:

**قوله**: فَيَأْتِي الْقَوْمَ فَيُحَدِّثُهُمْ بِالْحَدِيثِ مِنَ الْكَذِبِ فَيَتَفَرَّقُونَ:

**حضرت ابن مسعود رضى الله عنه د حديث مقصد**: دَحضرت ابن مسعود رضي الله عنه دَدي کلام نه مقصود دادې چه حديث وئيلو او اورولوکښې دَ ډيرزيات احتياط ضرورت دې. ترکومې چه پوره اطمينان او تحقيق نه وی چه دا واقعی حديث دې. دَهغه وخته پورې دَحديث په حواله سره داکلام وړاندې نقل کول نه دی پکاردی ځکه چه کله کله ابليس يا دَ ابليس په نوم انسان راځی او په مجمع کښې دَ دروغو حديث پريږدی اولاړشی دَ دې حديث نه داهم معلومه شوه چه دَوعظ اونصيحت کونکی تعارف ضروری دې دې دَپاره چه خلقو ته معلومه شی چه څوك دې آيا عالم دې که جاهل دې، انسان دې که شيطان يا دَدې شعر مصداق دې

کس نمی داند که بھیا کون ہے　　پاؤے یا سیر ہے یا پون ہے

**[۴٨۴]په خراب مجلس کې دَ ناستې نه ځا نله کيناستل غوره دي**

۴٨۴-( )[۵٠] ١ وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حِطَّانَ قَالَ: «أَتَيْتُ أَبَا ذَرٍّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - ٢ فَوَجَدْتُهُ فِي الْمَسْجِدِ مُحْتَبِيًا بِكِسَاءٍ أَسْوَدَ وَحْدَهُ. ٣ فَقُلْتُ: يَا أَبَا ذَرٍّ مَا هَذِهِ الْوَحْدَةُ؟ ٤ فَقَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: ٥ "الْوَحْدَةُ خَيْرٌ مِنْ جَلِيسِ السُّوءِ، ٦ وَالْجَلِيسُ الصَّالِحُ خَيْرٌ مِنَ الْوَحْدَةِ ٧ وَإِمْلَاءُ الْخَيْرِ خَيْرٌ مِنَ السُّكُوتِ، ٨ وَالسُّكُوتُ خَيْرٌ مِنْ إِمْلَاءِ الشَّرِّ»".

**ترجمه**: ١ او حضرت عمران ابن حطان تابعي رحمه الله وايي چې يوه ورځ زه د حضرت ابوذرغفاري رضي الله عنه په خدمت کې حاضرشوم ٢ نو هغه مي په مسجد کې پيداکي هغه وخت

[١] اخرجه مسلم فى كتاب الإيمان/باب بيان تحريم إيذاء الجار (رقم-٧٣ - (۴۶) واحمد فى المسند: ٨٩٨/٣

[٢] اخرجه البيهقى فى شعب الايمان رقم الحديث ۴٩٩٣

هغه يوتور كمبل چاپيره كړي يوازي ناست وو[۳] ما عرض وكړو اي ابوذرا دا يواځې والې دي ولې اختيار كړې دې؟[۴] حضرت ابوذر رضي الله عنه جواب راكي ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلي دي[۵] د خرابو هم نشينانو سره د ناستې نه تنها كيناستل ښه دي[۶] او د تنها ناستې نه د نيكو هم نشينانو سره ناسته ښه ده[۷] او چپ اوسيدو نه د نيكي ښودل ښه دي[۸] او بدي خودلو نه چپ اوسيدل ښه دي او ښكاره ده چې كوم ځيز چپ اوسيدو كې مددګار جوړيدي شي هغه ګوشه نشيني او تنهائي ده.

**حل اللغات:** - ① مُحْتَبِيًا: راټول كيناستل چه زنګنونه ولاړوي او لاسونه ئې دخپو نه راتاؤ كړي وي ② كِسَاءِ: څادر، كمبل ③ إِمْلَاءُ: بيانول، نورو ته ښودل.

د حديث الباب حاصل دا دي چه حضرت ابو ذر رضي الله عنه مقصد دا وو چه دي وخت چونكه د هغه خاص رفقاء او ملګرى دلته موجود نه دى چه د هغوي سره پاک صحبت اختيارول پكار دى او په هغوى اعتماد او بهروسه اوكړي شى دي وجي نه ما دا خه اوګڼړل چه څه دلته يواځي او چپ كينم.

**قوله في المسجد:** مسجد نه مراد دلته مسجد نبوي نه دي بلكه بل جمات مراد دي ځكه چه په مدينه منوره كښې په دغه زمانه كښې د نيكانو خلقو څه كمي نه وو

**[۴۸۶۵] خاموشي اختيارول دَ شپيتو كالو دَ عبادت نه افضل دى**

۴۸۶۵-()[۵۱] [۱] وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: "[۲] «مَقَامُ الرَّجُلِ بِالصَّمْتِ أَفْضَلُ مِنْ عِبَادَةِ سِتِّينَ سَنَةً»".

**ترجمه:** [۱] او د حضرت عمران ابن حصين رضي الله عنه نه روايت دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د چپ اوسيدو په وجه چې سړي ته كومه درجه حاصليږي هغه د شپيتو كالو د عبادت نه ښه ده. **تسهيلات:**

**قوله: مَقَامُ الرَّجُلِ بِالصَّمْتِ أَفْضَلُ مِنْ عِبَادَةِ سِتِّينَ سَنَةً:**

**خاموشي اختيارولو نه څه مراد دى:** يعنى خاموشئ سره په ځان له ځائى كښې كيناستل اودَ الله تعالى دَ شؤونو مراقبه كول دَ هغه شپيتو كالو دَ عبادت نه افضل دي په كوم كښې چه قسما قسم ډيري خبري كيږى اودَ ژبې بې احتياطى كيږى بعضې صوفياء كرام ددې نه مراقبه مكاشفه او په كائينات الهيه كښې سوچ اوفكر اوتدبر دَپاره خاموش كيناستل مراد اخستي دي چه په دې مراقبه سره زړه او دماغو كښې انقلاب راځى لهذا دا دَ شپيتو كالو عبادت نه افضل دي بهرحال دَ حديث دا مطلب هم كيدې شى اوكه چرې مراقبه نه هم وى بيا هم خاموشه پاتې كيدو سره صرف ګنګ خاموشه كيدل مراد نه دى.

---

[۱] اخرجه البيهقي في شعب الايمان رقم الحديث ۴۹۵۳

**[٤٨٣٦] حضرت ابوذر غفاري رضي الله عنه ته د نبي عليه السلام يو څو نصيحتونه**

٤٨٣٦ - (١)[٥٢] ① «وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: دَخَلْتُ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ② فَذَكَرَ الْحَدِيثَ بِطُولِهِ إِلَى أَنْ قَالَ: قُلْتُ: يَارَسُولَ اللَّهِ أَوْصِنِي. ③ قَالَ: " أُوصِيكَ بِتَقْوَى اللَّهِ، ④ فَإِنَّهُ أَزْيَنُ لِأَمْرِكَ كُلِّهِ " قُلْتُ: زِدْنِي. ⑤ قَالَ: " عَلَيْكَ بِتِلَاوَةِ الْقُرْآنِ وَذِكْرِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ، ⑥ فَإِنَّهُ ذِكْرٌ لَكَ فِي السَّمَاءِ، وَنُورٌ لَكَ فِي الْأَرْضِ

**ترجمه:** ① او حضرت ابوذر رضي الله عنه وايي چې يوه ورځ زه د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضرشوم ② د دې نه پس (خپله ابوذر رضي الله عنه نه نقل کونکي راوي) طويل حديث بيان کې (چې دلته نقل شوی نه دي بلکي د هغه دا آخري جملي نقل شوي دي چې) بيا ابوذر رضي الله عنه بيان وکړو چې ما عرض وکړو چې يا رسول الله! ماته څه نصيحت وفرمايي ③ نو حضور ﷺ ورته وفرمايل زه تاته د الله نه د ويرېدو نصيحت کوم ④ ځکه چې تقوي ستا تول ديني اودنياوي امورو او اعمالو ته ډېر زيات زينت او آراستګي بخښونکي وي ⑤ ما عرض وکړو څه نور ⑤ حضور ﷺ وفرمايل د قرآن تلاوت او ذکر الله ځان د پاره ضروري وګڼه ⑥ ځکه چې دا [د قرآن تلاوت اود الله ذکر] ستا د پاره آسمان کې د ذکر موجب کيږي او په زمکه د نور سبب کيږي [يعنی کله چې ته د قرآن تلاوت او د الله ذکر کې مشغوليت اختيار کړي نو د هغه په سبب آسمانونو کې ملائکي ستا د خير ذکر کوي بلکي حق تعالیٰ هم تايادوي او په دي دنيا کې ستا د معرفت ويقين او د هدايت د لاري نور ښکاره کيږي]

① ". قُلْتُ: زِدْنِي. قَالَ: " عَلَيْكَ بِطُولِ الصَّمْتِ، ② فَإِنَّهُ مَطْرَدَةٌ لِلشَّيْطَانِ ③ وَعَوْنٌ لَكَ عَلَى أَمْرِ دِينِكَ " ④ قُلْتُ: زِدْنِي. قَالَ إِيَّاكَ وَكَثْرَةَ الضَّحِكِ، ⑤ فَإِنَّهُ يُمِيتُ الْقَلْبَ وَيَذْهَبُ بِنُورِ الْوَجْهِ " ⑥ قُلْتُ: زِدْنِي. قَالَ: " قُلِ الْحَقَّ وَإِنْ كَانَ مُرًّا ". ⑦ قُلْتُ: زِدْنِي. قَالَ: " لَا تَخَفْ فِي اللَّهِ لَوْمَةَ لَائِمٍ ". ⑧ قُلْتُ: زِدْنِي. قَالَ: " لِيَحْجُزْكَ عَنِ النَّاسِ مَا تَعْلَمُ مِنْ نَفْسِكَ».

**ترجمه:** ① ما عرض وکړو زما د پاره څه نور نصيحت وفرمايه حضور ﷺ وفرمايل طويله اوږده خاموشي په ځان لازمه کړه ② ځکه چې خاموشي شيطان لري تبنتوي ③ او په ديني امورو کې ستا مددګار کيږي ④ ما عرض وکړو زما د پاره څه نور نصيحت وفرمايه حضور ﷺ وفرمايل د ډيري زياتي خندا نه پرهيز کوه ⑤ ځکه چې زياته خندا زړه مړ کوي او د مخ نور ختموي ⑥ ما عرض وکړو زما د پاره څه نور نصيت وفرمايه حضور ﷺ وفرمايل ريښتيا خبره کوه اګر که هغه ترخه (بغله) وي [يعنی د حق په اظهار کې هيڅ کله مه وروسته کيږه کومه خبره چې ريښتيا وي هغه ضرور کوه اګر که د هغه په وجه خلقوته

(١) اخرجه البيهقي في شعب الايمان رقم الحديث ٤٩٤٢

یاخپله تاته د نفس ناگواري محسوس کیږي[۷] ماعرض وکړو زما د پاره څه نور نصیحت وکړئ حضور ﷺ وفرمایل د الله دین او د الله پیغام ښکاره کولو او د هغه تائید وتقویت کې د چا ملامت کونکي د ملامت نه مه ویریږه [۸] ماعرض وکړو زما د پاره څه نور نصیحت وفرمایه حضور ﷺ وفرمایل پکار دي چې هغه شي تا د خلقو د عیوبو ښکاره کولو نه منع کړي چې هغه ته د خپل نفس باره کې پیژني

**حل اللغات:**- ①مَطْرَدَةٌ: شړونکي، پړه کونکې، ②عَوْنٌ: مددګار. ③إِيَّاكَ: خان ساته. بچ اوسیږه. ④مُرًّا: تریخ، ⑤لَوْمَةَ: ملامتیا، ⑥لَائِمٍ: ملامته کونکې. ⑦لِيَحْجُزْكَ: چه تا منع کړي

**تسهیلات:**

**قوله** أُوصِيكَ بِتَقْوَى اللّٰهِ، فَإِنَّهُ أَزْيَنُ لِأَمْرِكَ كُلِّهِ:

**تقوی په ټولو کارونو کښې د ښائست ذریعه**:یعنی ما ته د د دین اعتقادي حکم اوکړه برابره ده که د هغي تعلق د قول سره وی یا د عمل سره یا د هغه امور تعلق د دنیا سره وی مطلب دا چه د معاش ذریعه کومه یوه اختیارول پکار دی چه مونږه ښه انجام ته اورسوی

**قوله کله**: لأن التقوى بجميع مراتبها من شرك الجلي والخفي څکه چه د تقوي د هغه مراتبو نوم دي چه په هغي سره د شرک جلی او د شرک خفي نه ځان اوساتلې شی او د کبائرو او د صغائرو نه او د شبهاتو نه ځان اوساتلې شي.

**تقوی ته د زینت نسبت کولو کښې وجه**:امام طیبی فرمائی چه د زینت نسبت تقوی طرف ته شوې دې لکه چه الله تعالي د لباس نسبت تقوي طرف ته کړې دې (وَلِبَاسُ التَّقْوٰى ذٰلِكَ خَيْرٌ)الآية(الاعراف:۲۶)

**قوله** عَلَيْكَ بِطُولِ الصَّمْتِ، فَإِنَّهُ مَطْرَدَةٌ لِلشَّيْطَانِ وَعَوْنٌ لَكَ عَلَى أَمْرِ دِينِكَ:

**دخاموشۍ فائده**: الحاصل دنیاوی کلام نه خاموشي اختیارول مراد دی د ذکر الله نه خاموشي مراد نه ده څکه ۸۰ فیصد ګناهونه د ژبي نه کیږی، چه ژبه بنده وی نو ګناهونه کم کیږی نو د شیطان سازشونه لرې چلیږی.په خاموشۍ کښې د ذکر و فکر ډیره موقع میلاویږی څکه چه ډیر خندل زړه غافله کوی، د زړه غفلت د زړه مرګ دي، بیدار زړه. ذاکره ژبه. صابر و شاکر جسم د الله تعالي نعمتونه دی

**قوله** قُلِ الْحَقَّ وَإِنْ كَانَ مُرًّا:

**حق وینا کول**:مطلب دا چه که د حق خبره په خلقو بده لږی او تا ته د حق وئیلو د وجه نه تکالیفو سره مخامخ کیدل وی نو بیا هم حق وئیل پکار دی د خلقو د یري د وجه نه ښه کلام او ښه کار مه پریږده.په دین باندې په کلکه قائم شه. خلق په عیوبو باندې مه ملامته کوه چه کوم تا کښې هم دی اول خپله اصلاح کوه.

**قوله:** إِيَّاكَ وَكَثْرَةَ الضَّحِكِ، فَإِنَّهُ يُمِيتُ الْقَلْبَ وَيَذْهَبُ بِنُورِ الْوَجْهِ"

**د زیاتې خندا نقصان:** یعنی ډیره خنده کول، مسلسل خندل زړه مړ کوی، زړه سختی طرف ته مائله کوی او ی زړه مړ کیدل د الله د ذکر نه غافلیدل دی

**قوله:** "لَا تَخَفْ فِي اللَّهِ لَوْمَةَ لَائِمٍ

**د الله تعالی په رضا کښې ملامتیا څخه نه ویریدل:** د هیڅ چا د ملامته کونکی د ملامتیا نه مه یریږه ګویا چه دې سره یئ دا حکم اوکړو چه د الله د دین سربلندي د پاره چه کومه فریضه تا باندې عائد کیږی که د هغې په پوره کولو د پاره د دنیاوالو خلقو نه مخ اړول پکار وی نو په هغې کښې هیڅ کمې اونه کړې او دا خبره ضروری اوګنړه چه په هر حالت کښې د الله د دین سربلندی کول پکار شی نو بیا هم اوکړه

**قوله:** ". قُلْتُ: زِدْنِي. قَالَ: "لِيَحْجُزْكَ عَنِ النَّاسِ مَا تَعْلَمُ مِنْ نَفْسِكَ:

**دبل عیب نه لټول:** د دې مطلب دا دې چه کله تا ته د خپلو دننه عیوبو پته اولګی چه ستا نفس په کومو ګناهونو کښې مبتلا دې نو تا له دا بالکل مناسب نه دی چه ته د نورو خلقو په عیوبو باندې نظر اولړې. البته که یو کس کښې هم دا مذکوه عیب وی نو هغه ته امر بالمعروف او نهی عن المنکر کولې شی خو د هغه تذلیل و تحقیر نه شې کولې
د نورو په غیبونو پسې لګیدل اوخپل ځان هیرول.
د یو انسان د عیب ژن کیدو د پاره دا کافی ده چه ده کښې درې خصلتونه موجود شی

① د خلقو عیبونو پسې لګیدلې وی او د خپلو عیبونو نه جاهل وی.
② هغوی کښې چه کوم عیبونه دی د هغې نه حیا کوی
③ خپل ملګری ته تکلیف رسوی (التعلیق الصبیح ج ۵ ص ۱۹۴)

**[۴۸۶۷] دَ خاموشۍ او ښه اخلاقو فضیلت**

۴۸۶۷-(¹)[۱۵۳] ① وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - عَنْ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ② " «يَا أَبَا ذَرٍّ أَلَا أَدُلُّكَ عَلَى خَصْلَتَيْنِ ③ هُمَا أَخَفُّ عَلَى الظَّهْرِ وَأَثْقَلُ فِي الْمِيزَانِ؟ ④ " قَالَ: قُلْتُ: بَلَى. قَالَ: " طُولُ الصَّمْتِ، وَحُسْنُ الْخُلُقِ، ⑤ وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ مَا عَمِلَ الْخَلَائِقُ بِمِثْلِهِمَا» ".

**ترجمه:** ① او حضرت انس رضی الله عنه وایي چی رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل ② اي ابوذر رضی الله عنه! آیا زه تاته هغه دوه خصلتونه ونه ښایم ③ چې (د مکلف انسان) په شا [یعني د هغه په ژبه] ډیر اسانه دي لیکن د اعمالو په تله کې ډیر درانه دي ④ حضرت ابوذر رضی الله عنه وایي په دي اوریدو سره ماعرض وکړو چې هو ضرور وښایه حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل معرفت الهیه او

¹) اخرجه البيهقي في شعب الايمان رقم الحديث ٤٩٤١

نظام قدرت کښ غور وفکر د پاره طويله خاموشي او خوش اخلاقي،[۵] قسم دي په هغه ذات پاك چې د هغه قبضه قدرت کې ځما ساه ده مخلوق د پاره دي دوه خصلتونو نه بـه بل هيڅ کار نشته

**حل اللغات:** - ① خَصْلَتَيْنِ: دوه خوبياني، دوه صفتونه. ② أَخَفُّ: ډير سپک، ډير آسان. ③ أَثْقَلُ: ډير درونډ. ④ طُولُ الصَّمْتِ: اوږده خاموشي، اکثر وخت چپ کيناستل

**تسهيلات:**

**قوله: يَا أَبَا ذَرٍّ أَلَا أَدُلُّكَ عَلَى خَصْلَتَيْنِ هُمَا أَخَفُّ عَلَى الظَّهْرِ وَأَثْقَلُ فِي الْمِيزَانِ:**

**ابوذر رضى الله عنه ته د دوو خبرو وصيت:** دا دوه خصلتونه داسي دی چه په دي کښې هيڅ تکليف نشته بلکه دا خصلتونه په ملا باندي سپک (اسان) دی دارنګ په عمل کښې د ملا دخل هم وی ځکه چه بوج هم په ملا باندي اوچتولي کيږی، هم سپکوالي او دروندوالي او درانه محسوسوی يا د ژبي په شاه باندي سپک وی او په ميزان کښې درانه دی

هغه دوه خبري اودوه عملونه دا دی.

① زياته خاموشی اوچپوالي

② ښه اخلاق اختيارول.

**[۴۸۶۸] لعنت ويونکی سړي صديق نه شي کيدلي**

۴۸۶۸-()[۵۳] [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا- قَالَتْ: [۲] «مَرَّ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- بِأَبِي بَكْرٍ وَهُوَ يَلْعَنُ بَعْضَ رَقِيقِهِ، [۳] فَالْتَفَتَ إِلَيْهِ فَقَالَ: "لَعَّانِينَ وَصِدِّيقِينَ؟ [۴] كَلَّا وَرَبِّ الْكَعْبَةِ [۵]" فَأَعْتَقَ أَبُو بَكْرٍ يَوْمَئِذٍ بَعْضَ رَقِيقِهِ، [۶] ثُمَّ جَاءَ إِلَى النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَقَالَ: لَا أَعُودُ». [۷] رَوَى الْبَيْهَقِيُّ الْأَحَادِيثَ الْخَمْسَةَ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ".

**ترجمه:** [۱] اوبي بي عائشه رضي الله عنها فرمايي [۲] چې يوه ورځ رسول الله ﷺ حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه باندې تيريدي نو وي ليدل چې حضرت ابوبکر رضي الله عنه خپل يو غلام باندې لعنت وايي [۳] نو حضور ﷺ هغوئ طرف ته متوجه شو او وي فرمايل آيا تاسو لعنت ويونکي او صديقين هم چيرته ليدلي دي [يعنی آيا تاسو چيرته داسې سړي هم ليدلي دي چې په هغه کې په يو وخت دا دوه صفتونه لعانيت او صديقيت پيدا کوي شی حاصل داچې کوم سړي د صديقيت په مقام فائز وي هغه لعنت کونکي نشي جوړيدي ځرنګه چې داحديث تير شوي دي چې لاينبغي لصديق ان يكون لعانًا يعنی صديق د پاره دامناسب نه دي چې هغه لعنت ويونکي وي] [۴] نه د کعبې په رب مې دي قسم وي [دا دواړي خبري په

---

() اخرجه البيهقي في شعب الايمان رقم الحديث ۵۱۵۴

يو سړي کې هيڅ کله جمع کيدي نشي[۵] نو حضرت ابوبکر رضي الله عنه (دا ارشاد اوريدو سره ډير خپل دي تقصير د کفاري په طور) په هغه ورځ خپل بعضې غلامان ازاد کړل[۶] او بيا (معذرت خواهي د پاره) د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو او عرض يې وکړو چې زه به آئنده هيڅ کله داسې کار ونه کړم (يعني په جابه لعنت ونه وايم)[۷] د حضرت عمران ابن حطان د روايت نه واخله دي حديث پورې داپنځه روايتونه بيهقي رحمه الله په شعب الايمان کې نقل کړي دي

**حل اللغات** :- ①رَقِيق: غلام، ②اِلْتَفَتَ: متوجه شو، ③لَعَّانِيْنَ: لعنت ويونکي، بد رد ويونکي، ④لَا أَعُوْدُ: دوباره به نه راګرځم، يعنى دوباره به داسې کار نه کوم

**تسهيلات**:

**قوله** لَعَّانِيْنَ وَصِدِّيْقِيْنَ:

**د مذكوره جملې مفهوم**: يعني آيا داسې کيدي شي چه په يو کس کښې دې د صديقين صفت هم وى او دا مذکوره صفت هم؟ اوراو اوبه جمع کيدل ممکن دى؟ په دې وجه حضرت ابو بکر صديق رضي الله عنه په دغه ورځ يو څو غلامان ازاد کړل چه دا د هغه غلطۍ کفاره شي چه د هغه نه په لاشعوري کښې شوي وه دا کمالِ تقوي ده ځکه چه نيکو سره ګناهونه ورانيږي بيا حضرت ابو بکر صديق رضي الله عنه د نبي عليه السلام په خدمت کښې حاضر شو او عرض ئي اوکړو چه اې د الله رسوله! څه به بيا داسې کار نه کوم يعني حضرت ابو بکر خپل فطرت د نبوت په سانچه کښې واچولو چه چرته هم د نبي قدم وو هلته د صديق قدم وو.

**[۴۸۳۹] د ژبې د هلاکتونو په سبب د حضرت ابوبکر رضي الله عنه خپله ژبه راښکل**

**۴۸۳۹-( )[دد] [۱] وَعَنْ أَسْلَمَ قَالَ: إِنَّ عُمَرَ دَخَلَ يَوْمًا عَلَى أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ، [۲] وَهُوَ يَجْبِذُ لِسَانَهُ [۳] فَقَالَ عُمَرُ: مَهْ غَفَرَ اللَّهُ لَكَ، [۴] فَقَالَ لَهُ أَبُو بَكْرٍ: إِنَّ هَذَا أَوْرَدَنِي الْمَوَارِدَ. رَوَاهُ مَالِكٌ.**

**ترجمه** :[۱] او حضرت اسلم رضي الله عنه وايي چې يوه ورځ حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د امير المؤمنين حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه په خدمت کې حاضر شو[۲] نو وي ليدل چې حضرت ابوبکر رضي الله عنه خپله ژبه راخکي (يعني د خپلې ژبې په حق کې دومره د غيظ وغضب اظهار کوي چې هغه يي په ګوتو سره نيولې راخکله او داسې محسوس کيدله چې هغه راخکلو سره بهر غورځوي)[۳] حضرت عمر رضي الله عنه په دي ليدو سره ورته اوويل داسې مه کوئ خداي تعالیٰ دي تاسو ته مغفرت وکړي [۴] حضرت ابوبکر رضي الله عنه وفرمايل داژبه د دې سزا لائقه ده ځکه چې دي زه د هلاکت په ځايونو کې غورځولي يم (مالک)

( ) اخرجه مالک في الموطا

**حل اللغات:** - ① يُجْبِذُ: راښکله ئي، ② مَهُ: مه کوه، ③ أَوْرَدَنِي: غورزولي يم. اخته کړي يم. ④ الْمَوَارِدَ: ډير خايونه. يعنى د هلاكت ځايونه او موقعې

**تسهيلات:**

**قوله. وَهُوَ يَجْبِذُ لِسَانَهُ:**

**دابوبكر صديق رضى الله عنه خپله ژبه دخلې څخه راويستل:** ژبه د خلې نه باهر راکارلو نه زجر و توبيخ وو حضرت ابو بکر صدیق رضي الله عنه خپله ژبه بطور د سزا راښکله او تاووله ئي حضرت ابو بکر صدیق د الله د ویري د وجه نه داسي کول ګنی د ابو بکر صدیق ژبې د حق نه علاوه بله خبره نه کوله.

**[۴۸۷۰] په شپږو صفاتو باندې نبي کریم ﷺ د جنت ضمانت اخستې دې**

۴۸۷۰ - ()[۵٦] [۱] وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: " [۲] «اضْمَنُوا لِي سِتًّا مِنْ أَنْفُسِكُمْ أَضْمَنْ لَكُمُ الْجَنَّةَ: [۳] اصْدُقُوا إِذَا حَدَّثْتُمْ، [۴] وَأَوْفُوا إِذَا وَعَدْتُمْ، [۵] وَأَدُّوا إِذَا ائْتُمِنْتُمْ، [٦] وَاحْفَظُوا فُرُوجَكُمْ، [۷] وَغُضُّوا أَبْصَارَكُمْ، [۸] وَكُفُّوا أَيْدِيَكُمْ» ".

**ترجمه:** [۱] او حضرت عباده ابن صامت ﷺ روایت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] تاسو خلق خپل ځان باره کې ماته د شپږو څیزونو ضمانت راکئ یعنی شپږو خبرو باندې د عمل کولو عهد وکئ نو زه دنجات پیدا کونکو او صالحینو سره ستاسو جنت ته د تلو ضامن جوړیږم [۳] ① کله چې خبري کوي نو رښتیا وایئ [۴] ② وعده چې وکړي نو پوره کوئ یې [۵] ③ امانت چې درسره کیخودل شي نو اداء کوئ یې [٦] ④ د خپل عورت حفاظت کوئ [یعنی د حرام کاري نه ځان ساتی]، [۷] ⑤ خپل نظر محفوظ ساتئ [یعنی د هغه شي طرف ته نظر پورته کولو نه پرهیز کوئ چې د هغه لیدل جائز نه دي] [۸] ⑥ خپلو لاسونو باندې قابو ساتئ [یعنی خپل لاسونه ناحق وژلو او حرام او مکروه څیزونو نیولو نه منع شاتئ یا داچي خپل ځان د ظلم او تعدي کولو نه منع شاتی].

**حل اللغات:** - ① اضْمَنُوا: ضمانت راکړئ، ② ائْتُمِنْتُمْ: تاسو ته امانت درکړې شی، ③ غُضُّوا: ښکته ساتئ. ④ كُفُّوا: بند ساتئ

**تسهيلات:**

**قوله: اضْمَنُوا لِي سِتًّا مِنْ أَنْفُسِكُمْ أَضْمَنْ لَكُمُ الْجَنَّةَ:**

**د شپږو څیزونو په ذمه وارۍ د جنت ضمانت ورکول:** یعنی تاسو ماله د خپل ځان په باره کښې د شپږو څیزونو ضمانت راکړئ یعنې په دې شپږو څیزونو باندې د عمل کولو لوظ اوکړئ نو څه به ستاسو د پاره جنت ته د تلو ضامن شم.

[۱] اخرجه احمد فی المسند: ۲۵۷/۱. اخرجه البیهقی فی شعب الایمان رقم الحدیث ۵۲۵۶ والترمذی رقم الحدیث ۱۹۱۹

① رشتیا ویل
② وعده پوره کول
③ په امانت کښې خیانت نه کول
④ د شرمګاه د زنا څخه حفاظت کول
⑤ د بردو سرو اوښخو څخه د نظرونو حفاظت کول
⑥ په لاس یا په ژبه چا ته ضرر نه رسول

**[۴۸۷۱-۴۸۷۲-۴۸۷۱] د خواوبدو خلقو علامات**

۴۸۷۱-۴۸۷۲-۴۸۷۱-( )[۵۷] ۱ وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ غَنْمٍ، وَأَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيدَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ- أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ۲ "«خِيَارُ عِبَادِ اللّٰهِ الَّذِينَ إِذَا رُؤُوا ذُكِرَ اللّٰهُ، ۳ وَشِرَارُ عِبَادِ اللّٰهِ الْمَشَّاؤُونَ بِالنَّمِيمَةِ، ۴ وَالْمُفَرِّقُونَ بَيْنَ الْأَحِبَّةِ، ۵ الْبَاغُونَ الْبُرَآءَ الْعَنَتَ»". رَوَاهُمَا أَحْمَدُ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ".

**ترجمه**: ۱ او حضرت عبد الرحمن ابن غنم رضی الله عنه اوبي بي اسماء بنت یزید رضی الله عنها راویان دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ۲ د الله ښه بندګان هغه دي چې د هغوئ په لیدو سره سړي ته خداي رایاد شي ۳ او د الله بدترین بندګان هغه دي چې په خلقو کې چغل خوري سره ګرځي اچې د هغه نه د هغوئ مقصد د دې نه علاوه نور هیڅ نه وي ۴ چې هغوئ د دوستانو په منځ کې نفاق او جدائي راولي ۵ او د پاکیزه خلقو په لمن د فساد او خرابي او زناکاري خاځکي وا چوي [یعنی د الله چې کوم نیک بندګان د فتنه او فساد ګناه او معصیت او څه عیب نه پاك وي په هغوئ د فتني او فساد او ګناه او معصیت لکه د زناکاري وغیره بهتان لګوي اودغه شان هغوئ هلاکت او مشقت او مشکلاتو کې مبتلا کوي] (احمد . بیهقي)

**حل اللغات**: - ① خِيَارُ: غوره. ② رُؤُوا: اولیدلې شی. ③ الْمَشَّاؤُونَ: ګرځی راګرځی. یوبل ته رسوی ④ النَّمِيمَةِ: چغل خوری. ⑤ الْمُفَرِّقُونَ: جدائی راوستونکی. ⑥ الْبَاغُونَ: دَ باغی جمع ده طلب کونکی. غوښتونکی. ⑦ الْبُرَآءَ: نیکان. بې ګناه ⑧ الْعَنَتَ: فساد . ظلم، ګناه

**تسهیلات:**

**قوله: خِيَارُ عِبَادِ اللّٰهِ الَّذِينَ إِذَا رُؤُوا ذُكِرَ اللّٰهُ:**

**د دالله تعالی په یادیدو کښې دوه احتمالات:** ① یعنی الله والا خو هغه خلق وی چه دَ چاپه کتو سره الله تعالی یادیږی. دَ چاچه ښائسته چمکدار نورانی او معصوم مخونه وی. په کوم چه دَ عبادت نښې هرکس اوناکس ته ښکاری.

[1] اخرجه احمد فی المسند: ۴/۲۲۷، والبیهقی فی شعب الایمان رقم الحدیث ۱۱۱۰۸ وعن اسما اخرج احمد فی المسند ۶/ ۴۵۶

② د الله داسي نيک بندګانو ته کتل ګويا چه په ذکر الهي کښې مشغوليدل دی لکه چه علماؤ ليکلی دی چه د عالم دين مخ ته کتل عين سعادت دي او په دې حقيقت کښې هيڅ شبه نشته، چه کله کله د يو نيک سړي او کامل شيخ مخ ته کتلو سره په باطن کښې داسي نورانيت پيدا شی چه هغي سره زړه روښانه شي

**قوله: وَالْمُفَرِّقُونَ بَيْنَ الْأَحِبَّةِ، الْبَاغُونَ الْبُرَآءَ الْعَنَتَ:**

**د مذکوره جملې په ترکيب کښې دوه احتمالات:** ① دَدې دويم مفعول دې "البراء" د باء فتحې سره دَ برئ په معنی کښې مصدر دې

② که چرې په باء باندې ضمه وی نو دادَ بریئ جمع ده چه بې ګناه بری الذمه پاکدامن او پاکيزه سړی ته وائی.

**دعنت مخه مراد:** دَ فساد فتنه اومصيبت اومشقت په معنی کښې دې يعنی په بې ګناه خلقو باندې بهتان تړل هغوی په فساد ازميښتونو اومشقتونو کښې اچول اوهغوی تنګول دَبدترين خلقو نخښه ده.

**[۳۸۸۳] په مونځ اوروژه باندې دغيبت کولو اثر**

| ۳۸۸۳-() [۵۸] ① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - «أَنَّ رَجُلَيْنِ صَلَّيَا صَلَاةَ الظُّهْرِ أَوِ الْعَصْرِ، ② وَكَانَا صَائِمَيْنِ، فَلَمَّا قَضَى النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - الصَّلَاةَ قَالَ: ③ "أَعِيدَا وُضُوءَكُمَا وَصَلَاتَكُمَا، ④ وَامْضِيَا فِي صَوْمِكُمَا، وَاقْضِيَاهُ يَوْمًا آخَرَ". ⑤ قَالَا: لِمَ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ قَالَ: "اغْتَبْتُمْ فُلَانًا». |
|---|

**ترجمه:** ① او حضرت ابن عباس ﷺ وايي چې يوه ورځ دوو کسانو په رسول الله ﷺ پسې د: ماسپښين يا دمازيګر مونځ وکړو ② او هغوی دواړه روژه دار وو، کوم وخت چې رسول الله ﷺ مونځ وکړو نو هغه دواړو ته يي وفرمايل ③ چې تاسو دواړه دوباره اودس وکړئ خپل مونځ وکړئ ④ او خپله دا روژه پوره کړئ او د دې په بدله کې احتياطًا په دويمه ورځ روژه ونيسئ ⑤ هغه دواړو په دې اوريدو سره عرض وکړو چې يارسول الله! داسې ولې [يعنی اودس او مونځ او د روژې دوباره کولو حکم په کوم سبب دی] حضور ﷺ ورته وفرمايل تاسو د فلاني سړي غيبت کړي دي.

**حل اللغات:** ① أَعِيدَا: د تثنيه صيغه ده، راوګرځوئ تاسو دواړه، ② امْضِيَا: پوره کړئ، ③ اغْتَبْتُمْ: تاسو غيبت کړې دې

**تسهيلات:**

**قوله: أَعِيدَا وُضُوءَكُمَا وَصَلَاتَكُمَا، وَامْضِيَا فِي صَوْمِكُمَا، وَاقْضِيَاهُ يَوْمًا آخَرَ:**

**په غيبت سره داودس او روژې ماتيدو حکم** دَ تثنيه دپاره دَ جمع صيغه په عربی کښې

[۱] اخرجه البيهقی فی شعب الايمان رقم الحديث ۶۷۲۹

استعمالولې شي دلته هم داسې شوی دی د دوو سرو دپاره د جمع صيغه راوړلې شوې ده او په يو روايت کښې أعدا تثنيه هم ده

**د مذکوره جملې مفهوم:** ① دا کلام د زجر توبيخ او تهديد او تشديد او په سخت ممانعت باندې محمول دې ځکه چه په علماؤ کښې چا دا فتوی نه ده ورکړې چه په غيبت سره اودس ماتيږی او دا خبره ده چه په غيبت سره د روژې ثواب کميږی او هم دغه شان د اودس ثواب متاثره کيږی نبي عليه السلام هم د دې نقصان پوره کولو دپاره حکم ورکړو چه د نوی سر نه اودس اوکړئی

② بل په دې حکم سره نبي ﷺ د غيبت سختوالې او قباحت ښکاره کول غوښتل

**[۴۸۷۴] غيبت د زنا نه بد تره ګناه ده**

۴۸۷۴-()، ۴۸۷۵-[۵۹] ۱ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ، وَجَابِرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَا: «قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ " الْغِيبَةُ أَشَدُّ مِنَ الزِّنَا ". ۳ قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ وَكَيْفَ الْغِيبَةُ أَشَدُّ مِنَ الزِّنَا؟ ۴ قَالَ: " إِنَّ الرَّجُلَ لَيَزْنِي فَيَتُوبُ، فَيَتُوبُ اللَّهُ عَلَيْهِ " - ۵ وَفِي رِوَايَةٍ: " فَيَتُوبُ فَيَغْفِرُ اللَّهُ لَهُ، ۶ وَإِنَّ صَاحِبَ الْغِيبَةِ لَا يُغْفَرُ لَهُ حَتَّى يَغْفِرَهَا لَهُ صَاحِبُهُ» ".

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابوسعيد رضي الله عنه او حضرت جابر رضي الله عنه دواړه بيان کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ غيبت کول د زنا کولو نه زياته سخته بدي ده ۳ صحابه و رضي الله عنهم (په دې اوريدو سره) عرض وکړو چې يا رسول الله! غيبت د زنا نه زياته سخته بدي (خرابي) څرنګه ده؟ ۴ حضور ﷺ ورته وفرمايل داسې چې کله سړي زنا کوي نو توبه کاږي او خداي ﷻ د هغه توبه قبلوي ۵ او په يو روايت کې دا الفاظ دي چې توبه کاږي او خداي ﷻ هغه بخښي ۶ ليکن خداي ﷻ غيبت والا نه بخښي ترڅوپوري چې هغه سړي يي معاف نه کړي چې د هغه يي غيبت کړي دي [يعنی زناکاري د خداي ﷻ معصيت او نافرماني ده ځکه هغه توبه قبلوي او هغه بخښي هرکله چې غيبت کول حق العباد سره تعلق لري ځکه خداي ﷻ غيبت کونکي تر هغه وخته پورې نه بخښي ترڅو پورې چې هغه سړي يي معاف کړي د چاچي يي غيبت کړي دي].

۴۸۷۶-() ۱ وَفِي رِوَايَةِ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: " ۲ «صَاحِبُ الزِّنَا يَتُوبُ، ۳ وَصَاحِبُ الْغِيبَةِ لَيْسَ لَهُ تَوْبَةٌ» ". ۴ رَوَى الْبَيْهَقِيُّ الْأَحَادِيثَ الثَّلَاثَةَ فِي " شُعَبِ الْإِيمَانِ ".

**ترجمه:** ۱ او د حضرت انس رضي الله عنه روايت کې دا الفاظ دي چې حضور ﷺ وفرمايل ۲ زنا کونکي توبه کاږي ۳ او غيبت کونکي د پاره توبه نشته ۴ دا دري واړه روايتونه بيهقي په شعب الايمان کې نقل کړي دي.

[۱]) اخرجه البيهقي في شعب الايمان رقم الحديث ۶۷۴۱

[۲]) اخرجه البيهقي في شعب الايمان رقم الحديث ۶۷۴۶

**تسهیلات:**

**قوله: وَإِنَّ صَاحِبَ الْغِيبَةِ لَا يُغْفَرُ لَهُ حَتَّى يَغْفِرَهَا لَهُ صَاحِبُهُ:**

**ظالم بادشاه د غیبت کولو حکم:** ظالم بادشاه متعدی بدعتی اودَ فاسق مجاهر غیبت په دې وجه جائز دې چه خلق دَ هغه دَ ظلم فتنې او دَ فساد نه خبرې کړې شی لیکن دَدې دَپاره شرط دادې چه دَ غیبت کونکی نیت خالص وی بل هغه دومره باثر وی چه دَهغه غیبت سره عامو مسلمانانو ته فائده رسیږی او اثر پرې کیږی که چرې دا سې نه وی نو فضول غیبت هم فضول دې

**دوان صاحب الغيبة لا يغفر له محمل:**

زجاجة المصابيح یعنی مشکوة حنفی کښې لیکلی دی چه غیبت هغه وخت حقوق العباد جوړیږی چه مُغتاب سړی ته دَ هغې خبر اوشی که خبر نه وی شوې نوغیبت دَ حقوق الله نه دې ددې فائده او ثمر به دا راوځی چه ترکومې غیبت په حقوق الله کښې پاتې وی نو صرف په استغفار او توبه سره به معاف شی خوچه کله په حقوق العباد کښې شامل شو نواوس دَ مُغتاب سړی معاف کول ضروری کیږی پخپله په توبه سره نه معاف کیږی هم دغه معنی دَ "لايغفرله" ده.

دَدې باب په شروع کښې دَ غیبت متعلق په ټولو ابحاثو باندې کلام کړې شوې دې يونظر هغه اوګورئی

**د ليس له توبة دوه مطلبونه:**

"ليس له توبة" دَدې جملې دوه مطلبونه دی. ① اول مطلب دادې چه سړې غیبت معمولی خیز ګنړی په دې وجه توبه نه کوی نودَ غیبت توبه نشته دې. ② اودویم مطلب دادې چه دَتوبه قبولیت اودَدې دَ صحت مدار دَمُغتاب سړی په معاف کولوباندې موقوف دې لهذا دا وینا کول صحیح ده چه دَغیبت دَپاره توبه نشته دې یعنی مستقل توبه نشته چه دَغیبت کونکی په اختیار کښې وی او چه کله توبه نشته نو مغفرت هم نشته

**[۴۸۷۷] دَ غیبت د کفارې دعا**

۴۸۷۷ –(¹) [۱] (۲۰) وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] " «إِنَّ مِنْ كَفَّارَةِ الْغِيبَةِ أَنْ تَسْتَغْفِرَ لِمَنِ اغْتَبْتَهُ [۳] تَقُولُ: اللَّهُمَّ اغْفِرْ لَنَا وَلَهُ» ". [۴] رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي " الدَّعَوَاتِ الْكَبِيرِ ". وَقَالَ: فِي هَذَا الْإِسْنَادِ ضَعْفٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس رضی الله عنه وایی چی رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] د غیبت کفاره داده

¹) اخرجه البیهقی فی الدعوات الکبیر

چې ته د هغه سړي د مغفرت وبخښنې دعا وغواړې د چاچې دې غیبت کړې دی [۳] او داسې دعا وغواړې چې اې الله! مونږ او هغه سړي (د چاچې ما غیبت کړې دی) وبخښې [۴] دا روایت بیهقي رحمه الله خپل کتاب دعوات کبیر کې نقل کړې دی او ویلې یې دي چې د دې په سند کې ضعف دی

**حل اللغات:-** ① كَفَّارَة: فدیه، بدله

**تسهیلات:**

**قوله:** إِنَّ مِنْ كَفَّارَةِ الْغِيبَةِ أَنْ تَسْتَغْفِرَ لِمَنِ اغْتَبْتَهُ، تَقُولُ: اللّٰهُمَّ اغْفِرْ لَنَا وَلَهُ:

**غیبت کولو کفاره:** په دې حدیث کښې دَغیبت کونکی سړی دَ غیبت کفاره خودلې شوې. ده چه هغه دې دَمُغتاب دَپاره مستقل استغفار جاری ساتی په دې کښې دَ غیبت کونکی څومره سپکاوې او توهین دې چه دَچا نه هغه نفرت کولو او دَهغه په غیبت کښې لګیا وو بلکه دَهغه په بدوئیلو او غیبت کښې هغه خوند محسوسولو اوس هغه مجبور کولې شی چه دَمُغتاب دَپاره استغفار کوه او دَ هغه دَ پاره دعاګانې غواړه.په دې حدیث سره دَهر عقلمند سړی سترګې کولاویدل پکاردی چه هغه نن داسې کار ولې کوی او داسې کلام ولې اختیاروی دکوم دَ معذرت اومعافئی دَپاره چه صبا پوزه مړلې کیږی او ذلت برداشت کولې کیږی.

# [۱۱] بَابُ الْوَعْدِ

## دَوعده کولو بیان

**خلاصة الباب**

**فيه ستة أحاديث مشتملة على خمس مسائل:**

① إيفاء عدة الميت التي وعدها في حياته: ۱، ۲۔

② وفاء النبي صلي الله عليه وسلم بالوعد: ۳۔

③ وجوب من نية الوفاء بالوعد: ۴۔

④ كون عدم الوفاء كذباً: ۵۔

⑤ عدم لزوم الوفاء بالوعد وقت الصلوة: ۶۔

**د وعد دري معانی:**

① وعده یعد عدة دَ ضرب یضرب نه دې دَ وعده کولو په معنی کښې دی یعنی چاته داسې وئیل چه زه به تاله فلانکی وخت باندې راځم، ستا فلانکې کار به کوم یا به تاته فلانکې څیز درکوم، دا وعده ده.

④ دَ وعده لفظ چه کله مطلق اوونیلې شی نو دادَ خیرد وعدې دَپاره استعمالیږی
⑤ که چرې لفظ وعده دَ خیر یا شرسره مقید کړې شی نو په دې کښې دَخیر اوشر دواړه معنې راتلې شی لکه "وعدته خیراوعدته شرا"

**دوعدې پوره کولو حکم:** امام ابو حنیفه رحمه الله امام شافعی رحمه الله او امام احمدبن حنبل رحمه الله جمهور فقهاء په نیز اگرچه وعده پوره کول مستحب په درجه کښې دی لیکن دَ بعضې نورو فقهاؤ په نیز وعده پوره کول واجب دی دَقرآن اوحدیث تاکیداتو او وعیداتو نه په کتلوسره هم دغه راجح معلومیږی چه وعده پوره کول واجب دی ځکه چه وعده خلافی دَ منافقانو خاص علامت دې.بل دَ حضرت عمر بن عبدالعزیز رحمه الله په نیز هم وعده پوره کول واجب دی.

**دعذر په وجه د وعده خلافۍ حکم:** که یو سړې وعده کوی اوپوره کوشش کوی چه دا پوره کړی لیکن دَ مجبورئی دَ وجې نه دا پوره کولې نه شی نوهغه سړې به دَ قرآن اوحدیث بیان کړې شوې وعید کښې نه راځی.دَاحادیثو دا وعیدونه دَ هغه سړی طرف ته متوجه دی چه وعده کولوسره دَ وعده خلافئی نیت کوی اودا نه پوره کوی او دوستانوته وائی چه څه دې غلوم دادَ مسلمان کارنه دې.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۴۸۷۸] که مشر د وعده پوره کولو نه مخکې مړشی نو جانشین له دهغې پوره کول پکاردی**

۴۸۷۸-()[۱] ①عَنْ جَابِرٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: لَمَّا مَاتَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ②وَجَاءَ أَبَا بَكْرٍ مَالٌ مِنْ قِبَلِ الْعَلَاءِ بْنِ الْحَضْرَمِيِّ. ③فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ: مَنْ كَانَ لَهُ عَلَى النَّبِيِّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- دَيْنٌ، ④أَوْ كَانَتْ لَهُ قِبَلَهُ عِدَةٌ فَلْيَأْتِنَا. ⑤قَالَ جَابِرٌ: فَقُلْتُ: وَعَدَنِي رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- أَنْ يُعْطِيَنِي هٰكَذَا، وَهٰكَذَا، وَهٰكَذَا. ⑥فَبَسَطَ يَدَيْهِ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ. ⑦قَالَ جَابِرٌ: فَحَثَا لِي حَثْيَةً، ⑧فَعَدَدْتُهَا فَإِذَا هِيَ خَمْسُمِائَةٍ، ⑨وَقَالَ: خُذْ مِثْلَيْهَا. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① حضرت جابر رضي الله عنه وايي هركله چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د دې دنيا نه تشريف يوړلو ② نو (اول خليفه) حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه ته د علاء بن حضرمي رضي الله عنه د طرف نه مال راغلو (چې حضور صلى الله عليه وسلم د بحرين عامل مقرر كړي وو) ③ نو حضرت ابوبكر رضي الله عنه اوويل د كوم سړي چې په حضور صلى الله عليه وسلم قرض وي ④ يا كوم سړي سره چې حضور صلى الله عليه وسلم د څه وركولو وعده كړي وي نو هغه ته پكار دي چې هغه مونږ ته راشي ⑤ حضرت جابر رضي الله عنه وايي (په

[1] اخرجه البخاري في كتاب الجزية/باب ما أقطع النبي صلى الله عليه وسلم من البحرين، وما وعد من مال البحرين والجزية، ولمن يقسم الفيء والجزية (رقم-۳۱۶۴) ومسلم في كتاب الفضائل/باب ما سئل رسول الله صلى الله عليه وسلم شيئا قط فقال لا وكثرة عطائه (رقم-۶۰-(۲۳۱۴)

دي اوريدو سره) ما اوويل چې رسول الله ﷺ زماسره د دومره او دومره او دومره راکولو وعده کړي وه [٦] (په دي ويلو سره) حضرت جابر ﷺ خپل کهولاؤولو سره وخودل او واضحه يي کړله چې حضور ﷺ زماسره دا وعده کړي وه چې مال راتلو باندې به تاته دري خلي دواړه لاسونه ډکولو سره درکړم [٧] حضرت جابر ﷺ وايي نو حضرت ابوبکر ﷺ يووار خپل دواړه لاسونه ډکولو سره مانه (نقد پيسي) عطا کړي [٨] ما چي هغه شمير کړل نو هغه تعداد کې پنځه سوه وه [٩] بيا هغوئ وفرمايل چې دغه شان دوه ځله نور واخله يعنی يو هزار شميرلو سره نور واخله چې کمي بيشي ونشي (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① دَيْنٌ: قرض، ② عِدَةٌ: وعده، لوظ. ③ قَبَضَ: خواره ئې کړل. ④ حَثْيَةً: لپه.

**تسهيلات:**

**قوله: أَوْكَانَتْ لَهُ قِبَلَهُ عِدَةٌ:**

**په حديث کښې يو فقهي مسئله:** په قاف باندې زير دي باء اولام باندې فتحه ده دَ عنده په معنی کښې دې يعنی چه نبي عليه السلام هغه سره څه وعده کړې وی يا دَ يو سړی به نبي عليه السلام باندې قرض وی هغه دې ماله راشی زه به ئی ورادا کوم.دَدې حديث نه معلومه شوه چه يوسړې دَ چا خليفه يا جانشين جوړشی نوهغه له پکاردی چه هغه دې دَخپل تيرشوی مشر وعدې او قرضونه پوره کړی.دامستحب دی که هغه جانشين وارث وی اوکه نه وی.صديق اکبر ﷺ وارث نه وو ليکن دَنبي عليه السلام جانشين وو مګر هغوی دَ رسول الله ﷺ دَ وعدو ذمه واری قبوله کړه

**قوله: وَهَكَذَا:** دا دَ لپو ډکولو طرف ته اشاره ده.

**قوله: فَحَثَالِي حَثْيَةً:** حثية هم دغه لپو ډکولو ته وائی يعنی حضرت ابوبکر ﷺ دواړه لاسونه ډك کړل درهم ئی ورکړه.کله چه ما اوشميرل نو په هغې کښې پنځه سوه درهم وو حضرت ابوبکر ﷺ اوفرمائيل چه دَدې هومره دَدې په شان دوه ځل نور واخله دې دپاره چه دري لپې جوړې شی اودَ نبي عليه السلام وعده پوره شی.لکه چه حضرت جابر ﷺ ته پنځلس سوه درهم ملاؤ شو اوهم دَدې وعده وه

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۴۸۲۹] ابوبکر رضی الله عنه اود نبی عليه السلام کړې وعده پوره کول**

۴۸۲۹-()[۲] [١] «عَنْ أَبِي جُحَيْفَةَ قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَبْيَضَ قَدْ شَابَ، [٢] وَكَانَ

() اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب صفة النبی صلی الله عليه وسلم (رقم-۳۵۴٤) ومسلم فی کتاب الفضائل/باب شيبه صلی الله عليه وسلم (رقم-۱۰۷ - (۲۳٤۳)والترمذی فی کتاب الأدب عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی العدة (رقم-۲۸۲۶)

الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ يُشْبِهُهُ، ۳ وَأَمَرَ لَنَا بِثَلَاثَةَ عَشَرَ قَلُوصًا، فَذَهَبْنَا نَقْبِضُهَا ۴ فَأَتَانَا مَوْتُهُ، فَلَمْ يُعْطُونَا شَيْئًا، ۵ فَلَمَّا قَامَ أَبُو بَكْرٍ قَالَ: مَنْ كَانَتْ لَهُ عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عِدَةٌ فَلْيَجِئْ، ۶ فَقُمْتُ إِلَيْهِ فَأَخْبَرْتُهُ، فَأَمَرَ لَنَا بِهَا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ۱ حضرت ابو جحیفه ﷺ وایي ما رسول الله ﷺ په داسې حال کې ولیدلو چې دحضور ﷺ رنګ سرخي مائل سپین وو او په حضور ﷺ بوډاتوب ښکاره شوي وو (اګر که د حضور ﷺ سر او ږیري مبارکي کې سپین ویښته نه وو) ۲ او حضرت حسن ابن علي ﷺ [د جسم د پورته حصي د اعتبار نه] حضور ﷺ سره ډیر مشابه وو ۳ حضور ﷺ زمونږ جماعت ته د دیارلسو ځوانو اوښو راکولو حکم فرمایلي وو نو مونږ هغه اوښو اخستو لره ورغلو ۴ په دي دوران کې مونږ د حضور ﷺ د وفات نه خبر شو او مونږ ته هیڅ رانه کول شو ۵ بیا چې حضرت ابوبکر ﷺ اول خلیفه مقرر شو او خطبي ورکولو د پاره ودریدلو نو وي فرمایل د چاسره چې حضور ﷺ د څه ورکولو وعده فرمایلي وه هغه ته پکار دي چې مونږ ته راشي ۶ دي ارشاد اوریدو سره زه د حضرت ابوبکر ﷺ مخکې ودریدم او هغوئ ته مي په دي باره کې وخودل چې حضور ﷺ مونږ ته د دیارلس ځوانو اوښو راکولو وعده فرمایلي وه نو حضرت ابوبکر ﷺ مونږ ته د دیارلس اوښو راکولو حکم وکړو. (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① أَبْيَضَ: سپین ② شَابَ: بوډاکیدل، ډیر عمروالا کیدل ③ قَلُوصًا: ځوانې او مضبوطې اوښې. ④ عِدَةٌ: دوَعَدَيَعِدُ نه مصدر دي، وعده، لوظ.

**تسهیلات:**

**قوله:** رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَبْيَضَ قَدْ شَابَ:

**د شیب مراد او معنی:** یعنی دَ نبي علیه السلام رنګ ملاحت سره سپین وو دَ شاب مطلب دادې چه نبي علیه السلام دَ زیات عمر خاوندوو دامطلب نه دې چه دَنبي علیه السلام په ویښتوکښې سپینوالي خور شوي وو ځکه چه دَ رسول الله ﷺ په سرمبارك او ږیره مبارکه کښې دَ شلونه زیات ویښته سپین نه وو دَ نبي علیه السلام دَ روښانه مخ مبارك باره کښې دَ هغوی تره ابو طالب په یوه اوږده قصیده کښې دا شعر وئیلې دي

وأبيض يستسقى الغمام بوجهه ثمال اليتامى عصمة للأرامل

بهرحال دَدې حدیث نه اودَدې نه وړاندې حدیث نه داخبره ثابته شوه چه دَمړی وارث یادَ هغه خلیفه اووصی دَپاره مستحب دی چه دَ مړی وعده پوره کړی اودَ هغه په ذمه چه کوم قرض وی هغه اداکړی ځکه چه وعده هم قرض اودین کښې شامل دی

## [۴۸۸۰] دَ وعدې دَ پوره کولو عملي نمونه

۴۸۸۰ - ()[۳] [۱]«وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي الْحَمْسَاءِ قَالَ: [۲] بَايَعْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَبْلَ أَنْ يُبْعَثَ، [۳] وَبَقِيَتْ لَهُ بَقِيَّةٌ، [۴] فَوَعَدْتُهُ أَنْ آتِيَهُ بِهَا فِي مَكَانِهِ، فَنَسِيتُ، [۵] فَذَكَرْتُ بَعْدَ ثَلَاثٍ، فَإِذَا هُوَ فِي مَكَانِهِ، [۶] فَقَالَ: "لَقَدْ شَقَقْتَ عَلَيَّ، أَنَا هَهُنَا مُنْذُ ثَلَاثٍ أَنْتَظِرُكَ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عبد الله ابن ابي الحمساء ﷺ وايي [۲] چې د رسول الله ﷺ د نبي کيدو نه مخکې يووار ما د حضور ﷺ نه څه شي خريد کې [۳] او د هغه د څه حصې ادا کول په ما باقي پاتې شوه [۴] او ما وعده وکړه چې زه به بقيه قيمت اخستو سره هغه ځاي چيرته چې حضور ﷺ تشريف فرماوو يا چيرته چې ما هغه شي خريد کړي وو د حضور ﷺ په خدمت کې حاضرشم ليکن زما نه هغه وعده هيره شوه [۵] بيا په دريمه ورځ خبره راياده شوه چې ما د حضور ﷺ سره وعده کړي وه نو هغه بقيه رقم اخستو سره زه د حضور ﷺ په خدمت کې حاضر شوم نو گورم چې حضور ﷺ په هغه ځاي ناست دي [۶] او ځما په ليدو سره يې وفرمايل تازه ډير زحمت کې مبتلا کړم زه دري ورځو نه دلته ناست يم ستا انتظار کوم.(ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① بَقِيَّةٌ: څه حصه، باقي پاتې، ② شَقَقْتَ: مشقت کښې دې واچولم. زحمت دې راباندې اوکړو.

**تسهيلات:**

**قوله: بَايَعْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَبْلَ أَنْ يُبْعَثَ:**

**دنبوت نه وړاندې د نبی عليه السلام د وعدې پوره کولو واقعه:** دَ صحابی د کلام مطلب دادې چه دَ نبي عليه السلام هغه سړی سره څه معامله وه او دَ حضوراکرم ﷺ دَ طرف نه دَ هغه سړی په ذمه باندې څه پيسې ورکول باقی وو. هغه نبي عليه السلام ته اووئيل چه ته دلته کينه اوزه هغه پيسې راوړم راځم. هغه سړی وئيل چه زه لاړم او ترددريو ورځو پورې رانه هيرشو په دريمه ورځ راياد شو چه واپس هغه ځائی ته راغلم اومې کتل چه نبي عليه السلام هم په هغه ځائی تشريف فرما دې. نبي عليه السلام دَ وعدې پوره کولودَپاره ناست وو دَدې دَپاره نه چه نبي عليه السلام دَخپلو پيسودَپاره ناست وو. ياد لرئی دا واقعه دَ نبوت ملاويدو نه دَمخکښې وخت ده. "قبل أن يبعث" مطلب هم دغه دې.

---

[۱] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب /بابٌ فی العدة (رقم-۴۹۹۶)

[٣٨٨١] په وعدې پوره کولو کښې که څه عذر راپېښ شي نو ګناهګار نه دې

٣٨٨١-()[٣] [١] وَعَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [٢] "«إِذَا وَعَدَ الرَّجُلُ أَخَاهُ وَمِنْ نِيَّتِهِ أَنْ يَفِيَ لَهُ، [٣] فَلَمْ يَفِ وَلَمْ يَجِئْ لِلْمِيعَادِ، فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ» " رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [١] او حضرت زيد ابن ارقم ﷺ د حضور ﷺ نه روايت کوي چې حضور ﷺ وفرمايل [٢] هرکله چې يو سړي د خپل ورور سره څه وعده وکړي او د هغه وعدې د پوره کولو قصد لري [٣] خو د څه عذر په سبب هغه وعده پوره نه کړيسي او مقرره وخت باندې رانشي نو ګنهګار به نه وي. (ابوداؤد ترمذي)

**حل اللغات:** - ① يَفِيَ: وفا اوکړي، وعده پوره کړي.

**تسهيلات:**

**قوله: فَلَمْ يَفِ وَلَمْ يَجِئْ لِلْمِيعَادِ، فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ:**

**د ايفاء عهد شرعی حکم:** دَدې حديث نه علماؤ دا مسئله راويستې ده چه که شرعی يا عرفی عذر پيښ شي نو دَهغې نه پس وعده پوره کول واجب نه پاتې کيږي. بل دَدې حديث نه داهم معلومه شوه چه وعده پوره کول دَمکارم اخلاق نه دی څه شرعی واجب نه دی اووعده خلافی کول مکروه تحريمی دی ليکن دَ اکثر علماؤ په نيزوعده پوره کول واجب شرعی دی. بغيردَ عذر نه دَ وعدې خلاف کول حرام دی. دَ احاديثو په رنړاکښې هم دغه مسلك راجح معلوميږي. او که چرې وعدې سره يو سړې ان شاء الله اووائی نوبيا هغه آزاد دې دَوعدې پابند نه دې

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

[٣٨٨٢] چه ماشوم سره وعده اوکړئ نوهغه هم پوره کول پکار دی

٣٨٨٢-()[٥] [١] «وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَامِرٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: [٢] دَعَتْنِي أُمِّي يَوْمًا وَرَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَاعِدٌ فِي بَيْتِنَا، [٣] فَقَالَتْ: هَا تَعَالَ أُعْطِيكَ، [٤] فَقَالَ لَهَا رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "مَا أَرَدْتِ أَنْ تُعْطِيهِ؟" [٥] قَالَتْ: أَرَدْتُ أَنْ أُعْطِيَهُ تَمْرًا. [٦] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "أَمَا إِنَّكِ لَوْ لَمْ تُعْطِيهِ شَيْئًا كُتِبَتْ عَلَيْكِ كِذْبَةٌ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ".

**ترجمه:** [١] او حضرت عبد الله بن عامر ﷺ وايي [٢] چې يوه ورځ ځما مور زه وغوښتم هغه وخت رسول الله ﷺ زمونږ کور کې تشريف فرما وو [٣] او زما مور اوويل راشه. زه تاته يوشي درکوم [٤] (هرکله چې ځما مور ماته اوويل نو) رسول الله ﷺ د هغه نه پوښتنه وکړه

[1] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب/بابٌ فی العدة (رقم-٤٩٩٥) والترمذی فی کتاب الإيمان عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی علامة المنافق (رقم-٢٦٣٣)

[2] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب/بابٌ فی التشديد فی الكذب (رقم-٤٩٩١) واحمد فی المسند: ٤٤٧/٣

تا هغه ته د څه شي د ورکولو اراده کړي وه؟ ⑤ هغه اوویل مایوه خرما ورکول غوښتل ⑥ (په دي اوریدو سره) رسول الله ﷺ هغه ته وفرمایل یاد لره که تا هغه ته څه نه وای ورکړي نو ستا په عمل نامه کې به یو دروغ لیکل شوي وه (ابوداؤد بیهقي)

**حل اللغات:** - ① هَاتَعَالَ: دلته راشه

**تسهیلات:**

**قوله: فَقَالَتْ: هَاتَعَالَ أُعْطِيكَ:**

**د ،،ها،، په کلمه کښې دوه احتمالات:**

① دا چه دا د تنبیه د پاره ده

② دا چه دا اسم فعل په معني د خذ دي.په دي صورت کښې تعال د دي تاکید شی تعال د لام په فتحي سره دي په اخره کښې ئې الف نشته

**قوله: أُعْطِيكَ:**

په اعطک کښې دوه نسخې:

① په یوه نسخه کښې په حذف د یا سره **أعطك** دي.

② د سنن ابي داود او **شعب الإيمان** په روایت کښې د یاء په اثبات سره دې یَعنی اعطیک د ثبوت الیا په صورت کښې دوه ترکیبي احتمالات دی

(الف) **أعطيك** مرفوع دي د أنا مبتدا محذوف خبر دي.لهذا دا به جمله مستانفه وي.لکه چه د الله تعالي فرمان دي ((**فَهَبْ لِي مِنْ لَدُنْكَ وَلِيًّا ﴿٥﴾ يَرِثُنِي**)) مرفوع دي.

(ب) **أعطيك** مجزوم دي جواب امر د وجه نه او یاء د اشباع د پاره ده، بهرحال دا هم یو لغت دي چه په حالت جزمي کښې حرف علت برقرار وی لکه چه دي آیت کریمه کښې دي چه ((**إِنَّهُ مَنْ يَتَّقِ وَيَصْبِرْ فَإِنَّ اللَّهَ لَا يُضِيعُ أَجْرَ الْمُحْسِنِينَ**))

**قوله: أَمَا إِنَّكِ لَوْلَمْ تُعْطِيهِ شَيْئًا:**

**د مذکوره جملې تقدیری عبارت: لولم تعطيه:** یاء سره، چونکه دا د کلمه ضمیر دي د دي لام کلمه نشته معنوي اعتبار سره تقدیر د عبارت داسي شو **لولم تنوي بإعطائه شيئا**.

**قوله: كُتِبَتْ عَلَيْكِ كَذِبَةٌ:**

**د كذبة کلمې په ضبط کښې درې طریقې:**

① دا کاف په فتحې او د ذال په سکون سره په معني د **مرة من الكذب** (یوځل دروغ)

② په بعضي نسخوکې په کاف د کسري اود ذال په سکون سره **نوع من الكذب** (یو قسم دروغ)

③ بعضي تصحیح شده نسخو کښې د مصححینو د زعم مطابق د کاف په فتحې او د

ذال په کسرې سره دا ضبط درست نه دي ابن الملک فرمائي دا صحيح نه ده ځکه چه د کاف په فتحې او د ذال په کسرې او تاء سره وی نو داسي کلمه په لغت کې نشي موندلي

**قوله:** كُتِبَتْ عَلَيْكَ كَذِبَةٌ:

**ماشوم ته د دهوکې ورکولو حکم:** يعنی هغه ماشوم ته د څه ورکولو به وعده باندې د راغوښتلو نه پس که چرته دې څه نه ورکول نو په تاباندې دیو دروغو گناه لیکلې کیده دا واقعه د عبدالله بن عامر د ماشوموالی ده د مور پلار وغیره اکثر خلقو دا عادت وی چه د ماشوم سره مینه کول یا د هغه د رانیولو په غرض هغه راغواړی ورته وائی چه راشه بچې ناله څه درکوم کله چه ماشوم راشی نو راغوښتونکې هغه ته هیڅ نه ورکوی او دا عمل معمولی گڼړلو سره هیر کړی حالانکه زیر بحث حدیث کښې دا وعده گرخولې شوی ده او د دغه وعده مطابق څه ورکول پکاردی گنی دا به دروغ جوړشی او د دروغو گناه د دغه سړی په عمل نامه کښې لیکلې شی

**[۴۸۸۳] د شرعی عذر په وجه وعده کې تاخیر کیدل گناه نه ده**

۴۸۸۳-()[۲۱] [۱] عَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] "«مَنْ وَعَدَ رَجُلًا فَلَمْ يَأْتِ أَحَدُهُمَا إِلَى وَقْتِ الصَّلَاةِ، [۳] وَذَهَبَ الَّذِي جَاءَ لِيُصَلِّيَ، فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ»". رَوَاهُ رَزِينٌ.

**ترجمه:** [۱] د حضرت زید ابن ارقم ﷛ نه روایت دي چی رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] که یو سړي د چاسره د یوځاي کیدو ملاقات وعده وکړه او په هغه دواړو کې د یومونځ وخته پورې هلته ونه رسیږي [۳] او هغه سړي مونځ د پاره لاړ شي چې هلته راغلي وو نو هغه به گنهگار نه وي (رزین)

**تسهيلات: قوله:** مَنْ وَعَدَ رَجُلًا فَلَمْ يَأْتِ أَحَدُهُمَا إِلَى وَقْتِ الصَّلَاةِ:

**د شرعی یا عرفي عذر په وجه د وعد خلافی حکم:** که دوو کسانو یوځائی ته د رسیدو او ملاویدو وعده یوبل سره اوکړه یوسړې اورسیدو او بل سړې اونه رسیدو نو دا سړې د حقیقی عذر لاحق کیدو پورې انتظار اوکړی مثلاً د مونځ وخت شو یا د قضاء حاجت وخت شو یا د خوراك څښاك یا علاج معالجه ضرورت پیښ شو نو اوس دا سړې د نورو انتظار کولو پابند نه دې د شرعی یا عرفی عذر پیښیدو نه پس وعده پوره کول واجب نه پاتې کیږی د جمهور فقهاؤ په نیز وعده پوره کول مستحب دی او د وعدې خلاف کول سخت مکروه دی مگر د بعضې نورو علماؤ قول دې چه وعده پوره کول واجب دی د حضرت عمر بن عبدالعزیز ﷫ هم دغه فتوی ده د قرآن او حدیث نه هم دغه راجح معلومیږی

[1]) رواه رزین

# [۱۲]بَابُ الْمُزَاحِ

## دَ مزاح یعنی خوش طبعی کولو بیان

**خلاصة الباب:**

**فیه تسعة أحادیث مشتملة علی أربع مسائل:**

① مزاح النبي صلي الله عليه وسلم: ۱، ۲-

② أمثلة المزاح: ۱، ۳، ۴، ۵، ۶، ۷، ۸-

③ كون المزاح حقاً: ۲-

④ النهي عن المزاح الموذي: ۹-

**د مزاح لغوی معنی:** مِزاح د میم په کسرې سره مصدر دې په معنی د خوش بطعی کولو او د میم په ضمې سره اسم په معنی د خوش طبعۍ،

**د مزاح کولو دوه صورتونه:**

① په مزاح اوخوش طبعۍ کښې چا ته تکلیف رسول نه وی اوپه هغې کښې دروغ هم نه وی نو په دې صورت کښې دا جائز دې.

② که په مزاح او ټوقو کولوکښې چاته تکلیف رسول وی یا په هغې کښې دروغ وی نو بیا دا ناجائز او حرام دی.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [۴۸۸۳]دَ نبي علیه السلام خوش طبعی

۴۸۸۳-(۱)[۱] ①«عَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: إِنْ كَانَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- لَيُخَالِطُنَا ② حَتَّى يَقُولَ لِأَخٍ لِي صَغِيرٍ: "يَا أَبَا عُمَيْرٍ مَا فَعَلَ النُّغَيْرُ؟" ③ "كَانَ لَهُ نُغَيْرٌ يَلْعَبُ بِهِ فَمَاتَ"». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① حضرت انس رضی الله عنه وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم به زمونږ سره اختلاط او خوش طبعي فرمایله ② تردې چې ځما کوچني ورور ته به یې (د مذاق پطور) فرمایل ابوعمیر' نغیر چیرته لاړلو؟ ③ حضرت انس رضی الله عنه وایي ځما هغه کوچني ورور سره نغیر وو (کشني مرغي وه) چې په هغه سره به یې لوبې کولې هغه مړ شوي وو. (بخاري، مسلم)

---

[۱]) اخرجه البخاری فی کتاب الأدب/باب الکنیة للصبی وقبل أن یولد للرجل (رقم-۶۲۰۳) ومسلم فی کتاب الآداب/باب استحباب تحنیک المولود عند ولادته وحمله إلی صالح یحنکه، وجواز تسمیته یوم ولادته، واستحباب التسمیة بعبد الله وإبراهیم وسائر أسماء الأنبیاء علیهم السلام (رقم-۳۰ - (۲۱۵۰) وابوداود فی کتاب الأدب/بابٌ فی التشدید فی الکذب (رقم-۴۹۹۱) والترمذی فی کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی المزاح (رقم-۱۹۸۹)وابن ماجه فی کتاب الأدب/باب المزاح (رقم-۳۷۲۰) واحمد فی المسند:۱۱۵/۳

**حل اللغات:-** ① یُخَالِطُنَا: اختلاط او خوش طبعي به نبي فرمائيله ② النُّغَيْرُ: وړوکي مرغئ. چڼچڼه.

**تسهیلات:**

**قوله:** يَا أَبَا عُمَيْرٍ مَا فَعَلَ النُّغَيْرُ؟:

**د حديث پس منظر:** دا وړوکي ماشوم نبي عليه السلام د ابوعمير په کنيت سره يادکړو دَدي ماشوم نوم کبشه وو اودَ حضرت انس رضي الله عنه ميرني رور وو دحضرت طلحه رضي الله عنه خوئی وو هغه يوه وړوکي مرغئ ساتلې وه دکومې نوم چه نغير وو دا دَ چڼچڼي په شان وړه مرغئ وه دې ته په هندئ کښي لال وائي دَدي سر او مخوکه سره وي بعضي علماؤ دې ته بلبل وئيلي دي کله چه دا مرغئ مړه شوه نونبي عليه السلام دَ دغه ماشوم دزړه ساتلو دپاره دَ مزاح په توګه اوفرمائيل ابوعمير هغه نغير مرغئ څه اوکړه؟ په دې جمله سره دَ نبي عليه السلام دَماشوم تسلي اودَ خوش طبعي مقصود وه

**د حديث نه مستنبط شوی مسائل:**

علماؤ دَدي حديث نه ډيرزيات مسائل استنباط کړی دی.

① يوخودا معلومه شوه چه وړوکي ماشوم په کنيت سره يادولي شی

② بل دا ثابت شو چه مزاح کول جائز دی.

③ دريم دا معلومه شوه چه معمولي شان تکليف رسيدو سره هم تعزيت کول جائز دی

④ څلورم دا چه مدينه منوره کښي ښکارکول او ساتل جائز دی.

⑤ پنځم دا مسئله معلومه شوه چه په عام توګه په پنجرو کښي مرغئ بندول او ساتل اودې سره لوبې کول جائز دی په دې شرط چه دَهغوی پالنه ښه تيک ټاک وی

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۴۸۸۵] دَ نبي عليه السلام مزاح هم په رښتياؤ مبنی وو**

۴۸۸۵-(¹)[۲] [۱] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: [۲] «قَالُوا: يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّكَ تُدَاعِبُنَا. [۳] قَالَ: "إِنِّي لَا أَقُولُ إِلَّا حَقًّا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي [۲] يوه ورځ صحابه وُ رضي الله عنهم عرض وکړو چې يا رسول الله تاسو زمونږ سره خوش طبعي کوئ [۳] حضور صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل هو ليکن هغه خوش طبعي کي هم زه رېښتيا خبره کوم (ترمذي)

**حل اللغات:-** ① تُدَاعِبُنَا: دا دَمداعبه نه دي خوش طبعي کول. مزاح کول.

¹) اخرجه الترمذي في السنن كتاب البر والصلة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في المزاح (رقم-۱۹۹۰) واحمد في المسند: ۳۴۰/۲

**تسهیلات:**

**قوله: قَالُوا: يَارَسُولَ اللهِ إِنَّكَ تُدَاعِبُنَا:**

**د صحابه کرامو د تپوس وجه:** مطلب دا چه صحابه کرامو تپوس اوکړو یا رسول الله ﷺ تاسو هم مونږ سره د خوش طبعئی په توګه سره مزاح کوئی؟ نبي علیه السلام په جواب کښې اوفرمائیل چه او مزاح زه هم کوم لیکن زما په مزاح کښې صداقت وی زه داسې په احتیاط او حد بندئ سره مزاح کوم چه نور څوك ئی نه شی کولې صحابه کرامو په تعجب سره دا سوال څکه اوکړو چه صحابه کرام د زیاتې خندا او مذاق نه نبی ﷺ منع کړی وو بل په راتلونکی حدیث کښې د "ولاتمازحه" الفاظ هم دی چه خپل رور سره مذاق مه کوه دې څیزونو ته په کتلو سره صحابه کرامو دا سوال اوکړو چه یارسول الله ﷺ تاسو هم مونږ سره مذاق کوئی؟ نبي علیه السلام د مزاح د اباحت طرف ته اشاره اوکړه

**[٤٨٨٦] د رسول الله ﷺ د مزاح او خوش طبعئ واقعه**

٤٨٨٦-(١)[٣] ١ وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - «أَنَّ رَجُلًا اسْتَحْمَلَ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: ٢ إِنِّي حَامِلُكَ عَلَى وَلَدِ نَاقَةٍ، ٣ فَقَالَ: مَا أَصْنَعُ بِوَلَدِ النَّاقَةِ؟ ٤ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "وَهَلْ تَلِدُ الْإِبِلُ إِلَّا النُّوقُ؟»». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ١ او د انس ﷺ نه روایت دي چې یوه ورځ یو سړي د رسول الله ﷺ نه د سورلي یو حیوان وغوښتي نو حضور ﷺ ورته وفرمایل ٢ زه به ستاسو سورلي د پاره د اوښې بچي درکړم ٣ هغه سړي په حیرانتیا سره اوویل یا رسول الله! زه د اوښې بچي څه کوم ٤ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل اوښ خوهم د اوښې نه پیدا کیږي (ترمذي ابوداود)

**حل اللغات:** - ① اسْتَحْمَلَ: سین او تاء د طلب د پاره دی یعنی هغه سورلی اوغوښتله ② النُّوقُ: اوښه

**تسهیلات:**

**قوله: وَهَلْ تَلِدُ الْإِبِلُ إِلَّا النُّوقُ؟:**

**د اوښې باره کښې د نبی علیه السلام توقې:** نبی علیه السلام چې کله صحابی ته اوفرمائیل چې زه تـه تـا د اوښې پـه بچی باندې سوروم، نو هغه اوګڼړل چه ولد ناقة بـه وړوکې بچې وی چه د سورلئ قابل نه وی نو زه بـه هغې سره څه کوم؟ نبي علیه السلام د مزاح په توګه ولد الناقة اوویل او دا حقیقت هم وو څکه چه اوښ څومره هم لوئی شی آخر ولد الناقة خو وی کنه دې نه خارج کیدې نه شی کله چه نبي علیه السلام اوکتل چه دا سړې پرېشان کیږی نو بیائی ورته مطلب واضح کړو چه "وهل تلد الخ"

١) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب/باب ما جاء فی المزاح (رقم-٤٩٩٨) والترمذی فی کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی المزاح (رقم-١٩٩١) واحمد فی المسند: ٣/٢٦٧

**په جواب ورکولو کښې سوچ فکر کول:** ددې حدیث نه داخبره هم معلومه شوه چه یو سړې کومه یوه خبره واوري نو په هغې باندې د اوریدو نه پس غور اوفکر کول ضروري دی دې دباره چه سړې د هغې مطلب اوبیخ ته اورسیږي په تادئی کښې سوال اوجواب نه دی کول بکار که چرې دې سړی لږ شان تامل کړې وې نو اصل حقیقت ته به رسیدلې وو او پریشانی به ورته نه وه

**[۳۸۸۷] د خوش طبعۍ په انداز کښې د چا تعریف کول**

۳۸۸۷ -(۱) [۳] ① وَعَنْهُ، «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ لَهُ: ② "يَا ذَا الْأُذُنَيْنِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① او د حضرت انس ﷺ نه روایت دې چې رسول الله ﷺ هغه ته وفرمایل ② اې دوو غوږونو والا (ابوداؤد ترمذي)

**تسهیلات:**

**قوله: أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ لَهُ: "يَاذَاالْأُذُنَيْنِ:**

**د یاذ الاذنین په الفاظو سره د نبی علیه السلام توقه:** په دې جمله کښې مزاح دی جرته چه محبت الفت او بې تکلفی وی هلته هم داسې کیږي تول خلق ددوو غوږونو والا وی نبي علیه السلام د مزاح په توګه هغه سړی ته د دوو غوږونو والا اووئیل لکه چه څنګه مونږ په نوقوکښې چاته وایو اې غوږو. ددې مزاح په ضمن کښې نبي علیه السلام دهغه سړی تعریف هم اوکړو چه دا سړې دیر فهم والا او په خبره باندې پوهیدونکې دې

**[۳۸۸۸] یوې بوډۍ سره د حضور پاک ﷺ خوش طبعی**

۳۸۸۸-(۱) [د] ① وَعَنْهُ، «عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ لِامْرَأَةٍ عَجُوزٍ: ② "إِنَّهُ لَا تَدْخُلُ الْجَنَّةَ عَجُوزٌ" ③ فَقَالَتْ: وَمَا لَهُنَّ؟ وَكَانَتْ تَقْرَأُ الْقُرْآنَ، ④ فَقَالَ لَهَا: "أَمَا تَقْرَئِينَ الْقُرْآنَ؟ ⑤ ﴿إِنَّا أَنْشَأْنَاهُنَّ إِنْشَاءً - فَجَعَلْنَاهُنَّ أَبْكَارًا﴾ [الواقعة: ۳۵-۳۶] » ⑥ رَوَاهُ رَزِينٌ. وَفِي "شَرْحِ السُّنَّةِ" بِلَفْظِ "الْمَصَابِيحِ".

**ترجمه:** ① او انس ﷺ د رسول الله ﷺ نه نقل کوي چې ایوه ورځ یوې بوډې ښځې حضور ﷺ ته درخواست وکړو چې ماته د جنت ته د تلو دعاء وکړه نو ا حضور ﷺ ورته وفرمایل ② چې بوډې به په جنت کې نه داخلیږي ③ نو هغې اوویل چې څه وجه ده چې نه به داخلیږي هغه بوډې قرآن ویلې وو ④ حضور ﷺ هغه ته وفرمایل تا په قرآن کریم کې دا نه دي ویلي چې ⑤ إِنَّا أَنشَأْنَاهُنَّ إِنشَاءً فَجَعَلْنَاهُنَّ أَبْكَارًا یعنی مونږ به د جنت ښځې پیدا کوو

[1]) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب/باب ما جاء فی المزاح (رقم ۵۰۰۲) والترمذی فی کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی المزاح (رقم-۱۹۹۲) والترمذی فی ۱۲۷/۳

[2]) اخرجه البغوی فی شرح السنة رقم ۳۶۰۶

څرنګه چې پيدا کول کيږي، (يعنی مونږ به هغه پيغلې جوړې کړو د دې اعتبار نه دا خوش طبعي مبني برحقيقت وه او د حضور ﷺ دا فرمايل درست شو چې دا بوډۍ ښځه به جنت ته نه ځي ځکه چې واقعتًا هيڅ ښځه په بوډۍ توب سره جنت ته نه ځي ۞ دا روايت رزين په مذکوره الفاظو سره نقل کړي دي او بغوي خپل دويم کتاب شرح السنه کې هغه الفاظو سره نقل کړي دي کوم چې مصابيح کې مذکور دي

**حل اللغات:** - ① عَجُوزٌ: بوډۍ، ② أَبْكَارًا: پيغلې،

**تسهيلات:**

**قوله: إِنَّهُ لَا تَدْخُلُ الْجَنَّةَ عَجُوزٌ:**

**جنت ته د بوډيګانو په نه داخليدو سره د نبی عليه السلام توقه:** بوډئی ښځې ته عجوز وائی دې ښځې نبي عليه السلام ته دَ دعا درخواست کړې وو چه ما الله تعالی په جنت کښې داخل کړی. په جواب کښې نبي عليه السلام اوفرمائيل بوډئی ښځې به جنت کښې نه داخليږی. دې اوريدو سره هغه بوډئی په ژړا شوه او واپس لاړه او وئی وئيل دَ بوډئی ګانو څه قصور دې چه جنت ته به نه ځی. نبي عليه السلام هغې پسې شاته کس اوليګلو او ورته ئی اوفرمائيل چه دې ته اووايه چه جنت کښې به ځوانيدو سره ښځې داخليږی بوډئی ګانې به نه وی. بيا نبي عليه السلام دَ استشهاد په توګه دَ قرآن آيت تلاوت کړو

**[۴۸۸۹] د حضور پاک ﷺ د خوش طبعئ يوه بله واقعه**

۴۸۸۹-()[۱] ۞ وَعَنْهُ، «أَنَّ رَجُلًا مِنْ أَهْلِ الْبَادِيَةِ كَانَ اسْمُهُ زَاهِرَ بْنَ حَرَامٍ ۞ وَكَانَ يُهْدِي لِلنَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مِنَ الْبَادِيَةِ ۞ فَيُجَهِّزُهُ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا أَرَادَ أَنْ يَخْرُجَ، ۞ فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِنَّ زَاهِرًا بَادِيَتُنَا وَنَحْنُ حَاضِرُوهُ ". ۞ وَكَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يُحِبُّهُ، وَكَانَ دَمِيمًا ۞ فَأَتَى النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَوْمًا وَهُوَ يَبِيعُ مَتَاعَهُ، ۞ فَاحْتَضَنَهُ مِنْ خَلْفِهِ وَهُوَ لَا يُبْصِرُهُ. ۞ فَقَالَ: أَرْسِلْنِي، مَنْ هَذَا؟ فَالْتَفَتَ فَعَرَفَ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ۞ فَجَعَلَ لَا يَأْلُو مَا أَلْزَقَ ظَهْرَهُ بِصَدْرِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - حِينَ عَرَفَهُ، ۞ وَجَعَلَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: " مَنْ يَشْتَرِي الْعَبْدَ؟ " ۞ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِذًا وَاللَّهِ تَجِدُنِي كَاسِدًا، ۞ فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " لَكِنْ عِنْدَ اللَّهِ لَسْتَ بِكَاسِدٍ» رَوَاهُ فِي "شَرْحِ السُّنَّةِ".

**ترجمه:** ۞ او د حضرت انس رضی الله عنه نه روايت دې د ښار نه بهر اوسيدونکي (بانډچي (کليوال)) يو سړي به چې د هغه نوم زاهر ابن حرام رضی الله عنه وو ۞ رسول الله ﷺ د پاره بطور هديه د ښار د بهر نه څه راوړل (يعني داسې څيزونه چې د ښار نه بهر په جنګل کې پيدا کيږي لکه ساګ سبزي ميوه ګلونه وغيره) ۞ او کله چې به هغه د مديني نه بهر خپل د

---

[۱]) اخرجه البغوی فی شرح السنة رقم ۳۶۰۴، واحمد فی المسند ۳/ ۱۶۱

سکونت ځاي ته تلو نو رسول الله ﷺ به هغه ته د ښار څه سامان ورکوي ۴ رسول الله ﷺ به د هغه باره کې فرمایل چې زاهر ﷺ زمونږ د بهر ګماشته دي (چي هغه زمونږ د پاره د بهر څیزونه راوړي) او مونږ د هغه د ښار ګماشته یو چې مونږ هغه ته د ښار څیزونه ورکوو ۵ او رسول الله ﷺ به زاهر ﷺ سره ډیر محبت او تعلق ساتي هسي هغه یو کمزورشکل سړي وو ۶ چې یوه ورځ رسول الله ﷺ بازار ته تشریف یووړي نو وي لیدل چې هغه خپله سودا خرڅوي ۷ نو حضور ﷺ د وروسته نه هغه نه داسې غیږه ډکه کړله چې هغه حضور ﷺ نه شولیدلو ایعنی حضور ﷺ د هغه بي خبري کې د هغه وروسته کینا ستلي او خپل لاس مبارك یي د هغه د دواړو بغلونو لاندي نه را ښکلو سره د هغه سترګي یي پټي کړلي چې هغه یي ونه پیژندي شي ۸ زاهر ﷺ اوویل ماپرېږده دا سړي څوك دي بیا هغه کوشش کولو سره د سترګو دبغلونه ولیدلو او رسول الله ﷺ یي وپیژندي ۹ بیا هغه د پیژندو نه پس خپله شا د رسول الله ﷺ سیني مبارکي سره د منښلولو پوره کوشش شروع کې چې زیات نه زیات برکت حاصل کړي ۱۰ اخوا رسول الله ﷺ دا آواز شروع کې کوم سړي د ا غلام اخلي؟ ۱۱ هغه عرض وکړو یارسول الله قسم په خداي بیاخوبه تاسو ماناکاره پیداکي ایعنی بالکل آرزان او بي کاره مال ۱۲ رسول الله ﷺ وفرمایل لیکن ته د خداي په نزد ناکاره نه یي. (شرح السنة)

**حل اللغات:** - ① يُهْدِي: هدیه ئې راوړله، ② يُجَهِّزُهُ: څه سامان به ئې ورکولو. ③ بَادِيَتُنَا: زمونږ د کلو (باندو) ④ دَمِيمًا: کمزورې، ⑤ فَاحْتَضَنَهُ: په غیږه کښې ئې واخستلو، ⑥ لَايَأْلُو: پرواه ئې نه کوله. موقع ئې نه ضایع کوله، ⑦ أَلْزَقَ: پیوسته کوله ئې، ⑧ كَاسِدًا: بې کاره، کوټه،

**تسهیلات:**

**قوله:** أَنَّ رَجُلًا مِنْ أَهْلِ الْبَادِيَةِ كَانَ اسْمُهُ زَاهِرَ بْنَ حَرَامٍ:

**یو بانډیچی صحابی:** یعنی یو صحرانشین اوبادیه نشین سړې وو دکوم نوم چه زاهر وو. نبي علیه السلام دَهغه باره کښې فرمائیلی وو چه دا سړې زمونږ صحرائی دې اومونږ دَ ده ښاریان یو. یعنی دې دَ صحرا نه دَ هغه ځائی مناسبت تحفې راوړی مونږته ئی راکوی اومونږ دَ ښار مناسب تحفې ده ته ورکو بیا نبي علیه السلام هغه ته دَ مزاح په توګه غلام اوفرمائیل ځکه چه ټول خلق په حقیقت کښې دَ الله تعالی غلامان دی.

**قوله:** وَجَعَلَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: "مَنْ يَشْتَرِي الْعَبْدَ؟":

**اصیل او آزاد سړې د غلام په نوم یادولو کښې د نبی علیه السلام توقه:** یعنی دا غلام څوك اخلی؟ دَ یوڅیز تذکره په توګه دَ استفهام کول چه داڅوك اخلی دا واقعی دَ خرڅولو او اخستلو دَپاره نه وی دلته دَ مزاح په توګه داسې شوی دی. بیا هم علماؤ لیکلی دی چه که

نبي چرته يو آزاد سړي خرخول غواړي نو هغه دې خرخولې شي

**د لفظ كاسد معنى:**

**قوله** :لَكِنْ عِنْدَاللهِ لَسْتَ بِكَاسِدٍ:

يعنى كه په بازاركښې زما قيمت لګيدل شروع شى نوزه به بې قيمت او بې كاره ثابت شم وئيلى شي چه دا صحابى بنائسته نه وو په دې وجه هغه داسې اووئيل ددې په جواب كښې نبي عليه السلام اوفرمائيل د بازار خبره پريږده د الله تعالى به نيز ستا قيمت ډيرزيات دې بهرحال چه كوم څيز په بازاركښې نه خرڅيږى هغې ته كاسد وائى

بعضې علماؤ د "من يشترى العبد" ترجمه اومفهوم داخودلې دې چه ددې غلام د مقابلې يو غلام كه چاسره وى نو هغه دې راولى پيش دې كړى دامعنى ډيره لرې ده بعضې تفصيلى رواياتوكښې دى چه نبي عليه السلام دَ شانه راغلو اودَ هغه په ستركو ئې دواړه لاسونه كيخودل هغه دا وئيل چه څوك ئې ما پريږده كله چه هغه دَ رسول الله ﷺ لاسونو مباركوسره لاس اولګولو او معلومه شوه چه داخو نبي عليه السلام دې نوورسره اونختلو نوبيا نبي عليه السلام اوفرمائيل چه دَده دَاخستلو والا څوك شته؟

**[۴۸۹۰]دَحضورپاك ﷺ دَصحابه كرامو سره بې تكلفي**

٤٨٩٠-()[٤]①«وَعَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ الْأَشْجَعِيِّ قَالَ: ②أَتَيْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي غَزْوَةِ تَبُوكَ، ③وَهُوَ فِي قُبَّةٍ مِنْ أَدَمٍ، فَسَلَّمْتُ، فَرَدَّ عَلَيَّ، ④وَقَالَ: "ادْخُلْ" فَقُلْتُ: أَكُلِّي يَارَسُولَ اللهِ؟⑤قَالَ: "كُلُّكَ" ،فَدَخَلْتُ. ⑥قَالَ عُثْمَانُ بْنُ أَبِي الْعَاتِكَةِ: إِنَّمَا قَالَ: أَدْخُلُ كُلِّي مِنْ صِغَرِ الْقُبَّةِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه** :① او حضرت عوف ابن مالك اشجعي ﷺ وايي ② د غزوه تبوك په دروان كې يوه ورځ زه د رسول الله ﷺ په خدمت كې حاضرشوم ③ او هغه وخت حضور ﷺ د څمړى خيمه كې تشريف فرماوو ما حضور ﷺ ته سلام اووئيلو حضور ﷺ د سلام جواب راكي ④ او وي فرمايل دننه راځه ما (د مزاح په طور) عرض وكړو يا رسول الله! زه ټول دننه راشم (يعنى ټول جسم سره دننه راشم)⑤ حضور ﷺ وفرمايل هو ټول بدن سره دننه راشه نو زه په خيمه كې دننه داخل شوم ⑥ حضرت عثمان ابن ابي عاتكه (چې د دې حديث راوي دي) وايي چې حضرت عوف ﷺ دا خبره چې زه ټول دننه راشم په دې مناسبت سره كړې وه چې خيمه كوچنې وه.(ابوداؤد)

**حل اللغات** :- ①قُبَّة: خيمه، ②أَدَمٍ: څرمن. ③أَكُلِّي: آيا زه ټول (دننه درشم). ④صِغَر: وړه.

---

[1]) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الأدب/باب ما جاء فى المزاح (رقم-٥٠٠٠) وابن ماجه فى كتاب الفتن/باب أشراط الساعة (رقم-٤٠٤٢) واحمد فى المسند: ٢٢/٦

**تسهيلات:**

**قوله: فَقُلْتُ: أَكُلِّي يَارَسُولَ اللهِ؟:**

**دصحابی د توقې جواب په توقې سره ورکول:** دَغزوه تبوك په موقعه دَمزاح دا واقعه پيښيه شوې ده رسول الله ﷺ په يوخيمه کښې تشريف فرما وو خيمه وړه وه او دننه ځائې کم وو اونبي عليه السلام هغه ته دننه دَ راتلو دَپاره اوفرمائيل نو صحابی په جواب کښې اوفرمائيل يارسول الله! پوره راشم که دَ بدن څه حصه بهر پريخودو سره دننه راشم ځکه چه ځائې کم دې.په دې لفظ کښې دَ مزاح اړخ دې په دې باندې حضوراکرم ﷺ اوفرمائيل چه پوره راشه هيڅ حصه بهرمه پريږده دننه راشه.

**[۴۸۹] دَ حضوراکرم ﷺ دَ مزاح او خوش طبعئ يوه بله واقعه**

۴۸۹-(۸) [۱] وَعَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ-رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا-قَالَ: [۲] «اسْتَأْذَنَ أَبُوبَكْرٍ عَلَى النَّبِيِّ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-فَسَمِعَ صَوْتَ عَائِشَةَ عَالِيًا، [۳] فَلَمَّا دَخَلَ تَنَاوَلَهَا لِيَلْطِمَهَا وَقَالَ: [۴] لَا أَرَاكِ تَرْفَعِينَ صَوْتَكِ عَلَى رَسُولِ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-فَجَعَلَ النَّبِيُّ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-يَحْجُزُهُ [۵] وَخَرَجَ أَبُوبَكْرٍ مُغْضَبًا، فَقَالَ النَّبِيُّ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-حِينَ خَرَجَ أَبُوبَكْرٍ: [۶] "كَيْفَ رَأَيْتِنِي أَنْقَذْتُكِ مِنَ الرَّجُلِ؟". [۷] قَالَتْ: فَمَكَثَ أَبُوبَكْرٍ أَيَّامًا [۸] ثُمَّ اسْتَأْذَنَ فَوَجَدَهُمَا قَدِ اصْطَلَحَا [۹] فَقَالَ لَهُمَا: أَدْخِلَانِي فِي سِلْمِكُمَا كَمَا أَدْخَلْتُمَانِي فِي حَرْبِكُمَا [۱۰] فَقَالَ النَّبِيُّ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "قَدْ فَعَلْنَا، قَدْ فَعَلْنَا». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.[1]

**ترجمه:** [۱] او حضرت نعمان ابن بشير رضي الله عنهما وايي [۲] چې يوه ورځ حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضريدو د پاره دروازه باندې ودريدی اوحضور ﷺ نه کور ته د راتلو اجازت طلب کړو چې هغوئ د بي بي عائشه رضي الله عنها آواز واوريدلو چې په زوره زوره لګياوه [۳] بيا چې هغوئ په کورکي داخل شوه نو د بي بي عائشه رضي الله عنها لاس يې ونيولو او د بي بي عائشه رضي الله عنها د وهلو اراده يې وکړله او هغوئ اوويل [۴] (خبردار آئنده) زه تا د رسول الله ﷺ د اواز نه پورته اواز کونکي ونه وينم اخوا رسول الله ﷺ حضرت ابوبکر رضي الله عنه د بي بي عائشه رضي الله عنها د وهلو نه منع کول شروع کړل [۵] بيا حضرت ابوبکر رضي الله عنه د قهر په حالت کې وتلو سره لاړلو رسول الله ﷺ د حضرت ابوبکر رضي الله عنه د تلو نه پس بي بي عائشه رضي الله عنها ته وفرمايل [۶] تا وليدل ماته د هغه سړي يعنی د حضرت ابوبکر رضي الله عنه د لاس نه څرنګه وساتلي [۷] بي بي عائشه رضي الله عنها وايي د دې نه پس حضرت ابوبکر رضي الله عنه زما نه د خفه کيدو په وجه يا د حضور ﷺ نه د شرمندګي په وجه څو ورځو پورې د حضور ﷺ په خدمت کې رانغلي [۸] بيا يوه ورځ دروازه باندې حاضريدو سره دننه د راتلو اجازت وغوښتل او دننه راغلونو وي ليدل چې دواړه يعنی حضور ﷺ او بي بي عائشه رضي الله عنها په

[1] اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأدب/باب ما جاء في المزاح (رقم-۴۹۹۹)

خپلو کې د صلح حالت کې دي [۹] هغوئ دواړه مخاطب کولو سره ورته اوویل چې تاسو دواړه ما خپلې صلح کې هم شریك کړئ څرنګه چې تاسو خپل جنګ کې زه شریك کړې وم [۱۰] حضور ﷺ په دې اوریدو سره وفرمایل بیشکه مونږ داسې وکړل بیشکه مونږ داسې وکړل ایعنی تاسو موخپلې صلحې کې شریك کړلئ (ګویا حضور ﷺ خپله خبره مؤکد کولو د پاره دا جمله دوه ځله وفرمایله] (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① عَالِيًا: په اوچت آواز، ② تَنَاوَلَهَا: اوئې نیوله. ③ لِيَلْطِمَهَا: دَمضارع صیغه ده. چه څپیړه ورکړی. ④ يَحْجُزُهُ: منع کولو ئې هغه. ⑤ أَنْقَذْتُكِ: چه ته مې خلاصه کړې. ⑥ سِلْمِكُمَا: په روغه کښې. په صلحه کښې

**تسهیلات:**

**قوله: كَيْفَ رَأَيْتِنِي أَنْقَذْتُكِ مِنَ الرَّجُلِ؟:**

**پلار ته د سړی نسبت کولو کښې د نبی علیه السلام توقه کول:** په دې عبارت کښې د نبی علیه السلام د "من ابیك" لفظ دَ مزاح په توګه دَ رجل لفظ استعمال کړې دې د دې حدیث وضاحت دا دې چې په طبعی توګه دَ حضرت عائشه ﷺ په آواز کښې اوچتوالې وو هم په دغه طبعی انداز کښې دَهغې آواز دَ نبي علیه السلام په مخکښې اوچت شو لیکن صدیق اکبر ﷺ برداشت نه کړې شو او په حضرت عائشه ﷺ باندې ئې لاس اوچتول غوښتل چه نبي علیه السلام مینځ ته شو اوحضرت عائشه ﷺ ئې دَ صدیق اکبر ﷺ نه بچ کړه حضرت صدیق اکبر ﷺ لاړو نو نبي علیه السلام دَمزاح په توګه اوفرمائیل "کیف رأیتنی الخ" په پښتو کښې دَدې مطلب دې "څنګه مې دَدې سړی نه ته خلاصه کړې" په دې کښې دَ رسول الله ﷺ دَ طرف نه مزاح وو دَدې نه پس په یو موقع باندې صدیق اکبر ﷺ اوفرمائیل څنګه چه تاسو دواړو په خپل جنګ کښې زه داخل کړې ووم اوس ما په خپله صلح کښې هم داخل کړئ په دې جمله کښې دَ صدیق دَ طرف نه مزاح وو

**[۴۸۹۳] چاته د تکلیف رسولو تر حده پورې توقې کول له دې پکار**

> ۴۸۹۳-(¹) [۹] [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] " «لَا تُمَارِ أَخَاكَ وَلَا تُمَازِحْهُ [۳] وَلَا تَعِدْهُ مَوْعِدًا فَتُخْلِفَهُ» ". [۴] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عباس ﷺ دنبی کریم صلی الله علیه وسلم څخه روایت کوی، چې حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل [۲] تاسو د خپل مسلمان ورور سره جنګ مه

¹) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی المزاح (رقم-۱۹۹۵)

کوی، مه دهغه سره داسی توقي کوی، چی په هغه سره هغه ته تکلیف ورسیږي، [۳] او مه ورسره داسی وعده کوی. چی هغه پوره کولی نه شی، [شیخ عبد الحق محدث دهلوی دا ترجمه کړی ده، تاسو چې د چاسره داسې وعده مه کوئ څرنګه چې وعده کول کیږي، چې تاسو وعده خلافي ونه کړي یعنی که وعده وکړي نو هغه پوره کوئ یا د سره وعده مه کوئ او د وعدي لار بنده کئ چې د وعدي خلافي وبال کې د پریوتو درته ویره پاتي نشي] [۴] دا روایت ترمذي رحمه الله نقل کړي دي او ویلي يي دي چې دا حدیث غریب دي.

**حل اللغات**:- ① لَا تُمَارِ: جنګ، جګړه مه کوه، د مراء نه دي، ② لَا تُمَازِحْهُ: داسې مذاق مه کوه چه هغه ته پرې تکلیف اورسیږی، ③ مَوْعِدًا: خاص وعده،

**تسهیلات**:

**قوله: قَالَ: "«لَا تُمَارِ أَخَاكَ وَلَا تُمَازِحْهُ..الخ:**

**اشکال**: په مخکنی احادیثو کښې د نبی علیه السلام د توقو کولوګنړ روایات ذکر شول خو په دې حدیث کښې نبی علیه السلام د توقو کولوڅخه منع فرمائی دا تعارض دې

**د اشکال جواب**: دا حدیث په هغه صورت محمول دی په کوم کښې چې چاته تکلیف رسی نو حدیث مطلب دا شو چې داسې مذاق نه دی کول پکار په کوم سره چه یوانسان ته تکلیف او درد اورسی.

**نوټ**: په دې باب کښې فصل الثالث نشته دې.

# [۱۳]بَابُ الْمُفَاخَرَةِ وَالْعَصَبِيَّةِ

## په يو بل د فخر كولو او د عصبيت بيان

**خلاصة الباب**

**فيه ثمانية عشر حديثاً مشتملة على خمس مسائل:**

① حرمة المفاخرة بالحسب: ۱، ۲، ۷، ۹، ۱۸.

② المفاخرة بالنسب ثبوتاً ونفياً: ۳، ۷، ۱۰، ۱۱.

③ مدح التواضع: ۴، ۵، ۶، ۸.

④ ذم نصرة القوم عصبية في غير: ۱۲، ۱۳، ۱۵، ۱۶، ۱۷.

⑤ نصرة القوم في حق: ۱۴.

**قوله: بَابُ الْمُفَاخَرَةِ وَالْعَصَبِيَّةِ:**

**د لفظ مفاخره معنى او شرعي حيثيت:**

دَباب مفاعله نه دي.دَ دوو سرو په خپل مينځ كښې په يو بل باندې فخركول او په نازونخره كښې دَ برابرئى دَ دعوې اظهارته مفاخره وائى.لږ شان په واضحه الفاظو كښې داسې اوګنړئى چه خپل حسب نسب خپل خاندان او قبيله يا دَ خپل قوم اوجماعت يا خپل علم اواخلاق يا په خپله مالدارئى او طاقت باندې ناز كول او په هغې باندې غرور اوفخر كول دامفاخره ده.په ناحقه معامله كښې اوهم دغه شان په تكبر اونفسيات كښې دا تفاخر او مفاخره حرام ده ليكن دَ حق حفاظت اوهم دَدې حمايت اوخپل دينى غيرت او قومى ثقافت باندې فخركول او په هغې باندې متمسك پاتې كيدل عين ايمان اواسلام دې

**د عصبيت تعريف او شرعي حيثيت:**

**قوله: وَالْعَصَبِيَّةِ:** دَعصبيت معامله هم دَ مفاخره په شان ده.چنانچه دَ خپل مسلك او نظريه بې خايه حمايت دَپاره دَخپل قوم او خپل جماعت شان او شوكت دَ اوچتوالى دَپاره دهغوى دَ باطل موقف حمايت اوحفاظت دَپاره ړنديدو سره اودريدو ته تعصب او عصبيت وائى دا شرعًا مذموم دې ليكن كه دا تعصب اوعصبيت دَحق دَحمايت دَپاره وى او په دې كښې ظلم اوتعدى نه وى بلكه اعتدال وى نودا تعصب مستحسن دې

ابن خلدون چه كله هم دَ يوبادشاه دَديندارئى ذكر په خپل كتاب كښې كړې دې نو هغه ليكلى دى چه هغه به ځنګه ديندار نه وى ځكه چه هغه دَخپل دين باره كښې په تعصب باندې قائم وو لكه چه دادَ حق دَمضبوط حمايت نوم دې كوم چه جائز اومطلوب دې.البته داخبره ياد ساتل پكاردى چه فخر اوافتخار اوعصبيت او تعصب الفاظ په عام توګه

دَمذموم مقاصدو دَپاره استعماليږي مګر په دې کښې دَ خير اړخ هم وی لکه څنګه چه پورته په تفصيل کښې خبره راغلې ده.هم دَدې اصولو لاندې سلف صالحين کښې نه بعضو دَخپلو مفاخر تذکرې کړې دی

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

**[۴۸۹۳] دَ ذاتي او خانداني شرافت ښائست په علم دين سره دی**

۴۸۹۳-()[۱] [۱] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: [۲] «سُئِلَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-أَيُّ النَّاسِ أَكْرَمُ؟ [۳] قَالَ: "أَكْرَمُهُمْ عِنْدَ اللّٰهِ أَتْقَاهُمْ". [۴] قَالُوا: لَيْسَ عَنْ هٰذَا نَسْأَلُكَ. [۵] قَالَ: "فَأَكْرَمُ النَّاسِ يُوسُفُ نَبِيُّ اللّٰهِ ابْنُ نَبِيِّ اللّٰهِ ابْنِ نَبِيِّ اللّٰهِ ابْنِ خَلِيلِ اللّٰهِ". [۶] قَالُوا: لَيْسَ عَنْ هٰذَا نَسْأَلُكَ [۷] قَالَ: "فَعَنْ مَعَادِنِ الْعَرَبِ تَسْأَلُونِي؟" قَالُوا: نَعَمْ. [۸] قَالَ: "فَخِيَارُكُمْ فِي الْجَاهِلِيَّةِ خِيَارُكُمْ فِي الْإِسْلَامِ إِذَا فَقُهُوا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: [۱] حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي، [۲] چې د رسول الله ﷺ نه پوښتنه وشوه کوم سړی زيات معزز او مکرم دی، [۳] رسول الله ﷺ وفرمايل، د الله په نز د په ټولو کې زيات معزز او مکرم سړی هغه دی چې د ټولو نه زيات پرهيزګار او متقي وی، [يعني که ستاسو د سوال مطلب دا وي چې خانداني عظمت، د پلار نيکه لوئي او خپل فضائل او د ښه عادت نه قطع نظر ذاتي بزرګي او کرامت يو څيز وي نو پوهه شئ، چې هغه تقوی ده، نو کوم سړی چې په خلقو کې د ټولو نه زيات متقي او پرهيزګار وي، هغه د ټولو نه زيات معزز او مکرم دی، که هغه خپل حسب او نسب، خانداني عظمت، وجاهت او خپل اوصاف او خصائلو د اعتبار نه کم وي يا زيات] [۴] صحابه رضي الله عنهم عرض وکړو، زمونږ د سوال مطلب دانه دی [۵] حضور ﷺ وفرمايل (که تاسو د ذاتي بزرګي او کرامت باره کې پوښتنه نه کوي بلکې د حسب او نسب د بزرګي او شرافت باره کې پوښتنه کوي نو ددې اعتبار نه) په انسانانو کې د ټولو نه زيات شريف او برزګ حضرت يوسف عليه السلام دی چې د الله نبي وو. او د الله د نبي (حضرت يعقوب عليه السلام) ځوی دی، د الله د نبي (حضرت اسحٰق عليه السلام) لمسی او د الله د دوست (حضرت ابراهيم عليه السلام) کړوسی دی [يعني حضرت يوسف عليه السلام کې څو څيزونه دبزرګي راجمع وه چې خپله هم نبي دی، او د هغوئ په دريو پشتو کې نبوت راغلی دی. د هغه وَر نيکه ته د خليل الله لقب حاصل دی، چې الله هغه خاص دوست ګرځولی دی. بيا هغوئ علم او دانائي حسن وجمال عفوه اوکرم، اخلاق واحسان، عدل وانصاف ديني اودنياوي سرداري او حکمراني اوصافو سره هم متصف وو. نو په دې اعتبار سره هغه په انسانانو کې د ټولو نه برزګ او شريف انسان وو] [۶]

[۱] اخرجه البخاري في كتاب تفسير القرآن/باب قوله: {لقد كان في يوسف وإخوته آياتٌ للسائلين} [يوسف: ۷] (رقم-۴۶۸۹) ومسلم في كتاب الفضائل/باب من فضائل يوسف عليه السلام (رقم-۱۶۸ - (۲۳۷۸) واحمد في المسند: ۲/۴۸۵

صحابه رضی الله عنهم عرض وکړو، ستاسو نه زمونږ د سوال دا مطلب هم نه دی، ⑦ رسول الله ﷺ وفرمایل، آیا تاسو د عربو د خانداني شرف او ذات وحسب اعلی خصوصیات د اعتبار نه پوښتنه کوي اچې اهل عرب چې خپل او د خپل کارنامو، ذاتي بزرگي او عزت او دغه شان د نورو اوصافو په ذریعه د یو بل مخکې اظهار فخر کوي، او د خپلې بزرگی او لوئي دعوی کوي، او هغه په خپلو کې د یو بل د عزت او شرافت معیار د تقوی او نسب په ځای مذکوره اوصاف او خصوصیات ګرځوي، نو په هغوئ کې واقعتًا دټولو نه زیات معزز او مکرم څوك دی؟] صحابه و رضی الله عنهم عرض وکړو، چې هو، زمونږ د سوال مطلب دادی، ⑧ حضور ﷺ ورته وفرمایل، (نو واورئ) کوم خلق چې په زمانه دجاهلیت کې د ټولو نه ښه وه، هغه په اسلام کې هم د ټولو نه ښه دي، هرکله چې هغه فقیه وي یعنی په تاسو کې چې کوم خلق په زمانه دجاهلیت کې خپل خانداني شرافت، شریف النفسي، بهادري او سرداري او د ښو اخلاقو او عاداتو د اعتبار نه د ټولو خوښ او د ټولو نه ښه وي، د اسلام په زمانه کې هم هغه خلق د ټولو نه زیات خوښ او د ټولو نه ښه دی، په شرط د دې چې هغوئ اسلامي احکام او شرائع باندې پوهیدونکی او د دین دعلم حاصلونکی وي (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** - ① أَكْرَمُ: زیات عزت والا، ② خِيَارُكُمْ: غوره په تاسو کښې، ③ فَقُهُوا: چه هغوی پوهیدونکې وی.

**تسهیلات:**

**قوله: فَخِيَارُكُمْ فِي الْجَاهِلِيَّةِ خِيَارُكُمْ فِي الْإِسْلَامِ إِذَا فَقُهُوا:**

**اعرابی او مفهومی تشریح:** صحابه کرامو د نبی علیه السلام په ټولو کښې د افضل تپوس اوکړو.نو نبی علیه السلام ورته په اعتبار د عمل سره د افضل او غوره جواب ورکړو.چه د عمل په اعتبار په ټولو کښې الله تعالی ته.خوښ او غوره پرهیزګار دے.لکه قرآن پاك کښې چه الله تعالی فرمائی.[ان اکرمکم عندالله اتقاکم] یعنی د الله تعالی په نزد په تاسو کښې دټولو نه غوره او افضل پرهیزګار دے.کله چه صحابو عرض اوکړو. چه مونږ د عمل په اعتبار سره د افضل تپوس نه کوو.نو نبی علیه السلام ورته د نسب په اعتبار سره د افضل خودنه اوکړه.چه د نسب په لحاظ په ټولو کښې غوره یوسف علیه السلام دے. ځکه چه دے په خپله پیغمبر د ده پلار یعقوب علیه السلام پیغمبر او د هغه پلار ابراهیم خلیل الله هم پیغمبر وو.او دغه شان الله تعالی یوسف علیه السلام ته د خوبونو علم هم ورکړې وو.او لا زیاتی دا چه دنیاوی بادشاهی ئے ورته هم ورکړې وه.چه داهل دنیا په نظر کښې هم دعزت او شرافت مالك وو. کله چه نبی علیه السلام ته دوی دا عرض اوکړو.چه مونږ د دې په باره کښې تپوس نه کوو.نو نبی علیه السلام د دوی په مراد پوهه شو.چه دوی په عربو کښې د ټولو نه غوره او بهتر یادوی.نو وے

فرمانیل.آیا تاسو د عربو د کانونو یعنی قبیلواو خاندانونو په باره کښې تپوس کوئ.چه عرب پرې په خپلو کښې په یو بل باندې فخرکوی.نو په زمانه دجاهلیت کښې چه څوك د مرتبې خاوند وو.هغه به نن هم د شرافت مالك وی.خو صرف شرط دا دې چه دوی ته د دین پوهه حاصله وی(۲)

**د کانونو سره تشبیه**:نبی ﷺ ددغه خاندانو تشبیه د کانونو سره د دې وجې ورکړله.لکه څنګه چه کانونه دجواهر او لعلونو لوښی دی.نو دغه شان دا خاندانونه هم د عزت او شرافت لوښی دی.(۳)

**په جاهلت اواسلام کښې افضل**: صحابه کرامو د نبی ﷺ په ټولو کښې د افضل تپوس اوکړو نو نبی ﷺ ورته په اعتبار د عمل سره د افضل او غوره جواب ورکړو چه د عمل په اعتبار په ټولو کښې الله تعالی ته خوښ او غوره پرهیزګار دے.لکه قرآن پاك کښې چه الله تعالی فرمائی.[ ان اکرمکم عندالله اتقاکم] یعنی د الله تعالی په نزد په تاسو کښې دټولو نه غوره او افضل پرهیزګار دے.کله چه صحابوٌ عرض اوکړو.چه حضرت مونږه د عمل په اعتبار سره د افضل تپوس نه کوو.نو نبی ﷺ ورته د نسب په اعتبار سره د افضل خودنه اوکړه.چه د نسب په لحاظ په ټولو کښې غوره حضرت یوسف ﷺ دے.څکه چه دے په خپله پیغمبر د ده پلار حضرت یعقوب ﷺ پیغمبر او د هغه پلار حضرت ابراهیم خلیل الله هم پیغمبر وو.او دغه شان الله تعالی حضرت یوسف ﷺ ته د خوبونو علم هم ورکړې وو.او لا زیاتی دا چه دنیاوی بادشاهی ئے ورته هم ورکړې وه.چه داهل دنیا په نظر کښې هم دعزت او شرافت مالك وو.کله چه نبی ﷺ ته دوی دا عرض اوکړو.چه حضرت مونږه د دې په باره کښې تپوس نه کوو.نو نبی ﷺ د دوی په مراد پوهه شو.چه دوی په عربوٌ کښې د ټولو نه غوره او بهتر یادوی.نو وے فرمائیل.آیا تاسو د عربو د کانونو یعنی قبیلوخاندانونو په باره کښې تپوس کوئ.چه عرب پرې په خپلو کښې په یو بل باندې فخرکوی.نو په زمانه دجاهلیت کښې چه څوك د مرتبې خاوند وو.هغه به نن هم د شرافت مالك وی.خو صرف شرط دا دې چه دوی ته د دین پوهه حاصله وی(۱)

**دکانونو سره د تشبیه وجه**: نبی ﷺ ددغه خاندانو تشبیه د کانونو سره د دې وجې ورکړله.چه لکه څنګه چه کانونو دجواهر او لعلونو لوښی دی.نو دغه شان دا خاندانونه هم د عزت او شرافت لوښی وو.(۲)

**د شرافت مرتبې**- ① د ټولونه اوچته مرتبه دا ده.چه یو سړې به جاهلیت کښې هم د شرافت خاوندوی.او په اسلام کښې هم د عزت صاحب اوګرځی.او لازیاتی دعلم په صفت

---

(۱) فتح الباری). (۲) فتح الباری). (۳) مسلم فی الذکر والدعاء باب أکثرأهل الجنة الفقراء الخ رقم، ۴۹۲۵، وکذا تر.فی الفتن،۲۱۱۷،وجه فی الفتن رقم،۴۹۹۰، وحم. باقی مسند المکثرین رقم، ۱۷۰۱۶). (۴)شرح نووی)

هم موصوف شی.② ور پسې دهغه چا مرتبه ده.چه په جاهلیت کښې د عزت مالك وو.او په اسلام کښې ورته هم شوافت ملاؤ شو.خو د علم دصفت نه محرومه وی.③ ور پسې هغه څوك دے چه په جاهلیت کښې د شرافت خاوند نه وو.خو په اسلام کښې ورته الله تعالی عزت ورکړو.او دعلم په جوهر باندې هم ښانسته شو.

### [۴۸۹۴] دَ ټولو نه زیات شرافت والا څوك دې؟

۴۸۹۴-(۱)[۲] ① وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "②«الْكَرِيمُ ابْنُ الْكَرِيمِ ابْنِ الْكَرِيمِ ابْنِ الْكَرِيمِ، ③يُوسُفُ بْنُ يَعْقُوبَ بْنِ إِسْحَاقَ بْنِ إِبْرَاهِيمَ»". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه**:① حضرت ابن عمر رضي الله عنهما وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل.② کريم ابن کريم ابن کريم ابن کريم که څوك کيدي شي،③ نو هغه حضرت يوسف عليه السلام ابن يعقوب عليه السلام ابن اسحاق عليه السلام ابن ابراهيم عليه السلام دی (بخاري)

**تسهیلات:**

**قوله**: اَلْكَرِيمُ ابْنُ الْكَرِيمِ ابْنِ الْكَرِيمِ ابْنِ الْكَرِيمِ:

**بنی اسرائیلو د نبیانو سلسله**: دَ حضرت ابراهیم عليه السلام دوه ځامن ښکاره او مشهور وو یو حضرت اسماعیل وو دَهغه په اولاد کښې یو نبی در یتیم خاتم النبیین محمد ﷺ راغلي دي دویم ځوئی دَحضرت اسحاق عليه السلام ځوئی یعقوب عليه السلام وو اودَ حضرت یعقوب عليه السلام ځوئی حضرت یوسف عليه السلام وو.دَ حضرت یوسف عليه السلام نه دَبنی اسرائیلو دَ ټولو انبیاء کرامو سلسله جاری شوې ده.حضرت یوسف عليه السلام دَ بنواسرائیل دَ ټولو انبیاء کرامو دَپاره مرکز وو بیا الله تعالی هغوی ته حسن ورکړې وو اوعظیم کمال ئی ورکړې وو.دَ خبرو طریقه اودَ خوبونو دَ تعبیر علم اوانصاف او هوښیارتوب ئی ورکړې وو.دغه شان هغوی لره الله تعالی ډیره زیاته پاکبازی اوعفت نفس اومعصومیت سره سرفراز کړې وو.نبي علیه السلام اوفرمائیل چه دَ پورته نه ترښکته پورې په هرلحاظ سره مکرم معظم حضرت یوسف عليه السلام وو

### [۴۸۹۵] دکفارو په مقابله کې د خاندانی شرافت اظهار کول

۴۸۹۵-(۲)[۳] ① وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-قَالَ:②«فِي يَوْمِ حُنَيْنٍ كَانَ أَبُو سُفْيَانَ بْنُ الْحَارِثِ آخِذًا بِعِنَانِ بَغْلَتِهِ-يَعْنِي بَغْلَةَ رَسُولِ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-③فَلَمَّا غَشِيَهُ الْمُشْرِكُونَ، نَزَلَ فَجَعَلَ يَقُولُ:"

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب أحادیث الأنبیاء/باب قوله عز وجل: {ونبئهم عن ضیف إبراهیم إذ دخلوا علیه} [الحجر: ۵۲](رقم-۳۳۷۲) والترمذی فی کتاب تفسیر القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/بابٌ: ومن سورة یوسف (رقم-۳۱۱۶) واحمد فی المسند:۲/۹۶

[۲] اخرجه البخاری فی کتاب الجهاد والسیر/باب من قال: خذها وأنا ابن فلان (رقم-۳۰۴۲) ومسلم فی کتاب الجهاد والسیر/بابٌ فی غزوة حنین (رقم-۷۸ - (۱۷۷۶)) واحمد فی المسند: ۴/۲۸۰

④ أَنَا النَّبِيُّ لَا كَذِبْ أَنَا ابْنُ عَبْدِ الْمُطَّلِبْ" ⑤ قَالَ: فَمَا رُئِيَ مِنَ النَّاسِ يَوْمَئِذٍ أَشَدُّ مِنْهُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: ① او حضرت براء ابن عازب رضي الله عنه وايي. ② چې د غزوه حنين په ورځ د رسول الله ﷺ د قچرې (غاترې) واګې سفيان ابن حارث رضي الله عنه نيولې وې. (چې د حارث ابن عبد المطلب ځوی کيدو په وجه د حضور ﷺ د تره ځوی وو. او د عربو په زورورو نامتو ځوانانو کې يوبهادر ځوان وو) ③ د جنګ په دوران کې چې مشرکينو د ځلور طرف نه حضور ﷺ را ونيوی، نو حضور ﷺ د خپل قچر نه را خکته شو. او دا رجز (جنګ کې د مړاني شعرونه ويل) يي شروع کړل. ④ زه نبي يم، په دي کې هيڅ دروغ نشته. او زه د عبد المطلب فرمانبردار ځوی يم. ⑤ د راوي بيان دی، په هغه ورځ د حضور ﷺ نه زيات بهادر او زړه ور څوك ونه ليدل شو (بخاري، مسلم)

**حل اللغات**: - ① عِنَانِ: واګې، ② بَغْلَةٌ: قچر، ③ غَشِيَهُ: راګير ئې کړو، ④ رُئِيَ: اوليدلې شو

**تسهيلات**:

**قوله**: أَنَا النَّبِيُّ لَا كَذِبْ أَنَا ابْنُ عَبْدِ الْمُطَّلِبْ:

**د حديث مختصر پس منظر**: دَ فتح مکه نه يو څو ورځې پس دَغزوه حنين معرکه پيښه شوه په شروع کښې مسلمانانو ته عارضی ماتې اوشو ليکن نبي عليه السلام په استقامت سره ميدان کښې دکافرانو مقابلې ته ولاړ وو. هغوی يوقدم هم شاته شوي نه وو بلکه دَ جنګ دوران کښې په نبي عليه السلام باندې دَ ځلورو واړو طرفونه دکافرانو دَ حملې باوجود نبي عليه السلام په وړاندې تلو. حضرت عباس رضي الله عنه او حضرت ابوسفيان بن حارث هغوی سره وو. نبي عليه السلام دَخپل سپين قچر نه راکوز شو او په ډير استقلال سره دَعظمت دا جملې ئې ارشاد اوفرمائيلې "أنا النبي لاكذب أنا ابن عبد المطلب" يعنې زه دَعبدالمطلب په شان دَ اوچتو صفاتو والا سردار ځوئی يم دَدې خاندانی شرافت او عظمت تقاضا داده چه زه دَجنګ په ميدان کښې يو قدم هم شاته نه شم اوزه دَ الله تعالى رښتوني نبی يم اودَ نبوت دَعظمت تقاضا داده چه زه دَ جهاد په ميدان کښې په خائی دَ شاته کيدو وړاندې لاړشم.

نبي عليه السلام په دې رجزيه کلماتوکښې دکافرانو په مقابله کښې خپل خاندانی شرافت اوچت همت اوبهادری اوشجاعت اودَ رښتوني نبوت طرف ته اشاره اوکړه چه په حقيقت باندې مبنی وو. په دې کښې دَديني غيرت او حميت اظهار وو په کافرانو باندې رعب کينول مقصود وو اودَ دين اسلام دَ شوکت اظهار وو چه هغه وخت ضروری وو دَدې په مقابله کښې يو دروغژن مدعی دَ نبوت مسيلمه کذاب ته لړ شان اوګورئی چه دَ يمامه په جنګ کښې کله هغه حديقة الموت کښې په خپله قلعه کښې دَ مسلمانانو په

گیره کښې راغلو نوخپلو ملګرو ته ئې اوونیل زما رونړو دلته نبوت وغیره هیڅ نشته دَخپل عزت په خپله دَ بچ کولو کوشش اوکړئی "لعنة الله على المفتري الكذاب".

**[۴۸۹۳] دَ خیر البریة نه څوک مراد دی؟**

۴۸۹۳-(۱)[۴] [۱] وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: يَا خَيْرَ الْبَرِيَّةِ. [۳] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "ذَاكَ إِبْرَاهِيمُ"». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت انس رضی الله عنه نه روایت دی. [۲] چې یوه ورځ یو سړی د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضرېدو سره حضور ﷺ داسې مخاطب کړی اې هغه سړیه، چې په ټولو مخلوقاتو کې ښه یې، [۳] حضور ﷺ ورته وفرمایل، کوم سړی چې په ټول مخلوق کې ښه وو هغه حضرت ابراهیم علیه السلام دی. (مسلم)

**حل اللغات:-** ① خَيْرَ الْبَرِيَّةِ: په کائنات کښې دَ ټولو نه افضل نبی علیه السلام دې

**تسهیلات:**

**قوله: فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "ذَاكَ إِبْرَاهِيمُ":**

**اشکال:** نبي علیه السلام على الإطلاق خیر البریة او سید الاولین والآخرین دې. بیا دلته دَخپل ذات نفی اوحضرت ابراهیم علیه السلام دَپاره دَ ثابتولو څه مطلب دې؟

**داشکال جواب:** حضرت ابراهیم علیه السلام دَنبي علیه السلام جدامجد دې نونبي علیه السلام تواضعًا اوفرمائیل چه په اصل کښې خو خیر البریة زما جدامجد وو زه چرته یم محاوره دکلام هم دغه شان وی. دویم جواب دادې ممکن ده چه دا دَ نبوت دَ شروع واقعه وی اودَ نبي علیه السلام سیادت اوقیادتِ عامه دَوحی په ذریعه تردغه وخته پورې واضح شوې نه وی روستو په ذریعه دَوحی نبي علیه السلام ته دا مرتبه ملاؤ شوې وه نو اول ئې انکار اوکړو بیائې روستو اقرار اوکړو.

**[۴۸۹۴] دَرسول الله ﷺ په تعریف اومنقبت کښې دَ شریعت خیال ساتل پکار دی**

۴۸۹۴-(۲)[۵] [۱] وَعَنْ عُمَرَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«لَا تُطْرُونِي كَمَا أَطْرَتِ النَّصَارَى ابْنَ مَرْيَمَ، [۳] فَإِنَّمَا أَنَا عَبْدُهُ، فَقُولُوا: عَبْدُ اللَّهِ وَرَسُولُهُ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت عمر رضی الله عنه نه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل، [۲] تاسو خلق ځما مدح او تعریف کې د حد نه زیات تجاوز مه کوئ څرنګه چې نصاری د ابن مریم

---

[۱] اخرجه مسلم فی کتاب الفضائل/باب من فضائل إبراهيم الخليل صلی الله علیه وسلم (رقم-۱۵۰ - (۲۳۶۹) واحمد فی المسند: ۱۷۸/۳

[۲] اخرجه البخاری فی کتاب أحاديث الأنبياء/باب قول الله {واذكر فى الكتاب مريم إذ انتبذت من أهلها} [مريم: ۱۶] (رقم-۳۴۴۵) واحمد فی المسند: ۲۳/۱

(حضرت عیسیٰ) تعریف کې د حد نه تجاوز کړی دی، (چې هغه د بشریت نه خېژولو سره الله او د الله ځوی ورته وئیل شروع کړي دي)۲ زه د الله بنده یم. نو تاسو ما ته د الله بنده او د هغه رسول وایئ (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** - ① لَاتُطْرُونِي: دباب افعال نه اطراء بې ځایه مدح او په مدح او تعریف کښې مبالغې او غلو اوتجاوز ته وائی

**تسهيلات:**

**قوله: لَاتُطْرُونِي كَمَا أَطْرَتِ النَّصَارَى ابْنَ مَرْيَمَ:**

**لفظ لاتطرونی تحقيق:** په اصل کښې "لاتطرون" دې. دَ حدیث مطلب دا دې چه نبي علیه السلام فرمائی زما تعریف ثنا اومدح اومنقبت کښې داسې تجاوز اوغلطه طریقه مه اختیاروئ ځنګه چه نصاریٰ دَحضرت عیسیٰ علیہ السلام باره کښې اختیار کړې ده چه دَالله تعالی دغه بزرګ بنده ئی دَ بندګئی اودَ عبودیت مقام نه اوچت کړودَ معبودیت مقام باندې راوستلو ویدرولو اوهغه ته ئی دَ عبدالله په ځائې ابن الله اووئیل یا ئی ورته الله اووئیل، یائی ورته په دریو کښې دریم اووئیل. تاسو داسې مه کوئی دومره وینا کول په مدح او ثناکښې کافی دی چه ما ته دَ الله تعالی بنده اورسول اووایئی دَ الله تعالی په بندګئی کښې دیر لوئی اعزاز دې کماقیل:

لاتدعنی إلا بیاعبدها فانه أفضل أسمائيا

دغه شان دا وینا کول چه زه دَ الله تعالی رسول یم دادَ تعریف آخری حد دې ځکه چه رسول په هغه مقام باندې وی دکوم نه پس چه دَ الله تعالی شان شروع کیږی، په دې وجه دَعبدیت او نبوت دَاعزاز سره زما تعریف کافی دې. دَالوهیت په مقام سره زما تعریف مه کوئی ځنګه چه نصاریٰ اوکړو. علامه بوصیری رحمہ اللہ څه ښه وینا کړې ده:

فأن فضل رسول الله ليس له حد فيعرب عنه ناطق بفم

بهرحال دَ شرعی حدود نه وتلوسره دَنبي علیه السلام مدح او ثنا دَ نبي علیه السلام تعریف نه دې بلکه نبي علیه السلام ناراض کول دی دَ مدح اوتمدح په میدان کښې بریلوی حضرات دَ خطرناك حده پورې تجاوز کوی او نبي علیه السلام دَ الوهیت او معبودیت مقام ته رسوی. دَهغوی دا وینا چه نبي علیه السلام نور الله دې دَدې مطلب په غلی الفاظو کښې هم دغه راؤځی چه نبی علیہ السلام ابن الله دی. نصاریٰ هم دغه شان په ګول مول الفاظو کښې حضرت عیسیٰ علیہ السلام ته ابن الله اووئیل. بریلیانو نبي علیه السلام ته المدد یا رسول الله وئیلو سره راؤبللو دادَ الوهیت او معبودیت مقام دې. زیر بحث حدیث هم دَ بریلیانودَ تردید دَپاره دې که چرې په دې سره هم دَدغه خلقو سترګې کولاؤ نه شوې نو بیا

د مړه کیدو نه پس او د ستر ګو بندیدو نه پس به کولاویږي شیعه او روافض له هم دغه خیال کول پکار دي هغوی خپلو دوولسو امامانو ته هم دغه شان د معبودیت درجه ورکوي د دې حدیث اعلان دې چه بریلوي روافض هوشیار باش

**[۴۸۹۸]د فخر د اظهار کولو مما نعت**

۴۸۹۸-(۱)[۱] وَعَنْ عِيَاضِ بْنِ حِمَارٍ الْمُجَاشِعِيِّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ:[۲] "«إِنَّ اللَّهَ أَوْحَى إِلَيَّ: أَنْ تَوَاضَعُوا[۳] حَتَّى لَا يَفْخَرَ أَحَدٌ عَلَى أَحَدٍ،[۴] وَلَا يَبْغِي أَحَدٌ عَلَى أَحَدٍ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:**[۱] او حضرت عیاض رضی الله عنه ابن حمار مجاشعي نه روایت دی، چې رسول الله ﷺ وفرمایل.[۲] الله د وحي په ذریعه ماته حکم کړی دی. چې عاجزي او عاجزي اختیار کړه.[۳] تردې چې هیڅ سړی دې په چا فخر نه کوي.[۴] او نه دې یو سړی په چا ظلم او زیاتی کوي (مسلم)

**حل اللغات:** - ①تَوَاضَعُوا: عاجزی اختیار کړئ، ②لَا يَفْخَرَ: فخر اونه کړی.

**تسهیلات:**

**قوله:** تَوَاضَعُوا حَتَّى لَا يَفْخَرَ أَحَدٌ عَلَى أَحَدٍ:

**په یوبل باندې د فخر کولو حرمت:** د دې حدیث نه معلومه شوه چه داسې فخر کول چه د تکبر او غرور په طریقه وی دا حرام دی.په حدیث کښې فخر و ظلم دواړه یو ځائې ذکر کولو کښې هم دې ته اشاره ده چه دا دواړه خبري د تکبر نتیجه ده ځکه چه متکبر خپل ځان د ټولو نه اعلي تصور کوي او هغه د چا هم تابعداری نه کوي )

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۴۸۹۹]پلار نیکه اوخاندان باندې د فخر کولو مما نعت**

۴۸۹۹-(۲)[۲] [۱] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ:[۲] "«لَيَنْتَهِيَنَّ أَقْوَامٌ يَفْتَخِرُونَ بِآبَائِهِمُ الَّذِينَ مَاتُوا،[۳] إِنَّمَا هُمْ فَحْمٌ مِنْ جَهَنَّمَ،[۴] أَوْ لَيَكُونُنَّ أَهْوَنَ عَلَى اللَّهِ مِنَ الْجُعَلِ[۵] الَّذِي يُدَهْدِهُ الْخِرَاءَ بِأَنْفِهِ[۶] إِنَّ اللَّهَ قَدْ أَذْهَبَ عَنْكُمْ عُبِّيَّةَ الْجَاهِلِيَّةِ، وَفَخْرَهَا بِالْآبَاءِ،[۷] إِنَّمَا هُوَ مُؤْمِنٌ تَقِيٌّ، أَوْ فَاجِرٌ شَقِيٌّ[۸] النَّاسُ كُلُّهُمْ بَنُو آدَمَ، وَآدَمُ مِنْ تُرَابٍ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:**[۱] حضرت ابوهریره رضی الله عنه د رسول الله ﷺ نه روایت کوي، چې رسول الله ﷺ وفرمایل.[۲] خلق دې په هغه پلار نیکه باندې فخر کول پریږدي کوم چې مړه شوي وي[۳]

---

[۱]) اخرجه مسلم فی کتاب الجنة وصفة نعیمها وأهلها/باب الصفات التی یعرف بها فی الدنیا أهل الجنة وأهل النار (رقم-۶۴ - (۲۸۶۵) وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب البراءة من الکبر والتواضع (رقم-۴۱۷۹)

[۲]) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب/بابٌ فی التفاخر بالأحساب (رقم-۵۱۱۶)والترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/بابٌ (رقم-۳۹۵۵)واحمد فی المسند:۲/۳۶۱

او د هغوئ حقيقت د دې نه علاوه نور هيڅ نه دي چې هغوئ د دوزخ سکاره جوړشوي دي، ④(که فخر کولو نه منع نشي نو) هغوئ به د الله په نز د ګندګي د چينجي نه هم زيات ذليله او خوارشي، ⑤ چې ګندګي د خپلي پوزي سره لړي کوي، ⑥ بلا شبه الله ﷻ ستاسو نه د جاهليت غرور اوپه پلار نيکه باندې د فخر کولو عادت لري کړی دی ⑦ ياد لري که سړی په ايمان اوتقوي سره مالا مال دی، نو هغه پخپله قابل د تکريم او معزز دی، [په دې صورت کې هغه ته څه ضرورت دی چې په خپل پلار نيکه فخر کولو سره دخپل حيثيت د زياتولو کوشش کوي]، او که يوسړی فاجر او بدکار وی، نو هغه د الله ﷻ په نز ذليل او خوار دی، [په دې صورت کې د هغه څه حق دی چې تکبر او غرور وکړي]⑧ ټول انسانان د آدم ﷺ اولاد دی، او آدم ﷺ د خاوري نه پيدا شوی دی او خاوره يوډير کمتر او بې حيثيته څيز دی، نو خاوري نه جوړ شوی [انسان ته مناسب نه دی چې د خپل عظمت او لوئي دعوی وکړي، او په غرور او تکبر کې اونخلي] (ترمذي، ابوداود)

**حل اللغات:**- ①لَيَنْتَهِيَنَّ: خامخا دې منع شي خلق، ②يَفْتَخِرُونَ: چه دوی فخر کوی. ③فَحْمٌ: سکاره،د دوزخ خشاک، ④أَهْوَنَ: زيات ذليله، سپک، ⑤الْجُعَلِ: د ګندګئ چينجي. ګونګټ. ⑥يُدَهْدِهُ: چه لړې کوی، ⑦الْخِرَاءَ: ګندګی،غلاظت، ⑧بِأَنْفِهِ: خپلې پوزې سره. ⑨عُبِّيَّةَ: کبر. غرور.

**تسهيلات:**

**قوله**: لَيَكُونُنَّ أَهْوَنَ عَلَى اللَّهِ مِنَ الْجُعَلِ الَّذِي يُدَهْدِهُ الْخِرَاءَ بِأَنْفِهِ:

**په پلار نيکه باندې د فخر کولو ممانعت:** جعل حشرات الارض کښې يو چينجی ته وائی کوم ته چه ګبريلا وئيلی شی اوپښتو کښې دې ته ګونګټ وائی. دغه ګونګټ دَ انسانی او حيوانی غلاظت ته ښه ګوله جوړوی اوبيا دَ خلې په ذريعه هغې له مخکښې ديکه ورکوی اوړی. که دَ سوړې برابر ګوله وی نودننه ئې يوسی ګنی افسوس سره ئې بهر پريږدی. دغه شان انسان حب جاه او دَمنصب ګندګی اوچتوی ليکن په قبرکښې دَداخليدو په وخت دغه ټول کبر اولوئی هم دغه شان پاتې شی اوانسان خپل عمل سره قبرته لاړشی.

### [۴۹۰۰] حضوراکرم ﷺ ته دَ سردار وئيلو حکم

۴۹۰۰-()[۸] ①«وَعَنْ مُطَرِّفِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الشِّخِّيرِ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-قَالَ: ②قَالَ أَبِي: انْطَلَقْتُ فِي وَفْدِ بَنِي عَامِرٍ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ③فَقُلْنَا: أَنْتَ سَيِّدُنَا، فَقَالَ: " السَّيِّدُ اللَّهُ " ④فَقُلْنَا وَأَفْضَلُنَا فَضْلًا، وَأَعْظَمُنَا طَوْلًا. ⑤فَقَالَ: " قُولُوا قَوْلَكُمْ، أَوْ بَعْضَ قَوْلِكُمْ، وَلَا يَسْتَجْرِيَنَّكُمُ الشَّيْطَانُ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُو دَاوُدَ.

[1] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب /بابٌ فی کراهية التمادح (رقم-۴۸۰۶) واحمد فی المسند: ۴/ ۲۵

**ترجمه**: [١] او حضرت مطرف ابن عبد الله ابن شخير وايي، [٢] چې ځما پلار حضرت عبد الله صحابي ﷺ بيان وکې چې د بنو عامر کوم وفد د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضرشوى وو. ايه هغوئ کې زه هم شريك وم، نو کوم وخت چې مونږ د رسول الله ﷺ په خدمت کې راورسيدو [٣] نو مونږ عرض وکړو چې تاسو ﷺ زمونږ سردار يي رسول صلي الله عليه وسلم وفرمايل چې ..سيد،، خو الله تعالى دي [٤] مونږ وويل چې د خير او بهترى د مخه په مونږ کې دټولو نه بهترين او د بخشش د اعتبار نه په مونږ کې ټولو نه بزرګ او برتريي. [٥] حضور ﷺ وفرمايل، هو داسې وايي بلکي د دې نه هم دکم درجي الفاظ استعمالوي ايعنى ځما تعريف او مدح کې مبالغه آرائي نه کار مه اخلئ. او هغه صفات زماطرف ته مه منسوب کوي، کوم چې صرف د حق تعالى ذات سره مخصوص دي. تاسو چې په آخر کې کومه خبره کړي ده، زيات نه زيات هغه حد پورې ځما تعريف کولى شي. بلکي ځما په هکله هغه نه هم د کمي درجي تعريف کوي، نو زياته ښه ده او ګورى شيطان دي تاسو خپل وکيل جوړنه کړي اوتاسو دي په بل طرف بونه زي (ابوداؤد)

**حل اللغات**: - ① انْطَلَقْتُ: زه راغلم. ② طَوْلًا: برتر، اوچتې مرتبې والا. ③ لَا يَسْتَجْرِيَنَّكُمْ: داد جرى نه دى اوجرى دلته دَ وکيل په معنى کښې دې چه دَخپل مؤکل په ځائى اوجارى مجرى وى

**تسهيلات**:

**قوله**: فَقُلْنَا: أَنْتَ سَيِّدُنَا، فَقَالَ: "السَّيِّدُ اللّٰهُ":

**اشکال**: د سيد دَ لفظ اطلاق مختلف احاديثو کښې په مخلوق باندې شوى دې دا د دې خبرې دليل دې چې غير الله ته هم سيد وئيلې شى نو بيا په دې حديث کښې ولې نبى عليه السلام خپل ځان دپاره د سيد د استعمال ممانعت وکړو؟

**داشکال جواب**: دلته د دغه انکار وجه داوه چه دې خلقو دې لفظ سره دَخطاب کوم انداز خپل کړې وو هغه داسې وو لکه چه نبي عليه السلام ئې دَ دنيا د سردارانو نه يو سردار ګرځولي وو حالانکه دنبي عليه السلام خصوصيت خودَهغوى نبوت اورسالت وو دَ دنيا د سردارنو به شان سردارى نه وه په دې وجه نبي عليه السلام اوفرمائيل چه سردار يعنى مشکل کشا. حاجت روا صرف يو دَ الله تعالى ذات دې

**قوله**: وَلَا يَسْتَجْرِيَنَّكُمُ الشَّيْطَانُ:

**د يستجرينکم دوه مطلبونه**: مطلب داچه دَ حدنه تجاوز مه کوئى چرته په دغه بې ځائه تجاوزات کښې شيطان تاسو خپل وکيل جوړنه کړى يا دا لفظ دَ جرات نه جوړ دې يعنى شيطان تاسو زما په بې ځايه تعريف کښې جرى اوبهادرنه کړى چه تاسو بې ځايه تعريفونه شروع کړئى دامعنى زيات واضح اومناسب ده

### [۴۹۰۱] اصل افضلیت په پرهیزګارۍ دې

۴۹۰۱-(۱)[۹] ① وَعَنِ الْحَسَنِ، عَنْ سَمُرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "② «الْحَسَبُ: الْمَالُ، وَالْكَرَمُ: التَّقْوَى» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① او حضرت حسن رحمه الله د حضرت سمره نه روایت کوي. چې رسول الله ﷺ وفرمایل. ② حسب مالداري ده او کرم د پرهیزګاري نوم دی (ترمذي. ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ② الْحَسَبُ: مال دولت والا. ③ الْكَرَمُ: عزت او شرافت.

**تسهیلات:**

**قوله: الْحَسَبُ: الْمَالُ، وَالْكَرَمُ: التَّقْوَى:**

**دالله تعالی په نیز د برتری معیار:** یعنی دَعامو خلقو پـه نیزخو دَحسب نسب مالـك او چت شان والا. مکرم معظم او بزرګ هغه سړې دې چاسره چه مال وی هم دَهغـه عزت او عظمت وی او هم هغه خلق خوش قسمت او کامیاب ګڼړی او دَ الله تعالی محبوب ئی ګڼړی چانـه ویناکړې ده چه

رأيت الناس قد مالوا الى من عنده مال　　ومن لاعنده مال فعنه الناس قد مالوا

دادَ خلقو معامله ده لـیکن دَالله تعـالی پـه نیـز مکـرم معظم هغـه سـړې دې چـه متقـی او پرهیزګار وی. دَ الله تعالی په نیز دَ لوئی وړوکی کیدو مدار په تقویٰ باندې دې ﴿إِنَّ أَكْرَمَكُمْ عِنْدَ اللّٰهِ أَتْقَاكُمْ﴾ (سورة الحجرات).

### [۴۹۰۲] په خپل پلار نیکه باندې دَ فخر کونکی عذاب

۴۹۰۲-(۲)[۱۰] ① وَعَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: ② " «مَنْ تَعَزَّى بِعَزَاءِ الْجَاهِلِيَّةِ، ③ فَأَعِضُّوهُ بِهَنِ أَبِيهِ وَلَا تُكَنُّوا» ". رَوَاهُ فِي "شَرْحِ السُّنَّةِ".

**ترجمه:** ① او حضرت أبي بن کعب وايي، ما د رسول الله ﷺ نه دا واوريدل ② چې کوم سړی د زمانه جاهليت نسبت سره ځان منسوب کړي، ③ نو هغه ته د پلار شرمګاه ورياده کړئ يعنی بد رد ورته اووايئ، او په دې کې د اشاره کنايه نه کارمه اخلئ (شرح السنه)

**حل اللغات:** - ① عَزَاءِ: نسبت کول. منسوب کول. ② فَأَعِضُّوهُ: په غاښونو سره نیول او پرې کول. ③ هَنِ: شرمګاه. ④ لَاتُكَنُّوا: کنايه او اشاره پکښې مه کوئ.

---

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب تفسیر القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب: ومن سورة الحجرات (رقم-۳۲۷۱) وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب الورع والتقوی (رقم-۴۲۱۹) واحمد فی المسند:۵/۱۰

[۲] اخرجه البغوی فی شرح السنة رقم ۳۵۴۱ واحمد فی المسند:۵/۱۳۶

**تسهیلات:**

**قوله: مَنْ تَعَزّٰى بِعَزَاءِ الْجَاهِلِيَّةِ، فَأَعِضُّوهُ بِهَنِ أَبِيهِ:**

**د حدیث دوه مطلبونه:** عزاء نسبت ته وائی ① مطلب دا چه کوم سړي دَ جاهلیت دَ رسمونو عادتونو بدعتونو اموختـه وی اوهغـه خوښـوی اوهغـه ژونـدی کولوسره چلوی نوهغه ته په صفاتوګه دَ مور پلار کنځل واوره وه چه دا طریقه دَاسلام نه ده بلکه دَجاهلیت طریقه ده او په جاهلیت کښې به ستا پلار داګنده کارونه کول هغه دَ اوچتې درجې فاسق اوفاجرسړي وو دَهغه ذکر په کومه خله کوې؟ دَدې جملې ② دویم مطلب دادې چه مثلاً یو سړې دَ جاهلیت دَزمانې په شان فحش خبرې اترې کوی اوخراب کنځل کوی نوته هغه ته بنه بربنډ کنځل اوکړه چه شرم اوکړه دَ جاهلیت په شان کنځلې کوې ستا پلار خو فاسق فاجر بدکار اوبدکردار او زناکار سړې وو. دغه شان به هغه بدویونکې سړې تاته دکنځلونه منع شي.

**قوله: فَأَعِضُّوهُ بِهَنِ أَبِيهِ:** مطلب دا چه دغه سړی ته اووایه چه په غاښونو باندې دَ خپل پلار اندام مخصوصه پرې کړه.

**[۴۹۰۳] دزمانه جاهلیت په تعلق باندې فخر کول نه دې پکار**

۴۹۰۳-(۱)[۱۱] [۱] وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبِي عُقْبَةَ، عَنْ أَبِي عُقْبَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - [۲] وَكَانَ مَوْلًى مِنْ أَهْلِ فَارِسَ قَالَ: [۳] «شَهِدْتُ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أُحُدًا، فَضَرَبْتُ رَجُلًا مِنَ الْمُشْرِكِينَ، [۴] فَقُلْتُ: خُذْهَا مِنِّي وَأَنَا الْغُلَامُ الْفَارِسِيُّ. [۵] فَالْتَفَتَ إِلَيَّ فَقَالَ: "هَلَّا قُلْتَ: [۶] خُذْهَا مِنِّي وَأَنَا الْغُلَامُ الْأَنْصَارِيُّ؟». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عبد الرحمٰن ابن ابي عقبه د حضرت عقبه ﷜ نه نقل کوي [۲] چې د یو انصاري فارس نژاد غلام وو، هغه بیان وکی، [۳] چې زه په جنګ احد کې درسول الله ﷺ سره شریك وم، د جنګ په دوران کې مشرکینیو کې یو سړی مي (په توره یانیزه) ووهی. [۴] او ورته مي اوویل، چې واخله یو ګذار خما د طرف نه هم وخوره، زه یوفارسي غلام یم ایعنی فارس نژاد یم. چې زړه ور او وژونکی دی ا. [۵] رسول الله ﷺ چې خما دا جمله واوریده، نو زما طرف ته متوجه شو، او وي فرمایل، تاداسي ولي ونه وئیل [۶] زمانه هم یوګذار وخوره چې زه یو انصاري غلام یم (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① مَوْلًى: آزاد کړې شوې غلام. ② فَالْتَفَتَ: نو متوجه شو.

[۱] اخرجه ابوداؤد فی السنن کتاب الأدب/بابٌ فی العصبية (رقم-۵۱۲۳) وابن ماجه فی کتاب الجهاد/باب النية فی القتال (رقم-۲۷۸۴)

**تسهيلات:**

**قوله:** فَقُلْتُ: خُذْهَا مِنِّي وَأَنَا الْغُلَامُ الْفَارِسِيُّ:

**د فارسي په ځائې انصاري ته د نسبت کولو ترغيب:** داسړې پخپله تابعي دې دَ ده پلار ابوعقبه صحابي رضي الله عنه دې دا سړې دَ مولى الموالات ځنې وو دَ مولى العتاقه ځنې نه وو د يو انصاري سره ئې عقد موالات وو په دې وجه وريوړې انصاري نسب اولګيدلو ګنې دې دَ انصارو څخه نه وو بهرحال دوی په ځائې دَ انصاري خپل پلار فارس طرف ته منسوب کړو چه يو دَ اور عبادت کونکې قوم وو. دادَ هغه دَپاره مناسب نه وو بلکه دَ اسلامي رواياتو مطابق دَ انصارو طرف ته نسبت ښه وو. په دې وجه نبي عليه السلام تنبيه ورکړه چه دَفارس طرف ته فارسي نسبت ختم کړه دَ انصارو طرف ته انصاري نسبت خپل کړه

**[۴۹۰۴] دَ خپل قوم په ناحقه حمايت کونکې مثال**

۴۹۰۴-()[۱۲] [۱] وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-عَنِ النَّبِيِّ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-قَالَ: "[۲] «مَنْ نَصَرَ قَوْمَهُ عَلَى غَيْرِ الْحَقِّ فَهُوَ كَالْبَعِيرِ الَّذِي رُدِّيَ، [۳] فَهُوَ يُنْزَعُ بِذَنَبِهِ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن مسعود رضي الله عنه د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه روايت کوي چې حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل، [۲] کوم سړی چې د خپل قوم ناحق حمايت کوي، هغه د هغه اوښ په شان دی. چې په کوهي کې ولويږي، [۳] او بيا د هغه دلکۍ په نيولو سره هغه را خکل کيږي (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① الْبَعِيرُ: اوښ، ② رُدِّيَ: چې په کوهي کې ولويږي، ③ يُنْزَعُ: راويستلې کيږی ④ بِذَنَبِهِ: دَدې جمع أذناب ده. لکئ ته وائی.

**تسهيلات: قوله:** مَنْ نَصَرَ قَوْمَهُ عَلَى غَيْرِ الْحَقِّ فَهُوَ كَالْبَعِيرِ الَّذِي رُدِّيَ:

**د کالبعير تشبيه وضاحت:** دا يوه تشبيه ده دَدې تشبيه وضاحت داسې دې چه مثلاً يوقوم په تعصب باندې راغلو کوم چه تباه شو. اوس دَهغوی مثال دَ يومردار اوښ په شان دې چه په يوګنده کوهي کښې پريوتلې وی. دکوهي نه دَ هغه راويستل ډير ګران دی ليکن يوسړې هغه دَ لکئی نه نيولو سره دکوهي نه بهردَ راويستلو کوشش کوی. اوس دا يو ناممکن او لاحاصل سعي ده بلکه حماقت دې ځکه چه دَ لکئی په شان کمزورې حصه نه دومره وزن دار اوښ څنګه بهر راويستلې کيدې شی.

بالکل هم دغه شان هغه سړې دې چه دَ تعصب په بنياد باندې دَ قوم حمايت کوی اودَ هغوی هرناجائز حرکت ته جائز وائی. په دغه تعصب سره هغه دا هلاك شوې قوم نه شی بچ کولې او کوم کوشش چه کوی هغه بې فائده دې اوسعی لاحاصل ده.

[1] اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأدب/بابٌ في العصبية (رقم-۵۱۱۸)

## [۴۹۰۵] د عصبيت تعريف

۴۹۰۵-(¹)[۱۳] ۱ «وَعَنْ وَاثِلَةَ بْنِ الْأَسْقَعِ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ، مَا الْعَصَبِيَّةُ؟ ۲ قَالَ: "أَنْ تُعِينَ قَوْمَكَ عَلَى الظُّلْمِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ۱ حضرت واثله ابن اسقع رضي الله عنه وايي، ما عرض وکړو، چې يا رسول الله عصبيت (يعني جاهليت) څه څيز دی، ۲ وي فرمايل عصبيت دادی، چې ته په ظلم باندې د خپل قوم او جماعت حمايت وکړي. (ابوداؤد)

**تسهيلات:**

**قوله: أَنْ تُعِينَ قَوْمَكَ عَلَى الظُّلْمِ:**

**دعصبيت يو عمل:** د دي حديث نه معلومه شوه چه د حق په معامله کښې د خپل جماعت او د قوم حمايت او رعايت کول دا خه خبره ده او عصبيت به هله جوړيږي چه کله د خپل قوم په ناجائزه کښې حمايت اوکړي شی او په گناه کښې د هغوی مرسته اوکړي شی او په گناه کښې مرسته کول حرام او جرم دي.

## [۴۹۰۶] خپل قوم نه ظلم لرې کونکې غوره سړې دې

۴۹۰۶-(²)[۱۴] ۱ وَعَنْ سُرَاقَةَ بْنِ مَالِكِ بْنِ جُعْشُمٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: خَطَبَنَا رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَقَالَ: ۲ "«خَيْرُكُمُ الْمُدَافِعُ عَنْ عَشِيرَتِهِ مَا لَمْ يَأْثَمْ»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت سراقه ابن مالك ابن جعشم رضي الله عنه وايي (يوه ورځ) رسول الله صلى الله عليه وسلم زمونږ په مخکې خطبه ورکولو کې وفرمايل، ۲ په تاسو کې بهترين سړی هغه دی چې د خپل قوم او جماعت د خلقو ظلم زياتي دفع کړي، ترڅوپوري چې د هغه دفعيه په وجه د ظلم دګناه خپله مرتکب نشي (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① الْمُدَافِعُ: دفع کونکې. لرې کونکې. ② عَشِيرَتِهِ: خپل قوم. خپل خاندان

**تسهيلات:**

**قوله: خَيْرُكُمُ الْمُدَافِعُ عَنْ عَشِيرَتِهِ مَا لَمْ يَأْثَمْ:**

**په جائز څيزونو کښې د خپل قوم د دفاع ستائنه:** دَحديث مطلب دادې چه يو سړې مثلاً خپل قوم اوخپلوانو نه څه ظلم دفع کوی نودا ډير ښه عمل دې ځکه چه په دې کښې دَ مظلوم نصرت هم دې او دَ اقارب صله پالل هم دی ليکن دَدې حمايت او دفاع دَپاره شرط دادې چه سړې پخپله ظالم جوړنه شی مثلاً که په ژبه سره هغه ظلم لرې کيدې شی نو هلته

¹) اخرجه ابوداودفی السنن كتاب الأدب/بابٌ فی العصبية(رقم-۵۱۱۹)وابن ماجه فی كتاب الفتن/باب العصبية (رقم۳۹۴۹)

²) اخرجه ابوداود فی السنن كتاب الأدب/بابٌ فی العصبية (رقم-۵۱۲۰)

په لاس او چتول او وهل ظلم وی کومه چه گناه ده او که په وهلو تکولو سره ظلم لرې کیدې شی نو دَ مظلوم په حمایت کښې دَ ظالم قتل کول پخپله ظلم دې. خلاصه دا چه په شرعی حدودو کښې دننه ظلم دفع کړی که دَ شرعی حد نه ئی تجاوز اوکړو نو پخپله به ظالم جوړیدو سره گناهګار شی

**[۴۹۰۷] دَ عصبیت ممانعت**

۴۹۰۷-(۱)[۱۵] [۱] وعَنْ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: "[۲] «لَيْسَ مِنَّا مَنْ دَعَا إِلَى عَصَبِيَّةٍ،[۳] وَلَيْسَ مِنَّا مَنْ قَاتَلَ عَصَبِيَّةً،[۴] وَلَيْسَ مِنَّا مَنْ مَاتَ عَلَى عَصَبِيَّةٍ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت جبیر ابن مطعم رضی الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل. [۲] هغه سړی زمونږ نه، نه دی (یعنې زمونږ اهل ملت یا زمونږ اهل طریقه نه نه دی) چې خلقو ته دعصبیت دعوت ورکړي، [یعنی خلق په یوناحقه معامله کې حمایت کولو باندې آماده کړي] ، [۳] نه هغه سړی زمونږ نه دی چې د عصبیت په سبب جنګ وکړي. [۴] دغه شان هغه سړی هم زمونږ نه نه دی چې د عصبیت په حالت کې مړ شی. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① عَصَبِيَّةٍ: په ناحقه معامله کښې د رشتې اوتعلق طرفداری کول. یعنی تصعب کول

**تسهیلات: قوله:** لَيْسَ مِنَّا مَنْ دَعَا إِلَى عَصَبِيَّةٍ:

**د لیس منا جملې درې مطلبونه:** ① دَدې جملې مطلب دادې چه په دې معامله کښې دا سړې زمونږ دَ مسلمانانو په طریقه نه دې اګرچه په باقی دین باندې دې.

② دویم مطلب دادې چه که دا حلال ګڼړی نو دا سړې مسلمان نه پاتې کیږی

③ دریم مطلب دادې چه دا اسلوب حکیم په توګه باندې دې څکه چه مسلمان دا سې وعید اوریدو سره فوری ګناه پریږدی.

(۴) څلورم مطلب دادې چه دا تشدیداً تغلیظاً تهدیداً او توبیخًا وئیلی شوی دی

**[۴۹۰۸] یو څیز سره محبت ړنده لره ړوند او کوڼ جوړوی**

۴۹۰۸-(۲)[۱۶] [۱] وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] " «حُبُّكَ الشَّيْءَ يُعْمِي وَيُصِمُّ» ". رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابودرداء رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه روایت کوي، چې حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل، [۲] د یو شي سره محبت کول تا ړوند او کوڼ جوړ وي (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① يُعْمِي: ړندوی، ② يُصِمُّ: کوڼ کوی

---

(۱) أخرجه أبو داؤد في السنن ٥/ ٣٤٣، الحديث، رقم: (٥١٢١).

(۲) أخرجه أبوداؤد في السنن ٥/ ٢٤٦، الحديث رقم (٥١٣٠)، وأحمد في المسند ٥/ ١٩٤.

**تسهيلات:**

**قوله:** حُبُّكَ الشَّيْءَ يُعْمِي وَيُصِمُّ:

**د يو څيز محبت د ړوندوالی او کوڼوالی سبب:** مطلب دا چه د يو څيز په محبت کښې کله سړې راګيرشي نو د محبت دا جذبه سړې ړوند کړی هغه ته د خپل نصب العين د حمايت نه بغير هيڅ هم نه ښکاری هغه سره نه د حق اوباطل معيار باقی پاتې کيدې شی اونه د حق ميزان باقی پاتې کيدې شی بس هغه خپل خواهش ته د رسيدو نه بغير د يو څيز د اوريدو د پاره تيار نه وی او نه د کتو د پاره تيار وی شاعر رښتيا وئيلی دی

فعين الرضا عن كل عيب كليلة ولكن عين السخط تبدي المساويا

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۴۹۰۹] عصبيت څه ته وائی؟

۴۹۰۹ -() [۱۷] [۱] وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ كَثِيرٍ الشَّامِيِّ، مِنْ أَهْلِ فِلَسْطِينَ، [۲] فِي امْرَأَةٍ مِنْهُمْ يُقَالُ لَهَا فَسِيلَةُ، أَنَّهَا قَالَتْ: [۳] سَمِعْتُ أَبِي يَقُولُ: «سَأَلْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۳] قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ أَمِنَ الْعَصَبِيَّةِ أَنْ يُحِبَّ الرَّجُلُ قَوْمَهُ؟ [۴] قَالَ: " لَا، وَلَكِنْ مِنَ الْعَصَبِيَّةِ أَنْ يَنْصُرَ الرَّجُلُ قَوْمَهُ عَلَى الظُّلْمِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عباده ابن کثير شامي رحمه الله (چي د هغه تعلق د فلسطين سره وو) [۲] د خپلو خلقو کې د يوي ښځي نه (چي د هغه نوم فسيله وو) نقل کوي، هغه ښځه بيان کوی. [۳] ما د خپل پلار نه واوريدل چې ما رسول الله ﷺ ته عرض وکړو [۳] چې يا رسول الله آيا عصبيت دي ته وايي چې يو سړی خپل قوم او جماعت عزيز لري [۴] حضور ﷺ وفرمايل نه. بلکي عصبيت دي ته وايي، چې يو سړی د ظلم په معامله کې د خپل قوم او جماعت حمايت او مدد وکړي. (احمد . ابن ماجه)

**تسهيلات:**

**قوله:** مِنَ الْعَصَبِيَّةِ أَنْ يَنْصُرَ الرَّجُلُ قَوْمَهُ عَلَى الظُّلْمِ:

**په ظلم کښې د خپل قوم مدد کول:** مثلاً د خپل خاندان يو سړې په دې وجه حمايت کوی چه هغه د دې خاندان دې که هغه ظالم ولې نه وی فاسق فاجر اوجابر ولې نه وی دې سره څه کار نه لری اودې ته هم نه ګوری چه دلته حق کوم طرف ته دې اوباطل کوم طرف ته دې. د هرڅه نه خان ړوند کړی اوصرف د خپل خاندان خيال ساتی دا عصبيت دې. د جاهليت خلقو به داسې وئيل "انصر أخاك ظالما أو مظلوما"

[۱] اخرجه ابن ماجه في السنن كتاب الفتن/باب العصبية (رقم-۳۹۴۹) واحمد في المسند: ۱۰۷/۴

داصرف تعصب دې کوم چه حرام دې دَجاهلیت خلقو به دا هم ونیل "إن لم تنصر أخاك ظالماً لا تنصره مظلوماً"

**[۳۹۰] په خپل حسب او نسب باندې غرور کول نه دی پکار**

۴۹۰۸-()[۱۸] ۱ وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "۲ «أَنْسَابُكُمْ هَذِهِ لَيْسَتْ بِمَسَبَّةٍ عَلَى أَحَدٍ، ۳ كُلُّكُمْ بَنُو آدَمَ طَفُّ الصَّاعِ بِالصَّاعِ لَمْ تَمْلَأُوهُ، ۴ لَيْسَ لِأَحَدٍ عَلَى أَحَدٍ فَضْلٌ إِلَّا بِدِينٍ وَتَقْوَى، ۵ كَفَى بِالرَّجُلِ أَنْ يَكُونَ بَذِيًّا فَاحِشًا بَخِيلًا» ". ۶ رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي " شُعَبِ الْإِيمَانِ ".

**ترجمه:** ۱ او حضرت عقبه ابن عامر رضي الله عنه وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ نسب څه داسې شی نه دی چې د هغه په سبب تاسو چاته بد اووایئ، یا عار ورکړئ ۳ تاسو ټول د آدم علیه السلام اولاد یې څرنګه چې یو صاع د دویم صاع برابر وي، چې تاسو ډکه کړی نه وي. ۴ چاته په چا څه فضیلت او ترجیح نشته، علاوه ددین او تقوی نه ۵ د سړي دبدي د پاره بس دومره کافي ده چې هغه زبان دراز، فحش ګو، فضول خبري کونکی او بخیل وي. ۶ دا روایت احمد او بیهقي په شعب الایمان کې نقل کړی دی.

**حل اللغات:** - ① أَنْسَابُكُمْ: د نسب جمع ده، رشته داری، ② مَسَبَّةٍ: کنځل کول. بد ویل. ③ طَفُّ: برابر وی، ④ الصَّاعِ: یوه خاص پیمانه ده. ⑤ لَمْ تَمْلَأُوهُ: چه ډکه شوې نه وی. ⑥ بَذِيًّا: بد رد ویونکې. ⑦ فَاحِشًا: بدګویه، بدعمله، ⑧ بَخِيلًا: کنجوس.

**تسهيلات:**

**قوله: كُلُّكُمْ بَنُو آدَمَ طَفُّ الصَّاعِ بِالصَّاعِ لَمْ تَمْلَأُوهُ:**

**دمذکوره حدیث مطلب:** صاع پیمانه ته وائی په کوم سره چه غله پیمانه کولې شی. "ب" دَملابست دَپاره ده دَ طف لفظ په لغت کښې دکمی اونقص دَپاره استعمالیږی هم دَدې څخه تطفیف دې او هم دَدې څخه ﴿وَيْلٌ لِّلْمُطَفِّفِينَ﴾ دې

**دطف څخه مراد:** دلته دَ طف څخه هغه پیمانه مراد ده چه ډکیدو ته نیزدې وی مګر ډکه نه شی بلکه هم ناقص پاتې شی. فخر اومباهات کښې دَانسانانو موازنه کړې شوې ده او خودلې شوی دی چه دَیو انسان په بل انسان باندې داسې فضیلت نشته چه دَ هغه پیمانه ډکه شوې وی اودَ بل ناقص پاتې شوې وی بلکه په نقص اونقصان کښې دواړه برابر دی نه دې پوره دې او نه هغه پوره دې. ټول دَ یوپلار حضرت آدم علیه السلام اولاد دې او ټول د خاورې نه پیدا دی. او تقوی پرهیزګاری او نیك عمل داسې څیز دې چه یو سړې فضیلت

¹) اخرجه احمد فی المسند: ۱۴۵/۴، والبیهقی فی شعب الایمان رقم ۵۱۴۶

كنبې د بل سړی نه بازی اوړي شی دخاورې ګوډاګې خو هم دخاورې دې [الكاشف: ۹/ ۱۷۰]

**قوله: كَفَى بِالرَّجُلِ أَنْ يَكُونَ بَذِيًّا فَاحِشًا بَخِيلًا:**

**بد کرداره سړی بد صفتونه**: اي كفى الرجل مسبةً وعاراً ونقصاناً دا تميز محذوف دې مطلب دا شو چه د يو سړی د بد کيدو او شرم دپاره داکافی دی چه هغه بد ژبانه وی اوبې هوده، فحش، خبرې کونکې وی يعنی فاحشًا دَ بذی ترجمه ده د بخيل نه هغه کنجوس اومج نه کوچ ويستونکې سړې مراد دې چه په واجبی حقوقو کښې د بخل د وجې هم کوتاهی کوی

# [۱۴] بَابُ الْبِرِّ وَالصِّلَةِ

## دَ نيکئی او صله رحمئ بيان

**خلاصة الباب**

**فيه ستة وثلاثون حديثاً مشتملة على أربع مسائل:**

① الأمر بالبر والحث عليه والزجر بعقوق الوالدين: ۱، ۲، ۳، ۵، ۶، ۷، ۱۵، ۱۶، ۱۷، ۱۸، ۱۹، ۲۳، ۲۷، ۲۸، ۲۹، ۳۰، ۳۱، ۳۳، ۳۴، ۳۵.

② الحث على صلة الرحم والزجر للقاطع: ۴، ۸، ۹، ۱۰، ۱۱، ۱۲، ۱۳، ۱۴، ۲۰، ۲۱، ۲۴، ۲۵، ۲۶.

③ طريق عفو العقوق بعد موت الوالدين: ۳۲.

④ حق الأخ الكبير: ۳۶.

**قوله: بَابُ الْبِرِّ وَالصِّلَةِ:**

**دبر تعريف**: نيکئی ته او الصلة صله رحمئی ته وائی دَ لفظ بر اطلاق سره دَدې چه په عام نيکئی باندې کولې شی ليکن په حقيقت کښې دا لفظ مورپلار سره ښه سلوك. ښيګړه. نيکی. احسان او اطاعت دَپاره استعماليږی

**دصلة لغوی معنی**: د صله لغوی معنی ملاوول او پيوند لګول دی

**او صلة اصطلاحی تعريف**: دَ خپل خپلوانو سره احسان کول. هغوی سره دَ ښه سلوك معامله کول. دَهغوی دَحقوق خيال ساتل. هغوی له ورکړه کول اوهغوی سره هرقسم تعاون کول دَهغوی په تکليف باندې صبر کول اوهغوی ته هرقسم راحت اوفائده رسول صله رحمی ده.دغه شان عام مسلمانانو سره جوړ پيدا کول او بائيکاټ نه کولو ته هم دَ صله لفظ شامل دې

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۳۰۱] په اولاد باندې دَمور حقوق د پلار په نسبت زيات دي**

۳۰۱-()[1] [۱]عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: [۲]«قَالَ رَجُلٌ: يَارَسُولَ اللَّهِ مَنْ أَحَقُّ بِحُسْنِ صَحَابَتِي؟ [۳] قَالَ: "أُمُّكَ" قَالَ: ثُمَّ مَنْ؟ قَالَ: "أُمُّكَ". قَالَ: ثُمَّ مَنْ؟ قَالَ: "أُمُّكَ" قَالَ: ثُمَّ مَنْ؟ قَالَ: "أَبُوكَ"». [۴]وَفِي رِوَايَةٍ قَالَ: "«أُمَّكَ، ثُمَّ أُمَّكَ، ثُمَّ أُمَّكَ، [۵]ثُمَّ أَبَاكَ، ثُمَّ أَدْنَاكَ أَدْنَاكَ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابوهريره ﷛ وايي، [۲] يو سړي عرض وکړو، چې يا رسول الله. ځما د ښه ملګرتيا (يعني ځما د طرف نه د حسنِ سلوك او احسان او خدمت ګذاري) د ټولو نه زيات مستحق څوك دی، [۳] حضور ﷺ ورته وفرمايل ستا مور هغه عرض وکړو. بيا څوك حضور ﷺ ورته وفرمايل، ستامور، هغه عرض وکړو بيا څوك حضور ﷺ ورته وفرمايل، ستا مور، هغه عرض وکړو، بياڅوك حضور ﷺ ورته وفرمايل ستا پلار [۴] په يو روايت کې داسې دی، چې حضور ﷺ د هغه سړي د سوال په جواب کې وفرمايل. ستا مور بيا ستا مور، بيا ستا مور، [۵] بيا ستا پلار، بيا ستا هغه عزيز چې نزدې قرابت (خپلوي) لري او بيا ترهغه وروسته چې کوم نزدې وي (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:-** ① حُسْنِ صَحَابَتِي: زما دښه سلوک، زما د احسان کولو. ② أَدْنَاكَ: چه (په رشته کښې) تاته نزدې وی.

**تسهيلات:**

**قوله: قَالَ: ثُمَّ مَنْ؟ قَالَ: "أُمُّكَ":**

**د پلار په نسبت د مور د حق زيادت:** دَ سائل دَ سوال مقصد دا وو چه مور پلار کښې دَ چا حق زيات دې يا په ټولو انسانانو کښې دَ ټولو نه زيات حق دَ چا دې؟ دَ سائل دَدې سوال په جواب کښې نبي عليه السلام دَ مور حق دَ ټولو نه زيات اوخودلو يا دَ دغه سړی اراده وه چه دَ پلار د حقوق تعين اوشی په دې وجه ئی بار بار سوال کړې دې نبي عليه السلام په څلورم ځل کښې دَ پلار دَحق ذکر اوکړو

**دحديث مفهوم:** دحديث مطلب دادې چه دَټولو نه زيات حق دَ مور دې بيا دَ پلار دې اوبيا دَ باقی رشته دارانو درجه په درجه حق دې لکه چه دَ مور حق دَ پلار په مقابله کښې درې چنده زيات دې ځکه چه دَ بچی په پيدائش کښې اودَ هغه په پاللو کښې دَ پلار نه دَمور کردار زيات دې نهه مياشتې په خيټه کښې اوچتول او ګرځول بيا دَهغه ځيږول دی دې نه پس په هغه باندې پيئی ځکول او پوره خيال ساتل دا درې لوئی مرحلې دی چه

---

[1]) اخرجه البخاری فی صحيحه ۱۰/ ۴۰۱ الحديث رقم: ۱۹۷۱. ومسلم فی ۴/ ۱۹۷۴. الحديث رقم (۱- ۲۵۴۸) وابن ماجه فی السنن ۲/ ۱۲۰۷. الحديث رقم (۳۶۵۸).

مور ئی سر تـه رسوی پـه دې وجـه دَهغې حق دَ پـلار نـه درې چنده زیات دې.دَ الله تعالی ارشاد دې ﴿وَقَضٰى رَبُّكَ اَلَّا تَعْبُدُوْٓا اِلَّآ اِيَّاهُ وَبِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا﴾[سورة بنی اسرائيل: ۲۳]

**دمورپلار پـه خدمت دوه دنیاوی فائدې حاصلیدل:**

① پـه عمر کښې برکت راځي

② پـه عزت او عظمت کښې او مال کښې اضافه کیږي.

**دوالدینو د اختلاف پـه صورت کښې د اولاد دپاره تعلیم:** دعلماء کرامو پـه دې باندې اتفاق دې چـه دَمور پلار حقوق اداکولو کښې کـه چرې دَ مور پلار مینځ کښې جګړه پیدا شي چـه پلار دَخپل حقوق مطالبه کوی او وائی چـه دَمور حق مـه اداکوه زما ادا کوه نـو پـه اولاد باندې لازم دی چـه احترام او تعظیم کښې پـلار مخکښې کړی او پـه خدمت او اطاعت کښې دَمور حق مقدم کړی یعنی دَ مور حق دَخدمت پـه حوالې سره مقدم دې او دَ پـلار حق دَ ادب او احترام او تعظیم او تکریم پـه حوالې سره مقدم دې.

**[۳۰۳] دَمورپلار خدمت نـه کونکی باره کښې د حضور ﷺ بد دعا**

٣٠٣-()[٢] ① وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "②«رَغِمَ أَنْفُهُ، رَغِمَ أَنْفُهُ، رَغِمَ أَنْفُهُ".③ قِيلَ: مَنْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ؟ قَالَ: "مَنْ أَدْرَكَ وَالِدَيْهِ عِنْدَ الْكِبَرِ، أَحَدَهُمَا أَوْ كِلَاهُمَا ④ ثُمَّ لَمْ يَدْخُلِ الْجَنَّةَ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهریره ﷺ وایي، چې رسول الله ﷺ وفرمایل، ② د هغه سړي پوزه دې پـه خاوره ککړه شي، د هغه سړي پوزه دې پـه خاوره کې ککړه شي د هغه سړي پوزه دې پـه خاوره کې ککړه شي [یعنی حضور ﷺ درې ځلي دا بد دعا وفرمایله، چې هغه سړی دې ذلیل او خوار شي] ③ پوښتنه وشوه، یارسول الله، هغه سړی څوك دی، [چې د هغه پـه حق کې بد دعا فرمایلی شي]. حضور ﷺ وفرمایل، هغه سړی چې دخپل والدین کې یو یا دواړه د بوډا توب پـه حالت کې ووینې، ④ او بیا پـه جنت کې داخل نـه شي. [یعنی د کوم سړي مور پلار یا دواړو کې چې یو بوډا سي، او هغه سړی یې خدمت کولو سره راضي نـه کړي. نو هغه انتهائي بدقسمته دی، ځکه چې خصوصیت سره د بوډا مور پلار خدمت کول د لوی اجر خبره ده. او پـه جنت کې د داخلیدو سبب دی]. (مسلم)

**حل اللغات:-** ① رَغِمَ: دَ رغام نـه دې خاورې تـه وائی یعنی پـه خاورو دې ککړه شي. ② الْكِبَرِ: بوډاتوب.

---

(١) اخرجه مسلم فی صحیحه ٤/ ١٩٧٨، الحدیث رقم (٩/ ٢٥٥١). وأبوداؤد فی السنن ٢/ ٣٠٧، الحدیث رقم ١٦٦٨، والترمذی فی ٥/ ٥٥٤، الحدیث رقم (٣٥٤٥). وأحمد فی المسند ٢/ ٣٤٦.

**تسهيلات:**

**قوله**: رَغِمَ أَنْفُهُ، رَغِمَ أَنْفُهُ، رَغِمَ أَنْفُهُ:

**د لفظ رغم تحقيق**: په راء باندې فتحه او غين باندې كسره ده، مطلب دا چه دَ داسې سړي پوزه دې په خاورو باندې ككړه شي يعنې دې دې خوار او ذليل شي يا دا جمله اخباريه ده يعني داسې سړې ذليل او خوار شو

**قوله**: ثُمَّ لَمْ يَدْخُلِ الْجَنَّةَ:

يعنى دَ مور پلار خدمت كولو سره دَهغوى په دعاګانو سره دا سړې په جنت كښې داخل نه شو نو دا سړې دې خوار او ذليل شي

**[۳۴۳] مشرک مور پلار سره هم د ښه سلوک کولو هدايت**

۳۴۳-()[۳] [۱] «وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- قَالَتْ: [۲] قَدِمَتْ عَلَيَّ أُمِّي وَهِيَ مُشْرِكَةٌ فِي عَهْدِ قُرَيْشٍ، [۳] فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّ أُمِّي قَدِمَتْ عَلَيَّ وَهِيَ رَاغِبَةٌ أَفَأَصِلُهَا؟ [۴] قَالَ: "نَعَمْ صِلِيهَا"». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: [۱] او بي بي اسماء بنت ابي بكر رضي الله عنهما وايي، [۲] چې ځما مور د شرك په حالت كې (مكې نه مدينې ته) راغله څه وخت چې د قريشو سره د صلح زمانه وه، (يعني مدينې ته ځما د مور د راتلو واقعه د هغه زماني ده، چې د صلح حديبيه په صورت كې د حضور ﷺ او قريش مكه په منځ كې د جنګ نه كولو معاهده شوي وه. او ځما والده هغه وخته پورې په اسلام نه وه مشرفه شوي) [۳] نو ما عرض وكړو، يارسول الله! ځما مور ماته راغلې ده. او هغه د اسلام نه بيزاره ده، آيا زه د هغې سره نيك سلوك وكړم، [۴] حضور ﷺ وفرمايل هو د هغې سره نيك سلوك وكړه. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات**: - ① رَاغِبَةٌ: رغبت لرى، شوق لرى. ② أَفَأَصِلُهَا؟: آيا زه دهغې سره سلوک اوکړم؟

**تسهيلات:**

**قوله**: إِنَّ أُمِّي قَدِمَتْ عَلَيَّ وَهِيَ رَاغِبَةٌ أَفَأَصِلُهَا؟:

**وهى راغبة د جملې په مطلب كښې اقوال**: دَدې جملې مطلب بيانولو كښې دَعلماؤ مختلف اقوال دى. ① بعضې وئيلى دى چه مطلب دادې چه هغه اسلام قبلول كښې رغبت لرى اودَمكې نه ماله مدينې ته راغلې ده. تراوسه پورې مشركه ده زه دَهغې خدمت كولې شم اودَ هغې حقوق په ځائى راوړلې شم؟

② دَدې قول په مقابله كښې تفصيلى روايت كښې دويم قول دادې چه "راغبة عن الإسلام" يعنى دَ اسلام نوم اوريدل نه غواړى دَدې په قبلولو كښې دلچسپى نه اخلى په

---

[1] اخرجه البخارى فى كتاب الجزية/باب(رقم-۳۱۸۳) ومسلم فى كتاب الزكاة/باب فضل النفقة والصدقة على الأقربين والزوج والأولاد. والوالدين ولو كانوا مشركين (رقم-۴۹ - (۱۰۰۳) واحمد فى المسند:۶/۳۴۴

خپل کفرباندې قائمه ده آیا زه د داسې کافرې ښځې خدمت کولې شم؟ نبي علیه السلام د خدمت اجازت ورکړو ځکه چه د دې تعلق انسانیت سره دې د ایمان او کفر سره نه دې د تفصیلي روایاتو نه معلومیږي چه د حضرت اسماء رضي الله عنها مورد اسلام نه کرکه کوله دلچسپي ئې نه لرله دا قول راجح دې ځکه چه د خدمت د اجازت سوال کول د دې خبرې دلیل دې چه هغې د اسلام نه نفرت کولو. د حضرت اسماء رضي الله عنها مور جدا ده او د حضرت عائشه صدیقه رضي الله عنها مور جدا ده د حضرت عائشه رضي الله عنها مور ام رومان رضي الله عنها مسلمانه وه

**[۴۹۳]د صله رحمي برقرار ساتلو اهمیت**

۴۹۳-()[۳] ۱ وَعَنْ عَمْرِوبْنِ الْعَاصِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: ۲ " «إِنَّ آلَ أَبِي فُلَانٍ لَيْسُوالِي بِأَوْلِيَاءَ، ۳ إِنَّمَا وَلِيِّيَ اللَّهُ وَصَالِحُ الْمُؤْمِنِينَ، ۴ وَلَكِنْ لَهُمْ رَحِمٌ أَبُلُّهَا بِبَلَالِهَا» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت عمرو ابن العاص رضي الله عنه وایي، چې ما د رسول الله ﷺ نه واوریدل. ۲ د ابو فلان اولاد ځما دوست نه دی ۳ زما دوست یا خو الله دی یا نیک بخت مؤمنین ۴ البته د خلقو سره ځما قرابت داري ده، چې زه یي لوندو ځیزونو سره لوندول غواړم یعنی صلهٔ رحمي برقراره ساتم (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** - ۱ وَلِيِّيَ: ولیان زما، دوستان زما، ۲ رَحِمٌ: قرابت، رشته داری، ۳ أَبُلُّهَا: لمدوم ئې. یعنی رشته پالل ۴ بِبَلَالِهَا: په لوندو ځیزونو دهغې سره.

**تسهیلات:**

**قوله:** إِنَّ آلَ أَبِي فُلَانٍ:

**دال ابی فلان نوم نه اخستلو کښې دوه اقوال:** ۱ په دې کنیت کښې تصریح چه دا سړې څوك وو لکه چه په کنیت کښې کنایه ده د دې باره کښې علماؤ لیکلی دی چه نبی کریم ﷺ د دغه نوم تصریح اونه کړه ځکه چه د نوم تصریح کولو کښې د فتنې اوچتیدو خطره وه ۲ بعضې علماؤ لیکلی دی نبي علیه السلام نوم اخستې وو لیکن د راوی نه نوم هیرشوې

**دآل ابی فلان په مصداق کښې درې اقوال:** بیا علماؤ د دې د تعین باره کښې لیکلی دی ۱ کیدې شی د ابولهب اولاد مراد وی

[1]) اخرجه البخاری فی کتاب الأدب/باب تبل الرحم ببلالها (رقم-۵۹۹۰) ومسلم فی کتاب الإیمان/باب موالاة المؤمنین ومقاطعة غیرهم والبراءة منهم (رقم-۳۶۶ - (۲۱۵) والترمذی فی کتاب تفسیر القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ومن سورة الشعراء (رقم-۳۱۸۵) والنسائی فی کتاب الوصایا/باب باب: إذا أوصی لعشیرته الأقربین (رقم-۳۶۴۴) واحمد فی المسند: ۵۱۹/۲

③ كيدې شي دَ ابوسفيان اولاد مراد وي
④ كيدې شي دَ حكم بن العاص اولاد مراد وي.

**قوله: لَيْسُوالِي بِأَوْلِيَاءَ:**

يعني زمادوستان نه دې ماته دَنورو نه زيات محبوب نه دې زما بالكل خوښ نـه دې هغـه سره مالي تعاون كول دَ خه ديني او روحاني تعلق په بنياد باندې نه دې نشته دې بلكه

**قوله: وَلَكِنْ لَهُمْ رَحِمٌ أَبُلُّهَا بِبَلَالِهَا:**

**دمذكوره جملې مطلب:** بلل د لوند او تـر كولو پـه معنى كښې دې يعنى زه دا خپلولى لمدوخيزونو سره لمدووم.دَ حديث مطلب دادې چه زه دغه خلقوسره كوم مالي تعاون كوم نو دا دَهغوى دَ محبوب كيدو په بنيادباندې نـه دې بلكـه هغـوى سـره دَخپلولئى او رشتې په بنياد تعاون كوم گنى زما دوستان خو صالح مؤمنان مثلاً ابوبكر عمر عثمان اوعلى ﷺ اودَدوى په شان خلق دى.

**[۴۹۱۵] شپږلوئي گناهونه**

۴۹۱۵-()[۵] ① وَعَنِ الْمُغِيرَةِ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«إِنَّ اللهَ حَرَّمَ عَلَيْكُمْ عُقُوقَ الْأُمَّهَاتِ، ③ وَوَأْدَ الْبَنَاتِ، ④ وَمَنْعَ وَهَاتِ. ⑤ وَكَرِهَ لَكُمْ قِيلَ وَقَالَ، ⑥ وَكَثْرَةَ السُّؤَالِ، وَإِضَاعَةَ الْمَالِ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او حضرت مغيره ﷺ وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل، ② الله ﷻ پـه تاسـو دا امر حرام گرځولى دى چې د مور نافرماني كولو سره د هغـه زړه دې خفـه شي، ③ جنۍ دې ژونـدى ښـخه كـړل شـي، (څرنگـه چـې پـه زمانـه جاهليـت كـې بـه خلقـو د فقـرو فـاقې، محتاجي، او عار وخوف نه جنۍ ژوندي دفن كولي) ④ او بخيلي او گدائي اختيـار شي، ⑤ او مكروه يې گرځولى دى ستاسو دپاره قيل وقال، ⑥ د سوال زياتي او مال ضـائع كـول يي (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** - ① عُقُوقَ: نافرماني، ② وَأْدَ الْبَنَاتِ: جينكۍ (لونړه) جوندۍ ښخول. ③ مَنَعَ: دې نـه مـراد بخل اوكنجوسي ده يعنى منع كول د جائز حق، ④ وَهَـاتِ: هـات اسم فعـل دې پـه معنـى د راكـړه. يعنى دخلقو نه غوښتل او مطالبه كول. ⑤ إِضَاعَةَ الْمَـالِ: اضـاعة مـصدر دې د بـاب افعـال نـه. يعنى ضائع كول د مال،

[١] اخرجه البخارى فى كتاب الأدب/باب: عقوق الوالدين من الكبائر (رقم-۵۹۷۵) ومسلم فى كتاب الأقضية/باب النهى عن كثرة المسائل من غير حاجة. والنهى عن منع وهاتٍ. وهو الامتناع من أداء حق لزمه. أو طلب ما لا يستحقه (رقم-۱۲-۵۹۳)واحمد فى المسند: ۴/۲۶۴

**تسهيلات:**

**قوله** عُقُوقَ الْأُمَّهَاتِ:

**د مور و پلار ځخه په امهات تعبير کولو کښې نکته:** عقوق نافرمانئ ته وائي اود امهات نه مراد مور پلار دى ليکن د امهات ذکر ځکه اوکړې شو چه ددوى حقوق زيات دى د حقوق د زياتوالي طرف ته اشاره مقصود ده

**قوله** وَمَنْعَوهَاتِ:

**د مذکور کلماتو مفهوم:** مطلب دا چه د نورو دحقوق خوبالکل انکار اوکړى اود نورو نه دداسې حقوق مطالبه کوى دکوم ادا کول چه په هغوى باندې واجب نه وى خلاصه دا چه جائز حق نه ورکوى او ناجائز حق غواړى ګرځى

**قوله** وَكَرِهَ لَكُمْ قِيلَ وَقَالَ،

**دقيل اوقال ځخه مراد:** وقيل وقال "يعنى داسې بحث مباحثه اوداسې په خبرو اترو کښې ليګياوى په کوم کښې چه نه ددين فائده وى اونه د دنيا څه فائده وى لايعنى او فضول خبرې کوى بې فائدې سوالات او جوابات کوى بغير د څه فائدې حجت او تکرار کښې خپل قيمتى وخت ضائع کوى

ولم نستفد من بحثنا طول عمرنا سوا أن جمعنا قيل وقالوا

يعنى ټول عمر مونږ خپل ژوند په دې اوږدو بحثونو کښې د قيل او قال نه سوا هيڅ هم حاصل نه کړل

**قوله** وَكَثْرَةَ السُّؤَالِ:

**د کثرت سوال په مفهوم کښې درې اقوال:**

① دخپل علم اوکمال اوچتوالې ثابتولو دپاره په نورو باندې سخت او درانه اشکالات کوى اود امتحان په توګه دهغوى نه سخت امتحانى سوالا ت کوى اوبې فائدې مباحثه مناظره او علمى سوالات کولو سره خپل علم په خلقو باندې خرڅوى

② دې ځخه د صحابه کرامو جماعت مراد دې څوک چه دنبي عليه السلام نه د زياتو سوالونو کولو نه منع کړې شوې وو

③ دخلقو په احوال کښې دهغوى په اموال او معاملات کښې بې خايه مداخلت کوى اوپه هغې کښې تجسس او کوشش کوى اوديرزيات تپوس پوښتنه کوى دا منع دى په کوم سره چه دنفرت عداوت او غيبت دروازه کولاويږى

**قوله** وَإِضَاعَةَ الْمَالِ:

**د مال ضائع کولومفهوم:** يعنى چه په مال کښې فضول خرچى اوکړى يا بد انتظامى

اوکړي کوم ځائې چه شريعت حکم ورکړې دې هلته خرڅ نه کوي او چرته چه ئې منع کړې وي هلته خرڅه کوي

## [٣٩٦] خپلو والدينو ته کنځل کول

٣٩٧-()[١] ① وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا-قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "② «مِنَ الْكَبَائِرِ شَتْمُ الرَّجُلِ وَالِدَيْهِ". ③ قَالُوا: يَارَسُوْلَ اللّٰهِ، وَهَلْ يَشْتُمُ الرَّجُلُ وَالِدَيْهِ؟ ④ قَالَ: "نَعَمْ، يَسُبُّ أَبَا الرَّجُلِ، فَيَسُبُّ أَبَاهُ، ⑤ وَيَسُبُّ أُمَّهُ، فَيَسُبُّ أُمَّهُ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: ① او حضرت عبد الله ابن عمر ﷺ وايي. چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② خپل مور پلار ته کنځل کول د کبيره ګناهونو نه دي. ③ صحابه وو (په دي اوريدو سره) عرض وکړو، يارسول الله، آيا داسې سړی هم شته چې خپل مور پلار ته کنځل کوي. ④ حضور ﷺ وفرمايل، هو (ولي نه کله کله خو په حقيقت کې هم يو يا بل سړی خپل مور پلار ته کنځل کوي، او دا خو اکثره کېږي، چې خلق خپل مور پلار ته اګر که حقيقتًا خپله کنځل نه کوي، خو هغوئ ته د کنځلو کولو سبب ضرور جوړيږي. او هغه داسې چې يو سړی د چا پلار ته کنځل کوي، نو هغه د هغه پلار ته کنځل کوي، او که يو سړی د چا مورته کنځل کوي، نو هغه د هغه مورته کنځل کوي (بخاري)

**حل اللغات**:- ① شَتْمُ: کنځل، ② يَسُبُّ: کنځل کوی.

**تسهيلات**:

**قوله**: مِنَ الْكَبَائِرِ شَتْمُ الرَّجُلِ وَالِدَيْهِ:

**خپل مورپلار ته د کنځلو کولو صورت**: د حديث الباب حاصل دا دي چه خپلو والدينو ته کنځل کول ګناه کبيره ده هم دغه شان چه يو کس خپل والدينو ته د کنځلو کولو سبب جوړ شي نو دا هم ګناه کبيره ده مثلا يو کس د بل چا والدينو ته ردي بدي اووائي نو هغه کس د دي په جواب کښې د ده والدينو ته ردي بدي اووائي د دې وجه نه ابتداء کونکې د خپلو والدينو ته د کنځلو کولو سبب جوړ شو نو ګويا چه هغه پخپله هغوی ته کنځل اوکړه او والدينو ته کنځل کول به د عقوق الوالدين (نافرماني) په شان شی بعضي حضراتو وئيلی دی چه دا په کبائرو کښې هله شمارلي کيږی چه کله څوک داسې کنځل اوکړی چه په هغې سره حد واجبيږی مثلا زاني يا کافر وئيل شو ملا علي قاري فرمائي چه بعض صورتونه ګناه کبيره دی لهذا په کبائرو کښې شمارل درست دی

[١] أخرجه البخاري في صحيحه ١٠/ ۴٠٣. الحديث رقم (٥٩٧٣. ومسلم في ١/ ٩٢. الحديث رقم (١۴٦- ٩٠). وأبو داؤد في السنن ٥/ ٣٥٢. الحديث رقم ٥١۴١. والترمذي في السنن ۴/ ٢٧٦. الحديث رقم ١٩٠٢. وأحمد في المسند ٢/ ١٦۴.

## [۴۹۷] دَپلار دوستانو سره دَ حُسن سلوک او نیکئ کولو اهمیت

۴۹۷-()[۷] ۱ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ "«إِنَّ مِنْ أَبَرِّ الْبِرِّ ۳ صِلَةَ الرَّجُلِ أَهْلَ وُدِّ أَبِيهِ بَعْدَ أَنْ يُوَلِّيَ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابن عمر رضي الله عنهما وايي، چي رسول الله ﷺ وفرمايل. ۲ د ټولو نه په اعلى نيکيو کې يوه اعلى نيکي داده ۳ چې يو سړی د خپل پلار د مرګ نه پس يا د هغه غير موجودګی کې د هغه ددوستانو سره احسان او نيك سلوك وکړی (مسلم)

**حل اللغات:** - ۱ أَبَرِّ الْبِرِّ: دټولو نه اعلى نيکی، ۲ صِلَةَ: حسن سلوک. احسان کول. ۳ أَهْلَ وُدِّ: دوستان. ۴ يُوَلِّيَ: غائب شو، انتقال ئې اوشو

**تسهیلات:**

**قوله:** إِنَّ مِنْ أَبَرِّ الْبِرِّ صِلَةَ الرَّجُلِ أَهْلَ وُدِّ أَبِيهِ بَعْدَ أَنْ يُوَلِّيَ:

**دپلار د وفات څخه روسته دهغه د دوستانو سره تعلق ساتل:** يعني دَ پلار انتقال ئې اوشو يا دکورنه غائب شو. په دې صورت کښې دَ پلار دوستانو سره احسان اومروت کول دَ پلار دَ صله حق دې اودَهغې تقاضا ده. په حديث کښې دَ پلار ذکر دې علماؤ ليکلی دی چه مور دَ ملګرو سره حسن سلوك او احسان کول هم دغه حکم لری اودَ مور دَ صله هم دغه تقاضا ده چه دَهغې دَ مرګ نه پس دَ هغې دَ ملګرو خيال اوساتلې شي.

## [۴۹۸] صله رحمي پاللو سره رزق او عمر زياتيږي

۴۹۸-()[۸] ۱ وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ "«مَنْ أَحَبَّ أَنْ يُبْسَطَ لَهُ فِي رِزْقِهِ ۳ وَيُنْسَأَ لَهُ فِي أَثَرِهِ؟ ۴ فَلْيَصِلْ رَحِمَهُ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت انس رضي الله عنه وايي، چي رسول الله ﷺ وفرمايل. ۲ کوم سړی چې غواړي چې د هغه په رزق کې دي وسعت او فراخي وی ۳ او د هغه په مرګ کې دي تاخير وشي. [يعنی د هغه عمر دي دراز اوږد شي] ۴ نو هغه ته پکار دی چې هغه د خپلو رشته دارانو سره حسن سلوك او احسان وکړي (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** - ۱ يُبْسَطَ: فراخی اوشي. ۲ يُنْسَأَ: تاخير اوکړې شي. ۳ أَثَرِهِ: دَهغه په مرګ کښې. اثر دَقدمونو نشاناتوته وائی ۴ فَلْيَصِلْ: صله رحمی دې کوی. تعلق دې ورسره جوړ ساتی

---

[1] اخرجه مسلم فی کتاب البر والصلة والآداب/باب صلة أصدقاء الأب والأم، ونحوهما (رقم-۱۳ - (۲۵۵۲) وابوداود فیکتاب الأدب/باب فی بر الوالدین (رقم-۵۱۴۳) والترمذی فی کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی إکرام صدیق الوالد (رقم-۱۹۰۳) واحمد فی المسند:۲/۸۸

[2] اخرجه البخاری فی کتاب الأدب/باب: عقوق الوالدین من الکبائر (رقم-۵۹۷۶) ومسلم فی کتاب البر والصلة والآداب/باب صلة الرحم وتحریم قطیعتها (رقم-۲۱ - (۲۵۵۷) وابوداود فی کتاب الزکاة/باب فی صلة الرحم (رقم-۱۶۹۳)

**تسهيلات:**

**قوله: مَنْ أَحَبَّ أَنْ يُبْسَطَ لَهُ فِي رِزْقِهِ وَيُنْسَأَ لَهُ فِي أَثَرِهِ؟:**

**اشكال:** دَ رزق او دغه شان دَانسان دَعمر تعلق تقدير الهي سره دې نو صله رحمي تقدير څنګه بدلولې شي؟

**داشكال جواب:** يو تقدير مبرم دې دويم تقدير معلق دې په دې دويم قسم كښې چونكه تعليق كيږي چه مثلاً دغه سړی كه چرته صله رحمي قائم كړه او دائي بو خائي كړه نو دَ هغه عمر به ۹۰ كاله وی ګنی ۷۰ كاله دې دغه شان صله رحمي پاللو سره الله تعالى دَ انسان په مال كښې اضافه كوی مثلاً زړه ئې نه غواړی مګر صله رحمئي او خپلولئي دَ وجې نه رونړو ترونو اودَ تره څامنو سره احسان كوی هم ددې په وجه دَ دغه سړی مال زياتيږی تجربه ګواه ده چه داسې كيږی څوك دې ازميښت اوكړی اودې ګوری چې ير څل ازميښت كړې دې اوهم دغه شان مو ليدلې

**[۴۹۱۹] د خپلولي ساتلو مقام او عظمت**

۴۹۱۹-()[۹] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "[۲] «خَلَقَ اللّٰهُ الْخَلْقَ، [۳] فَلَمَّا فَرَغَ مِنْهُ قَامَتِ الرَّحِمُ [۴] فَأَخَذَتْ بِحَقْوَيِ الرَّحْمٰنِ فَقَالَ: مَهْ، [۵] قَالَتْ: هٰذَا مَقَامُ الْعَائِذِ بِكَ مِنَ الْقَطِيعَةِ. [۶] قَالَ: "أَلَا تَرْضَيْنَ أَنْ أَصِلَ مَنْ وَصَلَكِ، [۷] وَأَقْطَعَ مَنْ قَطَعَكِ؟ [۸] قَالَتْ: بَلَى يَا رَبِّ! قَالَ: فَذَاكِ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل، [۲] الله جل جلاله مخلوقات پيدا كړل، [يعنى الله جل جلاله ټول مخلوقات د هغوئ د پيدائش نه مخكې په هغه صورتونو سره خپل علم ازلي كې مقرر كړه، چې په هغه به هغه پيدا كېږيا. [۳] هركله چې د هغه نه فارغه شو، نو رحم يعنى صلۀ رحمي ودريده، [۴] او د پروردګار ملا (شا) يي ونيوله. پروردګار ورته وفرمايل، مه، وايه څه غواړي، [۵] رحم عرض وكړو، د دې پريكيدلو د خوف نه ستا د پناه د طلبګار د ودريدو ځاى دى [يعنى زه ستا مخامخ ولاړه يم. او ستا د عزت او عظمت طرف ته د سوال لاس مې اوږد كړى دىا، ستا نه د دې امر پناه غواړم، كه يو سړى ماكټ كړي، [او څما د لمن پيوسته كولو په ځاى هغه تار تار كړيا] [۶] پروردګار ورته وفرمايل، آيا ته په دې راضي نه يې، چې كوم سړى [رشته دارو او عزيزانو سره د حسن سلوك په ذريعه] تا قايم او برقرار وساتي نو هغه زه هم [دخپل احسان او انعام او د اجر او بخشش په ذريعه] قائم او برقرار وساتم، [۷] او كوم

---

[۱]) اخرجه البخاری فی صحيحه ۱۰/ ۴۱۷، الحديث رقم (۵۹۸۷)، ومسلم فی ۴/ ۱۹۸۰، الحديث رقم (۱۶- ۲۵۵۴)، واحمد فی المسند ۱/ ۱۹۱.

سرى چې ادرشته داري او تعلق حقوق پائمال كولو په ذريعه) تا منقطع كړى كټ كړي زه هم اد خپل احسان او انعام) تعلق د هغه نه منفطع كړم.[۸] رحم عرض وكړي پروردګاره بيشكه زه په دي راضي يم، پروردګار وفرمايل. بښه دى دا وعده ستا د پاره ثابت او برقرار ده (بخاري. مسلم)

**حل اللغات:** - ①الرَّحِمُ: صله رحمى، ②بِحَقْوِي: حَقْو ملا ته وائى خاص كر د نرئ ملا دپاره ونيلى شى ③مَهْ: مه كوه. ④العَائِذِ: پناه غوښتونكي، ⑤الْقَطِيعَةِ: رشته او تعلق پريكول

**تسهیلات:**

**قوله** : فَلَمَّا فَرَغَ مِنْهُ قَامَتِ الرَّحِمُ فَأَخَذَتْ بِحَقْوِي الرَّحْمَنِ:

**د حقوى معنى او مراد**: دَ انسانانودَ پوهه كولودپاره دا لفظ ونيلى شوي دي ګنى الله تعالى خودَ جسم اوتجسم نه مبرا او منزه دي اودَ انسانى تصور نه وراء الوراء دي

اے برتر از قیاس وگمان ووہم زہر چہ گفتہ اند و شنیدم و خواندیم

دفتر تمام گشت وبپایان رسید عمر ماہم چنیں دراول وصف تو ماندیم

داكلام دَمتشابهات نه دي. سلف صالحين دَدي ترجمه "مايليق بشأنه" سره كوى اوهم دغه راجع دى دَ هيڅ تاويل ضرورت نشته دي دَحديث مطلب دادي چه رشته اوخپلولى كله الله تعالى خوښه كړه نودا اودريده اوالله تعالى ئى دَ شانه اونيولو

**قوله** : هَذَا مَقَامُ الْعَائِذِ بِكَ مِنَ الْقَطِيعَةِ:

يعنى دَ صله دَ ماتولونه دَ بچاؤ دَپاره دا مقام په توګه دَ پناه دَ خائى دي دَدي دَ ويرې نه چه كوم سړي هم پناه غواړى نو په دې مقام باندې راتلوسره به پناه حاصلوى

**[۴۳۰] رشته ماتونكى د الله تعالى د رحمت مستحق نه دي**

**۴۳۰-(۱۰)[۱] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[۲]«الرَّحِمُ شِجْنَةٌ مِنَ الرَّحْمَنِ. [۳]فَقَالَ اللَّهُ مَنْ وَصَلَكِ وَصَلْتُهُ، [۴]وَمَنْ قَطَعَكِ قَطَعْتُهُ»". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.**

**ترجمه**: [۱] او حضرت ابوهريره ﷺ وايي. چى رسول الله ﷺ وفرمايل. [۲] د رحم لفظ. د رحمن د لفظ نه وتلى دى. [۳] الله ﷻ رحم (يعنى صلهٔ رحمى) ته وفرمايل كوم سړي چى تاجوړ (پيوست) كړي (يعنى ستا د حق لحاظ وساتي)، زه به هم هغه خپل رحمت سره جوړ (پيوست) كړم [۴] او كوم سړى چې تامات كړي، زه به هم هغه مات كړم. يعنى د خپل رحمت نه به يي محروم كړم (بخاري)

**حل اللغات:** -①شِجْنَةٌ: دَ ښاخ او ريشه په معنى كښې راځى

) أخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/ ۴۱۷، الحديث رقم ۵۹۸۸، والترمذي في ۴/ ۲۸۵، الحديث رقم ۱۹۲۴، و أحمد في المسند ۲/ ۱۶۰.

**تسهيلات:**

**قوله: الرَّحِمُ شِجْنَةٌ مِنَ الرَّحْمٰنِ:**

**په نوم کښې د اشتراک اثر هم وی:** دَ غرفة په شان دَ فاء په کلمه باندې دريواړه حرکات جائز دی. جيم ساکن دې په نون فتحه ده. شجنة" مطلب دا چه رحم دَ رحمان ښاخ دې هم دَدې نه مشتق هم دې اوهم دَدې ريشه هم ده. دَدې حديث نه معلومه شوه چه دَنوم دَاشتراک هم اثر وی اودَدې اعتبار هم دې. دلته دَ رحمان او رحم ماده مشترک ده

**[۴۹۲۱] صله رحمی کونکی ته دعا اونه کونکی ته خيرې**

۴۹۲۱-(۱)[۱۱] ۞ وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا - قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۞ " «الرَّحِمُ مُعَلَّقَةٌ بِالْعَرْشِ تَقُولُ: ۞ مَنْ وَصَلَنِي وَصَلَهُ اللّٰهُ، ۞ وَمَنْ قَطَعَنِي قَطَعَهُ اللّٰهُ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۞ او بي بي عائشه رضي الله عنها وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل. ۞ صلهٔ رحمي. د عرش سره زوړند ده، او بطريق دعا يا د خبر ورکولو په طور وايي، ۞ کوم سړی چې ماجوړ وي هغه به الله جل جلاله د خپل رحمت سره يوځای کړي، ۞ او کوم سړی چې ما ماتوي هغه به الله جل جلاله خپل رحمت نه لرې کړي. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** - ① الرَّحِمُ: صله رحمی، رشته او تعلق، ② مُعَلَّقَةٌ: رازوړند وی.

**تسهيلات: قوله: الرَّحِمُ مُعَلَّقَةٌ بِالْعَرْشِ:**

**د الله تعالی په دربار کښې د صله رحمی عاجزی:** يعنی دَ عرش خپې سره رشته اوخپلولی زوړنده شوې دی. دې رشته او خپلولئ دَ عرش خپه نيولې ده اودا اعلان کوی چاچه زه يوځائی کړم رحمان به هغه يوځائی کړی اوچاچه زه پرې کړم رحمان به هغه پرې کړی.

**[۴۹۲۲] رشته پريکونکې به جنت ته نه ځی**

۴۹۲۲-(۲)[۱۲] ۞ وَعَنْ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ۞ " «لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ قَاطِعٌ» " مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۞ او حضرت جبير ابن مطعم رضي الله عنه وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل. ۞ رحم قطع کونکی به په جنت کې نه داخليږي. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** - ① قَاطِعٌ: صله رحمی ماتونکې. رشته اوتعلق پريښودونکې

[۱]) اخرجه البخاری فی صحيحه ۱۰/ ۴۱۷، الحديث رقم ۵۹۸۹، ومسلم فی ۴/ ۱۹۸۱، الحديث رقم (۱۷- ۲۵۵۵) واحمد فی المسند ۶/ ۱۶۰.

[۲]) اخرجه البخاری فی کتاب الأدب/باب إثم القاطع (رقم-۵۹۸۴) ومسلم فی کتاب البر والصلة والآداب/باب صلة الرحم وتحريم قطيعتها (رقم-۱۸ - (۲۵۵۶) وابوداود فی کتاب الزکاة/باب فی صلة الرحم (رقم-۱۶۹۶) والترمذی فی کتاب البر والصلة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی صلة الرحم (رقم-۱۹۰۹) واحمد فی المسند: ۴/ ۸۰

**تسهيلات:**

**قوله: لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ قَاطِعٌ:**

**د لا يدخل الجنة دوه مطلبونه:** ① كوم سړي چه صله رحمي ماتول جائز ګنړی هغه سړی حرام ته حلال اوونيل په دي وجه كافر شو لهذا جنت ته به نه ځی بلکه هميشه به په دوزخ کښي وی ② يا دَ دخول نه مراد دخول اول دي چه په شروع کښې به جنت ته نه ځی دَ سزا خوړلونه پس به ځی

**[۳۳-] كامل صله رحمي كونكي څوك دي؟**

۳۳-( )[۳] ۱ وَعَنِ ابْنِ عَمْرٍو-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ «لَيْسَ الْوَاصِلُ بِالْمُكَافِئِ، ۳ وَلَكِنَّ الْوَاصِلَ الَّذِي إِذَا قُطِعَتْ رَحِمُهُ وَصَلَهَا». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابن عمر رضي الله عنه وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ كامل صله رحمي كونكی هغه سړی نه دی، چې بدله پوره كړي، ۳ بلكي كامل صله رحمي كونكی هغه دی. چې د هغه قرابت قطع شي نو هغه يي قائم وساتي (بخاري)

**حل اللغات:** - ① اَلْوَاصِلُ: صله رحمي كونكي، ② اَلْمُكَافِئُ: بدله پوره كونكي

**تسهيلات:**

**قوله لَيْسَ الْوَاصِلُ بِالْمُكَافِئِ، وَلَكِنَّ الْوَاصِلَ الَّذِي إِذَا قُطِعَتْ رَحِمُهُ وَصَلَهَا:**

**دصله رحمي ساتلو تعريف:** صله رحمي دي ته نه وائي چه ښه سلوک كونكي سره ښه سلوک اوكړي شي دا خو ادله بدله او احسان ختمول دی البته كه ده يو داسي كس سره صله رحمي اوكړه چه هغه ده سره د احسان معامله نه وی كړي نو بيا دا صله رحمي ده ځكه چه په دي صورت كښې د ادل بدل څه شبه موجود نه ده نبي عليه السلام په خپل عمل سره هم صله رحمي ثابته كړي ده او خپل قول سره هم أحسن إلى من أساءك د دي نه معلومه شوه چه د صله رحمي كامل ترين درجه دا ده چه د هغي بنياد په بدله خلاصولو نه وی بلكه د زياتي نه پس ئي معاف هم كړي او په ظالم باندي څه احسان هم اوكړي د دي وجه نه علماؤ ليكلي دی چه بهادر سړي هغه دي چه هغه خپل حق د چا نه نه طلب كوی او پخپله د بل حق ادا كوی دا د كمالِ اخلاق او د عمده صفاتو دليل دي

[۱] اخرجه البخاري في كتاب الأدب/باب: ليس الواصل بالمكافئ (رقم-۵۹۹۱) وابوداود في كتاب الزكاة/باب في صلة الرحم (رقم-۱۶۹۱) والترمذي في كتاب البر والصلة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في صلة الرحم (رقم-۱۹۰۸) واحمد في المسند: ۲/۱۶۰

## [۴۹۲۴] صله رحمي كونكي سره د الله مدد او نصرت وي

۴۹۲۴-() [۳] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - «أَنَّ رَجُلًا قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، [۲] إِنَّ لِي قَرَابَةً أَصِلُهُمْ وَيَقْطَعُونِي، [۳] وَأُحْسِنُ إِلَيْهِمْ وَيُسِيئُونَ إِلَيَّ، [۴] وَأَحْلُمُ عَنْهُمْ وَيَجْهَلُونَ عَلَيَّ. [۵] فَقَالَ: "لَئِنْ كُنْتَ كَمَا قُلْتَ فَكَأَنَّمَا تُسِفُّهُمُ الْمَلَّ، [۶] وَلَا يَزَالُ مَعَكَ مِنَ اللَّهِ ظَهِيرٌ عَلَيْهِمْ مَا دُمْتَ عَلَى ذَلِكَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دى، چې يو سړي عرض وکړو. يارسول الله. [۲] خما څه خپلوان داسې دي چې زه خو هغوئ سره نيك سلوك كوم، ليكن هغوئ زما سره نيك سلوك نه كوي، [۳] زه د هغوئ سره احسان كوم، او هغوئ زما سره بدي كوي. [۴] زه د هغوئ سره د حلم اوبردباري او درگزرويه اختياروم، او هغوئ زما سره دجهالت نه كاراخلي، [يعنى ماته بدرد وايي، او په ما د غيظ وغضب اظهار كوي] [۵] (د هغه په دي خبري اوريدو سره) حضور ﷺ وفرمايل، كه ته داسې يې، څرنگه چې تابيان وكې. نو گويا ته په هغوئ گرمي ايري اچوي [۶] او ستاسره د الله د طرف نه هميشه مدد او نصرت دى، چې د هغوئ د ايذاء او شر نه ستا محافظ دى، ترڅوپوري چې ته په دي صفت قائم يې (مسلم)

**حل اللغات:** - ① يُسِيئُونَ: هغوى بد كوى، ② أَحْلُمُ: زه حلم او بردبارى كوم، برداشت كوم، ③ تُسِفُّهُمْ: وراچوې، ورشيندې په هغوى باندې، ④ الْمَلَّ: گرمې ايرې، ⑤ ظَهِيرٌ: مدد او نصرت.

**تسهيلات:**

**قوله:** لَئِنْ كُنْتَ كَمَا قُلْتَ فَكَأَنَّمَا تُسِفُّهُمُ الْمَلَّ:

**د لفظ الملّ معنى او د حديث مطلب:** الملّ گرمې ايرې ته وائى اوتسف دَ باب إفعال نه دې په خله كنبې ايره پوكل او اچول مرا دى يعنى كه چرې واقعه هم داسې دې نوبيا خوستادا احسان لكه چه دَهغه په خله كنبې گرمه گرمه ايره ده كومه چه ته وراچوې څكه چه نه هغه خلق ستا دَاحسان بدلـه دركوى نـه تـذكره كوى اونـه شـكريه اداكوى بلكـه التـه دې تنگوى.لكه چه تا دغه خلق داسې ذليل كړل چه دَ هغوى په خلوكنبې دې ايره ورپوكوهله.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۴۹۲۵] صله رحمي كولو سره عمر زياتيرى

۴۹۲۵-()[۱۵] [۱] عَنْ ثَوْبَانَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "[۲] «لَا يَرُدُّ الْقَدَرَ إِلَّا الدُّعَاءُ، [۳] وَلَا يَزِيدُ فِي الْعُمُرِ إِلَّا الْبِرُّ، [۴] وَإِنَّ الرَّجُلَ لَيُحْرَمُ الرِّزْقَ بِالذَّنْبِ يُصِيبُهُ»". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

[1]) اخرجه مسلم فى كتاب البر والصلة والآداب/باب صلة الرحم وتحريم قطيعتها (رقم-۲۲ - (۲۵۵۸) واحمد فى المسند:۲/۳۰۰

[2]) اخرجه ابن ماجه في السنن ۳/ ۱۳۳۴، الحديث رقم ۴۰۲۲، وأحمد في المسند ۵/ ۲۷۷.

**ترجمه:** [۱] حضرت ثوبان ﷺ وایي، چې رسول الله ﷺ وفرمایل، [۲] تقدیر الٰهي لره د دعا نه بغیر بل شی نه شي بدلولي، [۳] او عمر د راز کونکی هیڅ شی نشته. علاوه د والدینو او قرابتدارو سره د حسن سلوك نه، [۴] او (یاد ساته) انسان چې په کوم سبب د روزي نه محروم کېږي. هغه صرف ګناه ده، چې د هغه هغه مرتکب کېږي (ابن ماجه)

**تسهیلات:**

**قوله:** لَا يَرُدُّ الْقَدَرَ إِلَّا الدُّعَاءُ:

**ددعا په وجه د تقدیر بدلیل:** دې نه هم هغه تقدیر معلق مراد دې دکوم فیصله چه اټله نه ده بلکه مشروط ده دې نه قضامبرم مراد نه ده ځکه چه په هغې کښې وړاندې کیدل روستو کیدل محال وی

**قوله:** لَيُحْرَمُ الرِّزْقَ بِالذَّنْبِ يُصِيبُهُ:

**اشکال:** ډیر زیات کافران مالداران او په عیش اوعشرت کښې وی هغوی ګناه څه چه په کفر او شرك کښې پراته وی نودې حدیث دَ خارج واقعاتی حقائقو سره تعارض دې ددې څه جواب دې؟

**داشکال دوه جوابونه:** ① یو رزق دې او یو دَ رزق ثمره اونتیجه ده اصل مقصود رزق نه بلکه ددې ثمره او نتیجه مقصود وی. دَ رزق ثمره اطمینان سکون او راحت او فرحت وی کافران سره ددې چه په ظاهره مالداران وی لیکن هغوی ته دَمال نتیجه کوم چه اطمینان سکون او راحت اوفرحت دې هغه حاصل نه وی بلکه پخپله هم دغه مال دَهغوی دَپاره وبال جان وی اوهغوی په ژوند کښې دَ دغه مال دَ وجې نه په سخت عذاب کښې راګیروی نو په حقیقت کښې هغوی دَمعصیت دَ وجې نه دَ رزق دَ اصل فائدې نه محروم پاتې شو دا جواب کافرانو شیطانانو فاسقانو او فاجرانو ټولو ته شامل دې

② دَ رزق نه محروم کیدلو دکومې سزا په دې حدیث کښې ذکر دې دا دَمسلمانانو په حق کښې ده چه دهغوی دپاره امتحان دې دکافرانو باره کښې دا حدیث نه دې

**[۴۹۳۶] دَمور پلار دَ خدمت مقام**

۴۹۳۶-()[۱۶] [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهَا- قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "[۲] «دَخَلْتُ الْجَنَّةَ فَسَمِعْتُ فِيهَا قِرَاءَةً، [۳] فَقُلْتُ: مَنْ هَذَا؟ قَالُوا: حَارِثَةُ بْنُ النُّعْمَانِ، [۴] كَذَلِكُمُ الْبِرُّ، كَذَلِكُمُ الْبِرُّ". [۵] وَكَانَ أَبَرَّ النَّاسِ بِأُمِّهِ». [۶] رَوَاهُ فِي "شَرْحِ السُّنَّةِ"، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ". [۷] وَفِي رِوَايَتِهِمَا: قَالَ: "«نِمْتُ فَرَأَيْتُنِي فِي الْجَنَّةِ»" بَدَلَ: "دَخَلْتُ الْجَنَّةَ".

**ترجمه:** [۱] او بي بي عائشه ﷺ وایي، چې رسول الله ﷺ وفرمایل، [۲] زه جنت ته لاړم، نو

() اخرجه البغوی فی شرح السنة رقم ۳۴۱۸، واخرجه احمد فی المسند: ۱۵۱/۶

ماهلته د قرآن ویلو اواز واوریدی،۳ ما د (فرشتو) نه پوښتنه وکړه، داسړی څوك دی، چې د قرآن تلاوت کې مشغول دی، نو فرشتو راته وخودل، چې دا حارثه بن نعمان رضي الله عنه دی اصحابه رضي الله عنهم چې داخبره واوریده نو په زړه کې خواهش پیدا شو، چې حارثه رضي الله عنه د خپل کوم عمل په سبب دافضیلت حاصل کی، چې حضور ﷺ په جنت کې د هغه د قرآن ویلو اواز واوریدی، نو حضور ﷺ د حارثه رضي الله عنه د دې فضیلت سبب دې الفاظو کې بیان کی ا.۴ چې دا هغه فضیلت او ثواب دی، چې مور پلار سره نیکې کولو باندې حاصلیږي،۵ او حارثه رضي الله عنه بن نعمان د خپلې مور سره ډیر ښه سلوك کونکی وو.۶ دا روایت بغوي رحمه الله په شرح السنه کې او بیهقي رحمه الله په شعب الایمان کې نقل کړی دی.۷ او د بیهقي په یو روایت کې داسې دی، چې حضور ﷺ د (زه جنت ته ولاړم) په ځای دا وفرمایل، چې زه اوده شوی وم، نو په هغه حالت کې ګورم، چې زه په جنت کې یم الخ

**حل اللغات:** - ① أَبَرَّ: ډیر زیات حسن سلوك او احسان کونکې. ② نِمْتُ: زه اوده شوم

**تسهيلات:**

**قوله: كَذٰلِكُمُ الْبِرُّ، كَذٰلِكُمُ الْبِرُّ:**

**دمذکور کلام په قائل کښې درې اقوال:** ① امام طیبي فرمائي چه نبي علیه السلام دا خوب لیدلي وو نو خپلو صحابه کرامو ته ئي واورولو او د خوب د اورولو په مینځ کښې چه کله د حارثه بن نعمان ذکر راغلي نو یوه تنبیه ئي اوکړه چه دغه شان اعلي درجات د والدینو سره د حسن سلوك د وجې میلاویږي.

① ملا علي قاري فرمائي چه دا څه بعیده نه ده چه دا هم د فرشتوکلام شي او د دې کلام مخاطب نبي علیه السلام وی او اسم اشاره راوړل د تعظیم وجه نه وی د دې نه مراد د نبي علیه السلام صحابه کرام دی

**[۴۹۲۷] که د الله تعالی رضا غواړې نو مور پلار خوشحاله ساته**

۴۹۲۷-(¹)[۱۰] ۱ وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "۲ «رِضَا الرَّبِّ فِي رِضَا الْوَالِدِ،۳ وَسَخَطُ الرَّبِّ فِي سَخَطِ الْوَالِدِ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت عبد الله ابن عمر رضي الله عنهما وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ۲ د پروردګار رضامندي او خوشنودي د پلار په رضامندي او خوشنودي کې ده.۳ او د پروردګار ناخوښي او ناراضګي، د پلار په ناخوښي او ناراضګي کې ده (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① سُخْطُ: ناراضګی، خفګان.

---

¹) اخرجه الترمذي في السنن كتاب البر والصلة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء من الفضل في رضا الوالدين (رقم-۱۸۹۹)

**تسهیلات:**

**قوله: وَسُخْطُ الرَّبِّ فِي سُخْطِ الْوَالِدِ:**

**په حدیث کښې عجیبه فصاحت:** په کشرانو باندې د مشرانو د غضب د پاره د سخط لفظ استعمالولې شی په دې حدیث کښې عجیبه فصاحت او د مورپلار د مقام عجیبه اوچتوالې او عظمت طرف ته اشاره ده هغه داسې چه د مورپلار د خفګان سره د الله تعالی خفګان او ناراضګی یوځائې کړې شوې ده دائې نه دی وئیلی چه د مورپلار په نافرمانئی سره الله تعالی ناراض کیږی بلکه دائې فرمائیلی دی چه مورپلار ناراض وی نو الله تعالی به ناراض وی یعنی که یوځوئې نه د هغه پلار ناراض اوخفه وی نو الله تعالی به هم ناراض وی دلته د پلار ذکردې مګر مور هم مراد ده د دواړو حکم یو شان دې که چرې د والد نه "من له الولد" مراد واخستې شی نو بیا به په دغه لفظ کښې مور او پلار دواړه مقصود شی

## [۳۳۰۸] د مورپلار حکم ته د ښځې په محبت باندې ترجیح حاصل ده

۳۳۰۸-()[۱] ۱ «وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - أَنَّ رَجُلًا أَتَاهُ، فَقَالَ: ۲ إِنَّ لِي امْرَأَةً وَإِنَّ أُمِّي تَأْمُرُنِي بِطَلَاقِهَا، ۳ فَقَالَ لَهُ أَبُو الدَّرْدَاءِ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: ۴ "الْوَالِدُ أَوْسَطُ أَبْوَابِ الْجَنَّةِ، ۵ فَإِنْ شِئْتَ فَحَافِظْ عَلَى الْبَابِ أَوْ ضَيِّعْ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ۱ او د حضرت ابودرداء رضی الله عنه نه روایت دی، چې یو سړی د هغه په خدمت کې حاضرېدو سره عرض وکړو. ۲ زه ښځې والایم، او ځما مور غواړي چې زه هغه ته طلاق ورکړم. ۳ ابودرداء رضی الله عنه هغه ته اوویل ما د رسول الله ﷺ نه اورېدلي دي ۴ چې پلار د جنت د منځ د دروازو نه دی (یعني د پلار د رضامندي او خوشنودي په هرحالت کې لحاظ کول په جنت کې د داخلېدو سبب دی. ځکه کوم سړی چې غواړي چې په جنت کې داخلېدو د پاره هغه دروازه اختیار کړي کومه چې بهترینو دروازو نه ده، نو هغه ته پکار دی چې د پلار د رضامندي او خوشنودي په هرحالت کې لحاظ وساتئ) ۵ نو تاته اختیار دی. که غواړې د دې دروازې محافظت وکړئ او که غواړئ ضائع یې کړه (ترمذي، ابن ماجه)

**تسهیلات:**

**قوله: إِنَّ لِي امْرَأَةً وَإِنَّ أُمِّي تَأْمُرُنِي بِطَلَاقِهَا:**

**خپلې ښځې ته د طلاق ورکول حکم:** که په ښځه کښې شرعی قباحت هم وی او د مورپلار حکم هم وی چه طلاق ورکړه نو په ځوئې باندې واجب دی چه طلاق ورکړی لیکن که په

---

[1] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء من الفضل فی رضا الوالدین (رقم-۱۹۰۰)وابن ماجه فی کتاب الأدب/باب بر الوالدین (رقم-۳۶۶۳) واحمد فی المسند:۵/۱۹۶

ځه کښې شرعي قباحت نه وي او د مور پلار حکم وي چه طلاق ورکړه نو بیا به طلاق ورکول مستحب وي واجب به نه وي په راتلونکي حدیث نمبر(۴۹۳۰) کښې هم دا مسئله راروانه ده

**د ولد نه څه مراد دي:**

**قوله:** الْوَالِدُ أَوْسَطُ أَبْوَابِ الْجَنَّةِ:

حضرت ابودرداء رضي الله عنه چه دغه سړي ته کوم جواب ورکړې دي په هغې کښې د والد نه "من له الولد" مراد اخستې دي په کوم کښې چه مور پلار دواړه شریك دی حضرت ابودرداء رضي الله عنه هم دغه فیصله ورکړه چه جنت د مورپلار په قدمونو کښې دې او دا د جنت مرکزي دروازې دی که چرې د دوی حکم دې او منلونو دروازه به کولاؤ شي گنی دروازه به بنده وي

**[۴۹۲۹] مور د نیک سلوك زیاته حقداره ده په نسبت د پلار**

۴۹۲۹-(۱)[۱۹] ۱ «وَعَنْ بَهْزِ بْنِ حَكِيمٍ عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- ۲ قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ مَنْ أَبَرُّ؟ قَالَ: "أُمَّكَ" قُلْتُ: ثُمَّ مَنْ؟ قَالَ: "أُمَّكَ". ۳ قُلْتُ: ثُمَّ مَنْ؟ قَالَ: "أُمَّكَ". قُلْتُ: ثُمَّ مَنْ قَالَ: "أَبَاكَ، ۴ ثُمَّ الْأَقْرَبَ فَالْأَقْرَبَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت بهز ابن حکیم د خپل پلار نه او هغه د بهز د نیکه (حضرت معاویه رضي الله عنه ابن صده) نه نقل کوي، ۲ هغه اوویل ما عرض وکړو، چې یارسول الله. زه د چا سره نیك سلوك وکړم، حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل، خپلې مور سره ما عرض وکړو. بیا د چا سره. حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل، د خپلې مور سره ۳ ما عرض وکړو، بیا د چا سره. حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل. خپلې مور سره، ما عرض وکړو، بیا د چا سره، حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل. د خپل پلار سره. ۴ بیا د هغه سره چې مور پلار نه پس ستا نزدې ته عزیز وي. (لکه ورور او خور او بیا هغه سره چې ورور، خور نه پس چې نورو ته زیات نزدې رشته دار وي. لکه ترۀ او ماما او د دې ترتیب مطابق د ترۀ او ماما اولاد وغیره) (ترمذي. ابوداود)

**حل اللغات:** - ① أَبَرُّ: ډیر زیات حسن سلوک او احسان کونکې.

**تسهیلات:**

**قوله:** يَا رَسُولَ اللَّهِ مَنْ أَبَرُّ؟ قَالَ: "أُمَّكَ:

**درې ځله د مور د حق بیانولو نکته:** د دې نه مخکښې هم دغه شان حدیث په ضمن کښې تیر شوی دی چه د مور حق د پلار د حق نه مقدم دي او د مور حق درې چنده دي ځکه چه د هغې درې احسانات دی.

(۱) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب/باب فی بر الوالدین (رقم-۵۱۳۹) والترمذی فی کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی بر الوالدین (رقم-۱۸۹۷) وابن ماجه فی کتاب الأدب/باب بر الوالدین (رقم-۳۶۶۱)

① مور د بچي وزه په خپل رحم کښې ساتي اودا مشقت برداشت کوي. ((حملته أمه کرها))
② مور د بچي د زيږولو تکليف برداشت کوي ((ووضعته کرها))
③ مور د بچي د پي ورکولو تکليف برداشت کوي ((وحمله وفصاله))

**قوله: قَالَ: "أَبَاكَ، ثُمَّ الْأَقْرَبَ فَالْأَقْرَبَ:**

**د اقرب فالاقرب مفهوم:** په دي کښې قرابت نسبي هم مراد دې يعني اول د قريبي رشته دارو حق دي چه څومره قرب ډير وی نو هم هغه وومره به د هغه زيات حق وی لکه د سکه رور او خور وغيره حق ډير دي بيا د ماما بيا د ترور بيا د تره بيا د پهوپهو وغيره او هم دغه شان قرابت عمومي هم مراد کيدي شی لکه خواخي اوخې وغيره دوی سره به هم صله رحمي حق وی.

## [۴۹۳۰] دَرشته ساتونکی اورشته پریکونکی حکم

> ۴۹۳۰-()[۲۰] ① وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-يَقُولُ: ② " «قَالَ اللّٰهُ تَبَارَكَ وَتَعَالَى: أَنَا اللّٰهُ، وَأَنَا الرَّحْمٰنُ، ③ خَلَقْتُ الرَّحِمَ وَشَقَقْتُ لَهَا مِنِ اسْمِي، ④ فَمَنْ وَصَلَهَا وَصَلْتُهُ، وَمَنْ قَطَعَهَا بَتَتُّهُ» ". رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** ① او حضرت عبد الرحمٰن ابن عوف رضي الله عنه وايي، ما د رسول الله نه واوريدل، ② الله بزرگ وبرتر ارشاد فرمايي، زه الله يم، زه رحمٰن يم (يعني صفت رحمت سره متصف يم) ما رحم يعنی صله رحمي پيدا کړي ده، ③ او ما د هغه د نوم لفظ د خپل نوم يعنی د رحمٰن د لفظ نه اوخکلی دی. ④ نو کوم سړی چې صله رحمي جوړ وي، يعنی د صله رحمي حقوق اداکوي. زه به هم هغه خپل رحمت سره پيوست کړم، او کوم سړی چې رحم ماتوي، يعنی د صله رحمي حقوق نه اداکوي. زه به هم هغه د خپل رحمت نه جدا کړم (ابوداؤد)

**تسهيلات:**

**قوله: قَالَ اللّٰهُ تَبَارَكَ وَتَعَالَى: أَنَا اللّٰهُ، وَأَنَا الرَّحْمٰنُ:**

**د الله تعالى د اسم ذات اوصفت ذکر کولو وجه:** زه الله يم يعني زه واجب الوجود يم. زما ذات پاک دي. په هيڅ يو کار کښې د هيڅ چا محتاج نه يم دا جمله په اصل کښې د را رواني جملي د پاره بطور تمهيد ده او په دي تمهيد کښې ئې اول اسم خاص ذکر کړو او بيا ئې خپل صفت رحمن ذکر کړو چه د هغي لفظي ماده اشتقاق هم هغه ده چه کومه د رحم ده يعني الله تعالي رحم د خپل نوم نه جوړ کړي دې هم د دي وجې ئې د دي د يوځائ کولو حکم کړي دي حاصل دا چه څوک د رشته دارانو حقوق ادا کوی نو الله تعالي هغه د

(۱) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الزکاة/باب فی صلة الرحم (رقم-۱۶۹٤)والترمذی فی کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی قطیعة الرحم (رقم-۱۹۰۷) واحمد فی المسند:۱/۱۹٤

خپل رحمت سره نيزدې کړي او چه څوک د رشته دارانو حقوق نه ادا کوي نو هغه لره به الله تعالى د خپل رحمت نه لرې کړي

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۴۳۱] رشته پريکونکې والا قوم هم د الله تعالى د رحمت نه محروم دې**

۴۳۱-(١)[۲۱] ① وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِي أَوْفَى -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا- قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: ② «لَا تَنْزِلُ الرَّحْمَةُ عَلَى قَوْمٍ فِيهِمْ قَاطِعُ الرَّحِمِ» رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ".

**ترجمه:** ① او حضرت عبد الله ابن اوفى وايي، ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل. ② په هغه قوم رحمت نه نازليږي چې په هغوئ کې رشته ماتونکى وي. (بيهقي)

**حل اللغات:** - ① قَاطِعُ: رشته او تعلق پريښودونکې، ② الرَّحِمِ: رشته، تعلق

**تسهيلات:**

**قوله: لَا تَنْزِلُ الرَّحْمَةُ عَلَى قَوْمٍ فِيهِمْ قَاطِعُ الرَّحِمِ:**

**په حديث کښې د رحمت نه څه مراد دى:** يعنى خپلولى پريخودل او صله پرې کولو سره دَ الله تعالى دَ طرف نه آسمانى رحمت بنديږي. ممکن دى چه دَدې رحمت نه عام رحمت مراد وى يا خاص باران رحمت مراد وى او ښکاره خبره ده چه کله دَ رحمت نزول بندشو نودَ عذاب نزول به کيږي. لهذا په داسې قوم باندې دَاجتماعى عذاب نزول کيدې شى په کوم کښې چه خپلولى او صله ماتونکى موجود وى او پوره قوم دَ صله پرې کولو په جرم باندې خاموش پاتې وى او دامنع کوى نه بلکه دَ دې حمايت هم کوى شارحينو ليکلى دى چه دَقوم نه مراد صرف هغه خلق دى چه دَ صله ماتونکى سرې حمايت کوى او هغه منع کوى نه پوره قوم مراد نه دې. نن صبا چه په کوم سرحدى علاقو کښې په دې کلونو کښې تباه کونکې زلزلې راغلى دى. دَ خپلولو پريخودو گناه دلته ډيره عام وه

**[۴۳۲] بغاوت کونکى او رشته پريکونکى ته به په دنيا کښې هم عذاب ورکولې شى**

۴۳۲-(٢)[۲۲] ① وَعَنْ أَبِي بَكْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② «مَا مِنْ ذَنْبٍ أَحْرَى أَنْ يُعَجِّلَ اللّٰهُ لِصَاحِبِهِ الْعُقُوبَةَ فِي الدُّنْيَا، ③ مَعَ مَا يَدَّخِرُ لَهُ فِي الْآخِرَةِ ④ مِنَ الْبَغْيِ وَقَطِيعَةِ الرَّحِمِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوبکره رضي الله عنه وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل. ② هيڅ گناه د دې خبرې نه زياته لائقه نه ده چې الله ﷻ د هغه ارتکاب کونکې ته په دنيا کې هم د هغه سزا

---

[1] اخرجه البيهقى فى شعب الايمان رقم ۷۹۶۲

[2] اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الأدب/باب فى النهى عن البغى (رقم-۴۹۰۲) والترمذى فى كتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-۲۵۱۱) وابن ماجه فى كتاب الزهد/باب البغى (رقم-۴۲۱۱)

ورکړي، ۳ او مرتکب ته په آخرت کې هم ورکولو د پاره هغه سزا وساتي، ۴ هو، دوه ګناهونه بيشکه د دې خبري لائق دي. يو خو د امام وخت خلاف بغاوت کول. او دويم رشته ماتول (ترمذي، ابوداود)

**حل اللغات:** - ①أَحْرَى: زياته لائقه. ②الْعُقُوبَةَ: سزا، عذاب. ③يَدَّخِرُ: ذخيره اوساتی. ④الْبَغْي: بغاوت کول. ⑤قَطِيعَةِ: رشته ماتول. ⑥الرَّحِمِ: رشته، تعلق

**تسهيلات:**

**قوله:** مَعَ مَا يَدَّخِرُ لَهُ فِي الْآخِرَةِ، مِنَ الْبَغْيِ وَقَطِيعَةِ الرَّحِمِ:

**د صله رحمۍ په کټ کولو په دنيا او آخرت کښې د عذاب ملاويدل:** يعني دَ آخرت عذاب به هم وی دَدې ذخيره به هم جمع کيږي اودَ دنيا عذاب به هم ورته دَ پيشګی په توګه ملاويږي دا دوه چنده عذاب به دوه قسمه بدبختانو ته ملاويږي يو قسم هغه خلق چه دَامام برحق او اسلامی خلافت دَ سربراه خلاف بغاوت اوکړی او دويم هغه خلق چه دَ صله ماتولو جرم اوکړی دا دواړه ګناهونه دومره سخت دی چه دې سره پوره معاشره تباه کيدو سره دَاسلام جرړې خوزيږی په دې وجه په خاص توګه دَدې ذکر کړې شوې دې.

**[۴۹۳۳] دا درې قسمه خلق په جنت کښې نه داخليږی**

۴۹۳۳-(۱)[۲۳] ۱ وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "۲ «لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ مَنَّانٌ، ۳ وَلَا عَاقٌّ، ۴ وَلَا مُدْمِنُ خَمْرٍ»". رَوَاهُ النَّسَائِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت عبد الله ابن عمرو ﷺ وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ جنت ته به نه هغه سړی داخليږي چې د چاسره نيکي کولو سره په هغه احسان اچوي ۳ نه هغه سړی چې د مور پلار نافرماني کوي ۴ او نه هغه سړی چې هميشه شراب نوشي کوي [او بغير توبي مړ شي احسان اچول ديونيکئ په برابرکی دهغه اجر باطلوی متعال الله ﷻ فرمايی ﴿وَلَا تُبْطِلُوا صَدَقٰتِكُمْ بِالْمَنِّ﴾ په احسان کولو او ايذاء ورکولو سره خپل خيرات مه ضائع کوی]

**حل اللغات:** - ①مَنَّانٌ: احسان اچونکې، نيکی زباتل. ②عَاقٌّ: د مور پلار نافرمان. ③مُدْمِنُ خَمْرٍ: هميشه شراب څکونکې

**تسهيلات:**

**قوله:** لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ مَنَّانٌ:

**دعدم دخول په مفهوم کښې درې اقوال:** ①که چرې دغه خلقو دامحرمات حلال اوګنړل نو کافران به شی جنت ته به نه ځی

[۱] اخرجه النسائی فی السنن كتاب الأشربة/باب الرواية في المدمنين في الخمر(رقم-۵۶۷۲)

۳ دَ دخول جنت نه دخول اولی مراد ده نودَ سزا تیرولونه پس به جنت ته داخلیږی
۴ داحکم تشدیدًا تغلیظًا دي

**[۴۳۴] رشته ساتلو سره په مال اوعمر کښې برکت راځي**

۴۳۴-(¹)[۲۴] ۱ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "۲ «تَعَلَّمُوا مِنْ أَنْسَابِكُمْ مَا تَصِلُونَ بِهِ أَرْحَامَكُمْ، ۳ فَإِنَّ صِلَةَ الرَّحِمِ مَحَبَّةٌ فِي الْأَهْلِ ۴ مَثْرَاةٌ فِي الْمَالِ، مَنْسَأَةٌ فِي الْأَثَرِ» ". ۵ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابوهریره ﷛ وایي، چې رسول الله ﷺ وفرمایل. ۲ تاسو په خپلو نسبونو کې دومره قدري زده کړي، چې د هغه په ذریعه خپل رشته دارو سره حسن سلوك وشي. ۳ ځکه چې رشته دارو سره حسن سلوك کول اقرباء کې د باهمي محبت سبب. ۴ مال کې د کثرت او برکت ذریعه او د عمر د اوږدوالی باعث جوړیږي. ۵ ترمذي دا روایت نقل کړی دی، او ویلې یې دی چې دا حدیث غریب دی.

**حل اللغات:** - ۱ صِلَةَ: حسن سلوک، ۲ الرَّحِمِ: رشته، تعلق. ۳ مَثْرَاةٌ: دَ ثروة نه دي دَمال کثرت ته وائی. ۴ مَنْسَأَةٌ: تاخیر راوستونکې، ۵ الْأَثَرِ: مرګ، اثر دَقدمونو نشاناتو ته وائی

**تسهیلات:**

**د بعضې مشکلو جملو وضاحت:**

۱ مَحَبَّةٌ: صله ساتلو سره خپل مینځ کښې محبتونه زیاتیږی داخو مجرب او مشاهده شوي عمل دي

۲ مَثْرَاةٌ: مطلب دادي چه که یو سړې په خپله صله کښې احسان کوی اوصله ساتی هغوی خوشحاله ساتی نو په دې سره په مال کښې زیاتوالې کیږی

۳ مَنْسَأَةٌ فِي الْأَثَرِ: مطلب دادي چه صله ساتلو سره عمر اوږدیږی

**[۴۳۵] ترور سره صله رحمی کول مور سره د صله رحمی برابر ده**

۴۳۵-(²)[۲۵] ۱ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا- «أَنَّ رَجُلًا أَتَى النَّبِيَّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ۲ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ، إِنِّي أَصَبْتُ ذَنْبًا عَظِيمًا، فَهَلْ لِي مِنْ تَوْبَةٍ؟ ۳ قَالَ: "هَلْ لَكَ مِنْ أُمٍّ؟" قَالَ: لَا ۴ قَالَ: "وَهَلْ لَكَ مِنْ خَالَةٍ؟" قَالَ: نَعَمْ قَالَ: "فَبِرَّهَا"». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ۱ او د حضرت ابن عمر ﷛ نه روایت دی. چې یو سړي د حضور ﷺ په خدمت

¹) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی تعلیم النسب (رقم-۱۹۷۹) واحمد فی المسند: ۳۷٤/۲

²) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی بر الخالة (رقم-۱۹۰٤) واحمد فی المسند: ۱٤/۲

کې حاضر شو[۲] او هغه اوویل یا رسول الله، ما نه یوه لویه گناه شوي ده څما توبې دپاره څه شی شته، یعنی څه داسې عمل راته وښايي، چې هغه اختیارولو سره د الله رحمت خان طرف ته متوجه کړې شم، او گناه مي معاف شی.[۳] حضور ﷺ ورته وفرمایل. ستا مور شته، هغه وویل، نه [۴] بیايي ورته وفرمایل. ستا خاله (ترور) شته، هغه وویل. هو نو ورته یې وفرمایل، د هغه سره نیك سلوك کوه. [یعنی د هغه خدمت. اطاعت او نگراني کوه. او د خپل حیثیت مطابق د هغه مالي مدد او اعانت کوه] (ترمذي)

**حل اللغات:** - ①فَبِرَّهَا: دادَ امر صیغه ده یعنی هغې سره ښه سلوك کوه احسان او انعام کوه

**تسهیلات:**

**قوله: فَقَالَ: يَارَسُولَ اللهِ، إِنِّي أَصَبْتُ ذَنْبًا عَظِيمًا:**

**صله رحمی په وجه گناه کبیره معاف کیږی:** رسول الله ﷺ دَهغه سړی نه تپوس اوکړو ستامور ژوندئی ده؟ هغه وئیل نه تپوس ئی اوکړو ماسی دې شته؟ هغه وئیل او ماسی مې شته دې نبي علیه السلام اوفرمائیل چه هغې سره حسن سلوك ساته ستا گناه به معاف شی دَدې حدیث نه معلومه شو چه صله ساتل او دَ صله خدمت کولو سره کبیره گناه هم معاف کیږی ځکه چه دَ صله والا هم دَهغه دَمغفرت دعا غواړی اودا سړې پخپله هم دمغفرت په غرض سره خدمت کوی نو کبیره هم معاف کیږی یا ممکن دی چه دَ ویرې دَ وجې نه دې سړی دا کبیره گناه گنړلې وی او په حقیقت کښې دا کبیره نه وه نو دَ صله په خدمت سره صغیره گناه معاف شوه یا کیدې شی چه دا حدیث دَهغه سړی دَ معاملې سره خاص وی اودَ ټولو مسلمانانو دَپاره عام نه وی.لهذا دَهغه سړی لویه گناه دَ صله په خدمت سره معاف شوه دادَ هغه خصوصیت وو دَهر سړی کبیره گناه به نه معاف کیږی

**[۴۹۳۶]دَ وفات نه پس مور پلار سره دَاحسان بعضې صورتونه**

۴۹۳۶-()[۲۶] [۱] وَعَنْ أَبِي أُسَيْدٍ السَّاعِدِيِّ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲]«بَيْنَا نَحْنُ عِنْدَ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذْ جَاءَ رَجُلٌ مِنْ بَنِي سَلَمَةَ، [۳]فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ هَلْ بَقِيَ مِنْ بِرِّ أَبَوَيَّ أَبَرُّهُمَا بِهِ بَعْدَ مَوْتِهِمَا؟ [۴] قَالَ: "نَعَمْ، الصَّلَاةُ عَلَيْهِمَا، وَالِاسْتِغْفَارُ لَهُمَا، [۵] وَإِنْفَاذُ عَهْدِهِمَا مِنْ بَعْدِهِمَا، [۶] وَصِلَةُ الرَّحِمِ الَّتِي لَا تُوصَلُ إِلَّا بِهِمَا، [۷] وَإِكْرَامُ صَدِيقِهِمَا» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابو اسید ساعدي وايي، [۲] چې یوه ورځ مونږ خلق د رسول الله ﷺ سره ناست وو. ناڅاپه یو سړی د حضور ﷺ په خدمت کې حاضر شو (قبائل انصار نه د یو قبیله) بنو سلمه سره تعلق لری. [۳] هغه سړی عرض وکړو. یا رسول الله، څما د مور

---

[۱] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب /باب فی بر الوالدین (رقم-۵۱٤۲) وابن ماجه فی کتاب المناسک/باب فضل المدینة (رقم-۳۱۱٤) واحمد فی المسند:۳/٤۹۷

پلار د حسن سلوك څه حصه لا اوس باقي ده چې زه يې د هغوئ د وفات نه پس پوره كړم؟، ايعنى ما به د خپل مور پلار ژوند كې هغوئ سره حسن سلوك كوى، اوس هغوئ مړه شوي دي، نو آيا د هغوئ د وفات نه پس هم د هغوئ په حق كې د حسن سلوك كولو څه صورت شته؟ .[۴] حضور ﷺ وفرمايل هو، د هغوئ په حق كې دعا كول (چې په هغه كې د جنازې مونځ هم شامل دى) هغوئ د پاره استغفار كول.[۵] د هغوئ د مرګ نه پس د هغوئ وصيت پوره كول [۶] د هغوئ رشته دارو سره حسن سلوك كول. چې د هغوئ سره حسن سلوك كول محض د مور پلار سبب دى، [يعنى د مور پلار هغه عزيز واقارب خپلوان چې د هغوئ سره محض په دې وجه حسن سلوك كولى شي، چې د مور پلار خوشنودي حاصله شي، چې څه بل غرض پكې نه وي][۷] او د مور پلار د تعلق دارو عزت او تعظيم كول؛ (داهغه صورتونه دي، چې هغه اختيارولو سره د مور پلار د وفات نه پس د هغوئ سره د حسن سلوك سلسله جاري ساتل كيدي شي) (ابوداؤد، ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① إِنْفَاذُ: نافذ كول، پوره كول. ② صِلَةُ الرَّحِمِ: حسن سلوک کول د رشته دارانو سره

**تسهيلات:**

**قوله:** بَيْنَا نَحْنُ عِنْدَ رَسُولِ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- إِذْ جَاءَ رَجُلٌ:

**دیو صحابی د نبی علیه السلام څخه پښتنه کول:** یعنی هم په دغه وخت او ساعت کوم وخت چه مونږ دَ رسول الله ﷺ په مجلس کښې ناست وو ناڅاپی یو سړې راغلو او هغه سوال اوکړو چه دَمور پلار دَ وفات نه پس هغوی سره دَاحسان څه صورت کیدې شی کوم چه زه اختیار کړم؟ نبي عليه السلام اوفرمائیل:

**دبعضې مشکلو جملوو ضاحت:**

① قَالَ: "نَعَمْ الصَّلَاةُ عَلَيْهِمَا: یعنی دَهغوی په حق کښې دعا کوه په کوم کښې چه په هغوی باندې دَ جنازې مونځ کول هم داخل دی دا یو صورت دې

② وَإِنْفَاذُ عَهْدِهِمَا مِنْ بَعْدِهِمَا: یعنی هغوی که چرته چاسره وعده کړې وی او دَ پوره کولو نه مخکښې مړه شوی دی هغه وعده پوره کول داهغوی سره دَاحسان دویم صورت دې

③ وَصِلَةُ الرَّحِمِ الَّتِي لَا تُوصَلُ إِلَّا بِهِمَا: یعنی دَهغه خپلولئی اورشتو خیال ساتل کومې چه صرف دَ مور پلار دَ وجې نه قائمولې شی دې دَپاره چه هغوی خوشحال شی دَمور پلار دَ خپلولئی نه علاوه هغه خلقو سره نور څه تعلق نه وی دا دَاحسان کولو دریم صورت دې

④ وَإِكْرَامُ صَدِيقِهِمَا: یعنی دَ مور پلار دَ دوستانو او دَهغوی تعلق دارو اکرام او احترام کول دا دَ احسان څلورم صورت دې. دَدې څلورو وارو صورتونو په ذریعه سره سړې دَخپل مړه شوی مور پلار سره دَ حسن سلوك معامله كولې شی.

### [۴۹۳۷] دَرسول الله ﷺ خپلې رضاعي مور حليمه سعديه سره حسن سلوک

۴۹۳۷-( )[۲۷] [۱] وَعَنْ أَبِي الطُّفَيْلِ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «رَأَيْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقْسِمُ لَحْمًا بِالْجِعْرَانَةِ [۳] إِذْ أَقْبَلَتِ امْرَأَةٌ حَتَّى دَنَتْ إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۴] فَبَسَطَ لَهَا رِدَاءَهُ، فَجَلَسَتْ عَلَيْهِ. [۵] فَقُلْتُ مَنْ هِيَ؟ [۶] فَقَالُوا: هِيَ أُمُّهُ الَّتِي أَرْضَعَتْهُ.» رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابو طفیل رضي الله عنه وايي، [۲] په جعرانه کې ما وليدل، چې حضور ﷺ غوښه تقسيموله، [۳] ناڅاپه يوه ښځه راغله، رسول الله ﷺ ته چې را ورسيده. [۴] نو حضور ﷺ د هغه د پاره خپل څادر وغوړوی هغه په هغه کيناسته. [۵] ما د هغه سره: حضور ﷺ داحسن سلوك وليدئ نو خلقو نه مي پوښتنه وکړه، دا خاتون بي بي څوك ده؟ [۶] هغوئ راته وخودل، چې دا د حضور ﷺ هغه مورده، چې حضور ﷺ ته يې شو ده ورکړي دی (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① الْجِعْرَانَةِ: د يو ځائې نوم دې. ② دَنَتْ: نزدې شوه. ③ بَسَطَ: خور ئې کړو. ④ رِدَاءَ: څادر. ⑤ أَرْضَعَتْهُ: پئ (شوده) ئې ورکړی دی هغه ته (يعنی حضور ﷺ ته).

**تسهيلات:**

**قوله:** فَبَسَطَ لَهَا رِدَاءَهُ، فَجَلَسَتْ عَلَيْهِ:

**دنبی عليه السلام د حليمې سعديه دپاره خپل څادر خورول:** دَ جنګ حنين او اوطاس نه پس نبي عليه السلام دَغنائم دَتقيسم دَ پاره جعرانه کښې تشريف فرما وو هم په دغه موقع دَ نبي عليه السلام رضاعی مور بی بی حليمه سعديه تشريف راوړو نبي عليه السلام خپل څادر هغې ته لاندې خور کړو په کوم چه هغه کيناستله خلقو تپوس اوکړو دا څوك ښځه ده؟ دَچاچه نبي عليه السلام داسې احترام اوکړو جواب ورکړې شو دادَ نبي عليه السلام رضاعی مور ده دکومې نوم چه حليمه وو اودَ سعد قبيلې سره دَهغې تعلق وو

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [۴۹۳۸] د نيکو اعمالو په وسيلې سره دعا غوښتل

۴۹۳۸-( )[۲۸] [۱] عَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] «بَيْنَمَا ثَلَاثَةُ نَفَرٍ يَتَمَاشَوْنَ أَخَذَهُمُ الْمَطَرُ، [۳] فَمَالُوا إِلَى غَارٍ فِي الْجَبَلِ، [۴] فَانْحَطَّتْ عَلَى فَمِ غَارِهِمْ صَخْرَةٌ مِنَ الْجَبَلِ، [۵] فَأَطْبَقَتْ عَلَيْهِمْ، [۶] فَقَالَ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ: انْظُرُوا أَعْمَالًا عَمِلْتُمُوهَا لِلهِ صَالِحَةً، [۷] فَادْعُوا اللهَ بِهَا لَعَلَّهُ يُفَرِّجُهَا،

**ترجمه:** [۱] د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما نه روايت دی، چې رسول الله ﷺ د يوقوم دا واقعه بيان

---

[1] اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأدب/باب في بر الوالدين(رقم-۵۱۴۴)

[2] اخرجه مسلم في كتاب الذكر والدعاء والتوبة والاستغفار/باب قصة أصحاب الغار الثلاثة والتوسل بصالح الأعمال (رقم-۱۰۰ - (۲۷۴۳)واحمد في المسند:۱۱۶/۲

کړه، [٢] چې يو وخت دري سړي يوځای روان وه، په لار کې سخت باران هغوئ راګير کړه،
[٣] د باران نه دځان ساتلو د پاره هغوئ د يوغره په غارکې ننوتل [٤] په دې کې د غر نه يوغټ کاڼي (ګټ) رالويدو سره د غار په خوله راولويدی [٥] او په هغه دريو سړو بهرته د وتلو لار بند کړله.[٦] هغوئ دريو سړو په (دي صورت حال نه سخت پريشان کيدو سره او هغه غار نه د وتلو څه لار ورته په نظر رانغله نو) خپلو کې يې اوويل. چې اوس تاسو په خپل اعمال نظر واچوئ چې تاسو (د څه دنياوي فائدې د ارزو او د نام ونمود د جذبې نه بغير) محض د الله ﷻ د رضا او خوشنودي د پاره څه کړي دي.[٧] او د هغه اعمالو په ذريعه د الله ﷻ نه دعا وغواړي، شايد الله ﷻ زمونږ د نجات (خلاصون لار خلاصه کړي.

**حل اللغات:** - ① يَتَمَاشَوْنَ: روان وو، ② الْمَطَرُ: باران، ③ مَالُوا: ورغلل. داخل شو. ④ انْحَطَتْ: راورغړيدو. ⑤ صَخْرَةٌ: لويه ګټه، غټ کاڼړي. ⑥ أُطْبِقَتْ: بنده ئې کړه.

[١] فَقَالَ أَحَدُهُمْ: اللَّهُمَّ إِنَّهُ كَانَ لِي وَالِدَانِ شَيْخَانِ كَبِيرَانِ،[٢] وَلِي صِبْيَةٌ صِغَارٌ كُنْتُ أَرْعَى عَلَيْهِمْ،[٣] فَإِذَا رُحْتُ عَلَيْهِمْ فَحَلَبْتُ[٤] بَدَأْتُ بِوَالِدَيَّ أَسْقِيهِمَا قَبْلَ وَلَدِي،[٥] وَإِنَّهُ قَدْ نَأَى بِيَ الشَّجَرُ، فَمَا أَتَيْتُ حَتَّى أَمْسَيْتُ، [٦] فَوَجَدْتُهُمَا قَدْ نَامَا، فَحَلَبْتُ كَمَا كُنْتُ أَحْلُبُ،[٧] فَجِئْتُ بِالْحِلَابِ، فَقُمْتُ عِنْدَ رُءُوسِهِمَا أَكْرَهُ أَنْ أُوقِظَهُمَا،[٨] وَأَكْرَهُ أَنْ أَبْدَأَ بِالصِّبْيَةِ قَبْلَهُمَا [٩] وَالصِّبْيَةُ يَتَضَاغَوْنَ عِنْدَ قَدَمَيَّ،[١٠] فَلَمْ يَزَلْ ذَلِكَ دَأْبِي وَدَأْبَهُمْ حَتَّى طَلَعَ الْفَجْرُ،[١١] فَإِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ أَنِّي فَعَلْتُ ذَلِكَ ابْتِغَاءَ وَجْهِكَ،[١٢] فَافْرُجْ لَنَا فُرْجَةً نَرَى مِنْهَا السَّمَاءَ.[١٣] فَفَرَجَ اللَّهُ لَهُمْ حَتَّى يَرَوْنَ السَّمَاءَ.

**ترجمه:** [١] نو په هغوئ کې يوه اوويل، اې الله! څما مورو پلار ډير بوډاګان وو.[٢] او څما يوڅو واړه بچي هم وو، او ما به بزې (چيلئ) څرولې، چې (دهغوئ د شيدو ذريعه) د هغه ټولو (د مور پلار او بچو دنس مړولو انتظام وکړم،[٣] نو ماښام ته چې کوروالاوو ته به واپس ورغلم. او بزې (چيلئ) به مې ولوشلې [٤] نو خپل مور پلار نه به مې ابتداء کوله. او هغوئ ته به مې د خپل اولاد نه مخکې شو ده ورکولې،[٥] يوه ورځ داسې وشوه. چې بزې (چيلئ) څرولو کې زه ډير لرې ووتلم، تردې چې ماښام شو، او زه کورته واپس رانغلم [٦] بيا چې شپه څه تيريدو سره کورته راورسيدم نو مور پلار مې اوده شوی وه. د خپل معمول مطابق شو ده اولوشل [٧] او د شودو ډک لوښې سره مور پلار ته ورغلم. او د هغوئ سرته ودريدم. ځکه چې ما داخوښه نه کړه، چې هغوئ راويښ کړم.[٨] او نه مې دا خوښه کړه چې د هغوئ نه مخکې خپلو بچو ته شو ده ورکړم،[٩] هرکله چې هغه بچې څما په پښو ځکلو لغړيدل او د لوږې نه يې ژړل [١٠] زه او هغوئ ټول خپل حال باندې قائم وو. تردې چې سحر شو. (يعني پوره شپه په دې حالت کې ما د شيدو لوښې اخستې د مور پلار سرته ولاړ وم. او هغوئ دواړه اوده وه. او څما بچو د لوږې نه بيتابه کيدو سره ژړل)
[١١] نو اې الله! تاته معلومه ده. چې که ما داکار محض ستا د رضا او خوشنودې طلب کې

کړې دی. ⑫(نو زه په دي عمل واسطه درکولو سره تاته التجاء کوم چي) ته زمونږ نه داکاڼی دومره اخوا کړي چې د هغه د خلاصوالي په ذريعه مونږ آسمان ووينو. ⑬نو الله ﷻ (د هغه دعا قبوله کړه، او) هغه کاڼی يي دومره اخوا کړ، چې هغوئ ته آسمان په نظر رالي

**حل اللغات:** ⑤ضَيْفَانِ: بوډاګان. ⑧رُحْتُ: مابښام به راغلم. ⑨نَأى: لرې لاړم. ⑩أُوقِظَهُمَا: چه رابيدار کړم دواړه ⑪يَتَضَاغَوْنَ: دباب تفاعل نه دي په سلګو سلګو ژړلو ته وائي ⑫دَأْبِي: حال زما.

① قَالَ الثَّانِي: إِنَّهُ كَانَتْ لِي بِنْتُ عَمٍّ أُحِبُّهَا كَأَشَدِّ مَا يُحِبُّ الرِّجَالُ النِّسَاءَ، ② فَطَلَبْتُ إِلَيْهَا نَفْسَهَا، فَأَبَتْ حَتَّى آتِيَهَا بِمِائَةِ دِينَارٍ، ③ فَسَعَيْتُ حَتَّى جَمَعْتُ مِائَةَ دِينَارٍ، فَلَقِيتُهَا، ④ فَلَمَّا قَعَدْتُ بَيْنَ رِجْلَيْهَا، قَالَتْ: يَا عَبْدَ اللّٰهِ ⑤ اتَّقِ اللّٰهَ وَلَا تَفْتَحِ الْخَاتَمَ، فَقُمْتُ عَنْهَا. ⑥ اللّٰهُمَّ فَإِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ أَنِّي فَعَلْتُ ذٰلِكَ ابْتِغَاءَ وَجْهِكَ، ⑦ فَافْرُجْ لَنَا مِنْهَا، فَفَرَجَ لَهُمْ فُرْجَةً.

**ترجمه:** ①او دويم سړی داسې ووېل، چې اې الله! ځما د ترۀ يوه لوروه، ځما دومره خوښه وه، څومره چې د يو سړي يوه ښځه خوښيدی شی، ②هرکله چې ماهغې ته خپل ځان ماته د حواله کولو خواهش وکی، نو هغه دي ويلو سره ځما د خواهش منلو نه انکار وکی چې څو پورې سل دينار ورته پيش نه کړم، ځما جنسي خواهش به نه پوره کېږي. ③ما محنت مشقت کولو سره سل ديناره جمع کولو نه پس هغې ته ورسيدم هغه خپل شرط پوره کيدو باندې ځما په خواهش راضي شوه ④هرکله چې زه جنسي فعل د پاره د هغه د دواړو پښو په منځ کې کينا ستم، نو هغه ووېل، اې د الله بنده! ⑤د الله نه ويرېږه، او ځما مهر امانت ماتولو نه منع شه، يعنی هغه ماته د الله خوف راکولو سره درخواست وکړی چې ځما عزت مه اخله، او په حرام طور سره ازاله بکارت سره ځما پرده ناموس، چې د چا امانت دی داسې تار تار مه کوه زه په دي اوريدو سره د الله د خوف نه په رپيدو شوم. او د خپل نفس په ګمراهي شرمسار کيدو سره د هغې نه ولاړ شوم. ⑥نو اې الله! تاته معلومه ده چې ځما دافعل يعنی قابو حاصليدو باوجود د هغه نه لرې کيدل او خپل نفس خوارول. محض ستا د رضا او خوشنودي طلب کې وو، ⑦نو زه د خپل دي عمل واسطي سره تاته سوال کوم چې داکاڼی زمونږ د لاري نه لرې کړي، نو الله ﷻ د هغه سړي دعا هم قبوله کړه. او هغه کاڼی د خپل ځای نه لرې اخواشو.

**حل اللغات:** ⑬أَبَتْ: انکار ئې اوکړو. ⑭فَرَقٍ: يوه پيمانه ده. ⑮أَرُزٍّ: وريجې. ⑯لَا تَهْزَأْ: ټوقې مه کوه.

① وَقَالَ الْآخَرُ: اللّٰهُمَّ إِنِّي كُنْتُ اسْتَأْجَرْتُ أَجِيرًا بِفَرَقِ أَرُزٍّ، ② فَلَمَّا قَضَى عَمَلَهُ قَالَ: أَعْطِنِي حَقِّي، ③ فَعَرَضْتُ عَلَيْهِ حَقَّهُ، فَتَرَكَهُ وَرَغِبَ عَنْهُ، ④ فَلَمْ أَزَلْ أَزْرَعُهُ حَتَّى جَمَعْتُ مِنْهُ بَقَرًا وَرَاعِيهَا، ⑤ فَجَاءَنِي فَقَالَ: اتَّقِ اللّٰهَ وَلَا تَظْلِمْنِي وَأَعْطِنِي حَقِّي، ⑥ فَقُلْتُ: اذْهَبْ إِلَى ذٰلِكَ الْبَقَرِ وَرَاعِيهَا، ⑦ فَقَالَ: اتَّقِ اللّٰهَ وَلَا تَهْزَأْ بِي، ⑧ فَقُلْتُ: إِنِّي لَا

أَهُوَ لِكَ فَخُذْ ذَلِكَ الْبَقَرَ وَرَاعِيهَا.[۹] فَأَخَذَهُ فَانْطَلَقَ بِهَا،[۱۰] فَإِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ أَنِّي فَعَلْتُ ذَلِكَ ابْتِغَاءَ وَجْهِكَ[۱۱] فَافْرُجْ مَا بَقِيَ فَفَرَجَ اللَّهُ عَنْهُمْ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**[۱] بيا دريم سړي داسې وئيل شروع کړه، اې الله! ما يو مزدور د يوفرق يوه پيمانه وريجو چاول په عوض کې په مزدورۍ ولګوی،[۲] هرکله چې هغه خپل کار پوره کی، نو مطالبه يي وکړه، چې څما مزدوري ماته راکړه.[۳] ماورته اجرت پيش کړو، خو هغه بې نيازي سره هغه پريخودلو سره لاړو،[۴] بيا ماهغه وريجې چاول خپل زراعت کې ولګولي، او کرونده مې وکړی، تردې چې د هغه وريجو چاولو په ذريعه ماخاص سرمايه جوړه کړه او هغه سره مې غويان (بيل) او د هغه غويانو غوبانه چرواهي، جمع کړه[۵] بيا ډيره موده وروسته هغه مزدور ماته رالی، او هغه راته وويل، الله نه ويريږه، په ماظلم مه کوه، او څما حق چې ماستاسره پرېښی دی ما ته يي واپس راکړه.[۶] ماورته اوويل بيشکه ستا حق په ماواجب دی دا غويان او غوبانه خپله قبضه کې واخله داټول ستا حق دی،[۷] هغه په دې خبري اوريدو سره ډير په حيرت سره ماته وکتل، او هغه وويل، د الله نه ويريږه زماسره ټوقي مه کوه،[۸] ماورته اوويل څما خبره دروغ مه ګڼه، زه ستاسره ټوقي مذاق نه کوم، ورسه، دغه غويان او غوبانه د ځان سره بوځه.[۹] د دې نه پس هغه هغې ټولو باندې قبضه وکړه، او اخستو سره لاړو،[۱۰] نو اې الله! ته ښه پوهيږې چې څما هغه عمل محض ستا د رضا او خوشنودي په طلب کې وو،[۱۱] نو زه د دې عمل واسطه درکولو سره تاته سوال کوم چې داکانی څومره باقي پاتې شوی دی، داهم لرې کړه، نو الله ﷻ د هغه سړي دعاهم قبوله کړه او د غار د خولې باقي حصه هم خلاصه شوه (بخاري، ومسلم)

**تسهيلات:**

**قوله: بَيْنَمَا ثَلَاثَةُ نَفَرٍ يَتَمَاشَوْنَ أَخَذَهُمُ الْمَطَرُ:**

**د درې کسانو د اخلاص عمل واقعه:** دا يو اوږد حديث دې په کوم کښې چه دَ دريو کسانو اوږده قصه ذکر ده چه په يوغار کښې ناست وو کانړې راؤرغيدو او دَغار خله ئې بنده کړه. دريواړو کښې هريو کس خپل دَټولو نه مقبول عمل دَ الله تعالی په مخکښې دَ وسيلې په توګه پيش کړو اومقصودئی حاصل شو دَدې نه معلومه شوه چه نيک اعمال دَ مضراتودَ دفع کولودَپاره بهترين وسيله ده. عام مفسرين اوعام سلف صالحين دَاعمالو وسيله بغيردَ څه خلاف نه قبوله کړې ده

**قوله: اللَّهُمَّ إِنَّهُ كَانَ لِي وَالِدَانِ شَيْخَانِ كَبِيرَانِ:**

**د والدين خدمت:** ① په دوی کښې يوکس اووئيل. زما مور او پلار وو. چه ډير بوډاګان

وو. او ما به هغوی باندې د خپل بال بچ نه وړاندې د ماښامے پئ څکول. يوه ورځ د لرګو په تلاش کښې په ما باندې ناوخته شو. او په خپل وخت راو نه رسيدم تر دې چه هغوی دواړه اوده شوی وو. ما د خپل معمول مطابق د هغوی دپاره پئ اولوشل. خو چونکه هغوی دواړه اوده شوی وو. نو ما دا بده اوګڼړله. چه راويخ ئے کړم. او زه د هغوی نه وړاندې خپل بال بچ ته پئ ورکړم. نو ما د هغوی د بيداريدو انتظار کولوتر دې چه صبا شو اوزماماشومان د لوږې د وجے زما په پښو کښې لوغړيدل. خو ما بيا هم هغوی ته پئ نه ورکول. څکه چه د مور پلار حق راته ډير لوئے ښکاريدو آخر دا چه دا دواړه رابيدار شول. او خپل خپل پئ ئے اوڅکل. نو اوس په دې سخت او مشکل وخت کښې تا ته خپل دغه عمل وسيله کوم چه اې الله که ما دغه کارستادرضا دپاره کړې وی. نو زمونږ نه دا مصيبت لرے کړه. چه مونږ په کښې ګيريو. چه د غار په خوله کښې) دا ګټ دے. چه هغه خپل دا نيك عمل الله تعالى ته وسيله کړو.نوګټ دغار دخولے نه اخوا شو.خو دومره نه وو اخوا شوې چه دوی ترے نه بهرته راوتلې وے.

**قوله**: قَالَ الثَّانِي: إِنَّهُ كَانَتْ لِي بِنْتُ عَمٍّ أُحِبُّهَا كَأَشَدِّ مَا يُحِبُّ الرِّجَالُ النِّسَاءَ:

**د زنا څخه پرهيز کول** : ② دويم اووئيل. اې الله زما د تره لور وه. چه په ټولو خلقو کښې زما زياته خوښه وه. او په يو روايت کښې دی. چه زما هغه دومره زياته خوښه وه. لکه څنګه چه د ټولو نه زياته مينه سړی د ښځو سره کوی. نو ما د هغې د نفس اراده اوکړه چه زنا ورسره اوکړم. او خپل خواهش پوره کړم خو هغه د دې کار نه) منع شوه او خپل ځان ئے زما نه بچ کړو) تر دې چه يو کال په هغې باندې قحط راغې. او ډيره تنګه شوه. نو هغه ما ته د روپو غوښتلو دپاره راغله. ما ورته شپږ شلے روپئ په دې شرط ور کړې. چه زه او هغه به د زنا او بدفعلئ کولو دپاره ځان له کيږو. هغه مجبوره وه. او مجبوری په انسان هره لوبه کوی. نو غاړه ئے کيخودله او هم داسې ئے اوکړل. چه ما سره ځان له شوه کله چه ما په هغې باندې ښه قدرت بيا موندو. چه خپل خواهش ترے نه پوره کړم او نفس خوشحاله کړم او په يو روايت کښې داسې دی. چه کله زه د هغې د دواړه پښو په مينځ کښې کيناستم. نو عين په دغه موقع کښې راته هغې او وئيل د الله نه او يريږه. په ناحقه زما د بکارت اوفرج مهر مه ماتوه. او زنا راسره مه کوه څکه ما سره دا کار کول د خاوند حق دےاو ته زما خاوند نه ئې نو چه ته ماسره دا کار کوې دا ښکاره زنا ده نو زه د هغې نه منع شوم. او داسې هم نه وه. چه په دغه وخت کښې ما په هغې کښې څه عيب او نقص اوليدو او د هغې د وجې مے ترے نه زړه مات شو. بلکه هغه ما ته په دغه وخت کښې هم د ټولو خلقو نه زياته خوښه وه. او زياتی مے ورسره دا احسان اوکړو. چه کوم شپږ شلے د سرو زرو ديناروته مے ورته ورکړی وو. هغه مے ورته پريخودل. اې الله که ما

دغه کار ستا درضا او ستا د يرے نه کړې وی. نو زمونږ نه دا مصيبت لرے کړه. په کوم کنبې چه مونږ بنديوان يو. او د غر نه دا ګټ لرے کړه چه کله هغه دا دعا اوکړه نو، د غه ګټ د دغې تلې خولے نه لرے شو. خو دومره نه وو. چه دوی په هغې د غار نه، بهرته راوتلی وے.

**قوله** اللَّهُمَّ إِنِّي كُنْتُ اسْتَأْجَرْتُ أَجِيرًا بِفَرَقِ أَرُزٍّ، فَلَمَّا قَضَى عَمَلَهُ قَالَ: أَعْطِنِي حَقِّي:

**دامانت خيال ساتل:** ③ دريم او وئيل. يا الله ما په مزدورئ مزدوران نيولی وو. او هغوی نه به مے مزدوری ورکوله. صرف يو سړې داسې وو. چه خپله مزدوری ئے پريخے وه. او تلے وو. نو ما د هغه مزدوری زياته کړه. تر دې چه د هغې نه ډير مالونه جوړ شو نو څه موده پس هغه ماته راغې او راته ئې او وئيل. اې د الله بنده ما ته زما مزدوری راکړه

**قوله** فَقُلْتُ: اذْهَبْ إِلَى ذَلِكَ الْبَقَرِ وَرَاعِيهَا:

**مزدوری ته دمختلفو څناورو رمې ورکول**:نو ما ورته او وئيل. ا ته چه څه اوښان غواګانې ګډے او مريان وينې. دا ټوله ستا مزدوری ده.هغه راته او وئيل. اې د الله بنده ما پورې ټوقې مه کوه. ما ورته او وئيل. زه په تا پورې ټوقے نه کوم. بلکه دا ټول هر څه هم ستا دی هغه دغه ټول هر څه واخستل. او شړل ئے. او په دغې کنبې ئې هيڅ څيز هم پرې نه خودو اې الله که ما دا کار ستا د رضا دپاره کړې وی. نو زمونږ نه هغه مصيبت لرے کړه. په کوم کنبې چه مونږ بنديوان يو. نو هغه ګټه لرے شوه. او هغوی د هغې غار نه رابهر شو. او په خپله لاره روان شو.

**[۴۹۳۹] دَ مورِدَ قدمونو لاندې جنت دې**

| ۴۹۳۹-()[۲۹] ① وَعَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ جَاهِمَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - ②«أَنَّ جَاهِمَةَ جَاءَ إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، ③ أَرَدْتُ أَنْ أَغْزُوَ وَقَدْ جِئْتُ أَسْتَشِيرُكَ، ④ فَقَالَ: هَلْ لَكَ مِنْ أُمٍّ؟ قَالَ: نَعَمْ. ⑤ قَالَ: فَالْزَمْهَا، فَإِنَّ الْجَنَّةَ عِنْدَ رِجْلِهَا»". رَوَاهُ أَحْمَدُ "، وَالنَّسَائِيُّ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ". |
|---|

**ترجمه:**①او د حضرت معاويه ابن جاهمه رضي الله عنه نه روايت دی، ② يوه ورځ حضرت جاهمه رضي الله عنه د حضور ﷺ په خدمت کې حاضر شو، عرض يې وکی، يارسول الله، ③ زه جهاد ته تلل غوارم. او دا وخت په دې سلسله کې تاسو ﷺ نه مشوره اخستو د پاره حاضر شوی يم، ④ حضور ﷺ ورته وفرمايل، آيا ستا مور ژوندی ده، هغه اوويل، هو، ⑤ نو حضور ﷺ ورته وفرمايل، بيا ته د هغه خدمت ضروري وګڼه، ځکه چې جنت د مور په قدمونو کې دی (احمد ، نسائي، بيهقي)

**حل اللغات:** - ① أَسْتَشِيرُكَ: مشوره درنه اخلم، ② الْزَمْهَا:ضروری اوګڼره خدمت دهغې.

[1]) اخرجه النسائى فى السنن كتاب الجهاد/باب: الرخصة فى التخلف لمن له والدة (رقم-۳۱۰۴) واحمد فى المسند:۴۲۹/۳

**تسهيلات:**

**قوله: فَإِنَّ الْجَنَّةَ عِنْدَ رِجْلِهَا:**

**الجنة عند رجلها مطلب او د يو وهم ازاله:** يعنې جنت دَ مور قدموسره خواكې دې. مطلب داچه هغې خدمت اوكړه هغه دَخدمت محتاجه ده بـل څوك ئې دَخدمت نشته دي دَهغې خدمت اوس ستا پـه ذمـه فرض عـين شـوې دې. دغـه صحابى لـره دَدې مخصوص احوال اودَدې مجبورو او ضرورتونو دَ وجې نـه نبي عليـه السـلام دَموردَخدمت دَپـاره مقرركړو اوپه جهادكښې دَوتلو ثواب هغه ته په دغه خدمت سره دَحاصليدو اشـاره ئې اوكړه دَدې حديث مطلب دانه دې چه دَ چامور موجود وى هغه به جهاد له نه ځى لكه بعضې حضرات چه دا وړاندې كوى. دا استدلال ځكه غلط دې چه صحابه كرام دَ زرګونو پـه تعداد كښې جهاد ته تلى دى نوولې دَ دغه ټولو ميندې مړې شوې وې نوځكه جائز شو؟ دَ الله تعالى نه اوويريږئى اودَ جهاد نه انكار مه كوئى.

**[۲۳۰] د مورپلارپه حكم ښځې ته دَطلاق وركولو حكم**

> ۴۳۰-()[۳۰۱] [۱] «وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا- قَالَ: كَانَتْ تَحْتِي امْرَأَةٌ أُحِبُّهَا، [۲] وَكَانَ عُمَرُ يَكْرَهُهَا، [۳] فَقَالَ لِي: طَلِّقْهَا، فَأَبَيْتُ، [۴] فَأَتَى عُمَرُ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَذَكَرَ ذَلِكَ لَهُ، [۵] فَقَالَ لِي رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- طَلِّقْهَا» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عمر رضي الله عنهما وايي، ځما نكاح كې يوه ښځه وه، چې ځما ډيره خوښه وه. [۲] ليكن ځما پلار حضرت عمر رضي الله عنه هغه نه خوخوله، [۳] نو هغوئ يوه ورځ ماته وويـل، چې ته دې ښځې ته طلاق وركړه ما انكار وكـى، [۴] بيا حضرت عمر رضي الله عنه د حضـور ﷺ پـه خـدمت كـې حاضـر شـو. او د دې خبـري ذكـر يـي ورسـره وكـى، [۵] نـو حـضور ﷺ ماتـه وفرمايل. چې هغه ښځي ته طلاق وركړه (ترمذي، ابوداود)

**تسهيلات:**

**قوله: فَقَالَ لِي: طَلِّقْهَا، فَأَبَيْتُ:**

**دعمر رضى الله خپل ځولې د ښځې د طلاق حكم كول:** حضرت عمر رضي الله عنه به دا نه خوښول حضرت عمر رضي الله عنه حكم وركړوچه دې ته طلاق وركړه. علماء كرام فرمائى چه دَ دې ښـځې نه به حضرت عمر رضي الله عنه ته تكليف رسيدلې وى او څه معقول وجه به وه په دې وجه حضرت عمر رضي الله عنه دَ طلاق اوفرمائيل او حضوراكرم ﷺ هم اوفرمائيل چه طلاق وركړه

**اشكال:** حضرت ابن عمر رضي الله عنهما دَخپل پلار خبره ولې اونه منله تردې چه حضرت عمر رضي الله عنه ته

---

[1]) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الأدب /باب فى بر الوالدين(رقم-۵۱۳۸) وابن ماجه فى كتاب النكاح/ هل تحد المرأة على غير زوجها (رقم-۲۰۸۵)

دَ حضور ﷺ په وړاندې دَ ویناکولو نوبت راغلو؟

**داشکال جواب:** حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه به په دې ترددکښې اخته وو چه یوطرف ته دَ پلار حکم بل طرف ته دَ طلاق مبغوض کیدو باره کښې دَ حضوراکرم ﷺ ارشادات. حضرت عمر فاروق رضی الله عنه چه په کوم حیثیت سره دَ طلاق وینا کوله هغه وجه دَهغه په نظرکښې دبی بی دَمحبت په وجه راوچته شوې وه خوچه کله حضور ﷺ اوفرمائیل نو بیانی زر طلاق ورکړو.

**دموریا پلار په حکم ښځې ته د طلاق ورکولو حکم:** ددې حدیث نه خو په ظاهره دا معلومه شوه. چه کله پلار یا مور خپل ځوی ته د ښځې د طلاق حکم اوکړی.نوهغه به ورته طلاق ورکوی.خو دا حکم عام نه دې. بلکه دا په هغه وخت کښې دې. چه ښځه ئې داسې وی.چه ددین په اعتبار سره په کښې کمے وی.او په وعظ او نصیحت سره هم هغه کمے نه پوره کیږی.او د خاوند په کښې دینی نقصان وی.لکه هغه ترې نه داسې مطالبے کوی.چه هغه د شریعت نه خلاف وی.یا په کښې داسې څه خویونه اوصفتونه وی.چه هغه په معاشره کښې دبدنامۍ سبب ګرځی.نو په دې صورت کښې خو ئې د خپل مور یا پلار په حکم خپلې ښځے ته طلاق ور کولې شی.

**بغیر څه شرعی عذره د طلاق ورکولوممانعت:** خو که بغیر د څه قصور او وجې نه ورسره د سخر خواخے طبیعت نه لګی.او په هغې کښې څه دینی کمزوری نه وی.او په کښې داسې عیب نه وی.چه هغه په معاشره کښې دسړی دبدنامۍ سبب ګرځی.نو په دې صورت کښې خاوند ته د دې اجازت نشته. چه دې د مور یا پلار په وینا سره خپلې بی بی ته طلاق ورکړی.او د دې مسئلے بیا د پښتنو په معاشره کښې ډیر خیال ساتل پکار دی.ځکه چه پښتانه د خپلې لور خور په طلاق ډیر خفه کیږی.ډیر کرتے د طلاق د وجې نه دښمنۍ جوړے شوی دی.نو په طلاق ورکولو کښې ډیر احتیاط پکار دې. او هسې هم په شریعت کښې طلاق ته ابغض المباحات وئیلے شوې دې. یعنی په مباحو کارونو کښې الله تعالی ته د ټولو نه ناخوښه څیز طلاق دې.

**دمذکوره حدیث توجیه:** باقی پاتې شو دا حدیث چه په دې کښې حضرت عمر رضی الله عنه د خپل ځو ئې نه د طلاق مطالبه کوله.او بیا نبی علیه السلام هم د حضرت عمر رضی الله عنه ملګرتیا اوکړه.او عبدالله ته ئې د ښځې د طلاق حکم ورکړو. نو خامخا به په هغې کښې داسې څه صفت وو.چه دهغې ښکاره کول په ښه نه وی.او د شریعت په نظر کښې به هغه بد ګڼرلے شو. ځکه ورته نبی علیه السلام د پلار د تابعدارۍ حکم ورکړو. که داسې نه وه. نو نبی علیه السلام خو په خپل امت مهربانه وو. دهغوی دپاره د امت یوه معمولی ښځه هم د قابل صد همدردۍ او رحم لائقه وه.نو په دې حدیث دې ځوك د خپل ځان دپاره د ښځے د

طلاق لار نه لټوي.(۱)

**[۳۹۳۱] اولاد دَپاره مور او پلار يا جنت دي يا دوزخ**

۴۹۳۱-(۲) [۳۱] [۱] وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - «أَنَّ رَجُلًا قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، [۲] مَا حَقُّ الْوَالِدَيْنِ عَلَى وَلَدِهِمَا؟ [۳] قَالَ: "هُمَا جَنَّتُكَ وَنَارُكَ» ". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابو امامه رضي الله عنه وايي، يو سړي عرض وکړو، چې يارسول الله، [۲] په اولاد باندې د مور پلار څه حق دی؟ [۳] حضور ﷺ ورته وفرمايل ستا مور پلار ستا د پاره جنت هم دی او دوزخ هم. (ابن ماجه)

**تسهيلات:**

**قوله: قَالَ: "هُمَا جَنَّتُكَ وَنَارُكَ:**

**مورپلار د اولاد جنت:** که چرې اولاد دَمورپلار دَ اطاعت حکم منلو او خوشحالولو پوره پوره خيال اوساتلو او هرقسم خدمت ئې اوکړو نودا والدين دَ اولاد دَ پاره جنت دې دَهغوی په رضاکنبې به اولاد ته جنت ملاويږي ګنې په بل صورت کنبې به هم دغه مورپلار دَ اولاد دَپاره دَ دوزخ او جهنم اور ثابت شي او اولاد به دوزخ ته اورسيږي

**[۴۹۳۲] دَمورپلار نافرمان څوک دهغوی د ناراضګئ وبال څنګه لرې کولې شي؟**

۴۹۳۲-(۳) [۳۲] [۱] وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - " [۲] «إِنَّ الْعَبْدَ لَيَمُوتُ وَالِدَاهُ أَوْ أَحَدُهُمَا [۳] وَإِنَّهُ لَهُمَا لَعَاقٌّ، [۴] فَلَا يَزَالُ يَدْعُو لَهُمَا وَيَسْتَغْفِرُ لَهُمَا [۵] حَتَّى يَكْتُبَهُ اللَّهُ بَارًّا» ".

**ترجمه:** [۱] حضرت انس رضي الله عنه وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل، [۲] هرکله چې د يو داسې سړي مور پلار مړه شي يا په دواړو کې يو مړشي، [۳] چې د هغوئ نافرماني يې کوله. [۴] او بيا د هغوئ د مرګ نه پس د هغوئ د پاره دعا او استغفار کوي [۵] نو الله ﷻ هغه نيکو کار ليکي

**حل اللغات:** - ① عَاقٌّ: د مور اوپلار نافرمان. ② بَارًّا: نيکوکار

**تسهيلات:**

**قوله: فَلَا يَزَالُ يَدْعُو لَهُمَا وَيَسْتَغْفِرُ لَهُمَا حَتَّى يَكْتُبَهُ اللَّهُ بَارًّا:**

**د مړو خفه مور پلار د راضي کولو طريقه:** يعنې دانافرمان څوئې به فرمانبردار اوليکلې شي. په دې حديث کنبې دَنافرمان بنده فرمانبردار جوړيدو ترتيب خودلې شوې دې هغه داسې چه مثلاً که دَ يو سړي مور پلار دَهغه نه خفه تلې دي اوس دَمرګ نه پس دغه سړي

(۱) بستان الصالحين)
(۲) اخرجه ابن ماجه في السنن كتاب الأدب/باب بر الوالدين (رقم-۳۶۶۲)
(۳) اخرجه البيهقي في شعب الايمان رقم ۷۹۰۲

له يكاردي چه هغه د خپل مورپلار دپاره په كثرت سره استغفار اوكړي ؛ هغوى دپاره دعاگانې اوغواړي دغه شان به داسې دنافرمانئى نه خارج شي بـه وينلى شـوى دي رحمت حق بہانہ می جوید گنى د مورپلار د مرگ نه پس دژوندى نافرمان خوئى دمعافئى تصور څوك كولې شي سبحان الله الله تعالى څومره مهربان دې

**قوله**: فَلَا يَزَالُ يَدْعُو لَهُمَا وَيَسْتَغْفِرُ لَهُمَا:

**دپلارقبر ته مسلسل دحاضريدو فائده**: بعضې علماؤ وئيلى دي كه يونافرمان خوئى د خپل پلار په قبرباندې مسلسل اووه جمعه پورې دجمعه په ورځ حاضريږى اودهغوى دپاره استغفار اودخان د پاره دعا غواړى نوالله تعالى به دا خوئى د مور پلار په فرمانبرداره اولادكښې شامل كړى

**[٣٣٣] د مورپلار اطاعت د الله اطاعت اودهغوى نافرمانى د الله نافرمانى ده**

> ٣٣٣—() [٣٣] [١] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - "[٢] «مَنْ أَصْبَحَ مُطِيعًا لِلَّهِ فِي وَالِدَيْهِ [٣] أَصْبَحَ لَهُ بَابَانِ مَفْتُوحَانِ مِنَ الْجَنَّةِ، [٤] وَإِنْ كَانَ وَاحِدًا فَوَاحِدًا، [٥] وَمَنْ أَمْسَى عَاصِيًا لِلَّهِ فِي وَالِدَيْهِ [٦] أَصْبَحَ لَهُ بَابَانِ مَفْتُوحَانِ مِنَ النَّارِ، [٧] إِنْ كَانَ وَاحِدًا فَوَاحِدًا" قَالَ رَجُلٌ: وَإِنْ ظَلَمَاهُ؟ [٨] قَالَ: "وَإِنْ ظَلَمَاهُ، وَإِنْ ظَلَمَاهُ، وَإِنْ ظَلَمَاهُ»".

**ترجمه**: [١] حضرت ابن عباس رضي الله عنهما وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] كوم سړى چې په داسې حالت كښې صبا كړى چې هغه د مور پلار په حق كښې د الله ﷻ فرمانبرداري كونكى وى (يعني هغه د مور پلار حقوق اداكولو سره د الله ﷻ د حكم اطاعت كړى وى [٣] نو هغه به په داسې حال كې صباكوي، چې د هغه د پاره د جنت دوه دروازې خلاصې وي. [٤] او كه د هغه مور پلار كې يو ژوندى وي، چې د هغه يې اطاعت او فرمانبرداري كړې ده، نويوه دروازه خلاصه وي. [٥] او كوم سړى چې په داسې حال كې صبا كړى. چې هغه د مور پلار په حق كې نافرمانى كوونكى وى (يعنى هغه د مور پلار د حقوق ادائيگى كې كوتاهي او تقصير كولو سره د الله ﷻ د حكم نافرماني كړي وه) [٦] نو هغه په داسې حال كې صباكوي، چې د هغه د پاره د دوزخ دوه دروازې خلاصې وي. [٧] او كه په مور پلار كې يوژوندى وي، چې د هغه يې نافرماني كړې وي، نو د هغه د پاره يوه دروازه خلاصه وي (په دې ارشاد اوريدو سره) يوسړې عرض وكړو. چې يارسول الله اگر كه مور پلار په هغه ظلم وكى، [٨] حضور ﷺ وفرمايل. هو اگر كه مور پلار په هغه ظلم كړى وي. اگر كه مور پلار په هغه ظلم كړى وي، اگر كه مور پلار په هغه ظلم كړى وي.

---

() اخرجه البيهقى فى شعب الايمان رقم ٧٩١٦

**تسهیلات:**

**قوله: لله:** ونیلو کښې اشاره ده چه د والدینو خدمت کول دا د الله تعالي حکم دي په دې وجه چه د والدینو خدمت سره په رزق کښې د برکت راځی نو په دې نیت او غرض سره د هغوی خدمت نه دی کول پکار بلکه د الله د حکم په وجه د والدینو اطاعت پکار دې او لا طاعة لمخلوق من معصیة الخالق په وجه سره په جائز امورو کښې اطاعت کول پکار دی خو په ناجائزو کښې نه دی کول پکار د دواړو دروازو ذکر کول د فرمانبردار اولاد د عزت افزائي د پاره دی ګني جنت ته د دخول د پاره خو یوه دروازه هم کافي ده د دې نه معلوم شوه چه د مور خدمت ځان له دي او د پلار خدمت ځان له دي او ممکنه ده چه په دواړو دروازو کښې د درجاتو هم فرق وی.

**قوله: وان ظلماه:** نبي علیه السلام دا جمله درې ځلې اوئیله په دې کښې د والدینو د اطاعت او د فرمانبرداري اهمیت ښکاره کوی او د هغوی د حقوقو د ادا کولو تاکید ئې ډیر زیات په شدت سره بیانول مقصد دي ظلم نه مراد دنیاوی نا انصافي ده دیني ګناه مراد نه ده مثلا یو پلار د خپل اولاد کښې د یو سره د لرې مینې کولو د وجه نه په هغه باندې بل بچی ته ترجیح ورکوی یا د څه حق نه ئې محرومه کوی نو دا مظلوم ځوي بیا هم د خپل پلار د خدمت نه بې پرواه کیدې نشی.

**[۴۹۴۳] مور پلار ته د رحمت په نظر سره کتل د قبول شوی حج ثواب لری**

۴۹۴۳-(۱)[۳۰] ۞ وَعَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: "۞ «مَا مِنْ وَلَدٍ بَارٍّ يَنْظُرُ إِلَى وَالِدَيْهِ نَظْرَةَ رَحْمَةٍ ۞ إِلَّا كَتَبَ اللَّهُ لَهُ بِكُلِّ نَظْرَةٍ حَجَّةً مَبْرُورَةً". ۞ قَالُوا: وَإِنْ نَظَرَ كُلَّ يَوْمٍ مِائَةَ مَرَّةٍ؟ ۞ قَالَ: "نَعَمْ، اللَّهُ أَكْبَرُ وَأَطْيَبُ»".

**توجمه:** ۞ او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما وایي، چې رسول الله ﷺ وفرمایل. ۞ چې د مور پلار سره نیکي کونکی کوم هلك چې خپل پلار یا مورته د محبت او احترام په نظر وګوري. ۞ نو الله ﷻ د هغه د هر نظر په بدله کې د یو مقبول نفلي حج ثواب لیکي. ۞ صحابه رضي الله عنهم عرض وکړو. یا رسول الله. اګر که په ورځ کې سل ځله ورته وګوري. ۞ حضور ﷺ وفرمایل هو. الله ﷻ ډیر لوی او ډیر پاك دی یعنی ستاسو په ګمان کې چې داخبره ده چې د هر نظر په بدله کې د یو مقبول نفلي حج ثواب څرنګه لیکل کیږي. (نو دا اجر او انعام د الله ﷻ د شان او وسعت رحمت د نسبت نه هیڅ هم لرې نه دی، که هغه وغواړي، نو د دې نه لوی اجر ورکولې شي)

**حل اللغات:** - ① بَارٌّ: نیکی کونکې. ② مَبْرُورَةً: مقبول.

---

(۱) اخرجه البیهقي في شعب الایمان رقم ۷۸۵۶

**تسهیلات:**

**قوله: قَالُوا: وَإِنْ نَظَرَ كُلَّ يَوْمٍ مِائَةَ مَرَّةٍ:**

**دصحابه کرامو د تپوس کولو وجه:** دا حدیث نبي علیه السلام د خلقو دَ حیرانتیالري کولو دپاره بیان کړې دې خلق حیران شو چه کله چرې په یو نظر د شفقت سره دَ یو حج ثواب ملاویږی نو که یو سړې سل ځل دَ شفقت په نظرسره مورپلار ته ګوری نو دَ سل قبول شوو حجونو ثواب به ملاویږی نبي علیه السلام اوفرمائیل د الله تعالی رحمت وسیع دې هلته هیڅ تنګی نشته دې. علماؤ لیکلی دی چه په دې نظر دَ شفقت سره دَ قبول شوی حج اصل ثواب ملاویږی زیاتی ثواب خو به هم هغه سړی ته ملاویږی چه محنت اوکړی اوحج له لاړشی خرچ هم اوکړی او وخت هم ورکړی اومشقت هم اوچت کړی

**[۴۳۵] دَ مورپلار دَ نافرمانئ سزا په دنیا کښې هم ملاویږی**

۴۳۵-()[۳۵] ① وَعَنْ أَبِي بَكْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- "② «كُلُّ الذُّنُوبِ يَغْفِرُ اللَّهُ مِنْهَا مَا يَشَاءُ إِلَّا عُقُوقَ الْوَالِدَيْنِ، ③ فَإِنَّهُ يُعَجِّلُ لِصَاحِبِهِ فِي الْحَيَاةِ قَبْلَ الْمَمَاتِ» ".

**ترجمه:** ① او حضرت ابوبکره ﷺ وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمایل، ② د شرک نه علاوه ټول ګناهونه داسې دي، چې الله ﷻ په هغه کې څومره غواړي بخښي، خو د مور پلار د نافرماني کونکي ګناه نه بخښي، ③ بلکې الله ﷻ د مور پلار نافرماني کونکي ته د مرګ نه مخکې د هغه په ژوند کې سزا ورکوي.

**حل اللغات:** - ① عُقُوقَ: نافرمانی د مور اوپلار.

**تسهیلات:**

**قوله: فَإِنَّهُ يُعَجِّلُ لِصَاحِبِهِ فِي الْحَيَاةِ قَبْلَ الْمَمَاتِ:**

**د حدیث دوه مطلبونه:** ① دَ حدیث مطلب دادې چه کوم سړې دَ مورپلار دَ نافرمانئ ګناه کوی نو الله تعالی په دې دنیاکښې دَمرګ نه مخکښې هغه ته سزا ورکوی ② دَدې حدیث مطلب داهم کیدې شی چه دَمورپلار په ژوند کښې الله تعالی هغه سړې په عذاب کښې راګیرکړی او مورپلار ورته ګوری. دواړه احتمالات دی او دَ آخرت سزا به په خپل ځائی وی. لکه چه په دې حدیث کښې اعلان دې چه مور پلار ته کوم سړی هم تکلیف اورسولو دَهغه سړی سزا نقد وی هغه به هم په دنیاکښې سزا خوری.

---

۱) اخرجه البیهقی فی شعب الایمان رقم ۷۸۹۰

**چې څه کرې هغه به ریبي:** چنانچه یوه قصه لیکلې شوې کتلې ده چه یوځوئی خپل بوډا پـلار پـه سمندر کـښې د غورزولـو دپـاره کلـه غـاړې تـه راؤرسـیدو اوهغـه ئـی غـورزول غوښتل نو پلار ئی په خندا شو ځوئی د خندا د وجې تپوس اوکړو نوپلار ئـی وئیـل ماتـه په دې باندې خندا راغله چه ما هم خپل پلار هم د دې ځائی نه سمندر کښې غـورزولې وو لیکن تا زه یوځو قدمه وړاندې د هغه ځائی نه راوړلې یم پـه دې خنـدا راغلـه چـه تاسره به څه کیږي ما چه څه کړی دی او ما سره څه اوشو نوما اولیدل

**[۴۹۳۶] مشر رور په شان د پلار وی**

۴۹۳۶- ( )[۳۶] ① وَعَنْ سَعِيدِ بْنِ الْعَاصِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "② «حَقُّ كَبِيرِ الْإِخْوَةِ عَلَى صَغِيرِهِمْ حَقُّ الْوَالِدِ عَلَى وَلَدِهِ» ". ③ رَوَى الْبَيْهَقِيُّ الْأَحَادِيثَ الْخَمْسَةَ فِي " شُعَبِ الْإِيمَانِ ".

**ترجمه:** ① او حضرت سعید بن العاص رضی الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② په کشرانو وروڼو د مشر ورور هغه حق دی کوم چې پـه ځوی د هغـه د پـلار وي. ③ داپنځـه روایتونـه بیهقي رحمه الله په شعب الایمان کې نقل کړی دی

**تسهیلات:**

**قوله: حَقُّ كَبِيرِ الْإِخْوَةِ عَلَى صَغِيرِهِمْ:**

**دمشر وررو په کشر ورور لکه د پلار حق:** د عامو خلقو خیال وی چه رور خو بس رور وی کـه هغه مشر وی اوکه کشر وی په دې حدیث کښې نبي علیـه السـلام اوخودل چـه دمشـر رور احتـرام او اکـرام داسـې دې لکـه چـه د پـلار وی کـه چـرې پـلار مړشـی نـو مـشـر رور د کشـرانو دپاره شـفقت اورحمت اوهمـدردئی کـښې د پـلار پـه شـان کیـدل پکـاردی او پـه کشـرانو باندې لازم دی چه هغوی دې مشر رور د پلار په شان اوګنړی

(۱) اخرجه البیهقی فی شعب الایمان رقم ۷۹۲۹

# [۱۵]بَابُ الشَّفَقَةِ وَالرَّحْمَةِ عَلَى الْخَلْقِ]

## په مخلوق خدا باندې دَشفقت او رحمت بيان

**خلاصة الباب:**

**فيه خمسة وخمسون حديثاً مشتملة على سبع مسائل:**

① الزجر لمن لا يرحم: ۱، ۲، ۱۶، ۱۷، ۲۲، ۲۴، ۳۷، ۴۵، ۴۶، ۴۹، ۵۳۔

② الترغيب في الترحم على الناس: ۳، ۴، ۵، ۶، ۷، ۸، ۹، ۱۰، ۱۱، ۱۲، ۱۳، ۱۴، ۱۵، ۲۰، ۲۱، ۲۲، ۲۳، ۲۵، ۲۶، ۲۷، ۲۸، ۲۹، ۳۲، ۴۱، ۴۳، ۴۴، ۴۷، ۴۸، ۵۰، ۵۱، ۵۲، ۵۴۔

③ تخصيص من يليق لهم الرحم: ۲، ۳، ۴، ۵، ۶، ۱۰، ۱۱، ۱۸، ۲۴، ۲۵، ۲۶، ۲۷، ۲۸، ۲۹، ۳۲، ۳۳، ۴۱، ۴۴، ۴۵، ۴۶، ۴۸، ۵۴، ۵۵۔

④ تحريم تحزين المسلم: ۱۹۔

⑤ الترغيب في تأديب الأولاد: ۳۰، ۳۱، وهذا من قبيل الشفقة۔

⑥ المدافعة عن المؤمنين: ۳۴، ۳۵، ۳۶، ۳۷، ۳۹، ۴۰۔

⑦ الستر على المؤمنين: ۱۲، ۳۸، هذا من قبيل الرحمة۔

**دشفقة لغوى معنى:** د شفقت معنى مهربانى او د اشفاق معنى د مهربانئ په وجه د يو سړى يا يو څيز متعلق ويره كول اود دې په صله كښې (على) راځى
د لغت امام جوهرى فرمائى چې نرمى والى اومهربانئ ته وائى.

**د رحمت په تعريف دوه اقوال::**

① ((الرحمة هى رقة تقتضى الإحسان إلى المرحوم)) يعنى رحمت هغه نرم والى دې چې زړه په چا باندې نرم شى نوهغه ته خير رسول غواړى.

② ((الرحمة هى رقة فى النفس تبعث على سوق الخير لمن تتعدى إليه)) يعنى رحمت د نفس هغه نرموالې دې چې په چا باندې دا نرموالې راشى نوهغه ته خير رسول غواړى

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۴۹۴۷]څوک چه په خلقو رحم نه کوى الله تعالى په هغه رحم نه کوى**

۴۹۴۷-()[۱] ① عَنْ جَرِيرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- "②«لَا يَرْحَمُ اللهُ مَنْ لَا يَرْحَمُ النَّاسَ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

[۱]) اخرجه البخارى فى كتاب التوحيد/باب قول الله تبارك وتعالى: {قل ادعوا الله أو ادعوا الرحمن أيا ما تدعوا فله الأسماء الحسنى} [الإسراء: ۱۱۰] (رقم-۷۳۷۶) ومسلم فى كتاب الفضائل/باب رحمته صلى الله عليه وسلم الصبيان والعيال وتواضعه وفضل ذلك (رقم-۶۶ - (۲۳۱۹) والترمذى فى كتاب البر والصلة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى رحمة المسلمين (رقم-۱۹۲۲) وابن ماجه فى كتاب الأدب/باب بر الوالد، والإحسان إلى البنات (رقم-۳۶۶۵)واحمد فى المسند: ۳۵۸/۴

**ترجمه**: [۱] حضرت جرير بن عبد الله رضي الله عنه وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل. [۲] الله تعالى په هغه سړي رحم نه کوي، يعنې هغه د خپل خاص او کامل رحمت مستحق نه ګرځوي، کوم چې په خلقو باندې رحم نه کوي (بخاري، مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله: لَا يَرْحَمُ اللهُ مَنْ لَا يَرْحَمُ النَّاسَ:**

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې دوه احتمالات:** ① ملا علي قاري فرمائي چه د حديث ظاهر څخه معلوميږي چه دا إخبار دې يعنې نبي عليه السلام خپل امت ته خبر ورکوی چې څوک چې په خلقو باندې رحم نه کوی نو الله تعالى په هغه باندې هم رحم نه کوی دامام طيبي رحمه الله د قول مطابق دا احتمال په حقيقت محمول دی

② دا جمله بد دعائيه ده په دې صورت کښې معنې دا ده چه په رحمت کامله باندې به دې نه کاميابيږی او نه به په سابقين اولين مسلمانانو کښې دده شمار کيږی. دامام طيبي رحمه الله د قول مطابق دا احتمال په مجاز محمول دی.

**[۴۹۳۸] ماشوما نو سره مينه کول رحمت دې**

۴۹۳۸ - (۱) [۲] [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهَا - قَالَتْ: [۲] «جَاءَ أَعْرَابِيٌّ إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: [۳] أَتُقَبِّلُونَ الصِّبْيَانَ؟ فَمَا نُقَبِّلُهُمْ، [۴] فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - "أَوَأَمْلِكُ لَكَ أَنْ نَزَعَ اللهُ مِنْ قَلْبِكَ الرَّحْمَةَ؟» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: [۱] او بی بی عائشه رضي الله عنها وايي، [۲] يوه ورځ د رسول الله ﷺ په خدمت کښې يو باندچي (کليوال، باندچي (کليوال)) حاضر شو (او کوم وخت چې هغه صحابه رضي الله عنهم وليدل. چې صحابه رضي الله عنهم بچي مچوي او مينه ورسره کوي) [۳] نو هغه ووېل، آيا تاسو خلق بچي خکلوي مونږ خو بچي نه خکلوو. [۴] رسول الله ﷺ (په دې اوريدو سره) ورته وفرمايل. آيا زما په وس کښې دا خبره ده چې الله تعالى ستا د زړه نه کوم رحم او شفقت ويستلی دی. هغه راوګرځوم؟ (بخاري، مسلم)

**حل اللغات**: - ① أَتُقَبِّلُونَ: آيا ته ښکلوې، مچې کوې. ② نَزَعَ: ويستلې دې.

**تسهيلات:**

**قوله: أَتُقَبِّلُونَ الصِّبْيَانَ؟ فَمَا نُقَبِّلُهُمْ:**

**د ماشومانو د ښکلولو استحسان:** ماشومان ښکلول د رب ﻩ رحمت اثر دې نو چه کله الله

---

[۱]) اخرجه البخاري في كتاب الأدب/باب رحمة الولد وتقبيله ومعانقته (رقم-۵۹۹۸) ومسلم في كتاب الفضائل/باب رحمته صلى الله عليه وسلم الصبيان والعيال وتواضعه وفضل ذلك (رقم-۶۴ - (۲۳۱۷) وابن ماجه في كتاب الأدب/باب بر الوالد، والإحسان إلى البنات (رقم-۳۶۶۵)

تعالي ستا زړه د رحمت او شفقت نه خالي کړي دي نو دا خبره خو زما په وس کښې نه ده چه ستا په زړه کښې د اولاد مینه واچوم دا معني به په هغه صورت کښې وی چه کله ان نزع کښې په همزه باندې فتحه اووئیلی شي او که د ان نزع په همزه باندي کسره اووئیلي شي نو بیا به معني دا وی چه زه څه کولي شم چه کله الله تعالي ستا د زړه نه د رحم جذبه ویستلی ده دواړو صورتونو کښې مطلب یو دي خو د إعراب فرق دي

**[۴۷۳۹] دَ جینکو دَ پالنې خاص فضیلت**

۴۷۳۹-()[۳] [۱] وَعَنْهَا، قَالَتْ: «جَاءَتْنِي امْرَأَةٌ وَمَعَهَا ابْنَتَانِ لَهَا تَسْأَلُنِي، [۲] فَلَمْ تَجِدْ عِنْدِي غَيْرَ تَمْرَةٍ وَاحِدَةٍ، فَأَعْطَيْتُهَا إِيَّاهَا، [۳] فَقَسَمَتْهَا بَيْنَ ابْنَتَيْهَا، [۴] وَلَمْ تَأْكُلْ مِنْهَا، ثُمَّ قَامَتْ فَخَرَجَتْ، [۵] فَدَخَلَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَحَدَّثْتُهُ، [۶] فَقَالَ: "مَنِ ابْتُلِيَ مِنْ هَذِهِ الْبَنَاتِ بِشَيْءٍ فَأَحْسَنَ إِلَيْهِنَّ [۷] كُنَّ لَهُ سِتْرًا مِنَ النَّارِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او بي بي عائشه رضي الله عنها وایي، یوه ورځ ماته یوه ښځه راغله. هغې سره د هغه دوه وړې لوڼه هم وي، هغه زما نه سوال وکی یعنی زما نه یي څه وغوښتل [۲] لیکن هغه وخت زما سره د یوي خرما نه علاوه بل هیڅ نه وه، ماهغه یوه خرما هغې ته ورکړه. [۳] نو هغې هغه خرما دوه ټکړې کړه. او په دواړو لوڼو کې نیمه نیمه تقسیم کړه. [۴] او خپله یي هیڅ ونه خوړل بیا واپس ولاړه او ووتله. [۵] په دي کې رسول الله ﷺ کورته تشریف راوړی. ماورته د هغه ښځي واقعه بیان کړه، [۶] نو حضور ﷺ وفرمایل. څوك چې د خپلي یوي یا دوو یا زیاتو لوڼو په وجه ابتلاء او آزمائش کې واچول شي، او هغه هغه لوڼو سره احسان او نیك سلوك وکی، [۷] نو هغه لوڼو سره نیکي به د هغه د پاره د دوزخ د اور نه پرده جوړه شي (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** - ① سِتْرًا: پرده

**تسهیلات:**

**قوله:** مَنِ ابْتُلِيَ مِنْ هَذِهِ الْبَنَاتِ بِشَيْءٍ فَأَحْسَنَ إِلَيْهِنَّ..الخ:

**دجینکو په تربیت د فضیلت وجه:** جینکو سره متعلق دَدې فضیلت وجه داده چه جینکۍ لوئی شي نودَ نورو خدمت کوی دَمور پلار په کارراځی لکه چه مورپلار پنځلس شل کالو پورې دا اوپالی نودَ نورودَ فائدې دَ پاره ئی پالی دا صرف همدردی رحمت اوشفقت دې هیڅ دنیاوی اغراض او مقاصد ئی مقصود نه وی په دې وجه دَ جینکوپه پاللودا ثواب ملاویږی پاتې شو هلکان نو دَهغوی په پاللو کښې دنیاوی مقاصد وی چه هغوی

---

[۱] اخرجه البخاری رقم ۵۹۹۵ ومسلم فی کتاب البر والصلة والآداب/باب فضل الإحسان إلى البنات (رقم-۱۴۷ - ۲۶۲۹) والترمذی فی کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی النفقة على البنات والأخوات (رقم-۱۹۱۵) وابن ماجه فی کتاب الأدب/باب بر الوالد، والإحسان إلى البنات (رقم-۳۶۶۸) واحمد فی المسند:۳۳/۶

لونی شی نود پلار کار په خپله کوی په دې وجه دهغوی په پاللو باندې دا ثواب نه ملاویږی او په کومو علاقو کښې چه جینکۍ خرڅولې شی او پیسې اخستې شی کیدې شی چه هلته دا ثواب نه ملاویږی بلکه برعکس عذاب به وی د شریعت د اصولو تعلیم هم داشان معلومیږی

**د جینکو په پیدائش د امتحان د اطلاق وجه**: په دې حدیث کښې د جینکو پیدائش امتحان او ازمینښت ګرځولې شوې دې لهذا دا ثواب جینکو سره خاص دې او صرف دهغوی په پالنه به دا ثواب ملاویږی دلته چه دا واقعه اوکتلې شی اود مور شفقت اورحمت ته اوکتلې شی چه پخپله هیڅ نه خوری لیکن په لونړو باندې خوراك کوی دا د الله تعالی د رحمت یو نظاره ده. د الله تعالی د سلو رحمتونو نه صرف یو رحمت په دنیاکښې اثر ښائی د باقی رحمتونو ښکاره کیدل به په قیامت کښې کیږی

**[٤٩٥٠] د لونړو د پرورش فضیلت**

٤٩٥٠-() [٣] [١] وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [٢] «مَنْ عَالَ جَارِيَتَيْنِ حَتَّى تَبْلُغَا [٣] جَاءَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَنَا وَهُوَ هَكَذَا، [٤] وَضَمَّ أَصَابِعَهُ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: [١] او حضرت انس ﷺ وایي، چې رسول الله ﷺ وفرمایل. [٢] کوم سړی چې د خپلو دوو لونړو پرورش او نګراني وکړي، تردې چې هغه د بلوغ حد ته ورسي (یا د واده نه پس خپل خاوند ته لاړې شي) [٣] نو هغه سړی به د قیامت په ورځ داسې راځي چې زه او هغه به یو بل ته داسې نزدې یو، [٤] په دې ویلو سره حضور ﷺ خپلې ګوتې یوځای کولو سره وخودل (مسلم)

**حل اللغات**: - ① عَالَ: پرورش اوکړی. ② جَارِيَتَيْنِ: د دوه جینکو. ③ تَبْلُغَا: اورسیږی حد دبلوغ ته. بالغې شی ④ ضَمَّ: یوځای کړې. جختې ئې کړې.

**تسهیلات**:

**قوله: أَنَا وَهُوَ هَكَذَا، وَضَمَّ أَصَابِعَهُ**:

**جنت کښې نبی علیه السلام سره د یوځائې کیدو په مفهوم کښې دوه اقوال**:

① په دې حدیث کښې د لونړو پرورش په خوشحالئ سره کول مراد دی نبي علیه السلام خپل او د والدینو په مینځ کښې کمال قرب او اتصال ظاهرولو د پاره د شهادت او مینځنې ګوته په خپلو کښې یوځای کړه او وي فرمائیل چه تاسو دا ګوتې څنګه د یو بل سره یوځائې وینئ نو هم دغه شان به د قیامت په ورځ زه او د دوؤ شومانو پرورش

[1] اخرجه مسلم فی کتاب البر والصلة والآداب/باب فضل الإحسان إلى البنات (رقم-١٤٩ - (٢٦٣١) والترمذی فی کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی النفقة علی البنات والأخوات (رقم-١٩١٤)

کونکی والدین یو بل سره نیزدي یو او په محشر کښې به هم مونږ یوځائې یو
② دویم مطلب دا هم کیدې شی چه هغوی به د قیامت په ورځ زما سره جنت ته داخلیږی.

**[۴۹۵۱] د کونډو او مسکینانو د خدمت ثواب**

۴۹۵۱-(¹)[۵] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- "[۲]«السَّاعِي عَلَى الْأَرْمَلَةِ وَالْمِسْكِينِ كَالسَّاعِي فِي سَبِيلِ اللَّهِ[۳] وَأَحْسَبُهُ قَالَ: كَالْقَائِمِ لَا يَفْتُرُ وَكَالصَّائِمِ لَا يُفْطِرُ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهریره ﷛ وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمایل. [۲] د کونډي ښځي او مسکیني خبر ګیري کونکی د هغه سړي په شان دی چې د الله په لار کې سعي کوي، یعنی کوم سړی چې د کونډي ښځي او مسکیني خبر ګیري کوي، او د هغوئ ضروریات پوره کولو سره د هغوئ سره حسن سلوك کوئ، نو د هغه ثواب د هغه برابردی. کوم چې د الله په لار کې جهاد کونکی او حج کونکي ته حاصلیږي. [۳] او ځما ګمان دی چې هغوئ داهم وفرمایل چې د کونډي ښځي او مسکیني خبرګیري کونکی د هغه سړي په شان دی، چې مونځ او عبادت د پاره شب بیداري کوي، او خپلي شب بیداري کې نه څه سستي کوي، او نه څه فتور او نقصان ګواراکوي، او د هغه سړي په شان دي چې د ورځي کله افطار نه کوي، چې صائم الدهر ورته وئیل کېږي. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** - ① السَّاعِي: کوشش کونکې، خبرګیری کونکې، ② الْأَرْمَلَةِ: کنډه ښځه. ③ لَا يَفْتُرُ: نقصان نه کوی،

**تسهیلات:**

**قوله:** السَّاعِي عَلَى الْأَرْمَلَةِ وَالْمِسْكِينِ كَالسَّاعِي فِي سَبِيلِ اللَّهِ:

**په کونډو د صدقې کونکو ثواب:** ارمله که فقیره وی نو ساعی د هغې خرچه هم اوکړی او د هغې ساتنه هم اوکړی او که ارمله غني وی نو ساعی به د هغې ساتنه اوکړی لهذا د داسي ساعی ثواب د مجاهد في سبیل الله سره برابر دي

**قوله:** .وَأَحْسَبُهُ قَالَ: "كَالْقَائِمِ لَا يَفْتُرُ وَكَالصَّائِمِ لَا يُفْطِرُ:

**داحسبه په قائل کښې درې احتمالات:** ① بعضې حضراتو د دې قائل عبد الله بن سلمه خودلې دې کوم چې د بخاری او مسلم شیخ دې او د دې حدیث روایت کونکې دې او هغوی د امام مالک نه روایت کړې دې. د دې خبر صراحت امام بخاری کړې ده. په دې الفاظ سره حضرت عبد الله بن سلمه مطلب دا دې چه زما ګمان دا دې چه د دې حدیث

¹) اخرجه البخاری فی کتاب الأدب/باب الساعی علی المسکین (رقم-۶۰۰۷) ومسلم فی کتاب الزهد والرقائق/باب الإحسان إلى الأرملة والمسكين واليتيم (رقم-۴۱ - (۲۹۸۲) والترمذی فی کتاب المناسک، باب موضع الوقوف بعرفة (رقم-۱۹۱۹) والنسائی فی کتاب الزکاة/باب فضل الساعی علی الأرملة (رقم-۲۵۷۷) وابن ماجه فی کتاب التجارات /باب الحث علی المکاسب (رقم-۲۱۴۰) واحمد فی المسند: ۳۶۱/۲

اصل راوی امام مالک دا الفاظ ''كالقائم لايفتر'' نقل كړي دي

② که د بخاری مذکوره صراحت نه وی نو د مصابیح او د مشکات د ظاهری الفاظو نه معلومیږی چه دا جمله د ابو هریره دی او حضرت ابو هریره په دې جملې سره دا بیان کول غواړی چه زما په گمان نبی علیه السلام كالقائم الفاظ وئیلی دی

③ په دې کښې د راوی شک وی چه نبی علیه السلام كالساعى فى سبيل الله الفاظ وئیلی دی او که كالقائم لايفتر الفاظ ئې وئیلی دی چنانچه د جامع الصغیر دیو روایت څخه هم د دې تائید کوی کیږی چه هغه امام احمد ، شیخین، امام ترمذی او ابن ماجه نقل کړی دی دهغې الفاظ داسې دی الساعى على الأرملة والمساكين كالمجاهد فى سبيل الله والقائم الليل الصائم النهار

## [۴۹۵۲] دَ یتیم دَ پرورش ثواب

۴۹۵۲-(۱)[۶] [۱] وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-"[۲]«أَنَا وَكَافِلُ الْيَتِيمِ لَهُ وَلِغَيْرِهِ، فِي الْجَنَّةِ هَكَذَا"[۳] وَأَشَارَ بِالسَّبَّابَةِ وَالْوُسْطَى[۴] وَفَرَّجَ بَيْنَهُمَا شَيْئًا». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت سهل ابن سعد رضی الله عنه وايي، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل [۲] زه او د يتيم پرورش کونکي که هغه يتيم د هغه وي، يا د بل چا، په جنت کې داسې يوځای يو.
[۳] په دې ويلو سره حضور صلی الله علیه وسلم د شهادت گوتي او درمياني گوتي په ذريعه اشاره وکړه.
[۴] او د دواړو په منځ کې يې لږ شان کشادگي وساتله. (بخاري)

**حل اللغات:** - ① كَافِلُ: کفالت کونکې، ② السَّبَّابَةِ: مسواکه گوته، دشهادت گوته.

**تسهيلات:**

**قوله** أَنَا وَكَافِلُ الْيَتِيمِ لَهُ وَلِغَيْرِهِ، فِي الْجَنَّةِ هَكَذَا:

**ديتيم ددرې اطلاقات:** ① يتيم هغه نابالغ هلک او جينئ ته وائی چه د هغوی والد وفات شوي وی

② په څناورو کښې يتيم هغه وړوکی بچی ته وئيلي کيږی چه د هغې مور مړه شوي وی

③ موتی (ملغلره) هغه يتيم چه په خپله سیپئ کښې يواځي وی

**په حديث کښې د يتيم څخه مراد:** دلته د يتيم نه مراد انسان دي. د دي نه معلومه شوه چه د مطلق يتيم د کفالت او پرورش کولو فضيلت دي که هغه قريبي وی او که قريبي نه وی

۱) اخرجه البخاری فی کتاب الأدب/باب فضل من يعول يتيمًا (رقم-۶۰۰۵) ومسلم فی کتاب الزهد والرقائق/باب الإحسان إلى الأرملة والمسكين واليتيم (رقم-۴۲ - (۲۹۸۳) وابوداود فی کتاب الأدب/باب فی من ضم اليتيم (رقم-۵۱۵۰) والترمذی فی کتاب المناسک. باب الخطبة على المنبر بعرفة (رقم-۱۹۱۸) ومالک فی الموطا کتاب الشعر باب السنة فی الشعر (رقم-۵) واحمد فی المسند: ۳۷۵/۲

قوله: وَأَشَارَ بِالسَّبَّابَةِ وَالْوُسْطَى وَفَرَّجَ بَيْنَهُمَا شَيْئًا:

**نبی علیه السلام سره نزدیکت**: بیا نبي علیه السلام د شهادت او مینځني ګوتي سره اشاره اوکړه چه جنت کښې به زما او د یتیم پرورش کونکی په مینځ کښې به دومره قریبي علاقه او تعلق وی چه څومره د دي ګوتو په مینځ کښې دي. دارنګ دي طرف ته هم اشاره ده چه د نبوت مرتبه چه هغه د ټولو نه اعلي درجه ده د هغې او د سخاوت په مینځ کښې څه ډیره فاصله نشته.

**[۴۹۵۳] ټول مسلمانان دَ یو بدن په شان دی**

۴۹۵۳-()[۷] ۱ وَعَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ-رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "۲ «تَرَى الْمُؤْمِنِينَ فِي تَرَاحُمِهِمْ وَتَوَادِّهِمْ وَتَعَاطُفِهِمْ ۴ كَمَثَلِ الْجَسَدِ الْوَاحِدِ ۵ إِذَا اشْتَكَى عُضْوٌ تَدَاعَى لَهُ سَائِرُ الْجَسَدِ بِالسَّهَرِ وَالْحُمَّى» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: ۱ او حضرت نعمان ابن بشیر ﷺ وایي، چې رسول الله ﷺ وفرمایل، ۲ (ای مخاطبه) ته به مؤمنان په خپلو کې یو بل سره د رحم معامله کونکی. یو بل سره محبت او تعلق لرونکی او یوبل سره د مهربانی او معاونت سلوك کولو کې داسې پیداکې. ۴ څرنګه چې د بدن حال دی، ۵ چې د ټول بدن څه عضو خوږیږي، نو د بدن باقي اعضاء د هغه یوعضو په وجه یوبل ته ناري وهي، او بیداري او بې آرامي او درد او تکلیف کې ټول جسم ورسره شریك وي. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات**:- ① تَرَاحُمِهِمْ: خپل منځ کښې رحم کونکی، ② تَوَادِّهِمْ: یوبل سره محبت کونکی. ③ تَعَاطُفِهِمْ: یوبل سره مهرباني کونکی، ④ تَدَاعَى: رابلی یوبل، دعوت ورکوی. ⑤ السَّهَرِ: شب بیداری. شپه رونړول. ⑥ الْحُمَّى: تبه، درد اوتکلیف.

**تسهیلات**:

**قوله**: كَمَثَلِ الْجَسَدِ الْوَاحِدِ إِذَا اشْتَكَى عُضْوٌ تَدَاعَى لَهُ سَائِرُ الْجَسَدِ:

**د مسلمانانو دپاره د اسلام د طرف نه په عالمی سطح باندې یو دستاویزی معاهده**:

دَمسلمانانو دَپاره دَاسلام دَ طرف نه په عالمی سطح باندې یو دستاویزی شرعی معاهده ده چه یورنګ نسل ملك وطن ژبه دَخاندان روابطو نه بغیر به یومسلمان دَ بل مسلمان دَ پاره همدرد اورحمت جوړیږی کوم مسلمان چه دَبل مسلمان دَپاره داسې جذبه نه لری هغه مسلمان خوڅه چه دَانسان وئیلو مستحق نه دې شیخ سعدی بابا فرمائی

بنی آدم اعضائے یک دیگر اند  که در آفرینش زیک جوہر اند

---

۱) اخرجه البخاری فی کتاب الأدب/باب رحمة الناس والبهائم (رقم-۶۰۱۱) ومسلم فی کتاب البر والصلة والآداب/باب تراحم المؤمنین وتعاطفهم وتعاضدهم (رقم-۶۶ - (۲۵۸۶) واحمد فی المسند: ۲۹۸/۴

چوں عضو بدرد آورد روزگار دیگر عضوها را نماند قرار

یو حدیث کښې راغلی دی چه ((من لم یهتم بأمور المسلمین فلیس منا)) یو بل حدیث کښې راغلی دی ((المسلمون ید علی من سواهم))

**په اسلام کښې دزات هیڅ اعتبار نشته:**

دَمسلمانانو دَ خپل مینځ دې همدردئی دَپاره صرف اسلام او مسلمان کیدل شرط دې. دَ ذات او حسب نسب نه جدا دَ مسلمانانو دَپاره ضروری دی چه هغوی دې دَ اوسپنې دَ دیوال په شان او دَ زنځیر دَ کړو په شان متحد او متفق وی. که هغوی لرې وی او که نیزدې وی په مشرق کښې وی او که په مغرب کښې. اقبال وئیلی:

درویش خدا مست نہ شرقی ہے نہ غربی گھر اس کا نہ دلی نہ صفاہاں نہ سمرقند

دَمسلمانانو دا اتحاد او اتفاق ماتونکې هرخیز الحاد او زندقه دې. دا اتفاق او اتحاد دَخپل مینځ تعلق او عملی کردار سره قائم دې.

ہے زندہ فقط وحدت افکار سے ملت وحدت ہو فنا جس سے وہ الہام بھی الحاد

وحدت کی حفاظت نہیں بے قوت و بازو آتی نہیں کچھ کام یہاں عقل خداداد

قرآن او حدیث او اسلام ټول مسلمانان خپل مینځ کښې رونړه رونړه ګرځوی او دَ هغوی دَخپل مینځ تعلقات مضبوط کونکې هر کلام او سلام او تحفه تحائف ته دَقدر په نظر سره ګوری قرآن پاك مسلمانان دَعقیدې په یوه اتفاقی نقطه باندې راجمع کوی او بیائی دَ یو بل غمخوار او رور جوړه وی. لیکن نن صبا دَ ټولې دنیا مسلمانان دَ نظریاتو او افکار دَ انتشار ښکار دی. هغوی په علاقو قومونو جدا جدا حکومتونو او بلاکونو کښې تقسیم شوی دی دَدې بنیادی وجه هم دغه ده چه دَ اتحادی نقطې تعارفی نشان "المسلمون" مرکز کمزورې کړې شوې دې

دې وخت کښې زه دَ بیت الله مخامخ رمضان ۱۴۲۶ھ ۳۰ تاریخ باندې دا کرښې لیکم آخری رمضان دې په لاکهونو انسانان جمع دی لیکن په سوچ او فکر کښې ټول ګډوډ دی دَ چا سترګې په امریکه باندې لګیدلې دی نو دَ چا سترګې دَ چین طرف ته اوچتې دی څوك هندو خوشحالوی نو څوك دَ کمیونستانو طرف ته تیټ دې ناست په مکه یا مدینه کښې دې مګر نه ئی مکې ته او کتل او نه ئی مدینې ته او کتل حالانکه مسلمانان خود دَ یو وجود په شان دَ یو بل همدرد وی او دَ هغوی نظر هم په خپل مرکز باندې وی

درویش خدا مست نہ شرقی ہے نہ غربی گھر اس کا نہ دلی نہ صفاہاں نہ سمرقند

**[۳۹۵۴] د يو مسلمان په تکليف باندې ټولو مسلمانانو له خفګان پکار دي**

۳۹۵۴-()[۸] ۞ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "۞«الْمُؤْمِنُونَ كَرَجُلٍ وَاحِدٍ، ۞ إِنِ اشْتَكَى عَيْنُهُ اشْتَكَى كُلُّهُ، ۞ وَإِنِ اشْتَكَى رَأْسُهُ اشْتَكَى كُلُّهُ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۞ او حضرت نعمان ابن بشير ﷛ وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۞ (ديو الله پورسول يودين منلو په وجه) ټول مسلمانان د يو سړي (د اعضاء او جسم) په شان دی. ۞ که د هغه سترګه درديږي، نو ټول جسم بې آرامه او مضطرب وي، ۞ که د هغه سر درد کوي، نو ټول بدن تکليف، محسوس کوي، دغه شان د يو مسلمان تکليف د ټولو مسلمانانو تکليف محسوس کول پکار دی. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① اشْتَكَى: شکايت کوی، درديږی،

**تسهيلات:**

**قوله اشتكى عينه:** عينه مرفوع دي او په يوه نسخه کښې منصوب دي هم دغه اختلاف وروستونو مرفوعاتو کښې هم دي.

**[۳۹۵۵] دَ مسلمانانو مثال دَ يو مضبوط ديوال په شان دي**

۳۹۵۵-()[۹] ۞ وَعَنْ أَبِي مُوسَى - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ۞" «الْمُؤْمِنُ لِلْمُؤْمِنِ كَالْبُنْيَانِ ۞ يَشُدُّ بَعْضُهُ بَعْضًا»". ثُمَّ شَبَّكَ بَيْنَ أَصَابِعِهِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۞ او د حضرت ابوموسٰی نه روايت دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل. ۞ مسلمان د مسلمان د پاره د يو بنياد په مثل دی، (يعني ټول مسلمانان مضبوطي او طاقت حاصلولو د اعتبارنه دهغه مکان په شان دی) ۞ چې د هغه يوه حصه دويمه حصه مضبوطوي. په دې ويلو سره حضور ﷺ د يولاس ګوتې د دويم لاس په ګوتو کې داخل کړې (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** - ① الْبُنْيَانُ: بنياد، مکان. ② يَشُدُّ: مضبوطوی

په دې حديث کښې نبي عليه السلام د مسلمان تشبيه د يو داسې مکان سره ورکړې ده چه د هغې ټول اجزاء او ټولې حصې د يو بل سره يوځائي شي او ټول مکان مضبوط و پوخ شي هم دغه شان مسلمانان هم دنياوی او ديني کار د يوبل سره په شريکه مکمل کوی. بيا نبي عليه السلام د مثال ورکولو د پاره د يو لاس ګوتې د بل لاس په ګوتو کښې

[۱] اخرجه مسلم فی کتاب البر والصلة والآداب/باب تراحم المؤمنين وتعاطفهم وتعاضدهم (رقم-۶۷ - (۲۵۸۶) واحمد في المسند: ۴/۲۸۶

[۲] اخرجه البخاری فی کتاب الأدب/باب تعاون المؤمنين بعضهم بعضًا (رقم-۶۰۲۶) والنسائی فی کتاب الزکاة/باب أجر الخازن إذا تصدق بإذن مولاه (رقم-۲۵۶۰) واحمد فی المسند: ۴/۴۰۴

نباسلي او دائي اوخودل چه ټول مسلمانان داسي اوسيږي او د يو بل سره محبت او موانست اولري نو يو ناقابل تسخير طاقت به جوړ شي

**[۴۹۵۶] د جائز سفارش فضيلت**

۴۹۵۶ -() [۱۰] ۱ وَعَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ۲ «أَنَّهُ كَانَ إِذَا أَتَاهُ السَّائِلُ أَوْ صَاحِبُ الْحَاجَةِ قَالَ: ۳ "اشْفَعُوا فَلْتُؤْجَرُوا ۴ وَيَقْضِي اللَّهُ عَلَى لِسَانِ رَسُولِهِ مَا شَاءَ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابوموسی ﷺ د رسول الله ﷺ نه روايت کوي. ۲ کله چې به حضور ﷺ ته يو سائل يا حاجتمند راغلو، نو صحابه ﷺ ته به يي فرمايل. ۳ ماته د دې سړي سفارش وکړئ، چې تاسو ته د سفارش ثواب حاصل شي. ۴ او الله ﷻ چې د خپل رسول په ژبې سره کوم حکم غواړي جاري کوي يې. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** - ① اشْفَعُوا: سفارش کوئ.

**تسهيلات:**

**قوله: قَالَ: "اشْفَعُوا فَلْتُؤْجَرُوا:**

**په سفارش کولو د اجر ملاويدل:** کله چه دَ يو حاجت مند دَچاطرف ته څه حاجت وی اوهغه ته دَ ده رسيدل نه کيږي نوهغه مقام ته دغه حاجت مند رسول او سفارش کول ضروری هم دی اودَ ثواب کارهم دې. دَزير بحث حديث مطلب هم دغه دې. بل دَدې حديث مصداق هغه صورت هم دې مثلاً يو سړې دَ يوکار اهل هم دې اولائق اومستحق هم دې هغه ته مناسب مقام ته رسيدوکښې مشکلات دی چا دَهغه سفارش اوکړو اوهغه ئی دَهغه مناسب مقام ته اورسولو اودا هم ممدوح اودَ ثواب کاردې

**ناجائز شفارش:** دَدې برعکس يونالائق په يو مقام باندې کينولو دَپاره سفارش کول دَ قيامت دَعلامونه دی. «إذاوسد الأمر إلى غير أهله فانتظر الساعة»

دغه شان دَالله تعالى يوحکم بندولودَپاره سفارش کول منع اوحرام دی اودغه شان دَ اشرار اومفسدينودَپاره سفارش کول جائزنه دی. بهرحال جائز سفارش دَ ثواب کاردې که سفارش قبول شی اوکه قبول نه شی سفارش کونکی ته ثواب ملاويږی نن صباچونکه اکثرسفارشونه ناجائزشروع شوی دی په دې وجه لفظ دَ سفارش دَ رشوت دَ لفظ په شان بدنی سره مشهورشوې دې

[1] اخرجه البخاري في كتاب التوحيد/باب في المشيئة والإرادة: {وما تشاءون إلا أن يشاء الله} (رقم-۷۴۷۶) وابوداود في كتاب الأدب/باب في الرجل يستعيذ من الرجل (رقم-۵۱۰۸) والترمذى فى كتاب الجهاد، باب فى قتل النساء (رقم-۲۶۷۲) والنسائى فى كتاب الزكاة/باب الشفاعة فى الصدقة (رقم-۲۵۵۷) واحمد فى المسند: ۴/۴۰۰

**[۲۹۵۷] د ظالم سره د مدد كولو طريقه**

۴۹۵۷-( )[۱۱] ۱ وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ۲ "«انْصُرْ أَخَاكَ ظَالِمًا أَوْ مَظْلُومًا»، ۳ فَقَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ، أَنْصُرُهُ مَظْلُومًا، ۴ فَكَيْفَ أَنْصُرُهُ ظَالِمًا؟ ۵ قَالَ: "تَمْنَعُهُ مِنَ الظُّلْمِ، فَذٰلِكَ نَصْرُكَ إِيَّاهُ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت انس رضي الله عنه وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل. ۲ د خپل مسلمان ورور مدد كوئ، برابره خبره كه هغه ظالم وي يا مظلوم. ۳ يو صحابي رضي الله عنه دا ارشاد اوريدو سره عرض وكړو، يارسول الله كوم مسلمان چې مظلوم وي، د هغه مدد خو كول يكار دي او زه پوهيږم، چې د هغه مدد څرنګه كيدي شي ۴ ليكن زه د هغه مسلمان مدد څرنګه كولى شم كوم چې ظلم كوي. ۵ حضور ﷺ ورته وفرمايل. ته هغه د ظلم نه منع كړه او د هغه د ظلم نه منع كول د هغه په حق كې ستا مدد دى. څكه چې هغه د ظلم نه منع كول ګويا هغه ته نفس او شيطان باندې قابو پيدا كولو كې مدد وركول دي (بخاري. مسلم

**تسهيلات:**

**قوله: انْصُرْ أَخَاكَ ظَالِمًا أَوْ مَظْلُومًا:**

**ظالم سره د مدد كولو مفهوم:** دا جمله به په جاهليت كښې خلقو استعمالوله او نور به ئې وئيل كه تا د ظالم امداد اونه كړو نو د مظلوم امداد به څنګه اوكړې شي؟ دا د هغه معاشرې جاهليت او بربريت وو. كله چه د اسلام تعليم عام شو اونبي عليه السلام دا جمله ارشاد اوفرمائيله نو د صحابه كرامو فرشته صفت طبعيتونو دا د اسلامي اخلاق منافي اوګڼړله په دې وجه نبي عليه السلام نه ئې سوال اوكړو چه د مظلوم امداد كولو باندې خو سرې پوهيږي دا د ظالم امداد څنګه كيدې شي؟ نبي عليه السلام اوفرمائيل چه كله ته ول پوخائى شي او د ظالم لاس ئې د ظلم نه بند كړو او هغه د ظلم نه منع شو نو دا هغه سره د هميشه امداد دې چه د آخرت د عذاب نه به بچ شي

**[۴۹۵۸] د مسلما نانو په خپل مينځ كښې د تعلق ساتلو دپاره هدايات**

۴۹۵۸-( )[۱۲] ۱ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا- أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ۲ «الْمُسْلِمُ أَخُو الْمُسْلِمِ، ۳ لَا يَظْلِمُهُ، ۴ وَلَا يُسْلِمُهُ، ۵ وَمَنْ كَانَ فِي حَاجَةِ أَخِيهِ كَانَ اللّٰهُ فِي حَاجَتِهِ، ۶ وَمَنْ فَرَّجَ عَنْ مُسْلِمٍ كُرْبَةً ۷ فَرَّجَ اللّٰهُ عَنْهُ كُرْبَةً مِنْ كُرُبَاتِ يَوْمِ الْقِيَامَةِ، ۸ وَمَنْ سَتَرَ مُسْلِمًا ۹ سَتَرَهُ اللّٰهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

[۱] اخرجه البخاري في كتاب الإكراه/باب يمين الرجل لصاحبه: إنه أخوه [ص:۲۲]. إذا خاف عليه القتل أو نحوه (رقم-۶۹۵۲) ومسلم في كتاب البر والصلة والآداب/باب نصر الأخ ظالمًا أو مظلومًا (رقم-۶۲ - (۲۵۸۴) والترمذي في كتاب الطلاق/ باب في اللعان (رقم-۲۲۵۵)واحمد في المسند: ۹۹/۳

[۲] اخرجه البخاري في كتاب الإجارة/باب: لا يظلم المسلم المسلم ولا يسلمه (رقم-۲۴۴۲) ومسلم في كتاب البر والصلة والآداب/باب تحريم الظلم (رقم-۵۸ - (۲۵۸۰) والترمذي في كتاب الصلاة،باب القنوت في الوتر(رقم-۱۴۲۶)

**ترجمه:** ①او د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما نه روایت دی رسول الله ﷺ وفرمایل ② هر مسلمان د دویم مسلمان دیني ورور دی (یعني ټول مسلمانان به په خپل منځ کې د دین اخوت تعلق لري، او د دې اعتبار نه شریعت ته هغه مقام حاصل دی، کوم چې مورته حاصل دی. او شارع ﷺ د ټول مسلمانانو دیني پلار دی، نو د دې دیني اخوت تقاضه ده چې) ③ یو مسلمان دې په بل مسلمان ظلم نه کوي،[ او هغه دې په څه هلاکت کې نه مبتلا کوي] ،④ او نه دې یو مسلمان بل مسلمان د هغه د دښمن په لاسونو کې پریږدي، [بلکې د دښمن په مقابله کې دې د هغه مدد کوي]⑤ او یاد لره کوم سړی چې د یو مسلمان ورور په حاجت روائي کښې سعي او کوشش کوي، نو الله تعالی د هغه حاجت روائي کوي.⑥ او کوم سړی چې د یو مسلمان ورور غم لرې کوي [ که هغه غم او تکلیف زیات وي یا کم]⑦ نو الله تعالی به د قیامت په ورځ په غمونو کې د یو لوی غم نه هغه ته نجات ورکړي.⑧ او کوم سړی چې د یو مسلمان ورور بدن یا د هغه عیب پټوي،⑨ نو الله تعالی به د قیامت په ورځ د هغه عیب پټ کړي. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** - ① لَا يُسْلِمُهُ: نه دې سپاری (دشمن ته). ② فَرَّجَ: لرې کړی، دفع کړی، تنګی لرې کړی. ③ كُرْبَةً: مصیبت، تکلیف، ④ سَتَرَ: پرده.

**تسهیلات:**

**قوله:** الْمُسْلِمُ أَخُو الْمُسْلِمِ:

**اسلام د قومیت بنیاد مقرر کول:** که چرته مونږ دنیا ته اوګورو نو خلقو په مختلفو حیثینونو سره د قومیت نعره پورته کړې ده چا د ژبې په نوم چې پښتون یو قوم دې چا د جعرافیې په لحاظ چې پاکستانانیان یو قوم دې، چا د رنګ په لحاظ سره سپین جدا قوم دې لکه څنګه چې په امریکه کښې دی، په دې ټولو نظریو کښې یوه نظریه هم داسې نه ده چې د ټولې دنیا خلق یو قوم حساب شي قربان شم د نبی علیه السلام څخه هغوی اسلام د قومیت بنیاد اوګرځول او دا ئې اوفرمائیل چا چې هم کلمه اوویله هغه د نورو مسلمانانو ورور شو اوس په دې نظریه د ټولې دنیا مسلمانان یو قوم دې اګرچې تور او سپین وی اګرچې عربی او عجمی وی اګرچې پاکستاني او افغاني وی.

**قوله:** لَا يَظْلِمُهُ، وَلَا يُسْلِمُهُ:

**په مسلمان ظلم نه کول او دشمن ته نه سپارل:** یعنی مسلمان په خپل رور مسلمان باندې نه پخپله ظلم کوی او نه دَ ظلم دَپاره هغه کافر ته حواله کوی دا حدیث یو دستاویزی معاهده ده یو هغه وخت وو چې چا هغه وخت وو چې د هندوستان د یوې مسلمانې خور په فریاد عربو څخه یو اسلامی جرنیل محمدبن قاسم په سندهه باندې حمله کوی. او دلته اسلامی جندا او بیرغ لګوی لیکن نن صبا مسلمانان دې حد ته راورسیدل چې د امریکه په وینا

بعضې حکمرانان د افغانستان طالبان امریکې ته حواله کوي اودهغې په عوض د الرې اخلي قربان د ملا عمر شخه چې د افغانستان اسلامی امارت ئې قربان کړل خو اسامه مجاهد ئې امریکې ته حواله نکړل.

**قوله**: وَمَنْ سَتَرَ مُسْلِمًا سَتَرَهُ اللّٰهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ

**په مسلمان پرده اچول**: دَ مثال په توګه یو شریف باحیاء اونیك سړې دې په هغه کښې څه عیب دې یادَ بدقسمتئی نه دَهغه نه څه ګناه اوشی نودَهغې دَ پټولو ترغیب دې ځکه چه دَهغې دَ رانبکاره کولو سره به هغه سړې تباه شی او پټولو سره به دَهغه اصلاح اوشی اوهغه ته به نوې ژوند ملاؤشی دَ حدیث حکم هم دَداسې خلقو دَپاره دې

**په عادی مجرمانو پرده نه اچول**: دَ اشرار مفسدین اودَ عادی مجرمانو متعدی جرائم پټول جائز نه دی بلکه دَهغې بندیز کول پکاردی اودَ ختمولو فکرئی کول پکاردی اول پخپله خبردارې ورکړه که په دې سره منع نه شی نودَ وخت حکمرانانوته خبر ورکړه مګر نن صبا مسلمان حکمران چرته دې؟

**[۴۹۵۹] یومسلمان دې بل مسلمان سپک نه ګنړی**

۴۹۵۹-()[۱۳] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- "②«الْمُسْلِمُ أَخُو الْمُسْلِمِ، لَا يَظْلِمُهُ، وَلَا يَخْذُلُهُ، ③وَلَا يَحْقِرُهُ، ④التَّقْوَى هٰهُنَا". وَيُشِيرُ إِلَى صَدْرِهِ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ "⑤بِحَسْبِ امْرِءٍ مِنَ الشَّرِّ أَنْ يَحْقِرَ أَخَاهُ الْمُسْلِمَ، ⑥كُلُّ الْمُسْلِمِ عَلَى الْمُسْلِمِ حَرَامٌ: ⑦دَمُهُ وَمَالُهُ وَعِرْضُهُ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: ① او حضرت ابوهريره رضی الله عنه وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② هرمسلمان د بل مسلمان ديني ورور دی، نو یو مسلمان دي په بل مسلمان باندې ظلم نه کوي د هغه مدد او اعانت دي نه ترك کوي ③ او هغه دي ذليل او حقير نه ګڼي، ④ بيا حضور ﷺ خپلي سيني مبارکي ته دري ځلي اشاره کولو سره وفرمايل چې پرهيزګاري په دي ځای کې ده، ⑤ او وي فرمايل د مسلمان د پاره دومره بدي کافي ده چې هغه خپل مسلمان ورور ذليل او حقير کړي (يعني د يو مسلمان ورور ذليل او حقير کول په خپله دومره لويه خرابي ده، که هغه څه بله ګناه ونه کړي، نو د دې يوي ګناه په وجه به د مواخذي مستوجب وي) ⑥ او ياد لره په مسلمان د مسلمان ټول څيزونه حرام دي، ⑦ لکه د هغه وينه، د هغه مال او د هغه عزت او ابرو. (مسلم)

**حل اللغات**: - ① لَا يَخْذُلُهُ: نه دې ذليل کوي ② لَا يَحْقِرُهُ: سپک دې نه ګڼړی، ③ عِرْضُهُ: عزت او آبرو دهغه،

[1]) اخرجه مسلم فی کتاب البر والصلة والآداب/باب تحريم ظلم المسلم. وخذله. واحتقاره ودمه. وعرضه. وماله (رقم-۳۲ - (۲۵۶٤) وابوداود فی کتاب الأدب/باب فی الغيبة (رقم-٤٨٨٢) والترمذی فی کتاب المناسك. باب الصلاة بجمع (رقم-۱۹۲۷)واحمد فی المسند:۴۹۱/۳

**تسهيلات:**

**قوله**: التَّقْوَى هَهُنَا". وَيُشِيرُ إِلَى صَدْرِهِ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ:

**دتقوى محل**: يعنى تقوى يو پټ امر دې دکوم تعلق چه زړه سره دې په دې وجه يو عاجز خراب حال والا کمزورې اومحتاج اوفقير مسلمان سپك نه دى ګڼړل پکار خکه چه کيدې شى دهغه باطن ستانه په لاکهونودرجو سره ښه او روښانه وى اوتاته دهغې علم نه وى دا جمله په حقيقت کښې ددې نه د وړاندې جملې تاکيد دې په کوم کښې چه خودلې شوى دى چه يو مسلمان سپك نه دى ګڼړل پکار

**[۴۹۶۰] درې جنتيان اوپنځه دوزخيان**

۴۹۶۰-()[۱۳] ⦗۱⦘ وَعَنْ عِيَاضِ بْنِ حِمَارٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - "⦗۲⦘ «أَهْلُ الْجَنَّةِ ثَلَاثَةٌ: ⦗۳⦘ ذُو سُلْطَانٍ مُقْسِطٌ مُتَصَدِّقٌ مُوَفَّقٌ، ⦗۴⦘ وَرَجُلٌ رَحِيمٌ رَقِيقُ الْقَلْبِ لِكُلِّ ذِي قُرْبَى وَمُسْلِمٍ، ⦗۵⦘ وَعَفِيفٌ مُتَعَفِّفٌ ذُو عِيَالٍ.

**ترجمه**: ⦗۱⦘ او حضرت عياض ابن حمار وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل، ⦗۲⦘ د جنتي خلقو درې قسمونه دي (يعني کوم اهل ايمان چې د دې لائق وي، چې سابقين او مقربين سره په جنت کې داخل شي، هغه په درې قسمه دی) ⦗۳⦘ ① يو خو هغه حاکم دی چې عدل انصاف او د خلقوسره احسان کونکی وي، [او هغه ته د نيکو او خيرونو توفيق ورکول شوی وي] ⦗۴⦘ ② دويم هغه سړی چې [په کوچنيانو اولويانو باندې] مهربانه وي، او قرابتدارو او مسلمانانو د پاره رقيق القلب يعنی نرم دل (نرم زړه والا) وي، (يعني هغه خپل پردي هريوسره د نرمي او مروت او مهرباني سلوك کونکی وي) ⦗۵⦘ ۳ او دريم هغه سړی چې غير حلال څيزونو نه ځان ساتونکی، د غير الله په مخکې سوال کولو نه پرهيز کونکی او د اهل وعيال باره کې په الله توکل کونکی وي (يعني د اهل وعيال د محبت او د هغوئ د رزق خوف هغه په الله باندې توکل کولو نه نه منع کوي، د خلقو مخکې د سوال لاس دراز کولو او حرام او ناجائز مال حاصلولو باندې نه مجبوره وي، او نه هغه د خپل اهل وعيال په وجه علم وعمل کې مشغوليدو نه غافل کيږي)

**حل اللغات**: - ① ذُو سُلْطَانٍ: د سلطنت اوحکومت مالک، بادشاه. ② مُقْسِطٌ: عادل، انصاف والا. ③ مُتَصَدِّقٌ: صدقه ورکونکې. ④ مُوَفَّقٌ: توفيق ورکړې شوې دې. ⑤ رَقِيقٌ: نرم زړه والا. ⑥ ذِي قُرْبَى: رشته دار. ⑦ عَفِيفٌ: د حرام او حلال فرق ساتی. ⑧ مُتَعَفِّفٌ: ځان ساتونکې (د سوال نه). ⑨ ذُو عِيَالٍ: اهل وعيال والا.

[1] اخرجه مسلم فى كتاب الجنة وصفة نعيمها وأهلها/باب الصفات التى يعرف بها فى الدنيا أهل الجنة وأهل النار (رقم- ۶۳ - (۲۸۶۵))واحمد فى المسند: ۲۶۱/۴

[۱] وَأَهْلُ النَّارِ خَمْسَةٌ: [۲] الضَّعِيفُ الَّذِي لَا زَبْرَلَهُ [۳] الَّذِينَ فِيكُمْ تَبَعٌ لَا يَبْغُونَ أَهْلًا وَلَا مَالًا [۴] وَالْخَائِنُ الَّذِي لَا يَخْفَى لَهُ طَمَعٌ [۵] وَإِنْ دَقَّ إِلَّا خَانَهُ [۶] وَرَجُلٌ لَا يُصْبِحُ وَلَا يُمْسِي إِلَّا وَهُوَ يُخَادِعُكَ عَنْ أَهْلِكَ وَمَالِكَ [۷] وَذَكَرَ الْبُخْلَ أَوِ الْكَذِبَ. [۸] وَالشِّنْظِيرُ: الْفَحَّاشُ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه: [۱] او د دوزخي خلقو پنځه قسمونه دي، ايعنی هغه خلق چې د خپل بد افعال وبال كي ځملاستلو سره سره د عذاب مستوجب كېږي، هغوئ په پنځه قسمه وي. گويا دلته د هغه افعال بد او د خراب خصلتونو خرابي بيانول او د هغه سختي او شدت ښكاره كول مقصود وي، كوم چې د دوزخ د عذاب باعث دي ځرنگه چې مخكې د هغه ځيزونو تعريف او مدح بيان شوی ده، كوم چې جنت ته بوتلونكي دي [۲] ① يوخو كمزور عقل والا چې د هغه د عقل كمزوری هغه د نازيبا امورو نه منع نه كړي (يعني هغه سړی چې خپل عقل باندې نفساني خواهشات او د خود غرض جذباتو غالب راتلو په وجه ثبات او استقامت ترك كوي، او گناهونو او خرابو خبرو نه منع كيدو باندې نه قادر كېږي) [۳] هغه خلق چې ستا تابع او ستا خادم دي، هغوئ ته نه د ښځي خواهش وي. او نه د مال پروا [يعنی كوم خلق چې ستاسو مالدارو او مقتدرو مخكې گرځنده په نظر راځي. او د هغوئ د خدمت او اطاعت سره ساه اخلي گرځي، د هغوئ نظر نه خو د خير ښيگڼي او دوستی وي، او نه هغوئ ته واقعتًا خدمت او اطاعت سره څه غرض وي. بلكي هغوئ خو محض د خپل نفساني خواهشاتو او خود غرضي تابع وي، د هغوئ اصل مقصد ښه ښه طعامونو نه نسونه (خېټې) ډكول، د اعلی درجي لباس او نور ځيزونه حاصلول وي. نه خو د خپلي ښځي پرواكوي چې د هغه په ذريعه خپل جنسي خواهش جائز طور سره پوره شي. او نه هغوئ ته د مال وزر طلب وي، چې حلال ذرائع، جائز وسائل او د محنت او مشقت په ذريعه حاصليږي، بلكي هغوئ بدكاري، حرام خوري، اجنبي ښځو او حرام او مشتبه اسبابوكي خوشحاله اوسئ. او داشی هم د انساني عقل كمزوري او د مرضمير باندې دلالت كوي. ځكه چې حلال او پاك ځيزونو نه مخ اړول او حرام او مشتبه ځيزونه مطلوب او مقصد گرځول نه خو د عقل تقاضه كيدي شي او نه د ضمير مطابق وي] [۴] ② دويم سړی چې خاين او بد ديانت دی چې د هغه طمع څه پټ شی هم د هغه د لاس نه نه اوباسي. اچې هغه په هغه كې بد ديانته وسي، [۵] كه هغه هرڅومره وړوكې او كمتر شی وي [يعني د هغه طمع او حرص هغه په هيڅ حال كې آرام سره ناستي ته نه پريږدي] تردي چې هغه پټ ځيزونه هم تلاش كوي، اوهركله چې هغه ځيزونه د هغه لاس ته ورسي، نو په هغه كې هم بد ديانتي كوي، (كه هغه هرڅومره بي وقعت او كمتر وي) او بعضې حضرات دا وايي، چې خفا د ظهور په معنی كې هم استعماليږي، ځكه د (لَا يَخْفَى لَهُ طَمَعٌ) معنی دا هم

کيدي شي چې خاين په هغه شي کې هم خيانت کوي چې د هغه مخکې نه وي، او نه د دې قابل وي چې د هغه طمع او حرص دی وشي[٦]. ④ او دريم هغه سړی دی چې سهار ماښام ستا اهل وعيال کې د دهوکه ورکولو په چکر کې وي يعنی کوم سړي ته چې ته د خپل کور والاوو حفاظت او د خپل مال و اسباب نگراني سپاري يا کوم سړی چې خپله ستا سره لگيدلی وي، او خپل عفت او پاکدامني ښکاره کولو سره دا تاثير ورکوي چې هغه ستا د کور بار او اهل خانه حفاظت او نگراني کې مصروف دی، ليکن په حقيقت کې هغه هره لمحه ستا اهل خانه او ستا مال او اسباب باندې خراب نظر لري[٧] ④ او حضور ﷺ د بخيل او دروغجن ذکر اوکړو [٨] ⑤ او د بدخُلقو فحش گو ذکريې وکړلو (مسلم)

**حل اللغات**:-⑩زَبْرَ: عقل، رائې، هوښيارتوب. ⑪تَبَعٌ: تابع وی، پيروکار. ⑫لَايَخْفَى:نه پټيږي. ⑬دَقَّ: معمولی. کمتر څيز. ⑭خَانَهُ: خيانت پکښې کوی. ⑮الشِّنْظِيرُ: علی وزن الخنزير بد اخلاقه. ⑯الفَحَّاشُ: بد گويه.

**تسهيلات: قوله: ذُوسُلْطَانٍ مُقْسِطٌ مُتَصَدِّقٌ مُوَفَّقٌ،**

**عادل حکمران او جنت**: يعنی دَحکومت او سلطنت هغه مشر چه عدل او انصاف کوی او رعايا سره حسن سلوك او دَ احسان معامله ساتی اودَ الله تعالی دَ طرف نه هغوی ته دَ صحيح فيصلې کولو توفيق ورکړې شوې وی.دَهغوی هره فيصله کښې هغوی سره دَ الله تعالی توفيق امداد نصرت او اعانت شامل حال وی اودَ انجام په اعتبارسره دَ هغه فيصله مثلاً دَچا تقرر کارآمد او مفيد ثابت وی.دغه شان سلطان مقسط، متصدق اوموفق به دَ اهل جنت کښې شامل وی.

**قوله: وَعَفِيفٌ مُتَعَفِّفٌ ذُوعِيَالٍ**

**د سوال مخه ځان ساتونکې**: دريم هغه سړی چې غير حلال څيزونو نه ځان ساتونکی، د غير الله په مخکې سوال کولو نه پرهيز کونکی او د اهل وعيال باره کې په الله توکل کونکی وي (يعني د اهل وعيال د محبت او د هغوئ د رزق خوف هغه په الله باندې توکل کولو نه نه منع کوي، د خلقو مخکې د سوال لاس دراز کولو او حرام او ناجائز مال حاصلولو باندې نه مجبوره وي، او نه هغه د خپل اهل وعيال په وجه علم وعمل کې مشغوليدو نه غافل کېږي)

**قوله: الضَّعِيفُ الَّذِي لَازَبْرَلَهُ:**

**عقل بيکاره کونکې دگمراهانو تابعدار**: يعنی دکمزوری عقل والا سړې دَهغه کمزورې عقل هغه دَ نامناسب حرکاتونه نه شی منع کولې.پخپله معتوه وی دَ نورو تابع اوسيږی

او په دې کښې به قاعدګی کوي به لاروي کوي خپله څه رائې نه لري.بس صاحب اقتدار پسې مخکښې روستو کیږي.چمچه ګیرې کښې وخت تیره وي دَنفساني خواهشاتو تابع او سیږي.دَخود غرضئ په غرض سره دَهرڅه کولو دَپاره تیاریږي

**قوله** :الَّذِينَ فِيكُمْ تَبَعٌ:

**دنکاح باوجود زنا کونکې** :یعنی هغه معتوه اوبې عقل خپلې حلالې ښځې سره دَ تعلق قائمولو سوچ هم نه کوي بلکه هغه دَناجائز اوحرام په ذریعه سره خپل جنسي خواهشات پوره کولو په فکر کښې لګیدلې وي.

**قوله** :لَا يَبْغُونَ أَهْلًا وَلَا مَالًا:

**د مذکوره جملو وضاحت** :یعنی دَهغه دا فکر هم نه وي چه دحلال مال دګټلو څه اهمیت دې اودَهغې څه قدر او قیمت دې.بس دا به وسه صرف خوراك اوڅښاك پیژني مخکښې ورسره دَحلال فکرنه وي بلکه دَحرام په ګټې زيات خوشحالیږي نو داسې معتوه کم عقل خواهش پرست او چمچه ګیری کونکې سړې دوزخی دې

**داسلام تقاضا** :اسلام غواړي چه دَ ده پیروکار خود دار وي دَعزت نفس مالك وي او په خپلو خپوباندې په کلك اعتماد سره ولاړ وي اوهوښیار متیقظ بیدار دماغو والا وي.

**قوله** :وَالْخَائِنُ الَّذِي لَا يَخْفَى لَهُ طَمَعٌ وَإِنْ دَقَّ إِلَّا خَانَهُ:

**خیانت ګر دوزخی** :مطلب دا چه داسې خائن دې چه دَهغه په نظر کښې دَ وړوکی نه وړوکې څیز هم وي چه هغه دې حاصل کړي.کله چه ده ته هغه مطلوب ملاویږي نوفوری توګه په هغې کښې خیانت کوي.لکه چه دَ خیانت په شعبه کښې تباه حال سړې دې حسن بصری رحمه الله فرمائیلی دی "الطمع فساد الدین والورع صلاحه"

**قوله** :وَرَجُلٌ لَا يُصْبِحُ وَلَا يُمْسِي إِلَّا وَهُوَ يُخَادِعُكَ عَنْ أَهْلِكَ وَمَالِكَ،

**چاته دهغه د اهل وعیال په باره کښې دهوکه ور کونکې** :هغه سړی دی چې سهار مابنام ستا اهل وعیال کې د دهوکه ورکولو په چکر کې وي یعنی کوم سړي ته چې ته د خپل کور والاوو حفاظت او د خپل مال و اسباب نګراني سپاري یا کوم سړی چې خپله ستاسره لګیدلی وي، او خپل عفت او پاکدامني ښکاره کولو سره دا تأثر درکوي چې هغه ستا د کور بار او اهل خانه حفاظت او نګراني کې مصروف دی، لیکن په حقیقت کې هغه هره لمحه ستا اهل خانه او ستا مال او اسباب باندې خراب نظر لري

**قوله** :وَذَكَرَ الْبُخْلَ أَوِ الْكَذِبَ.

**د ,,او،، کلمه نوعیت** :صحابی ته دَ رسول الله ﷺ دَ ژبې مبارکې الفاظ یادنه وو په دې وجه ئې وذکر اوفرمائیل چه نبي علیه السلام دَ بخل او کذب ذکرهم کړې دې

**[۴۹۱۱] خپل رور دپاره هم هغه څيز خوښ کړه کوم چې دځان دپاره خوښوې**

۴۹۱۱-()[۱۵] [۱] وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ [۳] لَا يُؤْمِنُ عَبْدٌ حَتَّى يُحِبَّ لِأَخِيهِ مَا يُحِبُّ لِنَفْسِهِ»" مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس ﷺ وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل، [۲] قسم دى په هغه الله چې د هغه د قدرت په لاس کې ځما ساه ده، [۳] هيڅ بنده تر هغه وخته پورې کامل مؤمن کيدی نشي. تر څو پورې چې هغه د خپل مسلمان ورور د پاره هغه شی خوښ نه کړي. کوم چې ځان د پاره خوښوي (بخاري، مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله:** حَتَّى يُحِبَّ لِأَخِيهِ مَا يُحِبُّ لِنَفْسِهِ: اي مثل مايحب لنفسه:

**د ما يحب لنفسه مطلب او مفهوم:** دا مطلب نه دې چه خپل خوښ کړې شوې څيزدې بل ته ورکړی بلکه دا مطلب دې چه دَ خپلې خوښې دَ څيزپه شان دې دَخپل رور دَپاره خوښ کړی په دې کښې همدردی ده يعنی پخپله عالم دې نوچه داسې علم دې دَ بل دَپاره هم خوښ کړی پخپله دَ بنه ګاډی او بنه ګهړئی مالك دې نودغه شان ګاډې اوګهړئی دې خپل مسلمان رور دَپاره هم خوښ کړی اودَ زړه نه دې دا خواهش اوکړی چه ده سره دې هم داسې راشی

**[۴۹۱۲] مسلمان دې خپل ګاونډی ته تکليف نه رسوی**

۴۹۱۲-()[۱۶] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[۲] «وَاللّٰهِ لَا يُؤْمِنُ، وَاللّٰهِ لَا يُؤْمِنُ، وَاللّٰهِ لَا يُؤْمِنُ» "[۳] قِيلَ: مَنْ يَا رَسُولَ اللّٰهِ قَالَ: «الَّذِي لَا يَأْمَنُ جَارُهُ بَوَائِقَهُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره ﷺ وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل، [۲] قسم دی په الله د هغه سړي ايمان (کامل) نه دی. قسم دی په الله د هغه سړي ايمان (کامل) نه دی، [۳] [کوم وخت چې حضور ﷺ وضاحت ونه کی]، نو صحابه وُ ﷺ پوښتنه وکړه، يارسول الله. هغه کوم سړی دی چې د هغه ايمان کامل نه دی، او د هغه باره کې ستاسو دا ارشاد دی. حضور ﷺ وفرمايل. هغه سړی چې د هغه ګاونډي د هغه د بديو او شر نه محفوظ او مامون نه وي (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** - ① جَارُهُ: ګاونډی دهغه. ② بَوَائِقَهُ: د شرارتونو دهغه نه.

---

۱) اخرجه البخاری فی کتاب الإيمان/باب: من الإيمان أن يحب لأخيه ما يحب لنفسه (رقم-۱۳) ومسلم فی کتاب الإيمان/باب الدليل علی أن من خصال الإيمان أن يحب لأخيه المسلم ما يحب لنفسه من الخير (رقم-۷۲ - (٤٥) والنسائی فی کتاب الإيمان وشرائعه/باب علامة المؤمن (رقم-۵۰۳۹) واحمد فی المسند: ۲۵۱/۳

۲) اخرجه البخاری فی کتاب الأدب/باب إثم من لا يأمن جاره بوايقه (رقم-۶۰۱۶)

**تسهیلات:**

**قوله: الَّذِي لَا يَأْمَنُ جَارُهُ بَوَائِقَهُ:**

**ګاونډي سره د تعلق دوه درجې:** ① محدثین حضرات فرمائي ګاونډي سره د تعلق چه اوچته درجه دا ده چې دهغه عزت کوي او هغه سره احسان کوي لکه څنګه چې په دې حدیثینو کښې راځي ((فليكرم جاره)) (۱) او((فليحسن الى جاره)) (۲)

② دویمه درجه دا ده چه ګاونډیانو باندې ظلم نه کوي. اوهغه دده د ضرر اوتکلیف څخه محفوظ وي

یوشاعر وائي:

سب کی تکلیف ہے اپنی تکلیف — ہر بدن اپنا بدن ہو جیسے

**ترجمه:**- دَ ټولوتکلیف به دې خپل تکلیف وي خوکه دَهر چا بدن دې خپل بدن اوګنړلو.

**[۴۹۶۳] ګاونډي ته تکلیف رسونکې به جنت ته نه ځي**

۴۹۶۳-()[۱۷] ① وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "② «لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ مَنْ لَا يَأْمَنُ جَارُهُ بَوَائِقَهُ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت انس رضي الله عنه وایي، چې رسول الله ﷺ وفرمایل، ② هغه سړی نجات یافته او سابقینو سره په جنت کې داخلیدی نشي، چې د هغه ګاونډي د هغه د بدیو او شر نه محفوظ او مامون نه وي.

**تسهیلات:**

**قوله: لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ مَنْ لَا يَأْمَنُ جَارُهُ بَوَائِقَهُ:**

**دګاونډي حقوق:** دَ اجمال په توګه دګاونډي یوځو حقوق دي.

① هغه ته په سلام کولو کښې رومبې والې کول.

② هغه سره خبرې نه اوږدول.

③ باربار دَهغه دَ حال تپوس نه کول.

④ که بیمارشي نودَ هغه تپوس کول.

⑤ دَ مصیبت په وخت کښې هغه سره همدردي ښکاره کول.

⑥ دَهغه په غم کښې شریک کیدل.

⑦ دَ هغه په خوشحالئ باندې خوشحالیدل.

(۱) بخاري ومسلم.(۲) بخاري ومسلم.

() اخرجه مسلم في كتاب الإيمان/باب بيان تحريم إيذاء الجار (رقم-۷۳ - (٤٦)واحمد في المسند:۲/۱۳۷۳

⑧ دَ هغه د غلطو نه تجاوز کول
⑨ په ديوال يا دَ چت نه دَ هغه کورته نه کتل
⑩ دَ هغه په ديوال باندې خپل لرگی نه کيخودل
⑪ دَهغه په صحن کښې دَ اوبو ناله تيرولو سره هغه ته تکليف نه ورکول
⑫دَ هغه دَ کور لاره نه تنگول
⑬که هغه لره يوڅيز دَخپل کورنه په اوړلو اووينی نو هغه پسې لتون نه کول
⑭دَ هغه په عيبونو پرده اچول.
⑮که هغه ته څه حادثه مخې ته شي نودَ امداد ئې کول
⑯دَهغه په غيرموجودگئی کښې دَ هغه امدادکول.
⑰دَهغه دَ ښځې اوبال بچ خبراخستل.
⑱دَهغه بدی نه کول او نه اوريدل.
⑲دَهغه دَ ښځې اووينځې نه نظر ښکته ساتل.
⑳دَهغه ماشوم سره دَ شفقت اومهربانئی معامله کول.
㉑که هغه دَ څه دينی يا دنياوی نقصان طرف ته قدم اوچتوی نوهغه منع کول او په صحيح لارباندې ئې اچول.داټول حقوق دَ رواياتونه ثابت دی کوم چه دَ احاديثو په کتابونو کښې موجود دی.

### [۲۹۳]گاوندي سره د ښه سلوک کولو اهميت

۲۹۳ - ()[۱] [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ وَابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] "«مَازَالَ جِبْرِيلُ يُوصِينِي بِالْجَارِ،[۳]حَتَّى ظَنَنْتُ أَنَّهُ سَيُوَرِّثُهُ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**:[۱]او بي بي عائشه ﷺ او ابن عمر ﷺ د رسول الله ﷺ نه روايت کوي [۲] چې حضور ﷺ وفرمايل حضرت جبرائيل علیه السلام به ماته هميشه د گاونډي د حق لحاظ ساتلو حکم راکوی.[۳] تردي چې زماسره خيال پيدا شو ، چې حضرت جبرائيل علیه السلام (د حکم الهي مطابق بذريعه وحي داخبره راوړي) چې ډير نزدې گاونډي گان د يوبل وارث وگرځوي (بخاري، مسلم)

[۱]) اخرجه البخاری فی کتاب الأدب/باب الوصاة بالجار (رقم- ۶۰۱۵،۶۰۱۴) ومسلم فی کتاب البر والصلة والآداب/باب الوصية بالجار والإحسان إليه (رقم-۱۴۰ - (۲۶۲۴)و ۱۴۱ - (۲۶۲۵) وابوداود فی کتاب الأدب/باب فی حق الجوار (رقم-۵۱۵۲)والترمذی فی کتاب المناسک. باب التعجيل من جمع (رقم-۱۹۴۲) وابن ماجه فی کتاب الأدب/باب حق الجوار (رقم-۳۶۷۳) واحمد فی المسند:۵۲/۶ و ۸۵/۲

**تسهيلات:**

**قوله: مَازَالَ جِبْرِيلُ يُوصِينِي بِالْجَارِ:**

**دګاونډي دحقوقو باره کښې دجبريل عليه السلام وصيت:** حضرت جبرئيل عليه السلام به هميشه نبي عليه السلام ته د ګاونډيانو د حقوقو باره کښې حکم راوړو تر دې چه نبي عليه السلام دا خيال اوکړو چه ګيدې شي چه جبرئيل عليه السلام به په نيزدې وخت کښې دا وحي راوړي چه ګاونډيان په خپل مينځ کښې د يو بل وارثان دي دلته که د نبي عليه السلام د وراثت معامله وي نو بيا جواب دا دي چه دا د هغې وحي نه مخکښې خبره ده به کومې کښې چه د دې اطلاع ورکړې شوې وه چه مونږ انبياء کرام وراثت نه پريږدو او چه څه پريږدو نو هغه صدقه وي

**[۴۹۶۵]دريو کسانو کې دې دوه کسان خپل مينځ کښې پټې خبرې نه کوی**

۴۹۶۵-( )[۱۹] [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "[۲] «إِذَا كُنْتُمْ ثَلَاثَةً فَلَا يَتَنَاجَى اثْنَانِ دُونَ الْآخَرِ [۳] حَتَّى تَخْتَلِطُوا بِالنَّاسِ، مِنْ أَجْلِ أَنْ يُحْزِنَهُ» " مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عبد الله ابن مسعود ﷺ وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل. [۲] که تاسو درې سړي يو ځاى يې ، نو دوه سړي دې په غوږ کې داسې خبرې نه کوي. چې درېيم سړى يې اوريدلى نه شي، [۳] تردې چې ډير سړي ورسره يوځاى شي. دا ممانعت په دې وجه دې. چې د هغه دوو سړو دا فعل (يعني خپلو کې په غوږ کې خبرې کول) به هغه درېيم سړى غمجن کوي. (يعني هغه چې خپل مخکې هغه خلق خپل په غوږ کې خبرو کولو باندې ويني. نو خيال به کوي، چې دا دواړه شايد ځما بدې بيانوي. يا ځما خلاف مشوره کوي) (مسلم)

**حل اللغات:** - ① لَا يَتَنَاجَى: پټې خبرې دې نه کوی. ② يُحْزِنَهُ: خفه کوى او غمجن کوى هغه لره

**تسهيلات: قوله: إِذَا كُنْتُمْ ثَلَاثَةً فَلَا يَتَنَاجَى اثْنَانِ دُونَ الْآخَرِ:**

**په درې کسانو کښې د دوو خپل مينځ کښې د پټو خبرو کولو ممانعت:** مثلاً په سفر کښې ياځان له ځائى کښې درې کسان يوځائى په سفر کښې دى يا مقيم دى نو دا جائز نه دى چه دوه کسان دې ځان له اوړدې مشورې شروع کړى ځکه چه په دې سره به هغه سړې اوويريږي چه دا دواړه زما خلاف څه منصوبه تياروى او کله چه آبادئ ته راشى او خلقو سره ملاؤشى نو بيا دې ځان له مشورې کوى ځکه چه په دې کښې به هغه ته څه پريشانى نه وى.

[1]) اخرجه البخاري في كتاب الاستئذان/باب إذا كانوا أكثر من ثلاثة فلا بأس بالمسارة والمناجاة (رقم-۶۲۹۰) ومسلم في كتاب السلام/باب تحريم مناجاة الاثنين دون الثالث بغير رضاه (رقم-۳۷ - (۲۱۸٤) والترمذي في كتاب الضحايا/باب ما جاء في ذبيحة المتردية (رقم-۲۸۲۵)

## [۴۹۶۶] دين اسلام ټوله خير خواهي ده

۴۹۶۶-(١)[٢٠] ①وَعَنْ تَمِيمٍ الدَّارِيِّ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ② "«الدِّينُ النَّصِيحَةُ" ثَلَاثًا. ③قُلْنَا: لِمَنْ؟ قَالَ: "لِلّٰهِ، وَلِكِتَابِهِ، وَلِرَسُولِهِ وَلِأَئِمَّةِ الْمُسْلِمِينَ، وَعَامَّتِهِمْ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** او د حضرت تميم داري رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② دين نصيحت دى، (يعني نصيحت او خير خواهي په اعمال دين كې افضل ترين عمل دى. يا نصيحت او خيرخواهي د دين يومهتم بالشان نصب العين دى) حضور ﷺ دا خبره چې دين نصيحت دى، درى ځله وفرمايل، ③ نو مونږ (يعني صحابه رضي الله عنهم) پوښتنه وكړه دا نصيحت او خير خواهي د چا د پاره ده حضور ﷺ وفرمايل، د الله د پاره د الله كتاب د پاره، د مسلمانانو امامانو (يعني د اسلامي حكومت سربراهانو او علماء) د پاره او ټول مسلمانانو د پاره (مسلم)

**حل اللغات:** - ① النَّصِيحَةُ: خير خواهي.

**تسهيلات:**

**قوله:** الدِّينُ النَّصِيحَةُ"......."لِلّٰهِ:

**د الله تعالى د پاره خير خواهي مطلب:** دَ الله تعالى دَ پاره خيرخواهي داده چه دَ هغه دين قبول كړې شي. دَ هغه په ذات او صفات كښې څوك شريك نه كړې شي. دَهغه دَ وحدانيت داسې اقرار اوكړې شي لكه څنګه چه دَ قرآن اعلان دې. دَ هغه په اوامر او نواهي باندې پوره عمل اوكړې شي او په دې كائنات او مابعد الكائنات باندې دَ هغه بادشاهي اومنلې شي او دَ هغه دَنعمتونو شكريه اداكړې شي.

**قوله:** وَلِكِتَابِهِ،

**د الله تعالى د كتاب دپاره د خير خواهي مطلب:** دكتاب نه مراد قرآن كريم دې دَدې په حق كښې خيرخواهي داده چه دادَ الله تعالى دَ طرف نه نازل كړې شوې آخرى كتاب اومنلې شي دَهرقسم تغير تبدل اوتحريف نه دا محفوظ اومنلې شي. دَدې په احكامات او تعليمات باندې مكمل عمل اوكړې شي اوداد ټولو انسانانو دَپاره لار خودونكې كتاب اومنلې شي اودَ هرې زمانې دَپاره دَدې تعليمات مؤثر كافي اوشافي اومنلې شي

**قوله:** وَلِرَسُولِهِ:

**د رسول الله صلى الله عليه وسلم دپاره د خير خواهي مطلب:** دَ رسول نه مراد محمد رسول الله ﷺ دې. دَ رسول الله ﷺ په حق كښې خيرخواهي داده چه هغوى دَ الله تعالى رښتونې

(١) اخرجه مسلم في كتاب الإيمان/باب بيان أن الدين النصيحة (رقم-٩٥ - (٥٥) والترمذي في كتاب المناسك. باب الصلاة بجمع (رقم-١٩٢٦) والنسائي في كتاب البيعة/باب النصيحة للإمام (رقم-٤١٩٩)

او آخري رسول او منلې شي هغوی سره محبت او عقيدت اوساتلې شي او د هغوی ﷺ تابعداري اوکړې شي د نبي عليه السلام په راوړلې شوی شريعت باندې عمل اوکړې شي د نبي عليه السلام پيغام د دنيا د ټولو پيغامونو نه اوچت تصور کړې شي نبي عليه السلام د خپل ځان او خپلو انو نه زيات محبوب او منلې شي او د نبي عليه السلام اهل بيت او صحابه کرامو سره عقيدت او محبت اوساتلې شي د نبي عليه السلام باره کښې دا عقيده اوساتلې شي چه کوم امانت او رسالت الله تعالی نبي عليه السلام ته حواله کړې وو هغوی په احسن طريقې سره هغه امانت انسانانو ته اورسولو نبي عليه السلام د الله تعالی ډير عزت دار رسول دې او د نورو رسولانو په شان د دې دارفانی نه دار بقاء طرف ته تشريف ئې اوړلې دې.

**قوله: وَلِأَئِمَّةِ الْمُسْلِمِينَ:**

**د حکمرانانو په حق د خير خواهی مطلب:** د مسلمانانو د امامانو او حکمرانانو په حق کښې خيرخواهی داده چه په ټولو جائز امورو کښې د هغوی تابعداری اوکړې شي د هرقسم بغاوت او سرکشئی نه ځان اوساتلې شي. د هغوی د دينی حالت د بهترئی د پاره هر ممکن کوشش اوکړې شي او هغوی په ښه دعاګانو سره ياد کړې شي

**قوله: وَعَامَّتِهِمْ:**

**د عام مسلمانو دپاره د خير خواهی مطلب:** يعنی د عامو مسلمانانو د پاره دين خيرخواهي او نصيحت دې چه د عامو مسلمانانو خيرخواهي غواړی. مطلب دادې چه سرې د هغوی د دينی او دنياوی ښيګړې طالب شي هغوی ته د دين تعليمات اورسوی او د ښيګړې دعوت عام کړی. هغوی ته د تکليف رسولو نه ځان اوساتی او هغوی د هرقسم نقصان نه د بچ کولو کوشش اوکړی. هغوی سره بهتر سلوك اوساتی او د فائده رسولو په کوشش کښې دې لګيا وی.

**[۴۹۶۷] هر مسلمان سره خير خواهی پکار ده**

۴۹۶۷-()[۲۱] [۱] وَعَنْ جَرِيرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «بَايَعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَلَى إِقَامِ الصَّلَاةِ، [۳] وَإِيتَاءِ الزَّكَاةِ، وَالنُّصْحِ لِكُلِّ مُسْلِمٍ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت جرير ابن عبد الله وايي، [۲] ما د رسول الله ﷺ نه په دې خبره بيعت وکړی، چې پابندي سره به مونځ کوم، [۳] زکاة به اداکوم، او د هرمسلمان په حق کې به خيرخواهي کوم.

**حل اللغات:** - ① النُّصْحِ: خير خواهی،

[1]) اخرجه البخاری فی کتاب الشروط/باب ما يجوز من الشروط فی الإسلام والأحکام والمبايعة (رقم-۲۷۱۵) ومسلم فی کتاب الإيمان/باب بيان أن الدين النصيحة (رقم-۹۷ - (۵۶)

**تسهيلات:**

**قوله**: وَعَنْ جَرِيرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: «بَايَعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

**د حضرت جرير بن عبدالله رضی الله عنه بيعت:**

حضرت جریربن عبد الله دَ حضوراکرم ﷺ دَ وفات نه یوخو میاشتې مخکښې اسلام راوړلې وو نبي علیه السلام هغه ته دَ هرمسلمان دَ خیرخواهئ تاکید اوکړو هغوی په دې باندې بیعت اوکړو او په دې باندې ئې دومره عمل اوکړو چه دنیائی حیران کړه هم دَدوی یوه عجیبه قصه ده هغوی دَ یو سړی نه په درې سوه درهم باندې یو اس واخستلو اوبیائی دغه سړی ته اووئیل چه دا اس دَدریو سوو درهمونه دَ زیات قیمت دې آیا ته دا په څلور سوه درهم باندې خرڅوې؟ هغه سړی وئیل دا ستاسو مرضی ده بیا حضرت جریر رضی الله عنه اوفرمائیل چه ستا اس دَ څلور سوا درهم نه هم دَ زیات قیمت دې ته به دا په ما باندې په پنځه سوه درهم باندې خرڅ کړې؟ هغه وئیل ستاسو مرضی ده دغه شان حضرت جریر رضی الله عنه دَ اس قیمت پخپله زیاتولو تردې چه په نهه سوا درهم باندې ئې واخستلو چا وئیل دا تاسو څه اوکړه؟ پخپله دې پیسې زیاتې کړې هغوی اوفرمائیل ما نبي علیه السلام سره په دې باندې بیعت کړې دې چه دَهرمسلمان خیرخواهی به کوې دا سړې دَ اس په قیمت نه پوهیدلو نوما دَهغه خیرخواهی اوکړه حضرت جریر بَجَلی رضی الله عنه ډیرزیات ښائسته وو دَدې امت دَ یوسف په لقب سره به یادولې شو.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۴۹٦۸] دَبدبخت سړی د زړه نه نرمی اوځی**

۴۹٦۸-(۱) [۲۲] ⓵ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: ⓶ سَمِعْتُ أَبَا الْقَاسِمِ الصَّادِقَ الْمَصْدُوقَ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: ⓷ "«لَا تُنْزَعُ الرَّحْمَةُ إِلَّا مِنْ شَقِيٍّ»". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه**: ⓵ حضرت ابوهریره رضی الله عنه وایي، ⓶ ما د ابو القاسم ﷺ نه رچي صادق او مصدوق دی، واوریدل ⓷ چې رحمت یعنی مخلوق خدا باندې د رحم او شفقت کولو جذبه د چا د زړه نه نشي اوخکلی خو د بدبخت سړي زړه د دې جذبې نه خالي وي (احمد، ترمذي)

**حل اللغات**: - ① الصَّادِقَ: رښتيا ويونكې. ② الْمَصْدُوقَ: رښتيا منلې شوې. ③ لَا تُنْزَعُ: نه ويستلې كيږي. ④ شَقِيّ: بدبخت.

---

[1] اخرجه ابو داود فی السنن کتاب الأدب/باب فی الرحمة (رقم-۴۹۴۲) والترمذی فی کتاب المناسک. باب الصلاة بجمع (رقم-۱۹۲۳) واحمد فی المسند: ۲/۴۴۲

**تسهيلات:**

**قوله** سَمِعْتُ أَبَا الْقَاسِمِ الصَّادِقَ الْمَصْدُوقَ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

**د مصدوق په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① هغه کس چه خلقو هغه رشتينيي تسليم کړي وی ② هغه کس چه د هغه د رشتينوالی گواهی پخپله الله تعالي ورکړي وی دا دواړه لقبونه د نبي عليه السلام صفات دی.نبي عليه السلام رشتيني وو تر دي چه کافرانوهم نبي عليه السلام الصادق الأمين تسليم کړي وو بلکه الله تعالي دهغه د رشتينوالی خبر ورکړي دي لکه څنگه چې الله تعالی فرمائيلی دی «وَالنَّجْمِ إِذَا هَوٰى».

**قوله** لَا تُنْزَعُ الرَّحْمَةُ إِلَّا مِنْ شَقِيٍّ:

**دمذكوره جملې مفهوم:** د دي جملې مفهوم دا دي چه کافر د خپل کفر او فاسق د خپل فسق او فجور د وجه نه خپل زړه دومره سخت کړي وی چه په هغه کښې هغه انساني جذبه بالکل ختمه شوي وی کومه چه يو انسان لره په بل انسان باندې په رحم او شفقت کولو باندي اماده کوی.

**[٤٩٦٩] زمکې والو باندې تاسو رحم اوکړئ نو آسمان والا به په تاسو رحم اوکړی**

| ٤٩٦٩-()[٢٣] ① وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "② «الرَّاحِمُونَ يَرْحَمُهُمُ الرَّحْمَنُ، ③ ارْحَمُوا مَنْ فِي الْأَرْضِ يَرْحَمْكُمْ مَنْ فِي السَّمَاءِ»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ. |
|---|

**ترجمه:** ① او حضرت عبد الله ابن عمر ﷺ وايي چی رسول الله ﷺ وفرمايل، ② مخلوق خدا باندې رحم او شفقت کونکو باندې د رحمٰن رحمت نازليږي، ③ تاسو په زمکې والاوو رحم او شفقت کوئ، چې په تاسو باندې هغه رحم وکړي چې په آسمان کې دي (ابوداؤد، ترمذي)

**تسهيلات:**

**قوله:** ارْحَمُوا مَنْ فِي الْأَرْضِ:

**د زمکې په ټول مخلوق د رحم کولو مطلب:** د دي نه د زمکي ټول ساه لرونکی مراد دی.که نيک وی که بد.د بدو خلقو سره به د شفقت والا معامله په داسي صورت کښې وی چه هغه د بدئي او گناه نه منع کړي شی لکه چه ماقبل حديث کښې تير شو چه ظالم سره اعانت دا دي چه هغه د ظلم نه بند کړي شی.

[1] اخرجه ابو داود في السنن كتاب الأدب/باب في الرحمة (رقم-٤٩٤١) والترمذى فى كتاب المناسک، باب التعجيل من جمع (رقم-١٩٤١) (رقم-١٩٤٢)

**قوله: يَرْحَمْكُمْ مَنْ فِي السَّمَاءِ:**

**دمن في السماء په مصداق کښې دوه احتمالات:** ① د دې څخه الله تعالي مراد دې چه د هغه کمال قدرت او د هغه سلطنت په اسمان کښې دې او د هغه امر په اسمان او زمکه کښې نافذ دې

② ددې څخه فرښتې مراد دی په دی دې صورت کښې مطلب دا دې چه تاسو زمکه والو باندې د رحم و شفقت اوکړې نو اسمان کښې اوسيدونکی ملائکې به په تاسو رحم اوکړی او ستاسو په حق کښې دهغوي رحم دا دې چه هغوي به ستاسو دشمنانو او شيطانانو او د جناتو نه ستاسو حفاظت اوکړې او د شرير انسانانو نه به ستاسو حفاظت اوکړی او د الله په دربار کښې به ستاسو د پاره دعا و استغفار طلب کړی.

**دآسمان په ذکر کولو کښې دری وجوهات:**

① د اسمان خصوصی ذکر د شرافت د وجې کړې دې.

② چې د اسمان ذکرئي وکړو نو زمکه په کښې بطريق اولي شامله ده

③ اسمان زمکې ته هم شامل دې او زمکه د اسمان په مقابله کښې هم داسې ده لکه چه په مينځ کښې يوه کړي پرته وی. د حقارت د وجې ئي د زمکې ذکر او نه کړو

**[٤٩٧٠] په ماشومانو شفقت او د مشرانو د عزت په نه کولو زورنه**

٤٩٧٠-()[٢٢] ① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«لَيْسَ مِنَّا مَنْ لَمْ يَرْحَمْ صَغِيرَنَا، ③ وَلَمْ يُوَقِّرْ كَبِيرَنَا، ④ وَيَأْمُرْ بِالْمَعْرُوفِ، وَيَنْهَ عَنِ الْمُنْكَرِ»". ⑤ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**توجمه:** ① او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② چې هغه سړی زمونږ د اتباعو نه نه دی چې زمونږ په کشرانو باندې رحم او شفقت نه کوی ③ او زمونږ د مشرانو عزت نه کوی ④ دنيکی اوښيګنې حکم ورنه کړي او د بدی وخرابي نه منع ونکړي ⑤ دا روايت ترمذي نقل کړی دی او ويلي يي دي چې دا حديث غريب دی.

**حل اللغات:** - ① لَمْ يُوَقِّرْ: عزت نه کوی. ② كَبِيرَ: مشر. ③ الْمَعْرُوف: نيکی. ④ الْمُنْكَر: بدی، گناه.

**قوله: لَيْسَ مِنَّا:** ای من خواصنا يعني دا د براءت نه کنايه ده من لم يرحم صغيرنا و لم يوقر اي لم يعظم يعني چه څوک د مشرانو تعظيم اونه کړی. کبيرنا دا لفظ لوئي، ځوان او بوډا تولو دپاره استعماليږی، دلته ئي د اهتمام شان د وجه نه د وړو سره د رحمت ذکر اول اوکړو اود توقير الکبير حکم ټولو مسلمانانو ته شامل دي بعضو وئيلی دی چه دا وعيد غير مسلمو د پاره نه دي ځکه چه په هغوی کښې نه شفقت وی او نه د مشرانو عزت.

[١] اخرجه الترمذی في السنن کتاب المناسک، باب الدفعة من عرفة (رقم-١٩٢١)

**[۴۹۷۱] د خپلو مشرانو د عزت نه کولو نغده سزا**

۴۹۷۱-()[۲۵] ۱ وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ «مَا أَكْرَمَ شَابٌّ شَيْخًا مِنْ أَجْلِ سِنِّهِ ۳ إِلَّا قَيَّضَ اللَّهُ لَهُ عِنْدَ سِنِّهِ مَنْ يُكْرِمُهُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت انس رضي الله عنه وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل، ۲ کوم ځلمی چې د بوسړي د بوډاتوب په سبب تعظيم او تکريم کوي، ۳ نو الله تعالیٰ به د هغه د بوډاتوب په وخت بوداسي سړی مقرر کړي، چې د هغه تعظيم او خدمت به کوي (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① شَابٌّ: ځوان، ② شَيْخًا: بوډا، ③ قَيَّضَ: مقرر به کړی

**تسهيلات:**

**قوله: مَا أَكْرَمَ شَابٌّ شَيْخًا مِنْ أَجْلِ سِنِّهِ:**

**کشر ته د مشر دعزت بدله ملاويدل:** يعنی کوم کس د بوډا سړی تعظيم کوی يا د هغه خدمت کوی نو د هغه کس به هم تعظيم و خدمت کيږی او چه کوم خلق د خپلو بوډاګانو تعظيم نه کوی بلکه د بوډاګانو تحقير کوی نو هغوی په خپله بوډاوالی کښې د خپلو کشرانو د طرف نه د تحقير او تذليل باعث جوړيږی. ګويا چه په حديث شريف کښې دې طرف ته اشاره مقصود ده چه په خدمت سره د هغه ځوان عمر کښې فراخي راځی کوم چه د خپلو مشرانو او بوډاګانو تعظيم کوی.

**[۴۹۷۲] د درې قسمه خلقو تعظيم کول**

۴۹۷۲-()[۲۶] ۱ وَعَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ «إِنَّ مِنْ إِجْلَالِ اللَّهِ إِكْرَامُ ذِي الشَّيْبَةِ ۳ وَحَامِلِ الْقُرْآنِ غَيْرِ الْغَالِي فِيهِ ۴ وَلَا الْجَافِي عَنْهُ ۵ وَإِكْرَامُ السُّلْطَانِ الْمُقْسِطِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ".

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابوموسیٰ رضي الله عنه وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل، ۲ د بوډا مسلمان عزت او توقير کول ۳ او د حامل قرآن [يعنی حافظ او مفسر او د قرآن خوان احترام او اکرام کول] هرکله چې هغه په قرآن کې زياتی کونکی نه وی ۴ او د هغه نه پس کيدونکی نه وي. ۵ او د عادل بادشاه، تعظيم کول منجمله د خداوندي د تعظيم نه دی (ابوداوُد، بيهقي)

**حل اللغات:** - ① إِجْلَالِ: تعظيم، عظمت شان، ② ذِي الشَّيْبَةِ: سپين ږيرې، بوډا، ③ حَامِلُ الْقُرْآنِ: حافظ قرآن، عالم، ④ الْغَالِي: غلو کونکې، زياتې کونکې، ⑤ الْجَافِي: اعراض کونکې، هيرونکې، ⑥ الْمُقْسِطِ: عادل، انصاف کونکې.

---

() اخرجه الترمذی فی السنن کتاب المناسک، باب الإقامة بمكة (رقم-۲۰۲۲)

() اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأطعمة/باب فی الفأرة تقع فی السمن (رقم-۳۸٤۳)

**تسهيلات:**

**قوله غَيْرَ الْغَالِي فِيهِ.**

**دغالي مفهوم:** يعنى دَ قرآن په معانيو او الفاظو كښې دَشرعى حد نه تجاوزنه كوى بل نه دې كښې شك كوى او نه خيانت كوى اونه دَ څه وسوسې ښكاروى اونه دَ اهل بدعت په شان باطل تاويلونه كوى

**قوله:** وَلَا الْجَافِي عَنْهُ

**د جافي مطلب:** يعنى دَ قرآن احكاماتو اودَ دې تعليماتو نه اعراض كونكې اولرې تخنيدونكې نه وى اونه قرآن هيرونكې وى.

شرح السنه كښې دَ حضرت طاؤس رحمه الله نه يوروايت نقل دې په هغې كښې دَتعظيم كونكو فهرست كښې څلورم سړې هم شامل كړې شوې دې كوم چه پلاردې

**[۴۶۷۳] يتيم سره د ښه سلوك باره كې بهترين او بدترين كور**

۴۶۷۳ -( ) [۲۷] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] " «خَيْرُ بَيْتٍ فِي الْمُسْلِمِينَ بَيْتٌ فِيهِ يَتِيمٌ يُحْسَنُ إِلَيْهِ، [۳] وَشَرُّ بَيْتٍ فِي الْمُسْلِمِينَ بَيْتٌ فِيهِ يَتِيمٌ يُسَاءُ إِلَيْهِ» ". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل [۲] د مسلمانانو په كورونو كې بهترين كور هغه دى چې په هغه كې يو يتيم وي، او دهغه سره حسن سلوك وشي [۳] او د مسلمانانو په كورنو كې بدترين كور هغه دى، چې په هغه كې يو يتيم وي او د هغه سره خراب سلوك كيږي.(ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① يُحْسَنُ: ښه سلوك كولې شى. ② يُسَاءُ: بدسلوك كولې شى

**تسهيلات:**

**قوله:** خَيْرُ بَيْتٍ فِي الْمُسْلِمِينَ بَيْتٌ فِيهِ يَتِيمٌ يُحْسَنُ إِلَيْهِ:

**يتيم څخه د ښه سلوك ترغيب:** يعنى بهترين كورْ هغه دې په كوم كښې چه يتيم سره ښه سلوك كيږى اوبدترين كور هغه دې په كوم كښې چه يتيم سره بد سلوك كيږى

**قوله:** وَشَرُّ بَيْتٍ فِي الْمُسْلِمِينَ بَيْتٌ فِيهِ يَتِيمٌ يُسَاءُ إِلَيْهِ:

**يتيم څخه د بد سلوك كولوترهيب:** د يتيم بچى سره د ناكاره سلوك مطلب دا دي چه د يتيم ده كور كسان دده د ژوند د ضرورتو په كفالت كښې غفلت او كوتاهي اوكړي، هغه ماشوم سره داسي سلوك اوكړي چه هغه ته د خپلې كمزورى او بې چارګي احساس اوشى دارنګ هغه بلا وجه اووهلي شى او تكليف وركړي شى البته د تعليم او تربيت په

[۱]) اخرجه ابن ماجه فى السنن كتاب الأدب/باب حق اليتيم (رقم-۳۶۷۹)

وجه وهل يا بله سزا وركول په بد سلوكۍ كښې نه شمارلي كيږي بلكه د تاديب په طور وهل په احسان او حسن سلوك كښې شمارلي كيږي

**[۴۹۷۴] يتيم سره ښه سلوك كونكې به جنت كې د رسول الله ﷺ ملګري وي**

۴۹۷۴-()[۲۸] [۱]وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲]" «مَنْ مَسَحَ رَأْسَ يَتِيمٍ لَمْ يَمْسَحْهُ إِلَّا لِلَّهِ، [۳]كَانَ لَهُ بِكُلِّ شَعْرَةٍ تَمُرُّ عَلَيْهَا يَدُهُ حَسَنَاتٌ، [۴]وَمَنْ أَحْسَنَ إِلَى يَتِيمَةٍ أَوْ يَتِيمٍ عِنْدَهُ [۵]كُنْتُ أَنَا وَهُوَ فِي الْجَنَّةِ كَهَاتَيْنِ" وَقَرَنَ بَيْنَ أُصْبُعَيْهِ». [۶]رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [۱]او حضرت ابوامامه رضي الله عنه وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲]كوم سړى چې د څه غرض نه بغير محض د الله تعالى رضا او خوشنودي د پاره د يويتيم بچي (هلك يا جنۍ) په سر (دميني محبت او شفقت) لاس راتير كړي، [۳]نو د هغه د پاره د يتيم د هغه ويښتانو په عوض كې (چې د هغه په لاس باندې لګيدلي وي) نيكې ليكل كيږي [۴]او كوم سړى چې يويتيم (هلك يا جنۍ) سره چې د هغه پرورش او تربيت كې وي. ښه سلوك كوي (كه هغه يتيم قرابتي وي يابيګانه) [۵]نو هغه سړى او زه به په جنت كې داسې يوځاى يو. او په دې ويلو سره حضور ﷺ خپله د شهادت او منځنۍ ګوتې يوځاى كولو سره وخودل. چې څرنګه دا ګوتې يوبل ته نژدې دى، دغه شان زه او هغه سړى به په جنت كې يوبل ته نژدې يو، [۶]دا روايت احمد رحمه الله او ترمذي نقل كړى دى او ترمذي ويلي دي چې داحديث غريب دى.

**حل اللغات:-** ①شَعْرَةٍ: ويښته، ②قَرَنَ: يوځائ ئې كړې.

**حسنات:** د دې په باره كښې علماؤ ليكلي دي چه نيكۍ د كميت او د كيفيت په اعتبار سره د مختلفو درجو وى او د دې فرق او اختلاف مدار په حسن نيت باندې دې **من احسن الى يتيمة اويتيم عنده:** د دې مطلب دا دي چه كوم كس د يتيم سره د شفقت او مهرباني سلوك اوكړي، د هغه تعليم او تربيت ته توجه وركړي نو داسې كس به د قيامت په روځ ماسره دومره نيزدې وى لكه د دې دوه ګوتو په مينځ كښې چه څومره قرب دې، د دې نه مقصود انتهائي قرب دې.

**قوله: وَمَنْ أَحْسَنَ إِلَى يَتِيمَةٍ أَوْ يَتِيمٍ عِنْدَهُ:**

بعضو وئيلي دى چه او د تنويع د پاره راغې او د شك دپاره هم دلته د شك دپاره دي چه راوى ته شك اوشو چه نبي عليه السلام **يتيمة** لفظ وئيلې وو او كه د **يتيم**. الحاصل د يتيم سره شفقت كونكې او ښه سلوك اختيارونكې په باره كښې چه كوم د تحسين الفاظ

---

[۱]) اخرجه الترمذي في السنن كتاب البر والصلة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في رحمة اليتيم وكفالته (رقم-۱۹۱۷) واحمد في المسند:۲۶۵/۵

استعمال شوی دی په هغي کښې دهغه کس د حسن خاتمه بشارت هم دي

## [۴۹۷۵] د يتيم يا د خور اولور د پرورش کولو فضيلت

۴۹۷۵-( )[۲۹] ۱ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ "«مَنْ آوَى يَتِيمًا إِلَى طَعَامِهِ وَشَرَابِهِ ۳ أَوْجَبَ اللَّهُ لَهُ الْجَنَّةَ أَلْبَتَّةَ، ۴ إِلَّا أَنْ يَعْمَلَ ذَنْبًا لَا يُغْفَرُ. ۵ وَمَنْ عَالَ ثَلَاثَ بَنَاتٍ أَوْ مِثْلَهُنَّ مِنَ الْأَخَوَاتِ ۶ فَأَدَّبَهُنَّ وَرَحِمَهُنَّ حَتَّى يُغْنِيَهُنَّ اللَّهُ أَوْجَبَ اللَّهُ لَهُ الْجَنَّةَ". ۷ فَقَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! وَاثْنَتَيْنِ؟ ۸ قَالَ: "أَوِ اثْنَتَيْنِ" ۹ حَتَّى لَوْ قَالُوا: أَوْ وَاحِدَةً؟ لَقَالَ: وَاحِدَةً" ۱۰ وَمَنْ أَذْهَبَ اللَّهُ بِكَرِيمَتَيْهِ وَجَبَتْ لَهُ الْجَنَّةُ". ۱۱ قِيلَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! وَمَا كَرِيمَتَاهُ؟ قَالَ: "عَيْنَاهُ»". رَوَاهُ فِي "شَرْحِ السُّنَّةِ".

**ترجمه**: ۱ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل. ۲ کوم سړی چې خپل خوراك، څښاك کې يو يتيم شريك کړي، ۳ نو الله جل جلاله (د خپلې وعدې مطابق) هغه سړی بلاشك شبهې د جنت مستحق ګرځوي، ۴ خو داچې هغه څه داسې ګناه وکړي چې د بخښلو قابله نه وي، ۵ او کوم سړی چې د دريو لوڼو يا دغه شان د دريو خوندو پرورش وکړي. ۶ او بيا د هغوئ تربيت وکړي، او د هغوئ سره د محبت او شفقت سلوك کوي تردې چې الله جل جلاله هغوئ بې پروا کړي هغوئ لوی شي او واده شي نو الله جل جلاله هغه د جنت مستحق ګرځوي. ۷ په دې اوريدو سره يو صحابي عرض وکړو آيا د دوو لوڼو يا د دوو خوندو په پرورش باندې هم دا اجر حاصليږي؟ ۸ حضور ﷺ وفرمايل، هو دوو باندې هم دا اجر حاصليږي. ۹ (راوي وايي) که صحابه رضي الله عنهم د يوې لور يا يوې خور باره کې هم پوښتنه کړې وې. نو حضور ﷺ به هم دا جواب ورکوی چې هو، په يوې باندې هم دا اجر حاصليږي. ۱۰ بيا حضور ﷺ وفرمايل، الله جل جلاله چې کوم سړي نه دوه خوارۀ څيزونه واخلي، نو هغه هم د جنت مستحق ګرځوي. ۱۱ پوښتنه وشوه يا رسول الله! دوه خوارۀ څيزونو نه څه مراد دی. وې فرمايل د هغه دوه سترګې (شرح السنه)

**حل اللغات**: - ① آوَى: ځای ئې ورکړو. شريک ئې کړو. ② أَلْبَتَّةَ: خامخا. ③ يُغْنِيَهُنَّ: بې پرواه کړی هغوی. ④ كَرِيمَتَاهُ: دوه عزت مند. خوارۀ څيزونه.

**تسهيلات**:

**قوله**: مَنْ آوَى يَتِيمًا إِلَى طَعَامِهِ وَشَرَابِهِ أَوْجَبَ اللَّهُ لَهُ الْجَنَّةَ أَلْبَتَّةَ، إِلَّا أَنْ يَعْمَلَ ذَنْبًا لَا يُغْفَرُ:

**نه معاف کيدونکی دوه قسمه اعمال**:

① ددې نه مراد شرک دې ځکه چې شرک هم الله تعالى نه معاف کوی نوکه يو مشرک ديتيم سره ډيرښه سلوک کوی نو الله تعالى به په دنيا کښې دهغې بدله ورکوی خو په آخرت کښې به د شرک او کفر په وجه محروم وی

[1]) اخرجه الترمذي في السنن كتاب البر والصلة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في رحمة اليتيم وكفالته (رقم-۱۹۱۷)

۲ حقوق العباد ترې هم مراد دی ځکه چې الله تعالی د شرک څخه علاوه خپل نور حقونه معاف کوی خوحقوق العباد د بندګانوحق دې ددې وجې حقوق العباد نه معاف کوی

**قوله: حَتَّى لَوْقَالُوا: أَوْوَاحِدَةٌ؟ لَقَالَ: وَاحِدَةٌ:**

**د ,,او،، په کلمه کښې درې احتمالات:** ۱ او د د تنويع دپاره دي

۲ او د ,,بل،، په معنى دې.

۳ اوپه معني د واودې

۴ اوپه حکم کښې د شرکت دپاره دې.

**اشکال:** دلته نبی علیه السلام په یووخت د نبی علیه السلام د درې لونړو یا خویندوپه تربیت دجنت خوخبری بیانوی اوبیا هم په دغه وخت کښې د دوو لونړو یا خویندو په تربیت د جنت خوشخبری بیانوئ ترې چې صحابی فرمائی که دیوباره کښې ترې تپوس شوې وو ،نو په دې به ئې هم زیرې ورکړې وو. اشکال دا دې چې په یووخت کښې دا حکم څنګه بدلیږی رابدلیږی د اول څخه به نبی علیه السلام د یوې یا دوو ذکرکړې وو؟

**داشکال دوه جوابونه:** ۱ دراجح مذهب مطابق الله تعالي نبي عليه السلام ته د بعضو احکامو تفويض ورکړي وو چه تاسو څنګه غواړئ حکم اوکړئ او چه څوک غواړئ منع ئې کړئ او د چا دپاره چه غواړي تخصيص اوکړي.

۲ رسول كريم صلي الله عليه و سلم ته د احكامو تفويض نه وو وركړي شوي بلكه د هر سوال نه پس به د مقصود مطابق نزولِ وحي كيده.

**[۴۹۷۶] د خپلو بچو بنه تربيت کول د صدقه کولو نه غوره دی**

٤٩٧٦-() [٣٠] ۱ وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " ۲ «لَأَنْ يُؤَدِّبَ الرَّجُلُ وَلَدَهُ خَيْرٌ لَهُ مِنْ أَنْ يَتَصَدَّقَ بِصَاعٍ» ". ۳ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، وَنَاصِحٌ الرَّاوِي لَيْسَ عِنْدَ أَصْحَابِ الْحَدِيثِ بِالْقَوِيِّ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت جابر ابن سمره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل. ۲ چې ديوانسان خپل ځوی ته د اَدَب يوه خبره ښودل، د يو صاع غله خيرات کولو نه ښه دی، ۳ ترمذي دا روايت نقل کری دی، او ويلي يي دي، چې دا حديث غريب دی. او د دې يوراوي ناصح رحمه الله د محدثينو په نز د (دحفظ او ضبط د اعتبار نه) قوي يعنی قابلِ اعتماد نه دی.

**تسهيلات:**

---

[1] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی أدب الولد (رقم-۱۹۵۱) واحمد فی المسند:۵/۹۶

**قوله: لَأَنْ يُؤَدِّبَ الرَّجُلُ وَلَدَهُ خَيْرٌ لَهُ مِنْ أَنْ يَتَصَدَّقَ بِصَاعٍ:**
**دخپلو بچو دتربیت د صدقې کولو څخه افضلیت:** دلته د تادیب نه مراد د آداب شرعیه تعلیم دي چه هغه قولاً او فعلاً کیږی د دي حدیث نه معلومه شوه چه د شریعت په نظر کښې د ماشومانو د صحیح تعلیم او تربیت ډیر زیات اهمیت دي لهذا د والدینو ذمه داری دا ده چه هغوی دې خپل اولاد ته صحیح تعلیم ورکړی چه هغه دیني، اخلاقي او د شرعي ادابو په قواعدو مشتمل وی

**د تربیت د صدقې ورکولو څخه د افضلیت درې وجوهات:**
① تادیب افاده علمیه ده او تصدق افاده مالیه
② د تادیب نتیجه طویل البقاء او د تصدق نتیجه سریع الفناء ده
③ترک تادیب د عقاب باعث دي او ترک تصدق د عقاب باعث نه دي (مرقاة ج۹ ص ۲۳۱)

**قوله وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، وَنَاصِحٌ الرَّاوِي لَيْسَ عِنْدَ أَصْحَابِ الْحَدِيثِ بِالْقَوِيِّ:**
**دامام ترمذی د قول مطلب:** یعنی دا حدیث ضعیف دي لیکن دا خبره واضحه ده چه په فضائل اعمال کښې په ضعیف حدیث باندي عمل کول جائز دی څنګه چه د محدثینو متفقه فیصله ده خوچې نورو نصوصو څخه متعارض نه وی.

**[۴۹۷۷] بچوته د ښه ادب خودلو نه زیات بل ښه شی نشته**

۴۹۷۷-(۱)[۳۱] ۱ وَعَنْ أَيُّوبَ بْنِ مُوسَى، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: ۲ «مَا نَحَلَ وَالِدٌ وَلَدَهُ مِنْ نُحْلٍ أَفْضَلَ مِنْ أَدَبٍ حَسَنٍ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ" ۳ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا عِنْدِي حَدِيثٌ مُرْسَلٌ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ایوب رحمه الله ابن موسی دخپل پلار (حضرت موسی رحمه الله) نه او هغه د ایوب د نیکه (حضرت ابن سعید رحمه الله) نه نقل کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ۲ هیڅ پلار خپل خوی ته د نیك ادب او صحیح تربیت نه ښه شی نه ورکوي (ترمذي، بیهقي) ۳ ترمذي ویلي دي خما په نز د دا حدیث مرسل دی

**حل اللغات:** - ① نَحَلَ: عطیه هدیه او تحفه

**تسهیلات:**

**قوله: مَا نَحَلَ وَالِدٌ وَلَدَهُ مِنْ نُحْلٍ أَفْضَلَ مِنْ أَدَبٍ حَسَنٍ:**
**بچوته د ټولو څخه ښه تحفه اوډالۍ:** هرسړې غواړی چه دخوشحالئی په موقع باندې خپلو

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی أدب الولد (رقم-۱۹۵۲) واحمد فی المسند: ۹۶/۵

بچو ته تحفې او تحائف ورکړي چنانچه خلق مختلف قسم تحفې راوړي مګر په دې حديث کښې خودلې شوي دي چه د ورو ماشومانو بهترينه تحفه او ورکړه هغوی ته ادب خودل دي وجه داده چه ادب يو داسې کالي دې چه په هره زمانه او هرعمر کښې ښائست او زيبائش او ښکلا ښائي.

**[۴۹۷۸] د بچو ښه تربيت کونکې ښځه به په جنت کې د حضور پاک ﷺ سره نزدې وي**

۴۹۷۸-()[۳۲] [۱] وَعَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ الْأَشْجَعِيِّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«أَنَا وَامْرَأَةٌ سَفْعَاءُ الْخَدَّيْنِ كَهَاتَيْنِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ". [۳] وَأَوْمَأَ يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ إِلَى الْوُسْطَى وَالسَّبَّابَةِ " [۴] امْرَأَةٌ آمَتْ مِنْ زَوْجِهَا، ذَاتُ مَنْصِبٍ وَجَمَالٍ، حَبَسَتْ نَفْسَهَا عَلَى يَتَامَاهَا [۵] حَتَّى بَانُوا أَوْ مَاتُوا»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عوف ابن مالک اشجعي رضي الله عنه وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل. [۲] زه او هغه ښځه چې د هغه اننګي (د خپل اولاد د پرورش. نګراني. محنت. مشقت او ترک زينت او ارائش په وجه) تور شوي وي، د قيامت په ورځ به داسې يو. [۳] د حديث راوي يزيد ابن ذريع رحمه الله دا الفاظ بيانولو نه پس د شهادت ګوتي طرف ته اشاره کولو سره وفرمايل، چې څرنګه دا دواړي ګوتي يوبل ته نزدې وي، دغه شان د قيامت په ورځ به حضور ﷺ او هغه کونډه ښځه نزدې نزدې وي) او د تور آننګو والا ښځي [شرح کولو سره وي ښودل] [۴] چې د دې نه مراد هغه ښځه ده، چې د خپل خاوند د مرګ نه پس يا د هغه د طلاق ورکولو په وجه کونډه شوي وي، او هغه د حسين وجميل او جاه وعزت والا کيدو باوجود محض د خپل يتيم بچو د پرورش او د هغوئ د خير ښيګړې د خاطره دويمي نکاح نه ځان وساتي [۵] تردې چې هغه بچي ځيني جدا شي، يعنی لوی شي او بالغ کيدو په وجه د مور محتاج پاتي نشي، يامرګ د هغوئ په منځ کې جدائي راولي (ابو داؤد)

**حل اللغات:-** ① سَفْعَاءُ: تور شوي وي. ② الْخَدَّيْنِ: دواړه اننګی. ③ آمَتْ: کونډه شوې وی. ④ ذَاتُ مَنْصِبٍ: عزت والا. عهده لرونکې. ⑤ يَتَامَا: د يتيم جمع ده. ⑥ بَانُوا: جدا شو.

د حديث الباب حاصل دا دي چه هغه ښځه چه د هغې واړه واړه بچي وی او خاوند ئې مړ شی يا ورله خاوند طلاق ورکړی او هغه صرف د بچو د تربيت د وجه نه دويم واده اونه کړی بلکه د بچو تربيت کښې اخته شی نو د داسې حوصله منده او صبر ناکې ښځه په باره کښې نبي عليه السلام فرمائي چه دا به د قيامت په روځ ماسره دومره نيزدې وی لکه دا دوه ګوتې د دينه معلومه شوه چه کونډه يا مطلقه ښځه د بچو د تربيت په خاطر د عفت او پاکدامنې سره دويم واده اونه کړی نو د دې ډير زيات فضيلت راغلې دې هان البته که

^۱) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب الأدب/باب فی فضل من عال يتيمًا (رقم-۵۱۴۹) واحمد فی المسند: ۷۸/۴

یوه ښځه د خپل عفت او پاکدامنۍ خیال نشی ساتلې نو هغه دي دویم واده اوکړی (مرقاة)

**[۴۹۷۹] پلار دې خوئی له په لور باندې ترجیح نه ورکوی**

۴۹۷۹-(¹) [۳۳] [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«مَنْ كَانَتْ لَهُ أُنْثَى فَلَمْ يَئِدْهَا وَلَمْ يُهِنْهَا، [۳] وَلَمْ يُؤْثِرْ وَلَدَهُ عَلَيْهَا - يَعْنِي الذُّكُورَ - أَدْخَلَهُ اللَّهُ الْجَنَّةَ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عباس رضی الله عنهما وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمایل، [۲] د کوم سړی چې لور یا خور وي، او هغه ژوندی درګور نکړي (لکه څرنګه چې په زمانه د جاهلیت کې رواج وو، چې خلقو به د فقر د خوف نه جینکۍ پیدا کیدو سره ژوندی دفن کولې) نه خو هغه ذلت او حقارت سره وساتي، [۳] او نه ورکړه وغیره کې خپل ولد یعني ځوی ته په هغه باندې ترجیح ورکړي نو الله جل جلاله به هغه سابقین او صلحاء سره په جنت کې داخل کړي (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① أُنْثَى : لونړه، ② لَمْ يَئِدْهَا : ژوندۍ ئې ښخې نه کړی، ③ لَمْ يُهِنْهَا: سپکوالی او حقارت ئې اونه کړی، ④ لَمْ يُؤْثِرْ: نه ترجیح ورکړې شی،

**تسهیلات:**

**د بعضې مشکلو جملو وضاحت:**

① أُنْثَى: أي بنت وأخت دانثي نه مراد لور او خور دواړو ته شامل دي. فلم يئدها أي لم يدفنها حية يعني هغه ئې ژوندې ښخه نه کړه لکه څنګه چه به ئې د جاهلیت په زمانه کښې د شرم د وجه نه خپلې لونړه ژوندې خخولې.

② وَلَمْ يُهِنْهَا: أي من الإهانة دا د الله تعالي دې قول طرف ته اشاره ده و إذا بشر احدهم بالأنثي ظل وجهه مسودا و هو كظيم الايه. د قام د طرف نه د خوشخبرئ د اوریدو د ویرې نه به ئې ژوندې خخولې

③ وَلَمْ يُؤْثِرْ: أي من الإيثار يعني په محبت او سهولیاتو او تادیب وغیره کښې په لور باندې ځوئې له ترجیح ورنه کړی.

**[۴۹۸۰] د مسلمان رور غیبت کولکی رورلره منع کول پکار دی**

۴۹۸۰-(²) [۳۴] [۱] وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: [۲] "«مَنِ اغْتِيبَ عِنْدَهُ أَخُوهُ الْمُسْلِمُ وَهُوَ يَقْدِرُ عَلَى نَصْرِهِ فَنَصَرَهُ، [۳] نَصَرَهُ اللَّهُ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ. [۴] فَإِنْ لَمْ يَنْصُرْهُ وَهُوَ يَقْدِرُ عَلَى نَصْرِهِ، أَدْرَكَهُ اللَّهُ بِهِ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ» ". رَوَاهُ فِي "شَرْحِ السُّنَّةِ".

---

(¹) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب الأدب /باب فی فضل من عال یتیمًا (رقم-۵۱۴۶) واحمد فی المسند: ۱/۲۲۳

(²) اخرجه البغوی فی شرح السنه رقم ۳۵۳۰

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس ﷺ د رسول الله ﷺ نه روایت کوي، چې رسول الله ﷺ وفرمایل، [۲] د کوم سړي مخکښې چې د هغه د مسلمان ورور غیبت وشي، او هغه د هغه مسلمان ورور مدد وکړي، په شرط د دې چې مدد کولو باندې قادر وي، [۳] نو الله ﷻ به په دنیا او آخرت کې د هغه مدد وکړي، [۴] او که هغه مدد کولو باندې د قادرکیدو باوجود د هغه مدد ونه کړي، نو الله ﷻ به په دنیا او آخرت کې د هغه مواخذه کوي (شرح السنه)

**حل اللغات:** - ① اغْتِيبَ: غیبت اوکړې شی

**تسهیلات:**

**قوله: مَنِ اغْتِيبَ عِنْدَهُ أَخُوهُ الْمُسْلِمُ وَهُوَ يَقْدِرُ عَلَى نَصْرِهِ فَنَصَرَهُ، نَصَرَهُ اللَّهُ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ:**

**غیبت کونکې د غیبت څخه د منع کولو ترغیب:** غیبت کونکې کس د غیبت نه منع کول د هغه سره نصرت کول دی لهذا د غیبت نه منع کونکی کس سره به الله پاک دنیا او آخرت کښې مدد اوکړی. د غیبت کونکی په نصرت باندې د قدرت لرو باوجود ئې که منع نه کړی نو بیا به په دنیا او آخرت کښې د ده مواخذه کیږی.

**[۴۹۸] دَ یومسلمان رور غیبت کونکی لره منع کونکی دپاره دَ دوزخ اور حرامیږی**

۴۹۸ - (۱) [۳۵] [۱] وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيدَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " [۲] «مَنْ ذَبَّ عَنْ لَحْمِ أَخِيهِ بِالْمَغِيبَةِ [۳] كَانَ حَقًّا عَلَى اللَّهِ أَنْ يُعْتِقَهُ مِنَ النَّارِ» ". رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي " شُعَبِ الْإِيمَانِ ".

**ترجمه:** [۱] او بي بي اسماء بنت یزید ﷺ وایي، چې رسول الله ﷺ وفرمایل، [۲] کوم سړی چې د خپل مسلمان ورور د هغه د غوښې خوړلو نه منع کړي (یعنې د هغه مخکښې د یومسلمان ورور غیبت کېږي او هغه دي حرکت نه منع کړي) [۳] نو د هغه په الله داحق دی چې هغه د دوزخ د اور نه آزاد کړي (بیهقي)

**حل اللغات:** - ① ذَبَّ: اوشړی، منع کړی، ② الْمَغِيبَةِ: غیبت کول، ③ يُعْتِقَهُ: آزاد کړی

**تسهیلات:**

**قوله: مَنْ ذَبَّ عَنْ لَحْمِ أَخِيهِ بِالْمَغِيبَةِ:**

**دیوکس دغیبت څخه په منع کولو د جنت زیري:** یعنی غائبانه توګه باندې دَخپل مسلمان رور دَغیبت نه بل مسلمان منع کول چه ګوره روره دې وخت کښې هغه موجود نه دې زما په مخکښې دَهغه غیبت مه کوه دې نه مخکښې دَحضرت انس ﷺ دَ حدیث مطلب هم دغه شان دې. او دې نه پس راتلونکی یوڅو احادیثو مفهوم او مضمون هم دغه شان دې.

**قوله: عَنْ لَحْمِ أَخِيهِ:**

[۱] اخرجه احمد في المسند: ۴۶۱/۶

**د غیبت غوښې خوړلو سره د تشبیه وجه:** چه کوم کس د چا غیبت کوی نو لکه چه دې د هغه غوښه خوری قرآن پاک کښې د دې بدی بیان شوې ده الله تعالی په قرآن کښې فرمائی «اَيُحِبُّ اَحَدُكُمْ اَنْ يَّأْكُلَ لَحْمَ اَخِيْهِ مَيْتًا فَكَرِهْتُمُوْهُ» د غیبت کولو تشبیه ئي د غوښې خوړلو سره ورکړې ده ددې سبب دا دې چه در اصل د هغه مغتاب له (چه د چا غیبت کیږی) بې عزتی اوشوه او چونکه خپل عزت او حیا د ځان نه هم محبوبه وی اوس چه یو کس د خپل مسلمان رور د غیبت په وجه بی عزتي اوکړه نو لکه چه ده هغه هلاک کړو او د هغه غوښه ئي اوخوړه

**قوله: كَانَ حَقًّا عَلَى اللّٰهِ أَنْ يُعْتِقَهُ مِنَ النَّارِ:**

**د جهنم نه د نجات په موندلو دوه احتمالات:**

① دا کس به د شروع نه د اور نه نجات موندونکې اوګرځولې شی

② هغه کس د خپلو ګناهونو د وجه نه دوزخ ته داخل شو بیا به د عذاب پوره کیدو نه پس د جهنم نه راوباسلې شی او جنت ته به داخل کړې شی.

**[۴۹۸۲] یو مسلمان رور لره د غیبت نه د منع کولو ثواب**

۴۹۸۲-() [۳۶] [۱] وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: " [۲] «مَا مِنْ مُسْلِمٍ يَرُدُّ عَنْ عِرْضِ أَخِيهِ [۳] إِلَّا كَانَ حَقًّا عَلَى اللّٰهِ أَنْ يَرُدَّ عَنْهُ نَارَ جَهَنَّمَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ» ". [۴] ثُمَّ تَلَا هٰذِهِ الْآيَةَ: ﴿وَكَانَ حَقًّا عَلَيْنَا نَصْرُ الْمُؤْمِنِينَ﴾ [الروم: ۴۷]. رَوَاهُ فِي "شَرْحِ السُّنَّةِ".

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابودرداء ﷺ وایي، ما د رسول الله ﷺ نه واوریدل، [۲] کوم مسلمان چې یو خپل مسلمان ورور د بي عزتي کولو یعنی د هغه غیبت کولو نه منع کړي، [۳] نو په الله باندې د هغه حق دی چې د قیامت په ورځ هغه د دوزخ د اور نه یې لرې کړي [۴] بیا حضور ﷺ خپل قول کَانَ حقًّا ثابتولو د پاره دا آیت اووئیلو، (وَكَانَ حَقًّا عَلَيْنَا نَصْرُ الْمُؤْمِنِينَ) ترجمه الله ﷻ فرمایي چې د مؤمنانو مدد کول په مونږ واجب دی. (شرح السنه)

**حل اللغات:** - ① عِرْضٍ: عزت.

**تسهیلات:**

**قوله: مَا مِنْ مُسْلِمٍ يَرُدُّ عَنْ عِرْضِ أَخِيهِ لَا كَانَ حَقًّا عَلَى اللّٰهِ أَنْ يَرُدَّ عَنْهُ نَارَ جَهَنَّمَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ:**

**د یو مسلمان د عزت بچ کولو فضیلت:** ددې نه مراد عزت او آبرو ده دَ عرض تخصیص په دې وجه اوکړې شو چه عموماً خلق په معمولی خبرو باندې سپکاوی پسې لګي او په دې سلسله کښې احتیاط کم کوی. دارنګ عزت دَ ټولو نه لوئی دولت دې تردې چه انسان

[۱] والترمذی فی السنن کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الذب عن عرض المسلم (رقم ۱۹۳۱) واحمد فی المسند: ۴۵۰/۶

دَ خپل ځان او مال نه هم دَ دې زيات حفاظت کوي

**فائده:** په دې روايت سره دَمسلمانانو په خپل مينځ کښې د معاملاتو تعاون او تعاضد، مضرت لرې کول او جلب منفعت او د خيرخواهئی فضيلت معلوم شو چه دا ټول امور دَ جنت دَ داخلې ذريعه او دَ جنهم دَ اُور نه دَ حفاظت ذريعه ده

**[۴۹۸۳]مسلمان رور لره د غیبت نه د منع کولو او د نه منع کولو نتیجه**

۴۹۸۳-(١)[٣٧] [١]وَعَنْ جَابِرٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: [٢] «مَا مِنِ امْرِءٍ مُسْلِمٍ يَخْذُلُ امْرَأً مُسْلِمًا فِي مَوْضِعٍ يُنْتَهَكُ فِيهِ حُرْمَتُهُ، وَيُنْتَقَصُ فِيهِ مِنْ عِرْضِهِ [٣] إِلَّا خَذَلَهُ اللَّهُ تَعَالَى فِي مَوْطِنٍ يُحِبُّ فِيهِ نُصْرَتَهُ، [٤] وَمَا مِنِ امْرِءٍ مُسْلِمٍ يَنْصُرُ مُسْلِمًا فِي مَوْضِعٍ يُنْتَقَصُ فِيهِ مِنْ عِرْضِهِ، وَيُنْتَهَكُ فِيهِ مِنْ حُرْمَتِهِ [٥] إِلَّا نَصَرَهُ اللَّهُ فِي مَوْطِنٍ يُحِبُّ فِيهِ نُصْرَتَهُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [١]او د حضرت جابر ﷺ نه روايت دی، چې رسول الله ﷺ وفرمايل. [٢]کوم مسلمان چې د خپل مسلمان ورور په هغه موقع مدد ونه کی، او د غيبت کونکی د غيبت نه منع کړي چيرته چې د هغه بې حرمتي کېږي، [٣]نو الله ﷻ به هم په دنيا او آخرت کې په هغه موقع د هغه مدد ونه کړي چيرته چې هغه د الله مدد خوښوي، [٤]او کوم مسلمان چې د خپل مسلمان ورور په هغه موقع مدد وکړي چيرته چې د هغه بې عزتي کېږي. [٥]نو الله به هم په هغه موقع د هغه سړي مدد وکړي، چيرته چې دهغه د الله مدد خوښوي (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① يَخْذُلُ: بې يارو مددگار پرېښودل، يعنی شرموی ئې؛ ② يُنْتَهَكُ: سپکوالي او بې عزتي ئې کيږی. ③ يُنْتَقَصُ: کموالي او نقصان ئې کيږی، ④ عِرْضِ: عزت.

**تسهيلات:**

**نوټ:** دحديث د ترجمې څخه مطلب ښکاره دې د مزيد تفصيل څه خاص ضرورت نشته

**[۴۹۸۴]يو مسلمان لره د بل مسلمان عيب پټول پکار دی**

۴۹۸۴-(٢)[٣٨] [١]وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] «مَنْ رَأَى عَوْرَةً فَسَتَرَهَا [٣] كَانَ كَمَنْ أَحْيَا مَوْءُودَةً». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ وَصَحَّحَهُ.

**ترجمه:** [١]او حضرت عقبه ابن عامر ﷺ وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل. [٢]کوم سړی چې د يو مسلمان څه عيب ووينې، او هغه پټ کړي [٣]نو د هغه درجه به د هغه سړي برابر وي چې ژوندی دفن کړي جنۍ بچ کړي احمد او ترمذي دا روايت نقل کړی دی. او دا يې صحيح گرځولی دی.

---

(١) اخرجه ابو داود في السنن كتاب الأدب/باب من رد عن مسلم غيبةً (رقم-٤٨٨٤) واحمد في المسند: ٤/٣٠

(٢) اخرجه ابو داود في السنن كتاب الأدب/باب في الستر على المسلم (رقم-٤٨٩١) والترمذي في كتاب البر والصلة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في الستر على المسلم (رقم-١٩٣٠) واحمد في المسند: ٤/١٤٧

**حل اللغات**: - ① عَوْرَةً: د بدن هغه ځای چه دهغې په ښکاره کیدو انسان شرم محسوسوی. عیب.
② مَوْءُودَةً: ژوندئ خښه کړې شوې لور

**تسهیلات:**

**قوله: كَانَ كَمَنْ أَحْيَا مَوْءُودَةً:**

**د تشبیه وجه**: دَدې تشبیه وجه داسې ده چه مثلاً یو شریف سړې دې بدقسمتئی سره دَهغه نه څه ګناه اوشوه اوس دَ شرم دوجې نه هغه دا خواهش کوی چه افسوس زما دا عیب ښکاره نه شی او افسوس چه زه مړشم چه دَدې رسوائیئ نه بچ شم. په داسې صورت کښې که څوك دَ هغه عیب پټ کړی نولکه چه ده هغه سړې راژوندې کړو ځکه چه دَهغه عیب ښکاره کیدل دَهغه دَپاره دَ مرګ برابر وو. نو په دغه پرده ساتلو کښې ثواب دې مګر یاد لرئی که یو سړې دَ یوګناه عادت دې بار بار ګناه کوی او دَهغه دا جرم متعدی کیږی هم نو دا ښکاره کول ضروری دی پټول جائز نه دی

**[۴۹۸۵] یو مسلمان دَبل مسلمان دَپاره آئینه ده**

۴۹۸۵-()[۳۹] ١ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ٢ " «إِنَّ أَحَدَكُمْ مِرْآةُ أَخِيهِ، ٣ فَإِنْ رَأَى بِهِ أَذًى فَلْيُمِطْ عَنْهُ» ". ٤ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَضَعَّفَهُ. ٥ وَفِي رِوَايَةٍ لَهُ وَلِأَبِي دَاوُدَ: ٦ " «الْمُؤْمِنُ مِرْآةُ الْمُؤْمِنِ، وَالْمُؤْمِنُ أَخُو الْمُؤْمِنِ، ٧ يَكُفُّ عَنْهُ ضَيْعَتَهُ، وَيَحُوطُهُ مِنْ وَرَائِهِ» ".

**ترجمه**: ١ او حضرت ابوهریره رضی الله عنه وایي، چې رسول الله ﷺ وفرمایل، ٢ په تاسو کې هرسړی د خپل مسلمان ورور په حق کې د هینداري په شان دی، ٣ که تاسو په هغه کې څه عیب ووینئ نو هغه ځیني لري کړي (یعني که په یو مسلمان کې څه معیوبه خبره وویني یا په غلط لاره یي ووینې نو په سیده لار د راوستو یي هم مخکې کوشش کوي او نرمي او شفقت سره که د زجر او تنبیه په ذریعه که هغه معیوب کولو سره وي، غرض د اصلاح او نصیحت چې کوم شرائط او قواعد دی، د هغه مطابق چې څرنګه کیدي شي هغه د بدی نه د منع کولو کوشش کوي) ٤ ترمذي دا روایت نقل کړی دی، او دایي ضعیف ګرځولی دی. (یعني د هغه په نزد دا حدیث مذکوره الفاظ کې روایت کول د ضعف نه خالي نه دی) ٥ او د ترمذي یو دویم روایت او د ابوداود په روایت کې داسې دی. ٦ چې حضور ﷺ وفرمایل یو مسلمان د بل مسلمان هنداره ده، او یو مسلمان د بل مسلمان ورور دی، ٧ چې هغه د هغه نه هغه عیب لري کوي، چې په هغه کې د هغه د پاره نقصان او هلاکت دی، او د هغه په عدم موجودګی کې هم د هغه د حقوق او مفاداتو

---

[1] اخرجه ابو داود فی السنن کتاب الأدب/باب فی النصیحة والحیاطة (رقم-۴۹۱۸) والترمذی فی کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی شفقة المسلم علی المسلم (رقم-۱۹۲۹)

تحفظ کوي

**حل اللغات:** - ①مِرْآةُ: آئینه. شیشه، ②أَذًى: تکلیف. عیب. ③فَلْيُمِطْ: نو لرې دې کړي. ④يَكُفُّ: بندوي، ⑤ضَيْعَتَهُ: ضاع نه دې ضائع کیدلو نقصان او خسارې ته وائی ⑥يَحُوطُهُ: حفاظت کوی دهغه. خیرخواهی کوی دهغه، ⑦مِنْ وَرَائِهِ: دهغه پشی شا . دهغه په غیرموجودګئ کښې.

**تسهیلات:**

**قوله:** إِنَّ أَحَدَكُمْ مِرْآةُ أَخِيهِ:

**د شیشې سره د تشبیه مطلب:** مومن چونکه دَبل مومن رور دې نودواړه په ګټه او تاوان کښې شریك دی. که چرته په یو کښې څه عیب اونقصان وی اوبل ئی اووینی نوهغه دې فوری خبر کړي دې دَپاره چه هغه خپل ځان دَدغه عیب نه پاك کړی ځکه چه یو مومن دَ بل مومن دَپاره دَ آئینې په شان دې.

**د شیشې سره د تشبیه ورکولو وجه:** په آئینه کښې چه کله سړې ګوری نوهریولوئی او وړوکې عیب ورته ښکاری.نومسلمان رور له هم دَ بل مسلمان دَپاره حساس کیدل پکاردی اودَ نقصان خسران او هلاکت نه هغه بچ کول پکاردی.قاعده داده چه سړې کله خپل مخ په آئینه کښې ګوری نوکه هغه ته په مخ باندې څه داغ وغیره ښکاری نوهغه دَدې فوری ختمولو کوشش کوی.دغه شان چه کله یومومن رور بل ته دَ هغه عیب اوخودلو نوهغه له فوری دَ دغه عیب دَختمولو کوشش کول پکاردی.

**قوله:** وَالْمُؤْمِنُ أَخُوالْمُؤْمِنِ ،يَكُفُّ عَنْهُ ضَيْعَتَهُ:

یعنی دَهغه تباهی اوهلاکت منع کوی ځکه چه دواړه په خپل مینځ کښې رونړه رونړه دی لهذا دَ یو نقصان دَ بل نقصان دې.

**[۴۹۸۶]مؤمن دَ منافق دَشر نه دبچ ساتلواودَ نه ساتلو نتیجه**

> ۴۹۸۶-()[۳۰] ①وَعَنْ مُعَاذِبْنِ أَنَسٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ②" «مَنْ حَمَى مُؤْمِنًا مِنْ مُنَافِقٍ ③بَعَثَ اللّٰهُ مَلَكًا يَحْمِي لَحْمَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مِنْ نَارِ جَهَنَّمَ، ④وَمَنْ رَمَى مُسْلِمًا بِشَيْءٍ يُرِيدُ بِهِ شَيْنَهُ حَبَسَهُ اللّٰهُ عَلَى جِسْرِ جَهَنَّمَ حَتَّى يَخْرُجَ مِمَّا قَالَ» ". رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** ①او حضرت معاذ ابن انس رضي الله عنه وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل، ②کوم سړی چې د یو مسلمان عزت د منافق د شر نه وساتي، ③الله تعالیٰ د هغه د پاره یوه فرښته راليږي چې د قیامت په ورځ به يې د دوزخ د اور نه وساتي، ④او کوم سړی چې په یو مسلمان باندې داسې تهمت لګوي، چې د هغه په ذریعه د هغه مقصد هغه مسلمان عیب دار جوړول او د ده حیثیت ته نقصان رسول وي نو الله تعالیٰ به هغه د دوزخ په پل قید کړي،

---

() اخرجه ابو داود فی السنن رقم ۴۸۸۳ واحمد فی المسند ۳/ ۴۴۱

تردي چې هغه د هغه تهمت لګولو د وبال نه ووځي (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ①حَمٰى: حفاظت اوکړی، ②مَلَكًا: فرشته، ③رَمٰى: اولی، تهمت یا بهتان اولګوی. ④شَيْنَ: عیب، شرمول، ⑤جِسْر: پُل،

**تسهيلات:**

**قوله:** مَنْ حَمٰى مُؤْمِنًا مِنْ مُنَافِقٍ:

**د منافق نه څه مراد دی:** دلته دَمنافق نه غیبت کونکې مسلمان مراد دې ځکه چه منافق مخامخ ډیر خوږ وی مګر پشی شا دښمن وی دغه شان منافق په ژبه سره دَ دوستئ مظاهره کوی مګر په زړه کښې دښمنی لری.دَغیبت کونکی مسلمان معامله هم دَدغه منافق په شان ده په دې وجه په دې حدیث کښې هغه دَ منافق په لفظ سره یاد کړې شوې دې

**قوله:** حَتّٰى يَخْرُجَ مِمَّا قَالَ:

**د پاک کیدلو صورتونه:** یعنی ترکومې پورې چه دَ دغه ګناه نه پاکیږی نه په پل صراط باندې به ولاړ وی ① دَ پاکیدو صورت دادې چه صاحب حق راضی کړی ② یا په سزا تیرولو سره به پاك شی ③ یا به دَ چرته نه دَهغه شفاعت اوشی نوبیابه دَ دغه ګناه نه بهر شی او جنت ته به لاړشی.

**[۴۹۸۷]ښه دوست او ښه ګاوندی هغه دې چه خیر خواه وی**

۴۹۸۷-(¹) [۳۱] [۱]وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " [۲]«خَيْرُ الْأَصْحَابِ عِنْدَ اللّٰهِ خَيْرُهُمْ لِصَاحِبِهِ، [۳]وَخَيْرُ الْجِيرَانِ عِنْدَ اللّٰهِ خَيْرُهُمْ لِجَارِهِ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ، [۴]وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [۱]او حضرت عبد الله ابن عمرو رضی الله عنهما وایي چی رسول الله ﷺ وفرمایل، [۲]د الله په نز د ثواب او فضیلت د اعتبار نه په دوستانو کې بهترین دوست هغه دی چې د خپلو دوستانو بهترین خیر خواه وي [۳]او د الله په نزد په ګاونډیانو کې بهترین ګاونډي هغه دی چې د ګاونډیانو بهترین خیرخواه وي. ترمذي دارمي. [۴]ترمذي ویلي دي داحدیث حسن غریب دی

**حل اللغات:-** ①الْجِيرَان: د جار جمع ده. ګاونډی.

**تسهيلات:**

¹) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی حق الجوار (رقم-۱۹٤٤) واحمد فی المسند:۱۶۸/۲

**د بعضې مشکلو جملو وضاحت:**

① خَيْرُ الْأَصْحَابِ: أي أكثرهم ثوابا، عِنْدَ اللّٰهِ: أي في حكمه الذي هو المعتبر عند الكل

② خَيْرُهُمْ لِصَاحِبِهِ: أي أكثرهم احسانا ولو بالنصيحة: يعني د الله په نيز بهترين دوستان هغه خلق دي کوم چه د احسان په اعتبار د خپلو دوستانو سره بهترين وي اگر چه د نصيحت سره دې ولې نه وي.

**[۴۹۸۸] ځان باره کې دَ خلقو ژبه دَ الله تعالى اعلان اوګڼړه**

> ۴۹۸۸-( )[۳۲] [۱] وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ[۲]: «قَالَ رَجُلٌ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! [۳] كَيْفَ لِي أَنْ أَعْلَمَ إِذَا أَحْسَنْتُ أَوْ إِذَا أَسَأْتُ؟ [۴] فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا سَمِعْتَ جِيرَانَكَ يَقُولُونَ: قَدْ أَحْسَنْتَ؟ [۵] فَقَدْ أَحْسَنْتَ، [۶] وَإِذَا سَمِعْتَهُمْ يَقُولُونَ: قَدْ أَسَأْتَ فَقَدْ أَسَأْتَ» " رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن مسعود ﷺ وايي، [۲] يو سړي رسول الله ﷺ ته عرض وکړو، چې يارسول الله! [۳] زه خپله نيکوکاري يا بدکاري څرنګه معلومولی شم، يعنی که زه داسې کار وکړم، چې د هغه شرعًا نيکي بدي نه ملعوميږي نو داسي کومه ذريعه ده چې په هغه سره زه دا معلومه کړم چې د هغه په کولو سره زه نيکو کار جوړ شم، يا بدکار. [۴] حضور ﷺ ورته وفرمايل هرکله چې ته د خپل کار باره کې خپلو ګاونډيانو نه دا واوري، چې تا ښه کار کړي دی، [۵] نو ستا کار ښه دی، [۶] او هرکله چې د ګاونډيانو نه دا واوري، چې تا بد کار کړی دی، نو ستا هغه کار بد دی يعنی ستا نيکو کار يا بد کار کيدل به ستا د ګاونډيانو د شاهدی په ذريعه معلوميږي. (ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① أَحْسَنْتُ: نيک کار اوکړم، ② أَسَأْتُ: بدکار اوکړم ③ جِيرَانَكَ: د ګاونډی خپل نه.

**تسهيلات:**

**قوله:** إِذَا سَمِعْتَ جِيرَانَكَ يَقُولُونَ: قَدْ أَحْسَنْتَ؟:

**د جيران نه کوم ګاونډی مراد دې:** يعنی چه ته کله واورې چه ستا ګاونډی تا ته ښه سړې وائی نو پوهه شه چه ته ښه سړې ئی او که چرې ګاونډی دې وائی چه خراب سړې دې نو پوهه شه چه ته خراب سړې ئی. دلته دَ جيران نه دوه څلورسړی مراد نه دی بلکه عام ګاونډی مراد دې شيخ عبدالحق ﷫ ليکلی دی چه دَ ګاونډيانو نه مراد هغه ګاونډی دې دکوم تعلق چه اهل حق سره وی اوهغوی انصاف والا او پوهه خلق وی. چه نه دَ هغه سړی نيزدې دوست وی اونه بالکل دښمن وی. دَ حضرت قول هم دَدې حديث ترجمانی کوی. فرمائی "أَلْسِنَةُ الْخَلْقِ أَقْلَامُ الْحَقِّ" هغه دَ اردو محاوره ده "زبان خلق نقارۂ خدا" يو شاعر

[۱] اخرجه ابن ما جه في السنن كتاب الزهد/باب الثناء الحسن (رقم-۴۲۲۲) واحمد في المسند:۱/۴۰۲

وائی. [اشعة اللمعات]

بُرا کہے جسے عالم اسے برا سمجھو   زبانِ خلق کو نقارۂ خدا سمجھو

یعنی چه کوم سړی ته عالم خراب اووائی هغه هم خراب اوګنړئی ځکه چه دمخلوق دخلې نه وتلې خبره دالله تعالی اعلان اوګنړئی.

**[٤٩٨٩]هر چا سره دهغه د مرتبې مطابق معامله کوه**

٤٩٨٩-(١) [٣٣] ١وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا - أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: ٢" «أَنْزِلُوا النَّاسَ مَنَازِلَهُمْ» " رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ١او د بي بي عائشه رضي الله عنها نه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل. ٢هر سړی د هغه په درجه کې ساته یعنی د هر سړی سره د هغه د مرتبی مطابق معامله کوه. (ابو داؤد)

**حل اللغات:** - ١أَنْزِلُوا: ښکته کړه، یعنی ورکړئ حیثیت. ٢مَنَازِلَهُمْ: مرتبه او درجه دهغوی

**تسهیلات:**

**قوله: أَنْزِلُوا النَّاسَ مَنَازِلَهُمْ:**

**په حدیث کښې د فرق المراتب تعلیم او اهمیت:** دَدې حدیث نه دَمرتبو اودرجو په مینځ کښې دَفرق تعلیم ملاویږی چه دَخادم درجه یو وی اودَمخدوم مقام بل وی فاضل اوغیرفاضل کښې فرق دې یوسړې په اس باندې سور وی خپل خادم سره راځی نودَ اس مقام یودې اودَ خادم مقام بل دې اودَ په اس سور آقا مقام بل دې. یو روایت کښې دی "أكرموا كريم قوم" اوس مثلاً یو سړی په ژوند کښې یو قسم ډیره ښکلې اومزیدار خوراك نه دې کړې مثلاً هغه چپاتی نه دی لیدلی نو که هغه ته چپاتی پیش کړې نو هغه به څه کوی دَهغه مخې ته خودَ جوارو پیړه روټئی کیږده دې دَپاره چه دَهغه خیټه ډکه شی او یو سړی ټول ژوند نرم خوراك کړې دې چه هغه ته دَ جوارو روټئی پیش کړې هغه به وائی دا دَ سیمټو روټئی ده بهرحال تعظیم اوتکریم کښې یوشان والې او مساوات قائمول اوفرق مراتب ختمول دَعرفی اوشرعی قواعدو نه خلاف دې. په جمهوریت دې لعنت وی دې خو دَ سړی اونه سړی مقام ختم کړو

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[٤٩٩٠] د الله او دهغه د رسول دمحبت دعوی کونکی دې دا اعمال کوی**

---

[1]) اخرجه ابو داود فی السنن كتاب الترجل /باب ما جاء فی خاتم الذهب (رقم-٤٢٢٢)

(۲۴) [۱] عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي قُرَادٍ [۲] «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - تَوَضَّأَ يَوْمًا، فَجَعَلَ أَصْحَابُهُ يَتَمَسَّحُونَ بِوَضُوئِهِ، [۳] فَقَالَ لَهُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَا يَحْمِلُكُمْ عَلَى هَذَا؟ [۴] " قَالُوا: حُبُّ اللَّهِ وَرَسُولِهِ. [۵] فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۶] " مَنْ سَرَّهُ أَنْ يُحِبَّ اللَّهَ وَرَسُولَهُ أَوْ يُحِبَّهُ اللَّهُ وَرَسُولُهُ فَلْيَصْدُقْ حَدِيثَهُ إِذَا حَدَّثَ، وَلْيُؤَدِّ أَمَانَتَهُ إِذَا أُؤْتُمِنَ، وَلْيُحْسِنْ جِوَارَ مَنْ جَاوَرَهُ» ".

**ترجمه:** [۱] د حضرت عبد الرحمن ابن ابي قراد ﷺ نه روایت دی [۲] چې یوه ورځ رسول الله ﷺ اودس وکی، نو صحابه کرامو ﷺ د رسول الله ﷺ د اودس اوبه په خپل جسم مږل شروع کړه، [۳] رسول الله ﷺ په دې لیدو سره وفرمایل تاسو چې داخه کوې د دې سبب څه دی [۴] هغوئ عرض وکړو، د الله او د هغه د رسول محبت د دې باعث دی. [۵] رسول الله ﷺ وفرمایل، [۶] کوم سړی چې داخوښوي، چې الله او د هغه رسول هغه سره پوره محبت وساتي، یاکوم سړی داغواړي چې الله او د هغه رسول هغه سره محبت وکړي نو هغه ته پکار دی ① چې کله خبره کوي نو رښتیا وایي، ② که امانت ورسره کیخودل شي هغه اداکړي، ③ او د ګاونډیانو سره د ښه ګاونډي ثبوت ورکړي

**حل اللغات:** - ① يَتَمَسَّحُونَ: مږلې ئي. ② يَحْمِلُكُمْ: راپورته کوي یا راپاره کوي تاسو. ③ سَرَّهُ: خوښي ئي. ④ حَدِيثَهُ: خبره خپله، ⑤ حَدَّثَ: خبره کوي، ⑥ وَلْيُؤَدِّ: او ادا کوي دې. ⑦ جِوَارَ: ګونډي توب. ⑧ جَاوَرَهُ: چه دده سره ئې ګاونډي توب وي،

**تسهیلات:**

**قوله: مَا يَحْمِلُكُمْ عَلَى هَذَا؟" قَالُوا: حُبُّ اللَّهِ وَرَسُولِهِ:**

**د نبي کريم صلى الله عليه وسلم د جواب خلاصه:** صحابه کرامو ﷺ به د نبي علیه السلام د چارانداِم نه پاتې شوې اوبه په خپلو لاسونو او مخونو باندې مږلې نبي علیه السلام د وجې تپوس اوکړو نووئی فرمائیل الله تعالی او د هغه رسول ﷺ سره مو محبت دې په دې وجه داسې کوو رسول الله ﷺ چه په جواب کښې څه اوفرمائیل د هغې خلاصه داده چه کوم کارونه په نفس باندې سخت نه لګی او په هغې کښې ډیر مشقت نه وی د عشق اومحبت په میدان کښې د هغې هیڅ حیثت نه وی بلکه د دغه دعوی د پاره ضروری دی چه الله تعالی او د هغه رسول ﷺ د کوم اوامر او نواهی حکم ورکړې دې چه په هغې باندې په مکمل توګه باندې سرې عمل اوکړی او د حقوق الله او حقوق العباد پوره پوره خیال اوساتی او په دغه لارکښې د هر مشقت د پاره تیارشی د پینو مجنون جوړنه شی بلکه د وینې ورکونکې مجنون جوړشی

¹) اخرجه البيهقي في شعب الايمان رقم ۱۵۳۳

## [۴۹۹۳] مومن له د ګاونډي خيال ساتل پکار دي

۴۹۹۳ - ( )[۳۵] [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ[۲]: «لَيْسَ الْمُؤْمِنُ بِالَّذِي يَشْبَعُ وَجَارُهُ جَائِعٌ إِلَى جَنْبِهِ». رَوَاهُمَا الْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ".

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عباس ﷠ وايي، ما د رسول الله ﷺ نه دا واوريدل [۲] چې هغه سړی کامل مؤمن کيدی نشي، چې په ډک نس (خيټه) طعام وخوري، حالانکي د هغه په خواکي ګاونډي وږی وي دواړه روايتونه بيهقي په شعب الايمان کې نقل کړی دی

**حل اللغات:** - ① جَائِعٌ: اوږې.

**تسهيلات:**

**قوله:** لَيْسَ الْمُؤْمِنُ بِالَّذِي يَشْبَعُ وَجَارُهُ جَائِعٌ إِلَى جَنْبِهِ:

**د مذكوره جملې مطلب:** جاره دا جمله حاليه ده او د يشبع ضمير ذو الحال دي مطلب دا چه هغه کس کامل مومن نه دي چه پخپله خو په مړه خيټه خوراک اوکړي او د خپل د ګونډي د اضطراري حالت نه خبر نه وي.

**دکمال ايمان نفي:** هغه کس د ايمان د درجې يو حيثيت ته څنګه رسيدې شي چه پخپله خو په مړه خيټه خوراک اوکړي او د ده ګاونډي اوږې اوده شي يا پخپله خو د آرام او سکون ژوند تيروي او د ګاونډي د تکليف په باره کښې تپوس هم نه کوي دا لا څنګه ژوند دې نن صبا په ښاريو کښې هم دغه شان کيږي چه په خوا کښې کور کښې جنزه پرته وي او ګاونډيان ني په خپله مستي کښې مست وي.

## [۴۹۹۴] ګاونډيا نوته د تکليف ورکونکې ښځې عذاب

۴۹۹۴-( )[۳۶] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ[۲]: «قَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! إِنَّ فُلَانَةَ تُذْكَرُ مِنْ كَثْرَةِ صَلَاتِهَا وَصِيَامِهَا وَصَدَقَتِهَا، [۳] غَيْرَ أَنَّهَا تُؤْذِي جِيرَانَهَا بِلِسَانِهَا. [۴] قَالَ: "هِيَ فِي النَّارِ". [۵] قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! فَإِنَّ فُلَانَةَ تُذْكَرُ قِلَّةَ صِيَامِهَا وَصَدَقَتِهَا وَصَلَاتِهَا [۶] وَإِنَّهَا تَصَدَّقُ بِالْأَثْوَارِ مِنَ الْأَقِطِ وَلَا تُؤْذِي بِلِسَانِهَا جِيرَانَهَا [۷] قَالَ: "هِيَ فِي الْجَنَّةِ"». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ".

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره ﷠ وايي، [۲] يوه ورځ په مجلس نبوي ﷺ کې يو سړي عرض وکړو. چې يارسول الله د فلانۍ ښځې د زيات مونځ روژې او کثرت صدقه او خيرات په وجه لويه چرچه ده. (يعني خلق وايي، چې هغه ښځه ډير زيات عبادت کوي، کثرت صدقه او خيرات کوي، [۳] ليکن هغه د خپلې ژبې په ذريعه خپلو ګاونډيانو ته تکليف رسوي) [۴] په دې اوريدو سره حضور ﷺ وفرمايل هغه به دوزخ ته ځي (هغه ښځه

---
[۱]) اخرجه البيهقى فى شعب الايمان رقم ۵۶۶، واحمد فى المسند ۱/ ۵۵

[۲]) اخرجه احمد فى المسند: ۲/ ۴۴۰

د خپلي بدزباني او کنځلو په ذريعه خپلو ګاونډيانو ته تکليف رسوي ځکه هغه به دوزخ کې اچول کېږي، باوجود د دې چې هغه مونځ روژه او صدقه او خيرات چې افضل ترين عبادات اداکوي، ليکن د هغه داعبادتونه هم د هغه د ګناه کفاره کېږي نه، ⑤هغه سړي عرض وکړو چې يارسول الله د فلاني ښځې باره کې وئيل کېږي چې هغه ډيري کمې روژي نيسي، ډير کم صدقه خيرات کوي، او ډير کم مونځ کوي. ⑥او حقيقت دادی چې د هغه صدقه او خيرات د قروط د ځوټکړو نه زيات نه وي. ليکن هغه د خپلي ژبې په ذريعه خپل ګاونډيانو ته تکليف نه رسوئ، ⑦حضور ﷺ وفرمايل. هغه به جنت ته خي (احمد ، بيهقي)

**حل اللغات**:- ① تُؤْذِي: تکليف رسوی، ② جِيرَانَهَا: خپل ګاونډی ته. ③ بِالْأَثْوَارِ: داد ثور جمع ده د پنير ټکړو ته وئيلی شی. ④ الْأَقِطِ: پنير.

**تسهيلات: قوله: غَيْرَ أَنَّهَا تُؤْذِي جِيرَانَهَا بِلِسَانِهَا:**

**د نفلی عبادت کښې مشغوليدو سره د حرامو ارتکاب کولو نتيجه:**

يعنی دژبې په ذريعه ګاونډيانو ته تکليف رسوی ګنی په عبادت کښې ډيره وړاندې ده نفل مونځونه کوی او روژې ساتی. نبي عليه السلام اوفرمائيل دا قسم ښځه به دوزخ ته ځی. دَداسې ښځې عبادت قبول نه دې ملاعلی قاری رحمه الله ليکلی دی نفلی عبادت کښې مشغوليدو سره دَحرامو ارتکاب دَ سړی دَپاره تباه کونکې دې ځکه چه په مستحب کښې لګياکيدل او په حرام کښې دَ پريوتلو نه بچ کيدل تلبيس ابليس دې

**قوله: قَالَ: "هِيَ فِي النَّارِ":**

**دمستحب عمل په ځائې د ګناه څخه ځان ساتل:** يعنی دغه ښځې يو مستحب کار اختيارکړو دکوم پريخودل چه مباح وو او دَ ګاونډيانو په تکليف رسولو کښې واقع شوه کوم چه حرام عمل وو په دې وجه دوزخ ته لاړه

**نيکی چې بدی ګرځی:** ملاعلی قاری رحمه الله ليکلی دی چه دَدې قسم په شان هغه اعمال هم دی په کوم کښې چه خلق واقع کيږی

① بيت الله کښې داخليدو په وخت ګڼړه جوړولو سره تکليف رسوی

② رکن يمانی او حجراسودباندې رش جوړولو سره تکليف ورکوی.

③ دغه شان دَظالمانو اوحرام خورو هغه حرام مال دې په کوم سره چه هغوی مساجد او مدارس جوړه وی او په خلقو باندې ئې خيرات کوی.

**[۴۹۴۳] په تاسو کې غوره او بدتره سړی څوک دې؟**

۴۹۹۳-()[۲۷] [۱] وَعَنْهُ قَالَ: «إِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَقَفَ عَلَى نَاسٍ جُلُوسٍ فَقَالَ [۲]: "أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِخَيْرِكُمْ مِنْ شَرِّكُمْ؟" [۳] قَالَ: فَسَكَتُوا فَقَالَ ذٰلِكَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ [۴] فَقَالَ رَجُلٌ: بَلَى يَا رَسُولَ اللّٰهِ! أَخْبِرْنَا بِخَيْرِنَا مِنْ شَرِّنَا [۵] فَقَالَ: "خَيْرُكُمْ مَنْ يُرْجَى خَيْرُهُ، وَيُؤْمَنُ شَرُّهُ، [۶] وَشَرُّكُمْ مَنْ لَا يُرْجَى خَيْرُهُ، وَلَا يُؤْمَنُ شَرُّهُ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ". وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي، يوه ورځ رسول الله صلى الله عليه وسلم د ناست صحابه رضي الله عنهم مخکې په ودريدو سره وفرمايل [۲] آيا زه تاسو ته دا وښايم چې په تاسو کې نيك ترين او بدترين سړی کوم يودی او ستاسو بهترين سړی ستاسو د بدترينو سړو نه جدا کولو سره درته وښايم [۳] حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي، په دي اوريدو سره صحابه رضي الله عنهم خاموش شو ځکه چې هغوئ سره داخوف شو چې حضور صلى الله عليه وسلم عام مفهوم او عنوان کُلي طور سره خودلو په ځای د يوسړی نوم اخستو سره وښايي، چې فلانی نيك دی او فلانی بد. نو د دي نه لوی ذلت او رسوايي به نوره څه وي، ترديچې حضور صلى الله عليه وسلم مذکوره ارشاد دري ځلي وفرمايه [۴] نو يوصحابي رضي الله عنه عرض وکړو، چې هو، يارسول الله مونږ ته يې وښايه. او زمونږ نيك سړی زمونږ بد سړو نه جدا وښايي، [۵] حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل، واورئ په تاسو کې بهترين سړی هغه دی چې د هغه نه خلق د خير اميد ساتي. او د شر نه يې محفوظ او مامون وي، [۶] او بدترين سړی هغه دی چې د هغه نه خلق د خير اميد نه ساتي. او د شر نه يې محفوظ او مامون نه وي، (بيهقي، ترمذي) او ترمذي ويلي دي دا حديث حسن صحيح دی.

**حل اللغات:** - ① لَايُرْجَى: اميد نه ساتلې کيږي.

**تسهيلات:**

**قوله:** أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِخَيْرِكُمْ مِنْ شَرِّكُمْ؟" قَالَ: فَسَكَتُوا:

**دصحابه کرامود چپوالی وجه:** امام قرطبي فرمائی چه صحابه کرام د رسوائي د ويري چپ پاتی شول تر دې چه نبي عليه السلام خپل سوال دري ځل اوکړو بيا نبي عليه السلام په جواب کښې داسې اسلوب اختيار کړو چه په هغې کښې د چا رسوائي نه وی.

**قوله:** خَيْرُكُمْ مَنْ يُرْجَى خَيْرُهُ، وَيُؤْمَنُ شَرُّهُ:

**دبهترين اوبدترين:** د بهترين او بدترين کس پيژندګلو دا ده کومه چه په حديث کښې اوونيلي شو باقي دا خبره چه د کوم کس نه د خلقو د خير طمع وی خو د هغه د شر نه محفوظ او مامون نه وی يا هغه کس چه د هغه د شر نه خلق محفوظ او مامون وی خو د هغه نه د خير طمع نه ساتی نو داسې کس ته دې نه ښه اوئيلې شی او نه بد.

**[۴۹۹۴] د دنيا دولت ښه او بد ټولو ته ملاوېږي خو دين صرف ښه خلوته ملاوېږي**

---

¹) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب الفتن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم (رقم-۲۲۶۳)واحمد فى المسند:۲/۳۶۸

-()[۳۸] [۱]وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ:قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[۲]«إِنَّ اللّٰهَ تَعَالَى قَسَمَ بَيْنَكُمْ أَخْلَاقَكُمْ كَمَا قَسَمَ بَيْنَكُمْ أَرْزَاقَكُمْ، [۳]إِنَّ اللّٰهَ تَعَالَى يُعْطِي الدُّنْيَا مَنْ يُحِبُّ وَمَنْ لَا يُحِبُّ، [۴]وَلَا يُعْطِي الدِّينَ إِلَّا مَنْ أَحَبَّ، [۵]فَمَنْ أَعْطَاهُ اللّٰهُ الدِّينَ فَقَدْ أَحَبَّهُ، [۶]وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَا يُسْلِمُ عَبْدٌ حَتَّى يُسْلِمَ قَلْبُهُ، وَلِسَانُهُ، [۷]وَلَا يُؤْمِنُ حَتَّى يَأْمَنَ جَارُهُ بَوَائِقَهُ»".

**ترجمه:** [۱]رسول الله ﷺ وفرمایل، [۲]الله ﷻ ستاسو په منځ کې اخلاق داسې تقسیم کړي دي، لکه څرنګه چې ستاسو رزق یې تقسیم کړی دی، [۳]او حقیقت دادی چې الله خو دنیا هغه سړي ته هم ورکوي چې د الله ﷻ خوښ وی اوهغه چاته هم چې هغه دوست نه لري ,لکه فرعون وغیره) دوست نه لري [۴]لیکن دین یعنی د نیک اخلاقو دولت صرف هغه سړي ته عطا کوي، چې هغه دوست لري، (حاصل داچې الله ﷻ دنیاوي مال ودولت او اقتدار خوهرسړي ته عطا کوي، که هغه دوست وي که نه وي، لیکن د نیک اخلاقو او احوالو د نعمت مستحق صرف هغه سړی دی چې محبوب خداوندي وي) [۵]نو د الله ﷻ یوسړي ته دین ورکول د دې خبري علامه ده چې هغه یې دوست کړی دی [۶]قسم دی په هغه ذات چې د هغه د قدرت په لاس کې ځما ساه ده چې هیڅ بنده ترهغه وخته پورې کامل مؤمن نشی کیدې ترڅو پورې چې دهغه زړه اوژبه (دغلطو عقیدو اوبد اخلاقو څخه) پاکه نه وي. [۷]هیڅ بنده ترهغه وخته پورې کامل مومن کیدی نشي ترڅوپورې چې د هغه ګاونډي د هغه د شر نه محفوظ نه وي.

**تسهیلات:**

**قوله:إِنَّ اللّٰهَ تَعَالَى يُعْطِي الدُّنْيَا مَنْ يُحِبُّ وَمَنْ لَا يُحِبُّ:**

**دنیا نیک اوبد دواړو ته ملاویدل:** د بعضو عارفینو نه منقول دی چه تصوف د خُلق نوم دې چنانچه چه د کوم کس اخلاق حسنه کښې ستا نه اوچت دی نو هغه په تصوف کښې هم ستا نه اوچت دې دا وهم صحیح نه ده چه کوم کس دنیاوی ارزاقو او دیني اخلاقو لره جمع کونکي دې. نو هغه د هغه کس څخه چه د دین سره متصف وی او بقدر کفایت دنیا هم ورسره وی افضل دې. لکه چه بعضې خلق وائې داسې تیک نه ده ځکه چه حدیث کښې راغلي دی

**دمالدارۍ اوښه اخلاقوپه مینځ کښې عدم تلازم:** مقصود دی چه کوم رزق د خُلق مقابل دې د هغې دین سره هیڅ نسبت نشته او اخلاق حمیده هم دین دې لکه چه د الله تعالی ارشاد دې ((وَإِنَّكَ لَعَلَىٰ خُلُقٍ عَظِيمٍ)) په حدیث کښې ئې د زړه او د ژبې خصوصي ذکر د دې وجه نه اوکړو چونکه د انسان ټول داراو مدار هم په دې دوؤ څیزونو دې.

[۱] اخرجه البیهقی فی شعب الایمان رقم ۵۵۲۴، واحمد فی المسند:۱/۳۸۷

**دخلاصه**: د زړه اسلام دا دي چه زړه د باطل عقائدو او نظرياتو نه پاک اوساتلې شي او د ژبې اسلام دا دي چه ژبه د لايعنی خبرو نه محفوظ اوساتلې شی ليکن صحيح خبره دا ده چه د مسلمانيدو نه مراد تصديق او اقرار دې چه د ايمان بنياد دې ګويا چه دې سره دې طرف ته اشاره کول مقصود دی چه د ظاهر او باطن يو کيدل د ايمان او د اسلام کمال دليل دې

**[٤٩٩٥]مسلمانانو سره محبت دَايمان علامت دې**

٤٩٩٥-(١)[٤٩] ١ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ٢ "«الْمُؤْمِنُ مَأْلَفٌ ٣ وَلَا خَيْرَ فِيمَنْ لَا يَأْلَفُ وَلَا يُؤْلَفُ»" ٤ رَوَاهُمَا أَحْمَدُ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ".

**ترجمه**: ١ او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ مسلمان د الفت او محبت مقام ومخزن دی، ٣ او په هغه سړی کې خير نشته چې الفت نه کوي. او نه د هغه سره الفت کيږي. يعنی کوم سړی چې داسې دی چې نه خو د مسلمانانو سره الفت او محبت کوي. او نه مسلمانان د هغه سره محبت او الفت کوي، نو هغه د هيڅ کار نه دی.
٤ دا دواړه روايتونه احمد رحمه الله او په شعب الايمان کې بيهقي رحمه الله نقل کړی دی

**حل اللغات**: - ① مَأْلَفٌ: دمحبت ځائي، چه محبت ورسره کولې شی. ② لَا يَأْلَفُ: چه بل سره محبت نه کوی. ③ وَلَا يُؤْلَفُ: او نه ورسره څوک محبت کوی.

**تسهيلات**: قوله: الْمُؤْمِنُ مَأْلَفٌ وَلَا خَيْرَ فِيمَنْ لَا يَأْلَفُ وَلَا يُؤْلَفُ:

**د مالف په ترکيب او معنی کښې درې احتمالات:**

① مألف مصدر ميمی دې د اسم فاعل او د اسم مفعول په معنی کښې استعمال شوی دې ګويا چه دا لفظ د مفهوم په اعتبار سره داسې دې چه **يألف ويولف** يعنی د مومن شان دا دې چه هغه د بل سره الفت لری او بل کس د ده سره الفت لری

② مألف مصدر بطريق مبالغه وی لکه چه وئيلی کيږی رجل عدل، دې صورت کښې به معنې دا وی چه مومن الفت کونکې وی

③ مألف اسم ظرف مکان دې په دې صورت کښې دې ته اشاره ده چه مسلمانان خپل مينځ کښې د يو بل سره د محبت او موانست سره د اتفاق غوندې دولت حاصلولې شی که هغوی په خپل مينځ کښې د الفت او محبت روح ختم کړی نو بيا به د دوی په مينځ کښې تفرقه راشی او د انتشار ښکاره به شی لکه چه الله تعالی فرمائی

«وَاذْكُرُوا نِعْمَةَ اللَّهِ عَلَيْكُمْ إِذْ كُنْتُمْ أَعْدَاءً فَأَلَّفَ بَيْنَ قُلُوبِكُمْ فَأَصْبَحْتُمْ بِنِعْمَتِهِ إِخْوَانًا» الاية

[١] اخرجه البيهقی فی شعب الايمان رقم ٨١١٩ واحمد فی المسند: ٢/٤٠٠

[٤٩٩٦] د يو مسلمان د حاجت پوره کولو فضيلت

٤٩٩٦-(١)[٥٠] ١ وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ٢ "«مَنْ قَضَى لِأَحَدٍ مِنْ أُمَّتِي حَاجَةً ٣ يُرِيدُ أَنْ يَسُرَّهُ بِهَا فَقَدْ سَرَّنِي، وَمَنْ سَرَّنِي فَقَدْ سَرَّ اللَّهَ، ٤ وَمَنْ سَرَّ اللَّهَ أَدْخَلَهُ اللَّهُ الْجَنَّةَ»".

**ترجمه:** ١ او حضرت انس ﷛ وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل. ٢ کوم سړی چې څما په امت کې د يو سړي ديني اودنياوي حاجت او ضرورت پوره کړي. ٣ او د هغه نه يي مقصد د هغه خوشحالول وي، نو هغه زه خوشحاله کړم، او چاچي زه خوشحاله کړم، نو هغه الله خوشحاله کی، ٤ او چاچي الله خوشحاله کی، نو الله به يي په جنت کې داخل کړي.

**حل اللغات:** - ① قَضَى: پوره کړی، ② سَرَّ: خوشحاله کړی.

**تسهيلات:**

**قوله: مَنْ قَضَى لِأَحَدٍ مِنْ أُمَّتِي حَاجَةً:**

په حديث الباب کښې نبي عليه السلام ارشاد اوفرمائيلو چه کوم کس د خپل مسلمان رور يو حاجت او ضرورت پوره کړو نو هغه زه او الله پاک خوشحاله کړو ظاهره ده چه ما له او الله پاک له خوشحاله کونکې جنتي وی.

[٤٩٩٧] دَ مسلمان فرياد رسی کولو باندې درې اويا (٧٣) بخششونه ملاويږی

٤٩٩٧-(٢)[٥١] ١ وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ٢ "«مَنْ أَغَاثَ مَلْهُوفًا كَتَبَ اللَّهُ لَهُ ثَلَاثًا وَسَبْعِينَ مَغْفِرَةً، ٣ وَاحِدَةٌ فِيهَا صَلَاحُ أَمْرِهِ كُلِّهِ، ٤ وَثِنْتَانِ وَسَبْعُونَ لَهُ دَرَجَاتٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ»".

**ترجمه:** ١ او حضرت انس ﷛ وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل. ٢ کوم سړی چې د مظلوم فرياد رسي کوي نو الله ﷻ د هغه د پاره دريو اويا ٧٣ بخششونه ليکي. ٣ او په هغه کې يوبخشش هغه دی، چې د هغه د ټول ديني او اخروي امورو ضامن جوړيږي. ٤ او باقي دوه اويا ٧٢ بخششونه به د قيامت په ورځ د هغه د درجاتو د بلندی سبب وي

**تسهيلات:**

**قوله: مَنْ أَغَاثَ مَلْهُوفًا كَتَبَ اللَّهُ لَهُ ثَلَاثًا وَسَبْعِينَ مَغْفِرَةً:**

**د پريشان حال مدد کول:** حيران يا په نورو الفاظو کښې د کمزوری (مظلوم) او د پريشان پريشانی لرې کونکی د پاره مذکوره فضيلت دې

[1] اخرجه البيهقى فى شعب الايمان رقم ٧٦٣٥
[2] اخرجه البيهقى فى شعب الايمان رقم ٧٦٧٠

**قوله: كتب الله له ثلاثاً وسبعين مغفرة**

**د درې اويا مغفرتونو دشمار په حکمت کښې دوه اقوال:**

① د دې عدد حکمت هم صاحب وحي ته معلوم دې

② دا د کثرت طرف ته اشاره ده لکه چه الله تعالی فرمائی ان تستغفر لهم سبعين مرة

**قوله: وَاحِدَةٌ فِيهَا صَلَاحُ أَمْرِهِ كُلِّهِ:**

**د يومغفرت په وجه ټول ګناهونه معاف کيدل:** په دې جملې سره يو بشارت خفيه طرف ته اشاره ده چه يومغفرت به د ده د ټولو ګناهونو دپاره کافي شی اود مغفرت د باقي اعدادو

**[۴۹۹۸] ټول مخلوق دَالله تعالی خاندان دې**

۴۹۹۸-()و۴۹۹۹() [۵۲] -[۱] وَعَنْهُ، وَعَنْ عَبْدِ اللهِ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- قَالَا: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«الْخَلْقُ عِيَالُ اللهِ، [۳] فَأَحَبُّ الْخَلْقِ إِلَى اللهِ مَنْ أَحْسَنَ إِلَى عِيَالِهِ» ". [۴] رَوَى الْبَيْهَقِيُّ الْأَحَادِيثَ الثَّلَاثَةَ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ".

**ترجمه:** [۱] حضرت انس رضي الله عنه او حضرت عبد الله رضي الله عنه دواړه وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل، [۲] مخلوق د الله خاندان دی، [۳] او د الله په نزد په مخلوق کې بهترين سړی هغه دی چې د الله ﷻ د خاندان سره يعنی دالله دمخلوق سره احسان او حسن سلوك کوي.

[۴] دا درې سره روايتونه بيهقي رحمه الله په شعب الايمان کې نقل کړي دي

**حل اللغات:** - ① عِيَالُ: خاندان. ټبر.

**تسهيلات:**

**قوله: الْخَلْقُ عِيَالُ اللهِ:**

**د عيال معنی او د حديث مطلب:** دَ عيال معنی دَ يوسړی دَهغه متعلقينو ده دَ چا خوراك څښاك جامه اوکوروغيره چه دَ هغه په ذمه باندې وی. په دې اعتبار سره دَ عيال نسبت غيرالله طرف ته مجازی دې. اصلی رازق خو الله تعالی دې دَچا په ذمه چه دَ مخلوق رزق دې په دې اعتبارسره ټول مخلوق دَ الله تعالی عيال او ټبر دې اوس کومو سړې چه دَ الله تعالی مخلوق سره احسان کوی نولکه چه هغه دَ الله تعالی عيال او ټبرسره احسان او ښيګړه کوی. په دې سره الله تعالی ډير زيات خوشحاليږی لکه څنګه چه يو انسان دَهغه سړی نه ډير خوشحاليږی څوك چه دَهغه دَ اهل وعيال سره احسان کوی.

---

(۱) اخرجه البيهقي في شعب الايمان رقم ۷۶۷۰

(۲) اخرجه البيهقي في شعب الايمان رقم ۷۴۴۷، ۷۴۴۸

**[۵۰۰۰] دَ تولو نه اول به په قيامت کښې دَ دوو ګاونډيانو مقدمه پيش کيږي**

۵۰۰۰-(۱)[۵۳] ۱ وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ "«أَوَّلُ خَصْمَيْنِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ جَارَانِ»". رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت عقبه ابن عامر ﷺ وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ د قيامت په ورځ به د ټولو نه مخکې دوه جګړه کونکي دوه ګاونډي ګان به وي (احمد)

**حل اللغات:** - ① خَصْمَيْنِ: دوه جګړه کونکي، ② جَارَانِ: دوه ګاونډيان،

**تسهيلات:**

**قوله: أَوَّلُ خَصْمَيْنِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ جَارَانِ:**

**اشکال:** په يوحديث کښې دي چه دَقيامت په ورځ به دَ ټولو نه مخکښې دَمانځه مقدمه پيش کيږي بل حديث کښې دي چه دَ قيامت په ورځ به دَ ټولو نه مخکښې دَ قاتل او مقتول مقدمه پيش کيږي مګر په ذکرشوی حديث کښې دَ دوو ګاونډيانو دَ مقدمې خبره ده په ظاهره دا تعارض دې دَدې جواب څه دې؟

**داشکال دوه جوابونه:** ① اول اوثاني دا اضافي امور دی نو په اضافي نسبت سره هر يو ته اول وئيلې کيدې شي هيڅ تضاد نشته دې

② په حقوق الله کښې به دَ ټولو نه مخکښې دَمونځ مسئله اوچتولې شي او په حقوق العباد کښې دَ ټولو نه مخکښې دَويني او قتل مسئله اوچتولې شي په کوم کښې چه يوخالص ظالم او دويم خالص مظلوم وی.ليکن که څه خلق داسې وی چه په حقوق العباد کښې دواړو څه نا څه ظلم په يو بل باندې کړې وی هر يو څه ظالم اوڅه مظلوم دې نو په داسې خلقو کښې به دَټولونه مخکښې دَ دوو ګاونډيانو معامله اوچتولې شي نودَ ګاونډيانو معامله هم دَحقوق العباد ده ليکن دَحقوق العباد اسې صورت دې چه دَقاتل اومقتول نه مختلف دې هلته يو ظالم وو او دويم مکمل مظلوم وو زير بحث حديث کښې دواړه دَ يوبل دَپاره څه نا څه ظالمان دی.دَداسې خلقو مقدمه به دَ ټولو مخکښې اوچتولې شي

**[۵۰۰۱] يتيم او مسکين سره په ښيګړه کولو زړه نرميږي**

۵۰۰۱-(۲)[۵۴] ۱ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- ۲ «أَنَّ رَجُلًا شَكَا إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَسْوَةَ قَلْبِهِ ۳ فَقَالَ: "امْسَحْ رَأْسَ الْيَتِيمِ، وَأَطْعِمِ الْمِسْكِينَ»". رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** ۱ د حضرت ابوهريره ﷺ نه روايت دی، ۲ چې يو سړی رسول الله ﷺ ته د خپل

---

(۱) اخرجه احمد في المسند: ۱۵۱/۴

(۲) اخرجه احمد في المسند: ۲۶۳/۲

زړه د سختوالی شکایت وکی، او د هغه د علاج پوښتنه یي وکړه، [۲]حضور ﷺ ورته وفرمایل د یتیم په سرلاس راتیر کړه او په مسکیني باندې طعام وخوروه (احمد)

**تسهیلات:**

**قوله رأس اليتيم:** د یتیم په سر لاس لاخکلو ذکر ئې ددې وجه نه اوفرمائیلو چه کله دا کس د یتیم په سر لاس راکاږی نو ده ته به مرګ رایاد شي او هغه به ژوند غنیمت اوګنړي څکه چه د زړه سختی د غفلت د وجه نه پیدا کیږی

**قوله: وَأَطْعِمِ الْمِسْكِينَ:** أي أثار نعمة الله عليك حيث أغناك په مسکین باندې د روټی خوړلو حکم ئې څکه ورکړو چه تا د الله د نعمتونو اثار اوینې چه ته ئی څنګه مالداره کړې په حدیث کښې د یتیم او مسکین د دواړو خاص کولو وجه دا ده چه په ورو او مشرانو باندې رحم کول د الله رحمت واجبوی او د زړه سختي لرې کوی.

**[۵۰۰۲] ذکوندې لور کفالت کول افضله صدقه ده**

۵۰۰۲-() [۵۵] [۱]وَعَنْ سُرَاقَةَ بْنِ مَالِكٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ[۲]: " «أَلَا أَدُلُّكُمْ عَلَى أَفْضَلِ الصَّدَقَةِ؟[۳]ابْنَتُكَ مَرْدُودَةً إِلَيْكَ لَيْسَ لَهَا كَاسِبٌ غَيْرُكَ» ". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:**[۱]او د حضرت سراقه ابن مالك ﷺ نه روایت دی چی رسول الله ﷺ وفرمایل. [۲]آیا زه تاسو ته د بهترینې صدقې باره کې وښایم، [۳]او هغه صدقه خپلې لور سره حسن سلوك کول دي. چې تاته واپس راليږل شوي ده، او د هغه ستا نه علاوه بل څوك ګټې والا نشته (ابن ماجه)

**حل اللغات:-** ①مَرْدُودَةً: واپس راليږلې شوې، واپس کړې شوې. ②كَاسِبٌ: كاركسب كونكې.

**تسهیلات:**

**قوله: ابْنَتُكَ مَرْدُودَةً إِلَيْكَ:**

**دمذکوره حدیث مصداق:** یعنی که ستا لور ته خاوند طلاق ورکړی وي او د هغه سره څه داسې ذریعه نه وي چې د خپل ژوند ورځې په پوره کي، او نه څه داسې څوی یي وي، او نه څوك خبر اخستونکی یي وي چې د خپلې ګټې په ذریعه هغه ته د وخت تیرولو د پاره سامان فراهم شي، بلکې صرف ته د هغه واحد سهارا جوړیدی شي، او هغه دومره لاچاره وي چې ستا کورته راغلی وی، نو ستا د طرف نه د هغه کفالت او د هغه سره حسن سلوك یوه بهترینه صدقه ده[۱]

[۱]) اخرجه ابن ما جه في السنن كتاب الأدب/باب بر الوالد، والإحسان إلى البنات (رقم-۳۶۶۷) واحمد في المسند: ۱۷۵/٤

# [۱۶] بَابُ الْحُبِّ فِي اللّٰهِ وَمِنَ اللّٰهِ

## دَ الله تعالی دَپاره د محبت کولو بیان

**خلاصة الباب**

**فيه اثنان وعشرون حديثاً مشتملة على ست مسائل:**

① فضيلة الحب في الله: ۳، ۴، ۵، ۸، ۹، ۱۰، ۱۱، ۱۳، ۱۷، ۱۸، ۲۰، ۲۱، ۲۲-
② كون تآلف القلوب وتناكرها من الأزل: ۱-
③ فضيلة حب الله تعالى والرسول صلى الله عليه وسلم: ۶-
④ ثمرات حب الله العبدَ : ۲-
⑤ آداب الحب في الله: ۱۲، ۱۳،
⑥ من يستحق الحب والمصاحبة: ۷، ۱۴، ۱۵، ۱۹-

**قوله: الْحُبّ:**

**دالله تعالی دپاره د محبت کولومفهوم**: دَ الله تعالی دَ پاره دَمحبت کولو دِ بیان مطلب دادې چه یو بنده سره دَتعلق اومحبت کومه رشته هم قائم کړې شي نوچه هغه صرف دَ الله تعالی دَ رضادَپاره وی. په هغې کښې څه دنیاوی غرض نه وی نه په کښې څه لالچ وی بلکه دا محبت صرف په دې بنیادباندې وی چه دا سړې دَ الله تعالی نیك بنده دې دده په محبت سره الله تعالی راضی اوخوشحالیږی او انسان ته دَهغه رضا حاصل شی

**قوله: فِي اللّٰهِ وَمِنَ اللّٰهِ:**

**دمذکوره جملې ترکیب**: دلته په عنوان کښې "من" سببیه اجلیه ده. "اي لأجل رضاء الله ولوجهه الكريم".

**دعبادت مقصود حاصلولونسخه**: انسان چه دَ الله تعالی عبادت کوی نودَهغه عبادت نه فائده او اصل مقصود ترهغه وخته پورې نه شی حاصلیدلې ترکومې چه دَ الله تعالی اودَهغه رسولانوسره محبت نه وی. دَ عبادت دَ قبلیدو دَپاره ضروری دی چه دَالله تعالی اودَ هغه دَرسول ﷺ محبت هم دَ عبادت حصه جوړه شی. که محبت نه وی نوصرف دَ بوج اوتکلیف والا عبادت نه به څه حاصل شی.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [۵۰۰۳] په دنیا کښې دَ اتحاد او اختلاف سبب

۵۰۰۳-()[1] ① عَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا- قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«الْأَرْوَاحُ جُنُودٌ مُجَنَّدَةٌ، ③ فَمَا تَعَارَفَ مِنْهَا ائْتَلَفَ، ④ وَمَا تَنَاكَرَ مِنْهَا اخْتَلَفَ»". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

[1] اخرجه البخاری فی کتاب احادیث الأنبياء/باب: الأرواح جنود مجندة (رقم-۳۳۳۶) ومسلم فی کتاب البر والصلة والآداب/باب الأرواح جنود مجندة (رقم-۱۵۹ - (۲۶۳۸) وابوداود فی کتاب الأدب/باب من يؤمر أن يجالس (رقم-۴۸۳۴) واحمد فی المسند: ۲/۲۹۵

**ترجمه:** [۱] بي بي عائشه رضي الله عنها وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل، [۲] روحونه په جسمونو کې د داخليدو نه مخکې د لښکر په شان (يوځای) مجتمع وو (او بيا هغوئ جدا جدا کولو سره به يو يو جسم کې داخل شو) [۳] نو په جسمونه کې د داخليدو نه مخکې چې کوم روحونه (د يوبل صفاتو سره مناسبت او مشارکت لرلو په وجه) په خپلو کې مانوس او متعارف وو. (په جسمونو کې رسيدو نه پس به په دې دنيا کې هم) د يوبل سره محبت او الفت لري. [۴] او کوم روحونه چې د يوبل نه نامانوس وو. هغه په دې دنيا کې هم په خپلو کې اختلاف لري (بخاري)

۵۰۰۴-(¹) وَرَوَاهُ مُسْلِمٌ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ.

**ترجمه:** د دې حديث روايت امام مسلم د ابوهريره رضی الله عنه څخه کړې دې

**حل اللغات:** - ① جُنُودٌ: لښکرې ② مُجَنَّدَةٌ: يوځائ کښې راجمع کړې شوې. ③ تَعَارَفَ: پيژنې يوبل. ④ ائْتَلَفَ: محبت کوی د يوبل سره ⑤ تَنَاكَرَ: نه ئې پيژندل يو بل. ⑤ اخْتَلَفَ: مخالف به وی د يوبل

**تسهيلات:**

**قوله:** الْأَرْوَاحُ جُنُودٌ مُجَنَّدَةٌ:

**دجنود مجندة مفهوم:** قيامت پورې چه څومره انسانان پيدا کيږی دهغوی ارواح اول پيدا شوی دی دا ټول روحونو الله تعالی دَ ازل په ورځ په عالم ارواح کښې رايوځائی کړل او ټولو نه ئې دَخپل ربوبيت اقرار واخستلو ټولو اقرار اوکړو

**قوله.** فَمَا تَعَارَفَ مِنْهَا ائْتَلَفَ، وَمَا تَنَاكَرَ مِنْهَا اخْتَلَفَ:

**ددنياوی محبت اونفرت بنياد:** په دنياکښې کوم نيکان خلق نور نيکان خلق خوښوی او بې دينه کسان نه خوښوی دغه شان چه کوم فاسقان نور فاسقان اوفاجران خوښوی اوديندارانو نه خوښوی نودا خوښی اوناخوښی دَ عالم ارواح او دَروز ازل دَ خوښې اوناخوښې مظهردې کوم څه چه هلته اوشو هغه هم د لته کيږی

**[۵۰۰۵] الله تعالی چې چا سره محبت کوی هغه په خلقو کښې هم محبوب شي**

۵۰۰۵-(²) [۲] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«إِنَّ اللّٰهَ إِذَا أَحَبَّ عَبْدًا دَعَا جِبْرِيلَ فَقَالَ [۳] إِنِّي أُحِبُّ فُلَانًا فَأَحِبَّهُ، قَالَ: فَيُحِبُّهُ جِبْرِيلُ، [۴] ثُمَّ يُنَادِي فِي السَّمَاءِ فَيَقُولُ: إِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ فُلَانًا فَأَحِبُّوهُ، [۵] فَيُحِبُّهُ أَهْلُ السَّمَاءِ، ثُمَّ يُوضَعُ لَهُ الْقَبُولُ فِي الْأَرْضِ، [۶] وَإِذَا أَبْغَضَ عَبْدًا دَعَا جِبْرِيلَ

¹) اخرجه مسلم فی كتاب البر والصلة والآداب/باب الأرواح جنود مجندة(رقم-۱۵۹ - (۲۶۳۸)

²) اخرجه البخاری فی كتاب بدء الخلق/باب ذكر الملائكة (رقم-۳۲۰۹) ومسلم فی كتاب البر والصلة والآداب/باب إذا أحب الله عبداً حببه لعباده (رقم-۱۵۷ - (۲۶۳۷) ومالک فی الموطا كتاب الشعر باب ما جاء فی المتحابين فی الله (رقم ۱۵) واحمد فی المسند: ۲/۲۶۷

فَيَقُولُ: إِنِّي أُبْغِضُ فُلَانًا فَأَبْغِضْهُ. [۷] فَيُبْغِضُهُ جِبْرِيلُ، ثُمَّ يُنَادِي فِي أَهْلِ السَّمَاءِ: [۸] إِنَّ اللّٰهَ يُبْغِضُ فُلَانًا فَأَبْغِضُوهُ. [۹] قَالَ: فَيُبْغِضُونَهُ، ثُمَّ يُوضَعُ لَهُ الْبَغْضَاءُ فِي الْأَرْضِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] هر كله چې الله جل جلاله د يوبنده سره محبت كوي، (يعني هغه خپلو بنده ګانو كې يوبنده سره د خپلې خوشنودي او محبت اظهار كولو اراده لري) نو جبرائيل عليه السلام ته فرمايي، [۳] زه د فلانى بنده سره محبت كوم، ته هم د هغه سره محبت كوه، حضور ﷺ وفرمايل نو بيا جبرائيل عليه السلام هم د هغه سړي سره محبت كوي [۴] او جبرايل عليه السلام د الله جل جلاله په حكم سره په آسمان كې دا اعلان كوي. چې الله جل جلاله د فلاني بنده سره محبت كوي نو تاسو ټول هم د هغه سره محبت كوئ. [۵] نو آسمان والا هم د هغه سره محبت كول شروع كړي، او بيا د هغه بنده د پاره په زمكه كې هم قبوليت كيږي، (يعني د زمكي والا په زړونو كې د هغه محبت كول شروع كوي) [۶] او كله چې الله جل جلاله د يوبنده نه نفرت كوي، نو جبرائيل عليه السلام ته فرمايي، زه د فلانى سړي نه نفرت كوم، ته هم د هغه نه نفرت كوه، [۷] حضور ﷺ وفرمايل، بيا جبرائيل عليه السلام هم د هغه سړي نه نفرت كوي او د الله جل جلاله په حكم سره په آسمان كې دا اعلان كوي، [۸] چې الله جل جلاله د فلاني بنده سره بغض كوي نوتاسو هم د هغه نه نفرت كوئ. [۹] نو آسمان والا هم د هغه نه نفرت كول شروع كړي تردې چې د هغه سړي د پاره په زمكه كې عداوت او نفرت شروع شي، چې د هغه په وجه ټول جن او انس د هغه سړي نه نفرت كوي. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① الْبَغْضَاءُ: بغض او نفرت، كينه.

**تسهيلات:**

**قوله: إِنَّ اللّٰهَ إِذَا أَحَبَّ عَبْدًا دَعَا جِبْرِيلَ:**

**په زمكه كښې د مقبوليت او مبغوضيت معيار:** الله تعالى چه كوم بنده خوښوى نوفرښتې هم هغه خوښوى. په آسمان كښې دَ دغه سړى دَ خوښوالى چرچې كيږى بيا دا مقبوليت زمكې ته راځى او دَزمكې والا هم هغه خوښوى. دغه شان هغه سړې مقبول الكل جوړشى دَدې برعكس كه چرته الله تعالى يو سړې په آسمانونو كښې مبغوض ګرځوى نو په فرښتو كښې اعلان كيږى فرښتې هم هغه مبغوض ګڼړى بيا دا مبغوضيت دَ زمكې طرف ته راځى اوخلق دا سړې مبغوض ګڼړى. دلته په دې خبره باندې ځان پوهه كول پكاردى چه په زمكه كښې دَ دغه مبغوضيت اومقبوليت معيار هغه خلق دى كوم چه ديندار متقى پرهيزګار دى ګڼى دَ فساقو او فجارو په نيز هم هغه سړې ښه دوست او محبوب وى چه د اوچتې درجې فاسق فاجر او ذليل او كمينه وى. لهذا دَ قبوليت په دې انتخاب كښې دارومدار په ښه او ديندار خلقو باندې دى. دَهغوى رائې اوخيال معيار او معتبر دې.

[۵۰۰۶] خپل مینځ کښې دَ الله تعالی دَ رضا دَپاره دَ محبت لرونکو نتیجه

۵۰۰۶-(۱) [۳] [۱] وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«إِنَّ اللّٰهَ يَقُولُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ: أَيْنَ الْمُتَحَابُّونَ بِجَلَالِي؟ [۳] اَلْيَوْمَ أُظِلُّهُمْ فِي ظِلِّي يَوْمَ لَا ظِلَّ إِلَّا ظِلِّي»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت ابوهریره رضی الله عنه وایي، چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] الله جل جلاله به د قیامت په ورځ (د ټولو خلقو په مخکښې د خپلو بعضو بنده ګانو د عظمت او بزرګي ښکاره کولو د پاره) وفرمایي، هغه خلق چیرته دي چې ځما د لویي د اظهار او ځما دتعظیم دخاطر په خپلو کې محبت کوی (یا چیرې دی هغه خلق چې ځما د رضا او خوشنودي د خاطره او د حصولِ ثواب په خاطر په خپلو کې یې محبت او تعلق لری) [۳] نن زه هغه خلقو ته په خپله سایه (سورې) کې پناه ورکوم په داسې ورځ کې چې ځما د سایې نه علاوه بله څه سوری نشته (مسلم)

**حل اللغات**:- ① جَلَالِي: عظمت او بزرګی زما، ② ظِلّ: سورې، سایه.

**تسهیلات**:

**قوله**: اَلْيَوْمَ أُظِلُّهُمْ فِي ظِلِّي يَوْمَ لَا ظِلَّ إِلَّا ظِلِّي:

**دسورې په مفهوم کښې دوه اقوال**: ① یعنی نن به زه هغوی په خپل خاص سوری کښې ساتم د دې سوری نه مراد دَمحشرمیدان کښې دَ عرش سورې دې لکه چه بعضې روایاتو کښې تصریح هم ده.

② دَ سوری نه دَ الله تعالی رحمت او حفاظت مراد دې لکه "السلطان ظل الله فی الارض" لهذا دَ سوری نه دَ قیامت دَ رحمتونو نعمتونو او راحتونو طرف ته اشاره ده په عربی کښې دَ ظل لفظ دَ نعمتونودَپاره استعمالیږی

[۵۰۰۷] دَ الله تعالی دَ رضا دَپاره دَمحبت کولو فضیلت

۵۰۰۷-(۲) [۴] [۱] وَعَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«أَنَّ رَجُلًا زَارَ أَخًا لَهُ فِي قَرْيَةٍ أُخْرَى، [۳] فَأَرْصَدَ اللّٰهُ لَهُ عَلَى مَدْرَجَتِهِ مَلَكًا قَالَ أَيْنَ تُرِيدُ؟ [۴] قَالَ: أُرِيدُ أَخًا لِي فِي هَذِهِ الْقَرْيَةِ. قَالَ: هَلْ لَكَ عَلَيْهِ مِنْ نِعْمَةٍ تَرُبُّهَا؟ [۵] قَالَ: لَا غَيْرَ أَنِّي أَحْبَبْتُهُ فِي اللّٰهِ، [۷] قَالَ: فَإِنِّي رَسُولُ اللّٰهِ إِلَيْكَ بِأَنَّ اللّٰهَ قَدْ أَحَبَّكَ كَمَا أَحْبَبْتَهُ فِيهِ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت ابوهریره رضی الله عنه د رسول الله ﷺ نه نقل کوي [۲] چې یو سړی د خپل مسلمان ورور د ملاقات د پاره روان شو چې په یوې بلې آبادي کې اوسیدی، [۳] الله جل جلاله

(۱) اخرجه مسلم فی کتاب البر والصلة والآداب/باب فی فضل الحب فی الله (رقم-۳۷ - (۲۵۶۶) والترمذی فی کتاب الزهد عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الحب فی (رقم-۲۳۹۰) ومالک فی الموطا کتاب الشعر باب ما جاء فی المتحابین فی الله (رقم-۱۵) واحمد فی المسند:۳۳۸/۲

(۲) اخرجه مسلم فی کتاب البر والصلة والآداب/باب فی فضل الحب فی الله(رقم-۳۸ - (۲۵۶۷)

د هغه په لار کې د هغه په انتظار کې يو فرشته کينوله هرکله چې هغه سړی هغه ځای ته اورسيدی نو فرشتي پوښتنه ځيني وکړه چې چيرته دي د تلو اراده ده ④هغه سړي وويل. زه د خپل يو مسلمان ورور ملاقات ته ځم، چې هغه په بله آبادي کې اوسيږي. ⑤فرشتي پوښتنه ځيني وکړه چې آيا ستا په هغه څه حق نعمت شته چې د هغه حاصلولو د پاره هغه ته ورځي، يعنې ته چې کوم سړي ته ورځي، آيا هغه يو داسې سړی دی چې هغه تاته څه نعمت درکړی وو، او اوس د هغه بدله حاصلولو د پاره هغه ته ورځي ⑥هغه سړي اوويل نه زه محض د الله ﷻ د رضا او خوشنودي حاصلولو د پاره هغه سره محبت او تعلق لرم. ⑦فرشتي ورته اوويل نو بيا واوره زه الله ﷻ تاته راليږلی يم، چې تاته دا بشارت درکړم چې الله ﷻ ستاسره محبت کوي، څرنګه چې ته محض د الله ﷻ د خاطره د هغه سړي سره محبت او تعلق لري (مسلم)

**حل اللغات:-** ①أَرْصَدَ: په انتظار کښې ئې کينوله، په شيش کښې کيناستو ته رصد وائی ② مَدْرَجَتِهِ: په لار دهغه کښې، ښکاره آسمان ته مدرجه وائی ③تَرُبُّهَا: چه ته دهغې شکريه د کوې. بدله پوره کوی، رب يرب پاللو او لويولو ته وائی

**تسهيلات:**

**قوله: أَنَّ رَجُلاً زَارَ أَخاً لَهُ فِي قَرْيَةٍ أُخْرَى:**

**بې لالچه محبت دالله تعالى دمحبت ذريعه:** دادَ پخوانو امتونو نه دَ چا واقعه نبي عليه السلام بيان کړې ده.هغه خلقو سره به دَ انسان په شکل کښې فرښتې ملاويدلې اوس دا سلسله بنده شوې ده.دَحديث خلاصه داده چه يو سړې دَ يو الله والا دَ زيارت دَپاره روان شو نو په لاره کښې هغه ته فرښته ملاؤ شوه.فرښتې دَ هغه نه تپوس اوکړو چرته روان ئې؟ هغه ورته اووئيل په دې ښارکښې زما يو دينی رور دې دَهغه دَ زيارت دَپاره ځم څه دنياوي اغراض اومقاصد نشته دې صرف دَ الله تعالى دَ رضا او خوشحالئی دَپاره ورځم.فرښتې ورته اووئيل زه الله تعالى تاله راليږلې يم دې دَپاره چه زه تاته دا زيرې واؤروم چه الله تعالى تا سره محبت ساتی لکه څنګه چه ته دَالله تعالى بنده سره محبت ساتې

**قوله: هَلْ لَكَ عَلَيْهِ مِنْ نِعْمَةٍ تَرُبُّهَا؟:**

**دتربها په مفهوم کښې درې اقوال:** ①يعنی دَ څه احسان غرض دې دکوم دَپوره کولو دَپاره چه ځې يعنی آيا هغه ستا غلام دې يا خوئی دې يا داسې رشته دار دې په چا باندې چه خوراك څښاك ستا ذمه واری ده اوته دَهغې دَ پوره کولو دَپاره ځې؟

② بعضې نسخو کښې دی "هل له عليك من نعمة تربها" يعنی دَهغه په تاباندې څه احسان دې دکوم دَ شکريه دَ اداکولو دَپاره چه ته روان ئې؟

③ علامه طيبي رحمه الله فرمائی مطلب دادې چه آيا په دغه سړی باندې ستا څه احسان دې دکوم بدله اخستلو دپاره چه ته هغه له ورځې دې دپاره چه ستا د احسان نه دهغه سړی بدله زياته ملاؤ شی دا مطلب ډير ښکلې دې ـ

**[۵۰۰۸] څوک چه دچا سره محبت کوی په قيامت کښې به هم د هغوی سره وی**

۵۰۰۸ -() [۵] ①وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: «جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ②فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! كَيْفَ تَقُولُ فِي رَجُلٍ أَحَبَّ قَوْمًا وَلَمْ يَلْحَقْ بِهِمْ؟ فَقَالَ: "الْمَرْءُ مَعَ مَنْ أَحَبَّ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ①او حضرت ابن مسعود رضی الله عنه وايي، چې يوه ورځ د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کې يو سړی حاضر شو، ②او عرض يې وکړ چې يارسول الله د هغه سړي باره کې تاسو څه فرمايي چې يو جماعت يعنی علماء او صلحاء او بزرګان دين سره محبت او عقيدت لري. ليکن د هغوئ صحبت هغه ته نه وي حاصل شوی، يا هغه د هغوئ علم وعمل ته نه وي رسيدلي حضور صلی الله علیه وسلم ورته وفرمايل، هغه سړی دهغه سره دي څوك چې محبوب لري (بخاري. مسلم)

**حل اللغات:** - ① لَمْ يَلْحَقْ: چه نه وی يوځائې شوې،

**تسهيلات:**

**قوله: فَقَالَ: "الْمَرْءُ مَعَ مَنْ أَحَبَّ:**

**د المرأ مع من احب په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① يعنی کوم سړې چه علماؤ صلحاؤ او بزرګانو سره عقيدت اومحبت لری او په خپلو اعمالوسره د شريعت په رڼا کښې دهغوی متابعت او موافقت کوی نوهغه سړې به هم دغه حضراتو سره په حشرکښې پاسی او هغوی سره به وی اودغه شان په جنت کښې به هغوی سره ملاقات کيږی يوځائی به وی ؛ اوچتو درجووالا به د خپل ځايونونه وتلوسره د هغوی له به راځی اوملاقات به کيږی

② په جنت کښې به يو ځائی وی مګر د دې يوځائی کيدو باوجودبه دخپلو درجو موافق به دجنت د نعمتونو خوندونه محسوسوی نبي عليه السلام او حضرت عائشه رضی الله عنها به په يوځائی خوری څکی مګر حضرت عائشه رضی الله عنها به دخپلې درجې موافق نعمت حاصلوی

**دملاعلی قاری تبصره:** ملا علی قاری رحمه الله په مرقات کښې ليکلی دی چه دا حديث عام

[1] اخرجه البخاری فی کتاب الأدب/باب علامة حب الله عز وجل (رقم-۶۱۶۹) ومسلم فی کتاب البر والصلة والآداب/باب المرء مع من أحب (رقم-۱۶۵ - (۲۶۴۰) وابوداود فی کتاب الأدب/باب إخبار الرجل الرجل بمحبته إياه (رقم-۵۱۲۶) والترمذی فی کتاب الزهد عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء أن المرء مع من أحب (رقم-۲۳۸۷) واحمد فی المسند: ۳۹۲/۱

دي لهذا كوم سړي چه ديندارخوښوی هغه به هغوی سره وی اوكوم سړي چه بدكاران خوښوی په قيامت كښې به هغه هم هغوی سره او چتيږی

**دملاعلی قاری رحمه الله د تبصرې تائيد:** ملا علي قاري رحمه الله د دي تائيد دحضرت عائشه صديقه رضي الله عنها د روايت نه هم نقل كړې دي چه حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي چه يو ځل د نبي عليه السلام په خدمت كښې يو صحابي حاضر شو او عرض ئې اوكړو چه اې د الله رسوله حقيقت دا دي چه زه د خپل ځان، اهل خانه او بچو نه هم زيات تاسو سره محبت كوم، چه كله زه كور كښې يم نو هم ستاسو په تصور كښې اخته يم، چه كله ستاسو ياد مي ډير تنګ كړي او ستاسو مخ مبارک د زيارت دپاري بې چينه شم نو ستاسو په خدمت كښې حاضر شم او د زړه تسكين راته حاصل شي او چه كله ما ته خپل او ستاسو د مرګ خيال راشي او د دي دنيا نه ستاسو د رخصت كيدلو تصور او سوچ اوكړم چه تاسو به په جنت كښې په اعلى درجو كښې د انبياؤ سره ئي او كه خدائي زه جنت ته داخل هم كړم نو ما ته ويره ده چه زه به ستاسو د زيارت نه محرومه يمه.نبی عليه السلام د دې صحابی دا خبره واوريده خو څه جواب ئي ور نكړو تر دي چه دا ايت نازل شو چه ومن يطع الله والرسول فأولئك مع الذين انعم الله عليهم من النبيين والصديقين و الشهداء والصالحين(النساء:۶۹)

**دمعيت څخه مراد:** اوس دا خبره چه د معيت نه څه مراد دی؟ خلاصه دا چه اعلي درجو والو به هغه خلقو له راځی چه كوم د لاندې درجو والا دی او بيا به دا ټول د جنت په باغونو كښې يوځائي شی هلته به د يو بل زيارت او ملاقات كوی او درجات عاليه والا به د خپلو نعمتونو تذكره اوكړی چه كوم به هغوی ته د الله د طرف نه بطور انعام حاصل شوی وی بيا به د الله تعالى حمد و ثنا اوكړی بيا به د كمو درجو والا خاطر تواضع او اكرام اوكړی او په منډه منډه به هر هغه څيز راوړی او دوی له به ئی وركړی چه د كومو به دا خلق خواهش و طلب كوی الحاصل چه د كومې درجې معيت او د كومې درجې حسن معامله وی نو هم د هغه درجي معيت او ملاقات به ورته نصيب شی

**[۵۰۰۹]رسول الله ﷺ سره په محبت ساتلو د صحابؤ خوشحالي**

۵۰۰۹-()[۱] [۱]وَعَنْ أَنَسٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-[۲]«أَنَّ رَجُلًا قَالَ: يَارَسُولَ اللّٰهِ! مَتَى السَّاعَةُ؟[۳]قَالَ: "وَيْلَكَ! وَمَا أَعْدَدْتَ لَهَا؟".[۴]قَالَ: مَا أَعْدَدْتُ لَهَا إِلَّا أَنِّي أُحِبُّ اللّٰهَ وَرَسُولَهُ.[۵]قَالَ: "أَنْتَ مَعَ مَنْ أَحْبَبْتَ"[۶]قَالَ أَنَسٌ: فَمَا رَأَيْتُ الْمُسْلِمِينَ فَرِحُوا بِشَيْءٍ بَعْدَ الْإِسْلَامِ فَرَحَهُمْ بِهَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

[۱] اخرجه البخاری فی كتاب الأدب/باب ما جاء فی قول الرجل ويلک (رقم-۶۱۶۷) ومسلم فی كتاب البر والصلة والآداب/باب المرء مع من أحب (رقم-۱۶۱ - (۲۶۳۹) واحمد فی المسند:۱۶۸/۳

**ترجمه**: [۱]او د حضرت انس ﷛ نه روایت دی، [۲]چې یوه ورځ یو سړی دا سوال وکړی. یارسول الله! قیامت به کله وي، [۳]حضور ﷺ ورته وفرمایل په تا افسوس دی، تا د قیامت د پاره څه تیار کړي دی؟ (په ظاهره دا معلومیږي ګویا په حضور ﷺ باندې داسوال ښه ونه لګیدی. او حضور ﷺ ته ګمان وشو، چې هغه سړی ښه اعتقاد ساتلو سره د خودي د مخه (اوراه خودي) داسوال نه دی کړی، بلکې د قیامت راتلل یوه لړې خبره ګڼلو سره د لاپروائي په طور دا سوال کوي، نو حضور ﷺ هغه ته جواب هم په هغه انداز کې ورکی چې داځه پوښتنه کوي چې قیامت به کله راځي، ته خپله عقیده او عمل درست ساته او نیك كار كوه، كله چې د قیامت ورځ راځي نو رابه شي. [۴]لیکن هرکله چې هغه سړی عرض وکړو ما خو څه تیاري کړی نه ده، البته زما سره یو دولت ضرور شته. او هغه داچې الله او د هغه رسول سره محبت ضرور لرم نو حضور ﷺ پوهه شو، چې د هغه سړي مذکوره سوال د یو مخلص او کامل مؤمن د اعتقاد مظهر او د خوف د مخه دی. څه لاپرواه نه دی [۵]نو حضور ﷺ ورته وفرمایل ته په دنیا او آخرت کې د هغه چاسره یې د چاسره چې محبت لري، [۶]حضرت انس ﷛ وایي، ما د مسلمانانو داسلام نه پس بل په هیڅ شي سره دومره زیاته خوشحالي ونه لیدل لکه څومره چې هغوئ د حضور ﷺ په دې ارشاد سره خوشحاله شو (بخاري، مسلم)

**حل اللغات**:- ①وَيْلَكَ: افسوس دې په تا، ②أَعْدَدْتَ: تیاري کړې دې تا،

**تسهیلات**:

**قوله: أَنِّي أُحِبُّ اللهَ وَرَسُوْلَهُ**:

**صرف د الله اورسول سره په محبت کولود بسوالی درې وجوهات**:

دې کس صرف د الله او د هغه د رسول سره د محبت ذکر اوکړو لیکن د بدني قلبي او مالي عبادتونو هیڅ ذکر ئې اونه کړو د دې درې وجهې دی

① د عجز و انکسارئ اظهار او د خپلې د عبودیت د مرتبې اخفاء مقصود وه چه دا د یو مخلص مومن شان دې

② الله او د هغه د رسول سره محبت اصل څیز دې او ټول عبادتونه هم د دې محبت شاخونه او د دې لازمي اثر وی ځکه چه هم محبت په اطاعت باندې اماده کول کوی لهذا چه د کوم کس قلب د الله او د هغه د رسول د محبت نه ډک شی نو طاعت او عبادت د هغه عادت ثانیه جوړ شی

③ محبت بذات خود د ټولو نه اعلی مرتبه ده ځکه چه کوم کس د الله تعالي سره محبت ساتی نو د الله هم ده سره محبت وی يحبهم ويحبونه الايه بهر حال د معیت ساتلو دپاره اول شرط دا دې چه د هغه د اطاعت نه مخالفت نه وی

تعصى الاله وأنت تظهر حبه هذا لعمري في القياس بديع
لوكان حبك صادقا لأطعته ان المحبت لمن يحب مطيع

ترجمه: ته دخدائي نافرمانی کوې حالانکه ته د هغه د محبت دعوی کوی زما دې په خپل خان قسم وی چه دا خیزپه قیاس کښې ډیر ناآشنا دې که تا د الله تعالی سره رشتنی محبت کولې نو تا به د هغه اطاعت هم کولې ځکه چه محبت کونکې په حقیقت کښې د خپل محبوب فرمانبردار وی.

## [۵۰۱۰] د ښه او بد ملګری مثال

۵۰۱۰-()[۷] ①وَعَنْ أَبِي مُوسَى - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ②" «مَثَلُ الْجَلِيسِ الصَّالِحِ وَالسَّوْءِ، كَحَامِلِ الْمِسْكِ وَنَافِخِ الْكِيرِ، ③فَحَامِلُ الْمِسْكِ إِمَّا أَنْ يُحْذِيَكَ وَإِمَّا أَنْ تَبْتَاعَ مِنْهُ، وَإِمَّا أَنْ تَجِدَ مِنْهُ رِيحًا طَيِّبَةً، ④وَنَافِخُ الْكِيرِ إِمَّا أَنْ يُحْرِقَ ثِيَابَكَ، وَإِمَّا أَنْ تَجِدَ مِنْهُ رِيحًا خَبِيثَةً» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه: ①او حضرت ابوموسى رضي الله عنه وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل ②د نيك او بد همنشين مثال د مشك لرونكى او د اور وهونكي په شان دى، ③مشك لرونكى خوبه يادرته مشك مفت دركړي، ياته به يي د هغه نه وا خلي، يا (كه په هيڅ صورت كې د هغه مشك تاته په لاس رانشي، نو كم از كم) د هغه خوشبو خوبه ضرور تاته حاصله شي (دغه شان نيك او صالح همنشين نه چې څه فيض يا څه خاص نعمت تاته حاصل شي. نو داڅه كمه خبره ده، چې څو ساعتونو د پاره دده په صحبت كې سكون او طمانيت سره ورته ناسته نصيب شي) ④او د اور په بټى كې پوكى وهونكى به ياخو ستا كپړي وسوزي، يا د هغه نه به تاته دماغ خرابونكى بوى يعنى لوګي حاصل شي (دغه شان بدكار همنشين اول خو د دين دنيا دواړو نقصان رسوي، وخت ضائع كوي، او د حصول سعادت صلاحيت او استعداد بيكاره كوي، او كه دانه وي نو د هغه په صحبت كې كم از كم دومره خو ضرور وي چې د ژوند هغه قيمتي لمحات د زړه او دماغ خرابيدو او د لاحاصل صحبت په ناخوشګواري كې صرف كېږي. (بخاري، مسلم)

حل اللغات: - ①حَامِلِ الْمِسْكِ: مشكو والا. ②نَافِخِ الْكِيرِ: اور پوک وهونكې. ③يُحْذِيَكَ: مفت به دركړى تاته. تحفه به دركړى تاته، ④تَبْتَاعَ: ته به واخلې، ⑤تَجِدَ: ته به حاصله كړې، ⑥يُحْرِقَ: او به سوزوى، ⑦خَبِيثَةً: خراب،

[1] اخرجه البخارى فى كتاب الذبائح والصيد/باب المسک (رقم-٥٥٣٤) ومسلم فى كتاب البر والصلة والآداب/باب استحباب مجالسة الصالحين، ومجانبة قرناء السوء (رقم-١٤٦ - (٢٦٢٨)وابوداود فى كتاب الأدب/باب من يؤمر أن يجالس (رقم-٤٨٢٩) واحمد فى المسند: ٤٠٨/٤

**تسهیلات:**

**قوله:** كَحَامِلِ الْمِسْكِ وَنَافِخِ الْكِيرِ:

**دنافخ الکیر وضاحت:** دَ دوو مشکونونه لوهار یو مشکیزه جوړه وی کوم چه په کوټه کښې دَ اور تیزولو دپاره استعمالولې شی په دې کښې په دواړو لاسونو سره هوا ډکولې شی او بیا په اور کښې ورپریخودې شی دې سره دَ اوسپنې دَ بهټئی نه بخری او چتیږی او بدبوئی هم وی د نن صبا زمانه کښې په دې فن کښې ترقی راغلې ده بهرحال هرمسلمان له پکاردی چه هغه کم نه کم دا اوګوری چه دَهغه دَ روزمره تعلقات چاسره او دَ کوم قسم خلقو سره دی

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۵۰۱۱] دَالله تعالی دَرضا دَپاره تعلقاتو لرونکو سره الله تعالی محبت کوی**

۵۰۱۱-()[۸] [۱] عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: [۲] "«قَالَ اللَّهُ تَعَالَى: وَجَبَتْ مَحَبَّتِي لِلْمُتَحَابِّينَ فِيَّ، [۳] وَالْمُتَجَالِسِينَ فِيَّ، [۴] وَالْمُتَزَاوِرِينَ فِيَّ، [۵] وَالْمُتَبَاذِلِينَ فِيَّ» ". رَوَاهُ مَالِكٌ. [۶] وَفِي رِوَايَةِ التِّرْمِذِيِّ، قَالَ: " «يَقُولُ اللَّهُ تَعَالَى: [۷] الْمُتَحَابُّونَ فِي جَلَالِي لَهُمْ مَنَابِرُ مِنْ نُورٍ [۸] يَغْبِطُهُمُ النَّبِيُّونَ وَالشُّهَدَاءُ»

**ترجمه:** [۱] حضرت معاذ بن جبل ﷺ وایي، چې ما د رسول الله ﷺ نه واوریدل، [۲] الله ﷻ فرمایي. د هغه خلقو سره ځما محبت کول یو فیصله شوی امر دی، چې محض ځما د رضامندي او خوشنودي د خاطره په خپلو کې میل محبت ساتي، [۳] محض ځما د رضا او خوشنودي د خاطره او ځما حمد او ثناء کولو د پاره د یو بل سره کیني، [۴] محض ځما د رضا او خوشنودي د خاطره یو بل سره ملاقات کوي، [۵] او محض ځما د رضا او خوشنودي د پاره خپل مال خرچ کوي، (مالك) [۶] د ترمذي ﷫ روایت کې داسې دی. حضور ﷺ وفرمایل. الله ﷻ فرمایي. [۷] کوم خلق چې ځما د عظمت او جلال په سبب په خپلو کې محبت کوي د هغوئ د پاره به په آخرت کې د نور ممبرونه وي [۸] چې په هغه به انبیاء او شهداء هم رشك کوي، یعنی ورته خاندي به.

**حل اللغات:** - ① لِلْمُتَحَابِّينَ: خپل مینځ کښې محبت لرونکی، ② الْمُتَجَالِسِينَ: یوبل سره کینی. ③ الْمُتَزَاوِرِينَ: دیوبل سره ملاقات کوی. ④ الْمُتَبَاذِلِينَ: په یوبل باندې خرچ کوی، دادَ بذل نه دې دَخرچ کولو په معنی کښې دې ⑤ يَغْبِطُهُمْ: رشک به کوی په دوی.

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الزهد عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الحب فی (رقم-۲۳۹۰) ومالک فی الموطا کتاب الشعر باب ما جاء فی المتحابین فی الله (رقم-۱۶) واحمد فی المسند:۲۴۷/۵

**تسهيلات:**

**قوله: يَغْبِطُهُمُ النَّبِيُّونَ وَالشُّهَدَاءُ:**

**اشکال:** د انبياء کرامو درجه به د قيامت په ورځ ډېره اوچه وی د شهيدانو درجې به هم ډېرې لوئی وی د دې حضراتو د يوځام سرې درجه باندې پسخبدل په بو هه کښې نه راځي دويمه خبره دا هم ده چه په دې سره ددغه سړی د انبياؤ او شهداؤ نه د افضل کيدو وهم پيدا کيدې شی کوم چه شرعاً جائز نه دې؟

**داشکال دوه جوابونه:** ① يو مفضول سره څه ښکلې څيز وی او فاضل دهغې خواهش ښکاره کړو نو په دې سره د مفضول درجه د فاضل نه نه زياتيږی اکثر د مفضول ښکلي څيز فاضل ته خوښيږی او هغه غواړی چه که دا څيز ما سره وې نو خومره به ښه وه ددی دا مطلب نه دې چه هغه سره دا سې نعمت موجود نه دې بلکه مطلب دا دې چه دا ښکلي څيز هم که د هغوی په کمالاتو کښې شامل وې نو خومره به ښه وه په دې سره د افضل يا غير افضل مسئله نه پيدا کيږی.

② دا کلام په فرض باندې مبنی دې يعنی فرض کړه که چرې انبياء او شهداء په څه څيز باندې غبطه کوله يعنی پسخيدلې نو دې دوو سړو په درجه باندې به ئې کولو ليکن هغوی به نه پسخيږی.

**[۵۰۱۴] دَالله تعالیٰ دَرضا دَپاره د تعلقاتو ساتلو ثواب**

---

-()[۹] [۱] وَعَنْ عُمَرَ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«إِنَّ مِنْ عِبَادِ اللّٰهِ لَأُنَاسًا مَا هُمْ بِأَنْبِيَاءَ وَلَا شُهَدَاءَ، [۳] يَغْبِطُهُمُ الْأَنْبِيَاءُ وَالشُّهَدَاءُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ بِمَكَانِهِمْ مِنَ اللّٰهِ [۴]" قَالُوا: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! تُخْبِرُنَا مَنْ هُمْ؟ [۵] قَالَ: "هُمْ قَوْمٌ تَحَابُّوا بِرُوحِ اللّٰهِ، عَلَى غَيْرِ أَرْحَامٍ بَيْنَهُمْ، وَلَا أَمْوَالٍ يَتَعَاطَوْنَهَا، [۶] فَوَاللّٰهِ إِنَّ وُجُوهَهُمْ لَنُورٌ، وَإِنَّهُمْ لَعَلَى نُورٍ، [۷] لَا يَخَافُونَ إِذَا خَافَ النَّاسُ، وَلَا يَحْزَنُونَ إِذَا حَزِنَ النَّاسُ [۸]" وَقَرَأَ الْآيَةَ: ﴿أَلَا إِنَّ أَوْلِيَاءَ اللّٰهِ لَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ﴾ [يونس: ۶۲]». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

---

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عمر رضی الله عنه وايي، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل. [۲] د الله په بنده ګانو کې څه خلق (يعني اولياء الله) داسې دی، اګر که نبي او شهيد نه وي. [۳] ليکن د قيامت په ورځ د الله په نزد دهغوئ مراتب او درجات ليدو سره انبياء او شهداء به هم په هغوئ رشک کوي. [۴] صحابه رضی الله عنهم عرض وکړو، يارسول الله، مونږ ته وښايي هغه کوم خلق دي. [۵] حضور صلی الله علیه وسلم ورته وفرمايل هغه، هغه خلق دي، چې د الله روح يعني قرآن کريم په سبب په خپلو کې ميل محبت لري. حالانکي د هغه په منځ کې نه څه رشته وي (چې د هغه تقاضه هغوئ د يو بل سره محبت باندې مجبوره کړي) او نه د مال ودولت دورکړې راکړې

---

[۱] اخرجه ابوداود فی السنن أبواب الإجارة/باب فی الرهن (رقم-۳۵۲۷) واحمد فی المسند:۵/۳۴۳

معامله وي ،حاصل داچي د هغوئ باهمي محبت او په خپلو کې د تعلق بنياد څه دنياوي غرض او وسيله باندې نه وي، بلکي محض د الله ﷻ رضا او خوشنودي او د تعليمات قرآني اتباع باندې وي، [۶]او قسم دی په الله د قيامت په ورځ به د هغوئ مخونه نوراني وي يا هغوئ به مجسم نور وي. او هغوئ به د نور په منبرونو (يانفس نور باندې) متمکن وي. [۷]هغه خلق به هغه وخت هم خوف زده نه وي، کله چې نور خلق په خوف کې مبتلا وي. او هغوئ به هغه وخت هم غمجن نه وي څه وخت چې نور خلق غمجن وي. [۸]بيا حضور ﷺ د داسې خلقو د الله دوست کولو او هغوئ نه د خوف او حزن نفي کولو د بيان بطور دليل دا آيت شريف تلاوت کی أَلَآ إِنَّ أَوْلِيَآءَ اللَّهِ لَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ. آګاه شئ چې د الله په دوستانو خوف نه راځي، او نه هغوئ غمجن کيږي

۵۰۳-(١)وَرَوَاهُ فِي "شَرْحِ السُّنَّةِ" عَنْ أَبِي مَالِكٍ بِلَفْظِ "الْمَصَابِيحِ" مَعَ زَوَائِدَ وَكَذَا فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ".

**ترجمه:** او په شرح السنه کښې ئې دابومالک څخه د مصابيح په لفظ سره نقل کړې دی اودغه شان په شعب الايمان کښې هم شته

**حل اللغات:** - ① يَغْبِطُهُمْ: رشک به کوی په دوی، ② رُوحِ اللَّهِ: د الله روح يعنی قرآن کريم. ③ أَرْحَامٍ: رشته داری. ④ يَتَعَاطَوْنَهَا: چه يوبل ته ئې ورکوی.

**تسهيلات:**

**قوله:** هُمْ قَوْمٌ تَحَابُّوا بِرُوحِ اللَّهِ:

**خپل مينځ کښې دالله تعالی دپاره محبت ساتونکی:** دَدنيا خلق دَمال دولت او دنيوی مفاداتو دَ وجې نه يوبل سره محبت کوی حالانکه دا ناپائيدار څيزونه دی هم په دنياکښې به پاتې شی دَمحبت دَپاره خو اصل څيز اسلام او قرآن دې کوم چه پائيدار دې اودَ کوم محبت چه پائيدار دې په دې وجه په دې حديث کښې اوفرمائيلې شو چه په قيامت کښې دَ پسخيدو قابل هغه خلق دی چه دَ دينی رشتې په بنياد باندې خپل مينځ کښې محبت لری

**د روح الله څخه مراد او وجه تسميه:** دَ روح الله نه شارحينو قرآن کريم مراد اخستې دې ځکه چه قرآن هم دَمړو بدنونودَپاره حيات او روح دې اودَدې په وجه سره خپل مينځ کښې محبت، مضبوطه دينی رشته ده چه په قيامت کښې به ضرور په کار راځی

**[۵۰۴] دَ مسلمانانو خپل مينځ کښې محبت ساتل د ايمان مضبوطه کړی ده**

۵۰۴-(٢)[۱۰] [١]وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لِأَبِي ذَرٍّ:

١) اخرجه البغوی فی شرح السنه رقم ۳۴۶۸ والبيهقی فی شعب الايمان رقم ۸۹۹۸

٢) اخرجه البيهقی فی شعب الايمان رقم ۹۵۱۴

[۲]يَا أَبَا ذَرٍّ! أَيُّ عُرَى الْإِيمَانِ أَوْثَقُ؟[۳]" قَالَ: اللّٰهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ.[۴]قَالَ: "الْمُوَالَاةُ فِي اللّٰهِ، وَالْحُبُّ فِي اللّٰهِ، وَالْبُغْضُ فِي اللّٰهِ". رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ".

**ترجمه**: [۱]او حضرت ابن عباس رضی الله عنهما وايي، چې رسول الله ﷺ حضرت ابوذر رضی الله عنه ته وفرمايل [۲] اي ابو ذره! پوهيږې چې د ايمان كومه كړۍ زياته مضبوطه ده. [۳]حضرت ابوذر رضی الله عنه جواب وركړو، الله او د هغه رسول ښه پوهيږي. [۴]نو حضور ﷺ ورته وفرمايل، د الله رضا او خوشنودي د پاره په خپلو كې د يوبل سره ميل محبت سائل او د الله رضا او خوشنودي د پاره د چاسره دوستي كول. او د الله رضا او خوشنودي د پاره د چاسره بغض او نفرت كول (بيهقي)

**حل اللغات**: - ①عُرَى: كړئ، بند، ②أَوْثَقُ: زيات مضبوط، ③الْمُوَالَاةُ: يوبل سره محبت كول

**تسهيلات**: قوله: أَيُّ عُرَى الْإِيمَانِ أَوْثَقُ:

**د اسلام مضبوطه كړی**: د الله د پاره په خپل مينځ كښې دوستي كول. د الله دپاره محبت كول، او د الله د پاره چا سره بغض كول د ايمان مضبوطه كړی ده دا رنگ د مذكوره محبت دوه طرفه كيدل هم ضروري نه دی لكه چه ډير د الله والو سره زمونږ محبت شته خونه مونږ هغوی ليدلی دی او نه هغوی مونږ ليدلی يوه

**[۵۰۱۵]دَ مسلمان رورد بيمارپُرسئ (پوښتنې) ثواب**

۵۰۱۵-( )[۱] [۱]وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [۲]" «إِذَا عَادَ الْمُسْلِمُ أَخَاهُ أَوْ زَارَهُ [۳]قَالَ اللّٰهُ تَعَالَى: طِبْتَ وَطَابَ مَمْشَاكَ، وَتَبَوَّأْتَ مِنَ الْجَنَّةِ مَنْزِلًا» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه**: [۱]او حضرت ابوهريره رضی الله عنه وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل. [۲]يو مسلمان چې د خپل مسلمان ورور پوښتني د پاره يا د ملاقات د خاطره هغه ته ورسي، [۳]نو الله تعالی (بلا واسطه يادرباني فرشتوپه واسطه) فرمايي، چې (دنيا او په آخرت كي) ستا ژوند ښه شو. ستا تلل مبارك شو. (چې په تلو سره دلته راغې) په هرقدم باندې تاته ثواب حاصل شو. او تاته په جنت كې يولوی او عالي مرتبه ځای حاصل شو. دا روايت ترمذي نقل كړی دی. او ويلي يي دي چې دا حديث غريب دی.

**حل اللغات**: - ①عَادَ: عيادت، پوښتنه اوكړی، ②زَارَهُ: زيارت. ملاقات اوكړی. ③طَابَ: ښه شو، ④مَمْشَاكَ: تلل ستا، أي صار مشيك سبب طيب عيشك ⑤وَتَبَوَّأْتَ: او تاخان له ځای جوړكړو، يعنی تاته حاصل شو. ⑥مَنْزِلًا: مقام، ځائې

---

[۱]) اخرجه الترمذی فی السنن كتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی زيارة الإخوان (رقم-۲۰۰۸) وابن ماجه فی كتاب الجنائز، باب ما جاء فی ثواب من عاد مريضاً (رقم-۱۴۴۳)واحمد فی المسند: ۳۴۴/۲

**تسهيلات:**

**قوله:** طبت أي صرت طيب العيش في الاخرة يا دي كې دا هم احتمال دي چه دا جمله دعائيه وی

**قوله:** قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى: طِبْتَ وَطَابَ مَمْشَاكَ:

**دالله تعالى د رضا دپاره د يومسلمان په زيارت كولو د فرشتو دعا:** يعنى ستا دا راتلل د ثواب باعث دي په دنيا كښې چه په ژوند كښې خوشحالى او اطمينان ملاويدو تعلق كومو څيزونو سره دي هغه دا دی چه د قناعت او توكل دولت د چا نصيب شى. د رضائې الهى سعادت ملاو شى، په رزق كښې بركت، په زړه كښې وسعت او حوصله او د علم او عمل توفيق حاصليدل **طبت وطاب ممشاك** يا خو دا دريواړه الفاظ خبر دي نو په دې صورت كښې معنى دا ده چه تا ته دي خه ژوند ملاو شى، ستا لاره دې عمده شى. ستا ټكانه دې جنت شى په دې عمل باندى د دومره لوئې اجر و ثواب ملاويدو سبب دا دي چه د يو مومن زړه خوشحالول د عبادت ثقلين نه أفضل دي اګرچه عيادت كول وى كوم نه چه فرض كفايه دي په دې حديث كښې وعظ و عبرت هم دې او تذكير او تنبيه هم ده چه صحت. ژوند . فراغت او غمونه لرې كيدل غنيمت اوګڼړئ

**[۵۰۱۶] څوك چې چا سره محبت ساتى نو هغه دې خبر كړى**

۵۰۱۶-()[۱۲] [۱] وَعَنِ الْمِقْدَامِ بْنِ مَعْدِي كَرِبَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: " [۲] «إِذَا أَحَبَّ الرَّجُلُ أَخَاهُ فَلْيُخْبِرْهُ أَنَّهُ يُحِبُّهُ» " رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت مقدام ابن معديكرب رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه روايت كوي. چې حضور ﷺ وفرمايل. [۲] هركله چې يو سړى د خپل مسلمان ورور سره دوستي او محبت ساتي نو پكار ده چې هغه مسلمان ته وښايي چې هغه ورسره دوستي او محبت ولري (ترمذي)

**تسهيلات:**

**قوله:** فَلْيُخْبِرْهُ أَنَّهُ يُحِبُّهُ:

دا حكم په دې وجه وركړې شوې دې چه كله دې مسلمان ته معلومه شى چه فلانكې كس ما سره د الله د پاره دوستى كوى نو هغه به هم ده سره محبت او دوستى ساتى او د دوستى حقوق به ادا كوى دارنګ د هغه باره كښې به دعا كونكې او د هغه خير خواه به وى

---

() اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأدب/باب إخبار الرجل الرجل بمحبته إياه (رقم ۵۱۲٤) والترمذي في كتاب الزهد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في إعلام الحب (رقم-۲۳۹۲) واحمد في المسند: ٤/١٣٠

## [٥٠١٧] چاسره د محبت کولو اجر او ثواب

٥٠١٧ - () [١٣] ١ وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: ٢ «مَرَّ رَجُلٌ بِالنَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَعِنْدَهُ نَاسٌ. ٣ فَقَالَ رَجُلٌ مِمَّنْ عِنْدَهُ: إِنِّي لَأُحِبُّ هٰذَا لِلّٰهِ. ٤ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " أَعْلَمْتَهُ؟ ". ٥ قَالَ: لَا. قَالَ: " قُمْ إِلَيْهِ فَأَعْلِمْهُ ". ٦ فَقَامَ إِلَيْهِ فَأَعْلَمَهُ ٧ فَقَالَ: أَحَبَّكَ الَّذِي أَحْبَبْتَنِي لَهُ. ٨ قَالَ: ثُمَّ رَجَعَ. فَسَأَلَهُ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَأَخْبَرَهُ بِمَا قَالَ. ٩ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " أَنْتَ مَعَ مَنْ أَحْبَبْتَ، وَلَكَ مَا احْتَسَبْتَ» ". رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي " شُعَبِ الْإِيمَانِ ". وَفِي رِوَايَةِ التِّرْمِذِيِّ: " «الْمَرْءُ مَعَ مَنْ أَحَبَّ وَلَهُ مَا اكْتَسَبَ» ".

**ترجمه:** ١ او حضرت انس ﷜ وايي، ٢ چې يوه ورځ د رسول الله ﷺ په مخکې يو سړی تير شو، د حضور ﷺ سره ډير خلق ناست وه، ٣ په هغوئ خلقو کې يو سړي اوويل داسړی چې اوس تير شو زه ورسره محض د الله رضا او خوشنودي د پاره محبت کوم ٤ رسول الله ﷺ په دي اوريدو سره وفرمايل، آيا تا هغه ته ښودلی دی چې ته د هغه سره محبت کوي، ٥ هغه سړي اوويل نه حضور ﷺ ورته وفرمايل، لاړشه هغه ته ورشه ورته اووئيلو چې زه ستاسره محبت کوم، ٦ نو هغه سړی د مجلس نبوي ﷺ نه پاڅيدو او هغه ته ورغلی او ورته وې ښودل چې زه ستاسره محبت کوم، ٧ هغه سړي په (جواب کې بطور دعا) ورته وويل، چې هغه ذات (يعني الله ﷻ) دې ستاسره محبت وکړي، چې د هغه د رضا او خوشنودي د خاطره ته زماسره محبت کوي، ٨ حضرت انس ﷜ وايي بيا هغه سړی واپس راغلو، رسول الله ﷺ پوښتنه ځيني وکړه، هغه سړي په جواب کې څه ويلي دي، هغه حضور ﷺ ته هغه جواب وښووی، کوم چې هغه سړي ورکړی وو. ٩ نو حضور ﷺ ورته وفرمايل، په آخرت کې به د هغه سړي سره يې د چاسره چې محبت ساتي، او ته به د محبت ساتلو بلکي هر هر عمل کې به د هغه شي اجر پيدا کې، چې د هغه د الله ﷻ د پاره نيت کوي، (بيهقي) او د ترمذي روايت کې دا الفاظ دي، چې سړی به د هغه سره وي د چاسره چې محبت ساتي، او هغه ته به د هغه شي اجر حاصليږي، چې هغه يي د ثواب په نيت اختيار وي.

**تسهيلات:**

**قوله:** أَنْتَ مَعَ مَنْ أَحْبَبْتَ، وَلَكَ مَا احْتَسَبْتَ:

**دالله تعالی په محبت کښې د ثواب نيت کول:** د احتساب معنی ده د الله تعالی نه د ثواب اميد لرل او حسبه د دې لفظ اسم دې او اصل کښې دا لفظ د حساب نه راوتې دې چه د

(١) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأدب/باب إخبار الرجل الرجل بمحبته إياه (رقم-٥١٢٥) والترمذي في كتاب الزهد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء أن المرء مع من أحب(رقم-٢٣٨٦) واحمد في المسند:١٥٠/٣

هغې معنی شمارل دی الحاصل د الله د رضا او خوشحالول په خاطر د چا سره محبت کول داسی فعل دې چه که چرې د ثواب په نیت وی نو هغه نیکی شمارلې کیږی او په هغې ثواب مرتب کیږی الله تعالی هغه محبت کونکی ته د هغه د نیت مطابق ثواب ورکوی

**[۵۰۱۸]د نیکانو خلقو سره تعلق قائم ساته**

۵۰۱۸ - (¹)[۱۳] [۱]وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - أَنَّهُ سَمِعَ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: [۲]" «لَا تُصَاحِبْ إِلَّا مُؤْمِنًا[۳]وَلَا يَأْكُلْ طَعَامَكَ إِلَّا تَقِيٌّ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه**: [۱]او د حضرت ابو سعید ﷺ نه روایت دی هغه د رسول الله ﷺ نه دا واوریدل. [۲]د مسلمان نه علاوه بل څوک (کافر او مشرک) خپل همنشین او دوست مه جوړوی. یا دا مراد دی چې د نیکو کار مسلمان نه علاوه یو فاسق او د بدکار سره دوستي مه کوئ. (د دي نه مراد هغه جمله ده چې مخکې يي فرمايلي ده) [۳]او ستا طعام دی پرهیز کار او نیکو کار نه علاوه بل څوک نه خوري (ترمذي، ابوداود، دارمي)

**حل اللغات**:- ①لَاتُصَاحِبْ: دوستی، ملګرتیا مه کوه.

**تسهیلات**:

**قوله**: لَاتُصَاحِبْ إِلَّامُؤْمِنًا:

**د خرابو خلقو سره د ملګرتیا او دوستی نه منع کیدو وجه**: یعنی د خرابو خلقو د ملګرتیا دوستی او هغوی سره نساتې پاستې نه ځان بچ کره ځکه چه دا ستا د پاره د لستوڼی ماران دی ستا د بدن په ځائی به ستا ایمان او روح له تیک ورکړی تا به په شرك او بدعاتو کښې اخته کړی. او تاته به بداخلاقی او بدکرداری ښائی په دې وجه مؤمنانو سره دوستی او تعلق ساته

**قوله**: وَلَايَأْكُلْ طَعَامَكَ إِلَّاتَقِيٌّ:

یعنی ستا حلاله نوړئی ده په دې وجه مناسب دی چه دا نیك او متقی سړې اوخوری مطلب دا چه د فاسق فاجر په تاباندې داسې څه احسان کیدل نه دی پکار چه صبا ته مجبورا په هغه باندې خوراکونه کوې بلکه ستا معامله نیکانو خلقو سره کیدل پکاردی او د مجبورئی صورت جدا دې

¹) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب/باب من یؤمر أن (رقم-۴۸۳۲) والترمذی فی کتاب الزهد عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی صحبة المؤمن (رقم-۲۳۹۵)واحمد فی المسند:۳۸/۳

**[۵۰۱۹] د دوست جوړولو په وخت اوګوره چې ته څوك دوست جوړوې**

۵۰۱۹-(١)[١٥] [١]وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢]" «الْمَرْءُ عَلَى دِينِ خَلِيلِهِ [٣]فَلْيَنْظُرْ أَحَدُكُمْ مَنْ يُخَالِلُ» ". [٤]رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ" وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. وَقَالَ النَّوَوِيُّ: إِسْنَادُهُ صَحِيحٌ.

**ترجمه:** [١]او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل [٢]انسان د خپل دوست په دين وي (يعني كوم سړی چې څوك دوست جوړوي. نو عام طور سره د هغه عقائد او نظريات او د هغه عادات او اطوار اختيار وي او قبلوي. [٣]نو دا ضروري دی چې كله په تاسو كې څوك دوست جوړوي. [٤]احمد، ترمذي، ابوداود، او ترمذي ويلي دي چې دا حديث حسن غريب دی، او نووي رحمه الله ويلي دي د دې روايت اسناد صحيح دی

**حل اللغات:** - ① يُخَالِلُ: دَدې دوستئی نه مراد دَزړه محبت دې

**تسهيلات:**

**قوله: فَلْيَنْظُرْ أَحَدُكُمْ مَنْ يُخَالِلُ:**

**د خلة معنى او تحقيق:** قلبي دوستي او قلبي محبت فاسق فاجر او بدكردار سړی سره ساتل نه دي پكار او ظاهري رواداري اومدارات جائز دي.

با دوستاں تلطف با دشمناں مدارا

داحديث بعضې علماؤ مثلاً سراج الدين قزويني موضوع ګرځولې دې په دې وجه صاحب مشكوة ترمذي او نووي په حوالوسره ذكر كړو چه هغوی دا حديث حسن او صحيح ګرځولې دې.لهذا دې ته موضوع وئيل صحيح نه دی

**[۵۰۲۰] څوك چې چاسره تعلق ساتل غواړې نو دهغه نوم اونسب دې معلوم كړی**

۵۰۲۰-(٢)[١٦] [١]وَعَنْ يَزِيدَ بْنِ نَعَامَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢]" «إِذَا آخَى الرَّجُلُ الرَّجُلَ، [٣]فَلْيَسْأَلْهُ عَنِ اسْمِهِ وَاسْمِ أَبِيهِ، وَمِمَّنْ هُوَ؟ [٤]فَإِنَّهُ أَوْصَلُ لِلْمَوَدَّةِ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [١]او حضرت يزيد ابن نعامه رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل، [٢]هركله چې يو سړی د چاسره ورور ولي قائموي، [٣]نو پكار ده چې د هغه او د پلار نوم معلوم كړي، او پوښتنه ځيني وكړي چې هغه دكومې قبيلې سره تعلق لري، [٤]ځكه چې دا معلومول د دوستي او تعلق ډير زيات مضبوط جوړولو ذريعه وي.

**حل اللغات:** - ① أَوْصَلُ: مضبوط جوړونكې، ② الْمَوَدَّةِ: محبت.

---

[1] اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأدب/باب من يؤمر أن (رقم-۴۸۳۳) والترمذى فى كتاب الزهد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-۲۳۷۸)واحمد فى المسند:۲/۳۰۳

[2] اخرجه الترمذى فى السنن كتاب الزهد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى إعلام الحب (رقم-۲۳۹۲)

**تسهيلات:**

**قوله: يَزِيدَ بْنِ نَعَامَةَ-رضي اللّٰهِ عَنْهُ:**

**د يزيد بن نعامه تعارف:** ابن عبد البر د په صحابه كښ شماركړي دي او جمهورو حضراتو دي په تابعينو كښې شمار كړې ابن ابي حاتم وائي چه ده ته د نبي عليه السلام صحبت نه دي حاصل شوې ابن عبد البر وائي چه په غزوه حنين كښې دې مشرک وو او د هغې نه پس ئې اسلام قبول كړې دې

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۵۰۳] دَالله تعالى دَ رضا دَپاره محبت او دشمنى الله تعالى ته خوښ عملونه دى**

۵۰۳-( ) [۱۷] ۱ عَنْ أَبِي ذَرٍّ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ ۲: «خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: ۳ "أَتَدْرُونَ أَيُّ الْأَعْمَالِ أَحَبُّ إِلَى اللّٰهِ تَعَالَى؟ ۴" قَالَ قَائِلٌ؟ الصَّلَاةُ وَالزَّكَاةُ. وَقَالَ قَائِلٌ الْجِهَادُ. ۵ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ أَحَبَّ الْأَعْمَالِ إِلَى اللّٰهِ تَعَالَى الْحُبُّ فِي اللّٰهِ ۶ وَالْبُغْضُ فِي اللّٰهِ» رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَرَوَى أَبُو دَاوُدَ الْفَصْلَ الْأَخِيرَ.

**ترجمه:** ۱ حضرت ابوذر ﷺ وايي، ۲ چې يوه ورځ رسول الله ﷺ د خپلې حجرې مباركې نه ووتى او مسجد نبوي ﷺ ته يې زمونږ خواته تشريف راوړى ۳ او وي فرمايل چې تاسو پيژنى الله پاك ته د ټولو نه زيات خوښ عمل كوم يو دى، ۴ يو ويونكي دا وئيل چې مونځ يا زكاة او يو ويونكي وئيل چې جهاد، ۵ حضور ﷺ چې دا واوريدل نو وي فرمايل د الله ﷻ په نزد باندې د ټولو نه خوږ عمل د الله د رضا د پاره د چا سره محبت كول ۶ او د الله د رضا د پاره د چاسره بغض او نفرت كول دي، احمد، او ابوداود په خپل روايت كې د حديث آخري حصه يعنى ان احب الاعمال الخ نقل كړى دى

**تسهيلات:**

**قوله: وَقَالَ قَائِلٌ الْجِهَادُ:**

**اشكال:** "حب فى الله" او "بغض فى الله" دَ مونځ روژې زكوة او جهاد څخه ولې افضل او ګرخولې شوحال دادې چه دا اعمال فرض دى؟

**داشكال جواب:** ① دَباقى ټولو فرائضو پوره كولونه پس "الحب فى الله" او "البغض فى الله" افضل عمل دې مطلقًا نه دې يعنى دَ مونځ روژه زكوة او جهاد دَتكميل نه پس حب فى الله افضل عمل دې بعضې رواياتو كښې دَدې تاويل تصريح هم ده لكه طبرانى دَحضرت ابن عباس ﷺ نه نقل كړى دى «أحب الأعمال إلى الله بعد الفرائض إدخال السرور فى قلب المؤمن».

[۱] اخرجه احمد فى المسند: ۱۴۶/۵ واخرج ابوداود الفصل الاخير فى السنن رقم ۴۵۹۹

② په قلبي اعمالو کښې حب في الله افضل عمل او بدني اعمالو کښې مونځ روژه زکوة حج او جهاد افضل ترين اعمال دي. جدا جدا حيثيت دي

**[۵۰۲۲] چا سره دَالله تعالى دَ رضا دَپاره محبت کول د الله تعالى تعظيم کول دی**

۵۰۲۲-()[۱۸] ۱ وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ "«مَا أَحَبَّ عَبْدٌ عَبْدًا لِلَّهِ ۳ إِلَّا أَكْرَمَ رَبَّهُ عَزَّ وَجَلَّ»". رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابو امامه رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل، ۲ کوم بنده چې د کوم بنده سره محض د الله د رضا او خوشنودي په خاطر محبت او دوستی وساتي، ۳ نو هغه په حقيقت کښې د خپل پروردګار عز وجل تعظيم او تکريم وکی.

**[۵۰۲۳] په تاسو کښې غوره کوم خلق دی؟**

۵۰۲۳-()[۱۹] ۱ وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيدَ أَنَّهَا سَمِعَتْ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ ۲ أَلَا أُنَبِّئُكُمْ بِخِيَارِكُمْ ۳ قَالُوا بَلَى يَا رَسُولَ اللَّهِ ۴ قَالَ خِيَارُكُمُ الَّذِينَ إِذَا رُؤُوا ذُكِرَ اللَّهُ. رَوَاهُ ابْنُ مَاجَةَ.

**ترجمه:** ۱ او د حضرت اسماء بنت يزيد رضي الله عنها نه روايت دی، چې هغوئ د رسول الله ﷺ نه دا فرمايل واوريدل، ۲ آيا زه تاسو ته اووايم چې په تاسو کې بهترين خلق څوک دي؟ ۳ صحابه رضي الله عنهم عرض وکړو چې هو ا ضرور اووئيلو ۴ حضور ﷺ وفرمايل په تاسو کې بهترين خلق هغه دي چاته چې وګوري الله درياد شي.

**حل اللغات:** - ① خِيَارُكُمْ: غوره په تاسو کښې، ② رُؤُوا: چه او کتلې شی هغوی،

**تسهيلات:**

**قوله:** خِيَارُكُمُ الَّذِينَ إِذَا رُؤُوا ذُكِرَ اللَّهُ:

**تسهيلات:**

**نوټ:** ددې حديث د مضمون تشريح د حديث نمبر (۴۸۷۱) په تسهيل کښې تيره شوې ده

**[۵۰۲۴] د الله د پاره په خپل مينځ کې د محبت ساتلو فضيلت**

۵۰۲۴-()[۲۰] ۱ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ "«لَوْ أَنَّ عَبْدَيْنِ تَحَابَّا فِي اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ، ۳ وَاحِدٌ فِي الْمَشْرِقِ وَآخَرُ فِي الْمَغْرِبِ; ۴ لَجَمَعَ اللَّهُ بَيْنَهُمَا يَوْمَ الْقِيَامَةِ. ۵ يَقُولُ: هَذَا الَّذِي كُنْتَ تُحِبُّهُ فِيَّ»".

**ترجمه:** ۱ حضرت ابو هريره رضي الله عنه وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ که دوه بندګان محض د الله رضا او خوشنودي د خاطره په خپلو کې محبت ساتي، ۳ برابره خبره ده که

[۱] اخرجه احمد فی المسند: ۲۵۹/۵
[۲] اخرجه ابن ماجه فی السنن ۲/ ۱۳۷۹، الحديث رقم ۴۱۱۹.
[۳] اخرجه البيهقی فی شعب الايمان رقم ۹۰۲۲

یو دهغویٔ په مشرق کې وي او بل په مغرب کې وي [۴] نو بلاشبه الله ﷻ به یې د قیامت په ورځ یو ځای کړي، (چې د یو بل شفاعت وکړي، یا په جنت کې د یو بل سره وي) اه او الله ﷻ به (د فرشتې په ژبه یا براه راست خپله) په هغویٔ کې هریوه ته وفرمایي. دابنده هغه دی چې د ده سره تا څما د خاطره محبت کوی

**[۵۰۲۵] د دنیا او آخرت د خیر حاصلولو اعمال**

۵۰۲۵ -( )[۳۱] [۱] وَعَنْ أَبِي رَزِينٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - أَنَّهُ قَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [۲]: أَلَا أَدُلُّكَ عَلَى مِلَاكِ هَذَا الْأَمْرِ الَّذِي [۳] تُصِيبُ بِهِ خَيْرَ الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ؟ [۴] عَلَيْكَ بِمَجَالِسِ أَهْلِ الذِّكْرِ، [۵] وَإِذَا خَلَوْتَ فَحَرِّكْ لِسَانَكَ مَا اسْتَطَعْتَ بِذِكْرِ اللَّهِ، [۶] وَأَحِبَّ فِي اللَّهِ وَأَبْغِضْ فِي اللَّهِ، [۷] يَا أَبَا رَزِينٍ! هَلْ شَعَرْتَ أَنَّ الرَّجُلَ إِذَا خَرَجَ مِنْ بَيْتِهِ زَائِرًا أَخَاهُ، [۸] شَيَّعَهُ سَبْعُونَ أَلْفَ مَلَكٍ، كُلُّهُمْ يُصَلُّونَ عَلَيْهِ [۹] وَيَقُولُونَ: رَبَّنَا إِنَّهُ وَصَلَ فِيكَ، فَصِلْهُ، [۱۰] فَإِنِ اسْتَطَعْتَ أَنْ تُعْمِلَ جَسَدَكَ فِي ذَلِكَ فَافْعَلْ".

**ترجمه:** [۱] او د حضرت ابو رزین رضی الله عنه نه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل. [۲] زه تا ته د دې امر (یعني دین) ریښې او بنیاد و نه ښایم [۳] چې د هغه په ذریعه ته د دنیا او آخرت خیر حاصل کړې، (نو واوره) دا څیزونه ته په ځان لازم کړه، [۴] د اهل ذکر په مجالس کې ناسته کوه، (چې ستا هم د ذکر الله توفیق او سعادت نصیب شي) [۵] هر کله چې تنها (ځان ته) یې نو څومره چې ممکنه وي، د ذکر الله په ذریعه خپله ژبه په حرکت کې ساته. یعنې د خلقو سره په کینا ستو سره هم ذکر کوه، او په تنهائي کې هم د الله په یادکې مشغول اوسه [۶] او که ته څوک دوست ساتې نو محض د الله رضا او خوشنودي د پاره یې دوست ساته. او که د چاسره بغض دښمني لرې، نو خاص د الله رضا او خوشنودي د پاره د هغه سره بغض ساته (یعنې) د چاسره ستا د دوستي او دښمني معیار ستا د خپل ذات خواهشات یا څه دنیاوي نفع نقصان کیدل نه دي پکار، بلکې د الله رضا او خوشنودي معیار جوړ کړه. د دې مطلب دادی، چې هغه سړی خپل دوست جوړ کړه، چې د هغه دوستي سره الله خوشحالیږي. او هغه سړي سره دښمني ساته. چې د هغه دښمني سره د الله خوشنودي حاصلیږي [۷] او اې ابو رزین رضی الله عنه! ایا تا ته معلومه ده چې کله یو سړی د خپل مسلمان ورور زیارت او ملاقات په اراده د کور نه وځي. او هغه مسلمان ته ورځي نو اویا زره فرشتي هغه پسې وروستنه وروسته ځي. او هغه ټولې فرشتې د هغه د پاره دعاء استغفار کوي، [۹] او وایي اې زمونږ پروردګاره! دې سړي محض ستا د رضا او خوشنودي د خاطره یو مسلمان ورور سره ملاقات کړی دی، نو دې د خپل رحمت او مغفرت سره منسلك کړه، [۱۰] نو اې ابو رزین رضی الله عنه! که ستا د پاره په دې مذکوره څیزونو

---

( ) اخرجه البیهقي في شعب الایمان رقم ۹۰۲٤

کښې خپل ځان لګول يعنې په هغه عمل کول ممکن وي نو داشيان ضرور اختيار کړه

**حل اللغات:** - ① مِلَاكِ: بنياد، ② خَلَوْتَ: تنها او ځانله ئې، ③ هَلْ شَعَرْتَ: آيا تاته معلومه ده. ④ بَيْعَهُ: ورپسې روسته ځی، ⑤ وَصَلَ: تعلق ساتلې دې.

**تسهيلات:**

**قوله:** عَلَيْكَ بِمَجَالِسِ أَهْلِ الذِّكْرِ:

**د مجالس ذکر د جنت باغونه سره تشبيه ورکول:** چه مجالس ذکر لازم اونيسه چونکه د ذکر مجالس در حقيقت د جنت باغونه دی دې وجه دا لازم نيولو حکم دې کما فی الحديث اذا مررتم برياض الجنة فارتعوا قال وما رياض الجنة قال الذکر (ترمذی)

**[۵۰۳۶] دَالله تعالى دَپاره دَ محبت حاصلولو فضيلت**

۵۰۳۶ - ()[۲۲] ۱ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ ۲: «كُنْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ۳ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۴ "إِنَّ فِي الْجَنَّةِ لَعُمُدًا مِنْ يَاقُوتٍ ۵ عَلَيْهَا غُرَفٌ مِنْ زَبَرْجَدٍ، ۶ لَهَا أَبْوَابٌ مُفَتَّحَةٌ تُضِيءُ كَمَا يُضِيءُ الْكَوْكَبُ الدُّرِّيُّ". ۷ فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ! مَنْ يَسْكُنُهَا؟ ۸ قَالَ: "الْمُتَحَابُّونَ فِي اللَّهِ، وَالْمُتَجَالِسُونَ فِي اللَّهِ، وَالْمُتَلَاقُونَ فِي اللَّهِ» ۹ "رَوَى الْبَيْهَقِيُّ الْأَحَادِيثَ الثَّلَاثَةَ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ".

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي، ۲ چې يوه ورځ زه د رسول الله ﷺ سره ناست وم، ۳ حضور ﷺ وفرمايل ۴ په جنت کې د ياقوت ستني دي، ۵ چې په هغه د زمرودو بالاخاني جوړې وي، ۶ د هغه دروازې خلاصې دي، او هغه بالاخاني او دروازې داسې روښانه او ځلانده (ښائسته) دي، لکه څرنګه چې روښانه ستوري ځليږي، ۷ په دې اوريدو سره صحابه رضي الله عنهم عرض وکړو، يارسول الله په هغه کې به کوم خلق اوسيږي، ۸ حضور ﷺ ورته وفرمايل کوم خلق چې د الله د رضا او خوشنودئ په خاطر په خپلو کې محبت ساتي او د الله د رضا او خوشنودي د خاطره خپلو کې ملاقات کوي، ۹ دا دري سره روايتونه بيهقي رحمه الله په شعب الايمان کې نقل کړی دی

**حل اللغات:** - ① عُمُدًا: ستنې، ② غُرَفٌ: بالاخانې، ③ مُفَتَّحَةٌ: پرانستې، خلاصې، ④ تُضِيءُ: ځليږی، روښانه دی، ⑤ الْكَوْكَبُ: ستوری، ⑥ الدُّرِّيُّ: روښانه، ⑦ الْمُتَلَاقُونَ: خپلو کښې ملاقات کونکی،

**تسهيلات:**

**قوله:** لَهَا أَبْوَابٌ مُفَتَّحَةٌ تُضِيءُ كَمَا يُضِيءُ الْكَوْكَبُ الدُّرِّيُّ:

په دې کښې کمال امن طرف ته اشاره ده يا دې ته اشاره ده چه دا کور والا په انتظار کښې دی او متلاقون نه مراد په خپل مينځ کښې د يو بل زيارت کول او د يو بل سره مصافحه کول دی.

---

۱) اخرجه البيهقی فی شعب الايمان رقم ۹۰۰۲

# [۱۷] بَابُ مَا يُنْهى عَنْهُ مِنَ التَّهَاجُرِ وَالتَّقَاطُعِ وَاتِّبَاعِ الْعَوْرَاتِ]

## دَ ممنوع څیزونو یعنی ملاقات او تعلق پریخودل او دخلقو دعیب لټولو بیان

**خلاصة الباب**

**فيه خمسة وعشرون حديثاً مشتملة على خمس مسائل:**

① حرمة تهاجر المسلم فوق ثلاثة أيام: ۱، ۷، ۸، ۱۰۔
② المنع عن إتباع عورات المسلمين وقباحته: ۲، ۱۷، ۱۸، ۱۹، ۲۰۔
③ قباحة التهاجر والتحاسد والأضرار بالمسلمين: ۳، ۴، ۸، ۱۰، ۱۲، ۱۳، ۱۴، ۱۵، ۱۶، ۲۲، ۲۴۔
④ فضيلة دفع التهاجر والإجتهاد في إصلاح المسلمين: ۱، ۵، ۶، ۱۱۔
⑤ فضيلة حسن الظن بالله وبالمسلمين: ۲۱، ۲۳، ۲۴۔

**ترجمة الباب د الفاظو تشریح:** یعنی دا یوڅو ممنوع څیزونه دی په کوم کښې چه ترک ملاقات په خپل مینځ کښې هجران او تعلق پریخودل او عیب لټول شامل دی.

**قوله:** مِنَ التَّهَاجُرِ:

**دتهاجر لغوی معنی:**

تهاجر باب افتعال دې یو بل سره تعلق پریخودلو ته وائی.

**قوله:** "تقاطع" دا لفظ د قطع څخه ماخوذ دې یعنی کټ کول، مرادترې مسلمانانو سره تعلق کټ کول دی

**قوله:** وَاتِّبَاعِ الْعَوْرَاتِ:

**دعورة لغوی معنی:** دادَ عورة جمع ده په لغت کښې عورت هغه څیزته وائی دکوم په ښکاره کیدو سره چه سړې شرم محسوسوی او په زړه کښې غواړی چه هغه څیزدې پټ پاتې وی

**دعورات څخه مراد:** دلته دَ عورات نه پټ عیبونه مراد دی یعنی دَ خلقو پټو عیبونو پسې لګیدل ښه خبره نه ده بلکه منع دی.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۵۰۲۷] مسلمان سره دَ دریو ورځو څخه زیات د ترک تعلق عدم جواز**

۵۰۲۷- (۱)[۱] عَنْ أَبِي أَيُّوبَ الْأَنْصَارِيِّ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲]«وَلَا

[۱]) اخرجه البخاري فی کتاب الأدب/باب الهجرة (رقم-۶۰۷۷) ومسلم فی کتاب البر والصلة والآداب/باب تحريم الهجر فوق ثلاث بلا عذر شرعی (رقم-۲۵ - (۲۵۶۰) وابوداود فی کتاب الأدب/باب فیمن یهجر أخاه المسلم (رقم-۴۹۱۱)والترمذی فی کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی کراهیة الهجر للمسلم (رقم-۱۹۳۲) ومالک فی الموطا کتاب حسن الخلق/باب ما جاء فی المهاجرة (رقم-۱۳) واحمد فی المسند: ۱۷۶/۱

يَحِلُّ لِلرَّجُلِ أَنْ يَهْجُرَ أَخَاهُ فَوْقَ ثَلَاثِ لَيَالٍ ۳ يَلْتَقِيَانِ فَيُعْرِضُ هَذَا وَيُعْرِضُ هَذَا، ۴ وَخَيْرُهُمَا الَّذِي يَبْدَأُ بِالسَّلَامِ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.»

**ترجمه**: ۱ او حضرت ابو ایوب انصاري ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل، ۲ دا د هيچا د پاره حلال نه دي، چې هغه د دريو ورځو نه زيات د خپل مسلمان ورور سره راشه درشه پرېږدي، ۳ او صورت داوي چې هرکله يوبل ته مخې ته راشي، نو دي خپل مخ يوطرف ته وګرځوي، او هغه خپل مخ بل طرف ته وګرځوي، (يعني دواړه د يوبل د سلام کلام او ملاقات نه پرهيز وکړي) ۴ او په دې دواړو کې ښه سړی هغه دی چې د خفګان لرې کولو د پاره او تعلقات بحال کولو د خاطره په سلام کې مخکې شي. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات**:- ۱ يَهْجُرَ: پرېږدي، ۲ يُعْرِضُ: اوګرځوي مخ خپل،

**تسهيلات**:

**قوله: أَنْ يَهْجُرَ أَخَاهُ فَوْقَ ثَلَاثِ لَيَالٍ**:

**د فوق ثلاث قيد فائده**: يعنی دَدريو ورځونه زيات ترک تعلق دَچاد پاره هم حلال نه دي په دې حديث کښې دَ دريو ورځو قيدلګولونه معلومه شوه چه انسانی طبع غصه او غضب ته نظر کولو په وجه دَدريو ورځوپورې دَ يوسړی دَپاره دَ ترک تعلق او بائيکاټ ګنجائش شته دَ غيرت او حميت دَ وجې نه انسان دريو ورځو پورې دَخپل غضب دَ جذباتو دَ وجې نه معذور دې ځکه چه دَ مزاج تيزی او دَ بې صبرئی ماده درې ورځې په جوش کښې وی لهذا دريوورځو پورې به معذوره ګنړلې شی. دَ دريوورځونه زيات قطع تعلق دَ مزاج مغلوبيت نه دې بلکه شرارت دې نوځکه حرام دې. دريو ورځوپورې معذوره ګنړلو وجه هم په پوهه کښې راځی ځکه چه انسان مدنی الطبع دې دَ عام تعلق دَ وجې کله کنځلې اوری کله غيبت اوچغلی اوری. دَ روز مره دَدې خپل مينځ دَمعاملاتو دَ وجې نه دَ جنګ جګړې صورت پيدا کيدې شی په دې وجه دَ دريو ورځو پورې دَ قطع تعلق ګنجائش شته دې زيات نشته.

علامه سيوطی رحمه الله په دې خبره باندې دَ علماؤ اتفاق نقل کړې دې که چرته يوسړی ته دا ويره وی که فلانکی سړی سره ملاقات کوم يا عامو خلقو سره تعلق ساتم نو په دې سره ماته دَدينی او دنياوی نقصان رسيدو خطره ده او زما قيمتی وخت هم ضائع کيدې شی نودَ داسې سړی دَپاره جائز دی چه هغه دَ خلقو نه ځان غاړې ته کړی اودَملاويدو او تعلق ساتلونه ځان اوساتی ليکن چه هغه په دې ځان غاړې ته کولوسره دَ خلقو غيبت اونه کړی دَهغوی بدی اونه کړی اوهغوی سره کينه اوحسد اونه کړی

هم دغه شان دَدينی حميت دَ وجې نه اودَ دينی غيرت په بنيادباندې دَ دين دَ فائدې دَپاره

دَ دريو ورځونه زيات دَترك تعلق ګنجائش شته ځکه چه دا ترك موالات دَدين دَپاره هم مفيد دى اودَ دغه سړى دَپاره هم مفيد دى کوم سره چه ترك تعلق کړې شوې دې چنانچه حضرت کعب بن مالك، هلال بن اميه او حضرت مراره رضي الله عنهم سره اهل مدينه او دَ الله تعالى پيغمبر عليه السلام پنځوس ورځې مکمل قطع تعلق کړې وو حضورپاك حضرت زينب رضي الله عنها سره تقريباً پاؤکم درې مياشتو پورې قطع تعلق کړې وو حضرت ابن عمر رضي الله عنه خپل ځوئى حضرت بلال رحمه الله سره تول عمرقطع تعلق کړې وو حضرت عائشه رضي الله عنها دَ يوې مودې پورې حضرت عبدالله بن زبير سره قطع تعلق کړې وو غرض دا چه کله دَنفس خواهش نه وى کينه اوحسدنه وى صرف دَديني غيرت اوحميت دَپاره قطع تعلق وى نودا جائز دې دغه شان اهل بدعت او اهواء سره دَهغوى دَبدعت دَ وجې نه قطع تعلق ضرورى دې اودَ نورو بدعقيدو خلقو هم دغه حکم دې

دَ تهاجر او بائيکاټ په صورت کښې چاچه په سلام کښې ړومبې والې اوکړو هغه به دَ هغه بل نه افضل او اعلى جوړيږى. که چرې په وخت دَ قطع تعلق يو سلام اوکړو او بل جواب ورنه کړو نو اوس دَ تقاطع دګناه نه هغه سلام کونکې بهرشو او هغه بل به په دې کښې پروت وى

**د پوره بحث خلاصه**: دَدې پوره بحث خلاصه دا راووتله چه دَ قبيح کار دَ کولو نه پس دَ ادب ړښه توبيخ اوتنبيه او دَ اصلاح په غرض سره که دَدريو ورځونه زيات تهاجر جائز دې او صرف دَ بغض عناد او کينې اوحسد په بنيادباندې حرام دې. په دې بيان سره به په ټولو احاديثو کښې تطبيق راشى

### [۵۰۲۸] دبعضې معاشرتى خرابيا نوځخه مما نعت

۵۰۲۹-(١)[٢] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "②«إِيَّاكُمْ وَالظَّنَّ. ③فَإِنَّ الظَّنَّ أَكْذَبُ الْحَدِيثِ، ④وَلَا تَحَسَّسُوا، وَلَا تَجَسَّسُوا ⑤وَلَا تَنَاجَشُوا وَلَا تَحَاسَدُوا، ⑥وَلَا تَبَاغَضُوا، وَلَا تَدَابَرُوا، ⑦وَكُونُوا عِبَادَ اللهِ إِخْوَانًا» ". ⑧وَفِي رِوَايَةٍ: "وَلَا تَنَافَسُوا". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** : او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل ② د بدګماني کولو نه پرهيز وکړئ. ③ ځکه چې بدګماني د خبرو د ټولو نه بدتر دروغ دي ④ (د غير متعلق امورو او بلا ضرورته) د نورو د احوالو په لټون کې مه لګيږئ، د چا جاسوسي مه کوئ ⑤ د چاسوداګاني مه خرابوئ، په خپلو کې حسد مه کوئ، ⑥ د يو بل سره بغض مه ساتئ

[١]) اخرجه البخارى فى كتاب الأدب/ باب {يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اجْتَنِبُوا كَثِيرًا مِنَ الظَّنِّ إِنَّ بَعْضَ الظَّنِّ إِثْمٌ وَلَا تَجَسَّسُوا} [الحجرات: ١٢] ومسلم فى كتاب البر والصلة والآداب/باب تحريم الظن، والتجسس، والتنافس، والتناجش ونحوها (رقم-٢٨ - (٢٥٦٣) وابوداود فى كتاب الأدب/باب فيمن يهجر أخاه المسلم (رقم-٤٩١٠) كتاب حسن الخلق/باب ما جاء فى المهاجرة (رقم-١٤) واحمد فى المسند:٣/١١٠

د يوبل غيبت مه کوئ، ⑦ او ټول مسلمانان د الله بندګان او د يوبل ورو نه جوړيدو سره اوسيږي، ⑧ او په يو روايت کې دا الفاظ هم دي، چې په خپلو کې ديوبل دشي حرص مه کوئ (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** - ① إِيَّاكُمْ: ځان اوساتئ. ② لَاتَحَسَّسُوا: دَ چادَ احوالو په شيش کښې مه پريوځئ اودَ نورو خلقودَ خبرو په لټون کښې مه اوسيږئ ③ لَاتَجَسَّسُوا: دَ چا جاسوسي مه کوئ ④ لَاتَنَاجَشُوا: دَ چا سودا (بيعه) مه ورانه وه ⑤ لَاتَدَابَرُوا: دَيوبل پسې شاته غيبت او بدې مه وايئ ⑥ لَاتَنَافَسُوا: دَ حرص اولالچ کولو سره د دنيا په څيزونو کښې دلچسپي اختو سره دَ يوبل نه مه وراندې کيږئ

**تسهيلات:**

**قوله:** إِيَّاكُمْ وَالظَّنَّ، فَإِنَّ الظَّنَّ أَكْذَبُ الْحَدِيثِ،

**د غلط گماني، څخه د ځان ساتلو حکم:** يعنې دَبدګمانئ نه ځان بچ کړئ بل دَ ګمان او مفروضو په بنيادباندې خبرې بيانولو نه ځان بچ کړئ ځکه چه دغه شان فرضي خبرې او اوريدلې خبرې ډير بدترين دروغ دی او "كفى بالمرء كذبا أن يحدث بكل ما سمع" حديث سره دامنع کړې شوې دی.

**قوله:** وَلَا تَحَسَّسُوا، وَلَا تَجَسَّسُوا:

**د تحسس او تجسس په فرق کښې دوه اقوال:** ① تجسس هغه لټون اوکوشش ته وائي چه دَ نورو په امداد اوتعاون سره وی اوتحسس هغه دې چه دَ چا په امداد او واسطې سره نه وی بلکه خپل مدد په خپله دَ خپلو حواسو په بنيادباندې وی مګر چه په پټه طريقه وی لکه چه دَ غوږ کيخودلو سره کوشش اوکړی يا پټه طريقه په سترګوسره معلوم کړی ② دا دواړه مترادف الفاظ دی معنی ئی هم يوه ده

**قوله:** وَلَا تَنَاجَشُوا:

**دتناجش مفهوم:** تناجش دالفظ په اصل کښې ښکار راپاره کولو او تختولو دَپاره استعمالولې شی بيا دَ دې اطلاق په هغه مصنوعی خريدار باندې کيدل شروع شو چه په ګاهك باندې دَ قيمت زياتولو دَپاره مصنوعی بيع لګوی. دَدې جملې لفظی ترجمه داده چه دَ چا سودا مه ورانه وه.

**قوله:** وَلَا تَحَاسَدُوا:

**د حسد تعريف:** يعنی حسد مه کوئی دَ حسد تعريف دادې چه دَ بل دَ نعمت دَ ختمولو خواهش اوکړی که هغه ده ته ملاؤ شی اوکه ملاؤ نه شی مګر چه دَ هغه بل نه ختم شی

**قوله:** وَلَا تَدَابَرُوا:

**د ولا تدابروا په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① ملاعلی قاری رحمه الله دا بيان کړې دې چه کله دوه

مسلمانان ملاویږی نو دَ قطع تعلق دَ وجې نه یو بل ته مه شا کوئی لکه چه عـام عـادت دې دوه خفه ملګری دَ یوبل نه مخ اړوی اوشا کولوسره ددې کوی دامطلب زیات واضح دې

۲ دَیوبل پسې شاته غیبت اواود یو بل بدې مه کوئی

**قوله** وَكُونُوا عِبَادَ اللّٰهِ إِخْوَانًا:

**دورنړو پشان ژوند تیرول**: یعنی ټول په ټول دینی مسلمانان رونړه جوړشئی دا جمله دَ نتیجې اوخلاصې په توګه ده ځکه چه پورته بیان کړې شوې مکروه کارونه چه کله نه وی نوخپل پخپله به مسلمانان رونړه رونړه جوړشی ځکه چه دَ ټولورب یو دې نبی ئی یو دې کتاب ئی یو دې قبله ئی یوه ده او مکمل اتحاد دې.

**قوله** وَلَا تَنَافَسُوا

**په دنیا کښې د سیالۍ کولو ځخه ممانعت**: یعنی دَ حرص اولالچ کولـو سره دنیـاوی ښـکلې ځیزونو کښې دلچسپی اخستو سره دَ یوبـل نـه مـه وړانـدې کیږئی. پـه یوروایـت کښـې دَ جمله موجود ده اوس زیات واضح دادی چه دا جمله دَولاتحاسدوا نه پس وی.

**[۵۰۲۹] په خپل مینځ کښې دَ دښمنۍ ساتلو وبال**

۵۰۲۹-() [۳] ۱ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "۲ «تُفْتَحُ أَبْوَابُ الْجَنَّةِ يَوْمَ الْاِثْنَيْنِ وَيَوْمَ الْخَمِيسِ، ۳ فَيُغْفَرُ لِكُلِّ عَبْدٍ لَا يُشْرِكُ بِاللّٰهِ شَيْئًا ۴ إِلَّا رَجُلٌ كَانَتْ بَيْنَهُ وَبَيْنَ أَخِيهِ شَحْنَاءُ. ۵ فَيُقَالُ: أَنْظِرُوا هٰذَيْنِ حَتّٰى يَصْطَلِحَا» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: ۱ او حضرت ابوهریره ﷺ وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمایل ۲ د ګل او زیارت (دوشنبې پنجشنبې) په ورځ د جنت دروازې خلاصې شي ۳ او بیا د هرهغه بنده بخښنه کیږي چې د الله سره څوك شریك نه جوړ وي ۴ البته هغه سړی د دې بخښش نه محروم وي. چې د خپل یو مسلمان ورور سره عداوت لري، ۵ او فرشتو ته وئیل کیږي دې دواړو نه چې په خپلو کې عداوت او دښمني لري مهلت ورکړئ چې په خپلو کې صلح صفائي وکړي (مسلم)

**حل اللغات**: - ۱ شَحْنَاءُ: سخته دښمنی. ۲ أَنْظِرُوا: دَباب افعال نه دَامر صیغه ده دَ انتظار اومهلت ورکولو په معنی کښې دې

[۱]) اخرجه مسلم فی کتاب البر والصلة والآداب/باب النهی عن الشحناء والتهاجر (رقم-۳۵ - (۲۵۶۵) وابوداود فی کتاب الأدب/باب فیمن یهجر أخاه المسلم (رقم-۴۹۱۶) والترمذی فی کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی المتهاجرین (رقم-۲۰۲۳) ومالک فی الموطا کتاب حسن الخلق/باب ما جاء فی المهاجرة (رقم-۱۷) واحمد فی المسند: ۲۶۸/۲

**تسهيلات:**

**قوله: إِلَّا رَجُلٌ كَانَتْ بَيْنَهُ وَبَيْنَ أَخِيهِ شَحْنَاءُ:**

**د لفظ شحناء وضاحت:** په خپل مينځ کښې ډيرخراب قسم عداوت ته شحناء وائى. داد انسان دپاره دومره لويه تباهى ده چه دَ شرك نه علاوه لوئى لوئى گناهونه معاف كيږى مگر دا گناه نه معاف كيږى دَ پير اوزيارت په ورځ دَ جنت دروازې كولاويږى اودَ الله تعالى رحمت عام كيږى ليكن دا دوه كسان كوم چه په خپل مينځ بغض اوعداوت ساتى ددوى دا گناه نه معاف كيږى اودَ الله تعالى دَ طرف نه فرښتوته حكم كيږى چه تركومې پورې دا دواړه خپل مينځ كښې صلح اومعافى تلافى اونه كړى دوى ته به دَ پير اوزيارت په ورځو كښې هم معافى اونه كړم.

**قوله: فَيُقَالُ: أَنْظِرُوا هٰذَيْنِ حَتّٰى يَصْطَلِحَا:** دَ صلح كولو په معنى كښې دې دې پسې روايت كښې "يفيئا" دې چه دَ رجوع په معنى كښې دې يعنى دوى روستو كولو سره پريږده تركومې پورې چه پخپله صلح نه وى كړې زه به ئى نه معاف كوم.

**[۵۰۳۰] خپل مينځ كښې د دښمنى كولو انجام**

۵۰۳۰-() [۳] [۱] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[۲] «تُعْرَضُ أَعْمَالُ النَّاسِ فِي كُلِّ جُمُعَةٍ مَرَّتَيْنِ يَوْمَ الْاِثْنَيْنِ وَيَوْمَ الْخَمِيسِ، [۳] فَيُغْفَرُ لِكُلِّ عَبْدٍ مُؤْمِنٍ إِلَّا عَبْدًا بَيْنَهُ وَبَيْنَ أَخِيهِ شَحْنَاءُ، [۴] فَيُقَالُ: اتْرُكُوا هٰذَيْنِ حَتّٰى يَفِيئَا» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل [۲] په هره هفته كې دوه ځله د دوشنبې او پنجشنبې په ورځ د پروردگار په دربار كې د خلقو اعمال پيش كېږي. [۳] نو د هر مؤمن بنده مغفرت بخښنه كېږي، علاوه د هغه بنده نه چې خپل يومسلمان ورور سره عداوت لري، [۴] د هغوئ باره كې وئيل كېږي، چې هغه دواړو ته مهلت وركړئ چې رجوع وكړي، او دعداوت نه منع شي (مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله: تُعْرَضُ أَعْمَالُ النَّاسِ فِي كُلِّ جُمُعَةٍ مَرَّتَيْنِ:**

**انبياء عليهم السلام ته اعمال په كومه ورځ پيش كيږى؟:** په دې باره كښې ملا علي قاري يو روايت نقل كړې چه **وفى رواية الحكيم عن والد عبد العزيز ولفظه تعرض الأعمال** اعمال الله

---

[۱]) اخرجه مسلم فى كتاب البر والصلة والآداب/باب النهى عن الشحناء والتهاجر (رقم-۳۶ - (۲۵۶۵) وابوداود فى كتاب الصوم/باب فى صوم الاثنين والخميس (رقم-۲۴۳۶) والترمذى فى كتاب الصوم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى صوم يوم الاثنين والخميس (رقم-۷۴۷) ومالك فى الموطا كتاب حسن الخلق/باب ما جاء فى المهاجرة (رقم-۱۸) واحمد فى المسند: ۲۶۸/۲

تعالى ته د پير او د جمعرات روځ باندي پيش كيږي او انبياؤ ته د خپلو امتونو اعمال د جمعي په روځ پيش كيږي هم دغه شان والدينو ته د جمعي په روځ اعمال پيش كيږي چه په هغې باندې هغوی خوشحاليږي او د هغوی مخونه د خوشحالي نه پړقيږي هم دې وجه نه وئيلي شوي دي فاتقوا الله ولا تؤذوا موتاكم دي حديثونو نه د دريو وروځو نه د زيات خفه كيدلو نه د منع كولو حكمت ظاهر شو چه كيدې شي د دې كس ناراضګي په دې ورځو كښې راشي نو دا به د ثواب نه د محرومي سبب جوړ شي

**[۵۰۳۱] په كومو صورتونو كې دروغ وئيل جائز دي؟**

۵۰۳۱-(۱)[۵] ۱ وَعَنْ أُمِّ كُلْثُومٍ بِنْتِ عُقْبَةَ بْنِ أَبِي مُعَيْطٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا- قَالَتْ: ۲ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "۳ «لَيْسَ الْكَذَّابُ الَّذِي يُصْلِحُ بَيْنَ النَّاسِ وَيَقُولُ خَيْرًا وَيَنْمِي خَيْرًا". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. ۴ وَزَادَ مُسْلِمٌ قَالَتْ: وَلَمْ أَسْمَعْهُ -تَعْنِي النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يُرَخِّصُ فِي شَيْءٍ مِمَّا يَقُولُ النَّاسُ كَذِبٌ ۵ إِلَّا فِي ثَلَاثٍ: الْحَرْبُ، وَالْإِصْلَاحُ بَيْنَ النَّاسِ، ۶ وَحَدِيثُ الرَّجُلِ امْرَأَتَهُ وَحَدِيثُ الْمَرْأَةِ زَوْجَهَا».

**ترجمه**: ۱ او بي بي ام كلثوم رضي الله عنها بنت عقبه ابن ابي معيط وايي. ۲ چې ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل. ۳ هغه سړی دروغجن نه دی چې (د خپل د دروغو خبرو په ذريعه خلقو په منځ كې صلح كوي، )يعنی په خپلو كې د عداوت لرونكو په منځ كې صلح او صفائي كوي. (په خپلو كې دښمني لرونكو كې هريوه ته) نيكه خبره كوي، چې د صلح باعث جوړه شي. او د هريو طرف نه بل ته نيكه خبره وررسوي، (بخاري، مسلم) ۴ او د مسلم رحمه الله په روايت كې دا الفاظ مزيد نقل شوي دي چې بي بي ام كلثوم رضي الله عنها وويل. ما د هغه ذات ګرامي (يعنی رسول الله ﷺ نه داسې هيڅ خبره نه ده اوريدله، چې د هغه نه دا ثابتيږي. چې حضور ﷺ د هغه نه ځه داسې خبري اجازت وركړی وي، كوم ته چې خلق دروغ وايي. يعنی حضور ﷺ په هيڅ معامله كې د دروغ ويلو چاته اجازت نه دی وركړی.). ۵ علاوه د دريو خبرو نه چې په هغه كې د دروغ ويلو اجازت عطا كړی دی يوخو د جنګ په حالت كې. دويم د خلقو په منځ كې صلح صفائي كولو كې. ۶ او دريم هغه وخت چې خاوند خپلې ښځې ته خبري كوي. او ښځه خپل خاوند ته خبري كوي،

۵۰۳۲-(۲) ۱ وَذُكِرَ حَدِيثُ جَابِرٍ: "إِنَّ الشَّيْطَانَ قَدْ أَيِسَ" فِي "بَابِ الْوَسْوَسَةِ".

**ترجمه**: ۱ او د حضرت جابر رضي الله عنه دا روايت إِنَّ الشَّيْطَانَ قَدْ أَيِسَ الخ باب الوسوسه كې نقل شوی دی

**حل اللغات**:- ۱ يَنْمِي: خوروي. ۲ يُرَخِّصُ: اجازت ئې وركولو

---

۱) اخرجه البخاري في كتاب الصلح/باب: ليس الكاذب الذي يصلح بين الناس (رقم-۲۶۹۲) ومسلم في كتاب البر والصلة والآداب/باب تحريم الكذب وبيان ما يباح منه (رقم-۱۰۱ - (۲۶۰۵))واحمد في المسند:۶/۴۰۳

۲) مسلم في صحيحه ۴/ ۲۱۶۶، الحديث رقم (۶۵- ۲۸۱۲).

**تسهیلات:**

**قوله: يُرَخِّصُ فِي شَيْءٍ مِمَّا يَقُولُ النَّاسُ كَذِبٌ إِلَّا فِي ثَلَاثٍ: الْحَرْبُ:**

**د جهاد احکام عجیبه دی:** د دې حرب نه عام جنګ مراد نه دې بلکه مقدس جنګ جهاد مراد دې دَ جهاد احکام عجیبه دی یوځیز په نورو میدانونو کښې حرام وی لیکن دَ جهاد په میدان کښې جائز او حلالیږی. شاعر وائی.

تفرد بالأحکام فی أهله الهوي      فأنت جميل الخلف مستحسن الكذب

دَحدیث مطلب دادې چه دَجهاد میدان کښې دَ ضرورت په وخت دَخلاف واقعه خبرو دَ استعمال اجازت دې دکوم خبرو تعلق چه دَمسلمانانو طاقت او دَ لښکر دَ اوچتوالی دَ اظهارسره وی مثلاً دا وینا کول چه زمونږ دَ طاقت به څه وایئی مونږ دښمن تباه کړې دې هغه مو دَمخ دَ زمکې نه ختم کړو یا اوس دَهغوی طاقت ختم شوې دې.زمونږ نور تازه فوج راغلې دې دښمن دَ تختیدودَپاره تیار ولاړدې یا مخامخ دښمن ته دَحیلې اوخداع په توګه وائی چه ګورئی ستاسو شاته څومره لوئی لښکر راروان دې کله چه هغوی شاته اوګوری نو مجاهدین خپل کار پوره کوی.دا ټولې خبرې دَ جهاد په میدان کښې استعمالول جائز دی."الحرب خدعة"هم دَدې نوم دې.

**قوله: وَالْإِصْلَاحُ بَيْنَ النَّاسِ:** دَ خلقو په مینځ کښې دَ اصلاح دَپاره داسې قسم خلاف واقعه خبره کول جائز دی مثلاً وائی روره هغه سړې خوستا ډیر تعریف کوی او ستا ډیره مدح وائی او په تا عاشق دې.

**قوله: وَحَدِيثُ الرَّجُلِ امْرَأَتَهُ وَحَدِيثُ الْمَرْأَةِ زَوْجَهَا:** مثلاً خاوند خپلې ښځې ته وائی ستابه څه وایئی ستا په شان حسن خو په دنیاکښې چرته هم نشته ستا دَ خوبیانو به څه وایئی ستا مثال خو په دنیاکښې نشته ته بې نظیر اوبې مثال ئی اوستا هنراو کمال او حسن او جمال خولاجواب دې اوزما کمالات خودَ شمیر نه بهر دی زما دکارنامو به څه وایئی زما په شان طاقت خودَ دنیا په یوکس کښې هم نشته او زما دَخوبیانو خو په دنیاکښې مقابل نشته دې

**د استشهاد په توګه یوه عجیبه واقعه:**

په حیوة الحیوان کښې یوه قصه لیکلې ده یو چرچنړ خپله ښځه چرچنړه دَ قابولو کولو کوشش کولو اوهغه اخوادیخواتختیدله نو چرچنړ اووئیل چه ته مانه تختې حالانکه په ماکښې دومره طاقت شته چه زه دَ حضرت سلیمان علیه السلام محل اوچت کړم او سمندرکښې ئی غورزولې شم دَدې بې ادبئی او ګستاخئی شکایت مرغودَ حضرت سلیمان علیه السلام په دربارکښې اوکړو چرچنړدَ شاهی حکم لاندې حاضر کړې شو حضرت سلیمان علیه السلام په

غصه کښې اوفرمائيل اې چرچڼړه! ته يوه چهيتاکې ئې او چهيتاکې وزن دې دې ته زما محل او چتولو سره څنګه سمندرکښې غورزولې شې؟ چرچڼې وزرې خوزولو سره اووئيل چه جی حضور تاسو ته ښه معلومه ده چه محبوب او معشوق قابوکولو دپاره داسې دهرکې کولې شی داهم ددې په شان يوه حيله وه دې دپاره چه معشوقه مې لاس ته راشی

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۵۰۳۳] په دريو صورتونو کښې دروغ وئيل جائز دی**

۵۰۳۳-(۱) [۱] [۲] عَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيدَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا- قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[۲] «لَا يَحِلُّ الْكَذِبُ إِلَّا فِي ثَلَاثٍ: [۳] كَذِبُ الرَّجُلِ امْرَأَتَهُ لِيُرْضِيَهَا، [۴] وَالْكَذِبُ فِي الْحَرْبِ، [۵] وَالْكَذِبُ لِيُصْلِحَ بَيْنَ النَّاسِ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] بي بي اسماء بنت يزيد رضي الله عنها وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل. [۲] دروغ وئيل جائز نه دي علاوه د دريو ځايو نه [۳] يو د خاوند خپلې ښځې ته دروغ وئيل، چې په هغه سره هغه خوشحاله کړي، [۴] دويم د کفارو سره د جنګ په حالت کې [۵] او دريم په دې مقصد سره دروغ وئيل چې د خلقو په منځ کې صلح او صفايي وکړي (احمد، وترمذي)

**[۵۰۳۴] د دريو ورځو نه زيات تعلق پريخودل جائز نه دی**

۵۰۳۴-(۲) [۷] [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا- أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "[۲] «لَا يَكُونُ لِمُسْلِمٍ أَنْ يَهْجُرَ مُسْلِمًا فَوْقَ ثَلَاثٍ [۳] فَإِذَا لَقِيَهُ سَلَّمَ عَلَيْهِ ثَلَاثَ مِرَارٍ [۴] كُلُّ ذَلِكَ لَا يَرُدُّ عَلَيْهِ فَقَدْ بَاءَ بِإِثْمِهِ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او د بي بي عائشي رضي الله عنها نه روايت دی چی رسول الله ﷺ وفرمايل. [۲] د هيڅ مسلمان د پاره مناسب نه دي چې هغه د دريو ورځو نه زيات د يو مسلمان ورور سره تعلق پريږدي، [۳] چې د هغه مسلمان سره چيرته يوځای شي، کوم چې د ده نه خوابدی دی. او هغه ته دري ځلي سلام واچوئ، [۴] او هغه يووار هم جواب ورنه کي، نو هغه جواب نه ورکونکي به د هغه د ګناه وبال اخستو سره د هغه ځای نه واپس ځي (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① يَهْجُرَ: تعلق پريږدی. ② بَاءَ: واپس کيږی.

**تسهيلات:**

**قوله: كُلُّ ذَلِكَ لَا يَرُدُّ عَلَيْهِ فَقَدْ بَاءَ بِإِثْمِهِ:**

**دمذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① يعنی چه دوه کسانو خپلو کښې جنګ کړې وو، نو بيا يو کس جنګ ختم کړو او هغه بل ته سلام اوکړو اوهغه د سلام جواب ورنکړو

[۱]) اخرجه الترمذی فی السنن رقم ۱۹۳۹ واحمد فی المسند ۶/ ۴۶۱

[۲]) اخرجه ابوداود فی السنن كتاب الأدب /باب فيمن يهجر أخاه (رقم-۴۹۱۳)

نو اوس به ددې ترک ملاقات ګناه په دې سړي وي (چه کوم د سلام جواب نه دې ورکړي)
④ یعنی چه د سلام جواب نه ورکول، ددې ګناه به هم په هغه وي [1]

**د شرعی عذر په وجه د ترک تعلق حکم:** چه ښکاره ګناه کښې اخته وي یا هغه بدعت ته رواج ورکوي، اود پوهولو نه باوجود هغه نه منع کیږي نو داسې سړي سره قطع تعلق ساتل بهتر دی چه هغه منع شي. [2]

## [۵۰۳۵] د ترک تعلق په حالت کښې د مړکیدونکی سړی سزا

۵۰۳۵- ([3]) [۸] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "② «لَا يَحِلُّ لِمُسْلِمٍ أَنْ يَهْجُرَ أَخَاهُ فَوْقَ ثَلَاثٍ ③ فَمَنْ هَجَرَ فَوْقَ ثَلَاثٍ فَمَاتَ دَخَلَ النَّارَ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهریره رضی الله عنه وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② د هیڅ مسلمان د پاره حلال نه دی چې هغه د خپل مسلمان ورور سره د دریو ورځو نه زیات ترک تعلق وکړي، ③ نو کوم سړی چې د دریو ورځو نه (که یو ساعت هم) زیات تعلق پریږدي. او هغه په دې حالت کې بغیر د توبې نه مړ شي نو دوزخ ته به ځي.

**تسهیلات:**

**قوله: فَمَنْ هَجَرَ فَوْقَ ثَلَاثٍ فَمَاتَ دَخَلَ النَّارَ:**

امام توربشتي د دې جملې دا مطلب بیان کړې ګویا چه ده اور په خپل ځان باندې واجب کړو یا په ګناه کښې اخته کیدل داسې دی لکه چه ده خپل ځان په سزا کښې واچولو اوس د الله خوښه ده چه ده ته عذاب ورکړي او که او غواړي نو معاف ئې کړي

## [۵۰۳۶] پوره کال تعلق پریخودل د قتل د ګناه برابر ده

۵۰۳۶- ([4]) [۹] ① وَعَنْ أَبِي خِرَاشٍ السُّلَمِيِّ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: "② «مَنْ هَجَرَ أَخَاهُ سَنَةً ③ فَهُوَ كَسَفْكِ دَمِهِ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① او د حضرت ابوخراش سلمي رحمه الله نه روایت دی، هغه د رسول الله ﷺ نه واوریدل ② کوم مسلمان چې په (ناراضګي سره) د خپل مسلمان ورور سره تر یو کال پورې تعلق پریږدي، ③ هغه ګویا د هغه خون وکی،، یعنی تر اوږدې مودې پورې د ترک ملاقات ګناه او د ناحق قتلولو ګناه نزدې نزدې ده) (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① سَفْكِ: تویول (د وینې).

---

([1]) مظاهر حق: ۵۸۱/۴.(۲) نزهة المتقین) - (۳) البخاری فی الإستیذان باب لا یتناجی إثنان دون الثالث ومسلم فی السلام باب تحریم مناجات الإثنین دون الثالث).

([3]) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب/باب فیمن یهجر أخاه (رقم-۴۹۱۳) واحمد فی المسند: ۲۰۰/۴

([4]) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب/باب فیمن یهجر أخاه (رقم-۴۹۱۵) واحمد فی المسند: ۲۲۰/۴

**تسهيلات:**

**قوله: أَبو خِرَاشٍ السُّلَمِيِّ:**

**د راوي حالات:** د ده نوم خدرد بن ابي حدرد السلمي دي مؤلف هم دغه بيان کړې دې ملا علی قاري په مرقات کښې د ميرک په حواله ليکلي دی چه صحيح دا ده چه دا الاسلمي دي منذري وائی چه د ده نوم ابو خراش حدرد بن ابي حدرد اسلمي دي ګويا چه دلته د کاتبينو نه غلطي شوې ده ځکه چه دا لفظ سلمی نه بلکه اسلمی دې صحابی دې ده نه صرف يو روايت نقل دې.

**قوله: مَنْ هَجَرَ أَخَاهُ سَنَةً فَهُوَ كَسَفْكِ دَمِهِ:**

**يو کال پورې د مسمان سره د ترک تعلق وعيد:** يعنی يو کاله پورې د مسلمان سره تعلق پريخودل داسې دی د چا وينه تويول داسې ده لکه چه د چا په ناحقه وينه توبې کړې شی

**دترک تعلق دوينې تويولو سره دتشبيه وجه:** امام طيبي فرمائی چه د قطع تعلق تشبيه د سفك دماء بطور سره مبالغه ده لکه چه وئيلې کيږی چه زيد کالاسد. زيد ئې د شير سره ملحق کړو حالانکه زيد انسان او شير حيوان دې ليکن دلته ئی زيد ته د بهادرئ د وجه نه شير وئيلی شوی دی دارنګ د دې حديث نه معلومه شوه چه درې روځو نه زيات ناراضګي اختيارول حرام دی نو چه کله ددې نه هم زيات وخت تيريږی نو ګناه به زياتيږی دې وجه نه د کال تخصيص ئې اوکړو او دا هم ممکنه ده چه د کال تخصيص کول په ځلورو موسمونو باندې مشتمل کيدو د وجه نه وی ځکه چه کال کښې ځلور موسمونه وی او چه د چا مزاج د موسم په بدليدو سره هم بدل نه شی نو د هغه نه د رجوع اميد ختم شی دې وجه نه د هغه سزا د وينې تويولو په شان ده

**[۵۰۳۷] دريو ورځو نه پس خفګان ختمول پکار دی**

۵۰۳۷-(۱)[۱۰] [۱]وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[۲]«لَا يَحِلُّ لِمُؤْمِنٍ أَنْ يَهْجُرَ مُؤْمِنًا فَوْقَ ثَلَاثٍ، [۳]فَإِنْ مَرَّتْ بِهِ ثَلَاثٌ فَلْيَلْقَهُ، فَلْيُسَلِّمْ عَلَيْهِ،[۴] فَإِنْ رَدَّ عَلَيْهِ السَّلَامَ فَقَدِ اشْتَرَكَا فِي الْأَجْرِ،[۵]وَإِنْ لَمْ يَرُدَّ عَلَيْهِ فَقَدْ بَاءَ بِالْإِثْمِ[۶]وَخَرَجَ الْمُسْلِمُ مِنَ الْهِجْرَةِ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱]او حضرت ابوهريره ﷺ وايي، چی رسول الله ﷺ وفرمايل[۲] دا د هيڅ مؤمن د پاره حلال نه دی چې هغه د يو مومن سره د دريو ورځو نه زيات تعلق پريږدي،[۳] هر کله چې په ناراضګي درې ورځې تيرې شي، نو پکار دی چې د چاسره يې راسه درسه پرينې وي د هغه سره يو ځای شي، او هغه ته سلام وکړی، [۴]که هغه جواب ورکړو، نو بيا هغوئ

(۱) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب /باب فيمن يهجر أخاه (رقم-۴۹۱۲) ومالک فی الموطا کتاب حسن الخلق/باب ما جاء فی المهاجرة (رقم-۱۳)

دواړه به په ثواب کې شريك وي، (ځکه چې مخکنې ته به خو په سلام کې د مخکې کيدو او ناراضګي ختمولو په وجه ثواب حاصليږي او دويم به د سلام جواب ورکولو او د تعلقات د بحالی پيشکش قبلولو په وجه د ثواب حقدار وي) [۵] او که هغه د سلام جواب ورنه کی، نو په دې صورت کې به (د سلام جواب نه ورکونکی) به خپله ګناه وي. (يعني په هغه به د ترك ملاقات او د سلام جواب نه ورکولو ګناه وي) [۶] او سلام کونکی به د ترك ملاقات د ګناه نه بري شي (ابو داؤد)

**تسهيلات:**

**قوله: وَإِنْ لَمْ يَرُدَّ عَلَيْهِ فَقَدْ بَاءَ بِالْإِثْمِ:**

**داثم په مصداق کښې درې احتمالات:**

① د ترک تعلق ناه مراد ده

② هجران او ترک سلام دواړه مراد دی

③ دهجران ګناه د مسلمان ويني تويولو ته قريب ده لهذا هم دا مراد ده

**[۵۰۳۸] دَ صلح کولو ثواب د روژې او صدقې نه افضل دې**

۵۰۳۸-() [۱۱] [۱] وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[۲] «أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِأَفْضَلَ مِنْ دَرَجَةِ الصِّيَامِ وَالصَّدَقَةِ وَالصَّلَاةِ؟ [۳] قَالَ: قُلْنَا: بَلَى. [۴] قَالَ: "إِصْلَاحُ ذَاتِ الْبَيْنِ، وَفَسَادُ ذَاتِ الْبَيْنِ هِيَ الْحَالِقَةُ»". [۵] رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ".

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابودرداء رضی الله عنه وايي چې يوه ورځ رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل، [۲] آيا زه تاسو ته يوداسې عمل ونه ښايم، چې د هغه د ثواب درجه د روژې، صدقې او مونځ د ثواب نه زياته وي [۳] ابودرداء رضی الله عنه وايي، په دې اوريدو سره مونږ عرض وکړو، چې هو، ضرور، [۴] نو حضور صلی الله علیه وسلم وفرمايل په خپلو کې دښمنې لرونکو د دوو سړو په منځ کې صلح کول (ددې نه پس يې وفرمايل چې) هو د دوو سړو په منځ کې فساد او نفاق پيداکول يوداسې خصلت دی، (يعني د هغه خصلت په وجه د مسلمانانو په معاملاتو او دين کې نقصان او خلل پيداکيږي) . [۵] دا روايت ترمذي رحمه الله، او ابوداود نقل کړی دی، او ويلي يې دي چې دا حديث غريب دی.

**حل اللغات:** - ① ذَاتِ الْبَيْنِ: د دوؤ کسانو په مينځ کښې. ② الْحَالِقَةُ: خريونکې دې (ختمونکې دې ايمان لره)

[۱] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب/باب فی إصلاح ذات البين (رقم-۴۹۱۹) والترمذی فی کتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب (رقم-۲۵۰۹) کتاب حسن الخلق/باب ما جاء فی حسن الخلق (رقم-۷) واحمد فی المسند: ۶/۴۴۴

**تسهیلات: قوله**: أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِأَفْضَلَ مِنْ دَرَجَةِ الصِّيَامِ وَالصَّدَقَةِ وَالصَّلَاةِ؟:

**دخلقو په مینځ کښې د روغې راوستلو په مختلفو عباداتو افضلیت**: یعنې د مونځ روژې او صدقې مجموعه عبادتونو نه اصلاح ذات البین افضل عمل دې بعضې علماؤ د مونځ روژې او صدقې نه نفلی عبادات مراد اخستی دی چه ددې نفلی عبادتونو نه اصلاح ذات البین افضل دې لیکن ملا علی قاری رحمه الله فرمائی چه راجح دادی چه ددې اعمالو نه فرض اعمال مراد دی اوداخبره ښکاره ده چه مثلاً دوه کسان په خپل مینځ کښې سخت مخالف دی یو بل قتل کړو په کوم سره چه لوئی لوئی فتنې پیدا شوې اود نورو فتنو پیدا کیدو امکان دې نو په داسې صورت کښې دَدغه دوو مخالفینو په مینځ کښې صلح کول د فرائضو نه زیات اهم دی ځکه چه که فرض ساقط شی نودَ هغې تدارک او قضاء کول ممکن دی لیکن که وینه توئی شی او سرې مړ شی نودَهغې هیڅ علاج نشته

**[۵۰۳۹] د بغض او حسد ممانعت**

٥٠٣٩-()[١٣] [١] وَعَنِ الزُّبَيْرِ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] «دَبَّ إِلَيْكُمْ دَاءُ الْأُمَمِ قَبْلَكُمُ الْحَسَدُ، [٣] وَالْبَغْضَاءُ هِيَ الْحَالِقَةُ، لَا أَقُولُ: تَحْلِقُ الشَّعْرَ، وَلَكِنْ تَحْلِقُ الدِّينَ» ".رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه**: [١] او حضرت زبیر رضی الله عنه وایي، چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢] ستاسو نه د مخکې امتونو ناروغی په تاسو کې سرایت کړی دی، او ناروغی حَسَد [٣] او بغض چې د بیخه اوخکل کوي او دي نه ځما مراد ویښته د بیخه اوخکل نه دي، بلکې دین د بیخه اوخکل دي.(یعنې بغض یاحسد دومره خراب خصلت دی، چې د دې په وجه د انسان دین او اخلاق تباه او برباد کېږي) بلکې داخصلت د دین او دنیا د دوارو د پاره نقصاني دی (احمد. ترمذي)

**حل اللغات**:- ①دَبَّ: په مزه مزه تللو ته وائی یعنی راننوځی. سرایت کوی. ②دَاءُ:بیماریانې. ③ الْأُمَمِ: د مخکینو امتونو. ④تَحْلِقُ: خریوی. ختموی

**تسهیلات**:

**د بعضې مشکلو الفاظو وضاحت**:

①دَبَّ إِلَيْكُمْ دَاءُ الْأُمَمِ قَبْلَكُمُ الْحَسَدُ: **دب الیکم أی نقل الیکم وسری ومشی بخفیة** نقل کول. سرایت کول په پټه طریقې سره تلل، په مزه مزه تلل

②وَالْبَغْضَاءُ هِيَ الْحَالِقَةُ: **والبغضاء: أی العداوة فی الظاهر الحالقة أی القاطعة للمحبة والألفة والصلة**

---

() اخرجه الترمذی فی السنن کتاب صفة القیامة والرقائق والورع عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم ۲۵۱۰)واحمد فی المسند:۲/۶۷

## [۵۰۴۰] حسد نيکئ داسې خوري لکه اُور چې خشاک خوري

۵۰۴۰-(¹)[۱۳] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: "[۲] «إِيَّاكُمْ وَالْحَسَدَ؛ فَإِنَّ الْحَسَدَ يَأْكُلُ الْحَسَنَاتِ كَمَا تَأْكُلُ النَّارُ الْحَطَبَ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت ابوهريره ﷺ د رسول الله ﷺ نه روايت کوي چې حضور ﷺ وفرمايل [۲] د حسد نه خپل ځان محفوظ ساتئ، ځکه چې حسد نيکي داسې خوري لکه څرنګه چې اور لرګي خوري. (ابو داؤد)

**حل اللغات**:- ① الْحَطَبَ: لرګي، خشاک.

**تسهيلات**: **قوله**: فَإِنَّ الْحَسَدَ يَأْكُلُ الْحَسَنَاتِ كَمَا تَأْكُلُ النَّارُ الْحَطَبَ

**دمعتزلو استدلال**: دَدې حديث نه معتزلو بې ځايه استدلال کړې دې چه بد اعمالو سره نيک اعمال ضائع کيږي او دَ ګناه په ارتکاب سره نيک اعمال بلکه ايمان ختميږي.

**داستدلال ځخه درې جوابونه**: ① حاسد چه کله حسد کوي نو هغه ته پخپله دَ نيکو اعمالو توفيق نه ملاويږي بلکه دَ نيکو اعمالو کولو نه محروم پاتې کيږي لکه چه حسد دَ هغه استعداد خراب کړو يا داسې لکه چه حسد دَ هغه ټول نيک اعمال اوځل دا جواب نه دې.

② حسد دَ نيکو حسن او دَ هغې کمال ختموي اصل اعمال نه ختموي.

③ دَ حسد او شرارت دَ وجې نه به دَ قيامت په ورځ دَ حاسد نيک اعمال محسود ته ورکولې شي لکه چه حسد دَ هغه اعمال اوخوړل دا مطلب ئې نه دې چه په دنيا کښې دَ اعمال نامه نه به دَ هغه اعمال ختم شي. که چرې داسې اوشوه نو بيا په قيامت کښې دَ حساب کتاب څه مطلب شو فيصله خو په دنيا کښې اوشوه.

## [۵۰۴۱] د دوو کسانو په مينځ کې د دښمنۍ اچولو مذمت

۵۰۴۱-(²)[۱۴] [۱] وَعَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [۲] قَالَ: " «إِيَّاكُمْ وَسُوءَ ذَاتِ الْبَيْنِ; [۳] فَإِنَّهَا الْحَالِقَةُ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت ابوهريره ﷺ د رسول الله ﷺ نه روايت کوي، [۲] حضور ﷺ وفرمايل تاسو خپل ځان د دوو سړو په مينځ کې د بدي اچولو د خصلت نه منع کړئ، [۳] ځکه چې دا خصلت دبيخه کښونکې يعني دين تباه کوونکې دی. (ترمذي)

---

¹) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأدب/باب في الحسد (رقم-۴۹۰۳)

²) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-۲۵۰۸)

**تسهیلات:**

**قوله:** إِيَّاكُمْ وَسُوءَ ذَاتِ الْبَيْنِ:

**د ذات لغوی تحقیق:** په معنی د شئ یعنی نفس شئ دَ ذات اطلاق دَ یوشئ په حقیقت باندې کیږي او ددې څخه نفس طرف ته منسوب کیدونکی څیزونه مراد وی لکه چه وئیلی شی اصلاح ذات البین یعنی دَهغه احوالو اصلاح کوم چه د خلقو په مینځ کښې راپیښیږی

**دحالقة تحقیق:** حالقه په اصل کښې د حلق څخه ماخوذ دې د کومې معنی چې وینته خرئیل دی اوحالقه وښتو خریونکی ته وائی ددې لفظ څخه مراد تباه اوبربادونکې اوډ موند څخه ویستونکی ده.مطلب دا دې چې د خلقو په مینځ کښې افتراق اوبیتون راوستل اوپه هغوی کښې بغض کینه پیدا کول داسې بد خصلت دې کوم چې دین تباه کوی اود ثواب حاصلول بیخی ختموی.لکه څنګه چې پتری (بلیډ)په کوم باندې چې ویښته کټ کولی شی) ویښته د ویخ څخه اوباسی دغه شان دا خصلت نیکی ختموی په حدیث کښې د خلقو په مینځ کښې صلح او روغې راوستلو ترغیب دې.اود دې بیان دې چې د دوی په مینځ کښې بغض کینه حسد اودشمنی پیدا کول ډیره لویه ګناه ده

**[۵۰۴۲] څوک چې مسلمان ته ضرر رسوی نو الله به هغه ته نقصان اورسوی**

۵۰۴۲-() [۱۵] [۱] وَعَنْ أَبِي صِرْمَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "[۲] «مَنْ ضَارَّ ضَارَّ اللَّهُ بِهِ، [۳] وَمَنْ شَاقَّ شَاقَّ اللَّهُ عَلَيْهِ» ". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ، وَالتِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت ابوصرمه رضی الله عنه نه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] کوم سړی چې یو مسلمان ته بلاوجه شرعي څه ضرر او نقصان رسوي، نو الله ﷻ به هغه ته نقصان ورسوي یعنی هغه ته به د خپل بدعملي سزا ورکړي، [۳] او کوم سړی چې یومسلمان په مشقت او تکلیف کې اچوي، نو الله ﷻ به هغه په مشقت او تکلیف کې مبتلا کوي (ابن ماجه) او ترمذي ویلي دي چې دا حدیث غریب دی.

**حل اللغات:** - ① ضَارَّ: نقصان رسوی، ② شَاقَّ: مشقت او تکلیف کښې اچوی

**تسهیلات:**

**قوله:** وَمَنْ شَاقَّ شَاقَّ اللَّهُ عَلَيْهِ:

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① امام طیبی فرمائی چه شاق مشقت څخه

[1] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأقضية/باب من القضاء (رقم-۳۶۳۵) والترمذی فی کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الخیانة والغش (رقم-۱۹۴۰) وابن ماجه فی کتاب الأحکام/ باب من بنی فی حقه ما یضر بجاره (رقم-۲۳۴۲) واحمد فی المسند:۴۵۳/۳

هم ماخوذ کيدې شی په دې صورت کښې به ددې مطلب دا وی چه خپل ملګری له داسې تکليف ورکول چه د هغې د برداشت کولو طاقت په هغه کښې نه وی

④ د دی يوه معنی دا هم بيان شوې ده چه کوم کس د يو مسلمان سره عداوت او مخالفت لری الله تعالی به د ده سره عداوت او مخالفت لری يعنی دې به په عذاب کښې مبتلا کړی

**شاق او ضار کښې فرق:** ضار د مال په ضائع کيدو کښې استعماليږی او شاق د طاقت نه زيات اذيت بدني دپاره استعماليږی ليکن اظهره دا ده چه ضرر بدنی. مالی. دنياوی او اخروی تولو ته شامل دي او مشاقه هغه مخالفت ته وئيلی شی چه کوم مفضی الی المنازعة و المحاربة وی.

**[۵۰۴۳] مسلمان ته ضرر رسونکي ملعون دې**

۵۰۴۳-(¹) [۱۶] ① وَعَنْ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " ② «مَلْعُونٌ مَنْ ضَارَّ مُؤْمِنًا ③ أَوْ مَكَرَ بِهِ» ". ④ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوبکر صديق ﷛ وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل. ② هغه سړی ملعون (لعنتي) دی چې هغه يو مسلمان ته ضرر ورسوي، ③ يا د هغه سره مکر ودهوکه وکړي، ④ دا روايت ترمذي ﷫ نقل کړی دی، او ويلې يې دی چې دا حديث غريب دی

**حل اللغات:** - ① مَكَرَ: دهوکه ورکړی.

**تسهيلات:**

**قوله: مَلْعُونٌ مَنْ ضَارَّ مُؤْمِنًا أَوْ مَكَرَ بِهِ:**

د دي مطلب دا دي چه يو مسلمان ته نقصان رسولو والا ملعون دې او د خير نه محروم دې خواه که نقصان ظاهری طور سره وی او که پوشيده.

**[۵۰۴۴] مسلمان ته د پيغور ورکولو او د هغه د عيب لټولو سزا**

۵۰۴۴-(²) [۱۷] ① وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: ② «صَعِدَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - الْمِنْبَرَ، فَنَادَى بِصَوْتٍ رَفِيعٍ فَقَالَ: ③ " يَا مَعْشَرَ مَنْ أَسْلَمَ بِلِسَانِهِ وَلَمْ يُفْضِ الْإِيمَانُ إِلَى قَلْبِهِ! ④ لَا تُؤْذُوا الْمُسْلِمِينَ وَلَا تُعَيِّرُوهُمْ، وَلَا تَتَّبِعُوا عَوْرَاتِهِمْ ; ⑤ فَإِنَّهُ مَنْ يَتَّبِعْ عَوْرَةَ أَخِيهِ الْمُسْلِمِ يَتَّبِعِ اللَّهُ عَوْرَتَهُ، ⑥ وَمَنْ يَتَّبِعِ اللَّهُ عَوْرَتَهُ يَفْضَحْهُ وَلَوْ فِي جَوْفِ رَحْلِهِ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابن عمر ﷛ وايي، ② چې يوه ورځ رسول الله ﷺ په منبر باندې

---

¹) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی الخيانة والغش (رقم-۱۹۴۱)

²) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب/باب فی الغيبة(رقم-۴۸۸۰)والترمذی فی کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی تعظيم المؤمن (رقم-۲۰۳۲) واحمد فی المسند: ۴۲۱/۴

ودريدی او خلق يې په اوچت اواز سره داسې مخاطب کړل، [٣] اې هغه خلقو! چې په ژبې سره مو اسلام راوړی دی، او د هغوئ زړه ته ايمان نه دی رسيدلی [٤] تاسو آگاه شئ چې تاسو هغه مسلمانانو ته اذيت مه ورکوئ (کوم چې کامل مسلمانان دي. په دي طور چې هغوئ په ژبې سره هم اسلام قبول کړی دی، او د هغوی زړونه هم د ايمان په نور سره منور دی) هغوئ ته عار مه ورکوئ، او مه د هغوئ عيب لټوئ. [٥] يادلرئ! کوم سړی چې د خپل مسلمان ورور عيب تلاش کوي، الله ﷻ به د هغه عيب تلاش کړي. [٦] او د چا عيب چې الله ﷻ ولټوي، نو د هغه رسوا کيدل يقيني دی، اګر که هغه د خلقو د نظر نه بچ کيدو سره په خپل کورکي پټ وی (ترمذي)

**حل اللغات:** - ①صَعِدَ: اوختلو، ②لَمْ يُفْضِ: نه دې کوز شوې، نه دې رسيدلې. ③لَاتُؤْذُوا: تکليف مه رسوئ. ④لَاتُعَيِّرُوهُمْ: شرم مه ورکوئ، پيغور مه ورکوئ ⑤لَاتَتَّبِعُوا عَوْرَاتِهِمْ: د هغوی عيبونه مه لټوئ. ⑥عَوْرَةً: د بدن هغه ځائ چه دهغې په ښکاره کيدو انسان شرم محسوسوی. عيب. ⑦يَفْضَحُهُ: اوبه شرموی هغه لره، ⑧جَوْفِ رَحْلِهِ: د خپل سامان په مينځ کښې (يعنی خپل کور او اهل وعيال کښې)

**تسهيلات:**

**قوله:** يَامَعْشَرَ مَنْ أَسْلَمَ بِلِسَانِهِ وَلَمْ يُفْضِ الْإِيمَانُ إِلَى قَلْبِهِ:

**د يامعشر المسلمين مخاطب څوک دی:** دَ رسول الله ﷺ په خطاب کښې منافقان هم راغله اوهغه مسلمانان هم راغله چه سره دَ ايمان نه په فسق اوفجور کښې راګيروی علامه طيبی رحمه الله داخطاب صرف منافقانو سره خاص کړې دې. مګر دَحديث ظاهری مفهوم اوسياق اوسباق نه تخصيص نه بلکه عموم معلوميږی

**قوله:** لَاتُؤْذُوا الْمُسْلِمِينَ وَلَاتُعَيِّرُوهُمْ: ولاتعيروهم" مطلب دادې چه مثلاً يوسړی ګناه اوکړه اوبيائی توبه اوکړه اونيك جوړشو. اوس يو يوپيغورکونکې هغه ته پيغور ورکوی او مخکښې عيب ورته يادولوسره هغه ذليل کوی داناجائز دی. اوکه چرې هغه سړې عادی مجرم دې اوموجوده هم په هغه پخوانئی ګناه کښې ککړپروت دې اوګناه هم متعدی ده نوبيا دَ اصلاح په غرض سره تنبيه زجر او توبيخ اوپيغور ورکول جائز دی

**قوله:** يَتَّبِعِ اللّٰهُ عَوْرَتَهُ: يعنی کوم سړې چه دَ خپل يومسلمان رور په عيب لټولو کښې اخته وی نوالله تعالی به هم دَ هغه عيبونو ښکاره کولوکښې لګياشی اوهغه به معاف کوی نه بلکه دَ عامو انسانانو په مخکې به دَ هغه يو يوعيب راښکاره کولو سره هغه رسوا کوی سره دَدې چه هغه سړې دَ پټيدو په غرض سره دَخپلې کيجاوې په بيخ کښې ورتلوسره پټ شی.

**(باق) [د-ه-د] ذَ مسلمان دبې عزته کولو ګناه**

د-ه-د-()[۱]() ۱ وَعَنْ سَعِيدِ بْنِ زَيْدٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: ۲ "«إِنَّ مِنْ أَرْبَى الرِّبَا ۳ الِاسْتِطَالَةُ فِي عِرْضِ الْمُسْلِمِ بِغَيْرِ حَقٍّ»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ".

**ترجمه:** ۱ او حضرت سعید ابن زید ﷛ د رسول الله ﷺ نه روایت کوي. چې حضور ﷺ وفرمیل. ۲ د تولو نه زیات سود دادی چې ۳ د یو مسلمان عزت او آبرو په ناحقه خرابولو دپاره زبان درازی وسي (ابوداؤد، بیهقي)

**حل اللغات:** - ۱ أَرْبَى: زیات سود، غټ تجاوز. ۲ الرِّبَا: ربوا په لغت کښې زیاتوالی او د تجوز په معنی ک ښې استعمالیږی ۳ الِاسْتِطَالَةُ: زبان درازی کول. ۴ عِرْضِ: عزت.

**تسهیلات:**

**قوله: إِنَّ مِنْ أَرْبَى الرِّبَا الِاسْتِطَالَةُ فِي عِرْضِ الْمُسْلِمِ:**

**داربی الربوا په مفهوم کښې دوه اقوال:** ۱ علامه طیبی ﷫ فرمائي په دې حدیث کښې د مبالغې په توګه عزت اوناموس په مال کښې داخل کړې شوې دې بیا دَ ربا دوه قسمونه جوړولوسره بیان کړې شوی دی. اول قسم خوهم هغه معروف شرعی ربا ده هغه دا چه دَ مدیون نه په مالی معامله کښې دَعوض نه بغیر زیات مال واخستې شی دویمه غیرمعروف ربا ده هغه دا چه دَ یو مسلمان په عزت اوناموس کښې ژبه اوچلولې شی او تجوز اوکړې شی په دې حدیث کښې دَ ربا دَدغه دوو قسمونونه بدترین قسم ربا هغې ته وئیلې شوې ده کومه چه دَ ژبې دَچلولودَ وجې نه وی. [ والکاشف ۹.۲۵۴]

۲ دَملاعلی قاری ﷫ دَ قول مطابق دلته ربوا ناجائز زیاتوالی او ناجائز زیادت په معنی کښې استعمال شوې دې مطلب دا چه هرناجائز تجاوز ګناه ده لیکن دَیو مسلمان عزت اوناموس کښې ژبه چلول او زیاتې کول دَټولونه زیاته خرابه او لویه ګناه ده ځکه چه دعاقلانو په نیز دَمال دَحفاظت نه دَعزت حفاظت زیات اهم وی.

**دحدیث مطلب:** دَدې حدیث مطلب دا شوچه دَ یوشرعی مصلحت نه بغیر ناروا طریقې سره دَ یو مسلمان باره کښې دَخپلې ژبې نه خراب الفاظ ویستل، دَهغه غیبت کول هغه سره دَتکبر معامله کول او خپله لوئی خودلودپاره دَهغه سپکاوې کول دَهغه عزت او ناموس دَخپو لاندې کول داسې ګناه ده چه دَمالی سود نه په شناعت او قباحت کښې زیاته ده

**قوله: الِاسْتِطَالَةُ فِي عِرْضِ الْمُسْلِمِ بِغَيْرِ حَقٍّ:**

**د بغیر حق قید فائده:** په حدیث کښې ناحقه ژبه چلولو قید لګولې شوې دې دَدې نه په

[۱] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب/باب فی الغیبة(رقم-۴۸۷۶)واحمد فی المسند: ۱/۱۹۰

حق باندې ژبه چلولو دَاجازت ګنجائش راوځي مثلاً مالداره مقروض دَ قرض په اداکولو کښې ټال متول کوی په هغه باندې ژبه چلول جائز دی یا په ګواهانو باندې جرح ده یا دَ حدیث په راویانو باندې دَ اصحاب الجرح والتعدیل دَسخت تنقید معامله ده یا په داسې بدعتی سړی باندې دَتنقید معامله ده دَ چا دَ بدعت شرارت چه متعدی وی یا یو فسادی اوفتنه بازته په فتنه اوفساد باندې تنبیه کول وی داسې قسم ژبه چلول ممنوع نه دی

**[٥٠٣٦] په ناحقه دچا بې عزتی او غیبت باندې سخت عذاب**

٥٠٣٦-()[١٩] ١ وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "٢ «لَمَّا عُرِجَ بِي مَرَرْتُ بِقَوْمٍ لَهُمْ أَظْفَارٌ مِنْ نُحَاسٍ ٣ يَخْمِشُونَ وُجُوهَهُمْ وَصُدُورَهُمْ، ٤ فَقُلْتُ: مَنْ هَؤُلَاءِ يَا جِبْرِيلُ؟ ٥ قَالَ: هَؤُلَاءِ الَّذِينَ يَأْكُلُونَ لُحُومَ النَّاسِ وَيَقَعُونَ فِي أَعْرَاضِهِمْ»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**: ١ او حضرت انس رضی الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ٢ کوم وخت چې الله تعالی زه (د معراج په شپه) پورته بوتلم، نو (عالم بالا کې) زه په داسې خلقو تیر شوم، چې د هغوئ نوکان د تانبې وه، ٣ او هغوئ په خپلو نوکونو سره مخونه شلول، ٤ د هغوئ د داحالت په لیدو سره ماپوښتنه وکړه، اې جبرائیل علیه السلام! داڅوك دي؟ ٥ هغه جواب راکی. دا هغه خلق دي، چې د خلقو غوښې خوري (یعني د خلقو غیبت کوي) او د هغوئ عزت او ابرو پسې لګیدلي وي. (ابوداؤد)

**حل اللغات**:- ① عُرِجَ: پورته بوتلې شوم (دمعراج په شپه)، ② أَظْفَارٌ: نوکان، ③ نُحَاسٍ: د تانبې، اوسپنې. ④ يَخْمِشُونَ: شکول هغوی، ⑤ يَقَعُونَ: لګیدلی وو، اخته وو یعنی غیبت کوی، بې عزتی کوی

**تسهیلات**:

**قوله: هَؤُلَاءِ الَّذِينَ يَأْكُلُونَ لُحُومَ النَّاسِ:**

**دمسلمانانو بې عزته کولو اخروی سزا**: په حدیث الباب کښې د حضرت جبرائیل علیه السلام د وینا مقصد دا وو چه دا هغه خلق دی کوم چه د خلقو غیبت کوی او د هغوی په حق کښې بد او خراب الفاظ په ژبه استعمالوی او د خلقو بی عزتی کوی او ددې خلقو خپلو مخونو او سینی ګرولو کښې دې طرف ته اشاره کول دی چه دوې د خپل مسلمان ورور بی عزتی اوکړه او په دې بی عزتی باندې خوشحاله شو او د خپل مسلمانانو ورونړو سینی او مخونه ئې مجروح او مغموم کړل لهذا ددوې د بد عمل سزا هم دغه ده چه دوې دې خپل مخونه او سینی په خپلو لاسونو باندې پخپله زخمی کړی.

---

[1]) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب/باب فی الغیبة (رقم-٤٨٧٨) واحمد فی المسند:٢٢٤/٣

## [۵۰۴۷] د یو مسلمان د عزت کولو ثواب او د بې عزتۍ کولو سزا

[۲۰] ۞ وَعَنِ الْمُسْتَوْرِدِ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ۞ قَالَ: "«مَنْ أَكَلَ بِرَجُلٍ مُسْلِمٍ أُكْلَةً ۞ فَإِنَّ اللّٰهَ يُطْعِمُهُ مِثْلَهَا مِنْ جَهَنَّمَ، ۞ وَمَنْ كُسِيَ ثَوْبًا بِرَجُلٍ مُسْلِمٍ: فَإِنَّ اللّٰهَ يَكْسُوهُ مِثْلَهُ مِنْ جَهَنَّمَ، ۞ وَمَنْ قَامَ بِرَجُلٍ مَقَامَ سُمْعَةٍ وَرِيَاءٍ: ۞ فَإِنَّ اللّٰهَ يَقُومُ لَهُ مَقَامَ سُمْعَةٍ وَرِيَاءٍ يَوْمَ الْقِيَامَةِ»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**: ۱ او حضرت مستورد ؓ د رسول اللهﷺ نه روایت کوي. ۲ چې حضورﷺ وفرمایل کوم سړی چې د یو مسلمان غیبت کوی یا د زنا وغیره تهمت لګولو په ذریعه د هغه بې عزتي کولو سره یوه نوړۍ وخوري، ۳ نو الله ﷻ به په هغه د هغه نمړۍ په شان د دوزخ اور وخوروي، ۴ او کوم سړی چې د یو مسلمان سړي د تحقیر او اهانت سپکاوي کپړه چاته وا چوي، نو الله ﷻ به هغه ته د هغه کپړي په شان د دوزخ د اور کپړه وا چوي. ۵ او څوك چې یو سړی چاته اورولو او خودلو د پاره ودروي. ۶ نو د قیامت په ورځ به الله ﷻ هغه اورولو او خودلو د پاره خپله ودریږي (ابو داؤد)

**حل اللغات**: - ① أُكْلَةً: غیبت کول، ② كُسِيَ: ورته وا به غوستلې شي. ③ سُمْعَةٍ: د آورولو د پاره. یعنی د ریا په طور تعریف خوښول ④ رِيَاءٍ: د ښودنې د پاره.

**تسهیلات**:

په دې حدیث کښې یو څو جملې دی په کوموباندې چه پوهیدل او بیل پوهه کول ډیر ضروری دی.

### قوله: مَنْ أَكَلَ بِرَجُلٍ مُسْلِمٍ أُكْلَةً:

**د مذکوره جملې مطلب**: دَ یو سړی بل سړی سره نه لګی په مینځ کښې یو دریم سړې راشي په هغوی کښې دَ یو په مخکښې دَ هغه بل بد بیانوی دَهغه غیبت کوی اودَ دغه عیبونو بیانولو او غیبت په وجه دَهغه نه خوراك حاصلوی اوخوری اوهغه ئې هم پرې ښه خوروی ځکه چه دَ هغه دَ مخالف ښه بد بیانیږی نودَ دغه خوراك په بدله کښې الله تعالی دغه بد بیانونکی باندې دَ دوزخ نه خوراك خوری "برجل" کښې باء حرف دَ سببیت دَپاره ده

**قوله**: وَمَنْ كُسِيَ ثَوْبًا بِرَجُلٍ مُسْلِمٍ:

**په کسی کښې دوه اعرابات اودهر یو معنی**: ① که کسي صیغه دَ مجهول شی نوترجمه به داسې شی چه کوم سړې ته دَ یو مسلمان رور سپکاوی اوتوهین په بدله کښې کپړا واغوستلې شی نوهغه ته به الله تعالی په دوزخ کښې کپړا وروا غوندی دا ترجمه او مطلب زیات واضح دې. "برجل" کښې باء حرف دَ سببیت دَپاره ده.

---

[۱] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب/باب فی الغیبة (رقم-۴۸۸۱) واحمد فی المسند: ۲۲۹/۴

① کـه کـسي صـيغه معلومـه شي نـود دي ترجمـه او مطلـب بـه داشـي چـه د مـسلمان د سپکاوي او اهانت په بدله کـنبې اهانت کـونکي تـه کـپړا واغـوندي نـو الله تعالى به دغه تحقير کونکي ته د دوزخ لباس واغوندوي

**برجل په باره کښې دوه احتمالات او دوه مطلبونه :**

③ **قوله** : وَمَنْ قَامَ بِرَجُلٍ مَقَامَ سُمْعَةٍ وَرِيَاءٍ: په دې کښې حرف باء د سببيت د پاره هم کيدې شي او د تعديت د پاره زائده هم کيدې شي. کـه د سببيت د پـاره وي نو مطلب بـه داشي چه يو سړې پخپله د ځان خودلو په مقام باندې اودريدو خپل تعريف ئې کولو تقوىٰ او صلاح ئې خودله او لکـه د طوطي ئې پـه خپله خلـه خپـل تعريـف کـولـو او دا د دې د پـاره چـه هغه څوك مالدار سړې ويني او د هغه عقيدت مند جوړشي او هغـه تـه د دغـه مـالدار نـه مال او عزت ملاؤ شي الله تعالى بـه داسې سړې د قيامت پـه ورځ د رسوائيي پـه مقـام باندې او دروي عربي عبارت به داسې شي "من قام مقام السمعة والرياء لأجل رجـل صـاحب مـال" او کـه چرې باء زائده وي او صرف د تعديت د پاره وي نو مطلب به داسې شي چه کوم سړې څوك: نوم او ځان خودلو په مقام باندې اودرولو او پخپله ئې د هغـه تعريـف شروع کړو چـه: سړې دومره لوئي بزرگ دې فلانکې دې او فلانکې دې ده سره د اصلاح تعلق قائم کړئي د ده مريدان جوړشئي داسې تعريف کولو کښې د دې په شا خپلـه دنيا جوړوي لکـه څنګه چه نن صبا کيږي چه:

پيراں نمی پرند مريداں می پرانند

د دې حديث دا مطلب شيخ مظهر رحمه الله بيـان کـړې دې کـوم چـه ملاعلي قـاري رحمه الله نقـل کـړې دې عربي عبارت به داسې وي "ومن أقام رجلا مقام السمعة" بهرحال د دې جملې څو مطالب بيانولې شي خلاصه دا چه يو سړې خپـل تعريف پخپلـه کـوي دې د پـاره چـه د دنيـادارونه مال حاصل کړي داهم تباه حال دې يا د يو بزرگ د وجې خپل دکان پرقوي داسړې هم تباه حال دې يا بل څوك په خپل تعريف کولو کښې اخته کوي داهم تبـاه حـال دې يـا د يو عـالم محدث يا يو پير فقير جامه اچولو سره لوئي بزرگ جوړيږي راځي او مـال راغونـدوي دا ټول د دنيا طالب او ځان خـودونکي دي مطلوب ئې صرف دنيا ده رنگونـه ئې جدا جدا دي هغه چا ښه وينا کړې ده

وما الرزق إلا طائر أعجب الورى　　فمدت له من كل فن حبائل

يعنى د دنيا مال او متاع يو ښائسته ښکاريدونکې مرغئي ده کومې چـه ټـول خلق حيران کړي دي نو د هغې د نيولو د پاره هرقسم جالونه خواره کړې شوي دي.

## [٥٠٣٨] ښه ګمان ساتل هم يو عبادت دي

٥٠٣٨-(١) [٢١] [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[٢] «حُسْنُ الظَّنِّ مِنْ حُسْنِ الْعِبَادَةِ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**: [١] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] نيک ګمان ساتل منجمله د بهترين عباداتو نه دي (احمد، ابوداود)

**تسهيلات:**

**قوله: حُسْنُ الظَّنِّ مِنْ حُسْنِ الْعِبَادَةِ:**

**د حسن الظن من حسن العباده مطلبونه:** دَدې حديث ① يو مطلب خو دا دې چه الله تعالى سره متعلق ښه ګمان قائمول په ښه عبادتونو کښې بهترين عبادت دې. ښه ګمان دا دې چه عبادت کولو سره دَ مغفرت ګمان وى دَالله تعالى دَ رحمت او مهربانئى ښه يقين وى دا مطلب نه دې چه عبادت پريخودو سره دَ الله تعالى متعلق دا ګمان يخوى چه الله تعالى غفوررحيم دې معاف به مو کړى. دادَ شيطان دهوکه ده بهرحال دَ حديث دا مطلب يو احتمال دې په ظاهر حديث کښې داسې تفصيل نشته دې ② دويم مطلب دا دې چه دَ الله تعالى دَ بنديګانو متعلق ښه ګمان قائمول او دَ بدګمانئى نه بچ کيدل دا بهترين عبادت دې

شيخ عبد الحق محدث دهلوى رحمه الله او علامه طيبى رحمه الله هم دغه مطلب بيان کړې دې علامه طيبى رحمه الله فرمائى "يعنى اعتقاد الخير والصلاح فى حق المسلمين عبادة" دَ حديث دا مطلب ډير واضح دې بلکه متعين معلوميږى. [الكاشف: ٢٥٧/٩ اشعة اللمعات]

## [٥٠٣٩] دَ حضرت زينب رضي الله عنها نه په يوه ناخوښه خبره د حضور ﷺ خفګان

٥٠٣٩-(٢) [٢٢] [١] وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا - قَالَتْ: [٢] «اعْتَلَّ بَعِيرٌ لِصَفِيَّةَ وَعِنْدَ زَيْنَبَ فَضْلُ ظَهْرٍ، [٣] فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِزَيْنَبَ: "أَعْطِيهَا بَعِيرًا" [٤] فَقَالَتْ: أَنَا أُعْطِي تِلْكَ الْيَهُودِيَّةَ؟! فَغَضِبَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٥] فَهَجَرَهَا ذَا الْحِجَّةِ وَالْمُحَرَّمَ وَبَعْضَ صَفَرٍ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ. [٦] وَذُكِرَ حَدِيثُ مُعَاذِ بْنِ أَنَسٍ: "مَنْ حَمَى مُؤْمِنًا" فِي "بَابِ الشَّفَقَةِ وَالرَّحْمَةِ".

**ترجمه**: [١] او بي بي عائشه رضي الله عنها وايي، [٢] يو وخت د بي بي صفيي اوښ ناجوړه شو. هغه وخت بي بي زينب رضي الله عنها سره د هغه د ضرورت نه زياته سورلي وه (يعني د هغې سره يو اوښ د ضرورت نه زيات وو) [٣] حضور ﷺ بي بي زينب رضي الله عنها ته وفرمايل، ته خپل هغه اوښ (چې ستا د ضرورت نه زيات دى) بي بي صفيه رضي الله عنها ته ورکړه [٤] بي بي زينب رضي الله عنها جواب

---

(١) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الأدب/باب فى حسن الظن (رقم-٤٩٩٣) واحمد فى المسند: ٤٠٧/٢

(٢) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب السنة/باب ترک السلام على أهل الأهواء (رقم-٤٦٠٢) واحمد فى المسند: ٢٦١/٦

ورکړو، یا زه هغه یهودیه ته خپل اوښ ورکړم (یعني هغه بي بي صفیي ﷞ ته یوازې د اوښ ورکولو نه انکار ونه کی، بلکي د هغه باره کې یي نازیبا الفاظ هم د ژبي نه واوخکل) ⑤نو رسول الله ﷺ د هغې نه سخت ناراضه شو. تردي چې د ذي الحجه و محرم (پوره میاشتي) او د ماه صفرځو ورځو پورې د هغه سره یوځای کیدل او هغه ـه ورتلل یي پریخودل (ابوداؤد)⑥ او د حضرت معاذ ابن انس ﷛ روایت من حمی مؤمن الخ باب الشفقة والرحمة کې نقل شوی دی

**حل اللغات:-** ①اعْتَلَّ: بیمار شو. ②فَضْلُ: زیاتی (دحاجت نه) ③ظَهْرٍ: شا ته وائی دلته تری سورلی مراد ده

**تسهیلات:**

**قوله: اعْتَلَّ بَعِيْرٌ لِصَفِيَّةَ وَعِنْدَ زَيْنَبَ فَضْلُ ظَهْرٍ:**

**د حدیث پس منظر:** حضرت صفیه ﷞ په جنګ خیبر کښې دَمسلمانانو لاس ته راغلې وه حضورپاك هغه آزاده کړه او ورسره ئې نکاح اوکړه دا دَ خوراك پخولو کښې بـه ماهره وه پـه دې وجـه دَ نـورو ازواج مطهـرات دَ طـرف نـه وخـت پـه وخـت څـه نـا څـه کلمات اوریدو دپاره ملاویدل حضرت صفیه، دَ حیی بن اخطب یهودی لور وه او دَ ابوالحقیق یهودی ښځه وه او دَ حضرت هارون ﷼ دَ اولاد نه وه.هم په دې وجه هغې ته دَ یهودیت پیغور ملاؤ شو او حضورپاك ناراض شو په یوه موقع حضورپاك حضرت صفیه ﷞ ته اوفرمائیل چه ته دَ دغه پیغور دا جواب ورکړه چه زه دَ یونبی لوریم او دَ بل نبی ښځه یم تا سوکښې کومه یوه زما مقابله کولې شي؟"فضل ظهر"یعنی زیاتی سورلی وه چه فارغ وه

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۵۰۵۰] دَالله تعالیٰ دَ نوم په قسم باندې اعتبار پکار دې**

۵۰۵۰-( )[۲۳] ①عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "②«رَأَى عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ رَجُلًا يَسْرِقُ ③فَقَالَ لَهُ عِيسَى: سَرَقْتَ؟ ④قَالَ: كَلَّا، وَالَّذِي لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ. ⑤فَقَالَ عِيسَى: آمَنْتُ بِاللّٰهِ وَكَذَّبْتُ نَفْسِي»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ①حضرت ابوهریره ﷛ وایي. چې رسول الله ﷺ وفرمایل② یو ځل حضرت عیسٰی ابن مریم ﷣ یو سړی په غلاکولو ولیدی.③نو هغه سړي ته یې وویل، تا غلاوکړه ④هغه سړي اوویل هیڅ کله نه، په هغه پاك ذات مې دې قسم وي چې د هغه نه سوا بل معبود نشته ما غلا نه ده کړي، ⑤حضرت عیسٰی ﷼ چې د هغه دغه شان قسم اخستل واوریدل نو اوویل ما په الله ایمان راوړی دي او خپل نفس دروغجن ګرځوم (مسلم)

[۱] اخرجه مسلم في كتاب الفضائل/باب فضائل عيسى عليه السلام (رقم ۱٤۹ (۲۳۶۸) واحمد في المسند:۲/۳۱٤

**تسهيلات:**

**قوله : فَقَالَ عِيسَى: آمَنْتُ بِاللهِ وَكَذَّبْتُ نَفْسِي:**

**د حديث نه مستنبط شوی مسئله :** حضرت عيسیٰ علیه السلام چه کله دَ غل دَ خلې نه دَ الله تعالی تعريف اوبيا دَ هغه بزرگ او اوچت بادشاه دَ نوم قسم واوریدو نو دَ خپلې مشاهدې نه شاته شو او دَ الله تعالی دَ نوم احترام ئی اوکړو دَدې نه معلومه شوه چه که يو سړې دَ دروغو قسم هم اوخوری نو اوريدونکی له پکاردی چه دَ الله تعالی دَ نوم احترام کولو سره دَ هغه قسم اعتبار اوکړی.

**[۵۰۵۱] لوږه او حسد لوئی امتحان دې**

۵۰۵۱-()[۲۴] ۱ وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "۲ «كَادَ الْفَقْرُ أَنْ يَكُونَ كُفْرًا، ۳ وَكَادَ الْحَسَدُ أَنْ يَغْلِبَ الْقَدَرَ» ".

**ترجمه :** ۱ او حضرت انس رضی الله عنه وايي، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل، ۲ فقر او افلاس نزدې دی، چې د کفر حد تـه (سړی) ورسوي، ۳ او حسد نزدې دی، چې تقدير باندې غالب راشي.

**تسهيلات:**

**قوله : كَادَ الْفَقْرُ أَنْ يَكُونَ كُفْرًا:**

**د ان يكون كفرا مطلب :** يعنی نيزدې ده چه فقر او فاقه سړې کفرتـه اورسوی دا لوئی ازميښت دې ځکه چه دَ فقر او اولګې دَ وجې نه دا احتمال دې چه بې صبری او دَ الله تعالی ناشکری اوشی غلا اوشی حرام خوری اوشی په الله تعالی باندې يقين کم شی او په الله تعالی باندې اعتراض اوشی نو دغه شان بـه دا فقـر او اولګـه سـړې کفـر تـه اورسوی. او کـه چرې صبر او شکروی دَ الله تعالی پـه قضاء باندې رضا وی يقين او اعتبار صرف په الله تعالی باندې وی قناعت وی نو په دغه اعتبار سره دَ فقر او فاقه لوئی فضيلت راغلې دې. «الدنيا سجن المؤمن وجنة الكافر».

**[۵۰۵۲] دَ مسلمان د عذر نه قبلولو وبال**

۵۰۵۲-()[۲۵] ۱ وَعَنْ جَابِرٍ عَنْ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: "۲ «مَنِ اعْتَذَرَ إِلَى أَخِيهِ فَلَمْ يَعْذِرْهُ، أَوْ لَمْ يَقْبَلْ عُذْرَهُ ; ۳ كَانَ عَلَيْهِ مِثْلُ خَطِيئَةِ صَاحِبِ مَكْسٍ» ". رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي " شُعَبِ الْإِيمَانِ " وَقَالَ: الْمَكَّاسُ: الْعَشَّارُ.

) اخرجه البيهقی فی شعب الايمان رقم ۶۶۱۲

) اخرجه البيهقی فی شعب الايمان رقم ۸۳۳۸

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه نقل کوي، چې حضور ﷺ وفرمايل. [۲] کوم سړی چې خپل مسلمان ورور ته (خپل څه قصور باندې) عذر خواهي وکړي او هغه مسلمان سړی هغه معذور ونه ګرځوي (يعني هغه عذر ناقابل قبول تسليم کړي او اووائي چې تاته هيڅ عذر لاحق نه دی، بلکې د عذر خواهي په نوم دروغ وايې) يا د هغه عذرقبول نه کړي (يعني داسې اووائي، چې ته عذر خو لرې، خو ستا عذر نه قبلوم) [۳] نو هغه به د دې درجې ګنهګار وي د کومې درجې چې صاحب مکس وي (چې د خلقو مالونه په ظلم اخلي). دا دواړه حديثونه بيهقي رحمه الله (په شعب الايمان کې نقل کړی دی. او ويلی يې دی. چې مکاس عشر اخستونکي ته وايي).

**حل اللغات:** - ① اِعْتَذَرَ: عُذر ئې اوکړو، ② صَاحِبِ مَكْسٍ: د خلقو مالونه په ظلم اخستونکي. ③ اَلْمَكَّاسُ: عُشر. محصول او چونګی وغيره وصولونکی ته وائی. ④ اَلْعَشَّارُ: عُشر وصولونکي.

**تسهيلات:**

**قوله: كَانَ عَلَيْهِ مِثْلُ خَطِيئَةِ صَاحِبِ مَكْسٍ:**

**دعذر نه قبلونکی د ګناه تشبيه د ټيکس وصولنکی سره:** محصول او چونګی ته مکس وائی د دې وصولونکی ته مکاس صاحب مکس او پټواری او عشار ورته وائی داسړې هم څه عذر نه قبلوی په دې وجه دَعذر نه قبلونکی کس دَ ګناه تشبيه صاحب مکس سره ورکړې شوې ده په يو حديث کښې دی چه دَمسلمان عذر نه قبلونکې کس به حوض کوثر ته هم لاړنه شی لهذا ددې حديث تعليم دادې چه دَمسلمان رور عذر قبلول پکاردی

والعذر عند كرام الناس مقبول ومن دق باب كريم فتح

# [۱۸] بَابُ الْحَذَرِ وَالتَّأَنِّي فِي الْأُمُورِ

## په معاملاتو کښې احتياط او د سنجيدګۍ بيان

**خلاصة الباب:**

**فيه خمسة عشر حديثاً مشتملة على خمس مسائل:**

① فضيلة الحذر والتأني: ۱، ۱۲، ۱۳، ۱۴.
② فضيلة الإناة والأمر لها: ۲، ۳، ۵، ۶، ۷، ۱۲، ۱۳، ۱۴.
③ مقدار الحلم والتأني: ۴.
④ فضيلة الاقتصاد في الأمور كلها: ۷، ۸، ۱۵
⑤ فضيلة الأمانة: ۹، ۱۰، ۱۱.

**قوله:** بَاب الحذر والتأني في الامور:

**د الحَذَرِ لغوی معنی:** بيدار او حاضردماغ اوسيدو په معنی کښې دې کوم چه د غفلت کسل او حماقت ضد دې.

**د التَأني لغوی معنی:** اخير اوروستو کيدل او په ښه شان غورکولو معنی کښې دې کوم ته چه وقار او سنجيدګی هم وائی چه د تادئی ضد دې.

**د باب دعنوان مطلب:** انسان له پکاردی چه هغه د زمانې د شر اوفساد اود خلقو د آفاتو اوبلياتو نه خپل ځان بچ اوساتی اوهروخت په خپلو معاملاتو کښې بيدار حاضردماغ وی دې د پاره چه نه هغه ته څوك دهوکه ورکړې شی اونه هغه چاته دهوکه ورکړی لکه چه يوصحابی د حضرت عمرفاروق ﷺ باره کښې د يوغيرمسلم بادشاه د سوال په جواب کښې اووئيل چه "أَمِيْرُنَا لَا يَخْدَعُ وَلَا يُخْدَعُ" يعنی زمونږ امير نه چاته دهوکه ورکوی اونه د چانه دهوکه خوری.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۵۰۵۳] مؤمن په هوښياروی**

۵۰۵۳-(۱) [۱] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[۲]«لَا يُلْدَغُ الْمُؤْمِنُ مِنْ جُحْرٍ وَاحِدٍ مَرَّتَيْنِ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

[1] اخرجه البخاري في كتاب الأدب/باب: لا يلدغ المؤمن من جحر مرتين (رقم-۶۱۳۳) ومسلم في كتاب الزهد والرقائق/باب لا يلدغ المؤمن من جحر مرتين (رقم-۶۳ - (۲۹۹۸) وابوداود في كتاب الأدب/باب في الحذر من الناس (رقم-۴۸۶۲) وابن ماجه في كتاب البيعة/باب البيعة فيما يستطيع الإنسان (رقم-۴۱۸۹) واحمد في المسند:۲/۳۷۹

**ترجمه** : حضرت ابوهریره رضي الله عنه وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل، [۲] مؤمن د يوې غاري نه دوه ځله نشي چيچل کيدی. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات** :- ① لَا يُلْدَغُ: نه شي چيچلې کيدې (يعني نه شي دهوکه کيدې). ② جُحر: سوړه، سوراخ

**تسهیلات**:

**قوله** : لَا يُلْدَغُ الْمُؤْمِنُ مِنْ جُحْرٍ وَاحِدٍ مَرَّتَيْنِ:

**د حديث پس منظر او شان ورود** : يعنی مومن دَ يوې سوړې نه دوه ځل نه شي ټکوهلې دَدې ارشاد مبارك پس منظرداسې دې چه دَ جنګ بدر په قيديانو کښې يوشاعرهم ګرفتاريدو سره مدينې منورې ته راوستلې شوې وو دَچانوم چه ابوعزه جمحی وو هغه دَحضورپاك نه معافي کولو او مفت کښې دَ پريخودلو درخواست اوکړو حضورپاك هغه په دې شرط باندې معاف کړو چه بيا به نه دَ مسلمانانو خلاف جنګ ته راځي او نه به دَخپلو شعرونو په ذريعه دَ هغوی مذمت کوې هغه وعده اوکړه ليکن دَ ابوسفيان په ويناکولوسره دا شاعر بيا راؤچت شو اودَ خپلو اشعارو په ذريعه ئې دَ عربو قبائل دَمسلمانانو خلاف جنګ ته تيارکړل او پخپله دکافرانو لښکرسره جنګ احد ته راغلوهلته بيا ګرفتارشو. کله چه دَحضورپاك مخې ته راوستلې شو نوهغه بيا دَ معافئی درخواست اوکړو. په دې باندې حضورپاك اوفرمائيل داسې نه شي کيدې چه ته به بيا دَمکې خلقو سره لاړشې او بريت به تاووې او وايې به چه ما محمد دوه ځل دهوکه کړو. مسلمان دَ يوځائی او يوې سوړې نه دوه ځل نه شي ټکوهلې. دې ويناکولو سره حضورپاك دَهغه دَ قتل حکم ورکړو نوهغه بدبخت دوزخ ته اورسيدو. په دې حديث سره مسلمانانوته دَ خارجه او داخله پاليسئی دَپاره دغه دَ شان جنګ او صلح دَپاره بې شميره حکيمانه اصول حاصليږی خوافسوس چه څوك غور اوکړی او داخپل کړی.

## [۵۰۵۳] دَ حلم او برد بارئ فضيلت

۵۰۵۳-(¹) [۲] [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - [۲] «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِأَشَجِّ عَبْدِ الْقَيْسِ [۳] إِنَّ فِيكَ لَخَصْلَتَيْنِ يُحِبُّهُمَا اللَّهُ: [۴] الْحِلْمَ وَالْأَنَاةَ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** : [۱] او د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دی [۲] چې رسول الله ﷺ د قبيله عبد القيس سردار اشج رضي الله عنه ته وفرمايل، [۳] په تاکي چې کوم دوه خويونه دي، الله هغه ډيري خوښوي، که هغه په هر چا کښې وي [۴] يو خو حلم او بردباري، او دويم توقف او آهستګي (په کار کښي تلوارنه کول) (مسلم)

¹) اخرجه مسلم فی کتاب الإيمان/باب الأمر بالإيمان بالله ورسوله، وشرائع الدين، والدعاء إليه(رقم-۲۵ - (۱۷) والترمذی فی کتاب البر والصلة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ماجاء فی التأنی والعجلة(رقم-۲۰۱۱)واحمد فی المسند:۲۳/۳

**حل اللغات:** - ① أَشَجّ: زخم ته وائی (دا د عبدالقیس لقب دی) ② الْحِلْمَ: بُردباری. ③ الْأَنَاةَ: آهستګی. تلوار او جلتی نه کول

**تسهیلات: قوله: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِأَشَجِّ عَبْدِ الْقَيْسِ:**

**د حدیث شان ورود او اشج وجه تسمیه:**

**نوټ:** د وفد عبدالقیس مکمل تشریح د تسیهلات اول جلد حدیث نمبر (۱۷) یه تسهیل کښې تیره شوې ده

**قوله: الْحِلْمَ:**

**د حلم معنی:** دَ ظالم نه بدله اخستو کښې دې سړې دَ صبر نه کار واخلی کوم ته چه بردباری وائی نو بردباری او سنجیدګئی دوه جدا جدا صفات دی

**قوله: إِنَّ فِيكَ لَخَصْلَتَيْنِ يُحِبُّهُمَا اللّٰهُ: الْحِلْمَ وَالْأَنَاةَ:**

**د اناة په معنی کښې څلور اقوال:**

① تاخیر او روستو والې کول.
② په طاعاتو باندې ثابت قدمی.
③ دَ مستقبل باره کښې بهتر سوچ کول.
④ وقار او سنجیدګی.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۵۰۵۵] د حلم او برد باری فضیلت او د جلد بازئ مذمت**

۵۰۵۵-() [۳] ① عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ السَّاعِدِيِّ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: " ② «الْأَنَاةُ مِنَ اللّٰهِ ③ وَالْعَجَلَةُ مِنَ الشَّيْطَانِ» ". ④ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ. ⑤ وَقَدْ تَكَلَّمَ بَعْضُ أَهْلِ الْحَدِيثِ فِي عَبْدِ الْمُهَيْمِنِ بْنِ عَبَّاسٍ الرَّاوِي مِنْ قِبَلِ حِفْظِهِ.

**ترجمه:** ① د حضرت سهل ابن سعد ساعدي رضي الله عنه نه روایت دی، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل. ② په یو کار کې آهستګي او بردباري د الله تعالی د طرف نه ده (یعني دا خوبي دالهام خداوندي په ذریعه یو انسان ته حاصلیږي) ③ او جلد بازي د شیطان خصلت دی. ④ دا روایت ترمذي رحمه الله نقل کړی دی، او ویلې یې دی چې دا حدیث غریب دی، ⑤ او بعضې محدثینو د دې حدیث د راوي عبد المهیمن ابن عباس رضي الله عنه د یاداشت باره کې کلام کړی دی (یعني هغوئ ویلي دي، چې د عبد المهیمن رضي الله عنه حافظه زیاته ښه نه وه، اګر که د هغه عدل او ثقه کیدو کې څه شبه نشته)

**حل اللغات:** - ① الْأَنَاةُ: آهستګی، تلوار نه کول ② الْعَجَلَةُ: جلتی کول

[۱] اخرجه الترمذی فی کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی التأنی والعجلة (رقم-۲۰۱۲)

**تسهيلات:**

**قوله:** وَالْعَجَلَةُ مِنَ الشَّيْطَانِ:

**په دنياوى كارونوكښې جلتى (تلوار) كول:** جلد بازى د شيطان عادت او خوې دې. ددې مطلب دا دې چه په دنياوى كار كښې غور وفكر نه كول او ددې په خاتمه باندې بغير د غور او فكر نه زر زر شروع كول ځكه چه شيطان په دې كښې مختلف قسمه وسوسې اچوى كوم سره چه د شيطان مقصد دا كار خرابول وى او په پريشانى كښې واقع كول وى نو ددې وجهې نه دا مذموم دې،

**د زيربحث حديث څخه د دينى كارونواستثنا:** د زيربحث حديث څخه هغه دينى كارونه مستثنى دى كوموته چه په مخكې والې كښې ثواب دې، الله تعالى فرمائى "**ويسارعون في الخيرات،وسارعواالى مغفرة**".

**په دينى اموروكښې د جلتى، كولودوه صورتونه:**

ملا على قارى رحمه الله فرمائي چه په طاعاتو او عباداتو كښې د جلدى دوه صورتونه دى ① دطاعت اوعبادت د ادا كولو طرف ته سرعت او جلدى اختيارول. دا صورت ممدوح دې

② د عبادت او طاعت په ادا كولو كښې جلد بازى كول.

**په دواړو صورتونوكښې فرق:** يو د مونځ دپاره جلدى كول دى او دويم دا چه په مونځ كښې دننه جلدى كول يعنى ركوع، سجده وغيره زر زر كول او د مونځ نه ځان فارغول نو په دې كښې اولنې صورت ممدوح دې او دويم صورت مذموم دې.

**عبدالمهيمن:**

**دعبدالمهيمن راوى تضعيف:** دا راوى كامل مومن او متقى پرهيزګار وو او عادل اوثقه وو ليكن بعضى حضراتو په ده باندې دا طعن لګولې دې چه دا ثقه راوى نه دې ځكه چه دده حافظه كمزورې وه

**[٥٠٥٦] تجربو سره سړې كامل حكيم جوړيږى**

٥٠٥٦-(١)[٣] ١ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ-رَضِيَ اللهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "٢«لَا حَلِيمَ إِلَّا ذُو عَثْرَةٍ، ٣وَلَا حَكِيمَ إِلَّا ذُو تَجْرِبَةٍ» "٤رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ١ او حضرت ابوسعيد خدري ﷛ وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ هيڅ سړى كامل بردبار كېږي نه، ترڅوپورې چې خطا نه وي ورنه شوي، ٣ او هيڅ سړى كامل حكيم

---

(١) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب البر والصلة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى التجارب (رقم-٢٠٣٣) واحمد فى المسند:٦٩/٣

کېږي نه ترڅو پورې چې تجربه ورته حاصله شوي نه وي، [۴] دا روایت احمد رحمه الله او ترمذي نقل کړی دی، او ویلي یي دي چې دا حدیث غریب دی.

**حل اللغات**: - ① حَلِيمَ: بُردبار، ② ذُوعَثْرَةٍ: عثرة لغزش او تندك په معنی کښې دې. یعنی خطا کونکې، ③ حَكِيمَ: دانا، هوښیار.

**تسهيلات**:

**قوله**: لَاحَلِيمَ إِلَّا ذُوعَثْرَةٍ:

**دمذکوره جملې مطلب**: یعنی دَحلم لحاظ اودَ مروت ماده په هغه سړی کښې راځي چاچه دهوکه خوړلې وی.لغزش سره مخامخ شوې وی.په خپلو معاملاتوکښې ئی ځانی په ځانی نقصان اوچت کړې وی.دَهغه مشرانو دې معاف کړې وی.دَداسې سړی په مزاج کښې دَ خپلو کشرانودَپاره بلکه دَ پوره معاشرې دَپاره دَحلم او دَ بردبارئی جذبه پیداکیږی او هغه دَهرښکته پورته انجام باندې پوهیږی په دې وجه په هغه کښې دَ برداشت ماده پیداکیږی هم دا په حدیث کښې دَحلیم په نوم سره یاد کړې شوې دې

**قوله**: وَلَاحَكِيمَ إِلَّا ذُوتَجْرِبَةٍ:

**دحکیم په مصداق کښې دوه اقوال**:

① دَدې څخه طبیب مراد دې.

② هوښیار چه دَ معاملاتو په انجام باندې نظرساتی.دا قول راجح دې

غرض دا چه دَ څوك چه تجرباتو سره مخ شوې وی هم هغه اصل حکیم دې لکه چه وئیلی شوی دی "سل المجرب ولاتسأل الحكيم". یعنی د تجربه کار څخه تپوس کول د حکیم څخه تپوس مه کوه

**[۵۰۵۷] دکارا انجام ته کتل او په سوچ او فکر سره ئې کول**

۵۰۵۷-(١) [۵] [۱] وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - «أَنَّ رَجُلًا قَالَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] أَوْصِنِي. فَقَالَ: "خُذِ الْأَمْرَ بِالتَّدْبِيرِ، [۳] فَإِنْ رَأَيْتَ فِي عَاقِبَتِهِ خَيْرًا فَأَمْضِهِ، [۴] وَإِنْ خِفْتَ غَيًّا فَأَمْسِكْ» ". رَوَاهُ فِي "شَرْحِ السُّنَّةِ".

**ترجمه**: [۱] او د حضرت انس رضي الله عنه نه روایت دی، چې یو سړی رسول الله صلی الله علیه وسلم ته عرض وکړو، [۲] حضرت! ماته څه داسې وصیت وفرمایه، چې په هغه زه خپل کارونو او معاملاتو کې عمل کوم، او د هغه په وجه څما کار او عمل خراب نشي حضور صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل ته چې کله د څه کار اراده وکړې، نو تدبر اختیار کړه (یعنې آنجام باندې نظر اچوه، او د هغه ټول مصالح او مفاسد باندې په ښه شان غور او فکر وکړه) [۳] او بیا که د هغه کار انجام کې (دیني اودنیوي) خیر درته په نظر راشي، نو هغه وکړه، [۴] او که د هغه

---

(۱) اخرجه البغوی فی شرح السنه رقم ۳۶۰۰

په آنجام کې (څه دیني یادنیاوي) ګمراهي او اخروي خوف محسوس کړي نو هغه پریږده (شرح السنه)

**حل اللغات:** - ① التَّدْبِيرِ: غور او فکر، انجام باندې نظر ساتل. ② أَمْضِهِ: اونې کړه. ③ غَيًّا: سرکشي. ګمراهي. ④ أَمْسِكْ: منع شه، مه ئې کوه.

**تسهیلات:**

**د بعضې مشکلو الفاظو وضاحت:**

① خُذِ الْأَمْرَ بِالتَّدْبِيرِ: بالتدبير، "أي بالتفكر في دبره والتأمل في مصالحه ومفاسده" په خاتمه باندې غور او فکر کول او ددې په مصلحت او مفاسدو کښې غور وفکر کول

② فَإِنْ رَأَيْتَ فِي عَاقِبَتِهِ خَيْرًا: "أي نفعًا دنيويًا أو أخرويًا" که ددې نفع دنیاوی وی او که دینی وی مطلب دا دې چه د هر کار د شروع کولو نه مخکې ددې په خاتمه باندې سوچ او فکر کول پکار دی، نو که په خاتمه کښې څه دینی یا دنیاوی خرابی وی نو دا کار مه شروع کوی او که شروع کړی دې وی نو پریږدئی.

**[۵۰۵۸] دَ آخرت په اعمالو کښې تاخير مه کوئ**

۵۰۵۸ —()[۲] [۱] وَعَنْ مُصْعَبِ بْنِ سَعْدٍ عَنْ أَبِيهِ، [۲] قَالَ الْأَعْمَشُ. لَا أَعْلَمُهُ إِلَّا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [۳] قَالَ: "«التُّؤَدَةُ فِي كُلِّ شَيْءٍ خَيْرٌ [۴] إِلَّا فِي عَمَلِ الْآخِرَةِ»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت مصعب ابن سعد رحمه الله د خپل پلار (حضرت سعد رضي الله عنه) نه روایت نقل کړي دی [۲] دهغه باره کې (د حدیث راوي) حضرت اعمش وایي زه نه پوهیږم چې داحدیث حضرت سعد رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه نقل کړی دی او هغه داسې دی [۳] چې حضور ﷺ وفرمایل، توقف او تاخیر په هرعمل کې ښه دی، خو د آخرت په عمل کې نه (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① التُّؤَدَةُ: تاخیر او توقف کول

**تسهیلات:**

**قوله:** التُّؤَدَةُ فِي كُلِّ شَيْءٍ خَيْرٌ:

**د لفظ التؤده تحقیق:** اَلتُّؤَدَةُ: ملاعلی قاری رحمه الله لیکلی دی چه په دې لفظ کښې په تاء باندې ضمه ده او همزه باندې فتحه ده تاخیر اوتوقف ته وائی لکه څنګه چه اناة دی دغه شان تؤدة دي. مطلب دا چه په هرکارکښې تاخیراوتوقف بهتردې لیکن دآخرت په کارکښې ښه نه دي څکه چه دَ هرراتلونکی وخت دپاره دَهغی مناسب څه کاروی لهذا

[۲]) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأدب/باب في الرفق (رقم-۴۸۱۰)

ددغه نیك كارنه به پاتې شي نوتـادي كوئى قـرآن كـنبې دي چـه (فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرَاتِ) اسورة البقرة: ۱۴۸ا په نیکئى کنبې تادي كوئى

## [٥٠٥٩] بعضې اعمال د نبوت د څلورویشتمې حصې نه یوه حصه ده

٥٠٥٠-()(٧) [١] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ سَرْجِسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "[٢] «السَّمْتُ الْحَسَنُ وَالتُّؤَدَةُ وَالِاقْتِصَادُ [٣] جُزْءٌ مِنْ أَرْبَعٍ وَعِشْرِينَ جُزْءًا مِنَ النُّبُوَّةِ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه**: [١] د حـضرت عبـد الله ابـن سـرجس ﷛ نـه روایـت دی، چـې رسـول الله ﷺ وفرمایل. [٢] ښه خوئ، په یو کارکي آهستګي او غور وفکر د پاره تاخیر کول. او میانه روی [٣] هغه خوبیاني دي چې د نبوت د څلورویشتو اجزاوو نه یو جزء دی (ترمذي).

**حل اللغات**: - ① السَّمْتُ: ښه اخلاق، ښه عادات. ② التُّؤَدَةُ: تاخیر او توقف کول ③ الِاقْتِصَادُ. میـنـه روی کول.

**تسهیلات**:

**قوله**: وَالِاقْتِصَادُ جُزْءٌ مِنْ أَرْبَعٍ وَعِشْرِينَ جُزْءًا مِنَ النُّبُوَّةِ:

**د اقتصاد نه څه مراد دی**: الاقتصاد په خرچ کولو کـنبې میانه روی کولوته اقتصاد وانی لیکن دلته په هرڅیز کنبې اقتصاد اومیانه روی مراد ده. یعنی اعمالو، افعالو، اقوالو، عباداتو، اخلاقیاتو، خرچ او اخراجاتو غرض په ټولو احوالوکـنبې میانه روی اختیارول ښه خصلت دي چه سړې دَ ظلم اسراف، تجاوز اوبغاوت نه محفوظ پاتې شي افراط اوتفریط یعنی کمې زیاتې په یوڅیزکنبې هم ښه نه دې.

**قوله**: جُزْءٌ مِنْ أَرْبَعٍ وَعِشْرِينَ جُزْءًا مِنَ النُّبُوَّةِ: داهم ممکن دی چه ذکرشوی دریواړه څیزونه یوځائی کیدوسره دَ نبوت دَ ۲۴ اجزاؤ نه دَیـوجزء درجه لری اوداهم ممکن دی چه دَهریوڅیزدَ ۲۴ اجزاء نه یوجزء وی. دَدې جمله مطلب دادې چه دا څیزونه دَ انبیاء کرامو دَ مبارك عاداتو نه وو اودادَ هغوی فضائل کنبې داخل وو تاسو له هم پکاردی چه تاسو دَ انبیاء کرامو په دې څیزونو اوفضائلو کنبې تابعداری او اقتداء اوکړئی دَدې حدیث دامطلب نه دې چه په چاکنبې داخصلتونه راغلـه نوهغه نبی جوړشو ځکه چه نبوت متجزی نه وی.

باقی دَ ۲۴ چه کوم عدد بیان کړې شوې دې دادَ تکثیردَپاره دې دَ تحدیددَپاره نه دې چنانچه په بل روایت کنبې دَ ۲۵ عدد ذکردې یا داسې اوګڼئی چه دَعدد بیانول دَ شارع ﷺ په علم اوحکمت باندې موقوف دې مونږ نه په دې کنبې څه دخل کولې شو او نه څه رائې قائمولې شو.

(۱) اخرجه الترمذی فی کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی التأنی والعجلة (رقم-۲۰۱۰)

[۵۰۶۰] بعضي اعمال د نبوت د پنځويشتمې حصې نه يوه حصه ده

۵۰۶۰-(¹) [۸] [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا- أَنَّ نَبِيَّ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: "[۲] «إِنَّ الْهَدْيَ الصَّالِحَ وَالسَّمْتَ الصَّالِحَ وَالِاقْتِصَادَ [۳] جُزْءٌ مِنْ خَمْسٍ وَعِشْرِينَ جُزْءًا مِنَ النُّبُوَّةِ»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**: [۱] او د حضرت ابن عباس ﷠ نه روايت دى، چې رسول الله ﷺ وفرمايل. [۲] نيک سيرت، ښه خوئ او ميانه روى [۳] هغه خوبياني دي چې د نبوت د پنځويشتو اجزاء وو نه يو جزء وي (ابوداؤد)

**حل اللغات**: - ① الْهَدْيَ الصَّالِحَ: نيك سيرت، ② السَّمْتَ: ښه اخلاق. ښه عادات. ③ الِاقْتِصَادَ: مينه روى کول.

**تسهيلات**:

**قوله**: إِنَّ الْهَدْيَ الصَّالِحَ وَالسَّمْتَ الصَّالِحَ:

**هدي صالح او سمت صالح کښې فرق**: د هدى تعلق د انسان د باطنى احوالو سره دې نو ددې وجهې نه ددې ترجمه په نيک سيرت سره کيږى کوم ته چه نيک خوبى هم وئيلى کيږى او د سمت تعلق د انسان د ظاهرى احوالو او کردار سره دې ددې وجهې نه ددې ترجمه په نيکې طريقې سره کيږى او دې ته نيک عادت (چلن) هم وئيلې کيږى

**سوال**: په دې حديث کښې پنځويشت خوبيانى بيان شوى دى او په ماقبل حديث کښې شلورويشت خوبيانى بيان کړې شوى دى، نو په ظاهره تعارض دې؟

**جوابات**: ① بعضى حضراتو فرمائيلى دى چه په دې احاديثو کښې تفاوت او فرق د کوم راوى په وهم او خطا کښې مبتلا کيدلو په بناء باندې راغلې دې.

② نبى کريم ﷺ په يو موقع باندې شلورويشت ذکر کړى وو او په بله موقع باندې ئې پنځويشت ذکر کړى وو ③ بنى کريم ﷺ اول دا فرمائيلى وو چه دا خوبيانې د نبوت د شلورويشت حصو نه يوه حصه ده بيا نبى کريم ﷺ د مهربانى په توګه يوه حصه بله هم زياته کړه او وفرمائيل چه دا خوبيانې د نبوت د پنځويشت حصو نه يوه حصه ده

[۵۰۶۱] د راز خبره هم امانت دې

۵۰۶۱-(²) [۹] [۱] وَعَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: "[۲] «إِذَا حَدَّثَ الرَّجُلُ الْحَدِيثَ ثُمَّ الْتَفَتَ، [۳] فَهِيَ أَمَانَةٌ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت جابر ابن عبد الله ﷛ د نبي کريم ﷺ نه روايت کوي [۲] حضور ﷺ

---

¹) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الأدب/باب فى الوقار (رقم-۴۷۷۶) واحمد فى المسند: ۲۹۶/۱

²) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الأدب/باب فى نقل الحديث (رقم-۴۸۶۸) والترمذى فى كتاب البر والصلة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء أن المجالس أمانة (رقم-۱۹۵۹) واحمد فى المسند: ۳۷۹/۳

وفرمايل، هركله چې يوسړی څه داسې خبره وکړي (چې هغه پټه ساتل غواړي) او بيا هغه پاسې [۲] نو د هغه خبره امانت ده. (ترمذي، ابوداود)

**حل اللغات:** - ① حَدَّثَ: خبره اوکړی، ② اِلتَفَتَ: اخوا ديخوا اوگوری.

**تسهيلات:**

**قوله: إِذَا حَدَّثَ الرَّجُلُ الْحَدِيثَ ثُمَّ الْتَفَتَ، فَهِيَ أَمَانَةٌ:**

**دمذكوره جملې مطلب:** كوم كس بل كس ته داسې خبره وكړى كومه چه هغه پټه ساتل غواړى نو اوريدنكى له پكار دى چه هغه خبره بل كس ته ونكړى بلكه ځان سره دې پټه اوساتى او امانت دې اوګنړى، لكه څنګه چه د امانت حفاظت ضرورى دې نو هم دغه شان ددې حفاظت هم ضرورى دې.

**[۵۰۶۳] چانه چه مشوره واخستې شى هغه به هم امانت داروى**

۵۰۶۳-()[۱۰] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - [۲] «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ لِأَبِي الْهَيْثَمِ بْنِ التَّيِّهَانِ: "[۳] هَلْ لَكَ خَادِمٌ؟ فَقَالَ: لَا. [۴] قَالَ: "فَإِذَا أَتَانَا سَبْيٌ فَأْتِنَا. [۵] فَأُتِيَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِرَأْسَيْنِ، [۶] فَأَتَاهُ أَبُو الْهَيْثَمِ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اخْتَرْ مِنْهُمَا. [۷] فَقَالَ: يَا نَبِيَّ اللَّهِ! اخْتَرْ لِي [۸] فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ الْمُسْتَشَارَ مُؤْتَمَنٌ. [۹] خُذْ هَذَا فَإِنِّي رَأَيْتُهُ يُصَلِّي، [۱۰] وَاسْتَوْصِ بِهِ مَعْرُوفًا» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دى [۲] چې يوه ورځ رسول الله ﷺ يوصحابي حضرت ابو الهيثم ابن تيهان رضي الله عنه نه پوښتنه وكړه، [۳] آيا ستا څوك خادم شته. هغه عرض وكړو يا. [۴] حضور ﷺ ورته وفرمايل، هركله چې مونږ ته د يوځاى نه غلامان راشي نو ته راسه (زه به تاته يوغلام دركړم) [۵] نو څه موده وروسته چې رسول الله ﷺ ته دوه غلامان راوستل شوه، [۶] نو ابوالهيثم رضي الله عنه د حضور ﷺ په خدمت كې حاضرشو. رسول الله ﷺ هغه ته وفرمايل دا دوه غلامان دي، په دې دواړو كښې يو ځان د پاره خوښ كړه. [۷] ابوالهيثم رضي الله عنه عرض وكړو، يانبي الله، تاسو زما د پاره يو غلام خوښ كړي [۸] حضور ﷺ وفرمايل، كوم سړي نه چې مشوره واخستل شي هغه ته آمين كيدل پكار دى، (يعني مشيرته پكار دى چې دمشوره غوښتونكى د خير ښيګڼي بهرصورت لحاظ وساتي، او هغه مشوره وركړي، كومه چې د هغه په حق كې ښه وي) ګويا حضور ﷺ د دې ارشاد په ذريعه ابوالهيثم رضي الله عنه باندې واضحه كړه، چې هركله تا د انتخاب حق ماته وسپارى او زما نه مشوره غواړي نو زه تاته هغه غلام دركوم كوم چې ستا د پاره ښه او

[۱]) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الأدب/باب فى المشورة (رقم-۵۱۲۸) والترمذى فى كتاب الزهد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى معيشة أصحاب النبى صلى الله عليه وسلم (رقم-۲۳۶۹) وابن ماجه فى كتاب الأدب/باب المستشار مؤتمن (رقم-۳۷٤۵) واحمد فى المسند: ٤/۱۷۲

مناسب دی، ځکه [۹] حضور ﷺ په هغه دوو غلامانو کې يو غلام طرف ته اشاره کولو سره وفرمايل، چې دا غلام د ځان سره بوځه، ځکه چې دی ما په مونځ کولو ليدلی دی. (يعني دا غلام مونځ گذار او ديندار دی، ځکه ستا په حق کې به ډير ښه وي.[۱۰] او د ده سره نيك سلوك او خير ښيگڼه اختيارولو کې ځما په وصيت هميشه عمل کوه (ترمذي)

**حل اللغات**: - ① اَلْمُسْتَشَارُ. مُشير. يعنی دچا نه چه مشوره واخستلې شی ② مُؤْتَمَنٌ: امانتدار. ③ اِسْتَوْصِ: زما وصيت پوره کړه.

**تسهيلات**:

**قوله** . إِنَّ الْمُسْتَشَارَ مُؤْتَمَنٌ:

**په مشوره کښې امانت**: نبی کريم ﷺ د مشورې په باره کښې د هميشه دپاره يوه قاعده ارشاد اوفرمائيله چه مشوره غوښتونکی ته دې خلاف مصلحت مشوره ورنکړې شی او خلاف مصلحت مشوره ورکول خيانت دې اگرچه مشوره غوښتونکې مخالف هم ولی نه وی

**قوله**: خُذْ هٰذَا فَإِنِّي رَأَيْتُهُ يُصَلِّي:

**مونځ د ظاهری نيکۍ علامت**: يعنی کار کولو دپاره دې مسلمان مونځ کونکې ملازم وساتلې شی. مونځ کونکې سړې متقی او پرهيزگار وی او مونځ نه کونکې چه د الله تعالی نه نه ويريږی نو هغه به بنده نه او د بنده حق خوړلو نه څه ويريږی.

**قوله**: وَاسْتَوْصِ بِهِ مَعْرُوفًا:

**غلامانوسره ښه سلوک کولو حکم**: حضرت ابو الهيثم ﷺ دا غلام کور ته راوستو او خپلې ښځې ته ئې اوفرمائيل چه نبی کريم ﷺ ما ته دا غلام را کړې دې او دی سره ئې د ښه سلوک او خيگړې نصيحت کړې دې نو هغوی ښځې اوفرمائيل چه په دې نصيحت باندې به مونږ پورا عمل ونکړې شو. نو دی غلام سره ښه سلوک او خيگړه دا ده چه دا غلام مونږ آزاد کړو

**[۵۰۶۳] دا درې خبرې ښکاره کول د امانت دارۍ خلاف نه دی**

۵۰۶۳-(۱) [۱۱] [۱] وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[۲] «الْمَجَالِسُ بِالْأَمَانَةِ إِلَّا ثَلَاثَةَ مَجَالِسَ: [۳] سَفْكُ دَمٍ حَرَامٍ، أَوْ فَرْجٌ حَرَامٌ، أَوِ اقْتِطَاعُ مَالٍ بِغَيْرِ حَقٍّ» ". [۴] رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ. وَذُكِرَ حَدِيثُ أَبِي سَعِيدٍ: "إِنَّ أَعْظَمَ الْأَمَانَةِ" فِي "بَابِ الْمُبَاشَرَةِ" فِي "الْفَصْلِ الْأَوَّلِ".

**ترجمه**: [۱] او حضرت جابر ﷺ وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل، [۲] مجلسونه د امانت سره وابسته دي (يعني په يو مجلس کې که داسې خبره واوريدل شي چې د هغه خورول

[۱] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب/باب فی نقل (رقم-٤٨٦٩) والترمذی فی کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء أن المجالس أمانة (رقم-١٩٥٩) واحمد فی المسند:٣٤٢/٣

مناسب نه وي، نو د هغه خبري حفاظت كوئ. يعنى مه هغه چيرته نقل كوئ. او مه چاته د هغه چغل خوري كوئ) البته دري مجلسونه يعنى دري ځيزونه داسې دي چې د هغه باره كې چيرته څه خبره وشي نو نوروته د هغه رسول ضروري دى، (اګركه ويونكى هغه خبروته اهم راز اووائي) [٣] او هغه دري مجلسونه دادى، ١ كوم خون چې ناحق بهول حرام دى هغه بهبوي، يعنى د چا د ناحق قتلولو د مشوري او ارادي خبره. ٢ حرام كاري يعنى د زنا كولو د مشوري او ارادي خبره. ٣ د چا مال په ناحقه د اخستو د مشوري او ارادي خبره [٣] (ابوداؤد) او د حضرت ابوسعيد رضي الله عنه دا روايت (انّ أعظم الأمانة) باب المباشرة مخكنى فصل كې ذكر شوى دى.

**حل اللغات:** - ① سَفْكُ: تويول، بهيول. ② اقْتِطَاعُ: په زوره اخستل.

**تسهيلات:**

**قوله:** الْمَجَالِسُ بِالْأَمَانَةِ:

**درې خبرې په راز كښې ساتل جائز نه دى:** يعنى دَمجالسو دارومدار په امانت اوديانت باندې دې دا دَ هغه وخت خبره ده چه دَ مجلس خبره هم دَ مجلس دَ حدپورې محدودنه وى نودَ مجلس خبره بهرويستلې شى.اوكه چرې په مجلس كښې دَ راز هم څه خبره وى لېكن هغه په درې قسم خبرو كښې وى نوهغه په راز كښې ساتل جائز نه دى بلكه ښكاره كول ضرورى دى.اول خبره دا ده چه په مجلس كښې دَ چا دَ ناحق قتل خبره شوې وى نودا راز ښكاره كول ضرورى دى.دويمه خبره دا چه په يومجلس كښې دَ څه زناكارئى منصوبه جوړولې شي نودا راز ښكاره كول ضرورى دى.دريمه خبره دا چه په يومجلس كښې دَ چا مال په ناجائز طريقه دَ خوړلو خبره كيږى نودا راز ښكاره كول جائز بلكه ضرورى دى

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[٥٠٦٣] دالله تعالى د حكم وړاندې د عقل تابعدارى**

٥٠٦٣-(١) [١٢] [١] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: " [٢] «لَمَّا خَلَقَ اللَّهُ الْعَقْلَ قَالَ لَهُ: قُمْ فَقَامَ، [٣] ثُمَّ قَالَ لَهُ: أَدْبِرْ فَأَدْبَرَ، [٤] ثُمَّ قَالَ لَهُ: أَقْبِلْ فَأَقْبَلَ، ثُمَّ قَالَ لَهُ: اقْعُدْ فَقَعَدَ، [٥] ثُمَّ قَالَ: مَا خَلَقْتُ خَلْقًا هُوَ خَيْرٌ مِنْكَ وَلَا أَفْضَلُ مِنْكَ وَلَا أَحْسَنُ مِنْكَ، [٦] بِكَ آخُذُ، وَبِكَ أُعْطِي، [٧] وَبِكَ أُعْرَفُ، وَبِكَ أُعَاتِبُ، وَبِكَ الثَّوَابُ، وَعَلَيْكَ الْعِقَابُ» ". وَقَدْ تَكَلَّمَ فِيهِ بَعْضُ الْعُلَمَاءِ.

**ترجمه:** [١] حضرت ابوهريره رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه روايت كوي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل، [٢] هركله چې الله ﷻ عقل پيدا كې، نو هغه ته يې وفرمايل، ودريږه نوهغه ودريدلو [٣] بيايي ورته اوويل شا وګرځوه، نو هغه شا وګرځوله، بيايې ورته وفرمايل زما

١) اخرجه البيهقي في شعب الايمان رقم الحديث ٤٦٣٣

طرف ته مخ کړه، نو هغه د الله طرف ته مخ کی، [۳] بیایي ورته وفرمایل، کینه نو هغه کینا ستی، [۵] بیایي ورته وفرمایل ماهیڅ مخلوق داسې نه دی پیدا کړی، چې ستا نه ښه وي، په فضل او کمال کې ستا نه زیات وي، او په خوبیانو کې ستا نه ښه وي، [٦] ستا سبب سره د بنده ګانو مؤاخذه کوم (یعني ستا د راهنمایي په ذریعه بنده ګان زما په باره کې کوتاهي کوي او ځما نافرماني کوی، نو هغوی ځما په غضب کې مبتلاکیدلو سره زما د انعاماتو نه محرومیږي، زه ستا په سبب بنده ګانو ته ثواب او درجات ورکوم، یاداچې کوم بنده ته نعمت ورکوم، ستا په واسطه یې ورکوم، چې چا ستا د پاره محنت او مشقت اختیار کی، هغه د اجر او انعام مستحق ګرځوم، [۷] زه ستا په سبب پیژندی شم، زه ستا په سبب غضبناك کېږم، [۸] ستا په سبب ثواب ورکوم، ستا په سبب عذاب ورکوم.

(حاصل داچې دي دنیا او آخرت کې د انسان احکام خداوندي مکلف او مخاطب جوړیدل د الله د رضا او خوشنودي او د هغه د فیض وغضب مورد جوړیدل او د ثواب او عذاب مستحق ګرځیدل، د دې ټولو مدار عقل باندې دی) بعضې علماء د دې حدیث په صحیح کیدو کې کلام کړی دی، او ویلي یې دي چې داحدیث موضوعي دی.

**حل اللغات:** - ① أَدْبِرْ: شا اوګرځوه، ② أَقْبِلْ: مخ راواړوه، ③ أُعْطِي: ورکوم (ثواب)، ④ أُعَاقِبُ: سزا ورکوم.

**تسهیلات:**

**قوله: وَقَدْ تَكَلَّمَ فِيهِ بَعْضُ الْعُلَمَاءِ:**

**دمذکوره حدیث باره کښې د محدثینو اقوال:**

① دَ صاحب مشکوة دَ طرزکلام نه معلومیږی چه زیر بحث حدیث ضعیف دې موضوع نه دې

② علامه سخاوی په مقاصد حسنه کښې لیکلی دی چه داحدیث په اتفاق سره کذب او موضوع دې

③ ابوجعفر عقیلی رحمه الله ابوحاتم، دارقطنی او ابن جوزی دا حدیث موضوع او کذب ګرخولې دې

④ شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمه الله دَدې حدیث متعلق لیکلی دی چه "هوکذب موضوع عنداهل المعرفة بالحدیث".

⑤ علامه محمدبن یعقوب فیروزآبادی خپل کتاب المختصر کښې دې حدیث ته ضعیف وئیلې دې

**نوټ:** دَ صاحب مشکوة په ټول کتاب کښې همدغه یوحدیث موضوع دې.

**[۵۰۶۵] دَ قیامت په ورځ به بدله دَعقل مطابق ملاویږي**

۵۰۶۵-(¹)[۱۳] [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ-رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[۲] إِنَّ «الرَّجُلَ يَكُونُ مِنْ أَهْلِ الصَّلَاةِ وَالصَّوْمِ وَالزَّكَاةِ وَالْحَجِّ وَالْعُمْرَةِ". [۳] حَتَّى ذَكَرَ سِهَامَ الْخَيْرِ كُلَّهَا: "[۴] وَمَا يُجْزَى يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِلَّا بِقَدْرِ عَقْلِهِ»".

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عمر رضي الله عنهما وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل.[۲] يو سړي چې د مونځ کونکو نه وي، روژه ساتونکو نه وي، زکوة ورکونکو نه وي، حج او عمره کونکو نه وي، [۳] تردې چې حضور ﷺ دغه شان د نیکي او بدي متعلق د ټولو لویو لویو څیزونو ذکر وکی، [۴] نو وي فرمایل چې هغه ته به د خپل عقل مطابق جزا ورکول کېږي

**حل اللغات:**- ① سِهَامَ: د سهم جمع ده، حصې یعنی اقسام.

**تسهیلات: قوله: وَمَا يُجْزَى يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِلَّا بِقَدْرِ عَقْلِهِ:**

**دانسانی عقل عظمت:** دَ عقل نه مراد هغه اعلی جوهردې دکوم په ذریعه چه انسان دَ اسبابو اوڅیزونو په حقیقت باندې پوهیږي اودَ کوم په وجه چه انسان دَانسانیت په دائره کښې اوسیږي.لکه چه دادَ انسان دَپاره دګاډی دَ بریک په شان دې که چرې دا فیل شي نوانساني وجود بې قابو کیږي.اوس چه په کوم سړی کښې دَ عقل جوهرڅومره کامل اومکمل وی هم هغه هومره به دَ هغه کار اوچت او اعلی وی.

**دعقل په بنیاد د جزاء اوسزا ورکولو وجه:** هم دَدې په وجه په دې حدیث کښې اوفرمائیلې شو چه په کوم سړی کښې چه څومره عقل وی هغه ته به دَهغې مطابق بدله ورکولې شی.ځکه چه دَ الله تعالی دَ طرف نه انعام اواکرام به دَ قیامت په ورځ دَ عباداتودَ مقدار په وجه نه وی بلکه دَعبادت دَ حسن اودکمال دَ وجې نه به وی.اودا خبره واضح ده چه په عباداتو اوطاعاتو کښې دَحسن اوکمال مدار هم په دې عقل باندې دې په دې وجه اوفرمائیلې شو چه دَقیامت په ورځ به جزا اوسزا دَعقل په بنیاد باندې ورکولې شی

**[۵۰۶۶] عقل دَتدبیر برابر نه دې**

۵۰۶۶-(²)[۱۴] [۱] وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ-رَضِيَ اللهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ لِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[۲] «يَا أَبَا ذَرٍّ! لَا عَقْلَ كَالتَّدْبِيرِ [۳] وَلَا وَرَعَ كَالْكَفِّ، [۴] وَلَا حَسَبَ كَحُسْنِ الْخُلُقِ»".

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوذر رضي الله عنه وايي، چې رسول الله ﷺ ماته وفرمايل.[۲] اې ابوذره رضي الله عنه! پوه سه، چې عقل د تدبیر برابر نه دی، [۳] ورع یعنی پرهیزګاري د احتیاط برابره نه ده، [۴] او حسب او فضیلت د خوش اخلاقي برابره نه ده.

---

(¹) اخرجه البیهقی فی شعب الایمان رقم الحدیث ۴۶۳۷

(²) اخرجه ابن ماجه فی السنن کتاب الزهد/باب الورع والتقوی (رقم-۴۲۱۸)

**حل اللغات:** - ① التَّدْبِيرِ: غور اوفکر، انجام باندې نظر ساتل، ② وَرَعَ: تقوی، ③ الْكَفِّ: پرهیز

**تسهیلات:**

**قوله:** لَا عَقْلَ كَالتَّدْبِيرِ:

**تدبیر د عقل نتیجه:** په انجام باندې غور اوفکر کول تدبیر دې لهذا اعلی او اولی عقل هم تدبیر دې په دې وجه اوفرمائیلې شو چه دَ بهتر تدبیر په شان هیڅ یو عقل نه دې هم تدبیر یو بهترین عقل دې

**قوله:** وَلَا وَرَعَ كَالْكَفِّ:

**دمذکوره جملې په مهفوم کښې دوه اقوال:** ① کوم سړې چې خلقوته دَ تکلیف رسولوڅخه خان ساتی دَهغه په شان دَ چاتقوی نه شی کیدې دا اعلی تقوی ده دا مفهوم نبه معلومیږی څکه چې ډیر خلق مونځونه روژې وغیره عبادات ښه په کثرت سره کوی لیکن بل طرف ته د حقوق العباد خیال نه ساتی بندګانوته تکلیف ورکوی دهغوی حقوق غصب کوی خودا ورته ګناه هم نه ښکاری الله تعالی دې زمونږ په حالت باندې رحم اوکړی

② دَ پرهیز په شان څه تقوی نشته دې تقوی خودَمحرماتو نه دَ بچ کیدلو اوظاهراً اوباطنًا خپله معامله خپل رب سره دَ صفاساتلونوم دې نوچه کوم سړې په هره لمحه کښې خپل خان دَ هرناجائزنه بچ کوی دَ هغې نه زیاته تقوی څه کیدې شی؟ یوسړې عبادت کوی خو ورسره دګناه ارتکاب هم کوی نودې دَ تقوی مقام ته چرته رسیدې شی لیکن چه کوم سړې عبادت سره دګناهونونه پرهیز کوی اصل متقی خوهم دغه دې دَدې مثال داسې دې چه یو سړې دوائی خوری لیکن دې نه پس پرهیزنه کوی بلکه بدپرهیزی کوی نوده ته دوائی فائده نه شی ورکولې

**قوله:** وَلَا حَسَبَ كَحُسْنِ الْخُلُقِ: دَ حسب نسب مطلب هم دغه دې چه سړې دَاعلی خاندان سره تعلق لری اود اعلی خاندان خلق دَ اوچتو اخلاقو مالکان وی څکه چه هغوی شریفان وی نتیجه دا راؤوتله چه دَخو اخلاقو مالك کیدل دَدې خبرې دلیل دې چه دَدې سړی تعلق د اعلی خاندان سره دې په دې وجه اوفرمائیلې شو چه دَ خو اخلاقو په شان هیڅ حسب نسب نه شی کیدې

**[۵۰٦٤] په خرچ کښې میانه روی دَژوند نیمه سرمایه ده**

۵۰٦٤—(¹) [۱۵] ① وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " ② «الِاقْتِصَادُ فِي النَّفَقَةِ نِصْفُ الْمَعِيشَةِ، ③ وَالتَّوَدُّدُ إِلَى النَّاسِ نِصْفُ الْعَقْلِ، ④ وَحُسْنُ السُّؤَالِ نِصْفُ الْعِلْمِ» " ⑤ رَوَى الْبَيْهَقِيُّ الْأَحَادِيثَ الْأَرْبَعَةَ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ".

---

¹) اخرجه البیهقی فی شعب الایمان رقم الحدیث ۶۵۶۸

**ترجمه** : [۱] او حضرت ابن عمر رضی الله عنهما وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل. [۲] په اخراجاتو کې ميانه روی اختيارول نيم معيشت دی. [۳] د انسانانو سره دوستي نيم عقل دی. [۴] او په خوبي سره سوال کول نيم علم دی. [۵] داخلور روايتونه بيهقي رحمه الله په شعب الايمان کې نقل کړی دی

**حل اللغات** :- ① الاِقْتِصَادُ: ميانه روی، اعتدال. ② النَّفَقَةِ: خرچه. ③ الْمَعِيشَةِ: معيشت او ګذران. ④ التَّوَدُّدُ: تعلقات ساتل، دوستی کول. ⑤ الْعَقْلِ: دانشمندی، هوښيارتوب

**تسهيلات:**

**قوله : الاِقْتِصَادُ فِي النَّفَقَةِ نِصْفُ الْمَعِيشَةِ:**

**د نصف المعيشه کيدلو وجه** : يعنی په خرچ کښې ميانه روی اختيارول نصف معيشت او نيم ګزران دې دَ انسان دَمعاشی ژوند مدار په دوو څيزونو دې يودَ هغه ګټه ده اوبل دَهغه خرچ دې. په دې دواړو کښې توازن په ځائی ساتل دَ خوشحالئی علامت او دَمعيشت استحکام دې لهذا لکه څنګه چه دَ ګټې توازن اورانيدل دَخوشحالئی منافی او دَمعيشت دَعدم استحکام سبب دې دغه شان چه دَ اخراجاتو توازن وران شي نوخوشحالی به هم ځی اودَ معيشت ټوله ډهانچه به تباه بربادشی لهذا په مصارفو کښې اعتدال اوخرچ کولو کښې ميانه روی اختيارول دَمعيشت نيمه حصه ده لکه چه دَدې حديث نه معلومه شوه.

**قوله : وَالتَّوَدُّدُ إِلَى النَّاسِ نِصْفُ الْعَقْلِ**: يعنی خوخلقو سره تعلقات ساتل هغوی سره دوستی کول دادَعقل نيمه حصه ده کوم چه دَ حسن معاشرت ضامن دې. لکه چه پوره عقل دادې چه انسان په جائز طريقه سره محنت اوکړی پخپله ګټه اوکړی او خلقو سره دَمحبت جذبات هم قائم کړی.

**قوله : وَحُسْنُ السُّؤَالِ نِصْفُ الْعِلْمِ:**

**د حسن السؤال نيم علم کيدلو وجه** : يعنی ښه سوال نيم علم دې ځکه چه نيم علم دَ ښه سائل په سوال کولو سره راغلو اونيم علم دَ جواب ورکونکی په جواب کښې راغلو. لهذا په طريقې سره سوال کول دَ علم دَ زياتی سبب دې کوم چه نصف علم دې دَښه سوال چه ښه جواب راشی نودَ سائل نصف علم به په جواب سره پوره شی اودَ مسؤل نصف علم به دَ سائل په سوال سره پوره شی. نوښه سوال دَ سائل اومسؤل دواړو دَ پاره نصف علم دې.

# [۱۹] بَابُ الرِّفْقِ وَالْحَيَاءِ وَحُسْنِ الْخُلُقِ

## دَ نرملی او حیاء او خوا اخلاقو بیان

**خلاصة الباب**

**فيه ثلاثون حديثاً مشتملة على اربع مسائل:**

① فضيلة الرفق: ۱، ۲، ۹، ۱۶، ۱۸، ۲۰، ۲۹، ۳۰.

② فضيلة الحياء: ۳، ۴، ۵، ۱۰، ۲۱، ۲۲.

③ فضيلة حسن الخُلق: ۶، ۷، ۸، ۱۱، ۱۳، ۱۴، ۱۵، ۱۷، ۲۳، ۲۴، ۲۵، ۲۶، ۲۷، ۲۸.

④ قباحة سوء الخلق: ۱۲.

**قوله:** بَابُ الرِّفْقِ:

**د رفق مفهوم:** نرمئی ته وائی چه دَ "عُنف" او دَ سختئی ضد دې. عاجزی او انکساری اختیارول او دَ خپلو ملګرو دَپاره مهربان او نرم خوئی کیدل رفق دې.

**قوله:** وَالْحَيَاءِ:

**نوټ:** دحیاء باره کښې پوره تفصیل د تسهیلات اول جلد حدیث نمبر(۵) په تسهیل کښې تیرشوې دې. خودا بحث ډیر مخکښې تیرشوې دې کیدې هیرشوی وی نودلته ئې دوباره ذکر کوم

**د حیاء دوه غټ قسمونه:** ① حیاءِ ایمانی: ② حیاءِ طبعی:

**دحیاء ایمانی په تعریف کښې درې اقوال:** ① ددې یو تعریف داشان دې: ,, هوخلق یمنع الشخص من الفعل القبيح بسبب الإيمان،، یعنی حیاء دهغه ملکې او خلق نوم دې کوم چې یو کس د ایمان په وجه دَ قبیح فعل څخه منع کوی، لکه بربنډیدل، د خلقو په وړاندې فحش حرکات، زناکول، وغیره وغیره، ددې څیزونو څخه ایمانی شرعی حیاء منع کوی

② دریم تعریف داسې شوې دې ,,الحياء أن لا يراك حيث نهاك،، ددې تعریف پیش نظر حیاء بعینه د احسان مقام دې. په حدیث حدیث جبریل ﷺ کښې اجمالاً ددې ذکر دې.
③ جنید بغدادی رحمه الله د ایمانی حیاء تعریف داسې کړې دې ,,د الله تعالی دنعمتونو نظاره کولو نه پس خپل تقصیرات او کوتاهیانې کتلو سره چې کوم کیفیت پیدا کیږی هم دا حیاء ده،،

**د حیاء طبعي تعریف:** د حیاء طبعی تعریف داسې شوې دې ,, هو تغير وانكسار يعتري المؤمن

من خوف ما يلام عليه،، مطلب دا دې چې قابل د ملامت كار كولو سره د يو كس اندامونه او بدن باندې انقباض راځي هم دا طبعي حياء ده

**په حديث كښې د حياء مصداق**: په دې حديث كښې چې د كومې حياء ذكر دې هغه ايماني حياء ده طبعي حياء نه ده

**د حياء درې قسمونه**:

① **حياء جنايت**: لكه چې د حضرت آدم عليه السلام حياء وه چې تيښته سر په جنت كښې منډه ګرځيدل. الله تعالى ترې تپوس اوكړو چې ولې منډې وهې؟ وې فرمائيل چې حياء منك يا الله

② حياء حشمت لكه حضرت على ﷺ د مذى متعلق مسئله د حشمت و حجاب په وجه بخپله د حضرت نبى كريم ﷺ څخه اونه پوښتله بلكه د حضرت مقداد ﷺ وغيره په واسطه ئې سوال كړې وو.

③ حياء إجلال چې د جلال په وجه حياء راځي، لكه ..تسربل إسرافيل بجناحيه حياء من الله لإجلاله،، شعب ايمان باندې ډيرو علماء كرامو تصانيف كړى دى

**اشكال**: كه چرته حياء په يو كافر كښې وى نو آيا هغه ته به هم مسلمان وايئى ځكه چه په حديث كښې حياء د ايمان علامت ګرځولې شوې دې؟

**داشكال جواب**: دَحياء معامله دَ باب فتح يفتح په شان دې چه چرته دَ فتح باب وى دَ حرف حلقى كيدل به ضرورى وى مګر دا ضرورى نه دى چه په كوم باب كښې حرف حلقى راشي هغه به دَ فتح يفتح باب وى لكه سمع يسمع كښې حرف حلقى دې ليكن فتح يفتح نه دې هم دغه شان دَمسلمانانو معامله ده چرته چه مسلمان دې هلته به حياء لازم وى ليكن دا ضرورى نه ده چه چرته حياء وى هلته دَ مسلمان كيدل لازم وى

**قوله**: وَحُسْنِ الْخُلُقِ:

**دحسن خلق په تعريف كښې شپږ اقوال**:

دَ اكابرينو دَ طرفه دَحسن خلق په تعريف مختلف اقوال راغلى دى.

① قال الحسن البصرى رحمه الله حسن الخلق بسط الوجه وبذل الندي وكف الأذي.

② وقال اللواسطى رحمه الله هو أن لا يخاصم ولا يخاصم من شدة معرفته بالله

③ وقال ايضا هو ارضاء الخلق فى السراء والضراء

④ وقال سهل رحمه الله أدنى حسن الخلق الاحتمال وترك المكافاة والرحمة للظالم والاستغفار له

⑤ حسن خلق دا دې چه په يو وخت سرې دَ خالق او مخلوق حقوق په ځائې كړى په كوم سره چه خالق هم راضى او مخلوق هم راضى كړى. په نورو الفاظو كښې دَ شريعت احكام په ځائې كول دَ يو مسلمان دَپاره دَ ټولو نه اوچت اخلاق دى.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[٥٠٦٨] د شفقت او مهربانۍ فضیلت**

٥٠٦٨-(١)[١] ١ عَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا- أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: "٢ «إِنَّ اللّٰهَ تَعَالَى رَفِيقٌ يُحِبُّ الرِّفْقَ، ٣ وَيُعْطِي عَلَى الرِّفْقِ مَا لَا يُعْطِي عَلَى الْعُنْفِ، وَمَا لَا يُعْطِي عَلَى مَا سِوَاهُ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: ١ بي بي عائشه رضي الله عنها نه روایت دی، چې رسول الله ﷺ وفرمایل. ٢ بلا شبه الله جل جلاله نرمي کونکي او مهربانه دی، داسې امورو کې نرمي خوښوي (یعني الله جل جلاله خپلو بنده ګانو باندې خپله هم نرم او مهربانه دی، او هغوئ د داسې امورو مکلف نه ګرځوي. چې د هغوئ د قوت برداشت نه بهر وي، او د هغه په وجه هغوئ مشکلاتو کې مبتلا شي او هغه د بنده ګانو نه هم داخبره خوښوي او هغوئ نه راضي کېږي، چې په خپلو کې هم نرمي او مهرباني کوي، او یو بل تکلیف او سختي کې نه مبتلا کوي) ٣ ځکه هغه نرمي او مهرباني باندې هغه شی عطاکوي، کوم چې سختي باندې نه عطاکوي، او کوم چې د نرمي او مهرباني نه علاوه بل شی باندې نه عطا کوي. (مسلم)

**حل اللغات**: - ① رَفِيقٌ: نرمي کونکي، مهربانه، ② الْعُنْفِ: سختي.

١ وَفِي رِوَايَةٍ لَهُ: قَالَ لِعَائِشَةَ: "٢ عَلَيْكِ بِالرِّفْقِ، وَإِيَّاكِ وَالْعُنْفَ وَالْفُحْشَ، ٣ إِنَّ الرِّفْقَ لَا يَكُونُ فِي شَيْءٍ إِلَّا زَانَهُ، وَلَا يُنْزَعُ مِنْ شَيْءٍ إِلَّا شَانَهُ»".

**ترجمه**: ١ او د مسلم په یو روایت کې دا الفاظ دي، چې حضور ﷺ بي بي عائشې رضي الله عنها ته وفرمایل. ٢ ته نرمي اختیار کړه، او د سختي او بي حیایي نه ځان بچ ساته، ٣ ځکه چې په کوم ځیز کې چې نرمي وي، هغه ښائسته وي، ٤ او د کوم ځیز نه چې نرمي ختمه شي. هغه عیب جن کیږي

**حل اللغات**: - ① الْعُنْف: سختی. ② الْفُحْشَ: بدګوئي، بې حیائي. ③ زَانَهُ: ښائسته کوی ئې. ④ يُنْزَعُ: اوخی. ختمه شي. ⑤ شَانَهُ: بدرنګه ئې کری، عیب جن ئې کری.

**تسهیلات**:

**قوله**: إِنَّ اللّٰهَ تَعَالَى رَفِيقٌ يُحِبُّ الرِّفْقَ:

**دالله تعالی نرمی لره خوښول**: په دې حدیث کښې اوخودلې شو چه الله تعالی نرمی خوښوی لکه چه په دې کښې دَ الله تعالی مخلوق ته تعلیم ورکړې شوې دې چه تاسو په

---

[1]) اخرجه مسلم فی کتاب البر والصلة والآداب/باب فضل الرفق (رقم-٧٧ - (٢٥٩٣) وابوداود فی کتاب الأدب/باب فی الرفق (رقم-٤٨٠٧) والترمذی فی کتاب الاستئذان والآداب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی علی أهل الذمة (رقم-٢٧٠١) وابن ماجه فی کتاب الأدب/باب الرفق (رقم-٣٦٨٨) ومالک فی الموطا کتاب الاستئذان/باب ما یؤمر به من العمل فی السفر (رقم-٣٨) واحمد فی المسند: ١٧١/٦

خپل مینځ کښې نرمئی اومهربانئی سره پیش کیږئی په دې سره به ستا سو دنیا او آخرت دواړه جوړشی ځکه چه د ټولو برکتونو تعلق نرمئی اومهربانئی سره دی سختئی او تریخوالی کښې هیڅ هم نشته دې بلکه چه په کوم څیزکښې نرمی او مهربانی وی په هغې کښې به زینت پیدا کیږی سختی اوتریخوالې هرڅیز بدرنګه اوعیب والا جوړولو سره پریږدی په نرمئی سره ناممکن کار ممکن جوړیږی او سختئی سره ممکن کار ناممکن کیږی

**[۵۰۶۹] څوک چې دَ نرمئی نه محروم وی هغه دَ هرخیر نه محروم وی**

۵۰۶۹-(۱)[۲] [۱] وَعَنْ جَرِيرٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [۲] قَالَ: "«مَنْ يُحْرَمِ الرِّفْقَ يُحْرَمِ الْخَيْرَ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت جریر رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه روایت کوي. [۲] چې حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل کوم سړی چې نرمي او مهرباني نه محروم کول کیږي هغه ګویا د نیکي نه محروم کول کیږي. (مسلم)

**حل اللغات**: - ① الرِّفْقَ: نرمی، مهربانی

**تسهیلات:**

**قوله: مَنْ يُحْرَمِ الرِّفْقَ يُحْرَمِ الْخَيْرَ:**

**د نرمۍ نه د محرومتیا نقصان**: په جامع صغیر کښې د "الخیر" سره "کله" لفظ هم ذکر دې نو په دې صورت کښې به د حدیث مطلب دا شی چه کوم کس د نرمی او د مهربانی والا صفت نه خالی او قاصره وی هغه د ټولو خیرونو نه محروم کیږی، هم دغه شان په کوم کس باندې چه الله تعالی مهربانه شی نو هغه زړه نرم کړی او چه کوم کس نه الله تعالی ناراضه شی نو هغه زړه سخت کړی. هم دغه وجه ده چه په سخت زړه باندې وعظ هم اثر نه کوی.

**[۵۰۷۰] حیاء د ایمان یوه حصه ده**

۵۰۷۰-(۲)[۳] [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- [۲] «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- مَرَّ عَلَى رَجُلٍ مِنَ

---

[1] اخرجه مسلم فی كتاب البر والصلة والآداب/باب فضل الرفق (رقم-۷۴ - (۲۵۹۲) وابوداود فی كتاب الأدب/باب فی الرفق (رقم-۴۸۰۹) وابن ماجه فی كتاب الأدب/باب الرفق (رقم-۳۶۸۷)واحمد فی المسند: ۳۶۲/۴

[2] اخرجه البخاری فی كتاب الإيمان/باب: الحياء من الإيمان (رقم-۲۴) ومسلم فی كتاب الإيمان/باب شعب الإيمان (رقم-۵۹ - (۳۶) وابوداود فی كتاب الضحايا/باب ما يستحب من الضحايا(رقم-۲۷۹۵)والترمذی فی كتاب البر والصلة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی العی (رقم-۲۰۲۷) والنسائی فی كتاب الإيمان وشرائعه/باب الحياء (رقم-۵۰۳۳)وابن ماجه فی كتاب فی الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب باب فی الإيمان (رقم-۵۸) ومالك فی الموطا كتاب حسن الخلق /باب ما جاء فی الحياء (رقم-۱۰)واحمد فی المسند: ۱۴۷/۲

الْأَنْصَارِ [۳] وَهُوَ يَعِظُ أَخَاهُ فِي الْحَيَاءِ، فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "[۴] دَعْهُ، فَإِنَّ الْحَيَاءَ مِنَ الْإِيمَانِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت ابن عمر ﷛ نه روايت دی [۲] چې يوه ورځ رسول الله ﷺ يو صحابي ﷛ باندې تيريدی. [۳] چې خپل ورور ته يې د حياء باره کې نصيحت کوی رسول الله ﷺ وفرمايل. [۴] ده ته هيڅ مه وايه. ځکه چې حياء د ايمان يو ښاخ دی (بخاري، مسلم)

**تسهيلات**:

**قوله**: وَهُوَ يَعِظُ أَخَاهُ فِي الْحَيَاءِ:

**د وعظ معنی**: وعظ هغه بيان او نصيحت ته وائی په کوم کښې چه دَ زړه دَ نرمولو خبرې وی په کوم سره چه دَ الله تعالی ويره پيدا کيږی او دَ آخرت ياد تازه کيږی ليکن دلته په حديث کښې دَ وعظ نه ويرول دهرکه کول او عتاب او رټل مراد دی دې صحابی خپل ملګرې دَ حياء نه ويرولو چه که حياء دې او کړه نو هيڅ به هم حاصل نه کړې دَعلم نه به هم محروم پاتې شې او دَ رزق نه به هم محروم پاتې شې نه به دَ دنيا پاتې شې او نه به دَ آخرت شې حضور پاك دغه رټل کونکې منع کړو او وئی فرمائيل داسې مه کوه ځکه چه حياء خود ايمان دَ اجزاؤ نه يو اهم جزء دې دې سره کاميابئی ملاويږی ناکامئی نه ملاويږی

**اسلام د شرم، حياء او عزت درس ورکوی**:

ددې حديث نه معلومه شوه چه اسلام دَ شرم او حياء او عزت او عظمت درس ورکوی چنانچه ددې منونکو کښې دا ځيزونه په ښکاره توګه باندې موجود دی او اسکول کالج د بې حيائئی بداخلاقئی رذالت او قباحت درس ورکوی. چنانچه ددې په حاصلونکو کښې دا ځيزونه ښکاره وی د کالج يو هلك ته په ۱۹۷۴ء کښې ما او وئيل چه څه شرم او حياء خو کوه هغه وئيل ما حياء دَ کالج دَ ډيسك لاندې دفن کړې ده.

چلتے چلتے ایک صاحب یہ نصیحت کر گئے گوشت گر ملتا نہیں تو دال کھایا کیجئے
کالجوں نے آپ کو خچر بنا ڈالا تو آپ ملک کے اصطبل میں ہنہنایا کیجئے

يعنی په لار روان يو صاحب دا نصيحت او کړو چه غوښه نه ملاويږی نو دال هم خوره ځکه چه تاسو خو کالجونو قچر خرجور کړې دې نو ته اوس دَملك دَ اسونو په ځائی کښې هنريږه

**[۵۰۷۱] حياء ټول خير دی**

۵۰۷۱-(۱) [۳] [۱] وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " [۲] «الْحَيَاءُ لَا يَأْتِي إِلَّا بِخَيْرٍ". [۳] وَفِي رِوَايَةٍ: "الْحَيَاءُ خَيْرٌ كُلُّهُ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

(۱) اخرجه البخاری فی کتاب الأدب/باب الحياء (رقم-۶۱۱۷) ومسلم فی کتاب الإيمان/باب شعب الإيمان (رقم-۶۰-(۳۷) واحمد فی المسند: ۴/۴۲۷

**ترجمه:** [۱] او حضرت عمران ابن حصين ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل. [۲] حياء د نيکي او خير نه علاوه بله خبره نه پيدا کوي. [۳] او په يو روايت کې دادی. چې د حياء ټول صورتونه ښه دی (بخاري، مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله:** الْحَيَاءُ لَا يَأْتِي إِلَّا بِخَيْرٍ:

**اشکال:** بعضې وخت د حياء د وجې نه حق خبره کول هم پاتې کيږي امر بالمعروف نه سړې منع کيږي نو څنګه او فرمائيلې شو چه حياء خير راوړي؟

**د اشکال جواب:** هغه خو هډو حياء نه ده چه سړې د حق خبرې کولو نه منع کړي بلکه دا خو بزدلي ده په حديث کښې د حياء د فضيلت بيان دې د بزدلئې نه دې اصل حياء خو هغه ده چه سړې د دغه کارونو نه بچ شي کوم ته چه شريعت بد وئيلې دی شريعت چه کوم امور خوښ کړې دی هغه ټول هم د خير دی. نو په دې حديث کښې د الابخير نه شرعی امور مراد دی

**[۵۰۷۲] کله چه ته بې حيائې نو څه چه غواړې کوه ئې**

(۵۰۷۲)[۵] [۱] وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[۲] «إِنَّ مِمَّا أَدْرَكَ النَّاسُ مِنْ كَلَامِ النُّبُوَّةِ الْأُولَى: [۳] إِذَا لَمْ تَسْتَحْيِ فَاصْنَعْ مَا شِئْتَ»". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن مسعود ﷺ وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل. [۲] خلقو چې مخکنيو انبياء وو باندې نازليدونکی کلام کې کومه خبره پيدا کړي ده، هغه دا ده، [۳] چې هرکله ته بې شرم شې، نو بيا څه چې دې زړه غواړي هغه کوه. (بخاري)

**حل اللغات:** - ① اصْنَعْ: د امر صيغه ده، کوه،

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّ مِمَّا أَدْرَكَ النَّاسُ مِنْ كَلَامِ النُّبُوَّةِ الْأُولَى:

**د انبياء د خبرو يوه نمونه:** په پخوانو انبياء کرامو باندې نازليدونکی کلام کښې چه کومه خبره خلقو ته د ورثه په توګه ملاؤ ده او کومه چه ثابته غيرمنسوخ راروانه ده هغه دا چه کله په تاکښې حياء باقي پاتې نه شی او ته بې شرم شوئې نو بيا چه څه غواړې کوه.

**قوله:** إِذَا لَمْ تَسْتَحْيِ فَاصْنَعْ مَا شِئْتَ:

**د فاصنع په صيغه کښې دوه احتمالات:** ① دا د امر صيغه ده مګر په توګه د توبيخ او تهديد

(۱) اخرجه البخاری فی کتاب الأدب/باب إذا لم تستحی فاصنع ما شئت (رقم-۶۱۲۰) وابوداود فی کتاب الأدب/باب فی الحياء (رقم-۴۷۹۷) وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب الحياء (رقم-۴۱۸۳) واحمد فی المسند: ۱۲۱/۴

ده یعنی چه څه کوي نو کوه لیکن یاد لره چه یو نه یو ورځ به د حساب راخی دهغې دپاره تیار اوسیږه.

② دادَ امر صیغه ده لیکن په دې سره حکم ورکول یادَ یوڅیز طلب کول مراد نه دی بلکه داامر انشاء په معنی دَخبر دې یعنی انسان قابو کونکې او دَ بدو حرکتونو نه منع کونکې څیز حیاء ده چه چا کښې شرم اوحیاء پاتې نه شوه اوبې حیائی طریقه جوړه کړه نوچه هغه څه غواړی کوی دې

**[۵۰۷۳] نیکی او ګناه څه ته والی؟**

٥٠٧٣-()[۱] ① وَعَنِ النَّوَّاسِ بْنِ سَمْعَانَ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-قَالَ: ②«سَأَلْتُ رَسُولَ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-عَنِ الْبِرِّ وَالْإِثْمِ ③ فَقَالَ: "الْبِرُّ حُسْنُ الْخُلُقِ ④ وَالْإِثْمُ مَا حَاكَ فِي صَدْرِكَ ⑤ وَكَرِهْتَ أَنْ يَطَّلِعَ عَلَيْهِ النَّاسُ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: ① او حضرت نواس ﷺ ابن سمعان ﷺ وایي ② چې ما د رسول الله ﷺ نه: نیکي او ګناه باره کې پوښتنه وکړه چې نیکي څه ده او بدي څه ده ③ نو حضور ﷺ وفرمایل نیکي د خوش اخلاقي نوم دی (یعني د نیکي ښه صورت خوش اخلاقي ده) ④ او ګناه هغه کار دی، چې ستا په زړه کې تردد پیدا کړي، ⑤ او ته دا خبره نه خوښوي چې هغه خلق ستا د هغه کار نه خبر شي. (مسلم)

**حل اللغات**: - ① حَاكَ: تیرشی، تردد او شک پیدا شی

**تسهیلات**:

**قوله**: وَالْإِثْمُ مَا حَاكَ فِي صَدْرِكَ:

**د ګناه پیژندلو دوه نښې**: ① یعنی دَ ګناه پیژندګلو داده چه دَدې عمل په کولو سره دَسړی په زړه کښې یوه کرکه او تردد پیدا کیږی چه شاید دادَ ګناه کاردې چه په زړه کښې دې شك وی او تردد وی چه دا څه زه کوم ښه نه دی نوپوهه شه چه دا ګناه ده ② دویمه پیژندګلو ئی داده چه دا کاردَعامو خلقو په مخکښې دَ ښکاره کولو جرات ئی نه وی بلکه دَدې دَ پټولو کوشش کوی.لیکن دا خبره دَ هغه خلقو ده دَچاړه چه دَشیشې په شان صفا وی هغوی ته دا تردد او شك پیدا کیږی ګنی دَ بې دینه خلقو په زړونو کښې دګناه دَ وجې نه هیڅ شك اوتردد نه پیدا کیږی بلکه هغوی ښه په ښکاره جاره باندې ګناه کوی.

[۱] اخرجه مسلم فی كتاب البر والصلة والآداب/باب تفسير البر والإثم (رقم-١٤ - (٢٥٥٣) والترمذی فی كتاب الزهد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی البر والإثم (رقم-٢٣٨٩)واحمد فی المسند: ٤/ ١٨٤

[۵۰۷۳] خوش اخلاقی کونکی حضور پاک ﷺ ته ډیر خوښ دي

۵۰۷۳-(۷) [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو -رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "[۲] «إِنَّ مِنْ أَحَبِّكُمْ إِلَيَّ أَحْسَنَكُمْ أَخْلَاقًا» " رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت عبد الله ابن عمرو رضي الله عنهما وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل. [۲] په تاسو کې هغه سړي ماته ډير خوښ دی کوم چې د نيکو اخلاقو حامل وي (بخاري)

**تسهيلات**:

**قوله**: إِنَّ مِنْ أَحَبِّكُمْ إِلَيَّ أَحْسَنَكُمْ أَخْلَاقًا:

**خوش اخلاقه دنبي عليه السلام په نظر کښې**: مطلب دا دې چه په تاسو کښې ما ته هغه کس ډير زيات نزدې او عزيز او محبوب دې کوم چه د ښه عادت او د نبي طريقې خاوند وی او حقوق الله او حقوق العباد هم په ښه شان پورا کوی.

[۵۰۷۴] غوره سړې هغه دې دچا چې اخلاق ښه وی

۵۰۷۴-(۸) [۱] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[۲] «إِنَّ مِنْ خِيَارِكُمْ أَحْسَنَكُمْ أَخْلَاقًا» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت عبد الله ابن عمرو رضي الله عنهما وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل، [۲] په تاسو کې ښه سړی هغه دی چې د هغه اخلاق ښه وي. (بخاري، مسلم)

**تسهيلات**:

**قوله**: إِنَّ مِنْ خِيَارِكُمْ أَحْسَنَكُمْ أَخْلَاقًا:

**د حسن خلق حقيقت**: په دې باره کښې حضرت حسن رضي الله عنه فرمائی چه حسن الخلق نه مراد دا دی چه مخ فراخ وی (رون تندې) او هيڅ يو کس ته اذيت نه ورکوی، حضرت واسطی رحمه الله فرمائی چه کوم کس ته د الله معرفت حاصل شی نو بيا هغه نه چا سره جهګړه کوی او نه هغه سره څوک جهګړه کوی، او هم دغه شان تنګی او آسانی کښې يعنی په هر حال کښې د الله تعالی نه راضی کيدل هم حسن خلق دی دارنګ **حقيقت الخلق** هغه کيفيت ته وائي کوم چه د يو کس په نفس کښې مضبوط شی چه افعال ترينه په آسانۍ سره صادريږی او که هغه کيفيت داسی وی چه د هغې نه د ښه افعالو صدور کيږی عقلاً هم او

---

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب مناقب عبد الله بن مسعود رضی الله عنه (رقم-۳۷۵۹) والترمذی فی کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی معالی الأخلاق (رقم-۲۰۱۸) واحمد فی المسند: ۱۸۹/۲

[۲] اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب صفة النبی صلی الله عليه وسلم (رقم-۳۵۵۹) ومسلم فی کتاب الفضائل/باب کثرة حيائه صلی الله عليه وسلم (رقم-۶۸ - (۲۳۲۱) والترمذی فی کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی الفحش والتفحش (رقم-۱۹۷۵) واحمد فی المسند: ۱۹۳/۲

شرعاً هم نو دې ته خلق حسن ونيلې كيږي، او كه د قبيح افعالو صدور ترې كيږي نو دې ته بد اخلاق ونيلې كيږي، هم ددې وجهې نه ونيلې كيږي چه فلانكې سړې حسن خلق والا دې او حسن خلق والا هغې كس ته ونيلې كيږي كوم چه د ظاهر او باطن په اعتبار سره ښه وي، د ظاهر ښه كيدلو نه مراد د انسان حسن او جمال دې او د باطن ښه كيدلو نه مراد دا دې چه د انسان بد صفاتو باندې ښه صفات غالب شي نو په حديث الباب كښې د حسن خلق نه مراد هغه حسن خلق دې كوم چه باطني وي (التعليق الصبيح ج٥، ص٢٨٥)

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [٥٠٨٦] دَ نرملى نه محروم سړې دَ دنيا او دآخرت د خير نه محروم دې

٥٠٨٦-()[٩] ① عَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللهُ عنها- قَالَتْ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "② «مَنْ أُعْطِيَ حَظَّهُ مِنَ الرِّفْقِ أُعْطِيَ حَظَّهُ مِنْ خَيْرِ الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ، ③ وَمَنْ حُرِمَ حَظَّهُ مِنَ الرِّفْقِ حُرِمَ حَظَّهُ مِنْ خَيْرِ الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ». رَوَاهُ فِي "شَرْحِ السُّنَّةِ".

**ترجمه**: ① بي بي عائشه رضي الله عنها وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل، ② كوم سړي ته چې د نرمي نه حصه وركول شوه هغه ته ګويا د دنيا او آخرت د ښيګنو نه حصه وركول شوه. ③ او كوم سړى چې د نرمي نه محرومه شو هغه ګويا د دنيا او آخرت د ښيګنو د خپلي حصي نه محرومه شو (شرح السنه)

**حل اللغات**: - ① حَظٌّ: حصه دهغه، ② الرِّفْق: نرمي.

**تسهيلات:**

**قوله: وَمَنْ حُرِمَ حَظَّهُ مِنَ الرِّفْقِ حُرِمَ حَظَّهُ مِنْ خَيْرِ الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ:**

**د نرمي نه د محروميتيا نتيجه:** نرمي ډير ښكلې صفت دې كوم چه د حسن خلق او د سلامتئ طبع په نتيجه كښې پيدا كيږي نرمي په هرحال كښې د حسن خلق ثمره ده چونكه حسن خلق هغه وخت حاصليږي كله چه دَ غضب او شهوت قوت معتدل وي اوهم په دې سره نرمي پيدا كيږي.

**دنرمي فضائل د احاديثو په رڼا كښې:** ① **إذا أحب الله أهل بيت أدخل عليهم الرفق** (احمد) الله تعالى چې يو خاندان سره محبت كول غواړي نوهغه د نرمي په صفت موصوف كړي ② **إن لله أعطى على الرفق مالايعطى على الخلق** (جهالت) الله تعالى چې په نرمي باندې كوم انعامات او ثوابونه وركوي په ښه اخلاقو كښې په بل صفت هغه انعامات نه وركوي ③ **وإذاأحب الله عبداً أعطاه الله الرفق مامن أهل بيت يحرمون الرفق إلاحرموا محبة الله تعالى** (طبراني كبير)

١) اخرجه البغوى فى شرح السنه رقم الحديث ٤٩٥١ واحمد فى المسند: ١٥٩/٦

کله چې الله تعالی د يو بنده سره محبت کوی نو هغه د نرمی په صفت باندې موصوف کړی اوکه يو کور چې د نرمۍ څخه محروم شو نود الله تعالی د محبت څخه محروم شو.

④ إن الله رفيق يحب الرفق ويعطي عليه ما لا يعطي على العنف (سختی) (مسلم)

الله تعالی په خپله هم نرمی کونکې دې او نرمی خوښوی اوپه نرمۍ باندې هغه ثوابونه ورکوی کوم چې په بل څه نه ورکوی.

⑤ ياعائشة عليك بالرفق لايدخل في شئ إلا زانه ولاينزع من شئ إلا شانه (مسلم) عائشې نرمی خپله کړه ځکه چې نرمی په کوم څیزکښې هم داخل شو نو هغه ښائست کړی اوچې د کوم څیز څخه اوځی نو هغه سپیرَ کړی

**د نرمۍ فضیلت د سفیان ثوری د قول په رنړا کښې:** سفیان ثوری دَخپلو دوستانونه تپوس اوکړو پوهیږئ چه رفق څه څیز دې بیائې هم پخپله اوفرمائیل هریوکارد هغې په موقع اصول کښې دَ ساتلونوم رفق دې که ضرورت وی نو سختی کوه او که موقع وی نونرمی کوه ځکه چه اکثر طبیعتونه عنف وحدت طرف ته ډیر قائل وی په دې وجه دَ نرمئ دَ ترغیب ډیر ضرورت دې.بهرحال نرمی یوښه صفت دې او په اکثرو حالاتوکښې دَ دې ډیر ضرورت وی یعنی دَ سختئ ضرورت چرته کله کله راځی.کامل انسان هم هغه دې چه دَ نرمئ اوسختئ په موقعوکښې دَ فرق کولو صلاحیت لری بصیرت او شعور نه محروم سرې دا فرق نشی کولې.

**[۵۰۷۷] حیاء د جنت داخلیدو ذریعه**

| ۵۰۷۷-()[۱۰] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[۲] «الْحَيَاءُ مِنَ الْإِيمَانِ، وَالْإِيمَانُ فِي الْجَنَّةِ. [۳] وَالْبَذَاءُ مِنَ الْجَفَاءِ، [۴] وَالْجَفَاءُ فِي النَّارِ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ. |
|---|

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهریره ﷺ وایي، چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] حیاء (یعني خراب کارونو نه حجاب کول) د ایمان جزء دی، او ایمان (یعني مؤمن) به جنت ته ځي [۳] او بي حیایي چې د هغه په وجه د فحش او خرابو خبرو ارتکاب کېږي د بدی جزء دی. [۴] او بد به د دوزخ اور ته ځي.(احمد، ترمذي)

**حل اللغات:** - ① الْبَذَاءُ: بې حیائی او فحش خبرې ② الْجَفَاءُ: خرابی اوجهالت ته جفاء وائي.

**تسهیلات:**

**قوله: وَالْجَفَاءُ فِي النَّارِ:**

**د بې حیاء دپاره وعید:** مطلب دا چه جڼ کیدل شاړ جاهل کیدل بده وینا کونکې

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الحیاء (رقم-۲۰۰۹)واحمد فی المسند:۲/۵۰۱

بد اخلاق او فحش خبرې اترې کونکي سړي به دوزخ ته ځي. اوس که چرې دغه سړې اعتقادي منافق دې نو همیشه به په دوزخ کښې وی او که چرې عملي منافق وی نو د سزا خوړلو نه پس به خلاص شي

**[۵۰۷۸] خوش اخلاقي دَ الله تعالى دَ طرف نه يوه بهترين وركړه ده**

۵۰۷۸-( )[۱] ⑴ وَعَنْ رَجُلٍ مِنْ مُزَيْنَةَ، قَالَ: ⑵ «قَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ! ⑶ مَا خَيْرُ مَا أُعْطِيَ الْإِنْسَانُ؟ ⑷ قَالَ: "الْخُلُقُ الْحَسَنُ» " رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ".

**ترجمه**: ⑴ او د قبيله مزينه يو سړي بيان وکړ ⑵ چې صحابه کرامو عرض وکړو، يارسول الله ⑶ کوم څيزونه چې انسان ته ورکړي شوي دي، په هغه کې بهترين شی څه دی. ⑷ حضور ﷺ وفرمايل خوش اخلاقي، دا روايت بيهقي رحمه الله په شعب الايمان کې نقل کړی دی

۵۰۷۹-( )[۲] ⑴ وَفِي "شَرْحِ السُّنَّةِ" عَنْ أُسَامَةَ بْنِ شَرِيكٍ.

**ترجمه**: ⑴ او په شرح السنه کې بروايت د اسامه ابن شريك رضي الله عنه نه منقول دی

**تسهيلات**:

**قوله**: الْخُلُقُ الْحَسَنُ:

**دَ اخلاق حسنه حقيقت**: لکه څنګه چه حسن خلق په فتح دَ خاء يعني د ظاهري صورت دَ حسن دَ پاره د ټولو اندامونو سترګې پوزي شونډو او د اننګو وغيره موزونيت ضروري دي دغه شان دَ حسن خلق بالضم دَ پاره هم د څلورو ارکانو موزونيت ضروري دي

① **قوت علم**: دومره علم وی چه په اقوالو کښې دَ صدق او کذب، په اعتقاداتو کښې دَ حق او باطل او په افعالو کښې دَ حسن او د قبيح فرق اوکړې شي کله چه قوت علم دې درجې ته اورسي نو دَ دې بدله به دَ حکمت په شکل کښې ورکړې شي. قال الله تعالى ﴿يُؤْتِي الْحِكْمَةَ مَنْ يَشَاءُ ۚ وَمَنْ يُؤْتَ الْحِكْمَةَ فَقَدْ أُوتِيَ خَيْرًا كَثِيرًا ۗ وَمَا يَذَّكَّرُ إِلَّا أُولُو الْأَلْبَابِ﴾

② **قوت غضب**: دا قوت په هر انسان کښې فطرتي طور موجود وی دا څه قبيح صفت نه دې بلکه ددې د استعمال چې په کوم ځای ضرورت وی هلته غصه کيدل پکار دی او په کوم ځائې کښې چې د دې برداشت کول پکار وی نو هلته صبر کول پکار دی.

③ **قوت شهوت**: په هر انسان کښې الله تعالى قوت شهواني پيدا کړې دې او هم دا د ده د امتحان سبب هم دې او دې سره ډير دنيوی او اخروی فائدې تړلې شوی دی. مثلاً که په يو

[۱] اخرجه احمد فی المسند: ۲۷۸/٤ والبيهقي في شعب الايمان رقم الحديث ۷۹۹۲

[۲] اخرجه احمد فی المسند: ۲۷۸/٤

کښ کښې شهوت نه وونود ده به نه نکاح ته زړه کیدلو اونه د د نیا نور شهوانی څیزونو نه اوقوت غضب اوقوت شهوت دواړه قوتونه چه د دې درجې وی چه انسان د دې دواړو په ذریعه دعقل اوشریعت په اشارو لاړشی

④ **قوت عدل**: داهم د دې درجې وی چه د شهوت او غضب قوت لره معتدل جوړ کړی په کوم انسان کښې چه دا څلورواړه خبرې وی نوهغه ته به د حکمت، شجاعت، عفت او عدل غوندې بې بها صفات د کمال حاصل شی اوداسې سړې به په اخلاق حسنه سره مزین او ښائسته شی حکمت یعنې د قوت عقلی د اعتدال سره به حسن، تدبیر، جودت، ذهن، اصابت رائې د نفس مخفی آفات اود اعمالو په باریکوباندې خبردارې حاصل شی اود شجاعت په سره اعتدال سره به کرم، بهادری، شهادت، کسر نفسی، حلم، استقامت، کظم غیظ، وقار او سنجیدګی پیدا شی اود عفت په اعتدال به سخاوت حیا صبر چشم پوشی قناعت تقوی لطافت اوچته حوصله وسعت ظرفی د طمع کمې غوندې فضائل اواخلاق حاصل شی په قوت عدل سره به په دې ټولو قوتونو کښې اعتدال قائم شی ګنی د کمی زیاتی په صورت کښې به د دې فضائل حمیده په ځائ اخلاق ذمیمه پیداشی.

بهرحال د روایت حاصل دادې چه حضورپاک فرمائیلی دی په تاسو کښې د ټولونه بهتر هغه سړې دې چاته چه اخلاق حسنه حاصل وی د اخلاق حسنه اختیارلو ترغیب ورکړې شوې دې دحضورپاک متعلق بیان کړې شو چه نه هغوی فاحش وو اونه متفحش یعنی نه به فحش خبرې د هغوی په ژبه مبارکه باندې بلاتکلف جاری کیدې او نه به په تکلف په ارادې سره ښکاره کیدلې یعنی نه فاحش جبلی وو او نه فاحش کسبی

**[۵۰۸۰] د بدکلامئ او بد اخلاقئ مذمت**

۵۰۸۰-( )[۱۳] ①وَعَنْ حَارِثَةَ بْنِ وَهْبٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "②«لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ الْجَوَّاظُ وَلَا الْجَعْظَرِيُّ» ③قَالَ: وَالْجَوَّاظُ: الْغَلِيظُ الْفَظُّ ④رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ فِي "سُنَنِهِ" وَالْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ" وَصَاحِبُ "جَامِعِ الْأُصُولِ" فِيهِ عَنْ حَارِثَةَ. ⑤وَكَذَا فِي "شَرْحِ السُّنَّةِ" عَنْهُ، وَلَفْظُهُ: قَالَ: "«لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ الْجَوَّاظُ الْجَعْظَرِيُّ» ". ⑥يُقَالُ: الْجَعْظَرِيُّ: الْفَظُّ الْغَلِيظُ

**ترجمه**: ①او حارثه ابن وهب رضی الله عنه وایي، چی رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل② په جنت کې به نه سخت کلام والاد اخلیږي او نه بد خلق، ③او راوي وایي، د جواظ معنی ده سخت کلام والااو بد خلق، ④دا روایت ابوداود رحمه الله په خپل سنن کې او بیهقي رحمه الله په شعب الایمان کې نقل کړی دی او صاحب جامع الاصول هم جامع الاصول کې دا روایت د حضرت

[۱] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب/باب في حسن الخلق (رقم-۴۸۰۱)

حارثه رضي الله عنه نه نقل كړی دی، [۵] او دغه شان دا روايت په شرح السنه كې د حضرت حارثه رضي الله عنه نه په دي الفاظو كې نقل شوی دی، چې په جنت كې به جواظ جعظري نه داخليږي (ګويا په دي الفاظو كې جعظري د جواظ صفت ګرځول شوی دی) [٦] او وئيل شوي دي چې د جعظري معنی ده بدخلق او بد كلام (يعني د دې روايت مطابق د جواظ او جعظري يوه معنی ده)

**حل اللغات:** - ① الْجَوَّاظُ: يعنی چه مال جمع كوی خو سائل ته هيڅ نه وركوی. ② الْجَعْظَرِيُّ: يعنی بد اخلاقه او سخت زړه والا ③ الْفَظُّ: سخت زړه والا.

[١] وَفِي نُسَخِ " الْمَصَابِيحِ " عَنْ عِكْرِمَةَ بْنِ وَهْبٍ وَلَفْظُهُ [٢] قَالَ: وَالْجَوَّاظُ: الَّذِي جَمَعَ وَمَنَعَ. [٣] وَالْجَعْظَرِيُّ: الْغَلِيظُ الْفَظُّ..

**ترجمه:** [١] او د مصابيح په بعضو نسخو كې دا روايت د حضرت عكرمه ابن وهب رضي الله عنه نه منقول دی، په هغه كې داسې بيان شوی دی [٢] چې راوي ويلي دي جواظ هغه سړي ته وايي. چې مال ودولت جمع كوي ليكن سائل ته هيڅ نه وركوي، [٣] او جعظري هغه سړي ته وايي چې سخت كلام او بد خلق وي.

**حل اللغات:** - ① الْجَوَّاظُ: الَّذِي جَمَعَ وَمَنَعَ: يعنی چه مال جمع كوی خو سائل ته هيڅ نه وركوی. ② الْجَعْظَرِيُّ: أي الْغَلِيظُ الْفَظُّ: يعنی بد اخلاقه او سخت زړه والا.

**تسهيلات:**

**قوله: لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ الْجَوَّاظُ الْجَعْظَرِيُّ:**

**د جواز او جعظری په معنی كښې دوه اقوال:**

① جواظ هغه سړي ته وايي، چې مال ودولت جمع كوي ليكن سائل ته هيڅ نه وركوي. او جعظري هغه سړي ته وايي چې سخت كلام او بد اخلاقه.

② د الجواظ معنی بداخلاقه او د جعظری معنی سخت زړه ده.

**د مذكوره صفاتو په موصوف كښې دوه احتمالات:** ① كه د دې شخه اعتقادی منافق مراد وی نو په دې صورت كښې به دې هميشه په دوزخ كښې وی

② دد ې شخه مرادف عملی منافق دې په دې صورت كښې به دې د سزا نه پس جنت ته ځی

**[٥٠٨١] په تله د نيكئ كښې خوش اخلاقي ډير وزنی عمل دې**

٥٠٨١ - ( ) [١٣] [١] وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: " [٢] «إِنَّ أَثْقَلَ شَيْءٍ يُوضَعُ فِي مِيزَانِ الْمُؤْمِنِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ خُلُقٌ حَسَنٌ، [٣] وَإِنَّ اللَّهَ يُبْغِضُ الْفَاحِشَ الْبَذِيءَ» ". [٤] رَوَاهُ

( ) اخرجه ابوداود فی السنن كتاب الأدب/باب فی حسن الخلق (رقم-٤٧٩٩) والترمذی فی كتاب البر والصلة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی حسن الخلق (رقم-٢٠٠٢) واحمد فی المسند: ٤٤٢/٦

التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَرَوَى أَبُو دَاوُدَ الْفَصْلَ الْأَوَّلَ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابو درداء ﷺ د حضور ﷺ نه روايت کوي، حضور ﷺ وفرمايل، ۲ د قيامت په ورځ د مؤمن ميزانِ اعمال کې ايښوونکو څيزونو کې ډير وزني شی حسن خلق دي، ۳ او الله ﷻ فحش ويونکی او بيهوده ګوسره سخت نفرت او دښمني لري، ۴ دا روايت ترمذي نقل کړی دی، او ويلي يي دي چې دا حديث حسن صحيح دی. او ابوداود هم د دې روايت حصه يعنی خُلقٌ حَسَنٌ پوره نقل کړي ده

**حل اللغات:** - ۱ أَثْقَلَ: درونډ، وزنی، ۲ الْفَاحِشَ: بدګويه، بد زبانه، ۳ الْبَذِيءَ: فحش خبرې، بد اخلاق

**تسهيلات:**

**قوله: يُوضَعُ فِي مِيزَانِ الْمُؤْمِنِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ خُلُقٌ حَسَنٌ:**

**د نيکوتلې په درنولوکښې د ښه اخلاقو کردار:** يعنی ښه عادتونه به د نيکو په چابړې کښې کيخودلې شی، ځکه چه په قيامت کښې به د هر يو څيز شکل وی او هغې په وزن هم وی يا به د ښه عادتونو ثواب د نيکو په چابړې کښې کيخودلې شی او الله تعالى ته ښه عادتونه خوښ دی نو ددې وجهې نه د الله تعالى د رضا په وجه به د نيکو وزن زيات شی ددې وجهې نه مسلمان چه کوم عبادت په اخلاص سره اوکړی نو د هغې وزن به زيات وی او ريا کاری والا عبادت په سپک وی، او د کفارو د عبادت به هيڅ وزن به نه وی کما في القرآن **"فلا نقيم لهم يوم القيامة وزناً"** هم دغه شان د بخاری شريف آخری حديث دې **"كلمتان حبيبتان الى الرحمن خفيفتان على اللسان ثقيلتان في الميزان سبحان الله وبحمده سبحان الله العظيم"** په دې سره د مذکوره دواړو جملو تقابل واضح کيږی.

او په ګناهونو کښې به زيات وزن د الله تعالى د ناراضګی په وجه وی يعنی د الله تعالى ناراضګی چه څومره هم زيات وی نو د ګناهونو وزن به هم هغه هومره زيات وی، الله تعالى دې زمونږ حفاظت وکړی.

**قوله: وَإِنَّ اللّٰهَ يُبْغِضُ الْفَاحِشَ الْبَذِيءَ:**

**د بذی په معنی کښې دوه اقوال:** ۱ ددې يو معنی فضول خبرې کول دی
۲ ملا علی قاری رحمه الله ددې ترجمه بد خلق نقل کړې ده او ليکلی ئی دی چه دا معنی د موقع مناسب ده، ځکه چه بد خلقی او بد زبانی سره الله تعالى ناراضه کيږی ددې وجې بدخلقی اوبدزبانی به د ګناهونو په چابړې کښې کيخودلې شی او د الله تعالى د ناراضګی په وجه به ددې وزن زيات وی او د قيامت په ورځ به د اعمالو وزن کيږی

**دنبی عليه السلام د اعمالوعدم توزين:** د نبی کريم ﷺ د اعمالو وزن به نه کيږی لکه

څنګه چه زمونږ د زماني ترازو اوتلې د سمندر اوبه د ډير والي په وجه نه شي تللي نو هم دغه شان د قيامت ترازوهم د نبي كريم ﷺ اعمالو لره ډير وزني كيدو په وجه نشي تللي

**[۵۰۸۲] خوش اخلاقئ سره سړی ته د روژه دار او عبادت ګذار مرتبه حاصليږي**

۵۰۸۲-( )[۱۳] [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا - قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: "[۲] «إِنَّ الْمُؤْمِنَ لَيُدْرِكُ بِحُسْنِ خُلُقِهِ دَرَجَةَ قَائِمِ اللَّيْلِ وَصَائِمِ النَّهَارِ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**: [۱] او بي بي عائشه ؓ وايي، ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل [۲] مؤمن (يعني كامل مؤمن چې عالم باعمل دی) د خوش اخلاقي په سبب هغه درجه او مرتبه حاصلوي. كومه چې عبادت او ذكر الهي د پاره شب بيدار او هميشه د ورځې روژه نيونكي ته حاصليږي (ابوداؤد)

**تسهيلات**:

**قوله**: إِنَّ الْمُؤْمِنَ لَيُدْرِكُ بِحُسْنِ خُلُقِهِ دَرَجَةَ قَائِمِ اللَّيْلِ:

**په ښه اخلاقو سره د تهجدګذار درجې ته رسيدل**: مومن كامل ته د خپلی خوش خلقی په وجه د نفلی عباداتو ثواب ملاويږی، حضرت سهيل رحمه الله فرمائی چه د خوش خلقی تولو نه كمه درجه دا ده چه د خلقو طرف نه كوم تكليف ملاويږی هغه برداشت كول او د بدلې اخستلو نه ځان ساتل او ظالم ته نه صرف ظلم معاف كول بلكه د بخشش دعا ورته هم كول او دا اعلی درجه ده

**[۵۰۸۳] خلقو سره په خوش اخلاقئ سره معامله کول**

۵۰۸۳-( )[۱۵] [۱] وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "[۲] «اتَّقِ اللّٰهَ حَيْثُمَا كُنْتَ، [۳] وَأَتْبِعِ السَّيِّئَةَ الْحَسَنَةَ تَمْحُهَا، [۴] وَخَالِقِ النَّاسَ بِخُلُقٍ حَسَنٍ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت ابودرداء ؓ وايي. چې رسول الله ﷺ ماته وفرمايل [۲] د الله نه ويريږه هرچيرته چې يې. [۳] كه ستا نه څه بدي اوسي نو د هغه نه پس نيك كار ضرور كوه. چې هغه نيكي هغه بدي دفع كړي، [۴] او د خلقو سره په خوش اخلاقي سره معامله كوه (احمد. ترمذي. دارمي)

**حل اللغات**: - ① تَمْحُهَا: ختم به ئې كړی. وران به ئې كړی ② خَالِقِ: اخلاق ساته. ③ خُلُقِ: اخلاق

[1]) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأدب/باب في حسن الخلق (رقم -۴۷۹۸) ومالک في الموطا كتاب حسن الخلق/باب ما جاء في حسن الخلق (رقم-۶) واحمد في المسند: ۹۰/۶

[2]) اخرجه الترمذي في السنن كتاب البر والصلة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في معاشرة الناس (رقم-۱۹۸۷) واحمد في المسند: ۱۵۳/۵

**تسهيلات:**

**قوله**: اتَّقِ اللهَ حَيْثُمَا كُنْتَ:

**د تقوی تعریف**: په دې جمله کښې په حقیقت کښې د تقوی تعریف دې یعنی ظاهراً اوباطنًا خپله معامله خپل رب سره صفا اوساتلې شی نودا تقوی ده

**په حدیث کښې د جمله ثانی محل:**

په دویمه جمله کښې دی چه که چرې گناه اوشی نودهغې نه پس فوری نیك عمل اوکړه چه هغه نیکی دغه بدی ختمه کړی ځکه چه دا ضابطه ده ﴿إِنَّ الْحَسَنٰتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّاٰتِ﴾ یادلرئی په دې سره حقوق الله کښې تقصیر معاف کیږی لیکن دحقوق العباد تقصیر معاف کیږی نه.بل دا د صغائر خبره ده دکبائر دپاره توبه ده.په دریمه جمله کښې دی چه خلقو سره په خو اخلاقو سره پیش کیږه.

[٥٠٨٣] نرم مزاج او نرم خوئی سړی باندې اور حرام دې

٥٠٨٣-()[١٦] [١]وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ-رَضِيَ اللهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: " [٢]«أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِمَنْ يَحْرُمُ عَلَى النَّارِ [٣]وَبِمَنْ تَحْرُمُ النَّارُ عَلَيْهِ؟ [٤]عَلَى كُلِّ هَيِّنٍ لَيِّنٍ قَرِيبٍ سَهْلٍ» ".[٥]رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه**: [١]او حضرت عبد الله ابن مسعود رضی الله عنه وایي، چې رسول الله ﷺ وفرمایل[٢] آیا زه درته وښایم هغه سړی څوك دی چې په اور باندې به حرام وي،[٣] او په هغه به اور حرام وي [٤]نو واورئ، د دوزخ اور به په هر هغه سړي باندې حرام وي کوم چې نرم مزاج، نرم طبیعت، خلقوته نزدي او نرم خو وي،[٥] دا روایت احمد رحمه الله او ترمذي رحمه الله نقل کړی دی او ترمذي رحمه الله ویلي دي چې دا حدیث غریب دی.

**حل اللغات**:- ①هَيِّنٍ: نرم مزاج، ②لَيِّنٍ: نرم خوئی، ③قَرِيبٍ: نزدې، ④سَهْلٍ: آسان،

**تسهيلات:**

**قوله**: عَلَى كُلِّ هَيِّنٍ لَيِّنٍ قَرِيبٍ سَهْلٍ:

**په مذکور جمله کښې تاکید**: د اورپه انسان باندې حرام کیدل اود انسان په اور باندې حرام کیدل په دې جمله کښې لوئی تاکید او مبالغه ده ددواړو جملو مآل او مفهوم هم یو دې چه داسې سړې دهرمصیبت نه آزاد دې.حضورپاك د سوال د جواب انتظار اونه کړو بلکه هم پخپله ئی جواب ورکړو دهین اولین دواړو هم یوه معنی ده یعنی نرم مزاج اونرم خوئی سړې ددوزخ په اور باندې حرام دې.

[1]) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب صفة القیامة والرقائق والورع عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-٢٤٨٨)واحمد فی المسند:١/٤١٥

**د لاندينو الفاظو مصداقات:** د دې دريو اړو الفاظ اوقات حالات او مواقع مختلف کيدې شي
① دهين مصداق چې په چاباندې بوج نه جوړيږي، بې تکلفه وی
② د لين مصداق دَ عام اخلاقو په اعتبارسره چې دَنرم طبيعت مالك وی
③ دَ سهل مصداق د دې تعلق د ممکن الحصول څيز سره کيدې شي

**[۵۰۸۵] د مؤمن او بدکاره سړی صفتونه**

۵۰۸۵-()[۱۷] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ② "«الْمُؤْمِنُ غِرٌّ كَرِيمٌ ③ وَالْفَاجِرُ خَبٌّ لَئِيمٌ»". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهريره ﷺ د رسول الله ﷺ نه روايت کوي، چې حضور ﷺ وفرمايل. ② نيکو کار مؤمن ډير ساده او شريف وي. ③ هرکله چې بد کار ډير مکار او بخيل او کمينه وي. (احمد، ترمذي، ابوداود)

**حل اللغات:-** ① غِرٌّ: ساده، ② کَرِيمٌ: شريف، ③ خَبٌّ: مکار، بخيل، ④ لَئِيمٌ: رزيل، کمينه.

**تسهيلات:**

**قوله: الْمُؤْمِنُ غِرٌّ كَرِيمٌ:**

**دغر کريم معنی:** غِرٌّ: بکسرالغين وتشديدالراء په معنی د سيدا ساده چه مکراوفريب نه پيژنی او په خلقو باندې بنه گمان کوی کريم په معنی د شريف الطبع حسن الخلق.

**دمؤمن په مصداق کښې دوه اقوال:** ① دَ مومن مراد کامل مومن مراد دې
② دمومن څخه عام مؤمن مراد دې.

**قوله: وَالْفَاجِرُ خِبٌّ لَئِيمٌ:**

**دخب لئيم معنی:** يعنی فاسق سړې دهوکه ورکونکې کمينه (رذيل) وی
**د فاجر په مصداق کښې دوه اقوال:** ① دَ فاجر څخه مراد عام فاسق دې
② دَ فاجر څخه مراد کافر دې

**په حديث باندې اشکال:** په روايت کښې وارد دی لايلدغ المؤمن من جحر واحدمرتين بل داوارد دی اتقوافراسة المؤمن فأنه ينظر بنورالله دَ دې تقاضا ده چه مومن تجربه کار وی اوهغه ته نور او فراست حاصل وی هغه دَ چاپه دهوکه کښې نه راځی اودَ مؤمن غرکريم نه په ظاهره دا معلوميږی چه هغه دومره ساده وی چه دَ خلقو نه دهوکه خوری؟

**د اشکال درې جواب:** ① دَ روايت چه کومه معنی پورته بيان کړې شوې ده دَهغې

() اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأدب/باب في حسن العشرة (رقم-٤٧٩٠) والترمذي في كتاب البر والصلة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في البخيل (رقم-١٩٦٤) واحمد في المسند: ٣٩٤/٢

تقاضا داده چه په خلقو باندې ښه ګمان لرې چاته دهوکه نه ورکوی اونه چاسره په مکراوفریب سره مخ کیږی په دې سره دانه لازمیږی چه هغه همیشه دَ خلقو په مکر او فریب کښې راځی اوکه کله دهوکه هم خوری نو صرف دَ ښه ګمان په وجه لهذا په رواياتو کښې هيڅ تعارض نشته.

۴ بعضي حضرات فرمائی المؤمن غرکریم معنی فی أمور دنیاه ده اودَ لایلدغ معنی فی أمور آخراه ده.

۴ بعضي حضرات فرمائی لایلدغ نهی او انشاء ده او المؤمن غرکریم اخبار دې فلامنافاة

**فائده:** داحديث المؤمن غرکریم والفاجر خب لئیم علامه سراج الدين قزويني موضوع ګرځولې دې مګر صلاح الدین العلائی جوابًا فرمائیلی دی چه دَ بشر بن رافع احمدبن احنبل تضعیف کړې دې مګر ابن معین دَ هغه باره کښې فرمائی لاباس به.بل ابن عیسی فرمائی لم أرله حدیثًا منکرًا دَ بشر بن رافع متابعت کونکی حجاج بن فرافصیه دی دَ چا د روایت تخریج چه بیهقی کړې دې اودَ حجاج باره کښې ابن معین فرمائی لاباس به او ابن حبان هغه په ثقات کښې ذکر کړې دې.

**[۵۰۸۶] دَ مؤمن بعضې صفات**

۵۰۸۶ –() [۱۸] [۱] وَعَنْ مَكْحُولٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[۲] «الْمُؤْمِنُونَ هَيِّنُونَ لَيِّنُونَ [۳] كَالْجَمَلِ الْآنِفِ إِنْ قِيدَ انْقَادَ، وَإِنْ أُنِيخَ عَلَى صَخْرَةٍ اسْتَنَاخَ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ مُرْسَلًا.

**ترجمه:** [۱] او حضرت مکحول رحمه الله وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمایل، [۲] ایمان لرونکي خلق بردبار نرم خو او فرمانبردار دي، [۳] د هغه اوښ په شان چې د هغه په پوزه کې پیزوان لګیدلی وي چې هغه راخکلو سره راځي، او که په کاڼي کینول شي نو په کاڼي کیني، داحدیث ترمذي رحمه الله بطریق ارسال نقل کړی دی.

**حل اللغات:** - ۱ هَيِّنُونَ: بردبار، نرم مزاج والا، ۲ لَيِّنُونَ: نرم خوئی والا، ۳ الْجَمَلِ الْآنِفِ: هغه اوښ چه په پوزه ئې پیزوان وی، ۴ إِنْ قِيدَ: که راښکلې شی، ۵ انْقَادَ: راځی، تابعداری وی، ۶ إِنْ أُنِيخَ: که کینولې شی، ۷ صَخْرَةٍ: کاڼې، ۸ اسْتَنَاخَ: کینی.

**تسهيلات:**

**قوله: الْمُؤْمِنُونَ هَيِّنُونَ لَيِّنُونَ:**

**مؤمن دوه صفتونه:** یعنی دَ مؤمن شان داوی چه هغه فرمانبردار تابعدار صاحب انکسار عاجز اونرم خوئی وی. څنګه چه دَ اوښ په پوزه کښې پیزوان پروت وی اوهغه دَ مالك په

[1]) اخرجه ابو نعیم فی الحلیه ۵/ ۱۸۰

لاس کښې وی نو که غواړی هغه په راښکو سره بوخې یا هغه په کاڼړی باندې کینوی دَهرحالت دَ قبلولو دَپاره تیاروی.

**[۵۰۸۴] دَ خلقو په تکلیفونو باندې د صبر کولو اجر او ثواب**

۵۰۸۴-(۱۹)(۱) [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا- عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: "[۲] «الْمُسْلِمُ الَّذِي يُخَالِطُ النَّاسَ وَيَصْبِرُ عَلَى أَذَاهُمْ [۳] أَفْضَلُ مِنَ الَّذِي لَا يُخَالِطُهُمْ وَلَا يَصْبِرُ عَلَى أَذَاهُمْ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت ابن عمر رضی الله عنهما د رسول الله ﷺ نه روایت کوي، [۲] چې حضور ﷺ وفرمایل کوم مسلمان چې د خلقو سره ربط او اعتماد ساتي، او د هغوئ اذیتونو باندې صبر کوي، [۳] هغه د اجر او ثواب د اعتبار نه افضل دی، د هغه سړي نه کوم چې دخلقو سره ربط او اختلاط نه ساتي، اود هغوئ اذیتونو باندې صبر نه کوي. (ترمذي، ابن ماجه)

**حل اللغات**:- ① يُخَالِطُ: میل جول ساتی، تعلق ساتی، ② أَذَاهُمْ: په تکلیفونو دخلقو.

**تسهیلات**:

**قوله**: الْمُسْلِمُ الَّذِي يُخَالِطُ النَّاسَ:

**دجلوت په خلوت مشروط فضیلت**: کوم سړی چه خلقو سره تعلق ساتی او دَهغوی نګرانی کوی دَ هغوی لارخودنه کوی اوامر بالمعروف اونهی عن المنکر کوی اوپه دې کارونو کښې دَخلقو دَ طرف نه تکلیفونه اوچتوی هغه برداشت کوی نودا سړې دَهغه ځان له ګوټ کښې ناست سړی نه بهتر دې چه ځان له عبادت کوی اودَ خلقو نه جدا اوځان له اوسیږی دَهغوی په هیڅ معامله کښې دلچسپی نه اخلی

**په دواړو مؤمنانو کښې فرق**: په دواړو کښې فرق دادې چه اولنې سړې خالق او مخلوق دواړه راضی کوی کوم چه کامل اخلاق دې په دې وجه افضل دې اودویم سړې صرف دَخالق دَ رضا کوشش کوی مخلوق ئې هیرکړې دې کوم چه نقص دې په دې وجه دا مفضول دې.

**انصافی خبره**: دا یاد ساتئی چه دا دوه نظریئې او دوه مختلفې رویې په خپله خپله زمانه کښې جدا جدا مقاماتو، جداجدا حالاتو اومختلفو اقوالو دَخصوصی مفاداتو دَ وجې نه چلیږی دَ بعضې عوامو دَ خصوصی احوال دَ وجې نه به اولنې نظریه کامیاب وی اوبعضې سره به دویمه نظریه بهتر وی. دَدواړو دارومدار به دَدین اودنیا په فائده باندې وی. یو الله والا په خپله زمانه کښې اووئیل زما مقام دَامام احمدبن حنبل رحمه الله نه

---

(۱) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب صفة القیامة والرقائق والورع عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم ۲۵۰۷) وابن ماجه فی کتاب الفتن/باب الصبر علی البلاء (رقم-۴۰۳۲)واحمد فی المسند:۴۳/۲

زيات وو ليکن هغه د مرتبې په لحاظ زمانه مخکښې شو ځکه چه هغه واده کړې دې د بچو پلار دې اوزما واده نشته ځان له يم او په مجرد او غيرمجرد کښې فرق وی.

**[۵۰۸۸] په غصه باندې د قابو موندلو فضيلت**

۵۰۸۸-(¹)[۲۰] [۱] وَعَنْ سَهْلِ بْنِ مُعَاذٍ، عَنْ أَبِيهِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: " [۲] «مَنْ كَظَمَ غَيْظًا وَهُوَ يَقْدِرُ عَلَى أَنْ يُنْفِذَهُ [۳] دَعَاهُ اللَّهُ عَلَى رُءُوسِ الْخَلَائِقِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ [۴] حَتَّى يُخَيِّرَهُ فِي أَيِّ الْحُورِ شَاءَ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ، وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه :** [۱] او حضرت سهل بن معاذ د خپل پلار (حضرت معاذ) نه روايت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] کوم سړی چې خپله قهر وزغمي باوجود د دې چې هغه په غصه باندې د عمل کولو قدرت لري، [۳] نو د قيامت په ورځ به الله ﷻ هغه د مخلوق روبرو راولي. [۴] او هغه ته به دا اختيار ورکړي چې کومه حوره غواړي هغه خوښه کړه دا روايت ترمذي رحمه الله او ابوداود نقل کړی دی، او ترمذي ويلي دي چې داحديث غريب دی

**حل اللغات :-** ① كَظَمَ: برداشت کړی، اوزغمی، ② يُنْفِذَهُ: نافذ کړی دا (غصه يعنی انتقام اخستلې شی)، ③ يُخَيِّرَهُ: اختيار به ورکړې شی هغه ته.

۵۰۸۹-(²) [۱] وَفِي رِوَايَةٍ لِأَبِي دَاوُدَ، عَنْ سُوَيْدِ بْنِ وَهْبٍ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ أَبْنَاءِ أَصْحَابِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنْ أَبِيهِ قَالَ: " [۲] «مَلَأَ اللَّهُ قَلْبَهُ أَمْنًا وَأَمَانًا» ". [۳] وَذُكِرَ حَدِيثُ سُوَيْدٍ: " «مَنْ تَرَكَ لِبْسَ ثَوْبِ جَمَالٍ» " فِي كِتَابِ اللِّبَاسِ ".

**ترجمه :** [۱] او د ابوداود په يوبل روايت کې چې هغه د سويد بن وهب نه او هغه د نبي کريم ﷺ د يوصحابي د زوی نه نقل کړی دی، [۲] د هغه دا الفاظ دي چې حضور ﷺ د قيامت په ورځ به الله ﷻ هغه د مخلوق په مخکې راوبلي الخ په ځای داسې وفرمايل چې الله ﷻ به د هغه سړي زړه د امن وامان نه معموره کړي کوم چې قهر وزغمي [۳] او د حضرت سويد رضی الله عنه دا روايت من ترک لبس ثوب جمال الخ، په کتاب اللباس کې نقل شوی دی.

**تسهيلات:**

**قوله: دَعَاهُ اللَّهُ عَلَى رُءُوسِ الْخَلَائِقِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ:**

**د غصې زغمونکو د قيامت په و ورځ لوئې اعزاز :** الله تعالى به ده لره د مخلوق په مخامخ راؤبلي، ددې مطلب دا دې چه الله تعالى به د قيامت په ورځ د ټول مخلوق په وړاندې ده

---

¹) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب/باب من کظم غيظًا(رقم-۴۷۷۷) وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب الحلم (رقم-۴۱۸۶) واحمد فی المسند:۳/۴۴۰

²) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-۲۴۸۱)

ته عزت ورکړی او ددې تعریف اوتوصیف به اوکړی، او دې صفت ته د دومره اوچت مقام
ورکولو وجه دا ده چه غصه په اصل کښې د نفس اماره د جوش والا کیفیت نوم دې او
کوم کس چه غصه اوخکله نو هغه نفس اماره د خپو لاندې کړو، ددې وجې نه په غصه
باندې د قابو ساتونکو تعریف الله تعالی په دغه الفاظو سره کړې دې

**د عفوکونکې مقم د کاظم الغیض نځه اوچت:** ملا علی قاری رحمه الله فرمائي چه دومره
غټ اجر صرف دغصې څکلو په وجه ملاویږی نو بیا د هغه کس مقام او مرتبه به څه وي
کوم چه د غصې څکلو سره د عفو او احسان معامله وکړي، امام نووی رحمه الله فرمائي
چه اصل احسان دا دې چه ته "أحسن الی من أساءك" په وجه په هغه کس باندې احسان
وکړې کوم چه تا سره بد وکړی څکه چه کوم کس تا سره احسان وکړو او ته هم هغه سره
احسان وکړې نو دا خو به تجارت شي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [۵۰۰] په اسلامی تعلیماتوکښې د حیاء امتیازی شان

۵۰۰ - ()[۲۱] ۱عَنْ زَيْدِ بْنِ طَلْحَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " ۲«إِنَّ لِكُلِّ دِينٍ خُلُقًا ۳وَخُلُقُ الْإِسْلَامِ الْحَيَاءُ» ". رَوَاهُ مَالِكٌ مُرْسَلًا.

**ترجمه:** ۱او حضرت زید بن طلحه رحمه الله وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل، ۲په هردین او مذهب کې یوخلق دی (یعني په هرمذهب والاوو کې یوداسې صفت او خصلت وي، چې د هغوئ په ټولو صفتونو غالب او د هغوئ د ټولو خصلتونو نه اعلی وي) ۳او د اسلام هغه خلق حیاء ده، دا روایت مالک رحمه الله بطریق ارسال نقل کړی دی، څکه چې زید رحمه الله صحابي نه دی، بلکې تابعي دی

۵۰۱-()، ۵۰۲-() ۱وَرَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ"، عَنْ أَنَسٍ، وَابْنِ عَبَّاسٍ.

**ترجمه:** ۱او ابن ماجه او په شعب الایمان کې بیهقي دا روایت د حضرت انس او حضرت ابن عباس نه نقل کړی دی.

**تسهیلات:**

**قوله:** إِنَّ لِكُلِّ دِينٍ خُلُقًا:

**داسلام په خصلتونوکښې غالب خصلت:** یعنی دَ هرآسمانی دین یو غالب مزاج پاتې وو اودَ هغې یو بنیادی مقصد پاتې دې اودَ هغې یوخاص رجحان پاتې وو اودَهغې یو ښکاره

---

[۱] اخرجه مالک فی الموطا کتاب حسن الخلق /باب ما جاء فی الحیاء (رقم-۹)

[۲] اخرجه ابن ما جه فی السنن کتاب الزهد/باب الحیاء (رقم-۴۱۸۲، ۴۱۸۱)

[۳] اخرجه ابن ما جه فی السنن کتاب الزهد/باب الحیاء (رقم-۴۱۸۲، ۴۱۸۱)

صفت پاتې وو چه هغه په باقي اوصافو باندې غالب پاتې وو. په اسلام کښې هغه صفت او طبعیت، میلان او رجحان حیاء ده سره دَدې چه په نورو مذاهبو کښې هم دَحیاء حکم وو لیکن دَاسلام غالب مزاج حیاء ده هم دَدې وجې نه حضورپاك دَخپل بعثت مقصدتکمیل دَمکارم اخلاق گرځولی دی په کوم کښې چه حیاء دَ ټولو نه وړاندې ده. حضورپاك فرمائیلی ((إنما بعثت لأتمم مكارم الأخلاق)) یوحدیث پاك کښې رسول الله ﷺ ارشاد فرمائیلی ((استحيوا من الله حق الحياء))

خلاصه دا چه حیاء دَانسانی گاډی دَپاره په منزله دَ بریك تائر او راډ دې که چرې بریك فیل شو نو نه ده معلومه چه گاډې به کوم کوم ځائی کښې ټکرې خوری اوتباه برباد به شی. نن صبا په دنیاکښې دَټولو نه زیات فحاش او بې حیاء قوم یهود اونصاری دی چه فحاشی په ټوګه دَمذهب استعمالوی او نورو قوموته ئی وړلیږی.

**[۳-۵] ایمان اوحیاء یوبل سره لازم اوملزوم دی**

۵-()[۲۳] [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: "[۲]((إِنَّ الْحَيَاءَ وَالْإِيمَانَ قُرَنَاءُ جَمِيعًا، [۳] فَإِذَا رُفِعَ أَحَدُهُمَا رُفِعَ الْآخَرُ))".

**ترجمه:** [۱] او د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما نه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] حیاء او ایمان د یوبل سره یوځای شوی دی، [۳] که څوك په دې دواړوکې د یوه نه محروم شي، نو دویم نه هم محروم کول کیږي، (یعنی کوم سړی چې دایمان نه محروم شی هغه دحیاء نه هم محروم کول کیږي، او په چا کې چې حیاء نه وي په هغه کې ایمان هم نه وي)

**حل اللغات:** - (۱) قُرَنَاءُ: یوبل سره نزدې دی، (۲) رُفِعَ: لرې کړې شی،

۳-۵ -()[۱] وَفِي رِوَايَةِ ابْنِ عَبَّاسٍ: "[۲]((فَإِذَا سُلِبَ أَحَدُهُمَا تَبِعَهُ الْآخَرُ))". رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ".

**ترجمه:** [۱] او په یو دویم روایت کې چې حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه منقول دی، [۲] داسې دی چې په دې دواړو کې یولیرې شي، نو دویم نه پاتې کیږي. (بیهقي)

**تسهیلات: قوله: إِنَّ الْحَيَاءَ وَالْإِيمَانَ قُرَنَاءُ جَمِيعًا:**

**د ایمان اوحیاء خپلو کښې تعلق:** دا "قرين" جمع ده په معنی د ملگری په دې اعتبار سره دا لفظ د هغه خلقو دلیل دې کوم چه دا وائي چه د أقل جمع اطلاق په دوؤ باندې کیږی، د حدیث الباب حاصل دا دې چه حیا او ایمان لازم اوملزوم دی په دې کښې چه کله یو هم زائل شی نو دویم هم زائل کیږی.

[۱] اخرجه البیهقی فی شعب الایمان رقم الحدیث ۷۷۲۷

[۲] اخرجه البیهقی فی شعب الایمان رقم الحدیث ۷۷۲۶

**[۵۰۹۵] خلقو سره د خوش اخلاقئ اختیارولو اهمیت**

۵۰۹۵-()[۲۳] [۱] وَعَنْ مُعَاذٍ-رَضِيَ اللهُ عَنْهُ-قَالَ: «كَانَ آخِرُ مَا وَصَّانِي بِهِ رَسُولُ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [۲] حِينَ وَضَعْتُ رِجْلِي فِي الْغَرْزِ أَنْ [۳] قَالَ: "يَا مُعَاذُ! أَحْسِنْ خُلُقَكَ لِلنَّاسِ». رَوَاهُ مَالِكٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت معاذ ﷺ وایي، چي رسول الله ﷺ چي ماته د کومو خبرو نصیحت او وصیت وفرمایه، په هغه کې د ټولو نه آخري وصیت [۲] حضور ﷺ هغه وخت وفرمایه هرکله چي ما په آس باندي سوریدو د پاره خپله پښه په رکاب کې ایښي وه، [۳] هغه دا اوویل معاذ! خلقو ته د تعلیم وتربیت د پاره خوش اخلاقي اختیار کړه (مالك)

**حل اللغات:** - ① الْغَرْز: رکاب، پائدان،

**تسهیلات:**

**قوله: أَحْسِنْ خُلُقَكَ لِلنَّاسِ:**

**معاذ رضی الله عنه ته د ښه اخلاقو حکم:** حضرت معاذ ﷺ حضورپاك دیمن ګورنر مقرر کړې وو. دَ هغه دَرخصت کولو په وخت حضورپاك خلاف معمول هغه سره داسې معامله اوکړه دکوم چه مثال نه ملاویږي. پخپله حضورپاك پیدل روان دې او هغه ئې په اس باندې سورکړې دې او په روانه روانه هغه ته هغه نصیحتونه ارشاد فرمائی دکوم چه مثال نه ملاویږي. اوس لا حضرت معاذ ﷺ پوره سورشوې هم نه وو خپه ئې په رکاب باندې کیخودې ده او حضورپاك یو دېر نادر نصیحت اوفرمائیلو اې معاذ! خلقو سره دَتعلیم اوتربیت دَپاره خپل اخلاق ښه ساته. دلته دَ خلقو نه مراد هغه خلق دی چه نصیحت قبلونکې وی یادَ هغې امید کیدې شی. لیکن چه کوم خلق نصیحت اوغوږ زوی اودَ حق دعوت مسترد کړی هغوی سره به دَتورې په ذریعه خبره کیږي. اوس به هم توره هغوی پوهه کوی اودَهغوی تربیت به دَ جهاد په میدان کښې کیږي چنانچه جهاد چه څنګه دَمسلمانانو دَپاره رحمت دې دغه شان دکافرانو دَپاره هم رحمت دې څکه چه په دې سره کافرانو ته هدایت ملاویږي او مسلمانانو ته ثواب او صالح معاشره ملاویږي اودنیا ته امن ملاویږي لکه څنګه چه دَ اخلاقو په ځائی توره استعمالول مناسب نه دی دغه شان دَتورې په ځائی اخلاق استعمالول مناسب نه دی یوشاعر هم دا خبره کړې ده:

فوضع الندي في موضع السيف بالعلی　　　مضر کوضع السیف فی موضع الندي

یعنی دَ تورې دَ استعمالولو په موقع کښې احسان کول داسې بد دی لکه څنګه چه دَاحسان په ځائی توره استعمالول بد دی.

---

(۱) اخرجه مالک فی الموطا کتاب حسن الخلق/باب ما جاء فی حسن الخلق (رقم-۱)

**[٥٠٩٦] ښه اخلاق دَ رسول الله د بعثت مقصد**

٥٠٩٦-()[٢٣] [١] وَعَنْ مَالِكٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- بَلَغَهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: "[٢] «بُعِثْتُ لِأُتَمِّمَ حُسْنَ الْأَخْلَاقِ»". رَوَاهُ فِي "الْمُوَطَّأ".

**ترجمه**: [١] او د امام مالك رحمه الله نه منقول دی، هغوئ ته دا حدیث رسیدلی دی، چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢] زه د ښو اخلاقوو د تکمیل د پاره رالیږل شوی یم. یعنی په دي دنیا کې خما د رالیږلو یوعظیم مقصد دادی چې انساني اخلاق او اوصاف بیان کړم او هغه درجه کمال ته ورسوم، موطا امام مالك رحمه الله

٥٠٩٧-()وَرَوَاهُ أَحْمَدُ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ.

**ترجمه**: او احمد دا روایت د حضرت ابوهریره رضي الله عنه نه نقل کړی دی

**تسهيلات**:

**قوله**: بُعِثْتُ لِأُتَمِّمَ حُسْنَ الْأَخْلَاقِ:

**دنبی علیه السلام دبعثت په مقاصدو کې عظیم مقصد**: مطلب دا دې چه انبیاء کرامو به خپلو امتونو ته د اخلاقو د تعلیم ورکولو دپاره تشریف راوړلو، څه خو آخری نبی یم او زما د ذات د وجهې نه چه څنګه د دین تکمیل شوې دې هم دغه شان زما د ذات د وجهې نه د اخلاقو تعلیم مکمل شو، مطلب دا چه زما نه مخکې خلقو نه چه په اخلاق ابراهیی کښې کوم کمی پاتی شوې وو نو څه د هغې د تکمیل دپاره راغلې یم، لهذا د حدیث الباب مطلب دا شو چه حیاء او ایمان لازم او ملزوم دی او دا چه په کوم زړه کښې وی نو دواړه به وی او که نه وی نو دواړه به نه وی لهذا مومن بے حیاء نشی کیدې او کافر حیاء دار نشی کیدې.

**[٥٠٩٨] په آئینه کښې د کتلوپه وخت د خو اخلاقو دعا غوښتل**

٥٠٩٨-()[٢٥] [١] وَعَنْ جَعْفَرِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: [٢] «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- إِذَا نَظَرَ فِي الْمِرْآةِ قَالَ: "[٣] الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي حَسَّنَ خُلُقِي وَخَلْقِي، [٤] وَزَانَ مِنِّي مَا شَانَ مِنْ غَيْرِي»". رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ" مُرْسَلًا.

**ترجمه**: [١] او حضرت جعفر ابن محمد خپل پلار بزرگوار امام باقر رحمه الله نه نقل کوي، هغوئ بیان وکی [٢] چې رسول الله ﷺ به هنداره کتله نو فرمایل به یي [٣] ټول تعریفونه د الله د پاره دی چې زه یي په بهترین تخلیق سره ښائسته کړم، خما اخلاق او کردار یي ښه

---

(١) اخرجه مالک فی الموطا کتاب حسن الخلق /باب ما جاء فی حسن الخلق (رقم-٢)

(٢) اخرجه احمد فی المسند: ٣٨١/٢

(٣) اخرجه البیهقی فی شعب الایمان رقم الحدیث ٤٤٥٩

جوړ کی، [۴] او په ما کي هغه خيزونه آبني کړه چي خما د عيب او نقصان باعث دی، دا روايت بيهقي رحمه الله په شعب الايمان کې بطريق ارسال نقل کړی دی.

**حل اللغات:** - ① زَانَ: ښائسته ئې کړو. ② شَانَ: د شين نه دې په معنی د عيب سره.

**تسهيلات:**

**قوله:** الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي حَسَّنَ خُلُقِي وَخَلْقِي:

**انسان چه کله په خپل تخليق باندې نظر اوکړی نو د خپل رب شکريه د ادا کړی:**

انسان الله تعالی پيدا کړې دې اودې ئې اشرف المخلوقات جوړ کړې اودې ئې په احسن تقويم کښې ساتلو سره ښائسته کړې دې. دَدې تقاضا داده چه انسان کله په خپل تخليق باندې نظر اوکړی نو چه دَخپل رب او پيدا کونکی شکريه ادا کړی. په آئينه کښې دَمخ کتلو په وخت پيغمبر اسلام چه امت ته دَ کومې دعا تعليم ورکړې دې په هغې کښې هم دا حقيقت ښکاره کړې شوې دې چه انسان دَ خپل مخ د کتلو په وخت نه خو تکبر اوکړی او نه دَتخليق پس منظر هير کړی.

دَدې حديث سره راتلونکی حديث کښې هم يوه دعا ذکرده په هغې کښې هم حضورپاك امت ته تعليم ورکړې دې چه داسې دعاغواړئ. دَدې مطلب دانه دې چه حضورپاك دَخپل ځان دَپاره دعاغواړی بلکه دَامت دَتعليم دَپاره ئې الفاظ استعمال کړی دی. دَ راتلونکی حديث تشريح اوتوضيح هم دغه شان ده کومه چه پورته ليکلې شوې ده.

**[۵۰۹۹] د ښه صورت او ښه اخلاقو دعا**

۵۰۹۹-( )[۲۶] [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا - قَالَتْ: «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: " [۲] اللّٰهُمَّ كَمَا حَسَّنْتَ خَلْقِي فَأَحْسِنْ خُلُقِي». رَوَاهُ أَحْمَدُ.[1]

**ترجمه:** [۱] او بي بي عائشه رضي الله عنها وايي، چی رسول الله ﷺ به دا دعا ويله [۲] اې الله! تا خما جسماني تخليق ښه جوړ کړی دی، نو خما اخلاق هم ښه جوړ کړې. (احمد)

**تسهيلات:**

**قوله:** اللّٰهُمَّ كَمَا حَسَّنْتَ خَلْقِي فَأَحْسِنْ خُلُقِي:

**دښه اخلاقو دعا غوښتل:** دا دعا به نبی کريم ﷺ مطلق وقت کښې کوله يا په آئينه (شيشه) کښې خپل صورت کتلو په وخت کښې به ئې کوله، او د نبی کريم ﷺ دا دعا د امت د تعليم اوتلقين دپاره وه چه د امت خلق دې په خپل حق کښې دغه شان دعا غواړی يا ددې دعا تعلق خپله د نبی کريم ﷺ د ذات مبارک سره وو نو په دې صورت کښې د

[1] اخرجه احمد في المسند: ۶/۶۸

نبي كريم ﷺ مراد گويا چه د ډيروالي د طلب كولو درخواست وو چه يا الله خپل دين په ما باندې كامل او خپل نعمتونه په ما باندې پورا كړه.

**[٥٠٠] ښه اخلاقو والا بهترين خلق دي**

٥٠٠-()[٢٧] [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " [٢] «أَلَا أُنَبِّئُكُمْ بِخِيَارِكُمْ؟ " [٣] قَالُوا: بَلَى [٤] قَالَ: " خِيَارُكُمْ أَطْوَلُكُمْ أَعْمَارًا، وَأَحْسَنُكُمْ أَخْلَاقًا» " رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه** : [١] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي، چې رسول الله ﷺ اصحابو رضي الله عنهم ته وفرمايل. [٢] آيا زه تاسو ته ونښايم چې په تاسو كې بهترين كوم خلق دي، [٣] صحابه ؤ رضي الله عنهم عرض وكړو چې هو ضرور ونښايه [٤] نو حضور ﷺ ورته وفرمايل، په تاسو كې بهترين خلق هغه دي چې اوږد عمر والا وي او د هغوئ اخلاق ډير ښه وي. (احمد)

**تسهيلات:**

**قوله: خِيَارُكُمْ أَطْوَلُكُمْ أَعْمَارًا:**

**د اوږد عمر فضيلت څا دپاره دي:** دَاوږد عمر فضيلت دَهغه خلقودَپاره دي دَچا اعمال چه ښه وي. څومره چه عمر اوږدوي ښه اعمال به ئې زيات وي داد فائدې خبره ده ليكن دكومو خلقو اعمال چه بد وي كه دَهغوي عمر اوږد وي نو په هغې كښې به دَ فائدې په ځائې نقصان وي. بهرحال ښه اخلاق دَ خو اعمالو يوه حصه ده.

**[٥٠١] خو اخلاقو والا كامل مؤمنان دي**

٥٠١-()[٢٨] [١] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] «أَكْمَلُ الْمُؤْمِنِينَ إِيمَانًا أَحْسَنُهُمْ خُلُقًا» ". رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه** : [١] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] په ايمان كې كامل ترين خلق هغه دي د كوم چې اخلاق ښه وي. (ابوداؤد، دارمي)

**تسهيلات:**

**قوله: أَكْمَلُ الْمُؤْمِنِينَ إِيمَانًا أَحْسَنُهُمْ خُلُقًا:**

**ښه اخلاق د كامل ايمان معيار:** دا خبره ياد ساتل پكاردي چه په احاديثو كښې چه دَخو اخلاقو څومره فضيلتونه راغلي دي دَ هغې برعكس به دَبد اخلاقو هم دومره مذمت كيږي سره دَدې چه دَمذمت ذكر نه هم وي ځكه چه عالمان وائي: وبضدها تتبين الأشياء

[1] اخرجه احمد فى المسند:٢/٣٦٨

[2] اخرجه ابوداود فى السنن كتاب السنة/باب فى التخبير بين الأنبياء عليهم الصلاة والسلام (رقم-٤٦٧٢)واحمد فى المسند:٢/٢٥٠

**[۵۰۰۲] د فضيلت او اهميت والا دري اعمال**

۵۰۰۲-()[۲۹] ⓵وَعَنْهُ⓶«أَنَّ رَجُلًا شَتَمَ أَبَا بَكْرٍ، وَالنَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- جَالِسٌ يَتَعَجَّبُ وَيَتَبَسَّمُ،⓷فَلَمَّا أَكْثَرَ رَدَّ عَلَيْهِ بَعْضَ قَوْلِهِ،⓸فَغَضِبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَقَامَ فَلَحِقَهُ أَبُو بَكْرٍ،⓹وَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ كَانَ يَشْتُمُنِي وَأَنْتَ جَالِسٌ،⓺فَلَمَّا رَدَدْتُ عَلَيْهِ بَعْضَ قَوْلِهِ غَضِبْتَ وَقُمْتَ.⓻قَالَ: كَانَ مَعَكَ مَلَكٌ يَرُدُّ عَلَيْهِ، فَلَمَّا رَدَدْتَ عَلَيْهِ وَقَعَ الشَّيْطَانُ".

**توجمه :**⓵او حضرت ابو هريره ﷺ وايي چې يوه ورځ رسول الله ﷺ د صحابه ؤ ﷺ سره تشريف فرماوو. ⓶چې يو سړي حضرت ابوبکر صديق ﷺ ته بدرد وئيل شروع کړه حضور ﷺ (د هغه سختي خبري اوريدو سره) حيرت کوی او مسکی کيدی⓷ تردي چې هغه سړي بدرد ويلو کې د حد نه تير شو، نو حضرت ابوبکر صديق ﷺ هم د هغه د بعضې خبرو جواب ورکړو (يعني هغوئ هم ورته په جواب کې څه بدرد وويل)⓸ په دي باندي رسول الله ﷺ ناراضه شو، او د هغه ځای نه ولاړشو، ابوبکر ﷺ هم پسي روان شو .⓹ او په خدمت اقدس کې يې عرض وکړو چې يارسول الله! هغه سړي چې ماته بدرد ويل، نو تاسو ﷺ هلته ناست وئ،⓺ ليکن کله چې ما د بعضې خبرو جواب ورکړو (او د هغه الفاظو کې يابل انداز کې هغه ته مي بدرد وويل) نو تاسو ﷺ ناراضه شوئ او د هغه ځای نه پا څيدئ (په دي کې تاسو ﷺ په نزد څه حکمت وو) ⓻حضور ﷺ ورته وفرمايل (اصل خبره داده چې ترڅو پوري ته خاموش وي نو) ستا سره فرشته موجوده وه، هغه به ستا د طرف نه هغه ته جواب ورکوی نو کله چې تا خپله جواب ورکړو (او د غسي دنفس د خواهش د عمل دخل وشو) نو شيطان په منځ کې راودانګل

⓼ثُمَّ قَالَ: "يَا أَبَا بَكْرٍ! ثَلَاثٌ كُلُّهُنَّ حَقٌّ:⓽مَا مِنْ عَبْدٍ ظُلِمَ بِمَظْلِمَةٍ فَيُغْضِي عَنْهَا لِلَّهِ عَزَّ وَجَلَّ إِلَّا أَعَزَّ اللَّهُ بِهَا نَصْرَهُ،⓾وَمَا فَتَحَ رَجُلٌ بَابَ عَطِيَّةٍ يُرِيدُ بِهَا صِلَةً إِلَّا زَادَ اللَّهُ بِهَا كَثْرَةً،⑪وَمَا فَتَحَ رَجُلٌ بَابَ مَسْأَلَةٍ يُرِيدُ بِهَا كَثْرَةً إِلَّا زَادَ اللَّهُ بِهَا قِلَّةً»". رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**توجمه :** ⓼بيا يي وفرمايل اې ابوبکره ﷺ! دري خبري دي او هغه ټولي حق دي. ⓽يو خو داچي کوم بنده ديو ظلم ښکار شي او محض د الله د رضا او هغه دثواب د طلب د پاره نه چې د خپل عجز په وجه ياښودلو، اوروِلو د پاره هغه ظالم نه چشم پوشي کوي (سترګي پټوي) يعنی هغه ته معافي کوي او بدله اخستل ترک کوي يا د هغه معامله الله ته سپارلو سره په دنيا کې د هغه نه څه مطالبه نه کوي، يا داچي هغه مطلق معاف کوي نو الله ﷻ د هغه ظلم په سبب يا د هغه د وصفِ چشم پوشي په بناء دنيا او آخرت کې د خپل مدد په ذريعه هغه بنده مضبوط او قوي جوړ وي،⓾ دويم داچي کوم بنده د خپلي

[1] ) اخرجه احمد في المسند:۲/۴۳۶

ورکړي او بخښش دروازه خلاصه کړي چې د هغه په ذريعه خپل قرابتدارو او مسکينانو سره احسان او نيك سلوك وکړي (يعني د هغه مالي امداد او اعانت وکړي نو الله ﷻ به د هغه د ورکړې او بخښش په سبب د هغه مال ودولت کې د ظاهري او باطني خير او برکت په صورت کې) اضافه کوي[۱] او دريم داچې کوم سړی د سوال او گدايي دروازه خلاصه کړي چې د هغه په ذريعه خپل دولت زيات کړي (يعني د هغه د خلقو مخکې د سوال لاس اوږدول د حاجت او ضرورت په بناء نه وي. محض د خپل مال ودولت د اضافې په خاطر وي) نو الله ﷻ د هغه د گدائي په سبب د هغه مال ودولت نور کموي، که په ظاهري طور سره د هغه مال او دولت نقصان او بربادي سره مخ کوي يا د هغه د خير او برکت نه يې داسې محروم کوي چې هغه هروقت په خپل مال کې کمی او نقصان محسوسوي. (احمد)

**حل اللغات:** - ① فَلَجِئَةُ: ورغې وريسې، ② يُغْضِي: چشم پوشي کوي. سترگې پټوي. (يعنی بدله ترې نه آخلي)

**تسهيلات:**

**قوله: وَالنَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - جَالِسٌ يَتَعَجَّبُ وَيَتَبَسَّمُ:**

**دنبی عليه السلام د تعجب اوتبسم وجه:** د تعجب کولو او د خندلو تعلق يا خو د هغه کس د بد زبانی او په هغې کښې د شرم او حجاب د کمی په وجه وو يا د حضرت ابوبکر صديق ﷛ صبر او تحمل او د باوقار رويه په وجه وو او د تبسم کولو تعلق د هغه فرق سره وو کوم چه نبی کريم ﷺ ددې دواړو په مينځ کښې ليدلو دارنگ نبی کريم ﷺ په دې دواړو باندې چه کومه نتيجه مرتب کيدله هغه ئي هم ليدله چه هغه کس د خپلی بد کلامی په وجه د عذاب مستحق کيدلو او حضرت ابوبکر صديق ﷛ د صبر او تحمل په وجه د نزول رحمت مستحق کيدلو، حضرت ابوبکر صديق ﷛ هم ددې د بعضې خبرو جواب ورکړو گويا چه حضرت ابوبکر صديق ﷛ په دې موقع باندې په جواب ورکولو سره او په رخصت او اجازت باندې ئي عمل وکړو، کوم چه د عام کس دپاره مناسب دې او هغه عزيمت ئي ترک کړو کوم چه د خواصو د مرتبې او شان سره عين مطابق دې لکه الله تعالی فرمائي "وجزاء سيئة سيئة مثلها فمن عفا وأصلح فأجره على الله" بل آيت کښې دی "وان عاقبتم فعاقبوا بمثل ما عوقبتم به ولئن صبرتم لهو خير للصابرين" نو ابوبکر صديق ﷛ د بعضو خبرو بدله واخستله او په بعضو خبرو باندې ئي صبر اختيار کړو گويا د دواړ اړخونو رعايت ئي وکړو چونکه نبی عليه السلام جواب ورکول د شان صديقی لائق اونه گڼړل ددې وجه نه نبی کريم ﷺ چه کله دا خبره وليدله نو خفا شو او د مجلس نه لاړو

**قوله: فَلَمَّا رَدَدْتُ عَلَيْهِ وَقَعَ الشَّيْطَانُ:**

**دابوبکر په جواب ورکولو د شیطان مداخلت**: شیطان ددوی په مینځ کښې راغلو یعنی کله چه تا پخپله جواب ورکړو نو شیطان دخل اندازی شروع کړه او کومی فرښتې چه ستا طرف نه جواب ورکولو هغه آسمان ته لاړه او تا ته پته هم شته چه کله په یوه معامله کښې شیطان مینځ ته راشی نو د الله تعالی رحمت او مدد اوچت شی نو ددې وجهې نه څه هم لاړم.

**[۵۰۰۳] د نرمئ فائده او د سختئ نقصان**

۵۰۰۳-(۱)[۳۰] [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا- قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[۲]«لَا يُرِيدُ اللَّهُ بِأَهْلِ بَيْتٍ رِفْقًا إِلَّا نَفَعَهُمْ، [۳] وَلَا يَحْرِمُهُمْ إِيَّاهُ إِلَّا ضَرَّهُمْ» "رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ".

**ترجمه**: [۱] او بي بي عائشه رضي الله عنها وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل، [۲] الله تعالی چې کوم کورونو د پاره نرمي او مهرباني خوښوي، د هغه په ذريعه هغوئ ته نفع رسوي، [۳] او کوم کورونه چې د نرمئ او مهربانئ نه محرومه کوي، د دې په ذريعه هغوئ ته نقصان رسوي. (بيهقي)

**تسهیلات:**

**قوله: وَلَا يَحْرِمُهُمْ إِيَّاهُ إِلَّا ضَرَّهُمْ:**

**د نرمئ فضیلت او سختئ مذمت**: د حدیث الباب مطلب دا دې چه الله تعالی په کومو کسانو باندې مهربانی وکړی نو دهغوی په زړونو کښې نرمی واچوی نو کله چه هغوې په خلقو باندې نرمی کوی نو په خلقو کښې د هغوی عزت نور هم زياتيږی او په کومو خلقو باندې چه الله تعالی ناراض شی نو ددوې زړونه د نرمی نه محرومه کړی نو کله چه ددوې زړونه سخت شی نو ددوی د خلقو سره په دنیاوی معاملاتو کښې په سختی سره پیش کیږی کوم سره چه د خلقو په زړونو کښې د دوی نفرت هم زیات شی.

[۱]) اخرجه البيهقي في شعب الايمان رقم الحديث ۸۴۱۸

# [۲۰] بَابُ الْغَضَبِ وَالْكِبْرِ

## دَغصې او دَتکبر بيان

**خلاصة الباب**

**فيه تسعة عشر حديثاً مشتملة على ثلاث مسائل:**

① النهي عن الغضب وقباحته: ۱، ۳، ۱۰، ۱۵-

② فضيلة كظم الغضب وطريق إطفائه: ۲، ۳، ۱۰، ۱۱، ۱۳، ۱۴، ۱۷، ۱۸-

③ قباحة الكبر: ۳، ۴، ۵، ۶، ۷، ۸، ۹، ۱۲، ۱۶، ۱۹-

**دغضب تعريف:** غضب او غصه دَ هغه شيطاني اغوا او راپارولو نوم دې دکوم په وجه چه انسان په ظاهري اوباطني اعتبارسره خپل طبعي مزاج او حدودو دَ اعتدال نه بهر کيږي.

**د غصې علامات:**

① دَ غضب اوغصې اثر دَهغه سړي په مخ باندې هم ظاهريږي اودَ هغه مخ سور شي

② دَ غاضب د سترګونه اوپړسيږي.

③ بعضې وخت دَاجنوني کيفيت دومره زياتيږي چه سړې مر کيږي.

**د غصې په انساني فطرت کښې موجودتيا:** غصه في نفسه څه خراب خصلت نه دې چه دې ته اصلاً قبيح اوويلې شي بلکه غضب خودَ انساني کمال يوه حصه ده.بلکه د غصې وجود په انسان پکار دې.هغه سړې الله تعالى هم نه خوښوی چا ته چې په څه باندې هم غصه نه ورځي.

**دغصې دوه قسمونه:**

① غضب محمود: کله چې د الله تعالى په شان کښې ګستاخي کولې شي يا په شعائر الله کښې د يو توهين کولی شي يا د انسان په عزت باندې څوک لاس پورته کوي.نوپه داسې مقاماتو کښې غصه کول ضروري دی که سړې غصه نه کوي.نودا بزدل اوډرپوک دې.

② غضب مذموم: کله چې په ناجائزه طريقه د خپلې غصې اظهار کولې شي نودا مذموم دې مثلاً زيدعمرو ته څه معمولي غوندې خبره وکړه او عمرو راپاسيدلو هغه ئې قتل کړلو.يا په معمولي معمولي خبره باندې يوبل سره جګړه کول کنځل کول وغيره دا ټول مذموم کښې راځي.

**قوله: وَالْكِبْرِ:**

**دتکبر تعريف:** په اصل کښې دکبر معنى لوئي ده يعنى خپل ځان داسې لوئي ګنړل په کوم سره چه په زړه اودماغو کښې ځان خوښې ځان ليدل اوعُجب پيداشي دکوم په نتيجه

کښې چه سړې نور خلق حقير اوذليل ګڼړی اودَ حق په پريخودلو باندې راشي.

**دتکبر د لوئې ګناه کيدو وجه**: په انسان کښې ذاتی اوحقيقی لوئی نشته دې په دې وجه هغه دَ کبر تکبر اوشيخی خودلو نه منع کړې شوې دې بلکه ده ته د عاجزۍ حکم شوې دې اوالله تعالی جل جلاله دَ ذاتی کبريائی مالك دې هغه "المستجمع لجميع صفات الکمال" دې په دې وجه کبريائی او لوئی هغه سره خاص ده.هم په دې وجه ئی انسان دتکبرکولو څخه منع کړې شوې دې اوهغه ته دَتواضع او عاجزئی تعليم ورکړې شوې دې.

**د غصې سړولو علاج**: دَ نبی پاك په تعليماتو کښې دَ غصې يخولو علاج هم موجود دې چه غصه کښې راګيرسړې دې غسل اوکړی يا دې اودس اوکړی يا دې يخې اوبه استعمال کړی يا دې اعوذبالله اووائی اوکه ولاړ وی نو کيدينی که ناست وی نو سمديلی يا دې دَدې عکس اوکړی څکه چه حالت بدليدوسره غصه ځی.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۵۰۰۳] د حضورپاك ﷺ وصيت دې چې غصه مه کوه!**

۵۰۰۳-(۱)[۱] [۱]عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ-رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- [۲]«أَنَّ رَجُلًا قَالَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَوْصِنِي. [۳]قَالَ: "لَاتَغْضَبْ". [۴]فَرَدَّدَ ذَلِكَ مِرَارًا[۵]قَالَ: "لَاتَغْضَبْ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه**: [۱]او حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی [۲]چې يو سړي رسول الله ﷺ ته عرض وکړو. يارسول الله! ماته څه نصيحت وفرمايه، (چې په هغه عمل کولو سره د دين دنيا خير حاصل کړم) [۳]حضور ﷺ ورته وفرمايل، غصه مه کوه، [۴]هغه سړي داخبره (چې تاسو ﷺ ماته څه نصيحت وفرمايه) څو ځله وکړه، [۵]او حضور ﷺ به ورته هروار دافرمايل. چې غصه مه کوه (بخاري)

**حل اللغات**:- ① مِرَارًا: بار بار. څوڅو ځله.

**تسهيلات:**

**قوله**: قَالَ: "لَاتَغْضَبْ:

**باربار د غصې نه کولو حکم کولو وجه**: دغه سړی ته رسول الله ﷺ بار بار هم دغه اوفرمائيل غصه مه کوه.دَدې نه معلوميږی چه په دغه سړی کښې دَ صبر کمزوری وه اودَ غضب ماده په کښې زياته وه.دې سړی بار بار درخواست کولو اې دَ الله تعالی رسول! ماته وصيت اونصحيت اوکړه مګر حضورپاك بار بار تاکيد کولو چه غصه مه کوه څکه

---

[1] اخرجه البخاري فی کتاب الأدب/باب الحذر من الغضب (رقم-۶۱۱۶) والترمذی فی کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی کثرة الغضب(رقم-۲۰۲۰) ومالک فی الموطا کتاب حسن الخلق/باب ما جاء فی الغضب (رقم-۱۱) واحمد فی المسند:۱۷۵/۲

چه په حقيقت کښې غضب دَعقل دَمغلوبيت نوم دې او کله چه عقل مغلوب شی نو دا يو بدی نه ده بلکه دبدو جرړه ده. کله چه عقل مغلوب شی نو باقی پاتې څه شو؟ لکه چه دَدغه سړی دَ پاره لوئی نصيحت دا وو چه غصه مَه کوه ته چه کله غصه نه کوې نو دَدين او دنيا دواړو فائدې به حاصلې کړې شې.

**[۵۰۰۵] اصل پهلوان هغه دې چې ځان قابو کې اوساتی**

۵۰۰۵-()[۲] ۞وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "۞«لَيْسَ الشَّدِيدُ بِالصُّرَعَةِ، ۞إِنَّمَا الشَّدِيدُ الَّذِي يَمْلِكُ نَفْسَهُ عِنْدَ الْغَضَبِ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۞او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل، ۞طاقتور او پهلوان سړی هغه نه دی چې خلق را غوځاروي، ۞بلکې طاقتور او پهلوان سړی هغه دی چې د قهر په وخت خپل نفس راغوځار کړي، او خپل ځان منع کړي. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** - ①الشَّدِيدُ: طاقور، پهلوان. ②الصُّرَعَةِ: راپرځونکې، راغوځارونکې. ③الْغَضَبِ: غصه، قهر.

**تسهيلات:**

**قوله: إِنَّمَا الشَّدِيدُ الَّذِي يَمْلِكُ نَفْسَهُ عِنْدَ الْغَضَبِ:**

**دحقيقی پهلوان تعريف:** دا هيڅ کمال نه دې چه څوك په کُشتئی کښې راګذار کړې شی يا پهلوانئی کښې غلبه حاصله کړې شی او ده ته دَ پهلوانئی تمغه ملاؤ شی. ليکن دَ غصې اوغضب په وخت هغه سړې مغلوب الحال جوړيدو سره دَ خپل کنټرول نه بهر شی او ګډې وډې وئيل شروع کړی او جنګ شروع کړی. دَ پهلوانئی په زور لګولو کښې خو هغه مضبوط پاتې شو مګر دَغصې دَلاسه ئی ماتې اوخوړله.

**د سعدی بابا يوه عجيبه قصه:**

په ګلستان کښې سعدی بابا رحمه الله يوه قصه ليکلې ده چه يو پهلوان دَ غصې نه مغلوب کيدو سره په ګډو وډو باندې سرشوې وو سترګې ئی سرې شوې وې دَ ستې رګونه ئی پړسيدلې وو او مخ ئی سور شوې وو. باباسعدی تپوس اوکړو دا سړې څوك دې او په ده څه شوی دی؟ خلقو اووئيل پهلوان دې چاغصه کړې دې په دې وجه ئی دا حالت شوې دې باباسعدی وئيل چه عجيبه پهلوان دې پهلوانئی کښې خو ثابت قدم وی ليکن دَژبې په يو ذره شان خبره په شا پريوتلو سملاستو.

---

[1]) اخرجه البخاري فی کتاب الأدب/باب الحذر من الغضب (رقم-۶۱۱۴) ومسلم فی کتاب البر والصلة والآداب/باب فضل من يملک نفسه عند الغضب وبأی شیء يذهب الغضب(رقم-۱۰۷ (۲۶۰۹) وابوداود فی کتاب الأدب/باب من کظم غيظًا (رقم-۴۷۷۹) ومالک فی الموطا کتاب حسن الخلق/باب ماجاء فی الغضب (رقم-۱۲)(رقم-۱۱) واحمد فی المسند:۲/۲۳۶

په دې حدیث کښې حضورپاك د ظاهری قوت په ځائی باطنی قوت اصل ګرځولې شوې دې. او د دنیاوی قوت په ځائی د دین قوت اصل ګرځولې دې "

**[۵۰۰٦] جنتیان څوک دی او دوزخیان څوک دی؟**

۵۰۰٦-()[۳] [۱] وَعَنْ حَارِثَةَ بْنِ وَهْبٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[۲] «أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِأَهْلِ الْجَنَّةِ؟ [۳] كُلُّ ضَعِيفٍ مُتَضَعِّفٍ لَوْ أَقْسَمَ عَلَى اللهِ لَأَبَرَّهُ. [۴] أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِأَهْلِ النَّارِ؟ [۵] كُلُّ عُتُلٍّ جَوَّاظٍ مُسْتَكْبِرٍ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. [٦] وَفِي رِوَايَةٍ: "كُلُّ جَوَّاظٍ زَنِيمٍ مُتَكَبِّرٍ".

**ترجمه:** [۱] او حارثه بن وهب ﷜ وایي، چې رسول الله ﷺ وفرمایل، [۲] آیا زه تاسو ته جنتیان ونښایم (یعني چې کوم خلق جنتیان دي، نو واورئ) [۳] هرهغه ضعیف سړی جنتي دی چې خلق یي کمزور او حقیر ګڼي (او د هغه د کمزورۍ او شکسته حالي په وجه هغه سره د جبر او تکبر معامله کوي) حالانکې د حقیقت د اعتبار نه هغه ضعیف او کمزور د الله په نزد دومره پورته درجه لري، که هغه د الله په بهروسه په څه خبره قسم واخلي نو الله ﷻ د هغه قسم رښتیا کوي [۴] او آیا زه تاسو ته هغه خلق ونښایم کوم چې دوزخیان دي [۵] نو واورئ هرهغه سړی دوزخي دی، چې دروغ او لغو خبرو باندې سخت ګویې کونکی او جګړه والا وي، مال جمع کونکي بخیل وي او تکبر کونکی وي (بخاري، مسلم) [٦] او د مسلم په یو روایت کې دا الفاظ دي، چې هرهغه سړی دوزخي دی چې مال جمع کونکی، حرام زاده او تکبر کونکی وي.

**حل اللغات:-** ① مُتَضَعِّفٍ: کمزورې، ② لَأَبَرَّهُ: برې به ئې کړی، قسم به ئې رښتیا کړی، ③ عُتُلٍّ: سخت سرکش. جګړمار. ④ الْجَوَّاظُ: الَّذِي جَمَعَ وَمَنَعَ: یعنی چه مال جمع کوی خو سائل ته هیڅ نه ورکوی. ⑤ مُسْتَكْبِرٍ: تکبر او غرور کونکې، ⑥ زَنِيمٍ: بدنام او ولدزنا ته زنیم وائی. په شر کښې چه مشهوروی هغه ته هم وائی.

**تسهیلات:**

**د بعضې مشکلو جملو وضاحت:**

① **كُلُّ ضَعِيفٍ مُتَضَعِّفٍ:** ضعیف خو کمزوری ته وائی لیکن متضعف هغه ته وائی چه پخپله کمزورې نه وی لیکن خلق هغه سپك او کمزورې ګڼری. مطلب چه څوك کمزورې او ورك ژوند تیرونکې وی نه د کبر والا وی او نه د غرور والا وی دا سړې جنتی دې.

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب تفسیر القرآن/باب {عتل بعد ذلک زنیم} [القلم: ۱۳] (رقم-٤٩١٨) ومسلم فی کتاب الجنة وصفة نعیمها وأهلها/باب النار یدخلها الجبارون والجنة یدخلها الضعفاء (رقم-٤٦ - (٢٨٥٣) والترمذی فی کتاب صفة جهنم عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-٢٦٠٥) وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب من لا یؤبه (رقم-٤١١٦) واحمد فی المسند: ٤/٣٠٦

④ لَوْأَقْسَمَ عَلَى اللّٰهِ لَأَبَرَّهُ: يعنى كه هغه په څه خبره باندې قسم اوخورى چه داكاربه داسې وى نو الله تعالى دَ هغه دَ قسم خيال ساتى. څنګه چه حضرت انس ﷺ قسم خوړلې وو چه دَهغه دَترور غاښونه به نه ماتيږى بيا هم دغه شان اوشو

⑥ كُلُّ عُتُلٍّ جَوَّاظٍ مُسْتَكْبِرٍ: جواظ: دَدې يوه تشريح داهم ده چه "اي جمع ومنع" متكبر اوسخت متكبر مراد دې مخكښې تشريح شوې ده.

**[٥٠٧] چې ذره برابر تكبر لرونكې زړه كې وى نو جنت كښې به نه داخليږى**

٥٠٧-( ) [٣] ١ وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " ٢ «لَا يَدْخُلُ النَّارَ أَحَدٌ فِي قَلْبِهِ مِثْقَالُ حَبَّةٍ مِنْ خَرْدَلٍ مِنْ إِيْمَانٍ. ٣ وَلَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ أَحَدٌ فِي قَلْبِهِ مِثْقَالُ حَبَّةٍ مِنْ خَرْدَلٍ مِنْ كِبْرٍ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ١ د ابن مسعود رضى الله عنه څخه روايت دى فرمائى رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ هغه سړى به هميشه دپاره په دوزخ كې نه داخليږي چې د هغه په زړه كې د سپلنى د داني برابر ايمان وي ٣ او هميشه د پاره به هغه سړى په جنت كې نه داخليږي چې د هغه په زړه كې د سپلنى د داني برابرهم تكبر وي. (مسلم)

**حل اللغات:-** ① مِثْقَالُ: ذره برابر، معمولى، ② حَبَّةٍ: دانه، ③ خَرْدَلٍ: د سپلنى دانه يعنى تخم. د غوښت دانه،

## تسهيلات: قوله: لَايَدْخُلُ النَّارَ:

**د حديث دوه مطلبونه:** ① دَدې مطلب دادې چه كه دَ يو سړې په زړه كښې يو ذره برابرهم ايمان وى نوهغه به دَدوزخ نه راؤځى دكافر په شان به هميشه دوزخ كښې نه وى. دغه شان چه دَ يو سړى په زړه كښې يو ذره برابر تكبر وى هغه سړې به جنت كښې نه داخليږى. دَدې جملې مطلب دادې چه كبر اوتكبر نه دلته كفر اوشرك مراد دې لكه چه راتلونكى حديث نمبر(٥٠٨) كښې راځى چه كبر "بطر الحق وغمط الناس" په معنى كښې دې. يعنى حق غوررزول اوخلق سپك اوذليل ګڼړل. ښكاره خبره ده چه كوم سړې حق غوررزوى هغه چرته مسلمان پاتې كيدې شى.

دَدې حديث ② دويم مطلب دادې چه دلته دكبر نه كفر مراد نه دې بلكه ځان خوښى غرور اوځان خودل مراد دى. نودَدې حاصل دا شو چه داسړې ګناه ګاردې اول ځل دخول كښې به جنت كښې نه داخليږى البته دَ سزا خوړلونه پس به جنت ته ځى.

[١] اخرجه مسلم فى كتاب الإيمان/باب تحريم الكبر وبيانه (رقم-١٤٨ - (٩١) وابوداود فى كتاب اللباس/باب ما جاء فى الكبر (رقم-٤٠٩١) والترمذى فى كتاب البر والصلة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى الكبر (رقم-١٩٩٨) وابن ماجه فى كتاب الزهد/باب البراءة من الكبر والتواضع (رقم-٤١٧٣) واحمد فى المسند: ٤١٢/١

## [۵۰۰۸] تكبر څه ته والی؟

۵۰۰۸-()[۵] ۱ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "۲ «لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ مَنْ كَانَ فِي قَلْبِهِ مِثْقَالُ ذَرَّةٍ مِنْ كِبْرٍ". ۳ فَقَالَ رَجُلٌ: إِنَّ الرَّجُلَ يُحِبُّ أَنْ يَكُونَ ثَوْبُهُ حَسَنًا وَنَعْلُهُ حَسَنًا. ۴ قَالَ: "إِنَّ اللّٰهَ تَعَالَى جَمِيلٌ يُحِبُّ الْجَمَالَ. ۵ الْكِبْرُ بَطَرُ الْحَقِّ وَغَمْطُ النَّاسِ»" رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: ۱ او حضرت ابن مسعود ﷺ وایي، چې رسول الله ﷺ وفرمایل، ۲ هغه سړی به په جنت کې نه داخلیږي چې د هغه په زړه کې یوه ذره تکبر وي، ۳ په دې اوریدو سره یو سړي عرض وکړو، یا رسول الله که یو سړی داخوښوي چې د هغه لباس دې ښه وي او د هغه څپلۍ دې ښه وي، او هغه د څپلي خوښي ښه لباس اغوندي، او ښه څپلۍ استعمالوي نو آیا دې ته به هم تکبر وئیل کیږي، ۴ حضور ﷺ ورته وفرمایل. الله ﷻ جمیل یعنی ښه او ښائسته دی، او جمال یعنی ښه والی او آراستګی خوښوي. ۵ او تکبر دادی چې حقه خبره ونه منل شي او خلق حقیر او ذلیل وګڼل شي. (مسلم)

**حل اللغات**:- ① بَطَرُ الْحَقِّ: حق خبره نه منل، ② غَمْطُ النَّاسِ: خلق سپک او ذلیل ګڼړل.

**تسهیلات**:

**قوله**: إِنَّ الرَّجُلَ يُحِبُّ أَنْ يَكُونَ ثَوْبُهُ حَسَنًا وَنَعْلُهُ حَسَنًا:

**دښه لباس اوښه پیزار اغوستلو حکم**: دَسائل مطلب دا ووچه ښه کپړې ښه څپلئی اوښه اغوستل اوښه اوسیدل هرمسلمان خوښوی نو آیا دا هم دَ تکبر په دائره کښې راځی؟ حضورپاك په جواب کښې اوفرمائیل نه.داخو زینت اوښائست دې اوجمال خودَ الله تعالی خوښ دې.تکبر دادې چه یو انسان حق اوغورزوی اوخلق سپك اوذلیل ګڼړلوسره پره کړی یعنی اصل تکبر دَ هغه غرور اوځان خوښئ نوم دې چه انسان دَحق نه اخوا کړی اود نیغې لارې نه ئی واړوی

**قوله**: إِنَّ اللّٰهَ تَعَالَى جَمِيلٌ يُحِبُّ الْجَمَالَ:

**جمال او حسن کښې معنوی فرق**: باطنی خوبیانو اوښه صفاتو دَ پاره دَ جمال لفظ وئیلې شی لکه چه د جمال تعلق دَ باطنی خوبیانو سره دې په دې وجه دَدې اطلاق په الله تعالی باندې کیږی "الله جمیل" وئیلې شی لیکن دَحسن تعلق ظاهری بدنی اعضا په تناسب سره دې په دې وجه دَدې اطلاق په الله تعالی باندې نه کیږی او "الله حسین" وئیل جائز نه دی.

[1] اخرجه مسلم فی کتاب الإیمان/باب تحریم الکبر وبیانه(رقم-۱٤۷ - (۹۱) وابوداود فی کتاب اللباس/باب ما جاء فی الکبر (رقم-٤۰۹۱) والترمذی فی کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الکبر (رقم-۱۹۹۹) واحمد فی المسند: ۱/۳۹۹

[۵۰۰۹] درې بدبخته کسان به د الله تعالی د رحمت او توجو نه محروم وی

۵۰۰۹-()[۲] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[۲]«ثَلَاثَةٌ لَا يُكَلِّمُهُمُ اللَّهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَلَا يُزَكِّيهِمْ" .[۳] وَفِي رِوَايَةٍ: "وَلَا يَنْظُرُ إِلَيْهِمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ: [۴] شَيْخٌ زَانٍ، وَمَلِكٌ كَذَّابٌ، وَعَائِلٌ مُسْتَكْبِرٌ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت ابوهریره رضی الله عنه وایي، چې رسول الله ﷺ وفرمایل. [۲] درې سړي دي چې د هغوئ سره به الله جل جلاله د قیامت په ورځ کلام ونه کړي. (یعنې یاخو د رضا او خوشنودی کلام ونه کړي، یا مطلق هیڅ کلام به ورسره ونه کړي) او نه به د هغوئ تعریف او ستائش وکړي [۳] او په یوه روایت کې دا الفاظ هم دي، چې نه به د هغوئ طرف ته (د رحمت او عنایت نظر سره) وګوري، او د هغوئ د پاره به دردناك عذاب وي [۴] یو زناکار بوډا دویم دروغجن بادشاه او دریم تکبر کونکی مفلس. (مسلم)

**حل اللغات**:- ① شَيْخٌ: بوډا، ② زَانٍ: زناکار. ③ عَائِلٌ: عیالدار غریب. محتاجه غریب. ④ مُسْتَكْبِرٌ: تکبر او غرور کونکې

**تسهیلات**:

**قوله**: ثَلَاثَةٌ لَا يُكَلِّمُهُمُ اللَّهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ:

**دقیامت په ورځ درې کسانو سره دالله تعالی خبرې نه کول**: یعنی درې قسمه خلق داسې دی چه الله تعالی به دَ قیامت په ورځ نه هغوی سره کلام کوی اونه به په نظرِ دَ رحمت دَهغوی طرف ته ګوری بلکه دَهغوی دَپاره به دردناك عذاب وی. چه الله تعالی اووینی او هغوی سره کلام اوکړی لیکن هغوی به دَ رحمت دَ دغه میدان نه لرې ساتلې شی

**قوله**: شَيْخٌ زَانٍ:

**د بوډا زنا کار ګناه به ولې زیاته وی؟**: په دې دریوارو خلقو کښې به یو قسم خلق هغه وی چه پخپله به بوډا ګان شوی وی مګربیابه هم په زناکښې اخته وی دَبوډا زناکار ګناه به ځکه زیاته وی چه په ځوانئی کښې دَ شهوت زیاتوالې اولیونتوب وی جوش جذبه او مردانه طاقت ئې مجبوره کوی نو سره دَدې چه په ځوانئی کښې هم زناکول ګناه ده مګر څه مجبوری هم ده. لیکن په بوډاوالی کښې قوت شهویه کمزورې کیږی او په بوډا بوډئی کښې جنسی خواهش هم غالب نه وی قبر هم نیزدې وی په داسې حالت کښې زناکول

[۱] اخرجه مسلم فی کتاب الإیمان/باب بیان غلظ تحریم إسبال الإزار، والمن بالعطیة، وتنفیق السلعة بالحلف، وبیان الثلاثة الذین لا یکلمهم الله یوم القیامة، ولا ینظر إلیهم، ولا یزکیهم ولهم عذاب ألیم (رقم-۱۷۲ - (۱۰۷) وابوداود فی ابواب الإجارة/باب فی منع الماء (رقم-۳۴۷۵) والترمذی فی کتاب السیر عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی نکث البیعة (رقم-۱۵۹۵) والنسائی فی کتاب البیوع/باب المنفق سلعته بالحلف الکاذب (رقم-۴۴۵۸) وابن ماجه فی کتاب التجارات/باب ما جاء فی کراهیة الأیمان فی الشراء والبیع (رقم-۲۲۰۷) واحمد فی المسند:۲/۴۸۰

صرف خباثت نفسي دي نه چه غلبه جنسي.

**قوله: وَمَلِكٌ كَذَّابٌ**: دروغ وئیل دَ هرسړی دَپاره ګناه ده لیکن دَ بادشاه دَ پاره دَنورو نه زیاته ګناه څکه ده چه دَ بادشاه دَ وجې نه به رعایا په دروغو کښې لګیاشي. بله خبره داده چه دَ بادشاه دَپاره څه مجبوری نشته هغه خود مختار دې هغه ته هیڅ ضرورت نه وی باوجود دَ خودمختیار کیدو او نه مجبور کیدو بغیردَ ضرورت نه دروغ وئیل دَعام ګناه نه لوئی خباثت دې.

**قوله: وَعَائِلٌ مُسْتَكْبِرٌ**: عائل صاحب عیال فقیرته وائی اوس یو سړې فقیرهم دې اوعیال دارهم دې اودَدې مجبورو اومحتاجونه باوجود هغه دَ زکوة صدقات اخستلونه انکارکوی. خپل ځان او خپل عیال په هلاکت کښې اچوی اودا هرڅه دَ داسې تکبر په وجه باندې کوی کوم ځائی چه دَتکبر کولو ګنجائش نشته دې. په دې وجه دا ګناه دَ داسې نورقسم ګناهونونه زیاته ده. سوال کولو اوزکوة اخستلونه خپل ځان بچ کول یو ښه عمل دې لیکن دَداسې محتاج کیدو باوجود خپل حاجت تکبر او غرور په وجه پټول نوره ګناه ده په دې وجه دَ هغه ګناه زیاته ده. اولګه تنده دَ الله تعالی دَ طرف نه ده او زکوة هم دَدې فقیرانوحق دې بیا په دې کښې تکبر کول ډیر خراب کاردې.

**[۵۰] لوئی او کبرائی صرف دَ الله تعالی شان سره مناسب دی**

٥٠٠-() [٤] [١] وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[٢] «يَقُولُ اللهُ تَعَالَى: الْكِبْرِيَاءُ رِدَائِي، وَالْعَظَمَةُ إِزَارِي،[٣] فَمَنْ نَازَعَنِي وَاحِدًا مِنْهُمَا أَدْخَلْتُهُ النَّارَ". [٤] وَفِي رِوَايَةٍ: "قَذَفْتُهُ فِي النَّارِ»؟ رَوَاهُ مُسْلِمٌ[1]

**ترجمه**: [١] او حضرت ابوهریره رضی الله عنه وایي، چې رسول الله ﷺ وفرمایل، [٢] الله جل جلاله فرمایي چې ذاتي بزرګي (ګویا ستاسو د اعتبار نه) ځما څادر دی، او صفاتي عظمت (ګویا ستاسو د اعتبار نه) ځما لنګ دی، [٣] نو څوک چې ځما ذات او صفاتو کې د شرک ارتکاب کوي، زه به هغه عذاب ورکونکی په اور کې داخل کړم، [٤] او په یو روایت کې دا الفاظ دي، چې زه هغه په اور کې وغورځوم. (مسلم)

**حل اللغات**:- ① الْكِبْرِيَاءُ: ذاتی بزرګی او لوئی، ② رِدَاءُ: څادر، عزت، ③ إِزَارُ: لنګ، ④ قَذَفْتُهُ: اوبه نې غورځوم.

**تسهیلات**:

**قوله: الْكِبْرِيَاءُ رِدَائِي**:

**په لفظ الکبریاء او عظمت کښې فرق**: یعنی دا زما ذاتی حق دې نوچه کوم سړې زما سره

---

[1] اخرجه مسلم فی کتاب البر والصلة والآداب/باب تحریم الکبر (رقم-۱۳۶ - (۲۶۲۰) وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب البراءة من الکبر والتواضع (رقم-٤١٧٤) واحمد فی المسند:٤١٤/٢

په دې کښې مقابله کوی او زما په ذاتی اوچتوالی او صفاتی عظمتونو کښې دخل کوی نوزه به هغه دوزخ کښې واچوم په دې حدیث کښې یو لفظ دَ الکبریاء دې دویم دَ العظمة دې بعضې علماؤ دا مترادف الفاظ گرځولو سره هم په یو معنی باندې حمل کړې دی لیکن بعضې نور علماء لکه دَملاعلی قاری رحمه الله او علامه طیبی رحمه الله فرمائی چه الکبریاء هغه لوئیئی ته وائی دکوم تعلق چه ذات سره وی او مخلوق هغه کماحقه نه پیژنی اوعظمت هغه بزرگئی ته وائی چه دَالله تعالی دَ صفت سره متعلق وی او مخلوق هغه پیژنی چنانچه دَ الله تعالی لوئی دَدې کائنات دَ وجودنه تول مخلوق پیژنی هم دَدې فرق په رڼا کښې دکبریا نسبت څادر طرف ته اوکړې شو اودَ عظمت نسبت دَ لنگ طرف ته اوکړې شو او څادر په نسبت دَ لنگ اعلی او اوچت وی "رداء" او "إزار" الفاظ دَمتشابهاتو نه دی دَدې ترجمه به دَ مایلیق بشانه سره کیږی

**قوله**: فَمَنْ نَازَعَنِي وَاحِدًا مِنْهُمَا:

**دمذکوره جملې مطلب**: یعنی کوم سړې چه زما ذاتی یا اضافی لویو کښې دَ شریکیدو کوشش کوی او راکاږی ئې نوزه به هغه دوزخ کښې واچوم.

**دالله تعالی په متشابه صفاتو په مفهوم کښې دوه اقوال:**

① دا حدیث دَمتشابهاتو دَقسم نه دې دَ سلف صالحین په نیز به دَالفاظو هم هغه ترجمه وی کومه چه ده لیکن ما یلیق بشانه لګولو سره به حقیقت هم دَالله تعالی په حواله کولې شی

② متاخرین عالمان دَڅه تاویلاتو څخه کار اخستې دې اوپه داسې صفاتو کښې ئې تاویلات کړی دی په دې غرض چې دا چې د اعتراض موقع په لاس ورنشی چې په قرآن پاک کښې داسې کلمات هم نشته چې مسلمانان پرې هم نه پوهیږی

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[سه] تکبر کونکی به د سرکشانو په فهرست کې شاملولې شی**

سه-(۱)[۸] ١عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "٢«لَا يَزَالُ الرَّجُلُ يَذْهَبُ بِنَفْسِهِ ٣حَتَّى يُكْتَبَ فِي الْجَبَّارِينَ، ٤فَيُصِيبَهُ مَا أَصَابَهُمْ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه**: ١حضرت سلمه ابن اکوع رضی الله عنه وایي، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل. ٢یو سړی خپل ځان برابر د مسلمانانو نه کاږي اوځان غټ گڼي، ٣تردي چې د هغه نوم سرکشانو (یعني د ظالمانو او متکبرو خلقو په فهرست کې) لیکل کیږي. ٤او بیا کوم شی د دنیا او آخرت آفت او بلا هغه سرکشانو ته رسیږي، هغه هغه سړي ته رسیږي (ترمذي)

**حل اللغات**:- ① الْجَبَّارِينَ: سرکشی کونکی، مغروره خلق.

---

(۱) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الکبر(رقم-۲۰۰۰)

**تسهيلات:**

**قوله: لَايَزَالُ الرَّجُلُ يَذْهَبُ بِنَفْسِهِ حَتّٰى يُكْتَبَ فِي الْجَبَّارِينَ:**

**په متكبرو خلقو كښې دشماريدو طريقه:** مطلب دادې چه داسړې يوشان په ځان خوښئ كښې اخته دې غرور اوتكبر چه دې چرته بوتله غوارې بوځی ئې دغه شان هغه په ځان خوښئ او لويئ كښې د حدنه وړاندې كيږي نود الله تعالى په نيز هغه دمتكبرينو او سركش خلقو په فهرست كښې ليكلې كيږي بيا الله تعالى هغه په دوزخ كښې اچوي معلومه شوه چه ځان خوښی غرور او تكبر لويه تباهي ده

**[۵۰۳] تكبر كونكي خلق به د قيامت په ورځ د سرو ميږو په شان ذليل وي**

۵۰۳-()[۹] [۱]وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [۲] " «يُحْشَرُ الْمُتَكَبِّرُونَ أَمْثَالَ الذَّرِّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، [۳] فِي صُوَرِ الرِّجَالِ يَغْشَاهُمُ الذُّلُّ مِنْ كُلِّ مَكَانٍ، [۴] يُسَاقُونَ إِلَى سِجْنٍ فِي جَهَنَّمَ يُسَمَّى: بُولَسَ، [۵] تَعْلُوهُمْ نَارُ الْأَنْيَارِ، [۶] يُسْقَوْنَ مِنْ عُصَارَةِ أَهْلِ النَّارِ طِينَةَ الْخَبَالِ» "، رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱]حضرت عمرو بن شعيب خپل پلار او هغه د خپل نيكه (دادا) نه او هغه د رسول الله ﷺ نه روايت كوي، چې حضور ﷺ وفرمايل [۲]د قيامت په ورځ به تكبر كونكي د كوچنيو سرو ميږيانو په شان [۳]د سړو په صورت كې په يوځاى جمع شي (يعني د هغوئ شكل او صورت خوبه د سړو په شان وي، ليكن جسم او جوثه به يې د ميږو په شان وي) او هر طرف نه به ذلت او خوارې هغوئ پوره طور سره راګير كړى وي، [۴] بيابه هغوئ د جهنم يوې قيدخاني طرف ته چې د هغه نوم بولس دى وشړل شي [۵]هلته به اور په هغوئ خور شى (څرنګه چې يود وبيد ونكى باندې د پاسه پوړې او به خورول كيږي) [۶] او د دوزخيانو خلاصه يعنى د دوزخيانو د بدن نه بهيدونكي وينه او زوى به وربانديځكل كيږي، چې د هغه نوم طينت الخبال دى (ترمذي)

**حل اللغات:-** ① الذَّرّ: واړه سره ميږي، ② صُوَر: شكل وصورت، ③ يَغْشَاهُمْ: پټ كړى به وى دوى لره، ④ الذُّلُّ: ذلت، خوارى، ⑤ يُسَاقُونَ: شړلې به شى، ⑥ سِجْن: قيدخانه، ⑦ بُولَس: د جهنم يوه قيدخانه ده، ⑧ تَعْلُوهُمْ: راپورته به شى په دوى، ګيربه كړى دوى لره، ⑨ الْأَنْيَار: د نار جمع ده يعنى اورونه، ⑩ يُسْقَوْنَ: څكلې به شى په دوى، ⑪ عُصَارَة: د دوزخيانو د بدنونو نچوړ يعنى پيپ او وينې زوې، ⑫ طِينَةَ الْخَبَالِ: دجهنميانو وينو زوو ته وائى

[۱]) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب (رقم-۲۴۹۲) والترمذى فى ۱۷۹/۲

**تسهیلات:**

**قوله: يُحْشَرُ الْمُتَكَبِّرُونَ أَمْثَالَ الذَّرِّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فِي صُوَرِ الرِّجَالِ:**

**د قیامت په ورځ د متکبرو خلقو د حقارت منظر:** وړو میږو ته الذر وائی کوم خلق چه په دنیاکښې تکبر کوی هغوی په حقیقت کښې خپل ځان لوئی ګڼړی لهذا داسې متکبرین به دقیامت په ورځ ذلیل او خوارولو سره دومره واړه کړې شی لکه په زمکه باندې ګرځیدونکی واړه سره قسم میږی چه وی دا جزا او سزا دهغوی د فعل بالکل مناسب ده مونږ یوه قصه اوریدلې ده په هندوستان کښې یو ډیر ښائسته ځوان وو چا هغه اولیدلو نو حیران شو چه دا دومره ښائسته ځنګه دې چنانچه هغه ده ته اووئیل چه ستا دشکل ښائست ته په کتلو سره زه حیران او په تعجب کښې شوم دغه ځوان دتکبر په توګه اووئیل که ته حیرانیږې نو په دې کښې د تعجب څه دی زما شکل ته په کتلو سره الله تعالی هم په تعجب کښې کیږی. دا وینا کول وو چه الله تعالی هغه ددغه وړوکی میږی برابر ورکوټې کولوسره ذلیل اوخوار کړو. (دالله تعالی پناه)

داخبره د یاد ساتلوده چه میدان حشرکښې او دوزخ کښې به مختلف احوال وی دعذاب اوسزا داصورت به هم کله راځی اوکله به بدن غټیږی هم په دې کښې هیڅ تعارض نشته دې

**قوله: يُسَاقُونَ إِلَى سِجْنٍ فِي جَهَنَّمَ يُسَمَّى: بُولَسَ:**

**دجهنم د جیل نوم:** باء باندې ضمه اوفتحه دواړه دی په دوزخ کښې د یوخاص جیل خانې او کوټې نوم دې ددې لفظ لغوی مفهوم ناامیدی اوحیرانیدل دی دشیطان نوم ابلیس هم د دغه مادې نه مشتق دې.

**[۵۱۱۳] په ناحقه غصه د شیطان اثر دې**

حد-[1] [۱۰] ١ وَعَنْ عَطِيَّةَ بْنِ عُرْوَةَ السَّعْدِيِّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "٢ «إِنَّ الْغَضَبَ مِنَ الشَّيْطَانِ، ٣ وَإِنَّ الشَّيْطَانَ خُلِقَ مِنَ النَّارِ، ٤ وَإِنَّمَا يُطْفَأُ النَّارُ بِالْمَاءِ، ٥ فَإِذَا غَضِبَ أَحَدُكُمْ فَلْيَتَوَضَّأْ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ١ او حضرت عطیه ابن عروه سعدي رضی الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ٢ (ناحق) قهر شیطاني اثر دی. یعنی ناحق قهر (غصه) کول د شیطان د مشتعل کولو او د هغه دهوکه کې د راتلو نتیجه وي، ٣ او شیطان د اور نه پیدا شوی دی. ٤ او اور په اوبو سره وژل کېږي، ٥ ځکه چې کله په تاسو کې چاته قهر راشي نو هغه ته پکار دی چې اودس وکړي (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① الْغَضَبَ: قهر او غصه، ② يُطْفَأُ: مړکولې شی.

[1] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب/باب ما یقال عند الغضب(رقم-۴۷۸۴) واحمد فی المسند: ۲۲۶/۴

**تسهیلات:**

**قوله: فَإِذَا غَضِبَ أَحَدُكُمْ فَلْيَتَوَضَّأْ:**

**یخې او به استعمالولو سره غصه یخیږي:** یخې او به استعمالولو سره غصه یخیږي ځکه چه غضب دَ وینې دَ ګرمائش اثر دې لهذا او به ځکل یا په سرباندې اچول یا دَ نور قسم استعمال هم دغه خاصیت دې لیکن دَ اسلام په نظر کښې یخوالې حاصلولو بهترین صورت دادې چه سرې دې اودس اوکړي او بیا دې دوه رکعته نفل اوکړي دَغصې په علاج کښې دَتولو نه ښکلې طریقه اعوذبالله وئیل دی. که چرې په دې سره اونه شي نو بیا دې اودس اوکړي که په دې سره هم اونه شي نو بیا دې مونځ اوکړي. یو علاج ئې دا هم دې چه حالت دې بدل کړي لکه ځنګه چه په راتلونکی حدیث کښې دی.

**[۵۱۱۴] دَغصې ختمولو یو نبوي علاج**

۵۱۱۴-()[۱] ①وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: "②«إِذَا غَضِبَ أَحَدُكُمْ وَهُوَ قَائِمٌ فَلْيَجْلِسْ، ③فَإِنْ ذَهَبَ عَنْهُ الْغَضَبُ وَإِلَّا فَلْيَضْطَجِعْ» " رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ①او د حضرت ابوذر ﷺ نه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل، ②هرکله چې په تاسو کې چاته قهر راشي، او هغه وخت ولاړ وي نو سمدستي دي کیني③ که قهر لاړ شی خو ډیر ښه ګیني بیادي په اړخ پریوځي. (احمد، ترمذي)

**حل اللغات:** - ① فَلْيَضْطَجِعْ: په اړخ دې ځملی.

**(باق) [۵۱۱۵] دَبدترین سري بعضې علامتونه**

۵۱۱۵-()[۲] ① وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ عُمَيْسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا- قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: ②" «بِئْسَ الْعَبْدُ عَبْدٌ تَخَيَّلَ وَاخْتَالَ، ③وَنَسِيَ الْكَبِيرَ الْمُتَعَالِ، ④بِئْسَ الْعَبْدُ عَبْدٌ تَجَبَّرَ وَاعْتَدَى، ⑤وَنَسِيَ الْجَبَّارَ الْأَعْلَى،

**ترجمه:** ①او بي بي اسماء بنت عمیس ﷺ وایي، ما د رسول الله ﷺ نه دا واوریدل ② چې خراب بنده هغه دی چی هغه خپل ځان دنورو نه ښه ګڼي او تکبر کوي، ③ او خداوند بزرګ وبرتریی هیر کی [یعنی هغه دا هیر کړه چی بزرګی اوبلندی اوبرتری صرف الله تعالی دپاره مخصوص ده یا دا یی هیر کړه چی هغه په دنیا کې داحتیاط اوتقوی لار پریښدو سره کومه خرابه لار اختیار کړی ده، په آخرت کی به ورنه دهغه پوښتنه کیږي اوهلته به دالله تعالی عذاب تیرول وي] ④ اوخراب بنده هغه دی چی هغه په خلقو جبر او سرکشي وکړي، اوظلم اوفساد ریزی کی دحدنه واوړي. ⑤ اوخداوند جبار اوقهار هیر

[۱]) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأدب/باب ما يقال عند الغضب(رقم-٤٧٨٢) واحمد في المسند: ٤/١٥٢
[۲]) اخرجه الترمذي في السنن كتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-٢٤٤٨)

کې چې د هغه قدرت او عزت د ټولو نه بلندی دی،

**حل اللغات:** - ① تَخَيَّلَ: ځان دنورو نه ښه ګڼری، ② اخْتَالَ: تکبر کوی، ③ الْمُتَعَالِ: برتر، بزرګ، ④ تَجَبَّرَ: ظلم ئې اوکړو ⑤ اعْتَدَى: تجاوز ئې اوکړو، ⑥ سَهَى: هیر ئې کړو، غافله شو،

① بِئْسَ الْعَبْدُ عَبْدٌ سَهَى وَلَهَى، ② وَنَسِيَ الْمَقَابِرَ وَالْبِلَى، ③ بِئْسَ الْعَبْدُ - عَبْدٌ عَتَى وَطَغَى، ④ وَنَسِيَ الْمُبْتَدَأَ وَالْمُنْتَهَى، ⑤ بِئْسَ الْعَبْدُ عَبْدٌ يَخْتِلُ الدُّنْيَا بِالدِّينِ، ⑥ بِئْسَ الْعَبْدُ عَبْدٌ يَخْتِلُ الدِّينَ بِالشُّبُهَاتِ، ⑦ بِئْسَ الْعَبْدُ عَبْدٌ طَمَعٌ يَقُودُهُ، ⑧ بِئْسَ الْعَبْدُ عَبْدٌ هَوًى يُضِلُّهُ، ⑨ بِئْسَ الْعَبْدُ عَبْدٌ رَغَبٌ يُذِلُّهُ» ⑩ "رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ". وَقَالَا: لَيْسَ إِسْنَادُهُ بِالْقَوِيِّ، وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ أَيْضًا: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ① او خراب بنده هغه دی چې د دین کارونه یې هیر کړه او صرف دنیاداری کې مشغول شو، ② او مقبرو او خاورو سره د یوځای کیدونکي جسم کهنګي او بو سیدګي (وروستیدل) یې هیر کړه، [یعني هغه د دې خبري نه څه عبرت وانه خستی چې د دې دنیا ځومره خلق په زرګونو منه خاورو لاندې دفن شو، او د هغوئ جسم د چنجو خوراك شو) یا مقبرې هیرول د مرګ هیرولو نه کنایه ده، یعنی هغه داهیر کړه چې یوه ورځ د مرګ پنجه به یې د مرئ راونیسي، او د هغه وخت د پاره به د مخکې نه همیشه همیشه ژوند د پاره تیاري کول دي] ③ او خراب بنده هغه دی، چې هغه فتنه او فساد راپورته کی، او د حد نه یې تجاوز وکی ④ او خپله ابتداء او انتهایي هیره کړه [یعني نه خویې دا یاد ا وساتل چې هغه د ځومره حقیر څیز نه پیدا شوی دی او په ابتداء کې هغه ځومره عاجز او ناتوان وو، هغه ته خپل آنجام یاد شو چې اوس لاهغه ته څه مخې ته راتلونکی دی، او آخر د زمکې سره پیوند کیدل دي، او د فتنې او فساد پیدا کولو او د جورو جفا ژوند اختیارولو په ځای د الله ﷻ اطاعت او عبادت او د مخلوق خدا خدمت کول یې هیر کړه] ⑤ او خراب بنده هغه دی، چې د دین په ذریعه دنیا حاصله کړي [یعني دنیا حاصلولو د پاره دین وسیله جوړه کړي یا دا معنٰی ده، چې د بزرګانو په شان صورت او شکل اختیارولو سره او د دین جامه اغوستلو سره اهلِ دنیاته دهوکه ورکړي، چې د هغه معتقد او مداح شي، او د هغوئ نه مال او جاه حاصل کړي] ⑥ خراب بنده هغه ځوک دې خپل اودَ بل دین په قسماقسم شکونو او شبهاتو سره خراب کړی او په حرام کړې شوو څیزونو کښې داسې تاویلونه اوکړی په کوم سره چه دا معلومیږی چه دا څیزونه حلال دی یعنی چه دین ګډوډ پیش کړی. ⑦ او خراب بنده هغه دی چې د مخلوق نه طمع او امید ساتي او د دې د پاره د دنیا دارو په دروازه چکر وهي، ⑧ او خراب بنده هغه دی چې د خواهش غلام وی او خواهش هغه ګمراه کوی ⑨ د حصولِ دنیا حرص او د کثرتِ مال وجاه هوس یې ذلیل او خوار کوي او د دین آبرو ریزي کوي، ⑩ دا روایت ترمذي او بیهقي رحمهما الله په شعب الایمان کې نقل کړی دی، او دواړو ویلي دي، چې د دې حدیث اسناد قوي نه

دی او ترمذي داهم ويلی دی، چې دا حديث غريب دی.

**حل اللغات:** -⑥لَهَى: مشغوله شو په لهولعب کښې، ⑧البِلَى: زړيدل، وروست کيدل. ⑨عَتَى: نافرمانی، فتنه اوفساد راپورته کړی، ⑩طَغَى: سرکشی او د حد نه تجاوز اوکړی. ⑪يَخْتِلُ: دهوکه ورکوی. ⑫طَمَعٌ: لالچ. ⑬يَقُودُهُ: راکاږی ئې، بوځی ئې. ⑭هَوًى: خواهش د نفس. ⑮رَغَبٌ: حرص. لالچ. ⑯يُذِلُّهُ: ذليل کوی ده لره

**د دين په ذريعې سره دنيا حاصلولو دوه مطلبونه:**

**تسهيلات:**

**قوله** بِئْسَ الْعَبْدُ عَبْدٌ تَخَيَّلَ وَاخْتَالَ، وَنَسِيَ الْكَبِيرَ الْمُتَعَالِ:

**تکبر کونکې انسان:** ① هغه سړې چه خپل ځان دَ نورو خلقو نه غوره اوبهتر اوګڼړی او نور کمتراو سپك ګڼړی يعنی تکبر اوکړی. داسې سړې بداوخراب دې ځکه چه هغه دَ الله تعالی صفت او کبريائی خپل ځان دَ پاره ثابت کړې ده. اوهغه داخبره هيره کړې ده چه هرقسم لوئی عظمت او کبريائی هم دَ الله تعالی صفت دې.

**قوله** بِئْسَ الْعَبْدُ عَبْدٌ تَجَبَّرَ وَاعْتَدَى، وَنَسِيَ الْجَبَّارَ الْأَعْلَى:

**ظالم انسان:** ② کوم سړې چه دَ کبر اوغرور په وجه په نورو باندې ظلم اوزياتې کوی اوخپل رب هيرکړی چه هغه زبردست غالب او هرلحاظ سره اوچت دې.

**قوله** بِئْسَ الْعَبْدُ عَبْدٌ سَهَى وَلَهَى، وَنَسِيَ الْمَقَابِرَ وَالْبِلَى:

**په دنيا مئين انسان:** ③ هغه سړې چه دَ دنيا په کارونو کښې دومره مشغول شی چه دَ الله تعالی اطاعت او دينی کارونه هيرکړی او په لوبو تماشو کښې مشغول شی قبر اوپه هغې کښې دَ هډوکو سخاکيدل اوفناکيدل هيرکړی يعنی دَ مرګ تيارې اونه کړی.

**قوله** بِئْسَ الْعَبْدُ عَبْدٌ عَتَى وَطَغَى، وَنَسِيَ الْمُبْتَدَأَ وَالْمُنْتَهَى:

**فسادی انسان:** ④ هغه سرکش چه دَ شرافت حدود نه واوړی او په زمکه کښې فتنه اوفسادخورکړی اوخپله ابتداء او انتهاء هيره کړی يعنی چه دې خبرې ته نه ګوری چه دَهغه پيدائش په کومه طريقه شوې دې دَ يوناپاکه اوګنده اوبونه او انتهاء دا چه آخربه دې دَ زمکې لاندې قبرته ځی اوخاورې کيږی به. معنی داچه دَ چاداسې شروع اوخاتمه وی نوهغه له خود الله تعالی جل جلاله اطاعت ضرور کول پکاردی. دَ الله تعالی دَ اطاعت نه مخ اړول په هيڅ شان هغه سره مناسب نه دی.

**قوله** بِئْسَ الْعَبْدُ عَبْدٌ يَخْتِلُ الدُّنْيَا بِالدِّينِ،

**په دين سره د دنيا ګټلو په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① مطلب دې چې صالحان او زاهدان اودَ بزرګانو په جامه کښې دَ دينداری شکل سره خلقوته دهوکه ورکړی اومال اوګټی

اوبيائي اوخوري. ختل هم دَ دغه قسم دهوكي نوم دي.

۴ مطلب دا دي چې دَ دين په ذريعه دنيا اوګټي اودين دَدنيا دَ ګټلو وسيله او ذريعه جوړه کړي

قوله بِئْسَ الْعَبْدُ عَبْدٌ يَخْتِلُ الدِّينَ بِالشُّبُهَاتِ،

**په دين کښې فساد پيدا کونکې انسان:** دلته يختل دَفساد په معنى کښې دي يعنى په دين اسلام کښې شکوک اوشبهات اچولوسره په دې کښې فساد پيدا کوي اودغه شان مال ګټي

قوله بِئْسَ الْعَبْدُ عَبْدٌ طَمَعٌ يَقُودُهُ،

**لالچى انسان:** ملاعلي قاري رحمه الله فرمائي که دَعبد اضافت دَ طمع طرف ته اوکړې شي نودَدې جملې ترجمه به آسانه شي يعني دَ لالچ اوطمع بنده دې

**دَ جملې ترکيب:** دَاضافت په صورت کښې يقوده جمله به دَ طمع صفت شي اومطلب به داشي چه دادَې قسم طمع اولالچ دې چه چرته دغه لالچي سړې راښکلوسره غواړي بوخي به ئې.

قوله بِئْسَ الْعَبْدُ عَبْدٌ هَوًى يُضِلُّهُ،

**دخواهش بنده:** د خواهش بنده: هوی "خواهش دَنفس ته وائي دَ اضافت په صورت کښې دَعبد اضافت هوى طرف دي اودَ "يضله هوي" صفت دي اي "عَبْدُ طَمَعٍ وَعَبْدُ هَوًى" دواړو جملوکښې مبالغه ده چه دا بنده دَ سختې طمع او سخت خواهش دَ نفس دَ وجې نه لکه چه بخپله مجموعه دَ طمع اومجموعه دَ هوى جوړشو. مطلب دا چه طمع او لالچ دا سړې دَدنيادارو طرف ته راکاږي اودَ هغوى په دروازوکښې ئې تاووى راتاووى

قوله بِئْسَ الْعَبْدُ عَبْدٌ رَغَبٌ يُذِلُّهُ:

**د دنيا عاشق:** هغه سړې هم ډير خراب وى چه دَ مال اودولت دَ کثرت لالچ هرقسم ذلت او رسوائې سره مخ کړى دَ دنيادارو په دروازو باندې هغه ګرځوى دې دَ پاره چه مال اودلوت دَ زيات نه زيات حاصل کړي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۵۱۲۶] غصه ځکل د الله تعالى په لزد ډير افضل عمل دې**

۵۱۲۶-(۱)(۱۳) [۱] عَنِ ابْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[۲] «مَا تَجَرَّعَ عَبْدٌ أَفْضَلَ عِنْدَ اللّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ مِنْ جُرْعَةِ غَيْظٍ [۳] يَكْظِمُهَا ابْتِغَاءَ وَجْهِ اللّٰهِ تَعَالَى» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ.

---

[۱] اخرجه ابن ماجه فى السنن كتاب الزهد/باب الحلم (رقم-۴۱۸۹) واحمد فى المسند: ۱۲۸/۲

**ترجمه**: [۱] حضرت ابن عمر رضی الله عنهما وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل، [۲] بنده د څه شي داسې غرپ نه تيروي چې د الله په نيز د قهر د غرپ نه ښه وي، [۳] چې هغه سړی يې د الله ﷻ د خوشنودي د پاره تيرکړي. (احمد)

**حل اللغات**: - ①مَا تَجَرَّعَ: په غرپ نه تيروی، ②جُرْعَةٍ: دَ اوبوګوټ ته جرعة وائی. ③يَكْظِمُهَا: څکی ئې، تيروی ئې.

**تسهيلات**:

**قوله: مِنْ جُرْعَةِ غَيْظٍ**:

**د غيظ معنی**: غيظ غصې اوغضب ته وائی. دَ قرآن پاك آيت دې ﴿وَالْكَاظِمِيْنَ الْغَيْظَ وَالْعَافِيْنَ عَنِ النَّاسِ﴾ [سورت آل عمران: ۱۳۴] سينې چه دَخلې پورې دَغصې نه ډکه وی او سرې صبر اوکړی نو دې ته کظم وائی.

**د اقا او غلام يوه قصه**: علماؤ يوه قصه بيان کړې ده چه دَيو غلام نه څه کار خراب شو نو آقا ډير غصه شو. غلام دا آيت اووئيلو ﴿وَالْكَاظِمِيْنَ الْغَيْظَ﴾ آقا جواب ورکړو کظمت غلام اووئيل ﴿وَالْعَافِيْنَ عَنِ النَّاسِ﴾ نو آقا اوئيل قد عفوتك غلام اووئيل ﴿وَاللّٰهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ﴾ آقا اووئيل ما ته آزاد کړې دا دَ صحابه کرامو دَ دور واقعه ده.

**دعبدالقادر جيلانی اودهغه دوينځې قصه**: وئيلی شی چه دَ شيخ عبد القادر جيلانی رحمه الله دَپاره يو سړی دَ هديې په توګه دَ چين يوه ډير ښکلې آئينه راوړلې وه. دَ شيخ عبد القادر جيلانی رحمه الله وينځې هغه صفا کوله چه ناڅاپی آئينه پريوتله اوماته شوه. هغه وينځه ډيره اوويريدله او راتلو سره ئې دَ فارسئ يوه مصرعه اووئيله: از قضا آئينهٔ چينی شکست
يعنی تقدير الهی دَوجې نه دَ چين نه راوړلې شوې آئينه ماته شوه. شيخ صاحب فوری دويمه مصرعه جوړه کړه او جواب ئې ورکړو: خوب شد اسباب خود بينی شکست يعنی ډير ښه اوشو چه دَ ځان دکتلو او دَ ځان دَخوښولو اسباب مات شو

**[۵۰۸۷] صبر او عفوه کولکی خلق دَ آفتونو نه محفوظ وی**

۵۰۸۷-(۱) [۱۳] [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا- فِي قَوْلِهِ تَعَالَى: ﴿ادْفَعْ بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ﴾ [المؤمنون: ۹۶] قَالَ: [۲] الصَّبْرُ عِنْدَ الْغَضَبِ [۳] وَالْعَفْوُ عِنْدَ الْإِسَاءَةِ [۴] فَإِذَا فَعَلُوا عَصَمَهُمُ اللّٰهُ [۵] وَخَضَعَ لَهُمْ عَدُوُّهُمْ كَأَنَّهُ وَلِيٌّ حَمِيمٌ قَرِيبٌ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ تَعْلِيقًا.

**ترجمه**: [۱] او حضرت ابن عباس رضی الله عنهما د الله ﷻ د دې ارشاد (ادفع بالتی هی احسن) ته

(۱) اخرجه البخاری فی کتاب تفسير القرآن/باب سورة حم السجدة/ وقال طاوس: عن ابن عباس. {ائتيا طوعًا أو كرهًا} [فصلت: ۱۱]: أعطيا. {قالتا أتينا طائعين} [فصلت: ۱۱]

بدي د نيکي په ذريعه دفع کړه، په تفسير کې فرمايي، [۲] چې د قهر په وخت صبر کول [۳] او د بدی په وخت عفوه او درګزر کول، د دې ارشاد الهي مراد دی، [۴] هرکله چې خلق صبر او عفو کوي، نو الله ﷻ هغوئ د نفس او د مخلوقات د آفتونو نه محفوظ کوي، [۵] او د هغوئ دښمن داسې پست کوي لکه چې هغه دښمن نه وي، بلکې نزدې دوست وي، دا روايت بخاري رحمه الله بطريق تعليق نقل کړی دی.

**حل اللغات:** - ① الْإِسَاءَةُ: بدی، ② خَضَعَ: پست کوی. ذليل کوی، ③ وَلِيٌّ: دوست. ④ حَمِيمٌ: ګرم دوست، نزدې دوست.

**تسهيلات:**

**قوله: ادْفَعْ بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ:**

**داحسن څخه مراد:** په آيت کريمه کښې احسن نه مراد صبر کول دی نو صبر کول د بدله اخستلو نه ښه دې، ددې وجهې نه ئې دې ته احسن فرمائيلي دې او د خلقو بد معاف کول د سزا ورکولو نه افضل دی نو ځکه ئي دې ته هم احسن اوفرمائيل دا خبره دې واضح وی چه په ذاتی معاملاتو کښې معافی کولو ته احسن اووئيلي شو ملکی، قومی دينی معاملاتو کښې معافی کول په دې کښې داخل نه دی لهذا حديث الباب دې حديث پاک سره معارض نه دې کوم کښې چه ذکر دی چه نبی کريم ﷺ غل ته معافی نه وه کړې. حضرت ابن عباس رضي الله عنه ددې آيت په تفسير کښې فرمائی چه بد په خه ذريعه سره دفع کولو نه مراد دا دې چه کله غصه راشی نو صبر وتحمل اختيارول او د چا طرف نه چه څه تکليف دراورسيږی نو عفوودرګرز کول.

**[۵۸۸] غصه ايمان خرابوی**

۵۸۸ - () [۱۵] [۱] وَعَنْ بَهْزِ بْنِ حَكِيمٍ عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " «إِنَّ الْغَضَبَ لَيُفْسِدُ الْإِيمَانَ كَمَا يُفْسِدُ الصَّبِرُ الْعَسَلَ» ".

**ترجمه:** [۱] او حضرت بهز بن حکيم د خپل پلار نه او هغه د بهز د نيکه حضرت معاويه بن حيدة القشيري رحمه الله نه روايت کوي، [۲] چې رسول الله ﷺ وفرمايل، قهر ايمان داسې خرابوي لکه څرنګه چې مرغونی عسل (شهد) خرابوي.

**حل اللغات:** - ① الصَّبِرُ: ايلوا، مرغونې، يوقسم بوټې دې.

**تسهيلات:**

**قوله: إِنَّ الْغَضَبَ لَيُفْسِدُ الْإِيمَانَ كَمَا يُفْسِدُ الصَّبِرُ الْعَسَلَ:**

**ايمان ته په نقصان رسولو کښې د غصې کردار:** صبر دَ يوې شيرې نوم دې کوم تـه چه ايلوا

[۱] اخرجه البيهقى فى شعب الايمان رقم الحديث ۸۲۹۴

وائی سخته ترخه وی دَدې په یو څو ځاځکو سره شات خرابیږی. دلته دَ ایمان دَ فساد نه دَ کمال ایمان فساد مراد دې او دا خطره هم ده چه مکمل ایمان لاړ شی بعضې وخت سړې: پنځو مینتو دَ بې صبرئی او غصه دَوجې نه قتل په شان لوئی جرم کولو سره ټول عمر په جیل کښې ذلتونه برداشت کوی او دَ آخرت عذاب ئی لا ځانله دې

## [۵۱۱۹] د عاجزئ فضیلت او تکبر مذمت

۵۱۱۹ - ( )[۱۲] [۱] «وَعَنْ عُمَرَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ وَهُوَ عَلَى الْمِنْبَرِ: [۲] يَا أَيُّهَا النَّاسُ! تَوَاضَعُوا فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: "[۳] مَنْ تَوَاضَعَ لِلّٰهِ رَفَعَهُ اللّٰهُ، [۴] فَهُوَ فِي نَفْسِهِ صَغِيرٌ، وَفِي أَعْيُنِ النَّاسِ عَظِيمٌ، [۵] وَمَنْ تَكَبَّرَ وَضَعَهُ اللّٰهُ، [۶] فَهُوَ فِي أَعْيُنِ النَّاسِ صَغِيرٌ، وَفِي نَفْسِهِ كَبِيرٌ، [۷] حَتَّى لَهُوَ أَهْوَنُ عَلَيْهِمْ مِنْ كَلْبٍ أَوْ خِنْزِيرٍ» ".

**ترجمه**: [۱] او د حضرت عمر نه روایت دی چې یو ورځ هغوئ په منبر باندې په ودریدو سره خطبه وفرمایل، [۲] نو وې وئیل خلقو! تواضع او عاجزي اختیار کئ. ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلی دی، [۳] کوم سړی چې د الله ﷻ رضامندي او خوشنودي حاصلولو: پاره خلقو سره تواضع او عاجزي اختیار وي، نو الله ﷻ د هغه مرتبه پورته کوي. [۴] هغه خپل په نظر کې خو حقیر وي (ځکه چې هغه خپل نفس ته د ذلت او حقارت په نظر سره ګوري لیکن د خلقو په نظر کې بلند مرتبه وي) [۵] او کوم سړی چې د خلقو سره تکبر او غرور کوي. نو الله ﷻ د هغه مرتبه خکته کوي، [۶] نو هغه د خلقو په نظر کې خو حقیر وي. [۷] لیکن په خپل نظر کې ځان بلند مرتبې والا ګڼي، تردې چې هغه د خلقو نظر کې د سپي یا خنزیر نه هم بد تر شي

**تسهیلات**:

**قوله: مَنْ تَوَاضَعَ لِلّٰهِ رَفَعَهُ اللّٰهُ**:

**عاجزی سبب د عزت**: کوم کس خپل ځان د الله رضا دپاره مسلمانانو سره نرم کړی او د مسلمانانو په مخکې په تواضع سره پیش شی نو الله تعالی دخلقو په زړه کښې هغه عزت زیاتوی هم په دې وجه نبی کریم ﷺ یو دعا تعلیم فرمائیلې ده "اللهم اجعلنی فی نفسی صغیرا وفی اعین الناس کبیرا"

## [۵۱۲۰] دَ طاقت باوجود د معاف کولو فضیلت

۵۱۲۰ - ( )[۱۳] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[۲] «قَالَ مُوسَى بْنُ عِمْرَانَ عَلَيْهِ السَّلَامُ: يَا رَبِّ! [۳] مَنْ أَعَزُّ عِبَادِكَ عِنْدَكَ؟ [۴] قَالَ: مَنْ إِذَا قَدَرَ غَفَرَ» ".

---

[۱] اخرجه البیهقی فی شعب الایمان رقم الحدیث ۸۱۴۰

[۲] اخرجه البیهقی فی شعب الایمان رقم الحدیث ۸۳۲۷

**ترجمه :** [۱] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل، [۲] حضرت موسى ابن عمران عليه السلام عرض وکړو، اې ځما پروردګاره! [۳] ستا په بنده ګانو کې کوم بنده تاته زيات عزيز دى، [۴] پروردګار ورته وفرمايل، هغه بنده چې د قادر کيدو باوجود درګذراو معافي وکړي

**حل اللغات :-** ① قَدَرَ: قادر وی، ② غَفَرَ: درګذر او معافی اوکړی

**[۵۰۳] دَ غصې قابو کولو فضيلت**

۵۰۳-()[۱۸] [۱] وَعَنْ أَنَسٍ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-قَالَ: "[۲] «مَنْ خَزَنَ لِسَانَهُ سَتَرَ اللَّهُ عَوْرَتَهُ، [۳] وَمَنْ كَفَّ غَضَبَهُ كَفَّ اللَّهُ عَنْهُ عَذَابَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، [۴] وَمَنِ اعْتَذَرَ إِلَى اللَّهِ قَبِلَ اللَّهُ عُذْرَهُ» ".

**ترجمه :** [۱] او د حضرت انس رضي الله عنه نه روايت دى، چې رسول الله ﷺ وفرمايل، [۲] کوم سړى چې خپله ژبه بنده لري، نو الله جل جلاله د هغه عيبونه پټوي (يعني کوم سړى چې د خلقو عيبونه او خرابي پټوي او د بيانولو نه يي خپله ژبه بنده ساتي، کوم چې د هغه په علم کې وي، نو الله جل جلاله به د هغه عيوب او ګناهونه د خلقو د نظر نه يا د اعمال ليکونکي فرشتو نه يا دوادړو نه پټوي) [۳] او کوم سړى چې خپله غصه ضبط کوي (او بدل اخستو نه منع کېږي) نو الله جل جلاله به يي د قيامت په ورځ د خپل عذاب نه بچ کړي، [۴] او کوم سړى چې (خپلي ګناه او تقصير باندې نادم کيدو سره) د الله جل جلاله نه عفوه غواړي نو الله جل جلاله د هغه عفوه خواهي قبلوي.

**حل اللغات :-** ① خَزَنَ: بنده ساتى، ② كَفَّ: کنټرول کړى، بنده ئې اوساتى.

**تسهيلات:**

**قوله: مَنْ خَزَنَ لِسَانَهُ سَتَرَ اللَّهُ عَوْرَتَهُ:**

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال :** ① کوم کس چه د خپلې ژبې حفاظت کوی د "من صمت نجا" پيش نظر اکثر خاموش وى نو ددې عيبونه به پټ وى ځکه چه عيبونه هم په ژبه ظاهريږى.

② کوم کس چه په خپلې ژبې د خلقو عيب نه بيانوى بلکه د خلقو په عيبونو باندې پرده اچوى نو الله تعالى به د دغه کس عيبونه په دنيا او آخرت کښې د خلقو د نظرونو نه يا د اعمال ليکونکى فرښتو نه به پټ کړى

**قوله: وَمَنْ كَفَّ غَضَبَهُ كَفَّ اللَّهُ عَنْهُ عَذَابَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ:**

**د مجرم د عذر قبلولو فائده :** کوم کس چه خپل ذاتى معاملاتو کښې د يو مجرم عذر قبول

() اخرجه البيهقى فى شعب الايمان رقم الحديث ۸۳۱۱

کړي او معاف ئې کړي نو الله تعالی به د معافی کونکی کس ګناهونه معاف کړي او توبه به ئې قبلوله کړي.

## [۵۳۲] درې دَ نجات اودرې دَ هلاکت څیزونه

٥٣٢ - ()[١٩] ۱ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: " ۲ «ثَلَاثٌ مُنْجِيَاتٌ، وَثَلَاثٌ مُهْلِكَاتٌ؟ ۳ فَأَمَّا الْمُنْجِيَاتُ: فَتَقْوَى اللَّهِ فِي السِّرِّ وَالْعَلَانِيَةِ، ۴ وَالْقَوْلُ بِالْحَقِّ فِي الرِّضَا وَالسُّخْطِ، ۵ وَالْقَصْدُ فِي الْغِنَى وَالْفَقْرِ. ۶ وَأَمَّا الْمُهْلِكَاتُ: فَهَوًى مُتَّبَعٌ، وَشُحٌّ مُطَاعٌ، ۷ وَإِعْجَابُ الْمَرْءِ بِنَفْسِهِ، وَهِيَ أَشَدُّهُنَّ» ". رَوَى الْبَيْهَقِيُّ الْأَحَادِيثَ الْخَمْسَةَ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ".

**ترجمه**: ۱ او د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دی، چی رسول الله ﷺ وفرمایل ۲ درې څیزونه نجات ورکونکی دی، او درې څیزونه په آخرت کې هلاك کونکی دی. ۳ کوم څیزونه چې نجات ورکونکی دی، په هغه کې یو خو ظاهر او باطن کې د الله نه ویریدل دي (یعنی جلوت او خلوت په هرحالت کې او د هرحرکت او عمل په وخت د الله خوف په ده باندې غالب وي، یا داچې دبنده ظاهرهم د خوف خدا د احساس مظهر وي، او د هغه باطن هم خوف الله نه معمور وي) ۴ دویم شی خوښي او ناخوښي په هرحالت کې حقه خبره کول دي، ۵ او دریم څیز دولتمندي او فقیري دواړو حالتونو کې میانه روی اختیارول دي. ۶ او کوم څیزونه چې هلاکونکی دي، په هغه کې یوخو خواهشِ نفس دی. چې د هغه پیروي وشي، دویم شی حرص او بخل دی چې انسان د هغه غلام جوړ شي، ۷ او دریم څیز د سړي خپل نفس باندې غرور کول دي، یعنی د یو سړي خپل ځان نیك او ښه ګڼل او د خپل اوصافو خپله مدح کول، چې د هغه نه کبر پیدا کېږي، او کبر نه غرور او تکبر وجود کې راځي او دا دریم څیز دي تولو نه بدتر خصلت دی، مذکوره بالا پنځه روایتونه بیهقي رحمه الله په شعب الایمان کې نقل کړي دی.

**حل اللغات**: - ۱ مُنْجِيَاتٌ: نجات اوخلاصې ورکونکی څیزونه، ۲ مُهْلِكَاتٌ: هلاکونکی څیزونه. ۳ السُّخْطِ: ناخوښی. خفګان. ۴ الْغِنَى: مالداری. ۵ هَوًى: خواهش دنفس، ۶ مُتَّبَعٌ: چه دهغې اتباع کولې شی. هغې ورپسې روان وی. ۷ شُحٌّ: بخل. شومتیا. ۸ مُطَاعٌ: چه دهغې پسې روان وی، ۹ إِعْجَابُ: عُجب کول. ځان خوښی کول.

**تسهیلات**:

**دبعضې مشکلو جملو وضاحت**:

۱ فَتَقْوَى اللَّهِ فِي السِّرِّ وَالْعَلَانِيَةِ: یعنی ظاهراً اوباطنًا خپله معامله خپل رب سره صفا ساتل تقوی ده.

---

۱) اخرجه البیهقی فی شعب الایمان رقم الحدیث ۷۲۵۲

②وَالْقَوْلُ بِالْحَقِّ فِي الرِّضَا وَالسُّخْطِ: يعني چه حالات ځنګه هم وي واقعات ځنګه چه هم وي که څوك خوشحاليږي او که څوك خفه کيږي په ژبه سره حق خبره کول او په حق باندې اوډيدل سبب دَ خلاصي دې

③وَالْقَصْدُ فِي الْغِنَى وَالْفَقْرِ: يعني که سړې مالدار وي او که غريب وي چه څه هم وي مګر هغه ميانه روي نه پريږدي په هر حالت کښې دَ کمې زياتي نه ځان پاك ساتي اودَ اسراف تبذير اقتار او کنجوسئي نه لرې او سيږي دا خبره دَ خلاصي سبب دې

④وَأَمَّا الْمُهْلِكَاتُ: فَهَوًى مُتَّبَعٌ: يعني هر وخت دَ خپلو خواهشاتو پوره کولو پسې لګيدلې وي او هم دَهغې پيروي کوي بس خواهش هغه خپل معبود جوړ کړې دې.دکوم طرف نه چه کومه اشاره ملاويږي په هغې باندې دَ عمل کولو دَپاره ورټوپ کوي

⑤وَشُحٌّ مُطَاعٌ: يعني دَبخل او کنجوسئي غلام جوړ شوې دې په کوم کښې چه ډير ممکن دي چه په يو وخت کښې دا سړې دَ زکوة او واجبي حق نه انکار او کړي او هلاك شي

⑥وَإِعْجَابُ الْمَرْءِ بِنَفْسِهِ، وَهِيَ أَشَدُّهُنَّ: يعني ځان خوښي کبر او عجب ځان ته کتل او خپل ځان په خپله ستائيل دا داسې بيماري ده چه په انسان کښې دَ داخليدو نه پس دَوتلو نوم نه اخلي.ترڅو چه هغه تباه کوي په دې وجه دادَ ټولو نه سخت او خودلې شوه

# [۲۱] بَابُ الظُّلْمِ

## دَ ظلم بيان

| خلاصة الباب |
| --- |
| فيه عشرة أحاديث مشتملة على خمس مسائل: |
| ①قباحة الظلم: ۱، ۲، ۳، ۴، ۵، ۶، ۸، ۱۰، ۱۱، ۱۴- |
| ②النهي عن الظلم: ۲- |
| ③ بيان أعظم أنواع الظلم: ۹- |
| ④ الاتقاء عن دعوة المظلوم: ۱۲- |
| ⑤ منع إعانة الظالم: ۱۳- |

**قوله: الظُّلْمِ:**

**د ظلم تعريف او مفهوم: هو وضع شئ في غير موضعه "يعني** يو څيز دَهغې دَاصل مقام په ځائې په بل مقام کښې دکيخودو نوم ظلم دې.دَ ظلم دَدې تعريف دا مفهوم هر هغه څيز ته شامل دې په کوم کښې چه تعدي او تجاوز وي

**د شریعت په نظر کښې ظلم:** دَ شریعت په رنړا کښې دَ ظلم تعریف کښې به دا خیال ساتل وی چه شرعی اصطلاحی ظلم هغه دې په کوم کښې چه دَشرعی امورو دَحدودو نه تجاوز کړې شوې وی.

**دعرف په نظر کښې ظلم:** په عرف عام کښې ظلم دَخلقو په هغه حقوقو کښې تجاوز او زیاتی ته وائی دکوم تعلق چه دَخلقو مال اوځان اوعزت ناموس سره وی یعنی دَ خلقو ځان مال عزت ناموس کښې تجاوز اوزیاتې کولو نوم ظلم دې.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۵۳۳] ظلم به دَقیامت په ورځ دَتیارو په شکل کښې وی**

۵۳۳-(۱)[۱] ۱ عَنِ ابْنِ عُمَرَ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا-أَنَّ النَّبِيَّ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-قَالَ: "۲«الظُّلْمُ ظُلُمَاتٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما نه روایت دی، چې رسول الله ﷺ وفرمایل ۲ ظلم کول به د قیامت په ورځ د تیارو باعث وي. (بخاري، مسلم)

**تسهیلات:**

**قوله: الظُّلْمُ ظُلُمَاتٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ:**

**د قیامت په ورځ د ظلم نقصانات:** یعنی دَ ظلم دَ وجې نه به په داسې تیارو کښې راګیروی چه دَخلورو واړو طرفونه به ئی راګیر کړې وی اودې ظالم سره به هیڅ رنړا نه وی دَ ظلم دا تیارې به یو نه بلکه په مختلفو شکلونو کښې وی اودا ظالم به په هغې کښې چرته ورك ګرځي خو مسلمانانو سره به دَایمان نور وی دکوم په امداد چه به هغوی په آسانئی سره دَ یوځائی نه بل ځائی ته ځی. دَدې حدیث نه معلومیږی چه دَ ظلم دَجرم په ضمن کښې نورهم دَ ډیرو جرمونو هم ارتکاب کیږی په دې وجه به په قیامت کښې یو نه بلکه ډیرې تیارې جوړیږی

**[۵۳۴] الله تعالی ظالم ته اول مهلت ورکوی بیا ئی رانیسی**

۵۳۴-(۲)[۲] ۱ وَعَنْ أَبِي مُوسَى-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "۲«إِنَّ اللَّهَ لَيُمْلِي لِلظَّالِمِ حَتَّى إِذَا أَخَذَهُ لَمْ يُفْلِتْهُ" ۳ ثُمَّ قَرَأَ: ﴿وَكَذَلِكَ أَخْذُ رَبِّكَ إِذَا أَخَذَ الْقُرَى وَهِيَ ظَالِمَةٌ﴾ [هود: ۱۰۲]

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب الإجارة/باب: الظلم ظلمات یوم القیامة (رقم-۲۴۴۷)ومسلم فی کتاب البر والصلة والآداب/باب تحریم الظلم (رقم-۵۷ - (۲۵۷۹) والترمذی فی کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الظلم (رقم-۲۰۳۰) واحمد فی المسند: ۱۳۷/۲

[۲] اخرجه البخاری فی کتاب تفسیر القرآن/باب قوله: {وکذلک أخذ ربک إذا أخذ القری وهی ظالمة إن أخذه أليم شديد} [هود: ۱۰۲] (رقم-۴۶۸۶) ومسلم فی کتاب البر والصلة والآداب/باب تحریم الظلم (رقم-۶۱ - (۲۵۸۳) کتاب الفتن/باب العقوبات (رقم-۴۰۱۸)

»الآيَةَ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: [١] او حضرت ابو موسى ﷺ وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل، [٢] بلا شبه الله ﷻ ظالم ته مهلت ورکوي (يعني په دنيا کې د هغه عمر ډيره وي چې هغه د خپل ظلم پيمانه ډکه کړي، او په آخرت کې سخت عذاب کې اونخلي) تردي چې هغه را ونيسي چې بيا پريږدي يې نه (او هغه ظالم به د هغه د عذاب نه بچ کېږي نه) [٣] د دې نه پس حضور ﷺ د دليل په طور دا آيت اووئيلو (وَكَذَٰلِكَ أَخْذُ رَبِّكَ إِذَا أَخَذَ الْقُرَىٰ وَهِيَ ظَالِمَةٌ) او د دې آيت آخري الفاظ دادي (إِنَّ أَخْذَهُ أَلِيمٌ شَدِيدٌ) (بخاري، مسلم) وَكَذَٰلِكَ، تا أَلِيمٌ شَدِيدٌ ترجمه داده. او هم دارنګه دې نيول درب ستا چې کله ظالم کلي والا نيسي، بيشکه د هغه نيول دردناك او سخت دی.

**حل اللغات**:- ① يُمْلِي: مهلت ورکوی، ② لَمْ يُفْلِتْهُ: نه ئې پريږدی.

**تسهيلات**:

**قوله**: إِنَّ اللَّهَ لَيُمْلِي لِلظَّالِمِ حَتَّىٰ إِذَا أَخَذَهُ لَمْ يُفْلِتْهُ:

**دالله تعالى ظالم ته مهلت ورکول**: په حديث الباب کښې مظلوم خلقو ته تسلی ورکړې شوې ده چه په دوې باندې کوم ظلمونه کيږی او دوې پړې صبر او استقامت اختيار کړی او هغه ورځې انتظار دې وکړی کله چه به د قانون قدرت مضبوط لاسونه د ظالم په څټ باندې وی او هغه ته به د ظلم سخته سزا ورکړې شی او دې ظالمانو ته سخت وعيد دې چه دوې دې د ډهيل په وجه نه مغروره کيږی الله تعالى به ددوې سخته مواخذه اوکړی او دوی به د خپل ظلم سزا اوخوری.

**قوله**: وَكَذَٰلِكَ أَخْذُ رَبِّكَ إِذَا أَخَذَ الْقُرَىٰ:

**د قرى نه مراد**: آيت کريمه کښې "قرى" نه مراد د کفارو هغه کلې دې چه ددې اوسيدونکو ته اول ډهيل ورکړې شو بيا اچانک په عذاب کښې ګير کړې شو او هلاک کړې شو

**[٥٠٣٥] د هلاک شوو قومونو په کنډراتو د تيريدو په وخت کې ژړل**

٥٠٣٥-(١)[٣] [١] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا-[٢] «أَنَّ النَّبِيَّ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-لَمَّا مَرَّ بِالْحِجْرِ [٣] قَالَ: "لَا تَدْخُلُوا مَسَاكِنَ الَّذِينَ ظَلَمُوا أَنْفُسَهُمْ [٤] إِلَّا أَنْ تَكُونُوا بَاكِينَ، أَنْ يُصِيبَكُمْ مَا أَصَابَهُمْ [٥]" ثُمَّ قَنَّعَ رَأْسَهُ وَأَسْرَعَ السَّيْرَ حَتَّى اجْتَازَ الْوَادِيَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

(١) اخرجه البخاري في كتاب المغازي /باب نزول النبي صلى الله عليه وسلم الحجر(رقم-٤٤١٩) ومسلم في كتاب الزهد والرقائق /باب لا تدخلوا مساكن الذين ظلموا أنفسهم. إلا أن تكونوا باكين (رقم-٣٩ - (٢٩٨٠) واحمد في المسند: ٦٦/٢

**ترجمه:** [۱] او د حضرت ابن عمر ﷺ نه روایت دی، [۲] کله چې رسول الله ﷺ په مقام حجر باندې تیریدی [۳] نو صحابه ﷺ ته یې وفرمایل تاسو د دې خلقو مکانات کې مه داخلیږئ، (چې کفر اختیارولو سره او د الله رالیږلي پیغمبر دروغجن ګڼلو سره) خپله ږوي په ځان ظلم کړی دی، [۴] خو دا چې تاسو ژړیدونکي یې (یعني که تاسو د دې کنډراتو صورت کې د دې بدنصیب قوم المناك انجام لیدو سره او د دې خلقو بدعملي یادولو سره عبرت حاصلول غواړئ نو داخای لیدی شی او تاسو دې خای نه په غفلت او لاپروایي سره مه تیریږئ) داسې نه چې په تاسو هم هغه مصیبت نازل شي، کوم چې په هغوئ نازل شوی وو خکه چې داسې خایونو باندې غفلت او بې پروایي سره تیریدل او عبرت نه حاصلول: زړه د سخت والي او د خوف خدا د نشت والي (فقدان) علامه ده، او داشی د عذاب الهي د نازلیدو باعث جوړیدی شي، یا دا مراد دی، چې تاسو دلته دالله نه خوف وکئ او عبرت ونیسئ، داسې نه چې تاسو نه هم هغه اعمال صادریدل شروع شي، کوم چې د هغه قوم طریقه وه، او بیا تاسو ته هم سزا خوړل راځي، [۵] د دې نه پس حضور ﷺ خادر سره خپل سرمبارك پټ کړو، او په تیزی د هغه علاقې نه تیر شو (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** - ① الحِجْر: د قوم ثمود علاقې، مقام حِجر، وادی القری. ② بَاكِينَ: ژړا کونکی. ③ قَنَّعَ پټ ئې کړو. ④ اجْتَازَ: تیرشو، واوړیدل.

**تسهیلات:**

**د حدیث پس منظر:**

**قوله:** أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- لَمَّا مَرَّ بِالْحِجْرِ: حضورپاك په ۹ھ کښې د جهاد په غرض سره د رومیانو د مقابلې د پاره د تبوك طرف ته روان شوې وو. حضورپاك سره د صحابه کرامو ۳۰ زره نفوس قدسیه باندې مشتمل لښکرجرار وو. په لاره کښې د هغوی تیریدل د قوم ثمود په هغه علاقو باندې اوشو کوم ځائی چه په قوم ثمود باندې یو خطرناك عذاب راغلې وو

**قوله:** الحِجْرُ: هم د هغه ځائی نوم دې چرته چه په قوم ثمود باندې عذاب نازل شوې وو دا یو تاریخی وادی ده کومې ته چه وادی القری هم وائی حجر د تبوك نه تقریباً څلور سوا میله د مدینې طرف ته واقع دې په دې علاقو کښې هغه کانړې هم دې د کوم نه چه د صالح ﷺ اوښه راوتلې وه د غه ځائی ته فج الناقة وائی او پوره علاقې ته مدائن صالح هم وائی د غزوه تبوك په موقع باندې حضورپاك هم په دغه لارتلې وو حضورپاك د قوم ثمود په علاقو کښې د اوبو څکلو نه منع کړې وه بلکه هر یو څیز کښې ئې د استعمال نه منع کړې وه. نو چاچه په دغه اوبو سره اوړه اخلې وو حضورپاك د هغه اوړو د استعمال نه هغوی منع کړې وو بلکه حکم ئې ورکړې وو چه په اوښانو باندې ئې اوخورئی. حضورپاك

صحابه کرامو ته اوفرمائيل په دې علاقه کښې دَ عذاب اثرات اوس هم دى په دې وجه په زړا زر زر دَدې علاقونه تيرشئ

حضورپاك پخپله هم په سرباندې څادر اچولې په ژړا سره تير شو دَدې نه معلومه شوه چه چرته دَ الله تعالى عذاب راغى دَهغې اثرات دَ صدو پورې باقى وى دَ ثمود هلاکت څو زره کاله پخوانې وو مگر اثرات ئې دغه وخته پورې هم وو نن صبا چه په پاکستان کښې ۸اکتوبر ۲۰۰۵ء کښې يوه تباهى راوړونکې زلزله راغلې ده هغه هم دَالله تعالى دَعذاب نه څوك اويستلې نه شى داهم دَالله تعالى عذاب دې دکوم اثرات چه په علاقو او انسانانو باندې بلکه دَهغوى په بدنونو باندې هم دى په چاباندې چه په دغه زلزله کښې زخم لگيدلې دې اوس دَهغوى دَپاره دَ اجتماعى توبه او استغفار ضرورت دې دَدې عذاب دَ وجې نه زمونږ مسلمانانوله پکاردى چه سحرمابنام يا هفته کښې اجتماعى دعا سره اجتماعى توبه او استغفار کوى اودگناهونونه دَ اين جى اوز اودَهغوى دَ امدادنه ځان اوساتى

## [۵۰۳۶] دَظالم نه به دَقيامت په ورځ دَظلم بدله څنګه اخستې شى؟

۵۰۳۶-(١)[٣] ①وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ②«مَنْ كَانَتْ لَهُ مَظْلِمَةٌ لِأَخِيهِ مِنْ عِرْضِهِ أَوْ شَيْءٍ③فَلْيَتَحَلَّلْهُ مِنْهُ الْيَوْمَ قَبْلَ أَنْ لَا يَكُونَ دِينَارٌ وَلَا دِرْهَمٌ، ④إِنْ كَانَ لَهُ عَمَلٌ صَالِحٌ أُخِذَ مِنْهُ بِقَدْرِ مَظْلِمَتِهِ، ⑤وَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ حَسَنَاتٌ أُخِذَ مِنْ سَيِّئَاتِ صَاحِبِهِ فَحُمِلَ عَلَيْهِ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ①و حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل، ②په کوم سرى چې د خپل يو مسلمان ورور څه حق وي، او هغه حق که (د غيبت کولو يا روحاني او جسماني ايذاء رساني وغيره په صورة کې) د ابرو ريزي وي يا د څه بل شى متعلق وي (لکه څه مالي مطالبه او معامله ياناحق خون وغيره) ③نو هغه ته پکار دى چې هغه حق ادا کړى، نن ورځ (يعني په دې دنيا کې) په معاف کړي د دې نه مخکې چې هغه ورځ راشي (يعني د قيامت ورځ چې په هغه کې به هغه نه درهم لري او نه دينار (چې د هغه حق د بدلې په طور ورکول شي) ④که هغه خپل حق باندې معاف شو، نو ښه ده، ګينې بيابه د ظالم اعمال نامه کې چې کومي نيکي وي، هغه نه به د هغه د ظلم برابر يا دا واجب حق په قدر نيکي واخستل شي، او مظلوم ياحقدار ته به ورکول شي ⑤او که هغه هيڅ نيکي نه لري، نو په دې صورت کې د هغه مظلوم ياحقدار ګناهونو نه به د هغه د حق په قدر ګناه اخستو سره په ظالم بوج شى (بخاري)

**حل اللغات:** - ①مَظْلِمَةٌ: د ظلم په طور څه حق، ②عِرْضِهٖ: عزت او عظمت. ③فَلْيَتَحَلَّلْهُ: نو معافى غوښتلو سره دې خپل حق معاف کړى، ④حُمِلَ: بار کولې به شى،

[1] ) اخرجه البخارى فى كتاب الإجارة/باب من كانت له مظلمة عند الرجل فحللها له، هل يبين مظلمته (رقم-۲۴۴۹)واحمد فى المسند:۲/۲۰۶

**تسهيلات:**

**د بعضې مشکلو جملو وضاحت:**

①**مَنْ كَانَتْ لَهُ مَظْلِمَةٌ لِأَخِيهِ مِنْ عِرْضِهِ:**
يعنی دَ دغه حق تعلق که دَمظلوم عزت او عظمت سره وی یا دَ بل څه وجې نه وی چه هغه ته ئی کنځلې کړې وی یا دَ قول او فعل په ذریعه ئی هغه ته تکلیف رسولې وی

②**أَوْشَيْءٌ:** يعنی دَچا مال ئې په زور اخستې وی یائی پټ کړې وی یا ئی قبضه کړې وی

**قوله: فَلْيَتَحَلَّلْهُ مِنْهُ الْيَوْمَ قَبْلَ أَنْ لَا يَكُونَ دِينَارٌ وَلَا دِرْهَمٌ:**

**دمرګ څخه وړاندې دحقونو ادا کول:** که چا په چا ظلم کړې وی نو دَهغه نه دې معافی غوښتو سره دَقیامت نه مخکښې دَ هرقسم حق معاف کړی. که چرې مالی معامله وی نومعاوضه دې اداکړی یا دې پرې هسې معاف کړی. که چرې زبانی معامله وی نومعافی تلافی دې ترې اوکړی څنګه چه هم وی مګر په دنیاکښې دې پرې معاف کړی ګنی دَ قیامت په ورځ به نه دینار وی او نه درهم هلته به دا مظلوم دَ ظالم نه دَهغه نیکئی وصولوی. که نیکئی ختمې شوې نو بیابه دَ مظلوم بدئی او ګناهونه په هغه ظالم باندې اچولې شی لکه چه په وړاندې حدیث کښې بیان کړې شوی دی

**[۵۱۲۷] دَقیامت په ورځ دَټولو نه لوئی فقیر**

۵۱۲۷ -( ) [۵] ①وَعَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ②" «أَتَدْرُونَ مَا الْمُفْلِسُ؟ ". قَالُوا: الْمُفْلِسُ فِينَا مَنْ لَا دِرْهَمَ لَهُ وَلَا مَتَاعَ. ③فَقَالَ: " إِنَّ الْمُفْلِسَ مِنْ أُمَّتِي مَنْ يَأْتِي يَوْمَ الْقِيَامَةِ بِصَلَاةٍ وَصِيَامٍ وَزَكَاةٍ، ④وَيَأْتِي قَدْ شَتَمَ هَذَا، وَقَذَفَ هَذَا، وَأَكَلَ مَالَ هَذَا، وَسَفَكَ دَمَ هَذَا، وَضَرَبَ هَذَا، ⑤فَيُعْطَى هَذَا مِنْ حَسَنَاتِهِ، وَهَذَا مِنْ حَسَنَاتِهِ، ⑥فَإِنْ فَنِيَتْ حَسَنَاتُهُ قَبْلَ أَنْ يُقْضَى مَا عَلَيْهِ ⑦أُخِذَ مِنْ خَطَايَاهُمْ فَطُرِحَتْ عَلَيْهِ، ثُمَّ طُرِحَ فِي النَّارِ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.[1]

**ترجمه:** ①او د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دی چې یوه ورځ رسول الله صلی الله علیه وسلم صحابه رضی الله عنهم ته وفرمایل. ②تاسو ته معلومه ده چې مفلس څوك دی ، بعضې صحابه رضی الله عنهم عرض وکړو، په مونږ کې مفلس هغه سړی دی چې د هغه سره درهم او دینار (روپی پیسې) نه وي ، او نه سامان او اسباب (یعنې هغوئ مفلس هغه سړي ته اوویل چې مال وزر او روپو پیسو نه خالي وي څرنګه چې عام طور سره دنیا والا کنې) د صحابه رضی الله عنهم ذهن دې طرف ته ولانه ړی، چې د حضور صلی الله علیه وسلم مراد دنیاوي طور سره د مفلس سړي باره کې پوښتنه کول نه دي ،

[1] ) اخرجه مسلم فی کتاب البر والصلة والآداب/باب تحریم الظلم (رقم-۵۹ - (۲۵۸۱) والترمذی فی کتاب صفة القیامة والرقائق والورع عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی شأن الحساب والقصاص (رقم-۲۴۱۸)واحمد فی المسند: ۳۰۳/۲

بلکي د حضور ﷺ د پوښتنې تعلق هغه سړي سره دی، چې د آخرت د اعتبار نه مفلس وي [٣]نو حضور ﷺ وفرمايل، زما امت مرحومه کې مفلس سړی درحقيقت هغه دی چې د قيامت په ورځ په ميدانِ حشر کې دنيا نه مونځ، روژه، زکاة او نور مقبول عبادتونه راوړلو سره راشي، [٤]خو حال به يې داوي، چې هغه به چا ته کنځل کړي وي، په چابه يې تهمت لګولي وي، څوك به يې ناحق وهلي وي غرض چيرته چې هغه ټول مالي او بدني عبادتونه کړي وي هلته به هغه دبدو مرتکب شوی هم وي [٥]نو د هغه د نيکو نه به مخکې يومظلوم او صاحب حق ته د هغه د حق په قدر نيکي ورکول شي، دغه شان هغه چې په دنيا کې د چاسره ظالمانه سلوك کړی وي، او څوك څوك يې ناحق ازارولی وي، هغه ټولو ته به جدا جدا د خپل حق په قدر د هغه د نيکيو نه ورکول شي، [٦]تردې چې د هغه د ګناهونو د فيصله کيدو نه مخکې د هغه ټولې نيکې به ختمې شي، يعنی که د هغه ټولې نيکې د هغه ټولو د حق ورکولو نه پس هم د حقوق العباد د ضائع کولو سزا پوره نشي، [٧]نو د هغه حقدارو او مظلومانو ګناه چې هغوئ په دنيا کې کړي وي، هغه آخستو سره په هغه سړي به بار شي او بيا به هغه دوزخ کې واچول شي.(مسلم)

**حل اللغات**:- ①اَلْمُفْلِسُ: غريب، محتاجه، ②شَتَمَ: کنځل ئې کړي دی، ③قَذَفَ: تهمت ئې لګولې وی. ④سَفَكَ: تويه کړې به ئې وی، ⑤فَنِيَتْ: فنا شی، ختم شی، ⑥طُرِحَتْ: اچولې به شی. ⑦طُرِحَ وابه چولې شی.اوبه غورځولې شی.

**تسهيلات**:

**د شارح په نظر کښې اصل او حقيقی مفلس:**

**قوله: أَتَدْرُونَ مَا الْمُفْلِسُ؟**:دَدنيا په عرف کښې خودَ مفلس هم هغه تعارف وو کوم چه صحابه کرامو دَ حضورپاك دَ سوال په جواب کښې ذکر کړو ليکن دَ شارع ﷺ په نظرکښې اصل او حقيقی مفلس هغه دې چه په ميدان محشرکښې به دآخرت مفلس وی خکه چه دَهغه دګټې امکان به ختم شی په دې وجه حضورپاك دَهغې بيان اوکړو

**قوله: أُخِذَ مِنْ خَطَايَاهُمْ فَطُرِحَتْ عَلَيْهِ**: يعنی چه کله دَ خلقودَ ظلمونو په مقابله کښې دَ ظالم نيکئ ختمې شی نوبيا به دَخلقو بدئی او ګناهونه په ظالم باندې اچولې شی

**قيامت په ورځ د اعمالو متجسد کيدلو صورتونه:**

**قوله: فَطُرِحَتْ**:دَ الفاظونه معلومه شوه چه دَقيامت په ورځ به اعمال متجسد وی اودَ اچولو قابل به وی.① دَدې خو يو صورت دا کيدې شی چه دا اعمال دَ قيامت په ورځ دکاغذ رجسترډ او دستاويز په شکل کښې وی.② دويم صورت داهم ممکن دې چه الله تعالی هرعمل ته په قيامت کښې جثه ورکړی نوبيا به تلل او يا په چاباندې اچول ممکن

شی. ③ دریم صورت داکیدې شی چه دَهغه ځائی تله به دَدنیا دَ ګرې تللو دَ تلې په شان نه وی. په هغې خو به اعراض هم تلې شی. هسې دَ اعراضو تللو اعتراض په یوه زمانه کښې کیدلو نن صبا خو په جدید تیکنالوجی سره اعراض په آسانئی سره تللې شی. دَهوائی جهاز ارتفاع او انخفاض عرض دې تللې شی. دَ موسم حرارت او هوا تللې شی قوت باصره او سامعه تللې شی اوس خودا اعتراض چه اعراض او کیفیات به څنګه تللې شی مهمل شان پاتې شوی دی.

**قوله: ثُمَّ طُرِحَ فِي النَّارِ:** معلومه شوه چه حقوق العباد دَبنده دَمعاف کولو نه بغیر معاف کیدې نه شی دوزخ ته به ځی. او که الله تعالی مظلوم ته په عوض کښې ورکړه او کړی او هغه راضی کړی نو بیا ممکن ده. بهرحال دوزخ ته دا سړې دَ نورو دَ ګناهونو دَ وجې نه نه دې تلې بلکه په حقیقت کښې دا مظالم او حقوق دَده خپل کړې شوی جرائم دی دکوم په وجه چه دوزخ ته لاړو. لهذا دا حدیث دَ قرآن آیت ﴿وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ﴾ سره متصادم او متعارض نه دې.

**[۵۰۳۸] په آخرت کښې به دَهر ظالم نه دبل د حق حساب اخستې شی**

۵۰۳۸-()[۲] [۱] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] " «لَتُؤَدُّنَّ الْحُقُوقُ إِلَى أَهْلِهَا يَوْمَ الْقِيَامَةِ [۳] حَتَّى يُقَادَ لِلشَّاةِ الْجَلْحَاءِ مِنَ الشَّاةِ الْقَرْنَاءِ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ. وَذَكَرَ حَدِيثَ جَابِرٍ: " «اتَّقُوا الظُّلْمَ» "فِي "بَابِ الْإِنْفَاقِ".

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهریره رضی الله عنه وایې، چې رسول الله ﷺ وفرمایل، [۲] د قیامت په ورځ به حقدار ته د هغوئ حقوق ادا شي، [۳] تردې چې بې ښکرو بزې (چیلئ) قصاص بدله به د ښکر والا بزې (چیلئ) نه واخستل شي (مسلم) او د حضرت جابر رضی الله عنه نه روایت اتقو الظلم باب الاتفاق کې، ذکر شوی دی

**حل اللغات:** - ① لَتُؤَدُّنَّ: خامخا به اداکولې شی. ② يُقَادَ: د قَوَد نه دې، قصاص ته وائی، یعنی بدله به اخستلې شی ③ الْجَلْحَاءِ: دَ کوم حیوان ښکرې چه پیدائشی توګه باندې نه وی ④ الْقَرْنَاءِ: ښکرو والا

**تسهيلات:**

**قوله: حَتَّى يُقَادَ لِلشَّاةِ الْجَلْحَاءِ مِنَ الشَّاةِ الْقَرْنَاءِ:**

**د بې ښکرو چیلې د ښکرو چیلې نه بدله اخستل:** بغیر دَ ښکرو والا مظلومه چیلئی دَ ښکرو والا ظالمې چیلئی نه به قصاص او بدله اخستې شی. مطلب دا چه کوم ځناور په

[1] ) اخرجه مسلم فی کتاب البر والصلة والآداب/باب تحريم الظلم (رقم-۶۰ - (۲۵۸۲) والترمذی فی کتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی شأن الحساب والقصاص (رقم-۲۴۲۰) واحمد فی المسند: ۴۱۱/۲

بل خناوربانديې په دنیاکښې ظلم زیاتې او تجاوز اوتعدی کړې وی نو دَ هغه ظالم نه به بدله اخستې شی یعنی دَ الله تعالی دَ عدل اوانصاف به دومره ظهوراوشی چه دَ انسانانو نه علاوه به په خناورو کښې هم دَ عدل ظهور اوشی حالانکه خناور غیرمکلف وی اوس سوال دادې چه خناور خو غیرمکلف دی دَهغوی نه دَ قصاص او بدله اخستلو څه مطلب دې.

ددې جواب دادې چه الله تعالی ﴿ فَعَّالٌ لِّمَا يُرِيدُ ﴾ [سورت بروج: ۱۶] دې ﴿ لَا يُسْئَلُ عَمَّا يَفْعَلُ وَهُمْ يُسْئَلُونَ ﴾ [سورت الانبیاء: ۲۳] په اوچت صفت سره متصف دې هغه چه دَچانه هم بدله اخلی هغه مختارعلی الاطلاق دې.دَ خناوروپه معامله کښې که چرته انسان په خناور باندې ظلم کړې وی نودَ هغه نه به هم قصاص اخستې شی

**دکافرانود خاورې کیدو تمنا کول:** او بیا به دَ خناورو باره کښې فرمائی کونوا ترابا تول خاورې شئی نو تول به خاورې شی.په دې موقع باندې به کافران وائی ﴿يٰلَيْتَنِيْ كُنْتُ تُرٰبًا﴾ [سورت النباء: ۴۰] افسوس چه زه هم خاورې شوې وومَ.دویم جواب دادې چه په حدیث کښې دَ ښکرو والا دَ چیلئی نه ظالم انسان مراد دې.اودَ بې ښکرو چیلئی نه مظلوم انسان مراد دې.اودغه شان متل هم جاری دې.په دې حدیث کښې دا واضح کړې شوچه په قیامت کښې به دَ ذرې ذرې حساب کیږی.دَ ظالم نه به دَ مظلوم پوره پوره حساب اخستې شی فرض کړه که غیرمکلف حیوان هم ظالم شوې وی دَهغه نه به هم بدله اخستې شی نو اې انسانه ته دَ حساب نه څنګه بچ کیدې شې؟

# اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

### [۵۱۲۹] دَبدئی بدله په بدئ مه ورکوئ

۵۱۲۹-(۱)[۷] [۱] عَنْ حُذَيْفَةَ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «لَا تَكُونُوا إِمَّعَةً تَقُولُونَ: إِنْ أَحْسَنَ النَّاسُ أَحْسَنَّا، وَإِنْ ظَلَمُوا ظَلَمْنَا، [۳] وَلَكِنْ. وَطِّنُوا أَنْفُسَكُمْ إِنْ أَحْسَنَ النَّاسُ أَنْ تُحْسِنُوا، وَإِنْ أَسَاءُوا فَلَا تَظْلِمُوا» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه :** [۱] حضرت حذیفه رضی الله عنه وایي، چې رسول الله ﷺ وفرمایل، [۲] تاسو امّعه مه جوړیږي یعنی دا مه وایئ ، که خلق زمونږ سره نیکي کوي، نومونږ به هم د هغوئ سره نیکي کوو، او که خلق زمونږ سره ظلم کوي نومونږ به هم د هغوئ سره ظلم کوو، [۳] بلکي تاسو خپل ځان په دي امر قائم ساتئ، که خلق ستاسو سره نیکي کوي نو تاسو هم ورسره نیکي کوئ او که خلق درسره بدي کوي، نو تاسو ورسره ظلم مه کوئ، دا روایت ترمذي رحمه الله نقل کړی دی.

**حل اللغات :-** (۱) إِمَّعَةً: داهغه چاته وائی چه هغه وائی چه چا راسره څنګه سلوک کولو زه به هم ورسره هغسې کوم. (۲) أَسَاءُوا: د سوء نه دې بدی کول، تکلیف رسول.

---

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الإحسان والعفو (رقم-۲۰۰۷)

**تسهيلات:**

**قوله: لَاتَكُونُوا إِمَّعَةً:**

**د امعة تعريف:** امعه هغه سړی ته وائی چه خپله څه رائې نه لری بلکه بغیرد سوچ اوفکر نه وائی او کرځی

**دامعة څخه مراد:** د امعه نه مراد هغه سړې دې چه وائی ما سره چه خلقو کوم سلوك ساتلې دې زه به هغوی سره هم هغه سلوك کوم که خلق ما سره ښه وو نو زه به هم خلقو سره ښه یم اوکه خلق خراب شو نوزه به هم بدی کوم.نورسول الله ﷺ فرمائی چه داسې امعه مه جوړیږه بلکه که خلق احسان کوی نوته هم احسان کوه اوکه خلق د بدئی معامله کوی نوته د احسان معامله کوه او "تخلقوابأخلاق الله" نمونه جوړشه.

**قوله: وَإِنْ أَسَاءُوا فَلَا تَظْلِمُوا:**

**د فلا تظلموا مطلبونه:** ① د دې جملې ترجمه داده چه بدله واخله مګر ظلم اوزیاتې مه کوه دا ادنی مومن درجه خودلې شوې ده. ② دوئم مطلب دادې چه بدی کونکوسره صرف د بدئی کولو سوچ مه کوه بلکه د معاف کولو خیال هم کوه داد دویمې درجې د متوسط مومن درجه خودلې شوې ده. ③دریم مطلب دادې چه بدی کونکی سړی سره نیکی کوه داد اعلی مومن درجه خودلې شوې ده."فلاتظلموا" جمله کښې لکه چه د درې قسمه مسلمانانو د دریو درجو ذکر دې.ادنی، متوسط او اعلی درجې مومن

**[٥٣٠] د الله رضامندی او خوشحالی حاصلول پکار دی**

٥٣٠-(١)[٨] ⑴ «وَعَنْ مُعَاوِيَةَ، أَنَّهُ كَتَبَ إِلَى عَائِشَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا- ⑵ أَنِ اكْتُبِي إِلَيَّ كِتَابًا تُوصِينِي فِيهِ وَلَا تُكْثِرِي. ⑶ فَكَتَبَتْ: سَلَامٌ عَلَيْكَ، أَمَّا بَعْدُ: فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ ⑷: وَمَنِ الْتَمَسَ رِضَا اللَّهِ بِسَخَطِ النَّاسِ كَفَاهُ اللَّهُ مُؤْنَةَ النَّاسِ، ⑸ وَمَنِ الْتَمَسَ رِضَا النَّاسِ بِسَخَطِ اللَّهِ وَكَلَهُ اللَّهُ إِلَى النَّاسِ" وَالسَّلَامُ عَلَيْكَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ⑴ او حضرت امیر معاویه رضی الله عنه نه روایت دی، هغه ام المؤمنین بي بي عائشه رضی الله عنها ته ولیکل ⑵ تاسو ماته یوه نصیحت نامه لیکلې راولیږئ (چې په هغه زه عمل وکړم او ستاسو هغه نصیحت خما دیني او دنیاوي امورو کې زما د پاره د فلاح او سعادت باعث وي) او هغه نصیحت نامه اوږده نه وي (بلکې مختصر او جامع وي) ⑶ نو بي بي عائشه رضی الله عنها ورته داکلمات لیکلي ولیږل، په تاسو دې سلامتیا وي، د دې نه پس ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلي دي، ⑷ که یوسړی داسې کار کوي چې د الله تبارك وتعالى د رضامندي او خوشنودي باعث

[1]) اخرجه الترمذی فی السنن كتاب الزهد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب منه (رقم-٢٤١٤)

وي او د خلقو د ناراضګي او ناخوښي سبب جوړ شي، نو الله جل جلاله د هغه کار په وجه هغه نه خوشحاليږي او آخر الامر مخلوق هم د هغه نه راضي او خوشحاله کوي، او د خلقو د شر او فساد نه محفوظ ساتي، ⑤او کوم سړی چې د خلقو رضامندي او خوشنودي مدَ نظر ساتي، او د الله جل جلاله د خفګان او ناراضګی نه بي پروا کېږي، نو الله جل جلاله يې هغه خلقو ته حواله کوي، او په تادي سلامتيا وي (ترمذي)

**حل اللغات**:- ①لَاتُكْثِرِي: كثرت او زيات والې مه كوه، ②سَخَط: ناراضګی، خفګان، ③مُئُونَة: ضرورت، محنت اومشقت، ④اَلْتَمَسَ: لټول، نظر کېښې ساتل،

**تسهيلات:**

**د بعضې مشكلو جملو وضاحت:**

①تُوصِينِي فِيهِ وَلَا تُكْثِرِي: يعنى چه اوږد مضمون او اوږده الفاظ نه وی بلکه مختصر او جامع نصيحت اوليکه.

②وَكَلَهُ اللّٰهُ إِلَى النَّاسِ: يعنی کوم سړې چه الله تعالی پرېږدی اودَخلقو دَ راضی کولو کوشش کوی الله تعالی به هغه سړې خلقو ته حواله کړی بيا به خلق دَهغه بوټی راؤشوکوی.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [٥٣١] په آيت کې دَ لفظ (ظلم) تشريح

٥٣١-(١)[٩] ①عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ «لَمَّا نَزَلَتْ: ﴿الَّذِينَ آمَنُوا وَلَمْ يَلْبِسُوا إِيمَانَهُمْ بِظُلْمٍ﴾ [الأنعام: ٨٢] .②شَقَّ ذَلِكَ عَلَى أَصْحَابِ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ③قَالُوا: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! أَيُّنَا لَمْ يَظْلِمْ نَفْسَهُ؟ ④فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "لَيْسَ ذَاكَ؟ إِنَّمَا هُوَ الشِّرْكُ، ⑤أَلَمْ تَسْمَعُوا قَوْلَ لُقْمَانَ لِابْنِهِ: ﴿يَا بُنَيَّ لَا تُشْرِكْ بِاللّٰهِ إِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيمٌ﴾ [لقمان: ١٣] .⑥وَفِي رِوَايَةٍ: "لَيْسَ هُوَ كَمَا تَظُنُّونَ، إِنَّمَا هُوَ كَمَا قَالَ لُقْمَانُ لِابْنِهِ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: ①حضرت ابن مسعود رضي الله عنه وايي، کوم وخت چې دا آيت (اَلَّذِينَ آمَنُوا وَلَمْ يَلْبِسُوا إِيمَانَهُمْ بِظُلْمٍ) نازل شو، ②نو د دې سره د رسول الله صلى الله عليه وسلم صحابه رضي الله عنهم ته ډېر بوج محسوس شو ځکه چې هغوئ دا ګمان وکړ چې د ظلم نه مراد مطلق ګناه ده ③نو هغوئ عرض وکړو، يارسول الله په مونږ کې داسې کوم سړی دی چې هغه په ځان ظلم نه وي کړی، ④رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل، داخبره نه ده (يعني ظلم نه مراد هغه نه دی، کوم چې تاسو ګڼلی، يعنی مطلق ګناه) بلکې ظلم نه شرك مراد دی، ⑤آيا تاسو د لقمان عليه السلام هغه نصيحت نه دی اوريدلی،

[١] اخرجه البخارى فى كتاب تفسير القرآن/باب {ولم يلبسوا إيمانهم بظلم} [الأنعام: ٨٢] (رقم-٤٦٢٩)ومسلم فى كتاب الايمان/باب صدق الإيمان وإخلاصه (رقم-١٩٧ - (١٢٤))

چې هغه خپل مؤمن خوی ته کړی وو (او هغه داچې) اې ځما ځویه! د الله سره هیڅوك مه شریکوه (یعني ایمان بالله او هغه ټول څیزونو کې چې په هغه ایمان راوړل واجب دي د شرك آمیزش مه کوه) ځکه چې شرك یقینًا ډیر لوی ظلم دی. [۶] او په یوه روایت کې دا الفاظ دي، چې حضور ﷺ وفرمایل د ظلم نه هغه مراد نه دی، کوم چې تاسو گمان کړی دی، بلکې د دې نه هغه مراد دی چې لقمان علیه السلام خپل خوی ته کړی وو (بخاري ، مسلم)

**حل اللغات:** - ① لَمْ يَلْبِسُوا: خلط شوې نه دي، ② شَقَّ: گرانه شوه، بوج محسوس شو.

**تسهیلات:**

**قوله: شَقَّ ذَلِكَ عَلَى أَصْحَابِ رَسُولِ اللهِ:**

**په صحابه کرامو باندې د آیت مفهوم گرانیدل:** چه دا آیت کله نازل شو نو دَدې مطلب په صحابه کرامو باندې ډیر گران پریوتلو ځکه چه صحابه کرامو خیال اوکړو چه دَ ظلم د لفظ نه مراد گناه ده او دا خبره ښکاره ده چه دَ انبیاء کرامو نه علاوه دَگناهونو نه څوك پاك کیدې شی په دې وجه هغوی سوال اوکړو "أينا لم يظلم؟" دا دَ هغوی دَ پریشانئی ډیر لوئی اظهار وو حضور پاك دَ دې په جواب کښې اوفرمائیل دَ ظلم نه مراد دکامل درجې ظلم دې کوم چه شرك دې ځکه چه دَ سورت لقمان یو آیت کښې دی ﴿ إِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيمٌ ﴾ [سورت لقمان: ۱۳] دلته دَدې ظلم نه مراد عام گناه نه ده بلکه یو خاص قسم گناه مراد ده کوم چه شرك دې مطلب دا شو چه کوموخلقو ایمان کفر سره گډوډ نه کړو یعنی انسان منافق پاتې نه شو دَچا په ژبه خو چه ایمان وی او په زړه کښې شرك پروت وی.

**[۳۰۳] دَبل دَ دنیا دَپاره خپل آخرت مه خرابوئ**

> ۳۰۳-( )[۱۰] [۱] وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] قَالَ: «مِنْ شَرِّ النَّاسِ مَنْزِلَةً عِنْدَ اللَّهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَبْدٌ [۳] أَذْهَبَ آخِرَتَهُ بِدُنْيَا غَيْرِهِ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت ابوامامه رضی الله عنه نه روایت دی، چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] د قیامت په ورځ به د مرتبې د اعتبار نه بدترین سړی هغه وي، [۳] چې د دنیا په سبب آخرت ضائع کړي (ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① مَنْزِلَةً: مرتبه. ② أَذْهَبَ: بوخی. ضائع کړی.

**تسهیلات:**

**قوله: مِنْ شَرِّ النَّاسِ مَنْزِلَةً عِنْدَ اللَّهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَبْدٌ أَذْهَبَ آخِرَتَهُ بِدُنْيَا غَيْرِهِ:**

**دقیامت په ورځ بدترین انسان:** مطلب دادې چه که یو سړې دَخپلې دنیاوی فائدې او مقصد دَپاره خپل آخرت بربادوی نو دا هم سخت جرم دې لیکن دا جرم هغه وخت نور

---

( ) اخرجه ابن ماجه في السنن كتاب الفتن/ باب إذا التقى المسلمان بسيفيهما (رقم-۳۹۶۶)

سخت شي کله چه دبل چا دنیا جوړولو دپاره وی مثلاً یو سړی دخپل مفاداتو دپاره نه بلکه د نورو د مفاداتو دپاره په چا باندې ظلم شروع کړی او په هغې کښې استعمالیږی لکه څنګه چه په سرکاری او غیرسرکاری اداروکښې دیرزیات خلق د نورو خلقو دخوشحالولو دپاره په عامو خلقو باندې ظلم کوی دا د غیرو ددنیا د جوړولو دپاره خپل آخرت بربادول دی لکه نن صبا چه پرویز مشرف د امریکه دخوشحالولو دپاره خپل مسلمانان په نښنه کوی.

## [۵۳۳] په قیامت کښې درې قسمه اعمال نامې

۵۳۳-(١) [١] ١ وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهَا - قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ٢ "«الدَّوَاوِينُ ثَلَاثَةٌ: دِيوَانٌ لَا يَغْفِرُهُ اللهُ: الْإِشْرَاكُ بِاللهِ. يَقُولُ اللهُ عَزَّ وَجَلَّ: ﴿إِنَّ اللهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُشْرَكَ بِهِ﴾ [النساء: ٤٨] ٣ وَدِيوَانٌ لَا يَتْرُكُهُ اللهُ: ظُلْمُ الْعِبَادِ فِيمَا بَيْنَهُمْ حَتَّى يَقْتَصَّ بَعْضُهُمْ مِنْ بَعْضٍ، ٤ وَدِيوَانٌ لَا يَعْبَأُ اللهُ بِهِ ظُلْمُ الْعِبَادِ فِيمَا بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ اللهِ، فَذَاكَ إِلَى اللهِ: إِنْ شَاءَ عَذَّبَهُ وَإِنْ شَاءَ تَجَاوَزَ عَنْهُ»".

**ترجمه**: ١ او بي بي عائشه ﷞ وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل، ٢ دفتر يعنی اعمال نامه په درې قسمه وي، يو خو هغه اعمال نامه ده چې الله ﷻ يي نه بخښي، او دا هغه اعمال نامه ده چې په هغه کې د الله ﷻ سره څوك شريك کړی وي، (يعني د کفر او شرك ګناه چې کوم نامه اعمال کې وي، د هغه بخشش ممکن نه دی) لکه الله ﷻ فرمايي، چې الله شرك نه بخښي بل هغه اعمال نامه ده چې الله ﷻ يي دغه شان نه پريږدي بلکي د هغه باره کې به ضرور حکم کوي ٣ و هغه اعمال نامه هغه ده چې په هغه کې د بنده ګانو په خپلو کې مظالم درج دي، نو هغه به د الله ﷻ د حکم مطابق يو بل نه بدله اخلي (يعني الله ﷻ به مظلوم ته د ظالم نه د هغه د ظلم بدله ورکوي، يا داچې الله ﷻ په چا خپل فضل کول غواړي، هغه به د صاحب حق د مطالبې نه بري کړي، په دې طور چې هغه به صاحب حق ته د خپلې خزانې درحمت نه د هغه د حق په قدر يا د هغه نه زيات نعمتونه ورکولو سره راضي کړي، او ورته به فرمايي، چې اوس ته هغه معاف کړه، چې هغه په تا ظلم کړی وو يا ستا څه حق يي غصب کړی وو نو هغه به راضي او خوشحاليدو سره هغه سړی معاف کړي، او دغه شان به د الله ﷻ هغه نعمتونه د هغه د حق بدله او دنيا ګې د ديت (خون بها) قائم مقام شي، ٤ او دريمه اعمال نامه هغه ده، چې د هغه به الله ﷻ ته هيڅ پروانه وي، (يعني که هغه غواړي نو د هغه اعمال نامې مطابق به د سزا او عذاب فيصله صادر کړي. او که غواړي، نو په هغه به څه کار وايي نه کوي) او هغه اعمال نامه هغه ده، چې په هغه کې د بنده ګانو الله سره ظلم کول يعنی د هغوئ د طرف نه حقوق الله کې د تقصير او کوتاهي

[١] اخرجه احمد فی المسند: ٦/ ٢٤٠ والبیهقی فی شعب الایمان رقم الحدیث ٧٤٧٣

مرتکب کیدل درج دي نو دا اعمال نامه د الله ﷻ په مرضي موقوف ده، که غواړي هغه به بنده ته د هغه د عمل مطابق سزا ورکړي، او که غواړي، هغه سره به درگذر معافي معامله وکړي، او هغه ته به څه سزا ورنه کړي

**حل اللغات:** - ① الدَّوَاوِينُ: دَ ديوان جمع ده ديوان دفترته وائی، رجسټر. ② يُقْتَصُّ: بدله او قصاص به واخلی. ③ لَايَعْبَأُ: هيڅ پرواه به نه وی

**تسهيلات:** **قوله:** الدَّوَاوِينُ ثَلَاثَةٌ:

**د قيامت په ورځ درې قسمه فيصلې:** مطلب دا چه دَ قيامت په ورځ به دَ خلقو فيصلې په درې قسمه دفترونو کښې کيږی.دا ديوانی کيس به په دريو جدا جدا سيکشنونو کښې چليږی دا دفترونه سيکشن او مرحلې به په حقيقت کښې دَخلقو اعمال نامې دی نو د مختلف خلقو به مختلف عمل نامې وی دکومې چه به په جدا جدا ځايونو کې فيصلې وی اول ديوان دَشرک دي کوم ځائی چه به دَ ټول شرک ريکارډ جمع وی هغه به الله تعالی نه معاف کوی اودا خلق به دوزخ ته ځی.دويم دَحقوق العباد ديوان دې چرته چه به په يوبل باندې دَ ظلمونو ريکارډ او اعمال نامې وی.دغه خلق به ترهغه وخته پورې الله تعالی نه معاف کوی ترکومې چه دَدغه خلقو پوره پوره بدله يوبل ته ورنه کړې شی اوکه چرته دَدوی نه مظلوم الله تعالی په قيامت کښې دَخپل طرف نه راضی کړی اوهغه ته دَخپل طرف نه انعام ورکړی اوهغه ظالم معاف کړی نو داسې کيدې شی.دريم ديوان دَ حقوق الله دې چرته چه به دَ انسانانودَ اعمالو هغه اعمال نامې وی دکوم تعلق چه حقوق الله سره وی دغه انسانانو په حقوق الله کښې کوتاهئی کړې وی دَهغوی حکم اوعام فيصله به داسې وی که چرته الله تعالی ئی معاف کول غواړی نومعاف به ئی کړی اوکه سزا ورکول غواړی نو سزابه ورکړی

**[۵۳۴] دَمظلوم دَبددعا او خيرو نه ځان ساتئ**

**۵۳۴ - (۱) [۲۱]** ① وَعَنْ عَلِيٍّ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«إِيَّاكَ وَدَعْوَةَ الْمَظْلُومِ، فَإِنَّمَا يَسْأَلُ اللّٰهَ تَعَالَى حَقَّهُ، ③ وَإِنَّ اللّٰهَ لَا يَمْنَعُ ذَا حَقٍّ حَقَّهُ»".

**ترجمه:** ① او حضرت علي رضي الله عنه وايي، چی رسول الله ﷺ وفرمايل، ② خپل ځان د مظلوم د بد دعا نه وساتی (يعني په چا ظلم مه کوه، چې هغه ستا په حق کې بد دعا وکړي) ځکه چې هغه د الله ﷻ نه صرف خپل حق غواړي ③ او الله ﷻ صاحبِ حق د هغه د حق نه نه محرومه کوي (يعني هرحقدار ته د هغه حق ضرور ورکوي)

**حل اللغات:** - ① إِيَّاكَ: ځان بچ ساته. ② دَعْوَةَ الْمَظْلُومِ: د مظلوم د بد دعا نه. خيرو نه

---

(۱) اخرجه احمد فی المسند: ۳٤۳/۲ والبيهقي فی شعب الايمان رقم الحديث ۷٤٦٤

**تسهیلات:**

**قوله: إِيَّاكَ وَدَعْوَةَ الْمَظْلُومِ:**

**د مظلوم د خیرو څخه د ځان ساتلو تاکید:** مظلوم چه کله دَالله تعالی په مخکښې دَظالم فریادکوی نو په حقیقت کښې دې دَ الله تعالی نه خپل حق غواړی اوالله تعالی دَیو صاحب حق حق منع کوی نه په دې وجه دَمظلوم بددعا فوری لګی اودَ الله تعالی دَ طرف نه دَهغې استقبال کیږی.چا وئیلی دی.

**[٥٣٥] دَظالم مدد کونکې دَکامل ایمان نه محرومیږی**

٥٣٥-()[١٣] ①وَعَنْ أَوْسِ بْنِ شُرَحْبِيلَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: ②"«مَنْ مَشَى مَعَ ظَالِمٍ لِيُقَوِّيَهُ ③وَهُوَ يَعْلَمُ أَنَّهُ ظَالِمٌ فَقَدْ خَرَجَ مِنَ الْإِسْلَامِ».

**ترجمه:** ①او د حضرت اوس ابن شرحبیل رضی الله عنه نه روایت دی، هغه د رسول الله ﷺ نه واوریدل، ②کوم سړی چې د یوظالم تقویه او د تائید د پاره د هغه سره روان شي یعنی د هغه موافقت او حمایت وکړي، ③او هغه په دې پوهیږي چې (د کوم سړي مدد او تاکید کوي) هغه یوظالم انسان دی نو هغه سړی د اسلام نه خارج کېږي، یعنی هغه د کمال ایمان نه محروم کېږي.

**حل اللغات:-** ①مَشَى: روان شو، تلل ئې اوکړل، ②لِيُقَوِّيَهُ: چه قوت ورکړی هغه ته، تائید ئې اوکړی.

**تسهیلات:**

**قوله: مَنْ مَشَى مَعَ ظَالِمٍ لِيُقَوِّيَهُ:**

**دظالم په مرسته د اسلام څخه خارجیدل:** چه کوم سړی دَ یوظالم په ظلم کښې دَهغه داسې تائید او امداد اوکړو چه ظالم په ظلم کښې مضبوط شو دا تائید کونکې ته پته وی چه دا سړې ظالم دې.په دې صورت کښې دا تائید کونکې دَاسلام نه خارجیږی

**اشکال:** دګناه کبیره ارتکاب سره یوسړې دَ اهل سنت په نیز دَاسلام نه خارج کیږی نه نو دلته دَ "فقد خرجه من الإسلام" څه مطلب دې؟

**داشکال درې جوابونه:** ① دَ اسلام نه مراد کامل اسلام دې نودا سړې دکمال اسلام نه اوځی هسې به په اسلام کښې وی

② دا حکم تشدیداً تغلیظاً تهدیداً او زجراً اوتوبیخاً دې

③ که دَ ظالم نصرت او امداد کونکې دَدغه ظالم ظلم حلال ګڼړی نوحرام حلال ګڼړونکې

[١]) اخرجه البیهقی فی شعب الایمان رقم الحدیث ٧٦٧٥

كافركيږي لهذا داسړي دَاسلام نه خارج شو لكه څنګه چه نن صبا مسلمانان حكمرانان دَامريكه په ظلم كښې دَهغوى امداد لازم ګڼړى

**[٥٣٦] دَظالم دَظلم سپيره توب عام دي**

٥٣٦ـ( ) [١٤١] ①وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - أَنَّهُ سَمِعَ رَجُلًا يَقُولُ: ②إِنَّ الظَّالِمَ لَا يَضُرُّ إِلَّا نَفْسَهُ. ③فَقَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ: بَلَى وَاللّٰهِ، ④حَتَّى الْحُبَارَى لَتَمُوتُ فِي وَكْرِهَا هُزْلًا لِظُلْمِ الظَّالِمِ. رَوَى الْبَيْهَقِيُّ الْأَحَادِيثَ الْأَرْبَعَةَ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ".

**ترجمه:** ①او د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دى ، هغه د يوسړي نه واوريدل . ②چې ظالم په حقيقت كې خپل ځان ته نقصان رسوي نورو ته د هغه د ظلم اثرات نه رسيږي ③حضرت ابوهريره رضي الله عنه په دي اوريدو سر وفرمايل، بيشكه ظالم خپل ظالمانه حركتونو سره خپل ځان ته نقصان رسوي ④ليكن د هغه نحوست يعنى سپيره والى نور خلق هم متاثر كوي، تردي چې حبارى (زانى)خپله جاله كې د ظالم د ظلم په سبب كمزوري او مرشي ، دا څلور سره روايتونه بيهقي په شعب الايمان كې نقل كړى دى

**حل اللغات:-** ①الْحُبَارَى: سرخاب، زانړې، ②وَكْرِهَا: خپله جاله كښې، ③هُزْلًا: كمزورى

**تسهيلات:**

**قوله:** حَتَّى الْحُبَارَى لَتَمُوتُ فِي وَكْرِهَا هُزْلًا لِظُلْمِ الظَّالِمِ: حبارى.

**دحبارى پيژندګلو:** دَ يوې مرغئى نوم دې كوم ته چه په اردوكښې سر خاب وائى اوپه پښتو كښې ورته شترمرغ وائى دا مرغئى دَ اوبو په لټون كښې ماهره ده اوپه سوونو ميلونو لرې تلو سره اوبه حاصلوى مګر دَ ظالم دَ ظلم اثر دومره منحوس دې چه دَ اوچ كالئى دَ وجې نه سرخاب هم په خپله جاله كښې تګې مړه كيږى حالانكه دامرغئى اوبوحاصلولوكښې خپل مثال پخپله ده حضرت ابوهريره رضي الله عنه داكلام دَ يوسړى په جواب كښې ارشاد فرمائيلې وو هغه سړى وئيل چه دَ ظالم دَ ظلم اثر صرف دَهغه دَنفس پورې خاص وى او بل چاته نقصان نه رسوى حضرت ابوهريره رضي الله عنه اوفرمائيل چه ولې نقصان نه رسوى؟ ګورئى حبارى غوندې مرغئى دَ تندې دَ وجې نه مړه كيږى ځكه چه دَ ظالم دَ ظلم دَ وجې نه باران بنديږى نو اوبه ختميږى حضرت ابوهريره رضي الله عنه به كيدې شى څه حديث اوريدلې وى دكوم مضمون ئى چه بيان كړې دې

---

[١] ) اخرجه البيهقي في شعب الايمان رقم الحديث ٧٦٧٩

# [۲۲]بَابُ الْأَمْرِ بِالْمَعْرُوفِ]

## دَامر بالمعروف بیان

**خلاصة الباب**

**فیه ثمانیة عشر حدیثاً مشتملة علی سبع مسائل:**

① مراتب الأمر بالمعروف: ۱، ۱۵۔
② ضرورة الأمر بالمعروف و فوائده: ۲و ۴، ۵، ۸، ۹۔
③ الزجر لمن یأمربالمعروف ولایعمل بنفسه: ۳، ۱۳۔
④ عقوبة ترك الأمربالمعروف والنهي عن المنكر: ۴، ۶، ۷، ۱۰، ۱۱، ۱۲، ۱۶۔
⑤ زمن رخصة ترك الأمربالمعروف والنهی عن المنكر: ۸، ۱۷۔
⑥ عقوبة من إنهمك في المعاصي: ۱۴۔
⑦ البشارة للآمرین بالمعروف ولزوم المنكرمع صاحبه یوم القیامة: ۱۸۔

**قوله:الْأَمْرِ بِالْمَعْرُوفِ:**

**اشکال:** په قرآن او حدیث کښې تقریبًا هرځائی امربالمعروف سره دَ نهی عن المنکر لفظ یوځائی کړې شوې دې خودلته صاحب مشکوة عنوان ترلو سره دا لفظ ولې پرېخودې دې؟

**داشکال درې جوابونه:** ① احد الضدین دلته ذکرکړې شوې دې اودویم مقابل نهی دَ منکر ئې دَ سامع دَ فهم په بنیادباندې پرېخودې دې.اوداسې په فصیح کلام کښې کیږی لکه چه دَ الله تعالی ارشاد دې ﴿وَجَعَلَ لَكُمْ سَرَابِيلَ تَقِيكُمُ الْحَرَّ﴾ [سورت نحل: ۸۱.دلته والبرد دَ سامع په فهم باندې پرېخودلې شوې دې.

② معروف دَ ماعرفه الشرع په معنی کښې دې کوم چه منکر ته هم شامل دې چنانچه علامه ابن اثیر رحمه الله په نهایه کښې لیکلی دی چه طاعات الله او تقرب الی الله او احسان الی الناس اوهر هغه څیز دَ کوم طرف ته چه شریعت رابلل کړی دی یا ئې منع کړې ده ټولو ته دَمعروف لفظ شامل دې.

③ کیدې شی بعضې ناسخینو او لیکونکونه په لیکلو کښې دا لفظ پاتې شوې وی اوبیا هم دغه شان رواج روان شوی وی دا جواب زیات واضح دې

**دمعروف اومنکر څخه مراد:** دمعروف لفظ اشنا او پیژندګلو په معنی کښې دې نوچه کوم ته شریعت معروف وئیلې دې شرعًا هم هغه معروف دې اوکوم چه شریعت منکر ګرځولې دې شرعاً هم هغه منکرْدې.

**دامر بالمعروف اونهی عن المنکر دوه اړخونه:** ① په امر او نهی کښې یو اړخ دَ شریعت

ایجابی اړخ دې دې ته مامورات او اوامر وائی دا اړخ نرم دې

④ دویم اړخ سلبی دې دې ته نواهی اومنهیات وائی دا اړخ ګرم دې

**دامر بالمعروف اونهی المنکر عمومیت**: دَ المعروف لاندې دَ ادنٰی نه ادنٰی نیکئی نه واخله ترد اعلی نه اعلی نیکی داخله ده.دغه شان دَالمنکر لاندې دَ لوئی نه لوئی او دَ وړې نه وړه ګناه داخل ده په دې کښې دَهیڅ تخصیص ګنجائش نشته دې.

**دامر بالمعروف اونهی عن المنکر دتلازم مثال**: لکه څنګه چه په بجلئی کښې یو تار ګرم وی او یو تار یخ وی دواړه یوځائی کولوسره بجلی روښانه شی دَ دواړو یوځائی کولونه بغیر رڼړا نه راځی.نه یوازې ګرم تار فائده ورکوی اونه یخ په دواړوکښې تلازم دې دَامر اونهی هم دغه حیثیت دې دادَ یوبل نه جدا کولې نه شی لکه څنګه چه بعضې خلق کوی اوس نتیجه دا راووتله چه امرمعروف سنن اومستحباتو ته هم شامل دی او فرائض او واجباتو ته هم شامل دی.اومنکر مکروهاتو ته هم شامل دی او حرام قطعی ته هم شامل دی دادنی اواعلی مثالونه:دَمثال په توګه منکرواخله په ولاړه په ګس لاس باندې اوبه څکل چې څنګه دَمنکر ادنٰی درجه ده اودَدې نه منع کول نهی عن المنکر دې دغه شان کفر اوشرك اوبدعت اوزندقه هم دَمنکر اعلی درجه ده اودَدې نه منع کول هم نهی عن المنکردې

**دامرپه تعریف کښې اقوال**:

① الأمر طلب الفعل وموجبه عندالجمهور الإلزام والنهی قول القائل لغيره على سبيل الاستعلاء لاتفعل (حسامی) ② الأمرهوقول القائل لغيره على سبيل الاستعلاء "افعل" (اصول الشاشی نور الانوار)

③ الأمر أمرته إذا كلفته أن يفعل شيئاً (مفردات القرآن)

**د مذکوره تعریفاتو خلاصه**: أمر دَحکم په معنی کښې دې په کوم کښې چه غیرته حکم ورکولې شی چه دا کار اوکړه هغه له به دَدې کول وی.په دې کښې په رضاکارانه توګه باندې اپیل اوالتماس او درخواست نه کیږی بلکه نیغ په نیغه حکم وی چه داکار اوکړه که اودې نه کړو نودَ سزا دَپاره تیارشه.

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

**[۵۱۳۷] د نهی عن المنکر درې درجې**

۵۱۳۷-(۱)[۱] ① عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ② "

[1] اخرجه مسلم فی كتاب الإيمان/باب بيان كون النهی عن المنكر من الإيمان، وأن الإيمان يزيد وينقص، وأن الأمر بالمعروف والنهی عن المنكر واجبان(رقم-۷۸ - (۴۹)، وابوداود فی كتاب الترجل /باب الأمر والنهی (رقم-۴۳۴۰) والترمذی فی كتاب الفتن عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی تغيير المنكر باليد أو باللسان أو بالقلب (رقم-۲۱۷۲) والنسائی فی كتاب الإيمان وشرائعه/باب تفاضل أهل الإيمان (رقم-۵۰۰۸) واحمد فی المسند:۳/۲۰

«مَنْ رَأَى مِنْكُمْ مُنْكَرًا فَلْيُغَيِّرْهُ بِيَدِهِ، [۳] فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَبِلِسَانِهِ، [۴] فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَبِقَلْبِهِ، [۵] وَذَلِكَ أَضْعَفُ الْإِيمَانِ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت ابوسعید خدري ﷺ د رسول الله ﷺ نه روایت کوي حضور ﷺ وفرمایل، [۲] په تاسو کې چې کوم سړی خلاف شرع امر ووینې (یعني کوم شی چې د شرع خلاف وګڼي) نو هغه ته پکار دی چې هغه شی په خپل لاسونو سره بدل کړي (یعني د طاقت په ذریعه هغه شی نیست او نابود کړي مثلاً باجي سرودونه او آلات لهو ولعب نو هغه دي مات کړي، نشه او مشروبات دي ضائع کړي او هرپ شوی دی د هغه مالك ته حواله کړي وغیره وغیره) [۳] او که هغه خلاف شرع ا مر کونکی د زیات قوي کیدو په وجه د لاسونو په ذریعه د هغه امر انجام کولو طاقت نه لري، نو د ژبې په ذریعه دي هغه امر انجام کړي، [یعنی د خلاف شرع امورو باره کې دي آیتونه او احادیث واوري. د الله د عذاب نه دي وبیر وي، پند و نصیحت دي ورته وکړي او که په سمه طریقه ونه مني نو سختي خبري دي ورته وکړي] [۴] او که د ژبې په ذریعه هم د هغه امر انجام کولو طاقت نه لري، نو بیا د زړه په ذریعه دي هغه امر انجام کړي، [یعنی هغه دي زړه سره بد ومني قلبي نفرت دي ورسره ساتي، او په دي عزم او اراده دي قائم وي چې کله هم د لاس یا ژبې په ذریعه د هغه امر انجام کولو طاقت ورته حاصل شي نو خپله ذمه واري به ضرور پوره کوي] ، [۵] او د هغه امر مرتکب دی هم بد ګڼي او دهغه نه دي کناره کشي اختیار کړي) او دا آخري درجه د ایمان د ټولو نه کمزوري درجه ده. (مسلم)

**تسهیلات:**

**قوله: مَنْ رَأَى مِنْكُمْ مُنْكَرًا:**

**د امر متوجه کیدو پاره درؤیت شرط**: اول خیزخو بدی په خپلو سترګوسره لیدل دي. ترکومې پورې چه یو سړې منکر ګوری نه نوهغه وخته پورې دَ هغه طرف ته دَ بدئی ازاله متوجه کیږی نه. اوکله چه هغه بدی اولیدله نو دَ قدرت په صورت کښې په لاس سره دَهغې ازاله کول اوختمول فرض دی خو په دې شرط چه دَ څه لوئی فتنې خطره نه وی.

**دانکار کونکی دپاره د جائزاوناجائزپیژندګلو**: "منکم" په لفظ سره اشاره کړې شوې ده چه دَ امربالمعروف اونهی عن المنکر ذمه واری په هغه حضراتوباندې ده چه معروف اومنکر پیژنی. اوهغه خلق متفق علیها او مختلف فیها مسائلوکښې فرق کولې شی. هغوی ناسخ اومنسوخ پیژنی اوپه مکی اومدنی نصوصو کې فرق کولې شی ﴿وَلْتَكُنْ مِنْكُمْ أُمَّةٌ﴾ کښې من تبعیضیه نه هم دَدې حقیقت طرف ته اشاره کړې شوې ده

**قوله: فَلْيُغَيِّرْهُ بِيَدِهِ:**

**په لاس سره د منکر منع کول:** یعنی په لاس سره دې بدی منع کړي اوددې خلاف مسلح کوشش دې اوکړي دادَ تېولو نه اعلی درجه ده په دې کښې دَ متهو دَ طاقت دَاستعمالولو ترغیب ورکړې شوې دې چه په حقیقت کښې جهاد کول اودې نه علاوه دَ منکراتو دفاع ته شامل دی بهرحال دلاس په طاقت سره نافذ کونکی احکاماتو تعلق دَحکمرانانو سره دې

**د حدیث یوه غلطه توجیه:** دَمتهو دَطاقت طرف ته اشاره ده بعضې حضرات وائی دَدې حدیث مطلب دادې چه دَمنکر اوبدئی ازاله اوشی صرف ازاله مقصود ده که هغه په ژبه سره وی او یا په بل څه حکمت سره وی لهذا دَ نهی عن المنکر ضرورت نشته دې

**د توجیه تغلیط:** دادَ دغه حضراتو دَ غلط سوچ نتیجه ده ځکه چه دلته "بیده" لفظ موجود دې که چرې په لاس سره دَ منع کولو او دَ ید لفظ ذکرنه وې نوبیا دَهغوی خبره اوریدو قابل وه لیکن چه په لاس سره دَ بندولو تصریح موجود ده نودې نه پس دویمه معنی اخستل دَحدیث نه اعراض یا په دې باندې دَ اعتراض مترادف دې په کوم کښې چه دَ تحریف خطره ده.

**قوله: فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَبِلِسَانِهِ:**

**په ژبې سره د منکر منع کول:** په ژبه سره دَمنکر دَ ازالې مطلب دادې چه حق ښکاره بیان کړې شی په واضح الفاظوسره په ژبه دَحق اعلان اوکړې شی اوبیا دغه حق نورو ته اورسولې شی په دې کښې په ژبه سره تهدید او تغلیظ هم وی دَ موقع اومحل مناسب گرمی هم وی اونرمی هم وی ترغیب هم وی اوترهیب هم وی.

**په ژبې سره د نهی عن المنکرپوره کونکی حضرات:** ① نن صبا دا فریضه امامان په جماتونوکښې د جمعې د خطبو په ذریعه پوره کوی.

② مدریسن په مدارسو کښې دَتدریس په ذریعه سره پوره کوی.

③ مجاهدین ئې چه په میدان دَ جهاد کښې په کافرانو او اغیارو باندې مجاهدانه چغو او دَ جهادی اشعار او حملو په ذریعه پوره کوی.

④ مصنفین اومؤلفین ئې په خپل تصنیفاتو اوجرائدو او رسائلو کښې دَ تحریر په ذریعه پوره کوی

⑤ دَتبلیغی جماعت دوستان ئې د چلو او گشتونو په ذریعه پوره کوی خود دوی طریقه کارزیات تر په نرمی سره وی نو ددوی په کارکښې د نهی عن المنکر په مقابله کښې د امر بالمعروف اړخ زیات غالب دې خوبهرصورت دا به اووایوچې دتبلیغیانو حضراتو په دې اصولوعمل جاری دې ،،مالا یدرك كله لايترك كله،، یعنی اوس به صرف په

امربالمعروف عمل کوو چې وس مو اوشی نو بیا به نهی عن المنکرته وړاندې شو والله اعلم بالصواب

**قوله**: فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَبِقَلْبِهِ:

**په زړه سره منکر بدګڼل**: دَدې مطلب دادې چه په زړه کښې دَ دغه منکر نه نفرت وی دَ هغې په کونکی باندې غصه وی او په زړه کښې پخه اراده وی چه کله موقع ملاویږی نو زه به په لاس باندې دا منکرختموم. دادَ ایمان ادنیٰ درجه ده که چرې په زړه کښې داجذبه هم نه وی نوبیائی په زړه کښې هیڅ هم نشته دې.

**قوله**: وَذَلِكَ أَضْعَفُ الْإِيمَانِ:

**داضعف ایمان کیدو وجه**: یعنی دَ ایمان دَثمراتو دا کمزورې ثمره ده اودَ ایمان په حواله دا سرې دَ آخری درجې مسلمان دې دې نه پس به هغه مسلمان پاتې نه شی ځکه چه کوم سرې په بدئی اونیکئی کښې فرق نه منی هغه دَخپل شریعت او قرآن اوحدیث دَ اوامر اونواهی نه انکارکوی اودا کفردې. ځکه چه دَحرام نه نهی واجب ده دَ مکروهاتو نه نهی مستحب ده. داکس په ایمان کښې دَ ټولو نه کمزورې ځکه اوګرځولې شو چه هغه دَ طاقت اولنئی دوه درجې پریخودې.

**فائده**: علامه زندیسی رحمه الله لیکلی دی چه امر بالید دَحکامو کاردې امر باللسان دَ علماؤ کاردې او امر بالقلب دَ عوام الناس کاردې.

**دامر بالمعروف کولو پنځه شرطونه**: فتاویٰ عالمګیری کښې دَ امربالمعروف دَپاره پنځه شرائط دی:

① دَداعی عالم کیدل

② دَ الله تعالیٰ رضاء او اعلاء کلمة الله ئی مقصود وی

③ چاته چه دعوت ورکوی په هغوی باندې شفقت او نرمی کول

④ په هرمشقت باندې صبر کول

⑤ داعی چه څه وائی په هغې باندې به پخپله هم عمل کوی.

**د نهی عن المنکر درجات**: زجاجة المصابیح کښې لیکلی دی

① که دَامر کونکی آمر غالب رائې وی چه خلق به دَ هغه خبره قبوله کړی اودَمنکرنه به منع شی. نوهغه وخت نهی عن المنکرواجب دې

② که چرې دا ګمان ئې وی چه خلق به اونه منی کنځلې به کوی بلکه وهل به کوی نوهغه وخت نهی عن المنکرترک کول افضل دی

دغه شان که چرې دَ لوئی فتنې دَ راؤچتیدو خطره وی نوهغه وخت هم نهی عن المنکرترک

کول جائز دی

④که چرې داعی او امر کونکې سړی تـول مشقتونه برداشت کولې شی نو بیا نهی عن المنکر کول افضل دی او سړی مجاهد دي

**[۵۳۸] د امر بالمعروف او نهی عن المنکر پریخودلو عذاب**

۵۳۸ -( ) [۲] ①وَعَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ②" «مَثَلُ الْمُدَاهِنِ فِي حُدُودِ اللّٰهِ وَالْوَاقِعِ فِيهَا مَثَلُ قَوْمٍ اسْتَهَمُوا سَفِينَةً، ③فَصَارَ بَعْضُهُمْ فِي أَسْفَلِهَا، وَصَارَ بَعْضُهُمْ فِي أَعْلَاهَا، ④فَكَانَ الَّذِي فِي أَسْفَلِهَا يَمُرُّ بِالْمَاءِ عَلَى الَّذِينَ فِي أَعْلَاهَا فَتَأَذَّوْا بِهِ، ⑤فَأَخَذَ فَأْسًا، فَجَعَلَ يَنْقُرُ أَسْفَلَ السَّفِينَةِ، ⑥فَأَتَوْهُ فَقَالُوا: مَا لَكَ؟ ⑦قَالَ: تَأَذَّيْتُمْ بِهِ وَلَا بُدَّ لِي مِنَ الْمَاءِ. ⑧فَإِنْ أَخَذُوا عَلَى يَدَيْهِ أَنْجَوْهُ وَنَجَّوْا أَنْفُسَهُمْ، ⑨وَإِنْ تَرَكُوهُ أَهْلَكُوهُ وَأَهْلَكُوا أَنْفُسَهُمْ» ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ①او حضرت نعمان بن بشیر رضی الله عنه وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمایل ، ②د الله مقرر کرده حدودو کې غفلت او سستي کونکی او د هغه په حدودو کې غورځیدونکی یعنی د ګناه ارتکاب کونکی شان د هغه خلقو په شان دی چې قرعه اچولو سره کشتۍ کې ناست وي لکه یوي سورلی کې یوځای د سفر کونکو دا عادت کوي چې د قرعه وغیره په صورت کې د هرسړی ځای متعین مقرر کول کیږي او د کوم سړي چې کوم ځای مقرر شي، هغه په ځای کیني، ③نو په هغوئ کې بعضې خلق د کشتۍ لاندي حصه کې وي ، او بعضې د پاسه حصه کې ، ④بیا کوم خلق چې د کشتۍ لاندي حصه کې وي ، هغوئ چې اوبو څکلو د پاره پورته حصي ته راشي، نو په هغه حصه کې ناست خلق د هغه سړي د راتلو په وجه تکلیف محسوس کول شروع کړي ، کوم چې اوبو اخستو د پاره پورته راشي، او د هغه خلقو په منځ کې تیریږي ، ⑤نو لاندي حصي والاوو کې یوسړی د پورته والاوو تکلیف او ناګواري لیدو سره دا وکړي، چې تبر اخستو سره د کشتۍ لاندي سطح ماتول شروع کړي، ⑥بیا پورته والا خلق هغه ته راشي او ورته وايي، تاته څه شوي دي، یعنی ته دا څه بې بیګتی کار کوي، چې د کشتۍ لاندي سطح ماتوي او د کشتۍ والاوو ټولو خلقو ژوند تباه کولو پسي لګیدلی یې ⑦په دي هغه سړی دا جواب ورکړي ، هرکله چې زه اوبو راوړلو د پاره پورته درځم نو ستاسو په منځ کې تیریږم نو تاسو تکلیف او ناګواری محسوسوی او زه اوبه حاصلولو باندي مجبوره یم او د کشتۍ سطح ماتولو سره د اوبو را اوخکلو ځاي جوړوم، ⑧په داسي حالت کې دوه صورتونه مخي ته کیدي شي، یا خو داچې د هغه سړي لاس ونیسي یعنی هغه کشتۍ ماتولو ته پري نه ږدي چې هغه هم او خپل ځان هم د غرقیدو

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب الشهادات/باب القرعة فی المشکلات (رقم-۲۶۸۶) والترمذی فی کتاب الفتن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب منه (رقم-۲۱۷۳) واحمد فی المسند: ۲۷۳/۴

او هلاکت نه بچ کړي [۹] یا هغه په خپل حال پریږدي یعنی کشتی ماتولو نه هغه منع نه کړي او بیا هغه هم هلاکت کې واچوي، او ځان هم هلاك کړي (بخاري)

**حل اللغات:** - ① الْمُدَاهِن: د ناجائز کار په مقابله کښې غفلت او سستي کونکی، ② اسْتَهَمُوا: قرعه او خسنړې ئې واچول، ③ سَفِينَةً: کشتی، ④ فَأْسًا: تبر، ترخذ

**تسهیلات:**

**قوله: مَثَلُ الْمُدَاهِنِ فِي حُدُودِ اللهِ وَالْوَاقِعِ فِيهَا:**

**د مداهن تعریف:** کوم سړې چه منکرته ګوری مثلاً زنا کیږی، شراب څکلې شی. غلاګانې کیږی، ډاکې وهلې کیږی، خیانتونه کیږی، دګډاګانو او سرودونو محفلونه بنائسته کولې شی اودا سړې دَدې په بندولوباندې قدرت هم لری مګر دَ چا دَ رعایت دَ وجې نه یادَ طمع او لالچ دَ وجې نه څه نه کوی بلکه ټول هرڅه په خوشحالئی سره برداشت کوی دا مداهنت دې کوم چه حرام دې اودا سړې مداهن دې اوهم دَده دَپاره دا وعید دې.

**د مدارات تعریف:** دَمداهنت په مقابله کښې مدارات دی دا دَ هغه نرمئی نوم دې چه یوسړې دَخپلو حقوقونه لاس واخلی دَ شر او ضرر نه دَ بچ کیدو په غرض دَ نفس دَ شرافت دَ وجې نه دَخلقو تکلیفونه برداشت کوی اودَ نرمئی سلوك کوی هم دې ته وئیلی شوی دی چه "دارهم مادمت فی دارهم" یعنی ترکومې چه دَ هغه په کورکښې او په ګاونډ کښې وې هغوی سره تعلق ساته

**د نرمی باره کښې قیمتی خبره:** حضرت اشرف علی تهانوی رحمه الله ملفوظاتو کښې لیکلی دی چه مسلمان له دَ ریښم په شان کیدل پکار دی چه ریښم ډیر زیات نرم وی لیکن که څوك ئی ماتول غواړی نونه ماتیږي یعنی حق خبره کوه لیکن لهجه دَ ریښمو په شان نرمه ساته او حق مه پریږده دَ ریښمو په شان په هغې باندې مضبوط اوسیږه خلاصه دا چه مداهنت کښې دَ شخصی او ذاتی مفاداتو خیال ساتلې شی اوپه مدارات کښې دَ شریعت اودَ هغې دَ قواعدو خیال ساتلې شی ځکه چه په دې کښې دَ دین عمومی فائده ده

**قوله: مَثَلُ قَوْمٍ اسْتَهَمُوا سَفِينَةً:**

**د خسنړې اچولو جواز:** په دې خبره باندې ځان پوهه کول ضروری دی چه په سمندری جهازکښې دَ کیناستو دَپاره مختلف حصې وی او په ټولو کښې دَ راحت او آرام په اعتبارسره فرق وی.

**د خسنړې اچولو پس منظر:** دَ ټولو نه پورته حصې ته عرشه وائی کومه چه دَ ټولو نه زیاته ښکلې وی. پخوانئی زمانه کښې په جهاز کښې دَ کیناستو په اعتبارسره په ټکټ کښې هیڅ فرق نه وو دَ ټولو درجو ټکټ به هم دَ یو قیمت وو. په دې وجه په هغه زمانه کښې دَ

نه ځني او خراب ځني به تقسيم کښې د جګړې ختمولو دپاره به ځنړې اچولې شو دې
د بره چه څه ګیله او شکایت نه وی نن صبا د قیمت او ټکټ اعتبار دې که ګران ټکټ نی
اخستی وی نو نه ځنی به ورته ملاویږی کوم ته چه فرسټ کلاس وائی ګنی به سیکنډ
او تهرډ کلاس کښې به کیناستل وی او دیکې به خوړل وی په دې حدیث کښې د قرعه
نه ازنی یعنی ځنړی کوم ذکر دې هم د دې پس منظر په رڼاکښې دې

**قوله: فَصَارَ بَعْضُهُمْ فِي أَسْفَلِهَا:**

**په سمندری جهاز کښې د کیناستو کیفیت:** پخوانئی زمانه کښې د سمندری جهاز قانون دا
وو چه اوبه به پورته په عرشه کښې ملاویدلې لهذا لاندې ناست خلق به په پاس ختل او
اوبه حصلولو سره به نی لاندې راوړلې اکثر وختونو کښې به د دې تیریدونکو خلقو د
وجې نه دهغه ځائی خلقو تکلیف محسوسولو نو هغوی به دوی ته وئیل چه په مونږ باندې
مه تیریږئی مونږ مه تنګوئی پخپله دخپلو اوبو بندوبست اوکړئی په دې حدیث کښې دی
فرض کړه که چرې داسې صورت پیدا شی او د ښکته ځائی خلقو تیر راواخستو او د
لاندینئی حصې ماتولو ئی شروع کړه دې دپاره چه دسمندرنه اوبه حاصلې کړی اوس که
دغه پورتنو خلقو د ددې منکر دبندولو کوشش اوکړو نو بیاخو به ټول بچ شی لیکن که
هغوی منع نه کړل نو په سوری کولو سره به اوبه دننه راشی جهاز به د اوبو نه ډك شی
او بیا به غرق شی

**دمثال مقصد:** دا مثال دې د امر معروف اونهی منکر. که چرې په منکرباندې انکار په
معاشره کښې کیږی نومعاشره به بچ شی لیکن که دمنکر انکار ختم شو نو د اجتماعی
عذاب په راتلو سره به ټوله معاشره تباه اوبرباد شی.لهذا په مسلمانانو اودهغوی په
حکمرانانو باندې فرض دی چه هغوی دې دالله تعالی د حدودو خیال اوساتی ګنی ټول به
تباه شی

**[۵۱۳۹] د بې عمله واعظ عذاب**

۵۱۳۹-( )[۳۱] [۱] وَعَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«يُجَاءُ بِالرَّجُلِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، فَيُلْقَى فِي النَّارِ [۳] فَتَنْدَلِقُ أَقْتَابُهُ فِي النَّارِ فَيَطْحَنُ فِيهَا كَطَحْنِ الْحِمَارِ بِرَحَاهُ، [۴] فَيَجْتَمِعُ أَهْلُ النَّارِ عَلَيْهِ فَيَقُولُونَ أَيْ فُلَانُ! [۵] مَا شَأْنُكَ؟ أَلَيْسَ كُنْتَ تَأْمُرُنَا بِالْمَعْرُوفِ وَتَنْهَانَا عَنِ الْمُنْكَرِ؟ [۶] قَالَ: كُنْتُ آمُرُكُمْ بِالْمَعْرُوفِ وَلَا آتِيهِ، وَأَنْهَاكُمْ عَنِ الْمُنْكَرِ وَآتِيهِ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

[۱] ) اخرجه البخاری فی کتاب بدء الخلق/باب صفة النار، وأنها مخلوقة " (رقم-۳۲۶۷) ومسلم فی کتاب الزهد والرقائق/باب عقوبة من یأمر بالمعروف ولا یفعله، وینهی عن المنکر ویفعله (رقم-۵۱ - (۲۹۸۹)واحمد فی المسند:۲۰۵/۵

**ترجمه:** [۱] او حضرت اسامه بن زيد رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ، [۲] د قيامت په ورځ به د امر بالمعروف او نهي عن المنكر د مقدماتو د فيصلي په وخت يوسړى راوستل شي چې هغه مستوجب دعذاب گرځيدلو سره په اور کې به واچول شي ، [۳] او اور ته رسيدو سره د هغه کولمې به سمدستي بهر راووځي او هغه به خپلي کولمي داسي ميده کوي ، ځرنگه چې د ژرندي خر دخپلي ژرندي په ذريعه وړه ميده کوي يعنى ځرنگه چې ژرنده کې گرځيدونکى خر خپلي ژرندي نه چاپيره چکر وهي ، دغه شان هغه سړى به د خپلو کولمو نه چاپيره چکر وهي او هغه به د خپلو پښو لاندي ميده کوي ، [۴] نو هغه سړى په دي حالت کې ليدو سره دوزخيان يعنى د هغه زماني فاسق او فاجر خلق به د هغه نه راچاپيره شي ، او ورته به وايي ، اې فلانيه! [۵] دا ستا څه حال دى ، تاخو به مونږ ته د نيک کار تلقين او نصيحت کوى ، او بدکار نه به دي منع کولو ، [۶] نو هغه به جواب ورکړي ، بيشکه ماتاسو ته د نيک کار تلقين کوى ، خو خپله به مي هغه نيک کار نه کوى ، او تاسو به مي د بدکار نه منع کولئ ، خو خپله به هغه بدکار نه نه منع کيدم . (بخاري ، مسلم)

**حل اللغات:** - ① فَتَنْدَلِقُ: اندلاق دَ شليدو او زر زر بهر راوتو په معنى کښې دې ، ② أَقْتَابُ: دا جمع ده او دَدې مفرد "قتب" دې کولموته وائى. ③ فَيَطْحَنُ: غنم اوړه کول، ④ رَحَاهُ: د الرّحٰى نه دې ميچن ته وائى.

**تسهيلات:**

**قوله: فَيَطْحَنُ فِيهَا كَطَحْنِ الْحِمَارِ بِرَحَاهُ:**

**دمذکوه عبارت ترکيب:** دلته طحن مصدردې چه مضاف الى الفاعل دې اومفعول محذوف دې او "برحاه" کښې باء دَ اسعانت دَپاره ده. اصل عبارت داسې دې "کطحن الحمار الدقيق باستعانة الرحى". (طيبى) [الکاشف: ۳۱۳/۸]

**په حديث کښې دتشبيه وضاحت:** علامه طيبى رحمه الله فرمائى چه دلته تشبيه المرکب بالمرکب ده کوم ته چه تمثيل وائى. په کوم کښې چه يو هيئت سره دويم هيئت ته تشبيه ورکولې شى دلته په ارهټ باندې تړلې شوې خر ياميچن سره تړلې شوې خر اودَ هغه تاويدل اودَ ميچن تاويدل اودَ اوړو اوړه کيدل دا يو کيفيت اوهيئت دې او امر معروف کولوسره دَبدعمل واعظ دوزخ ته تلل اودَ خيټې نه ئى تول ځيزونه راوتل او دهيرې کيدل اودَ هغه سړى په هغې دَ پاسه تاويدو سره دَخپو لاندې کول اودَ کولمو وغيره اوړه کيدل دويم کيفيت دې. دې دواړو ته يو بل سره تشبيه ورکړې شوې ده. بهرحال دې سړى ته به دا سزا دَعمل نه کولو دَ وجې نه ملاويږى په دې وجه نه چه هغه دعوت ولې ورکولو. [الکاشف: ۳۱۳/۹]

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۵۱۳۰] دامر بالمعروف او نهی عن المنکر په ترک کولو باندې وعید**

۵۱۳۰-(۱)[۴] [۱]عَنْ حُذَيْفَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] "«وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَتَأْمُرُنَّ بِالْمَعْرُوفِ وَلَتَنْهَوُنَّ عَنِ الْمُنْكَرِ [۳] أَوْلَيُوشِكَنَّ اللّٰهُ أَنْ يَبْعَثَ عَلَيْكُمْ عَذَابًا مِنْ عِنْدِهِ [۴] ثُمَّ لَتَدْعُنَّهُ وَلَا يُسْتَجَابُ لَكُمْ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱]حضرت حذیفه رضی الله عنه د رسول الله ﷺ نه روایت کوي، حضور ﷺ وفرمایل. [۲]قسم دی په هغه پاك ذات، چې د هغه په لاس کې خما ساه ده، تاسو به خامخا د امر بالمعروف او نهي عن المنکر فریضه آنجام کوي، [۳]یا ډیر نزدې الله جل جلاله به په تاسو خپل عذاب نازل کړي [۴]بیا به تاسو الله جل جلاله نه دعا هم غواړی خو ستاسو دعا به نه قبلیږي. دا روایت ترمذي نقل کړی دی.

**حل اللغات:** - ① لَيُوشِكَنَّ: دَ افعال مقاربه نه دې دَ قریب او نزدې په معنی کښې دې. ② تَدْعُنَّهُ: تاسو ټول به دعاګانې غواړئ.

**تسهیلات:** **قوله:** أَوْلَيُوشِكَنَّ اللّٰهُ أَنْ يَبْعَثَ عَلَيْكُمْ عَذَابًا مِنْ عِنْدِهِ:

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې اقوال:** ① دَ مسند بزار او طبرانی په یوحدیث د دې حدیث مطلب واضح کیږي. هغه مطلب داسې دې چه حضرت ابوهریره رضی الله عنه دَ رسول الله ﷺ نه نقل کوی چه حضور پاك اوفرمائیل په دوو خبرو کښې دَ یوې خبرې کیدل ضروری دی یابه تاسو یقیناً امر بالمعروف اونهی عن المنکر کوئی یا به دا دواړه فریضې ترك کولو باندې یقیناً الله تعالی په تاسو باندې خراب خلق مسلط کړی بیا به ستاسو نیکان خلق (دَخرابو خلقو دَهلاکت دَپاره) دعا کوی مګر دَهغوی دعا به نه قبلیږي. (طبرانی اوسط)

② یعنی تاسو امر دَمعروف اونهی دَمنکر کوئی ګنی په تاسو باندې به دَ الله تعالی عذاب نازل شی بیا به تاسو دَ دغه عذاب دَ لرې کیدو دَپاره دعاګانې غواړئی لیکن دعا به مو نه قبلیږي.

**[۵۱۳۱] ګناه بده نه ګنړل په هغې کښې دَ شرکت کولو په شان دی**

۵۱۳۱-(۲)[۵] [۱]وَعَنِ الْعُرْسِ بْنِ عَمِيرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲]قَالَ: "«إِذَا عُمِلَتِ الْخَطِيئَةُ فِي الْأَرْضِ [۳]مَنْ شَهِدَهَا فَكَرِهَهَا كَانَ كَمَنْ غَابَ عَنْهَا، [۴]وَمَنْ غَابَ عَنْهَا فَرَضِيَهَا كَانَ كَمَنْ شَهِدَهَا»". رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

---

[1] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الفتن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الأمر بالمعروف والنهی عن المنکر (رقم-۲۱۶۹) وابن ماجه فی کتاب الفتن/باب الأمر بالمعروف والنهی عن المنکر (رقم-۴۰۰۴) واحمد فی المسند:۳۸۸/۵

[2] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الترجل /باب الأمر والنهی (رقم-۴۳۴۵)

**ترجمه :** ١ او حضرت عرس بن عميره رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه روايت كوي، ٢ حضور ﷺ وفرمايل هركله چې په زمكه گناه كول كيږي ، ٣ نو كوم سړى چې هغه گناه بده وگڼي، هغه د هغه سړي په شان دى ، چې هلته موجود نه وي او د هغه گناهونو وقوع نه پيژني ٤ او كوم سړى چې هلته موجود نه وي او د هغه گناهونو واقع كيدل ورته معلوم وي او هغه گناه بده نه گڼي، نو هغه د هغه سړي په شان دى، چې هلته موجود وي ، او هغه گناه بده نه گڼي (ابوداؤد)

**تسهيلات:**

**قوله: وَمَنْ غَابَ عَنْهَا فَرَضِيَهَا كَانَ كَمَنْ شَهِدَهَا:**

**په گناه د راضى كيدو حكم:** ښكاره خبره ده چه يو سړي دَ يوې گناه باره كښې اورى او دَهغه دَخلې نه ورته اوبه څاخى چه افسوس زه هم په دې كښې وې اومزه مې اخستې وې او دَخوشحالئى سامان پيدا شوې وې اومزې مې كړې وې نو دغه سړى گناه سره موافقت اوكړو نفرت ئې اونه كړو.نودې سره دَدې چه دَ دغه گناه نه په زرگونو ميلونو لرې وى دې به په دغه گناه كښې شريك گڼړلې شى ليكن يو سړې مثلاً دَ گناه مجلس او دَهغې علاقه كښې دې گناه وينى مگر په زړه سره ترينه دَدې نه نفرت كوى او بده ئې گڼړى دا سړې داسې دې لكه چه هغه نه گناه كړې اونه ئې دا ليدلې ده.دَدې وجه داده چه دَانسان دَ ايمان ادنى اوآخرى درجه په زړه سره بد گڼړل دى.چاچه بد اوگڼړل كامياب شو اوچاچه بد اونه گڼړل هغه ناكام شو اودَ قرب او بعد اعتبارنشته دې.

**[٥٣٢] دَ گناهونو دَ ختمولو كوشش نه كولو سره د عذاب ويره ده**

٥٣٢-() [٦] ١ وَعَنْ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: ٢ يَا أَيُّهَا النَّاسُ! إِنَّكُمْ تَقْرَءُونَ هَذِهِ الْآيَةَ: ﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا عَلَيْكُمْ أَنْفُسَكُمْ لَا يَضُرُّكُمْ مَنْ ضَلَّ إِذَا اهْتَدَيْتُمْ﴾ [المائدة: ١٠٥] ٣ فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: " «إِنَّ النَّاسَ إِذَا رَأَوْا مُنْكَرًا فَلَمْ يُغَيِّرُوهُ ٤ يُوشِكُ أَنْ يَعُمَّهُمُ اللَّهُ بِعِقَابِهِ» ". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ، وَالتِّرْمِذِيُّ وَصَحَّحَهُ. ٥ وَفِي رِوَايَةِ أَبِي دَاوُدَ: " «إِذَا رَأَوُا الظَّالِمَ فَلَمْ يَأْخُذُوا عَلَى يَدَيْهِ أَوْشَكَ أَنْ يَعُمَّهُمُ اللَّهُ بِعِقَابٍ» ". ٦ وَفِي أُخْرَى لَهُ: " «مَا مِنْ قَوْمٍ يُعْمَلُ فِيهِمْ بِالْمَعَاصِي، ثُمَّ يَقْدِرُونَ عَلَى أَنْ يُغَيِّرُوا، ٧ ثُمَّ لَا يُغَيِّرُونَ إِلَّا يُوشِكُ أَنْ يَعُمَّهُمُ اللَّهُ بِعِقَابٍ» ". وَفِي أُخْرَى لَهُ: " «مَا مِنْ قَوْمٍ يُعْمَلُ فِيهِمْ بِالْمَعَاصِي أَكْثَرُ مِمَّنْ يَعْمَلُهُ» ".

**ترجمه :** ١ او حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه نه روايت دى يوه ورځ يې وفرمايل، ٢ اې خلقو!

[١] اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الترجل /باب الأمر والنهى (رقم-٤٣٣٨) والترمذى فى كتاب الفتن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى نزول العذاب إذا لم يغير المنكر (رقم-٢١٦٨) وابن ماجه فى كتاب الفتن/باب الأمر بالمعروف والنهى عن المنكر (رقم-٤٠٠٥) واحمد فى المسند:٢/١

تاسو دا آیت وایئ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا عَلَيْكُمْ أَنفُسَكُمْ لَا يَضُرُّكُم مَّن ضَلَّ إِذَا اهْتَدَيْتُمْ اې مؤمنانو، تاسو خپل نفسونه لازم ونیسئ، کوم سړی چې گمراه شوی دی هغه تاسو ته ضرر نه شي رسولې، هرکله چې تاسو هدایت یافته یې ، نو حضرت ابوبکر رضي الله عنه مسلمانانو ته وفرمایل، تاسو د دې آیت تلاوت کوي او د دې معنی عموم او اطلاق باندې محمول کولو سره داګڼئ، چې امر بالمعروف او نهي عن المنکر واجب نه دی ، حالاتکې ستاسو داګڼل صحیح نه دی ۳ما د رسول الله ﷺ نه دا اوریدلي دي ، هرکله چې خلق یو خلاف شرع امر ووینې ، او د هغه اصلاح او سرکوبي د پاره کوشش ونه کړي ، او خلق د هغه نه منع نه کړي ، ۴نو نزدې ده چې الله جل جلاله هغوئ خپل عذاب کې مبتلا کړي ، دا روایت ابن ماجه او ترمذي نقل کړی دی، او دایې صحیح گرځولی دی ، ۵او د ابوداود په روایت کې داسې دي، چې حضور ﷺ وفرمایل، هرکله چې خلق څوك په ظلم کولو ووینې او د هغه لاس ونه نیسي یعنی هغه د ظلم نه منع نکړي نو نزدې ده چې الله جل جلاله هغوئ ټول د خپل عذاب گرفت (نیوکه) کې واخلي او د ابوداود یو بل روایت دا الفاظ دي ، حضور ﷺ وفرمایل، کوم قوم کې چې گناه او معاصي کیدل شروع شي ، او د هغه قوم خلق د لاس او ژبې په ذریعه د هغوئ د اصلاح او بندولو قدرت لري لیکن د دې باوجود د هغه اصلاح او سرکوبي کوشش ونه کړي، نو نزدې ده چې الله جل جلاله هغوئ ټول عذاب کې مبتلا کړي ، ۶د ابوداود په یو بل روایت کې دا الفاظ دي ، چې حضور ﷺ وفرمایل ، کوم قوم کې چې گناه او معاصر شروع شي ، او هغه قوم کې د هغه خلقو تعداد زیات وي کوم چې گناه او معاصي نه کوي ، ۷لیکن د دې باوجود خپل گنهگار خلق د گناه نه منع نه کړي نو الله جل جلاله هغه ټول خپل عذاب کې گرفتار کړي.

**حل اللغات:-** ①عِقَاب: عذاب.

**تسهیلات:**

**قوله : إِنَّكُمْ تَقْرَءُونَ هَذِهِ الْآيَةَ:**

**د مذکوره د ظاهر څخه غلط مطلب اخستل:** دَدې آیت دَ ظاهری الفاظو نه معلومیږی که چرې خلق گمراه شی نو تاسو خپل ځانی بچ کړئی. دَخپل نفس فکر کوئی گمراه خلق تاسو ته ضرر اونقصان نه شی رسولې په دې شرط چه تاسو په هدایت باندې یئی. کیدې شی د صدیق اکبر رضي الله عنه نه څه خلقو تپوس کړې وی چه اوس دَ امر اونهی وخت پاتې نه شو لهذا مونږ دا پریږدو او په خپل فکر کښې کیناستل غوارو دې دَپاره چه پخپله دگمراهئی نه بچ شو په دې باندې صدیق اکبر رضي الله عنه عوامو ته عمومی خطاب کولو سره پوهه کړل. کیدې شی چه هغوی دَ جمعه په خطبه کښې یا په بل عام مجمع کښې داخبره کړې وی. دَهغوی د اعلان مطلب اومقصد دادې چه اوس هغه وخت نه دې راغلې چه دَدې آیت دَارشاد مطابق

تاسو دَ امر او نهى عمل پريخودو سره اوس خو تاسو له مخکښې تلل دى او په دنيا باندې خوريدل دى دَ حضور پاك دَ ارشاد مطابق که دې وخت کښې امر او نهى ترك کوئى نو نيزدې ده چه په تاسو باندې عمومى او اجتماعى عذاب راشى ځکه چه دَلاس دَ قدرت او دَ افرادو دَ کثرت باوجود امر او نهى ترك کول موجب ذلت دى.

**قوله: يُوشِكُ أَنْ يَعُمَّهُمُ اللَّهُ بِعِقَابِهِ:**

**د عذاب راتلو دوه صورتونه:** ① کله چې نهى عن المنکر بند شى نو هم دغه منکر او معصيت به دومره عام شى چه ټول خلق به په پخپله قبضه کښې واخلى. دَ گناه داسې عام کيدل پخپله يو عذاب دې مثلاً قتل به عام شى، زنا به عام شى. رشوت او خيانت به عام شى، دروغ او دَ وعدې خلاف کول به عام شى نو دَ شريف انسان دَپاره به ژوند تيرول سخت شى هم دغه عذاب دې.

② يعنى نيزدې ده چه الله تعالى عمومى او احتماعى عذاب نازل کړى دَ دغه عمومى عذاب يو صورت داکيدې شى چه کافر قومونه راشى او په مسلمانانو باندې قابض شى او هغوى په قسم قسم ذلتونو کښې واچوى. چنانچه نن صبا په هر ځائى کښې مسلمانانو سره هم دغه شان کيږى. دا اول ليکلې شوى دى چه دَامر او نهى په مصداق کښې اول مصداق جهاد دې.

**قوله: مَا مِنْ قَوْمٍ يُعْمَلُ فِيهِمْ بِالْمَعَاصِي أَكْثَرُ مِمَّنْ يَعْمَلُهُ:** يعنى گناه نه کونکى به دَ گناه کونکو نه زيات وى يعنى خير به غالب وى مغلوب به نه وى. دَ خو خلقو په لاس کښې به قدرت او اختيار وى او بيا به هم نهى عن المنکر نه کوئى نو ټول به عام عذاب راگير کړى

**[٥٣٣] دَ قدرت باوجود دَ گناه نه نه منع کول دَ عذاب سبب دې**

٥٣٣ -()[٤] [١] وَعَنْ جَرِيرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: [٢] «مَا مِنْ رَجُلٍ يَكُونُ فِي قَوْمٍ يَعْمَلُ فِيهِمْ بِالْمَعَاصِي، [٣] يَقْدِرُونَ عَلَى أَنْ يُغَيِّرُوا عَلَيْهِمْ [٤] وَلَا يُغَيِّرُونَ، إِلَّا أَصَابَهُمُ اللَّهُ مِنْهُ بِعِقَابٍ قَبْلَ أَنْ يَمُوتُوا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [١] و حضرت جرير بن عبد الله وايي ، ما د رسول الله ﷺ نه دا واوريدل ، [٢] د کوم قوم يو سړى چې گناه او د معاصي ارتکاب کوي ، [٣] و د هغه قوم خلق په دي قدرت لري ، چې د لاس يا ژبې په ذريعه د هغه گناه اصلاح وکړي ، او هغه سړي باندې قابو پيدا کي [٤] ليکن د دې باوجود د هغه اصلاح نه کوي نو الله جَلَّ جَلَالُهُ په هغه خلقو د خپل طرف نه عذاب نازلوي ، مخکې د دې نه چې هغوئ مړه شي. (ابوداؤد ، ابن ماجه)

---

[١] ) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الترجل /باب الأمر والنهى (رقم-٤٣٣٩) وابن ماجه فى كتاب الفتن/باب الأمر بالمعروف والنهى عن المنكر (رقم-٤٠٠٩) واحمد فى المسند:٤/٣٦٤

**تسهيلات:**

**قوله:** إِلَّا أَصَابَهُمُ اللّٰهُ مِنْهُ بِعِقَابٍ قَبْلَ أَنْ يَمُوتُوا:

**دامر بالمعروف اونهى عن المنكر د نه كولو په وجه د عمومى عذاب راتلل:** د حديث الباب نه دا معلوميږي چه امر المعروف او نهى عن المنكر د ترک په وجه په دنيا کښې هم عذاب راځي او د آخرت عذاب باقي پاتې وی کوم چه آخرت کښې ملاويږی. شيخ عبدالحق محدث دهلوی رحمه الله فرمائي چه بدی نه منع کولو کښې کوتاهي کول د نورو جرمونو په مقابله کښې ډير سخت دې د نورو جرمونو سزا به په آخرت کښې ملاويږی ليکن د بدی نه د نه منع کولو سزا به په دنيا کښې هم ملاويږی او په آخرت کښې به هم ملاويږی

**[٥٣٣] دامر بالمعروف او نهى عن المنكر حكم دَكومې زمانې پورې دې؟**

٥٣٣-()[٨] ١ وَعَنْهُ أَبِي ثَعْلَبَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - «فِي قَوْلِهِ تَعَالَى: ﴿عَلَيْكُمْ أَنْفُسَكُمْ لَا يَضُرُّكُمْ مَنْ ضَلَّ إِذَا اهْتَدَيْتُمْ﴾ [المائدة: ١٠٥]. ٢ فَقَالَ: أَمَا وَاللّٰهِ لَقَدْ سَأَلْتُ عَنْهَا رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ٣ فَقَالَ: " بَلِ ائْتَمِرُوا بِالْمَعْرُوفِ، وَتَنَاهَوْا عَنِ الْمُنْكَرِ، ٤ حَتَّى إِذَا رَأَيْتَ شُحًّا مُطَاعًا، وَهَوًى مُتَّبَعًا، وَدُنْيَا مُؤْثَرَةً، وَإِعْجَابَ كُلِّ ذِي رَأْيٍ بِرَأْيِهِ، ٥ وَرَأَيْتَ أَمْرًا لَا بُدَّ لَكَ مِنْهُ فَعَلَيْكَ نَفْسَكَ، وَدَعْ أَمْرَ الْعَوَامِّ، ٦ فَإِنَّ وَرَاءَكُمْ أَيَّامَ الصَّبْرِ، فَمَنْ صَبَرَ فِيهِنَّ قَبَضَ عَلَى الْجَمْرِ، ٧ لِلْعَامِلِ فِيهِنَّ أَجْرُ خَمْسِينَ رَجُلًا يَعْمَلُونَ مِثْلَ عَمَلِهِ ". ٨ قَالُوا: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! أَجْرُ خَمْسِينَ مِنْهُمْ؟ قَالَ: أَجْرُ خَمْسِينَ مِنْكُمْ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ١ او حضرت ابو ثعلبه رضي الله عنه نه د الله جل جلاله د ارشاد عَلَيْكُمْ أَنْفُسَكُمْ لَا يَضُرُّكُمْ مَنْ ضَلَّ إِذَا اهْتَدَيْتُمْ. په تفسير کې منقول دی ٢ هغه ووېل، پوهه شئ، قسم په الله ما د رسول الله ﷺ نه د دې آيت باره کې پوښتنه وکړه، چې آيا زه د دې آيت مطابق د امر بالمعروف او نهي عن المنكر د فريضي انجام کولو نه منع شم، ٣ حضور ﷺ وفرمايل، هيڅ کله نه ته د دې فريضي اداکولو نه مه منع کيږه، بلکې دنيکو حکم ورکوه ٤ تردې چې ته خواهشات نفس ووينې چې خلق د دې غلام جوړ شوی دی. هرکله چې دنيا ووينې، چې خلق د دې غلامان شوی دی. هرکله چې دنيا ووينې چې خلق دې ته په آخرت ترجيح ورکوي هرکله چې ته ووينې چې هرعقل مند او د يومسلك والاخپل عقل او خپل مسلك د ټولو نه ښه او خوښ ګڼي، (چې نه خو کتاب وسنت او اجماع امت او قياس طرف ته نظر کوي او نه علماء او اهل حق طرف ته رجوع کوي، بلکې محض خپل نفس د ټولو نه لوی حاکم او مفتي ګڼي ٥ او هرکله چې ته يوداسې شی ووينې، چې د هغه نه علاوه ستا د پاره څه چاره نه وي، نو

[١] ) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الترجل /باب الأمر والنهى (رقم-٤٣٤١) والترمذى فى كتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب: ومن سورة المائدة (رقم-٣٠٥٨) وابن ماجه فى كتاب الفتن/باب قوله تعالى: {يا أيها الذين آمنوا عليكم أنفسكم} [المائدة: ١٠٥] (رقم-٤٠١٥)

په دي تولو صورتونو کي ته خپل ځان لازم ونيسه يعني خپل ځان د گناهونو نه محفوظه ساته او د عوامو معاملاتو سره هيڅ تعلق مه ساته، بلکي د هغوئ نه گوشه نشيني کونج کي ناسته اختيار کړه، [۶] ځکه چي ستا مخکي په آخره زمانه کي داسي ورځي راتلونکي دی، چي په هغه کي صبر کول ضروري دی، او د هغه ورځو ابتداء د خلفائي راشدينو نه پس شوي ده او دا حال او هغه سلسله جاري ده، نو کوم سړی چي په هغه ورځو کي صبر وکی (يعني په هغه سخته زمانه کي په دين د عمل کولو مشقت يي برداشت کي) نو د هغه حالت به داوي، چي گويا هغه په خپل لاس کي سکروټه انگار آخستي دي، [۷] او په هغه ورځو کي چي کوم سړی د دين شريعت احکامو باندي عمل کوي، هغه ته به د هغه پنځوس خلقو د عمل برابر ثواب حاصليږي کوم چي د هغه سړي په شان عمل کوي او د هغوئ تعلق به نه د هغه سختو ورځو سره وي او نه به هغوئ ته دين باندي د عمل کولو په سلسله کي هغه تکاليف او مصائب برداشت کول وي، کوم چي هغه سړي ته برداشت کول دي، [۸] په دي اوريدو سره اصحابو ﷺ عرض وکړو، يا رسول الله، آيا د هغه پنځوس خلقود عمل به اعتبار وي چي ددوي د زماني سره تعلق لري رسول الله ﷺ وفرمايل په تاسو کي د پنځوسو سړو اجر او ثواب. (ترمذي، ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① شُحًّا: بخل، شومتيا، ② مُطَاعًا: چه دهغي پسي روان وی. ③ هَوًى: خواهش دنفس، ④ مُتَّبَعًا: چه دهغي اتباع کولي شي، هغي ورپسي روان وی، ⑤ مُؤْثَرَةً: چه ترجيح ورکولي شي. ⑥ إِعْجَابَ: عُجب کول، ځان خوښي کول ⑦ الْعَوَامِ: عام خلق، ⑧ الْجَمْرِ: سکروټه. ⑨ الْعَامِلِ: عمل کونکي،

**تسهیلات: قوله: عَلَيْكُمْ أَنْفُسَكُمْ لَا يَضُرُّكُمْ مَنْ ضَلَّ:**

**دپنځو کارونو شروع کيدو په وخت د امر بالمعروف د پريخودلو جواز:** دې آيت سره متعلق سوال دَحضرت ابوثعلبه ﷺ نه هم شوې وو دَ سائل مقصد دا وو چه کيدې شی چه دَ امر اونهی زمانه ختمه شوه اوس دا ټول پريخودو سره کورکښې چپ چاپ کيناستل پکاردی. حضرت ابوثعلبه ﷺ داسې جواب ورکړو ځکه چه صديق اکبر ﷺ ورکړې وو چه ما دَدې آيت متعلق دَحضور پاك نه پخپله سوال کړې وو هغوی اوفرمائيل چه اوس خودَ امر اونهی وخت دې اوچه کله پنځه کارونه شروع شی نوبيا تاسو خپل ځان بچ کړئی اوعوام پريږدئی. هغه پنځه کارونه دادی:

① کله چه تاسو اوگورئی چه خلق دَ بخل اوکنجوسئی اتباع کوی
② کله چه خواهشات نفسانيه اوگورئی چه خلق دَدې غلامان جوړشوی دی
③ کله چه تاسو اوگورئی چه خلق دَ دنيا غلامان جوړيدوسره دې ته په دين باندې ترجيح ورکوی.

④ کله چه تاسو او ګورئي چه هريو عقل مند يه خپله رائې باندې فخر کوي او کتاب الله او سنت رسول الله هيره وي

⑤ او کله چه تاسو او کتل چه اوس پخپله په ګناه کنبې د راګيريدو خطره پيدا شوه ګناه په سرباندې داسې تاويږي چه اوس دذې نه بچ کيدل ګران شوي دي نو دغه وخت د عوامو معامله په هغوی باندې پريږدئې ځکه چه اوس دامر اونهي د دعوت وخت پاتې نه شو د ځان د بچ کولو دپاره چرته چه کيدې شي اوتخته ځکه چه اوس خو تولې ختمې دي د خوئيدو خطره ده

### [۵۰۳۰] د حضورپاک ﷺ جامع او اوږده خطبه

٥٠٣٠-( )[٩] ١ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: ٢ قَامَ فِينَا رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- خَطِيبًا بَعْدَ الْعَصْرِ، ٣ فَلَمْ يَدَعْ شَيْئًا يَكُونُ إِلَى قِيَامِ السَّاعَةِ إِلَّا ذَكَرَهُ، حَفِظَهُ مَنْ حَفِظَهُ، وَنَسِيَهُ مَنْ نَسِيَهُ، ٤ وَكَانَ فِيمَا قَالَ: "«إِنَّ الدُّنْيَا حُلْوَةٌ خَضِرَةٌ، وَإِنَّ اللَّهَ مُسْتَخْلِفُكُمْ فِيهَا، فَنَاظِرٌ كَيْفَ تَعْمَلُونَ، ٥ أَلَا فَاتَّقُوا الدُّنْيَا وَاتَّقُوا النِّسَاءَ"

**ترجمه**: ١ او حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه وايي، ٢ يوه ورځ مازيګر نه پس حضور ﷺ زمونږ مخکې ودريدی، او خطبه يې ارشاد وفرمايله ، ٣ په خطبه کې د متعلقات دين نه داسې هيڅ ضروري خبره يې پرې نه ښودله چې ترقيامته پورې پيښ راتلی شي . حضور ﷺ هغه خبري ذکر کړي ، او ياد لرونکو ياد کې، او هيرونکی هيري کی (يعني هغه خبري دومره تفصيل او همه ګيری سره بيان شوي) چې بعضې خلقو ته خو يادسوی، او د بعضې خلقو حافظو هيري کړي ، ٤ حضور ﷺ چې هغه وخت څه وفرمايل ، په هغه کې داهم وو. چې دنيا ډيره شيرينه او تکه شنه ده ، او يقينًا الله تبارک و تعالیٰ تاسو په دي دنيا کې خليفه جوړ کړی يي ، هغه ګوري، چې تاسو څرنګه عمل کوئ، ٥ نو خبردار، تاسو د دنيا نه ځان ساتی ، اود زنانو څخه ځان اوساتئ.

**حل اللغات**: - ① حُلْوَةٌ: خوږه ،مزيداره. ② خَضِرَةٌ: اي ناعمة طرية سرسبزه، ښائسته. ③ مُسْتَخْلِفُكُمْ: خليفه ګان ئې جوړ کړی يئ تاسو.

١ وَذَكَرَ: "إِنَّ لِكُلِّ غَادِرٍ لِوَاءً يَوْمَ الْقِيَامَةِ بِقَدْرِ غَدْرَتِهِ فِي الدُّنْيَا، ٢ وَلَا غَدْرَ أَكْبَرُ مِنْ غَدْرِ أَمِيرِ الْعَامَّةِ، يُغْرَزُ لِوَاؤُهُ عِنْدَ اسْتِهِ". ٣ قَالَ: "وَلَا يَمْنَعَنَّ أَحَدًا مِنْكُمْ هَيْبَةُ النَّاسِ أَنْ يَقُولَ بِحَقٍّ إِذَا عَلِمَهُ ٤" وَفِي رِوَايَةٍ: "إِنْ رَأَى مُنْكَرًا أَنْ يُغَيِّرَهُ" فَبَكَى أَبُو سَعِيدٍ، ٥ وَقَالَ: قَدْ رَأَيْنَاهُ فَمَنَعَتْنَا هَيْبَةُ النَّاسِ أَنْ نَتَكَلَّمَ فِيهِ،

[١] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الفتن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء ما أخبر النبی صلی الله علیه وسلم أصحابه بما هو کائن إلی یوم القیامة (رقم-٢١٩١) وابن ماجه فی کتاب الفتن/باب فتنة النساء (رقم-٤٠٠٠) واحمد فی المسند:٦١/٣

**ترجمه:** [۱] حضور ﷺ دا هم وفرمایل د قیامت په ورځ به هرعهد شکن (وعده ماتونکي) د پاره یونښان علامه جنډه ودرول شي. چې په دنیا کې د هغه د عهد شکني په قدر به وي، یعنی کوم سړی چې په دنیا کې څومره زیاته عهد شکني کړې وي، د هغه هغه نښان به هغه قدري اوچت (او نمایان وي) چې په میدانِ حشر کې هغه په عام طور سره وپیژندل شي. چې د عهد شکني مرتکب دی، او ده څومره زیاته عهد شکني کړې ده، او دغه شان علامه (نښان) به هر صاحب باطل د پاره وي، چې دیوبل نه امتیاز کولو سره وپیژندل شي، څرنګه چې په دې دنیا کې امراء او مقتدرین دخان سره یو علامه نښه ساتي. [۲] او هیڅ عهد شکني به دامیرِ عامه د عهد شکني نه زیاته لویه نه وي، د هغه نښان به د هغه د مقعد نژدې ودرول شي، چې د هغه زیاته رسوایي وشي. [۳] حضور ﷺ دا هم وفرمایل. په تاسو کې دې هیڅوک خوف ومصیبت د حقې خبري کولو نه منع نه کړي، هرکله چې هغه د حق خبري نه واقف وي، داسې سړی دې کلمه حق په ویلو کې د چا خوف او لحاظ نه کوي. بلکې هغه دې برملا (په ډاګه) وایي، هو، که د هغه په وجه د سر تلو خوف وي، نو معذوري ده، اګر که په دې صورت کې هم هغه ته حق ونیل اولی دی، [۴] او په یوه روایت کې یوخای وَلَا يَمْنَعَنَّ أَحَدًا مِنْكُمْ هَيْبَةُ النَّاسِ أَنْ يَقُولَ بِحَقٍّ، په خای دادی چې هرکله په تاسو کې یوسړی څه خلاف شرع امر ووینې، نو د خلقو خوف او هیبت دې هغه د خلاف شرع امر د اصلاح او سرکوبی نه منع نه کړي دابیان کولو سره حضرت ابوسعید خدري رضی الله عنه په ژړا شو [۵] او هغه اوویل . مونږ خلاف شرع امر خپلو سترګو سره ولیدی او د خلقو د خوف نه مونږ د هغه باره کې هیڅ ونه ونیل شوه ،

**حل اللغات:** ⑦غَادِرٍ: دهوکه ورکونکی، لوظ ماتونکې. ⑧لِوَاءٌ: جهندا . ⑨يُغْرَزُ: اودرولې به شي. ⑩هَيْبَةُ: ویره.

[۱] ثُمَّ قَالَ: " أَلَا إِنَّ بَنِي آدَمَ خُلِقُوا عَلَى طَبَقَاتٍ شَتَّى، [۲] فَمِنْهُمْ مَنْ يُولَدُ مُؤْمِنًا، وَيَحْيَا مُؤْمِنًا، وَيَمُوتُ مُؤْمِنًا، [۳] وَمِنْهُمْ مَنْ يُولَدُ كَافِرًا، وَيَحْيَا كَافِرًا، وَيَمُوتُ كَافِرًا، [۴] وَمِنْهُمْ مَنْ يُولَدُ مُؤْمِنًا، وَيَحْيَا مُؤْمِنًا، وَيَمُوتُ كَافِرًا، [۵] وَمِنْهُمْ مَنْ يُولَدُ كَافِرًا، وَيَحْيَا كَافِرًا، وَيَمُوتُ مُؤْمِنًا"

**ترجمه:** [۱] د دې نه پس حضرت خدري رضی الله عنه بیان وکی حضور ﷺ دا هم وفرمایل. پوهه شئ، چې د آدم علیه السلام اولاد مختلف جماعتونو او متضاد اقسامو او مراتبو سره پیدا شوی دی، [۲] په دوئ کې بعضې هغه دي، چې هغه مؤمن پیدا کېږي چې سنِ تمیز نه واخله آخر عمر پورې ګویا ټول عمر د ایمان په حالت کې ژوندی وي، او په ایمان د هغوئ خاتمه کېږي، [۳] او په دوئ کې بعضې هغه دي، چې کافر پیدا کېږي، چې د کفر په حالت کې ټول عمر ژوندی وي، او په کفر د هغوئ خاتمه کېږي [۴] او په هغوئ کې بعضې هغه دي، چې مؤمن پیدا کېږي، هغوئ ټول عمر د ایمان په حالت کې وي، لیکن د هغوئ خاتمه په کفر

وي، ۵ او په دوئ کې بعضې هغه دي، چې کافر پيدا کېږي، هغوئ د کفر په حالت کې ټول عمر تيروي، ليکن د هغوئ خاتمه په ايمان کېږي،

**حل اللغات:** ⑧طَبَقَاتٍ: دلې دلې، مراتبو والا. ⑨شَتَّى: مختلف.

۱ قَالَ: وَذَكَرَ الْغَضَبَ ۲ "فَمِنْهُمْ مَنْ يَكُونُ سَرِيعَ الْغَضَبِ سَرِيعَ الْفَيْءِ فَإِحْدَاهُمَا بِالْأُخْرَى، ۳ وَمِنْهُمْ مَنْ يَكُونُ بَطِيءَ الْغَضَبِ بَطِيءَ الْفَيْءِ فَإِحْدَاهُمَا بِالْأُخْرَى، ۴ وَخِيَارُكُمْ مَنْ يَكُونُ بَطِيءَ الْغَضَبِ سَرِيعَ الْفَيْءِ، ۵ وَشِرَارُكُمْ مَنْ يَكُونُ سَرِيعَ الْغَضَبِ بَطِيءَ الْفَيْءِ". ۶ قَالَ: "اتَّقُوا الْغَضَبَ؛ فَإِنَّهُ جَمْرَةٌ عَلَى قَلْبِ ابْنِ آدَمَ، أَلَا تَرَوْنَ إِلَى انْتِفَاخِ أَوْدَاجِهِ؟ وَحُمْرَةِ عَيْنَيْهِ؟ ۷ فَمَنْ أَحَسَّ بِشَيْءٍ مِنْ ذَلِكَ فَلْيَضْطَجِعْ وَلْيَتَلَبَّدْ بِالْأَرْضِ"

**ترجمه:** ۱ حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه وايي، په دي موقع حضور ﷺ د غضب او غصې قسمونه هم ذکر کړه، ۲ وي فرمايل بعضې سړيان ډير زر غضب ناك کېږي، ليکن د هغوئ غضب او غصه هم زر ختميږي يعنی څه خلق داسې وي، چې هغوئ ته په معمولي خبره زر غصه راځي، او د هغوئ غصه چې څومره تيزی سره راځي دغه شان تيزی سره ختميږي. نو په دي دواړو کې هر يو د دويم بدل جوړيږي، يعنی زر غصه راتلل خراب خصلت دی. او د غصې زر تلل نيك خصلت دی، کوم سړی کې چې دا دواړه خصلتونه وي، نو په هغه کې چې کوم خصلت ښه دی، هغه د خراب خصلت مکافات کوي کمي پوره کوي دغه شان په دي باره کې هغه سړی نه خو د مدح او تحسين مستحق دی، او نه د خرابي مستوجب دی. بلکي د دواړو خصلتونو د حامل کيدو په وجه بين بين منځ منځ کې دی، په دي اعتبار سره د هغه متعلق نه دا ونيل کيدل چې په هغه خلقو کې ښه سړی دی او نه دا ونيل کيدي شي. چې هغه خلقو کې بدتر سړی دی، ۳ او بعضې سړی داسې وي چې هغه ته غصه په خنډ راځي. او په خنډ ختي ځي، داسې سړی هم يوښه خصلت لري، او يوخراب خصلت. اګر که د غصې په خنډ راتلل ښه دی، ليکن د هغه په خنډ تلل بد دی، نو داسې سړی هم منځ منځ کې دی، چې هغه ته نه بهترين سړی ونيل کيدي شي او نه بدترين، ۴ نو په تاسو کې بهترين خلق هغه دي چې هغوئ ته غصه په خنډ راځي او زر ختميږي، ۵ او په تاسو کې بدترين سړی هغه دی، چې هغه ته غصه زر راځي، او ډير وخت وروسته ختي غصه ولاړه شي، ۶ د دې نه پس حضور ﷺ وفرمايل، تاسو د غصې نه بچ شئ يعنی داسې کار مه کوئ. چې د هغه په وجه غصه راشي. يا دا مطلب دی، چې د غصې نه د الله پناه غواړئ، ځکه چې غصه د ابن آدم په قلب يوه ګرمه سکروټه انګار ده يعنی غصه د اور د سکروټي په شان حرارت غريزيه او حرارت جلبيه لري، چې د نفس انګيتمي کې دباو شوي ده او هر کله چې خواهش نفس هغه راوپاروي نو د هغه حرارت او تيزي قلب باندې غالب راځي او عقل خپل تصرف کولو نه عاجزه پاتې شي، د هغه نتيجه داشي، چې داسې سړی د خپلي غصې په اور (آګ) کې نور خلق خو سوزي، ليکن خپله هم سوزي، آيا تاسو نه وينئ،

چې هر کله یوسړی غضب ناك شي، نو د هغه د څټ (غاړې) رګونه وپړسیږي، او سترګې یې سرې (سرخ) شي، یعنی داشیان دراصل د هغه غصې د حرارت غریزیه او بخارات غلیظه د راپورته کیدو اثر وي، دغه شان دغضب ناك ظاهر ګویا د هغه د باطن غماز کیږي.
[۷] هر کله چې یوسړی دا محسوس کړي چې اوس غصه راخي نو هغه ته پکار دی، چې هغه سمدستي په ارخ پریوځي او د زمکي سره ونخلي،

**حل اللغات:** ⑩سَرِیعَ: تیز. ⑪الفَیْءِ: واپس کیږی، ختمیږی. ⑫بَطِیءٌ: په قلار، صبرناک. ⑬حُمْرَةُ: سکروته. ⑭انْتِفَاخِ: پړسیدل. ⑮أَوْدَاجِ: رګونه. ⑯المَتَلَبَّدْ: اودې اینخلی.

[۱] قَالَ: وَذَكَرَ الدَّيْنَ فَقَالَ: " مِنْكُمْ مَنْ يَكُونُ حَسَنَ الْقَضَاءِ، وَإِذَا كَانَ لَهُ أَفْحَشَ فِي الطَّلَبِ، فَإِحْدَاهُمَا بِالْأُخْرَى، [۲] وَمِنْهُمْ مَنْ يَكُونُ سَيِّئَ الْقَضَاءِ، وَإِنْ كَانَ لَهُ أَجْمَلَ فِي الطَّلَبِ، فَإِحْدَاهُمَا بِالْأُخْرَى. [۳] وَخِيَارُكُمْ مَنْ إِذَا كَانَ عَلَيْهِ الدَّيْنُ أَحْسَنَ الْقَضَاءِ، وَإِنْ كَانَ لَهُ أَجْمَلَ فِي الطَّلَبِ،

**ترجمه:** [۱] او حضور ﷺ د قرض هم ذکر وکی یعنی قرض، قرضدار او دقرض خواه احوال او اقسام یې هم بیان کړه، حضور ﷺ وفرمایل، په تاسو کې بعضې سړی داسې وي. چې هغه د قرض ادائیګی کې خوښه وي، لیکن خپل قرض وصولولو کې سختي کوي. یعنی که په هغه د چاقرض وي، نو د هغه اداء کولو کې د صفایي معامله او دخوبي ثبوت ورکوي. لیکن کله چې د هغه په چا قرض وي نو د هغه قرضدار نه وصولولو کې ورسره سختي کوي، په دي طور چې د مطالبي او تقاضي په وخت د هغه قرضدار څه ادب او لحاظ نه کوي او د سختی او بدکلامی په ذریعه هغه ته تکلیف رسوي، دغه شان په هغه کې د قرض خوبي سره د اداکولو هم خصلت وي او وصولي قرض کې د بدی اختیارولو هم خصلت وي، نو په دي دواړو خصلتونو کې هریو د دویم بدل شي، [۲] او بعضې سړی داسې وي. چې هغه قرض اداکولو کې خو ډیر خراب ثابتیږي، د بل چا نه خپل قرض وصولولو کې ښه ثابتیږي، دغه شان په هغه کې هم یوښه او یو خراب خصلت وي، د هغه د دې دواړو خصلتونو نه هریو د دویم بدل کیږي [۳] نو په تاسو کې بهترین خلق هغه دي، چې د چا قرض اداکولو کې هم ښه وي، او د چا نه خپل قرض وصولولو کې هم ښه وي،

[۱] وَشِرَارُكُمْ مَنْ إِذَا كَانَ عَلَيْهِ الدَّيْنُ أَسَاءَ الْقَضَاءَ وَإِنْ كَانَ لَهُ أَفْحَشَ فِي الطَّلَبِ ". [۲] حَتَّى إِذَا كَانَتِ الشَّمْسُ عَلَى رُءُوسِ النَّخْلِ وَأَطْرَافِ الْحِيطَانِ فَقَالَ: [۳] " أَمَا إِنَّهُ لَمْ يَبْقَ مِنَ الدُّنْيَا فِيمَا مَضَى مِنْهَا إِلَّا كَمَا بَقِيَ مِنْ يَوْمِكُمْ هَذَا فِيمَا مَضَى مِنْهُ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او په تاسو کې بدترین خلق هغه دي چې د چا قرض اداکولو کې هم خراب وي، او د چا نه خپل قرض وصولولو کې هم خراب وي، [۲] حضور ﷺ په خپله خطبه کې دا نصیحتونه وفرمایل، تردي چې د نمر رڼا صرف د کجورو د و نو په څوکو او دیوالونو په غاړو پاتې شوه یعنی څه وخت چې د ورځي آخره شوه [۳] نو حضور ﷺ دا وفرمایل، یاد

لرئ د دې دنیا چې کومه زمانه تیره شوې ده، د هغه په نسبت اوس صرف دومره باقي پاتې شوي ده، څومره چې د نن ورځ د تیرې شوی حصې په نسبت دا آخري وخت دی یعنی څرنګه چې د نن ورځ نژدې نژدې پوره حصه تیره شوي ده، او اوس ډیره قلیله موده باقي پاتې شوې ده همداسې د دنیامثال دې (ترمذي)

**تسهیلات:**

**قوله:** قَامَ فِينَا رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- خَطِيبًا بَعْدَ الْعَصْرِ:

**دخطبې خلاصه:** دَ حضورپاك دَ ژوند مبارك دَ اوږدو خطبو نه دا یوه خطبه ده په کومه کښې چه حضورپاك دَ دنیا دَ بې ثباتئ او ناپائیدارئ بیان کړې دې او دَ انسانانو مختلف طبائع او معاملات او نفسیات او دَ هغې ابتداء او انتهاء ئې بیان کړې دی

**قوله:** إِنَّ الدُّنْيَا حُلْوَةٌ خَضِرَةٌ:

**شینکی سره د دنیا د تشبیه وجه:** یعنی شنه تازه آباد چمن او ګلزار دې عرب شینکي ډیر زیات خوښوی دنیائی دَ چمن په شان او ګرځوله څکه چه شینکی باندې ډیر زر زوال راځی نو دنیا هم دغه شان ده

**قوله:** وَلَا غَدْرَ أَكْبَرُ مِنْ غَدْرِ أَمِيرِ الْعَامَّةِ:

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① چه یو باغی سړې دَ بغاوت جهنډا اوچته کړی او دَ عوام الناس متفقه امیر خلاف دَ بغاوت اعلان اوکړی.

② چه یو ظالم غاصب متغلب حاکم راشی او دَ چا په جائز حکومت باندې قبضه اوکړی نه شوری وی نه مشوره وی نه دَ چا مرضی وی بلکه په زبردستئ سره په اقتدار باندې قابض شی دَ داسې غدار په شاکښې به اوږده جهنډا دَ قیامت په ورځ خښولې شی څکه چه هغه دَ عوامو دَ عام امیرالمومنین خلافت باندې قبضه اوکړه او غداری ئې اوکړه

**قوله:** أَلَا إِنَّ بَنِي آدَمَ خُلِقُوا عَلَى طَبَقَاتٍ شَتَّى:

**د هدایت او ضلالت په اعتبار سره د انسانی تخلیق څلور مراتب:**

① کامیاب انسان

② ناکام انسان

③ په شروع کښې کامیاب او په آخره کښې ناکام

④ په شروع کښې ناکام او په آخره کښې کامیاب

**قوله:** قَالَ: وَذَكَرَ الْغَضَبَ:

**دغصې راتلو په اعتبار سره د انسانانو څلور قسمونه:** ① یو هغه سړې دې چه ډیر زر غصه کیږی لیکن زر راضی کیږی. دا برابر سرابر دې. "فاحداهما بالاخری" هم دغه مطلب دې

② دغه شان يو سړي ډير وخت پس غصه كيږي مگر دَ غصي نه پس تر ډيره وخته پوري غصه باقي وی داهم برابرسرابر دی

③ يو سړي داسي دي چه ډير وخت پس غصه كيږي ليكن ډير زر راضي كيږي دا دَ ټولو نه ښه صفت والا سړي دي.

④ يو سړي داسي دي چه ډير زر غصه كيږي اوبيا دَ راضي كيدو نوم نه اخلي دا سړي بدترين صفت والا دي.

**قوله**: وَذَكَرَ الدَّيْنَ فَقَالَ:

دقرض اخستلو او اداكولو په اعتبار د انسانانو څلور قسمونه.

① يو سړي داسي دي چه كه هغه مديون دي او په بهتر طريقه سره قرض ادا كوی ليكن په قرض اخستوكښي نورو سره سختي كوی.دَ افحش مطلب هم دادي چه سختي كوی او غليظ انداز اختياروی داهم برابر سرابر دي

② يو هغه سړي دي چه په قرض وركولوكښي خو ښه نه دي ليكن په غوښتلوكښي ډير نرم اوښه دي داهم برابر سرابر دي.

③ يو هغه سړي دي چه دَ قرض په ادا كولوكښي هم ښه او نرم دي او په قرض غوښتلوكښي هم نرم او ښه دي دا دَ بهترين خصلت سړي دي.

④ يو هغه سړي دي چه قرض وركولوكښي ډير خراب دي اوكه دَ هغه په چا باندي قرض وی نو په غوښتوكښي هم ډير خراب دي.دا بدترين سړي دي.

**قوله**: حَتَّى إِذَا كَانَتِ الشَّمْسُ عَلَى رُءُوسِ النَّخْلِ:

**د دنيا د عمر ختميدل**: دغه وخت دَنمر دَ ډوبيدو وخت شوي وو نوحضورپاك اوفرمائيل چه دَدنيا عمر ختم شوي دي بس دومره باقي دي څومره چي دَ پوره ورځي يو ذره وخت اوس باقي دي

### [۵۳۶] دَ گناهونو ډيروالی سره قومونه تباه كيږي

> ۵۳۶-(۱) [۱۰] [۱]وَعَنْ أَبِي الْبَخْتَرِيِّ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲]قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "«لَنْ يَهْلِكَ النَّاسُ [۳]حَتَّى يُعْذِرُوا مِنْ أَنْفُسِهِمْ»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**: [۱]او حضرت ابو البختري د رسول الله ﷺ د صحابه ؓ نه د يو سړي نه روايت كوي د هغه بيان دی، [۲]چی رسول الله ﷺ وفرمايل، خلق به هغه پوري هيڅ كله نه هلا كيږي او برباديږي، [۳]تردي چي دهغوئ نه ډير زيات گناهونه او بدي صادريدل شروع شي (ابوداؤد)

[۱] اخرجه ابوداود فی السنن كتاب الترجل /باب الأمر والنهی (رقم-۴۳۴۷) واحمد فی المسند: ۴/۲۱۰

**تسهيلات:**

**قوله**: لَنْ يَهْلِكَ النَّاسُ حَتَّى يُعْذِرُوا مِنْ أَنْفُسِهِمْ:

**د مذكوره جملې په مفهوم كښې دوه اقوال:** ① اوس داخلق دخپلو گناهونو پخپله هم معذرت نه كوي بلكه دگناه اقرار هم كوي او په ښكاره باندې سرعام گناه هم كوي نو هلاكيږي دَدې جملې دريم مطلب دادې چه عذرونه مخې ته ساتلو سره باطل تاويلونه كوي او گناه ته قانوني شكل وركوي. داعلمي غلطي ده په كوم سره چه سړې گمراه كيدو سره هلاكيږي څكه چه دغه شان دَ گناهونو كثرت كيږي او هغې كښې قومونه غرقيږي

② دا إعذار دَباب افعال نه دى او دَ سلب مأخذ دَپاره دې دكوم مطلب چه به داشي دغه خلقو دومره گناهونه اوكړل چه اوس دهغوى دَ طرف نه عذر معذرت هم ختم شو اوس داخلق پخپله خپل ځان صاحب عذر نه گڼړى نودَ الله تعالى كوره پرې لگي.

**[۵۰۳۷] دَقدرت باوجود منكر نه نه منع كول اجتماعي عذاب ته دعوت وركول دى**

۵۰۳۷-()[۱۱] [۱] وَعَنْ عَدِيِّ بْنِ عَدِيٍّ الْكِنْدِيِّ قَالَ: حَدَّثَنَا مَوْلًى لَنَا [۲] أَنَّهُ سَمِعَ جَدِّي -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- يَقُولُ: [۳] سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: «إِنَّ اللَّهَ تَعَالَى لَا يُعَذِّبُ الْعَامَّةَ بِعَمَلِ الْخَاصَّةِ [۴] حَتَّى يَرَوُا الْمُنْكَرَ بَيْنَ ظَهْرَانِيهِمْ وَهُمْ قَادِرُونَ عَلَى أَنْ يُنْكِرُوهُ فَلَا يُنْكِرُوا، [۵] فَإِذَا فَعَلُوا ذَلِكَ عَذَّبَ اللَّهُ الْعَامَّةَ وَالْخَاصَّةَ». رَوَاهُ فِي "شَرْحِ السُّنَّةِ".

**ترجمه**: [۱] او حضرت عدي بن عدي كندي وايي، مونږ ته زمونږ يو آزاد كرده غلام بيان وكړ [۲] چې هغه څما د نيكه (دا حضرت عميره كندي) نه واوريدل، [۳] هغه ويل. ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل الله ﷻ د يوقوم بعضې افراد د اعمال بد په سبب، د هغه اكثره افراد كه د بد عملو او د احكام خداوندي نافرمانو كې مبتلا وي، نو د هغه په بدله كې نور خلق په عذاب كې نه مبتلا كوي، [۴] خو كه د هغه قوم خلق دا ويني، چې د هغوئ په منځ كې د بعضې افرادو په وجه خلاف شرع امور كيږي، او د هغه اصلاح او سركوبي نه كوي، په شرط د دې چې د هغه د اصلاح او سركوبي قدرت لري، [۵] او په دې صورت حال يعنې د قدرت لرلو باوجود سكوت او سستي اختيارولو كې د قوم اكثره خلق اونخلي نو بيا الله ﷻ خاص او عام ټول په عذاب كې مبتلا كوي (شرح السنه)

**حل اللغات**: - ① بَيْنَ ظَهْرَانِيهِمْ: ددوى په مينځ كښې يعنى ددوى په موجودگئ كښې.

---

[۱]) و مالك في الموطا كتاب الكلام/باب ما جاء في عذاب العامة بعمل الخاصة (رقم-۲۳) واحمد في المسند: ۴/۹۴

**تسهيلات:**

**قوله: إِنَّ اللّٰهَ تَعَالَى لَا يُعَذِّبُ الْعَامَّةَ بِعَمَلِ الْخَاصَّةِ:**

**د ګناهونو په وجه د عذاب د راتلودوه صورتونه:** ①کله چه بعضې افراد د قوم په مخکې کبائر کول شروع کړی او قوم د طاقت او قوت لرلو باوجود هم دوې منع نه کړی نو په دې صورت کښې به ټولو ته عذاب ملاویږی یعنی کبائر کونکو ته به د جرم په وجه عذاب ملاویږی او نورو خلقو ته به د بدی نه د نه منع کولو په وجه عذاب ملاویږی

② د آیت مبارکه "ولا تزروازرة وزر أخری" پیش نظر کله چه د قوم یو څو افراد کبائر کول شروع کړی نو ددې عذاب به صرف هم دغه کبائر کونکوته ملاویږی او د قوم نورو افرادو ته به ددې عذاب نه ملاویږی

**[۵۳۸] دَ نهی عن المنکر د پریخودو په وجه د بنی اسرائیلو عذاب**

۵۳۸-()[۱۳] ①وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ②" «لَمَّا وَقَعَتْ بَنُو إِسْرَائِيلَ فِي الْمَعَاصِي نَهَتْهُمْ عُلَمَاؤُهُمْ فَلَمْ يَنْتَهُوا، ③فَجَالَسُوهُمْ فِي مَجَالِسِهِمْ، وَآكَلُوهُمْ وَشَارَبُوهُمْ، ④فَضَرَبَ اللّٰهُ قُلُوبَ بَعْضِهِمْ بِبَعْضٍ، فَلَعَنَهُمْ عَلَى لِسَانِ دَاوُدَ وَعِيسَى بْنِ مَرْيَمَ ⑤ذَلِكَ بِمَا عَصَوْا وَكَانُوا يَعْتَدُونَ. ⑥قَالَ: فَجَلَسَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- وَكَانَ مُتَّكِئًا ⑦فَقَالَ: " لَا وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ حَتَّى تَأْطِرُوهُمْ أَطْرًا» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ ⑧وَفِي رِوَايَتِهِ قَالَ: " «كَلَّا وَاللّٰهِ لَتَأْمُرُنَّ بِالْمَعْرُوفِ وَلَتَنْهَوُنَّ عَنِ الْمُنْكَرِ، ⑨وَلَتَأْخُذُنَّ عَلَى يَدَيِ الظَّالِمِ، وَلَتَأْطِرُنَّهُ عَلَى الْحَقِّ أَطْرًا، وَلَتَقْصُرُنَّهُ عَلَى الْحَقِّ قَصْرًا، ⑩أَوْ لَيَضْرِبَنَّ اللّٰهُ بِقُلُوبِ بَعْضِكُمْ عَلَى بَعْضٍ، ثُمَّ لَيَلْعَنَنَّكُمْ كَمَا لَعَنَهُمْ» ".

**ترجمه:** ①او حضرت عبد الله ابن مسعود رضی الله عنه وایي، چې رسول الله ﷺ وفرمایل ②بنی اسرائیل چې کوم وخت زنا، د خالي په ورخ ښکار کولو او د دې نه نورو ګناهونو کې مبتلا شو، نو د هغوئ علماوو هغوئ منع کړه، هرکله چې هغوئ منع نه شو یعنی هغوئ د خپلو علماؤ خبره ونه منله، او ممنوع څیزونه یې ترک نه کړل ③نو د هغوئ علماء هم د هغوئ په مجلسونو کې ورګډ شو، او د هغوئ هم خیال او هم پیاله شو، یعنی د هغوئ علماء مخکې خو هغوئ د بد عمل او د ګناهونو لار اختیارولو نه منع کړه، لیکن کوم وخت چې هغه خلق د خپل حرکتونو نه منع نه شوه، او د بدی په لار تینګ پاتې شو، نو بیا هغه علماء هم هغه بد عملو او ګنهکار وخلقو سره خلط ملط شوه، او سکوت او سستي یې اختیار کړه، ④نو الله ﷻ هغوئ ټول خلط ملط کړه، او د هغوئ زړونه یې

[1]) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الترجل /باب الأمر والنهی (رقم-۴۳۳۷) والترمذی فی کتاب تفسیر القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب: ومن سورة المائدة (رقم-۳۰۴۷) وابن ماجه فی کتاب الفتن/باب الأمر بالمعروف والنهی عن المنکر (رقم-۴۰۰۶) واحمد فی المسند:۳۹۱/۱

خپلو کې د یوبل زړونو سره یوځای کړه بیا الله ﷻ د هغه بني اسرائیلو ګنهګار خلقو او هغوئ سره مصاحبت او مجالست لرونکو او سستی اختیارونکو باندې د حضرت داود علیه السلام او حضرت عیسٰی بن مریم د ژبې په ذریعه لعنت وکړو. [۵] او دا لعنت وربانديې ځکه شوی وو، چې هغه خلقو ګناه کولو کې د حد نه تجاوز کړی وو. (یعني هغوئ محض ګناه کولو او سستي اختیارولو باندې اکتفاء ونه کړه بلکي د حد نه تجاوز کولو سره کفر ته رسیدلی وو، په دې طور چې خلاف شرع امور یې حلال او جائز ګڼل شروع کړه. په ګناهونو رضامندي ظاهرول او ګنهګار ښه ګڼل یې شروع کړه) [۶] حضرت ابن مسعود رضی الله عنه وایي، رسول الله ﷺ چې هغه وخت (خپل اړخ یا شا سره) تکیه لګولې ناست وو (مذکوره بالا خبري ارشاد فرمایلو نه پس) سیده کینا ستی (یعني حضور ﷺ تکیه پریخودله. او داسې کینا ستی، لکه چې د څه اهمې خبرې د فرمایلو یې اراده وي) [۷] نو وي فرمایل. په هغه ذات مې دې قسم وي، د چا په قبضه کې چې ځما ساه ده، تاسو هغه وخته پورې عذاب الهي نه نجات نشې پیدا کوی، ترڅوپورې چې ظالمان د هغوئ د ظلم نه او فاسقان د هغوئ د ګناه نه منع نه کړې، (ترمذي، ابوداود) [۸] او د ابوداود په یوه روایت کې داسې دې چې حضور ﷺ وفرمایل، ستاسو داګمان دی، چې د سکوت او سستی باوجود تاسو به د عذاب الهي نه نجات پیدا کې، نو داسې هیڅ کله نه ده بلکي قسم په الله ستاسو د پاره ضروري ده، چې خلقو ته د نیکې د لار اختیارولو حکم ورکوئ او هغوئ د بدی د لار نه منع کوئ، [۹] د ظالم لاس نیسئ هغه حق طرف ته مائل کوئ. او هغه د حق او انصاف په لار قائموي، [۱۰] که تاسو داسې نه کوئ، نو پوهه شئ، چې بیا به الله ﷻ ستاسو د ګنهګارو او هغوئ سره د سکوت او سستي کونکو زړونه هم خپلو کې د یوبل زړه خلط ملط کړي. او بیابه په تاسو لعنت وفرمایي، څرنګه چې بني اسرائیلو باندې د هغوئ د ګناهونو په وجه لعنت فرمایلی وو

**حل اللغات:** - ① تَأْطِرُوهُمْ: اطرأ دَدې مصدردې دَ بندولو او منع کولو په معنی کښې دې. ② أَطْرًا: بندول.

**تسهیلات:**

**قوله: فَضَرَبَ اللّٰهُ قُلُوبَ بَعْضِهِمْ بِبَعْضٍ:**

**دنهی عن المنکر نه کولو په وجه د عذاب راتلل:** یعنی کله چه علماؤ بنی اسرائیل ښه منع کړل مګر هغه خلق دګناهونونه رامنع نه شو نوعلماء هم هغوی سره په ګناهونو کښې شریک شو. په دې سره په هغوی باندې اجتماعی عذاب راغلو اودهغوی نوم اونښه نی ختمه کړه "فضرب الله قلوب بعضهم" مطلب هم دا دې چه ټول یوځائی شو اوپه ګناه کښې اخته شو نو الله تعالی اول دهغوی زړونه تور کړل اوپه دې کښې یوبل سره ګډوډ شو بیا

د هغوى زړونه په اجتماعى توګه باندې سخت کړې شو په کوم سره چه هغوى د الله تعالى نه لرې شو اوس هغوى د دې قابل پاتې نه شو چه حق قبول کړې شى په دې وجه مسخ کېدو سره څه خنزيران جوړشو او څه بيزوګان شو ددې بيان نه پس حضورپاك په اهتمام سره کيناستو او ښکلې ارشادات ئې د مجمع مخې ته بيان کړل په کوم کښې چه دا ارشاد وو چه په الله تعالى قسم! تاسوله د ظالم لاس نيولو سره د منکرنه منع کول دى ګنى ستاسو زړونه به هم د هغوى د زړونو په شان شى

**قوله: وَلَتَأْطِرُنَّهُ عَلَى الْحَقِّ أَطْرًا:**

**د ګناهونو څخه د منع کولو تاکيد:** دا لفظ د ضرب اونصر دواړو نه راخى اطرا ددې مصدردې د بندولو او منع کولو په معنى کښې دې يعنى په تاسو باندې لازم دى چه ګناهګارو او ظالمانو او فساد کونکو لاسونه اونيسئ او د ګناه نه ئې منع کړئى که چرې هغوى منع نه شو نو تاسو د هغوى نه جدا شئى اوځان ترې غاړې ته کړئى هغوى سره ناسته مه کوئى په هغوى باندې خوراك مه کوئى اومه د هغوى نه خوراك څښاك کوئى

يوروايت کښې دى "ولتأطرنه على الحق اطرا" ددې تشريح هم دې سره لګيدلې ده "اي لتقصرنه على الحق قصرا" ملاعلى قارى رحمه الله فرمائى "اي لتمنعن الظالم باللسان عند العجز عن أخذ اليد باليد على الحق أي على اجبارة على الحق وانكاره على الباطل اطرا أي منعا ظاهرا ليس فيه لومة لائم"

**[٥٣٩] د بې عمله واعظ او بې عمله عالم سزا**

٥٣٠ - (١) [١٣] ١ وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ٢ " «رَأَيْتُ لَيْلَةَ أُسْرِيَ بِي رِجَالًا تُقْرَضُ شِفَاهُهُمْ بِمَقَارِيضَ مِنْ نَارٍ، ٣ قُلْتُ: مَنْ هَؤُلَاءِ يَا جِبْرِيلُ؟ قَالَ: هَؤُلَاءِ خُطَبَاءُ مِنْ أُمَّتِكَ يَأْمُرُونَ النَّاسَ بِالْبِرِّ وَيَنْسَوْنَ أَنْفُسَهُمْ» ". ٤ رَوَاهُ فِي " شَرْحِ السُّنَّةِ " وَالْبَيْهَقِيُّ فِي " شُعَبِ الْإِيمَانِ " ٥ وَفِي رِوَايَتِهِ قَالَ: " «خُطَبَاءُ مِنْ أُمَّتِكَ الَّذِينَ يَقُولُونَ مَا لَا يَفْعَلُونَ، وَيَقْرَءُونَ كِتَابَ اللَّهِ وَلَا يَعْمَلُونَ» ".

**ترجمه:** ١ او حضرت انس رضي الله عنه نه روايت دى، چې رسول الله ﷺ وفرمايل. ٢ ما د معراج په شپه څنې خلق وليدل. چې د هغوئ شونډې د اور په قينچيانو کټ کول کيدى. ٣ ما پوښتنه وکړه، اې جبرائيل عليه السلام! دا کوم خلق دي، هغه ويل. دا ستاسو د امت هغه علماء، واعظين او مشائخ دي، چې خلقوته به يې د نيکۍ تلقين کوى. خو خپل ځان به يې هيروى. يعنى خپله به يې عمل نه کوى، ليکن نورو ته به يې د عمل تلقين او نصيحت کوى. ٤ دا روايت بغوي رحمه الله شرح السنه کې او بيهقي رحمه الله په شعب الايمان کې نقل کړى دى، ٥ او د بيهقي رحمه الله په يوه روايت کې دا الفاظ دي چې حضرت جبرائيل عليه السلام جواب ورکړو، چې داخلق ستاسو ﷺ د امت هغه واعظان او خطيبان دي چې هغه وايي.

١) اخرجه البغوى فى شرح السنه رقم الحديث ٤١٥٩ والبيهقى فى شعب الايمان رقم الحديث ١٧٧٣. واحمد فى المسند ٣/ ١٢٠

کوم چې خپله نه کوي، چې کتاب الله به يې وئیلو، لیکن عمل به يې باندې نه کوی

**حل اللغات:** - ① تُقْرَضُ: پرېکولې به شی، ② شِفَاهُهُمْ: شونډې دهغوی، ③ مَقَارِيضَ: د مقراض جمع ده، قینچی،

**تسهیلات:**

**قوله:** رِجَالًا تُقْرَضُ شِفَاهُهُمْ بِمَقَارِيضَ مِنْ نَارٍ: دا دَ بې عمله وعظ او بې عمله عالم دَپاره سخت وعید دې په یوبل حدیث کښې دی «ویل للجاهل منه وللعالم سبع مرات»، په یوبل حدیث کښې دی «اشد الناس عذابا یوم القیامة عالم لم ینفعه الله بعلمه». یو شاعر وئیلی دی

فساد کبیر عالم متهتك　　　　واکبر منه جاهل متنسك

**[۵۱۵۰] د خیانت په مسخ کیدل**

> ۵۱۵۰-()[۱۳۱] ۱ وَعَنْ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ "«أُنْزِلَتِ الْمَائِدَةُ مِنَ السَّمَاءِ خُبْزًا وَلَحْمًا، ۳ وَأُمِرُوا أَنْ لَا يَخُونُوا وَلَا يَدَّخِرُوا لِغَدٍ، ۴ فَخَانُوا وَادَّخَرُوا وَرَفَعُوا لِغَدٍ، فَمُسِخُوا قِرَدَةً وَخَنَازِيرَ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت عمار بن یاسر ﷺ وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمایل، ۲ د حضرت عیسیٰ علیه السلام په قوم د اسمان نه د روټۍ او غوښو ځیزونه نازل شو ۳ او هغوئ ته یې حکم ورکړو. چې نه خو دې په هغه کې خیانت کوی او نه دې راتلونکي ورځې د پاره ذخیره کوي. یعنی د دې نعمت الٰهي باره کې هغوئ ته خاص طور سره دوه حکمه ورکول شوه. یو خوداچي هیڅ سړی دی په دي کې خیانت نه کوي، یعنی داسې دې نه کوي، چې دا ځیزونه د چا قبضه کې راشي، خپله دې ښې ښې وخوري یا نورو نه دې زیات وخوري او نورو خلقو ته دې خراب یاکم طعام حاصل شي او دویم حکم دا وو، چې کوم ځیزونه نازل شي. هغه بچ کولو سره دویمې ورځې د پاره کیږدي، ۴ لیکن هغوئ خیانت هم وکی او ذخیره يې هم وکړه چې دویمې ورځې د پاره يې وساتلې، نو هغوئ د شادوګانو او خنزیرانو په شکل کې بدل شوه. (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① خُبْزًا: روټۍ. ډوډۍ. ② لَحْمًا: غوښه. ③ فَمُسِخُوا: مسخ کړې شو، شکلونه ئې وران شول ④ قِرَدَةً: بیزوګان.

**تسهیلات:**

**قوله:** فَمُسِخُوا قِرَدَةً وَخَنَازِيرَ:

**دتارکین امر بالمعروف څخه شادوګان او خنزیران جوړیدل:** دَخیانت صورت دا وو چه دَادئی په ځائی ئی اعلیٰ دَ اجازت نه بغیر واخستل یا دَنورو خلقو ځیز ئی اوچت

---

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب تفسیر القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم باب: ومن سورة المائدة (رقم-۳۰۶۱)

کړو "قردة وخنازیر" دا سې معلومیږی چه دَ بوډاګانو شکلونه وران شو په بیزوګانو کښې بدل شو او دَ ځوانانو شکلونه په خنزیرانو کښې بدل شو

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [۵۱۵۱] دظالم بادشاه د ظلم برداشت کولو فضیلت

۵۱۵۱ –() [۱۵] [۱] عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] " «إِنَّهُ تُصِيبُ أُمَّتِي فِي آخِرِ الزَّمَانِ مِنْ سُلْطَانِهِمْ شَدَائِدُ، [۳] لَا يَنْجُو مِنْهُ إِلَّا رَجُلٌ عَرَفَ دِينَ اللّٰهِ، [۴] فَجَاهَدَ عَلَيْهِ بِلِسَانِهِ وَيَدِهِ وَقَلْبِهِ، فَذٰلِكَ الَّذِي سَبَقَتْ لَهُ السَّوَابِقُ، [۵] وَرَجُلٌ عَرَفَ دِينَ اللّٰهِ، فَصَدَّقَ بِهِ، [۶] وَرَجُلٌ عَرَفَ دِينَ اللّٰهِ فَسَكَتَ عَلَيْهِ، [۷] فَإِنْ رَأَى مَنْ يَعْمَلُ الْخَيْرَ أَحَبَّهُ عَلَيْهِ، وَإِنْ رَأَى مَنْ يَعْمَلُ بِبَاطِلٍ أَبْغَضَهُ عَلَيْهِ، فَذٰلِكَ يَنْجُو عَلَى إِبْطَانِهِ كُلِّهِ» ".

**ترجمه** : [۱] حضرت عمر ابن خطاب رضي الله عنه وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل. [۲] ځما د امت په آخري زمانه کې به د خپلو حکمرانانو د طرف نه (ديني يادنياوي) سختي او بلاګاني زغمل راځي [۳] او هغه وخت به هغه بلاګانو او سختيو نه د نجات (خلاصون) لار پيداکيدونکی يو سړی خو هغه وي، چې د الله په دين به پوهيږي، يعنی علم او عمل دواړه به په کې وي د معرفت او يقين د دولت په ذريعه خپله به هم کمال درجي ته رسيږي، او نور به هم کامل کوي، او دغه شان مخکې خو به هغه د الله د دين د اصولو او جزئياتو دتفصيل نه په ښه شان واقف او آګاه وي، او خپل نفس به د عمل په غالب کې اچوي او صرف مشروع څيزونه به اختيار وي، چې د هغه په وجه به په هغه کې د ظلم او بي انصافی خلاف سعي او د جد وجهد کولو عزم او حوصله پيدا کېږي [۴] نو هغه سړی به د الله دين سربلند کولو د پاره خپلي ژبي، خپل لاس او د خپل زړه په ذريعه جهاد کوي يعنی بطريق وعظ اونصيحت د ژبي په ذريعه هم د ظلم او بدی خلاف به جد وجهد کوي او که د دې طاقت ورته حاصل نه وي نو مجبوراً په زړه کې د هغه ظلم او خرابي خلاف نفرت او عداوت لرلو باندې اکتفاء کوي، نو دابه هغه سړی وي چې کمال ايمان، ثواب او د دنيا او آخرت سعادتونو کښې به مخکې ورسيږي، [۵] او يو سړی به هغه وي، چې د الله په دين خو به پوهيږي، خو د مخکې سړي نه يوه درجه کم، نو هغه سړی به د دين تصديق کوي او هغه به ښه ګڼي، يعنی هغه سړی به د ظلم او بدی خلاف صرف د زړه او ژبي په ذريعه جهاد کوي، د لاس قوت نه به کار نه اخلي. دا مطلب ددی قريني نه معلوميږي، چې د دې سړي باره کې د تصديق لفظ استعمال شوی دی، او ښکاره ده، چې د تصديق تعلق زړه سره وي، چې د هغه ترجماني ژبه کوي، [۶] او يو سړی به هغه وي،

---

() اخرجه البيهقي في شعب الايمان رقم الحديث ۷۵۸۷

چې دالله په دین به لږ ډیر پوهیږي.نو هغه سړی به سکوت خاموشي اختیار کړي او صرف د قلب په ذریعه به جهاد کوي یعني ظلم او بدي به محض زړه سره بد ګڼلو باندې اکتفا کوي ⑦نو د دې سړي حالت به داوي. چې کله څوك نیك کار کونکی ویني. نو هغه به دوست لري او که څوك غلط کار کولو باندې ویني، نو هغه نه به نفرت کوئ او د هغه سره به هم پټ طور نیکي سره د محبت او ګناه سره د نفرت لرلو په سبب نجات پیدا کې

**حل اللغات:** - ①السَّوَابِقُ: مخکښې کیدونکی. ②أَبْغَضَهُ: بغض به کوی د هغه سره. ③بِطَانَتِهِ: پټ ساتل. د زړه پټه جذبه.

**تسهیلات:**

**قوله :إِنَّهُ تُصِيبُ أُمَّتِي فِي آخِرِ الزَّمَانِ مِنْ سُلْطَانِهِمْ شَدَائِدُ:**

**په آخره زمانه کښې د بادشاهانو څخه امت ته تکلیفونه رسیدل :** دَ وخت دَ ظالم بادشاه د طرف نه اهل حق او اهل خیر او ایمان ته به سخت دنیاوی او دینی تکلیفونه رسیږی لکه چه دَ یزید او حجاج بن یوسف نه مسلمانانو ته تکلیف اورسیدو دَ هلاکوخان او چنګیرخان دَ طرف نه اورسیدو او نن صبا دَعرب او عجم دَ ظالمانو حکمرانانو دَ طرف نه د حق او اهل حق خلاف دَ طاقت استعمال کیږی.نن دَ حکومت وقت ټول فوجی صلاحیتونه حق او نظام حق او علماء حق او مدارسو او مساجدو خلاف استعمالیږی رحمان بابا صحیح ونیلی دی

په سبب دَ ظالمانو حاکمانو　　　　اور او کور او پیښور دریواړه یو دی

**قوله: لَا يَنْجُو مِنْهُ إِلَّا رَجُلٌ عَرَفَ دِينَ اللَّهِ:**

عرف دین الله" یعنی پخپله هم کامل عارف او عالم دې او نورخلق هم کمال دین باندې راولی اول پخپله دَدین اصول جزئیات او دَدې قواعد او فروعات پیژنی بیا دَهغې په رنړاکښې نور هم په نیغه لار راولی او چلوی ئی لکه چه کامل عالم، عامل، عارف بالله به وی نو بیا به دَ دغه وخت دَفتنونه بچ کیدې شی هغه هم څکه چه هغه جهاد بالید جهاد باللسان او جهاد بالقلب کوی په دریواړو طریقو سره دَ دین حق خدمت کوی

**قوله: فَذَلِكَ الَّذِي سَبَقَتْ لَهُ السَّوَابِقُ:**

یعنی دینی او دنیاوی سعادتونو او برکتونو ته به دَ ټولو نه مخکښې اورسیږی دې نه پس دَدویمې درجې سړې هغه دې چه په دین باندې پوهیږی او دَدې تصدیق کوی او په ژبه سره امر بالمعروف او نهی عن المنکر کوی لیکن په لاس سره دَنهی عن المنکر طاقت نه لری په دې وجه هغه دَ دویمې درجې مسلمان دې او په دویم نمبر باندې به کامیابیږی.دریم هغه سړې دې چه په دین باندې به لږ ډیر پوهیږی یعنی زیات عالم به نه

وی هغه چه کله نیکی گوری نو هغه به دَ زړه نه خوښوی او چه کله بدی گوری نو نو دَ هغه په زړه ښه نه لگی مگر په ژبه او لاس باندې ئې د بندولو طاقت نه لری دا سړې به هم دَ خپل زړه دَ جذبې په وجه کامیاب وی

**قوله: فَذَلِكَ يَنْجُو عَلَى إِبْطَانِهِ كُلِّهِ:**

یعنی دَ دغه دَ زړه دَ پټې جذبې دَ وجې نه هغه هم کامیاب دې دا حدیث لکه چه دَ هغه حدیث په شان دې کوم چه دَ دې باب اولنې حدیث دې په کوم کښې چه «من رأي منکم منکرا فلیغیره بیده الخ» درې درجې بیان کړې شوې دی

**[۵۱۵۳] دَ بد عمله خلقو سره نیکان هم په عذاب کښې تباه کیږی**

| |
|---|
| ۵۱۵۳ ـ (۱) [۱] وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«أَوْحَى اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ إِلَى جِبْرِيلَ عَلَيْهِ السَّلَامُ: أَنِ اقْلِبْ مَدِينَةَ كَذَا وَكَذَا بِأَهْلِهَا، [۳] قَالَ: يَا رَبِّ! إِنَّ فِيهِمْ عَبْدَكَ فُلَانٌ: لَمْ يَعْصِكَ طَرْفَةَ عَيْنٍ". [۴] قَالَ: "فَقَالَ: اقْلِبْهَا عَلَيْهِ وَعَلَيْهِمْ، [۵] فَإِنَّ وَجْهَهُ لَمْ يَتَمَعَّرْ فِيَّ سَاعَةً قَطُّ»". |

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر ﷺ وایي، چې رسول الله ﷺ وفرمایل. [۲] الله ﷻ حضرت جبرائیل علیه السلام ته حکم وکی، چې فلانی ښار کی چې د هغه حالات داسې دا سې دي، هغه دوسیدونکو سره په بل طرف واړوه. [۳] حضرت جبرائیل علیه السلام عرض وکړو، اې څما پروردگار! په دې ښار کې ستا هغه فلانی بنده هم دی چې دیوې لمحې د پاره یې هم هیڅ کله ستا نافرمانی نه ده کړې [۴] حضور ﷺ فرمایي، کوم وخت چې جبرائیل علیه السلام داسې وویل. نو الله ﷻ ورته وفرمایل ته دا ښار ټولو باشندگانو باندې هم او هغه سړي باندې هم واړوه. [۵] ځکه چې څما دخوشنودې او څما د دین په محبت کې د هغه سړي د مخ رنګ (د ښار والاوو گناهونه لیدو سره) یو ساعت د پاره هم بدل نه شو

**حل اللغات:** - ① اقْلِبْ: دَ باب ضرب نه دَ امر صیغه ده. همزه وصلیه دې دَ اولټه کولو معنی کښې دې ② طَرْفَةَ عَيْنٍ: د سترگو رپ. یعنی لږ ساعت. ③ يَتَمَعَّرْ: تمعر دَ باب تفعل نه دې دَ مخ هغه بدلیدو ته وائی چه کله څوك څه مکروه کار اووینی یعنی د خفگان اثرات.

**تسهیلات:**

**د بعضې مشکلو جملو وضاحت:**

① أَنِ اقْلِبْ مَدِينَةَ كَذَا وَكَذَا بِأَهْلِهَا: یعنی الله تعالی حضرت جبرائیل علیه السلام ته حکم ورکړو چه فلانکې ښار دَ هغې دَ اوسیدونکو سره اولټه کړه دا قصه دَ پخوانو قومونو نه دَ یو قوم ده چه په فسق او فجور کښې اخته وو په کوم چه دَ هغوی د هلاکت فیصله اوکړې شوه

② فُلَانٌ: لَمْ يَعْصِكَ طَرْفَةَ عَيْنٍ: یعنی دغه عابد او زاهد سړی یو ساعت هم ستا نافرمانی نه

---

[۱] اخرجه البیهقی فی شعب الایمان رقم الحدیث ۷۵۹۵

ده کړي د ښار په اولتيه کولو سره به دې هم مرشي حالانکه دا بې گناه دي دوی نه معلومیږي چه بعضې وخت دنیکانو خلقو د وجې نه الله تعالی نافرمانه خلق دعذاب نه بچ کوي فاسقانو فاجرانو له پکار دي چه هغوی دې دخو خلقو قدر کوي او هغوی دې دخپل بقاء ذریعه گڼړي

۞فَقَالَ: اقْلِبْهَا عَلَيْهِ وَعَلَيْهِمْ: په دې جملې کښې لویه مبالغه ده چه اول په دغه عبد بندې ښار اولټه کړه دهغې نه پس ئې په فاسقانو فاجرانو باندې اولټه کړه

۞فَإِنَّ وَجْهَهُ لَمْ يَتَمَعَّرْ فِيَّ سَاعَةً قَطُّ: یعنی د گناهونو په دغه بدتمیز طوفان کښې ددغه سړي په مخ باندې د غم اوغصې د وجې نه د الله تعالی د رضاد پاره په تندي باندې کرښه هم نه ده راغلې

**دنهی عن المنكر نه په غفلت سره د عذاب استحقاق**: معلومه شوه که یو سړي یو خپل هم نهی د منکر اوکړي نو بیاهم بچ کیدې شي مگر دغه سړي د ایمان پاره لکه چه ختمه شوي وه او اوس دغه وخت په هغه کښې د بدئي نه دنفرت کولونوم هم باقي پاتې نه وو په دیني حمیت اوحمایت کښې د هغه دغیرت رگ چرته پرق هم نه وهې په دې وجه دا سړي د الله تعالی د عذاب دنورو په نسبت زیات مستحق شو

**دهر مؤمن څخه د دین د نصرت مطالبه**: ددې حدیث نه معلومه شوه چه الله تعالی دخپل ذات دعبادت سره د انسان نه دخپل دین حمایت هم غواړي الله تعالی دا نه غواړي چه یو سړي دې بس د یو سوداگر په شان ذهن لري چه دالله تعالی نه صرف هم داختلو په فکر کښې وي او د ورکولو هیڅ څه فکر نه وي حالانکه دالله تعالی ارشاد دې ﴿إِنْ تَنْصُرُوا اللَّهَ يَنْصُرْكُمْ﴾ اسورت محمد: ۷ا یعنی که تاسو دالله تعالی امداد کوئی نو بیابه الله تعالی ستاسو امداد کوي اول تاسو دالله تعالی د دین خدمت اوحمایت اوکړئی دې نه پس د الله تعالی نه انعام وصول کړئی. په دې حدیث کښې دا سړي صرف د الله تعالی نه داخستلو په فکر کښې سوداگرناست وو اود الله تعالی د دین د ختمیدو نه هغه ته څه درد وو نه غم وو نه فکر وو او دکوتې پرې کولو نه بغیرد شهید مرتبه حاصلولو دپاره په امید کښې ناست وو دا د پیښو مجنون وو د وینې ورکولو مجنون نه وو د لیلی حاصلول د ده مقصود نه وو بلکه صرف پیښی څکل ئې مقصد وو

**حکایت**: د مثال په توگه چادا حکایت بیان کړې دې چه یو سړې وو دهغه درې خامن وو هغه ډیر نیکان وو. یو په کښې آزد خیال وو یوه ورځ چا ددغه خامنو پلار د گریوان نه اونیولو او وهل ئې شروع کړه. د هغه په خامنو کښې عابد ځوئې په هغه تیرید و چه وئې کتل دهغه پلار یو سړي وهی د اشراق وخت وو ځوئي چپ اوغلې جمات ته لاړو او مونځ

نی شروع کړو.څه وخت پس ئی دویم څوئی راغلو اوپلارئی په دې حالت کښې اولیدلو نوونی وئیل دا سړې ښه نه کوی چه زما پلار وهی دومره خبره کولو سره هغه هم جمات ته لاړو اومونځ ئی شروع کړو څه وخت پس هغه آزاد خیال څوئی راغلو هغه چه کله اوکتل چه پلارئی چادَ ګریوان نه نیولې اووهی ئی نودغه څوئی فوری په هغه سړی باندې حمله اوکړه اوپلارئی راخلاص کړو پلارئی کورته راغلو فیصله ئی اوکړه چه زما صرف هم دغه یو څوئی دې چاچه زه دَدښمن نه راخلاص کړم دا باقی دوه زما خامن نه دی اوزما دَمال نه محروم دی.

بالکل هم دغه نقشه ده کوم خلق چه امر بالمعروف اونهی عن المنکر نه کوی او په عبادت کښې لګیادی.دا ګوری چه دَحضورپاك ګریوان کښې فاسقانو اوفاجرانو لاسونه اچولی دی اودَ حضورپاك سنت او طریقې ختموی بلکه دین ختموی اودوی خاموش ناست دې تماشه کوی.دوی نه به حضورپاك څومره خفه وی دابنکاره خبره ده دَدوی په نسبت چه کوم خلق نهی عن المنکرکوی حضورپاك به دَهغوی نه څومره خوشحال وی داهم ښکاره خبره ده.

## [۵۱۵۳] د خپلې کوتاهۍ الله تعالی ته اقرار کول

۵۱۵۳-() [۱۷] [۱] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«إِنَّ اللَّهَ عَزَّوَجَلَّ يَسْأَلُ الْعَبْدَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، فَيَقُولُ: [۳] مَا لَكَ إِذَا رَأَيْتَ الْمُنْكَرَ فَلَمْ تُنْكِرْهُ؟ [۴] قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: فَيُلَقَّى حُجَّتَهُ، [۵] فَيَقُولُ: يَا رَبِّ! خِفْتُ النَّاسَ وَرَجَوْتُكَ» ". رَوَى الْبَيْهَقِيُّ الْأَحَادِيثَ الثَّلَاثَةَ فِي " شُعَبِ الْإِيمَانِ ".

**ترجمه**: [۱] او حضرت ابوسعید خدري رحمه الله وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمایل. [۲] الله تعالی بزرګ وبرتر به د قیامت په ورځ بنده نه پوښتنه کولو سره وفرمايي، [۳] تاته څه شوي وه. چې کله تا څه خلاف شرع کار ولیدی نو ژبي یا د لاس په ذریعه د هغه د بیخ کنی فریضه دي آنجام نه کړه، [۴] رسول الله ﷺ فرمايي، که الله تعالی د هغه بنده د معاف کولو اراده وفرمايي، نو پوښتنه سره به هغه ته هغه تاویل او دلیل وخودل شي، چې د هغه په ذریعه هغه د هغه فریضي د ترك کولو معذرت وکړي، [۵] نو هغه به عرض وکړو، اې څما پروردګاره! زه د خلقو د ظلم او زیاتی نه ویرېدم، او ستا د طرف نه د عفو او درګذر او مغفرت او بخشش امید می لری، دا دري سره روایتونه بیهقي رحمه الله په شعب الایمان کې نقل کړی دی.

**حل اللغات**: - ① يُلَقَّى: القاء به ورته اوشی، زړه کښې به ورته واچولې شی. ② رَجَوْتُكَ: په تا مې امید وو.

¹) اخرجه ابن ماجه في السنن كتاب الفتن/باب قوله تعالى: {يا أيها الذين آمنوا عليكم أنفسكم} [المائدة: ۱۰۵] (رقم-۴۰۱۷)

**تسهیلات:**

**قوله: فَيُلَقّٰى حُجَّتَهُ:**

**بنده ته د الله تعالی د طرفه د معالی چل خودل**: دا د باب تفعیل څخه د مجهول صیغه ده د غورزولو په معنی کښې دې لکه ﴿وَمَا يُلَقّٰهَآ اِلَّا الَّذِيْنَ صَبَرُوْا﴾ یعنی هغه سړی ته به د حجت دلیل او بچ کیدو تاویل ورکولې شی مطلب دادې چه کله الله تعالی هغه سړی معاف کول غواړی نو هغه ته به د جواب ورکولو تاویل کولو او دلیل پیش کولو طریقه اوښائی نو هغه به وائی اې زما مولا ستاد بندیګانو نه اویریدلم او ستا په وسیع رحمت او مغفرت باندې مې نظر لرلو الله تعالی به هغه معاف کړی څکه چه د خلقو نه ویریدل یو طبعی مجبوری ده بیا دې سړی په صفا صفا الفاظو کښې نیغ په نیغه جواب ورکړو د کوم چه حقیقت سره ژور تعلق دې نو رحمت حق په جوش کښې راغلو څکه چه

رحمت حق بہانہ می جوید، بہانہ می جوید

لعل رحمة ربي حين يقسمها ... تأتي على حسب العصيان في القسم

**[۵۰۲۵] امر بالمعروف او نهی عن المنکر به په قیامت کښې د انسان په شکل کښې راځی**

۵۰۲۵-()[۱۱] [۱]وَعَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲]«وَالَّذِي نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ إِنَّ الْمَعْرُوفَ وَالْمُنْكَرَ خَلِيقَتَانِ، [۳]تُنْصَبَانِ لِلنَّاسِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، [۴]فَأَمَّا الْمَعْرُوفُ فَيُبَشِّرُ أَصْحَابَهُ وَيُوعِدُهُمُ الْخَيْرَ، [۵]وَأَمَّا الْمُنْكَرُ فَيَقُولُ: إِلَيْكُمْ إِلَيْكُمْ [۶]وَمَا يَسْتَطِيعُونَ لَهُ إِلَّا لُزُومًا». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ".

**ترجمه**: [۱] و حضرت ابو موسی اشعري رضي الله عنه وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] په هغه ذات پاك مې دې قسم وي. چې د هغه په قبضه کې د محمد ساه ده، د قیامت په ورځ به مشروع عمل او غیر مشروع عمل د سړو په شکل وصورت کې پیدا شي. [۳] او هغه به هغه خلقو په مخکې ودرول شي. چا چې هغه اعمال په دنیا کې اختیار کړی وي. [۴] نو مشروع د شرعي مطابق عمل به خپلو خلقوته خوشخبري اوروي، او د انجام د خیر وعده به ورسره کوي. [۵] هر چې غیر مشروع عمل دي هغه به خپلو خلقو ته وایي. چې زما نه لرې شئ. زما نه لرې شئ [۶] لیکن هغه خلق به هغه بد عمل نه د جدا کیدو طاقت نه لري بلکي هغوئ پورې به نختي وي (احمد، وبیهقي)

**حل اللغات**: - ① خَلِيقَتَانِ: اي مخلوقتان: دواړه به راپیدا شی ② تُنْصَبَانِ: دواړه به اودرولې شي. رابنکاره به کړې شي. ③ يُوعِدُهُمْ: وعده به کوی د هغوی سره

---

[۱] اخرجه احمد في المسند: ۳۹۱/٤ والبیهقی فی شعب الایمان رقم الحدیث ۱۱۱۸

تسهيلات:

**قوله: إنَّ المَعْرُوفَ وَالمُنْكَرَ خَلِيقَتَانِ، تُنْصَبَانِ لِلنَّاسِ يَوْمَ القِيَامَةِ:**

**په معروف اومنكر كښې دوه احتمالات:** ① امربالمعروف اونهي عن المنكر دواړه به په قبركښې اودَ قيامت په ورځ به دَ سړو په شكل كښې پيدا كيدوسره راشي

② دَانسان ټول نيك اوبد اعمال مرادوي. ملاعلي قاري رحمه الله دَ دواړو طرف ته اشاره كړې ده

**قوله: تُنْصَبَانِ لِلنَّاسِ يَوْمَ القِيَامَةِ:**

**په قبريا قيامت كښې د نيک اوبد عمل متشكل كيدل:** دَ خلقو په مخكښې به ښكاره كړې شي. معروف به دَ ښكلي اوښائسته انسان په شكل كښې وي او منكر به دَ بد او خراب صورت انسان په شكل كښې وي. معروف به دَ ښه انجام زيرې وركوي اودَ خو عواقبو وعده به كوي او بد عمل اليكم اليكم زما نه لرې شه لرې تخته آواز به كوي ليكن خلق به دغه بدعمل پورې اونخلي اولرې كيدى به نه شي لهذا دَ دغه بدو عملونو بد انجام سره به دغه خلق مخامخ كيږي. اودَ ښه عمل والا به جنت الفردوس ته په خوشحالئ خوشحالئ سره ورځي اودَ عيش اوعشرت سره به مزې كوي.

# [۲۶]كِتَابُ الرِّقَاقِ

**دَرقاق بيان**

**خلاصة الباب:**

**فيه ثلاثة وسبعون حديثاً مشتملة على أربع مسائل:**

① الترغيب إلى الأعمال الصالحة والآخرة والمشقة في الدنيا: ۱، ۵، ۶، ۱۳، ۱۴، ۱۵، ۱۸، ۲۰، ۴۱، ۴۲، ۴۵، ۵۳، ۶۳، ۶۴، ۶۵، ۶۶، ۶۷، ۶۸، ۷۰، ۷۱-

② حقيقة الغنى: ۱۶، ۱۷-

③ تذليل الدنيا وفضيلة الزهد: ۲، ۳، ۷، ۸، ۹، ۱۳، ۱۴، ۱۵، ۲۱، ۲۲، ۲۳، ۲۴، ۲۵، ۲۶، ۲۷، ۲۸، ۲۹، ۳۰، ۳۳، ۳۵، ۳۸، ۳۹، ۴۰، ۴۲، ۴۴، ۴۶، ۴۷، ۴۸، ۴۹، ۵۰، ۵۱، ۵۲، ۵۴، ۵۵، ۵۶، ۵۷، ۵۸، ۵۹، ۶۰، ۶۱، ۶۹، ۷۲، ۷۳-

④ فضيلة الكفاف والقناعة: ۱۰، ۱۱، ۱۹، ۲۹، ۳۰، ۳۱، ۳۴، ۳۶، ۳۷، ۴۳، ۴۸، ۵۲، ۶۲-

**قوله: الرِّقَاق:** جمع ده دَدې مفرد رقيق دې. څنګه چه صغار جمع ده او مفرد ئې صغير دې اوكبار جمع ده مفرد ئې كبير دې. رقائق هم جمع ده دَدې مفرد رقيقة دې. دَ دواړو مفهوم هم يو دې يعني دَ زړه نرم كونكې خبرې. دلته دَرقاق نه هغه كلمات مراد دي دَكوم په

اوريدو سره چه دَ سړي زړه نرميږي او زړه دَ دنيا نه بې رغبت شي او دَ آخرت طرف ته راغب شي

دَ رقاق په نوم سره دَ احاديثو په كتابونو كښې اوږده ابواب ملاويږي په دغه ابوابو كښې محدثين هغه احاديث بيانوي په كوم سره چه زړه متاثر كيږي او دَ موم په شان نرميږي صاحب مشكوة هم دَعامو محدثينو اتباع كولو سره دكتاب الرقاق ذكر فرمائيلې دې او په دې كښې ئې دَ فضل الفقراء نه واخله دكتاب الفتن پورې اته ابواب ذكر كړي دي دَ رفاق دعنوان لاندې ئې خوخالص هم دَ رقاق سره متعلق ۱۷۴ احاديث درج كړي دي اوبيا ئې دَ اتو ابوابو مختلف عنواناتو لاندې رقاق حكمت او موعظت باندې مبنى احاديثو يو لويه ذخيره رايوځائې كړې ده. كه يو انسان په سينه كښې دكانړي په ځائې غوښې زړه لري نو هغه به دَدغه احاديثو اوريدو او وئيلو سره اوبه اوبه كيږي او كه چرې داسې نه وي نو بيا به په هغه باندې دَ يو څيز اثر كيدل محال وي. يو شاعر وائي

لاينفع الوعظ قلبا قاسيا أبدا    وهل يلين بقول الواعظ الحجر

يعني سنګ دل انسان ته كله هم نصيحت فائده نه وركوي آيا دَ يو وعظ كونكي په وعظ سره چرته كانړې نرم كيدې شي؟ نه

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [۵۵۵] دوه دَ قدر قابل نعمتونه

۵۵۵ - ( )[۱] [۱] عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«نِعْمَتَانِ مَغْبُونٌ فِيهِمَا كَثِيرٌ مِنَ النَّاسِ: [۳] الصِّحَّةُ وَالْفَرَاغُ»". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابن عباس رضي الله عنه وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل، [۲] دوه نعمتونه دي. چې د هغه په معامله كې ډير خلق په دهوكه او په خساره كې دي. [۳] او هغه دواړه نعمتونه تندرستي او فراغت دي (بخاري)

**حل اللغات:** - ① مَغْبُونٌ: د غَبِنَ يَغْبُنُ دَ باب نَصَرَ يَنْصُرُ نه دې دَنقصان او خساره په معنى كښې دې

**تسهيلات:**

**قوله: نِعْمَتَانِ مَغْبُونٌ فِيهِمَا كَثِيرٌ مِنَ النَّاسِ:**

**د مغبون په مفهوم كښې دوه احتمالات:** ① مغبون دَ باب سمع نه هم راځي چه دَ غلطئ اودهوكه خوړلو په معنى كښې دې دا معنى هم مراد كيدې شي

---

[۱] اخرجه البخاري في كتاب الرقاق/باب: لا عيش إلا عيش الآخرة (رقم-۶۴۱۲) والترمذي في كتاب الزهد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب: الصحة والفراغ نعمتان مغبون فيهما كثير من الناس (رقم-۲۳۰۴) وابن ماجه في كتاب الزهد/باب الحكمة (رقم-۴۱۷۰) واحمد في المسند: ۱/۳۴۴

② مغبون خاص کردَ تجارتی معاملاتو دَ خساره دَ پاره وئیلی شی دا معنی هم مراد کیدې شي

**قوله**: الصِّحَّةُ:

**دمذکوره جملې مطلب**: یعني دا دې چه ډیرزیات خلق داسې دی چه دَ بدنی صحت هیڅ قدر نه کوی اودَدې دواړو نعمتونوباره کښې دهوکه غلطئی او خساره کښې پراته دی دَ بدن دَ صحت په وخت دَ بدن نه جسمانی کار نه اخلی چه دا په عبادت کښې اولګوی

**قوله**. وَالْفَرَاغُ:

**دمذکوره جملې مطلب**: یعنی ډیرزیات خلق داسې دی چې دَ مشاغلواو مصائبونه فارغ وختونوکښې کارنه کوی چه کمال حاصل کړی او اوزګاروخت غنیمت نه ګڼړی چه دا په کارکښې راولی بیا چه کله فراغت ختم شي اوپه دنیاوی مشاغلوکښې راګیرشی نوبیا هغوی ته فارغو وختونو دَ فرصت قدر راشی

لکه چه عاقلانو چې وئیلی دی: "اَلنِّعْمَةُ اِذَا فُقِدَتْ عُرِفَتْ"

یعنی د نعمت قدر هله معلوم شي چې ختم شی. خواوس تیرشوی حالاتو اولمحاتوباندې لاسونو مروړلو (مړلو) څخه سوا نور هیڅ په لاس نه ورځی ځکه چه مناسب موقع باندې هغه نه عبادت اوکړو اونه ئی آخرت جوړکړو او نه ئی دَ دنیا کاراوکړو نواوس به دَخپیمانتیانه څه حاصلیږی.

**نوټ**: د وخت د قدر په باره کښې زما احقرشاه فیصل کتاب «د وخت قدر او زمونږ غفلت» مطالعه کړئ

**په جنت کښې دوخت په ضائع کیدو د جنتیانوافسوس**: په یوحدیث کښې حضورپاك داسې ارشاد فرمائیلې دي چه جنتیان به په جنت کښې په یوڅیز باندې افسوس اوارمان نه کوی مګر صرف په هغه لمحاتو باندې به افسوس کوی کوم چه په دنیاکښې دَ الله تعالی دَ یاد نه بغیرتیرشوی وی

**[۵۱۵۶] دَدنیا اوآخرت مثال**

۵۱۵۶-(۱) [۲] ①وَعَنِ الْمُسْتَوْرِدِ بْنِ شَدَّادٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ: ②" «وَاللّٰهِ مَا الدُّنْيَا فِي الْآخِرَةِ إِلَّا مِثْلُ مَا ③يَجْعَلُ أَحَدُكُمْ أُصْبُعَهُ فِي الْيَمِّ فَلْيَنْظُرْ بِمَا يَرْجِعُ»؟". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: ①او حضرت مستورد ابن شداد ﷛ وایي، ما د رسول الله ﷺ نه واوریدل ②قسم په الله! د آخرت د زماني او هلته د نعمتونو په مقابله کې د دنیا زمانه او د دې د

---

[1]) اخرجه مسلم فی کتاب الجنة وصفة نعیمها وأهلها/باب فناء الدنیا وبیان الحشر یوم القیامة (رقم-)۵۵ - (۲۸۵۸) والترمذی فی کتاب الزهد عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب منه (رقم-۲۳۲۳) وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب مثل الدنیا (رقم-۴۱۰۸) واحمد فی المسند: ۲۲۹/۴

نعمتونو مثال داسې دی ③لکه څرنګه چې په تاسو کې يو سړی خپله ګوته سمندر کې ډوبه کړي او بيا وګوري، چې د هغه ګوته څه شی اخستو سره واپس راغلي ده يعنی خومره اوبه پرنختي دي (مسلم)

**حل اللغات:-** ①اَلْيَمّ: درياب، سمندر

**تسهيلات:**

**د بعضې مشکلو جملو وضاحت:**

①وَاللّٰهِ: دلته قسم دَ مبالغې په توګه راغلې دې نورئی هيڅ مقصد نشته دې

②مَا الدُّنْيَا فِي الْاٰخِرَةِ: کښې لفظ مادَنفی په معنی کښې دې

③ فِي الْاٰخِرَةِ: دې کښې فی لفظ دَمقابلې او بدليت په معنی کښې دې

**قوله: مِثْلُ مَا يَجْعَلُ أَحَدُكُمْ أُصْبُعَهُ فِي الْيَمِّ:**

**د دنيا اوآخرت د نعمتونو موازنه:** دَ حديث مطلب دادې چه دَدنيانعمتونه او سازو سامان دَآخرت دَهميشه نعمتونو په مقابله کښې داسې دی دې لکه چه يو سړې دَخپل لاس دَټولو نه وړه ګوته په درياب او سمندرکښې ورډوبه کړی اوبيا اوګوری چه دَسمندردَ ډيرو اوبو په مقابله کښې دَهغه ګوتې پورې خومره اوبه لګيدلې دی. دغه شان دَدنيا کمتر او حقيرنعمتونه دی چه ختميدونکی دی بلکه ډير زر ختميدونکی دی. دَآخرت دَ هميشه او زيات مقداردَنعمتونو مخې ته دَهغې څه حيثيت دې؟ دا مثال هم دَ پوهه کولودَپاره دې ګنی دَ عارضی اوفانی دنيا حقيقت دَ هميشه آخرت په مخکښې هيڅ هم نه دې لهذا انسان له پکاردی چه هغه دَ دنيا فانی نعمتونو باندې دآخرت دائمی نعمتونه قربان نه کړی بلکه هروخت دې داسوچ کوی چه دنيا دآخرت پټې دې دلته فصل کرل اوهلته په آخرت کښې ميوه خورل دی

**قوله: فَلْيَنْظُرْ بِمَا يَرْجِعُ:**

**د ينظر په ضمير کښې د نسخو اختلاف:** دَدې ضميردَ إصبع طرف ته راګرځی او دې ته مذکراومؤنث دواړه ضميرونه راګرځولې کيدې شی په يوه نسخه کښې "ترجع" مؤنث سره دې هغه نسخه زياته بهترده

**[۵۱۵۷] د الله په نزد د دنيا هيڅ حيثيت نشته**

۵۱۵۷-(۱)[۳] ①وَعَنْ جَابِرٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-②أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-«مَرَّ بِجَدْيٍ أَسَكَّ مَيِّتٍ ③قَالَ: "أَيُّكُمْ يُحِبُّ أَنَّ هٰذَا لَهُ بِدِرْهَمٍ؟ ④فَقَالُوا: مَا نُحِبُّ أَنَّهُ لَنَا بِشَيْءٍ! ⑤قَالَ: فَوَاللّٰهِ لَلدُّنْيَا أَهْوَنُ عَلَى اللّٰهِ

[۱] اخرجه مسلم فی کتاب الزهد والرقائق(رقم-۲ (۲۹۵۷) والترمذی فی کتاب الزهد عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/ باب ما جاء فی هوان الدنيا علی الله عز وجل (رقم-۲۳۲۱) وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب مثل الدنيا (رقم-٤١١١)

مِنْ هٰذَا عَلَيْكُمْ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** : [۱] او حضرت جابر ﷺ نه روایت دی، [۲] یو ځل رسول الله ﷺ د یوي بزي (چیلۍ) یو مړ بچی باندې تیر شو، چې د هغه غوږونه ډیر کوشنی وو، یا کټ شوی وو، یا دهغه غوږونه نه وه، [۳] نو حضور ﷺ هغه لیدو سره صحابه ﷺ ته وفرمایل، په تاسو کې داسې څوك شته، چې د امړ بچي د یودرهم په عوض اخستل خوښ کی، [۴] صحابه ﷺ عرض وکړو، مونږ خو دا د هیڅ شي په عوض اخستل نه شو خوښولی، [۵] حضور ﷺ ورته وفرمایل، دا دنیا خپلو ټولو لذتونو او آسائشونو سره د الله په نز د دې نه زیاته بې وقعته او کمتره ده، څرنګه چې ستاسو په نظر کې دا مړ بچی ذلیل او حقیر دی (مسلم)

**حل اللغات** : - ① جَدْيٍ: دَ چلیئ وړوکی بچې، ② أَسَكَّ: دَ چلیئ بچې چه غوږونه ئې نه وی یا واړه وی. ③ أَهْوَنُ: سپکه، بې عزته او بې وقعته،

**تسهیلات:**

**قوله: مَرَّ بِجَدْيٍ أَسَكَّ مَيِّتٍ:**

**د اسک لغوی معنی: أَسَكَّ**: کاف باندې شد دې دَ چیلۍ هغه بچی ته وائی دکوم غوږونه چه بالکل پرې شوې وی یا بالکل نه وی یا واړه واړه وی. دادَ هغې دَ بې حقیقت او ذلت اوحقارت طرف ته اشاره ده خصوصًا چه کله دغه بچې مړشوې مردارهم وی

**قوله: فَوَاللّٰهِ لَلدُّنْيَا أَهْوَنُ عَلَى اللّٰهِ مِنْ هٰذَا عَلَيْكُمْ:**

**د دنیا د حقارت مثال**: رسول الله ﷺ په دې مثال سره دَ دنیا دَ حقارت بې ثباتئی بې حیثیت او بې حقیقت کیدو طرف ته انسانان متوجه کړی دی چه دَ ژوند مقصود آخرت دې داهیرول نه دی پکار اودَ دنیا دَ محبت نه اجتناب کول پکاردی ځکه چه په یو حدیث کښې دی «حب الدنیا رأس کل خطیئة» او یو قول دې چه «ترك الدنیا رأس کل عبادة» دَدې وجه داده چه دَدنیا په محبت کښې دَ راګیرسړی هرکاردَ خودغرضئی او لالچ په بنیاد باندې وی. اهل الله او اهل معرفت وئیلی دی چه دکوم سړی په زړه کښې دَ دنیا محبت کیناستو نودَ ټولې دنیا اولیاء الله اومرشدین هغه په نیغه لار نه شی راوستې اوکوم سړی چه دنیا دَ زړه نه اوویستله نودَ ټولې دنیا مفسدان هغه ګمراه کولې نه شی

**[۵۱۵۸] دنیا دَ مؤمن دَپاره قیدخانه ده**

۵۱۵۸-(۱) [۳] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «الدُّنْيَا

[1] اخرجه مسلم فی کتاب الزهد والرقائق(رقم-۱ - (۲۹۵۶) والترمذی فی کتاب الزهد عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء أن الدنیا سجن المؤمن وجنة الکافر (رقم-۲۳۲۴) وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب مثل الدنیا (رقم-۴۱۱۳)واحمد فی المسند: ۳۲۳/۲

سِجْنُ الْمُؤْمِنِ وَجَنَّةُ الْكَافِرِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت ابو هريره ﷛ وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل، [۲] دنيا د مؤمن د پاره بندي خانه ده، او د كافر د پاره جنت دى (مسلم)

**حل اللغات**: - ① سِجْنٌ: جيل، قيدخانه،

**تسهيلات**:

**قوله**: الدُّنْيَا سِجْنُ الْمُؤْمِنِ:

**دمذكوره جملي په مفهوم كښې اقوال**:

① دنيا دَمؤمن دَپاره قيد خانه ده ځكه چه هره يوه لمحه مؤمن په دې دنيا كښې په احتياط سره تيره وى.قدم په قدم دَ هغه دَپاره پابندئى دى او هغه دَ ډيرې پابندئى ژوند تيره وى لكه چه دا دنيا دَهغه دَپاره قيدخانه ده او هغه په دې كښې دَ قيدى په شان ژوند تيره وى دَدې برعكس كافر په دې دنيا كښې دَ هيڅ پابندئى قائل نه دې او نه پابند دې دَدنيا هرجائز او ناجائز خوند نه مزې اخلى

ملاعلى قارى ﷬ ليكلى دى چه دا مفهوم ډير واضح دې او دَ حديث مطابق دې دَدې تائيد دَمشهور بزرگ فضيل بن عياض ﷬ دَ قول نه هم كيږى هغوى فرمائى "من ترك لذات الدنيا وشهواتها فهو في سجن فأما الذي لا يترك لذاتها وتمتعاتها فأي سجن عليه؟".

② دنيا دَمؤمن دَپاره دَ قيدخانې په شان ده مطلب دادې چه دَمؤمن دَپاره الله تعالى په آخرت كښې كوم عظيم نعمتونه او لوئى ثوابونه او اجرونه تيار كړى دى دَهغې په مقابله كښې دَ مؤمن دَپاره دَ دنيا ژوند دَ قيدخانې په شان دې سره دَدې چه هغه په دنيا كښې د آرام ژوند تيره وى دغه شان دكافر دَپاره په آخرت كښې چه كوم قسم قسم عذابونه تيار كړې شوى دى دَهغې په مقابله كښې دَ كافر دَپاره دَدنيا ژوند داسې دې لكه چه هغه په جنت كې او سيږى سره دَدې چه هغه ته دلته تكليف هم وى او په مصيبت كښې پروت وى

**دحسن رضى الله عنه او يهودى واقعه** (هم دَدې حقيقت په رنړا كښې يو ځل يو غريب يهودى حضرت حسن ﷛ ته اووئيل چه ستا دَ نيكه دا قول چه دنيا دَمؤمن دَپاره قيدخانه ده او دَ كافر دَپاره جنت دې زما او ستا په حالت باندې څنګه صادق راتلې شى ځكه چه ته په اس باندې سورلى كوې او دَ عيش عشرت ژوند تيره وې او زه دَ مصائبو سختو او تكليفونو او دَ بيمارو نه ډك ژوند تيروم؟

دَدې په جواب كښې حضرت حسن ﷛ دَ پورتنى حديث هم دغه مفهوم بيان كړو چه دَ آخرت دَ مصيبتونو په مقابله كښې تاسو دلته په دنيا كښې په جنت كښې ئى

## [۵۱۵۹] مسلمان ته په ښه کارپانديدنيا اوآخرت دواړو کې بدله ملاويږي

۵۱۵۹-()[۵] ①وَعَنْ أَنَسٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: (②«إِنَّ اللّٰهَ لَا يَظْلِمُ مُؤْمِنًا حَسَنَةً يُعْطَى بِهَا فِي الدُّنْيَا وَيُجْزَى بِهَا فِي الآخِرَةِ، ③وَأَمَّا الْكَافِرُ فَيُطْعَمُ بِحَسَنَاتِ مَا عَمِلَ بِهَا لِلّٰهِ فِي الدُّنْيَا، ④حَتَّى إِذَا أَفْضَى إِلَى الآخِرَةِ لَمْ يَكُنْ لَهُ حَسَنَةٌ يُجْزَى بِهَا») رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه :** ①او حضرت انس ﷺ وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل، ②الله ﷻ د مؤمن د نيکي اجر نه ضائع کوي، چې هغه د دې نيکي په سبب هغه ته په دنيا کې هم خير ښيګڼي ورکول کيږي، ③او په آخرت کې به هم هغه ته اجر او ثواب ورکول کېږي او کافر د الله د خوشنودي د پاره چې کوم نيک کار کوي هغه باندې د دغه نيکيو بدله کې خوراك څكاك ورکول کيږي (يعني هغه د هغه نيك كارونو په وجه چې د كوم خير ښيګڼي مستحق وي. هغه د نعمتونو او راحتونو په صورت کې دي دنيا کې هغه ته ورکول کيږي، ④تردې چې هغه آخرت ته ورسيږي نو د هغه عمل نامه کې هيڅ داسې نيکي نه وي چې د هغه په وجه هغه ته هلته اجر او ثواب ورکول شي. (مسلم)

**حل اللغات :-** ① أَفْضَى : اورسيږي،

**تسهيلات:**

**قوله : إِنَّ اللّٰهَ لَا يَظْلِمُ مُؤْمِنًا:**

**دالله تعالى چا سره ظلم نه کول :** يعنى الله تعالى به دَ يو مسلمان دَنيکئى ثواب او اجر نه ضائع کوى او دَهغه دَنيکئى بدله به صرف دنيا پورې محدود نه ساتى بلکه سه دنيا کښې به دَهغې اجر ملاويږى او په آخرت کښې به دَهغې ثواب ملاويږى

**مسلمان ته د نيک عمل بدله په دنيا او آخرت کښې ملاويدل :** الله تعالى هر يو انسان ته دَهغه په نيکئى او ښه کار باندې بدله ورکوى ليکن دَآخرت دَ اجر او ثواب دَپاره دَ ايمان او توحيد صحيح عقيده موجود کيدل ضرورى دى. کله يو مؤمن څه نيک کار کوى نوعقيده صحيح کيدودَ وجې نه هغه ته دَ دغه نيکئى بدله په دنيا کښې هم ملاويږى او په آخرت کښې هم ملاويږى. په دنيا کښې داسې چه الله تعالى دَهغه په جان مال کښې برکت اچوى دَهغه جان او مال دَ ظاهرى او باطنى آفاتو او بلياتو نه محفوظ ساتى او هغه ته په دنيا کښې دَ سکون او آرام ژوند ورکوى او دَ آخرت بدله داسې ورکوى چه کله دَمرګ نه پس مؤمن هلته لاړشى نو هغه ته به دَ هغه په دغه نيکئى باندې الله تعالى په خپل فضل او کرم سره جنت او دَ جنت ټول نعمتونه ورکوى

---

[1]) اخرجه مسلم فى كتاب صفة القيامة والجنة والنار/باب جزاء المؤمن بحسناته فى الدنيا والآخرة وتعجيل حسنات الكافر فى الدنيا (رقم-۵۶ - (۲۸۰۸) واحمد فى المسند:۱۲۳/۳

**كافر ته د ښه عمل بدله په دنياکښې ملاويدل:** دَدې برعکس که چرته يو کافر نيک کار کوی مثلاً خدمت خلق کښې لګيا وی فلاحی اورفاهی کارونو کښې امداد کوی دَ خلقو د اصلاح کوشش کوی دعدل او انصاف قائمولو کوشش کوی نو چونکه دکافر عقيده او ايمان نه وی په دې وجه هغه دَ آخرت دَ بدلې نه محروم دې او دَ هغه په هريو ښه کار باندې الله تعالى په دنياکښې بدله ورکوی مثلاً بدنی صحت ورکوی فراخ رزق ورکوی حکومت ورکوی اودَدنيا دَعارضی نعمتونو نه هغه ته دَ مزې اخستو موقع ورکوی او کله چه مړشی نو په آخرت کښې هغه ته بغيردَ سزا نه اودَعذاب نه نور هيڅ هم نه ملاويږی پاتې شو هغه مؤمن چه په دنياکښې ګناه کوی نو کله کله الله تعالى هغه نه هم په دنياکښې دَهغې بدله دَ سزا په توګه ورکوی اودَ آخرت دَپاره ئې پاکوی

**[۵۱۳۰] جنت اودوزخ په کومو کومو څيزونو کښې پټ دې؟**

۵۱۳۰-()[۲] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ-رَضِيَ اللهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «حُجِبَتِ النَّارُ بِالشَّهَوَاتِ، [۳] وَحُجِبَتِ الْجَنَّةُ بِالْمَكَارِهِ» "مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. إِلَّا أَنَّ عِنْدَ مُسْلِمٍ: (حُفَّتْ) بَدَلَ (حُجِبَتْ).

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره ﷺ وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل، [۲] د دوزخ اور په شهوتونو يعني خواهشاتو او لذاتو کې پټ شوی دی، [۳] او جنت سختيو او مشقتونو کې پټ شوی دی، دا روايت بخاري رحمه الله او مسلم نقل کړی دی، ليکن د مسلم روايت کې د حجبت (پټ شوی) په ځای يې حُفَّتْ (يعني ګير شوی) لفظ دی.

**حل اللغات:** - ① حُجِبَتِ: دَ حجاب نه دې دَ پردې او پټولو په معنی کښې دې ② الْمَكَارِهِ: تکليفونه. مشقتونه.

**تسهيلات:**

**قوله:** حُجِبَتِ النَّارُ بِالشَّهَوَاتِ:

**په ګناهونو کښې لذت:** په يوه نسخه کښې دَحفت لفظ دې هغه دَ پټولو په معنی کښې دې يعنی لکه څنګه چې دَ جنت او دوزخ په حقيقت کښې ډير لوئی فرق دې دغې ته دَ رسيدو په اسبابو کښې هم لوئی فرق دې ځکه چه دَ هريو مخې ته پردې دی دغه پردو باندې به تيريدل وی نو دوزخ چه په کومو پردو کښې پټ کړې شوې دې هغه دَ انسان خواهشات دی کوم ته چه په نورو الفاظو کښې آزاد ژوند وائی کله چه انسان دَ حلال او حرام تميز ختم کړی اودَ نفس او خواهشاتو مطابق آزاد ژوند تيره وی زنا شرابو او کبابو

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب الرقاق/باب: حجبت النار بالشهوات (رقم-۶۴۸۷) ومسلم فی کتاب الجنة وصفة نعيمها وأهلها (رقم-۱ - (۲۸۲۲) والترمذی فی کتاب صفة الجنة عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء حفت الجنة بالمکاره وحفت النار بالشهوات (رقم-۲۵۵۹) والنسائی فی کتاب الأيمان والنذور/باب الحلف بعزة الله تعالى (رقم-۳۷۶۳) واحمد فی المسند:۲/۳۸۰

کښې لګېدلې وی نه عبادت کوی او نه دَ څه ګناه نه ځان ساتی نولکه چه د دوزخ په پیرو او ښائسته پردو کښې سفر کوی څنګه چه دا پردې ختمې شی مخامخ دوزخ او دَ هغې اور دې په هغې کښې دا انسان راګیرېږی لکه چه په دغه پردو کښې دَ دوزخ اور پټ کړې شوی دی

**قوله: وَحُجِبَتِ الْجَنَّةُ بِالْمَكَارِهِ:**

**په طاعاتو کښې زحمت**: دغه شان دَ جنت معامله ده چه هغه په امور تکلیفیه شرعیه کښې پټ کړې شوې دې په قدم قدم باندې شرعی پابندئی دی حلال حرام او جائز او ناجائز حدبندئی عبادتونه او اوامرشرعیه مشقتونه برداشت کول دی او دَ نواهی او خواهشاتو نه ځان ساتې په نفس باندې داځیزونه سخت دی په یخو هواګانو کښې یخو اوبو سره سحروختی دَمونځ دَپاره اودس جوړول څومره ګران دی دَمشقتونو دَدې پردو شاته جنت دې څنګه چه دا پردې ختمې شی مخامخ جنت ښکاری.

**[٥٠٣١] دَ مال او جاه لالچ کولو مذمت**

٥٠٣١-(۱) [٧] ۱ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " ۲ «تَعِسَ عَبْدُ الدِّينَارِ وَعَبْدُ الدِّرْهَمِ وَعَبْدُ الْخَمِيصَةِ، ۳ إِنْ أُعْطِيَ رَضِيَ، ۴ وَإِنْ لَمْ يُعْطَ سَخِطَ، ۵ تَعِسَ وَانْتَكَسَ، ٦ وَإِذَا شِيكَ فَلَا انْتُقِشَ. ٧ طُوبَى لِعَبْدٍ آخِذٍ بِعِنَانِ فَرَسِهِ فِي سَبِيلِ اللهِ، ٨ أَشْعَثَ رَأْسُهُ، مُغْبَرَّةٍ قَدَمَاهُ، ٩ إِنْ كَانَ فِي الْحِرَاسَةِ كَانَ فِي الْحِرَاسَةِ، ١٠ وَإِنْ كَانَ فِي السَّاقَةِ كَانَ فِي السَّاقَةِ، ١١ إِنِ اسْتَأْذَنَ لَمْ يُؤْذَنْ لَهُ، ١٢ وَإِنْ شَفَعَ لَمْ يُشَفَّعْ»). رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه**: ۱ او حضرت ابوهریره رضی الله عنه وایي، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل. ۲ هلاك دې شی هغه سړی چې د دینار غلام وي، د درهم غلام وي، او د څادر غلام وي. [یعنی هغه سړی د پاره اخروي هلاکت او تباهي مقدر ده، چې هغه مال و دولت حاصلول د خپل ژوند مقصد جوړ کړی. دنیاوي عیش او تمول ته د معبود او جبار رضا او خوشنودي باندې ترجیح ورکوي. او د طلب مال او حصول زرپه لار کې ناجائز او حرام وسایل او ذرائع اختیارولو نه نه منع کېږي، او بیا څه چې ګټي هغه د بخل د مخه جمع کوي. چې نه د هغه مال حقوقو اداکوي او نه د الله په لار کي. او د الله د خوشنودي د پاره هغه خرچ کوي. او د هغه سره د خپل شان وشوکت او لويي خودلو د پاره ښائسته لباسونه اغوندي او په ناروا طور سره زیب وزینت کې مبتلا وي. او د داسې سړی علامه داده. چې] ۳ هرکله هغه ته مال و دولت او لباس فاخره حاصل شي. نو خوشحاله او راضي وي. ۴ او که حاصل نشي نو ناراضه وي. اګویا د هغه د طبیعت میلان همیشه د خلقو د مال وزر طرف ته وي. او هروقت دې په دې حرص کې مبتلا وي چې فلانی سړي نه فلانی شی حاصل

---

(۱) اخرجه البخاري في كتاب الجهاد والسير/باب الحراسة في الغزو في سبيل الله (رقم-۲۸۸۷) وابن ماجه في كتاب الزهد/باب في المكثرين (رقم-٤١٣٥)

شي. که دخلقو د طرف نه د هغه د حرص او طمع تکمیل نه کیږي، نو هغوئ نه ناراضه وي، او داهم ممکنه ده چې د دې ورکولو یا نه ورکولو تعلق الله ﷻ سره وي. یعنی که الله ﷻ د هغه د خواهش مطابق هغه ته مال ودولت او د عیش سامان عطا کوي. نو هغه نه خوشحاله وی او که الله ﷻ د هغه خواهش او حرص نه پوره کوي نو هغه د الله ﷻ نه خپله ناراضګي ظاهروي، داسې سړي ته د دې مذموم خصلت په وجه ګویا حضور ﷺ مکرر بد دعا کړي ده ا ،٥ چې هلاك دی شی اوسرکوزې دې شی ٦ او کله چې د دې سړي پښه کې ازغی ننوځي. نو څوك دې ورنه ونه باسي (ګویا دتنبیه اوتهدید په طور دداسې سړي په حق کې مسلمانان آګاه کول مقصوددي یعنی که داسې مذموم خصلت والاپه څه آفت یاپریشانۍ کې مبتلاسي نو هیڅوك دې دهغه مدد اواعانت نه کوي دنیا دارو اودحرص وطمع دغلام خلقو ددې بدحالئ ذکر کولو نه پس حضور ﷺ وغوښتل چې دهغوی مقابله کې دهغه طالبان دین، اوددنیا پریخودنکو هم ذکر وفرمایي کوم چې آخرت حاصلولو اوددین سربلند کولو دپاره محنت اومشقت اوجهاد په ذریعه دالله په لار کې مشغول اوسیږي دنیانه بې نیازي کوي ظاهري زینت اوارائش نه لري اوسیږي اوداهل دنیا طور طریقونه خپل ځان جدا ساتئ اوپه دې وجه ظاهر پرستوپه نظر کې ډیر کمتر اوحقیر معلومیږي نو ا ٧ حضور ﷺ وفرمایل سعادت اوخوش بختي ده هغه سړي دپاره چې دالله په لار کې جهاد کولو دپاره دخپل آس واګي نیولي ولاړ وي ٨ دهغه دسر ویښته بِیر اوقدم غبار آلود وي ٩ که هغه دلښکر (دمخکې صفونو) په نګهباني مامور کول کیږي نوپوره طور سره نګهباني کوي (اوهیڅ وخت دخپلې ذمه واري دسرته رسولو نه نه غافل کیږي اونه اوده کیږي بلکې هروقت پوره چستي سره نګهباني کوي) ١٠ اوکه هغه دلښکر وروسته ساتل کیږي نوپه لښکر پسې وي (یعنی هغه دامیر لښکر اودمسلمانانو پوره تابعداري کوي چې هغه کوم ځای ماموره کول کیږي هلته خپل فرض سرته رسوي اوهغه ته چې څه ونیل کیږي په هغه پوره طور عمل کوي تکبر ضد اواصرار نه کوي اودالله په نزد دخپلې دې مرتبې اوسعادت باوجود خپله معاشره کې دومره سادګی جاه ومال اوشان وشوکت نه دومره بې نیازي دومره تواضع اوانکساري سره اوسیږي چې دنیا دار هغه ته څه وقعت اواهمیت نه ورکوي تردې) ١١ که هغه دخلقو محفلونو کې شریکیدل غواړي نوهغه ته دشرکت اجازت نه ورکوي ١٢ اوکه دچاسفارش کوي نودهغه سفارش نه قبلیږي. (بخاري).

**حل اللغات:-** ① تَعِسَ: بد دعا ده، یعنی ناکام او نامرادیا هلاک دې شی، ② الْخَمِيصَةِ: نقش والا تور څادر اوکپړې ته خمیصه وائی. ③ سَخِطَ: خفه کیږي، ④ وَانْتَكَسَ: انتکاس سرښکته کولو په معنی کښې دې ذلیل کیدل مراد دی. ⑤ شِيكَ: شوکة ازغی ته وائی. ⑥ انْتُقِشَ: انتقاش په خپه کښې خښ

شوې ازغي راويستلو د پاره تلاش او لټون په معنى كښې دې ⑦عَنَاب: واګې. ⑧أَنْعَثُ: ګډوډ ويښتو والا، ببر سرې. ⑨الْحِرَاسَةِ: چوكيداري. ⑩السَّاقَةِ: د لښكر آخرى حصې ته ساقه وائى

**تسهيلات:**

**قوله تَعِسَ عَبْدُ الدِّينَارِ وَعَبْدُ الدِّرْهَمِ وَعَبْدُ الْخَمِيصَةِ:**

**د مذكوره خيزونو د غلامۍ مطلب:** په حديث شريف كښې راغلى دى چه د دينار، درهم او خميصه غلام هلاك شونو د دې مطلب دا شو چه سړې د دې څيزونو حاصلولو او طلب د پاره هروخت په كوشش كښې وى، الله تعالى او د هغه احكامات هيركړى او د هغه ټول كوشش هم د مال زياتى كښې تيرشى نو لكه چه هغه د مال، دينار او درهم غلام دې اوهم د دې څيزونو په حاصلولو كښې داسې مصروف دې لكه چه هغه بنده او دا څيزونه د ده رب دى او د دوارو په مينځ كښې د آقا او غلام تعلق دې.(۱)

يا دلته چه دا په حديث كښې د دينار، درهم، خميصه او قطيفه ذكر راغلې دې نو د دې څيزونو تخصيص مراد نه دې بلكه مطلقاً مال مراد دې.

**قوله إِنْ أُعْطِيَ رَضِيَ وَإِنْ لَمْ يُعْطَ سَخِطَ،**

**د مذكوره جملې مطلب:** كه هغه له وركړيشى نو راضى كيږى او كه ورنه كړيشى نو خفه كيږى.مطلب دا چه د حقيقى خالق د طرف نه داسې سړى ته انعام وركړيشى. هغه ته بنه مال دولت وركړيشى نو راضى او خوشحاله اوسيږى او كه هم د دغه خالق د طرف نه ورته كله ناكله د ده په رزق كښې تنګى پيدا كړيشى نو د خپل خالق نه ناراض كيږى.

**په مذكوره كس د عبد د اطلاق صحت:** د داسې سړى متعلق دا وينا كول چه د دينار او درهم غلام دې.بالكل صحيح او درست ده.اوپه داسې صورت كښې د داسې سړى د پاره د هلاكت دعا كول هم ضرورى دى ځكه چه هغه په خپل اعمالو د فانى دنيا حصول موقوف اوساتل او د آخرت د هميشه پاتې كيدونكى ژوند د پاره ئې د نعمتونو حاصلولو كوشش پريخودو او د هغې د پاره ئې عمل كول پريخودل.(۲)

**د الله تعالى خفه كيله او زمونږ اعمال،** كه غورسره اوكتې شى نو زمونږ په زمانه كښې هم د داسې خلقو كمې نشته چه د الله تبارك وتعالى د طرف نه لږغوندې تكليف او مشقت باندې سخت غصه كيږى، تقدير ته خيرې كوى نو د كافرانو نه خو ګيله كول بې ځايه دى، زمونږ د اكثرو مسلمانانو دا حال دې، اوبه دې كښې هم زمونږ خپل قصور دې. اعمال داسې دى چه په كتلو ورته شرم راځى، اوبيا د الله تعالى د نصرت او د هغه د طرف نه د رزق د زياتوالى هم اميدواريو.فوالى الله المشتكى.

---

۱) (شرح ابن بطال (ج۵ص۸۳)-

۲) (شرح ابن بطال (ج۵ص۸۳) وعمدة القارى(ج۴ص۱۷۲)-

**قوله: تَعِسَ وَانْتَكَسَ**،

**دلالچی انسان دپاره خیرې:** په دې جمله کښې دَ داسې سړی دَ پاره خیرې دی چه دَ مال او دولت غلام جوړشی او هم دَ هغې شی او خپل خالق او مالك ئې هیرکړو نوداسې سړې هلاك او برباد دې.

**قوله: وَإِذَاشِيكَ فَلَاانْتُقِشَ:**

**د انتقاش په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① بیا دلته نبی اکرم ﷺ دَ تاکید په توګه دَ هغه سړی دَپاره دا جمله هم دَ خیرو په توګه ارشاد اوفرمائیله چه که هغه کښې چرته ازغې ځښ شی نو هغه ته په نوسی (دَ ازغی دَ راویستلو آله) باندې دَ راویستلو توفیق دې نه وی. چه هغه دَ دینارونو او درهمونو دَ طلب او سعی نه منع شی.(۱)

② کله انتقاش دَ استعارې په توګه دَ توبې دَ پاره هم استعمالیږی، په دې صورت کښې به دَ مذکوره جملې مطلب دا وی چه داسې سړی ته دې دَ توبې توفیق نه وی.(۲)

**قوله: طُوبَى لِعَبْدٍ آخِذٍ بِعِنَانِ فَرَسِهِ فِي سَبِيلِ اللهِ،**

**د طوبی په مصداق کښې دوه اقوال:** ① دَ طوبی څخه مراد جنت دې

② دا دَ جنت دَ یوې ونې نوم دې

**قوله: مُغْبَرَّةٌ قَدَمَاهُ:**

**د راحت خیال نه ساتل:** یعنی دَ چا خپې چه دَدوړو وی مطلب دا چه مکمل محنت اومشقت سره دَ الله تعالی په لارکښې جهاد کوی دَعیش او آرام هیڅ نوم او نښه نه غواړی ورك ژوند تیره وی دَ امیر دَ اطاعت پابند دې.چرته چه حکم کیږی هم هلته وردانګی لکه چه هغه دَ الله تعالی په لار کښې یومست درویش دې دَ رنګ نسل زمکې اووطن پابند نه دې

**قوله: إِنْ كَانَ فِي الْحِرَاسَةِ......إِنْ كَانَ فِي السَّاقَةِ:**

**تقدیری عبارت:** دا ځاینونه دَ داسې مواضعو نه دی چه چرته شرط او جزاء متحد دی لیکن معنی دَ هریو دَ بل نه مختلف ده او تقدیر عبارت داسې دې...إن كان المهم في الحراسة كان فيها، وإن كان المهم في الساقة كان فيها،،(۳) یعنی که دَ لښکر څوکې او پهره ورکولو دَ وخت تقاضا او مهم وی نو هم په هغې کښې وی او که مهم او ضروری دَ لښکر په آخری حصه کښې موجودګی وی نو هم هلته وی.

۱) (حواله بالا واعلام الحديث للخطابي (ج۲ص۱۳۸۸) وتاج العروس (٤ص۳۵۹) مادة نقش.
۲) (مصباح اللغات (۹۰۲)مادة نقش-
۳) (حواله بالا-

**دمذکوره جملې په مطلب کښې اقوال:** ①علامه عینی فرمائی چه مطلب دا دې چه هغه سړی ته دَ کوم کار حکم ورکولې شی هغه پوره کوی او چه کوم ځایْ دې هم اودرولو دَ خپل ځایْ نه نه خوزیږی کلك ولاړ وی.که هغه ته دَ مقدمة الجیش حفاظت ورکړیشی نو هم هلته به وی او که دَ لښکر دَ روستونئی حصې دَ خیال ساتلو ورته اووئیلې شی نو دَ هغې نه هم انکار نه کوی.(۱)

② علامه ابن جوزی رحمه الله فرمائی چه مطلب دا دې چه هغه دَ مشهورتیانه بچ کیږی.دَ رفعت او اوچتوالی غوښتونکې نه وی، خپل کار سره کار لری، نولکه چه دَ نبی اکرم ﷺ مقصد دا دې که هغه په څوکئی کښې وی نو په هغې کښې مشغول اوسی او که دَ لښکر په روستونۍ حصه کښې هغه اولګولې شی نو هم هلته وی یعنی په هر حال کښې خوشحاله وی او چه کومه ذمه واری هم هغه ته حواله کړیشی هغه پوره کوی.(۲)

**دَ مقدمة الجیش او مؤخرالجیش دَ تخصیص بالذکر وجه:** په حدیث کښې دَ شارحینو مطابق حراست نه مراد مقدمة الجیش یعنی دَ لښکر دَ وړاندینئی حصې څوکئی ده. او دَ ساقه نه مراد دَ لښکر آخری حصه ده.(۳)

نودلته صرف دَ لښکر په دوو حصو باندې اکتفاء شویده او دا دواړه ئې په خاص توګه ذکر کړې نودَ دې تخصیص وجه علامه طیبی رحمه الله او علامه عینی رحمه الله وغیره دا ذکر فرمائیلې دی چه دَ دې دواړو حصو په ساتنه کښې مشقت او تکلیف ډیر دې، اول خو هغه وخت وی چه کله مسلمان دَ میدان جنګ نه اوخی نو ښکاره خبره ده چه هم په دې وختونوکښې لښکر ته ډیره خطره وی.(۴)

**قوله:** إِنِ اسْتَأْذَنَ لَمْ يُؤْذَنْ لَهُ وَإِنْ شَفَعَ لَمْ يُشَفَّعْ

**د مذکوره جملې مقصد:** په دې جمله کښې دې خبرې طرف ته اشاره ده چه دا سړې دَ دنیا او دَ دنیا دَ خلقو طرف ته څه التفات او توجه نه ورکوی، هغه خپل نفس بالکل فنا کړې دې نه دَ هغه دَمال طلب دې اونه دَ خلقو دَ نزدیکت او شان او شوکت خواهش مند دې.بلکه دَ هغه شان او شوکت خو الله تعالی سره دې، خلق خودَ چا باره کښې دَ هغه سفارش هم نه قبلوی لیکن دَ الله تعالی په نزد دَ هغه دا حیثیت دې چه دَ هغه شفاعت هم قبلولې شی اودَ هغه باره کښې هم سفارش قبلولې شی.(۵)

**دَ حراست فی سبیل الله فضیلت باره کښې نورځواحادیث:** دَ الله تعالی په لارکښې

---

۱) (عمدة القاری (ج ۱۴ص۱۷۲)-
۲) ( فتح الباری (ج۶ص۸۳)-
۳) (شرح الکرمانی (ج۱۲ص۱۵۶)-
۴) ( عمدة القاری ( ۱۴ص۱۷۲) وشرح الطیبی (ج۹ص۲۸۸)-
۵) ( عمدة القاری ( ۱۴ص۱۷۲)-

حفاظت او پاسبانی کولو فضیلت په نورو احادیثوکښې هم وارد شویدې کوم چه دَ امام بخاری رحمه الله په شرطونو خو نه دی البته صحیح ضرور دی. کوم نه چه یو څومونړ په ذیل کښې نقل کوو:

① دَ حضرت عثمان رضی الله عنه مرفوع روایت دې ((حرس لیلة فی سبیل الله تعالی أفضل من ألف لیلة، یقام لیلها ویصام نهارها))(۱) دَ الله تعالی په لارکښې یوه شپه څوکنی کول د زرو شپوورځونه بهتراوغوره دی، په کومو شپوکښې نفلونه اداکړیشی اودَ هغې په ورځوکښې روژې اوساتلې شی.

② حضرت ابوریحانه رضی الله عنه نه مرفوعًا مروی دی ((حرمت النار علی عین سهرت فی سبیل الله))(۲) یعنی دَ دوزخ أور په هغه سترګه حرام دې چه دَ الله تعالی په لارکښې رونړه شوې وی.

③ دَ حضرت ابن عباس رضی الله عنهما مرفوع حدیث دې: ((عینان لاتمسهما النار: عین بکت من خشیة الله. وعین باتت تحرس فی سبیل الله)) (۳) یعنی دَ دوزخ أور به دوو سترګوسره نه لګی. یوه هغه سترګه چه دَ الله تعالی دَ ویرې ژړیدلې وی او دونمه هغه سترګه کومې چه دَ الله تعالی په لار کښې دَ حفاظت او پاسبانئی فریضه پوره کولوسره شپه رونړه کړې وی.

④ حضرت ابن عمر رضی الله عنهما نه مرفوع روایت دې چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد اوفرمائیلو ((ألا أنبئکم بلیلة أفضل من لیلة القدر حارس حرس فی أرض خوف لعله أن لایرجع إلی اهله)) (۴) آیا زه تاسو ته دَ داسې شپې باره کښې اونه نښائم چه دَ لیلة القدر نه هم غوره وی. هغه د هغه څوکنی کونکی (شپه ده) څوک چه په خطرناکه زمکه باندې دَ سرحدونودَ حفاظت فریضه پوره کوی. کیدیشی چه هغه خپل بال بچ طرف ته واپس رانشی.

## [۵۱۶۳] دمال حق اداکولوستاینه

۵۱۶۳-(°)[۸] ① وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ②" «إِنَّ مِمَّا أَخَافُ

۱) (مسندالإمام احمد (ج۱ص۱۶و۶۵)الترغیب للمنذری (ج۲ص۲۵۰).
۲)(مسندالإمام احمد (ج٤ص۱۳٤) والمستدرک (ج۲ص۸۳) وقال الذهبی فی تلخیصه للمستدرک: صحیح
۳) (الجامع للترمذی. أبواب فضائل الجهاد. باب ماجاء فی فضل الحرس فی سبیل الله رقم (۱۶۳۹).
٤) (المستدرک للحاکم (ج۲ص۸۰) کتاب الجهاد باب من رابط یوما ولیلة. وکنزالعمال (ج۳ص۳۲۳) ومن أراد الاستزادة فلیراجع الترغیب والترهیب للمنذری (ج۲ص۲٤۸) کتاب الجهاد باب الترغیب فی الحراسة فی سبیل الله تعالی.
°) اخرجه البخاری فی کتاب الزکاة/باب الصدقة علی الیتامی (رقم-۱٤۶۵) ومسلم فی کتاب الزکاة/باب تخوف ما یخرج من زهرة الدنیا (رقم-۱۲۳ - (۱۰۵۲) والترمذی فی کتاب صفة القیامة والرقائق والورع عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب(رقم-۲٤۶۳)

عَلَيْكُمْ مِنْ بَعْدِي [۳] مَا يُفْتَحُ عَلَيْكُمْ مِنْ زَهْرَةِ الدُّنْيَا وَزِينَتِهَا" [۴] فَقَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللهِ! أَوَيَأْتِي الْخَيْرُ بِالشَّرِّ؟ [۵] فَسَكَتَ حَتَّى ظَنَنَّا أَنَّهُ يُنَزَّلُ عَلَيْهِ، [٦] قَالَ فَمَسَحَ عَنْهُ الرُّحَضَاءَ وَقَالَ: "أَيْنَ السَّائِلُ؟ [۷] وَكَأَنَّهُ حَمِدَهُ

ترجمه: [۱] او حضرت ابوسعید رضی الله عنه نه روایت دی، یوه ورځ رسول الله ﷺ صحابه رضی الله عنهم او د هغوئ په ذریعه عام مسلمانان مخاطب کولو سره وفرمایل. [۲] د خپل وفات نه پس ستاسو باره کې چې ماته د کوم څیزونو خوف دی، (چي نا سو به په هغه کې مبتلا شئ) [۳] په هغه کې یو شی د دنیا ترو تازګي او زینت هم دی چې (د ملکي فنوحاتو او اقتدار په صورت کې) تاسو ته به حاصل شي [۴] په دي اوریدو سره یو سړي عرض وکړو. یا رسول الله. آیا نیکي به دځان سره بدي هم راولي. (یعني د ملکي فتوحاتو او اقندار په وجه مونږ مسلمانانو ته چې کوم مالِ غنیمت او ساز وسامان حاصلیږي. هغه خو به زمونږ په حق کې د الله نعمت وي، او هسي هم جائز وسائل او ذرائع سره د حاصلیدونکي مال ودولت او رزق وغیره وسعت او فراخي یوښه شی دی. نو داڅرنګه ممکنه ده. چې د الله ورکړي شوی نعمت او ښه شی زمونږ د پاره د بدي او فتني او ترك طاعات سبب او ذریعه جوړه شي) [۵] نو حضور ﷺ خاموش شو تردي چې زمونږ دا ګمان شو چې د الله ﷻ د طرف نه وحي راځي، [٦] حضرت ابوسعید خدري رضی الله عنه وایي، لږ ساعت وروسته حضور ﷺ د خپل مخ مبارك نه خوله (پسینه) اوچه کړه (چي د نزول وحي په وخت به باندې راتله) بیایي وفرمایل، هغه سړی چیرته دی. چې هغه پوښتنه کړي وه [۷] ګویا حضور ﷺ د سوال تحسین وفرمایه [څکه چې حضور ﷺ پوهیدی، چې هغه سړی کوم سوال کړی دی، او اوس چې د هغه کوم جواب ورکول کیږي، د هغه نه به خلقوته فائده ورسیږي]، او د دي نه پس یې وفرمایل،

فَقَالَ: [۸] إِنَّهُ لَا يَأْتِي الْخَيْرُ بِالشَّرِّ، [۹] وَإِنَّ مِمَّا يُنْبِتُ الرَّبِيعُ [۱۰] مَا يَقْتُلُ حَبَطًا أَوْ يُلِمُّ، [۱۱] إِلَّا آكِلَةَ الْخَضِرِ أَكَلَتْ [۱۲] حَتَّى امْتَدَّتْ خَاصِرَتَاهَا، [۱۳] اسْتَقْبَلَتْ عَيْنَ الشَّمْسِ فَثَلَطَتْ [۱۴] وَبَالَتْ ثُمَّ عَادَتْ فَأَكَلَتْ. [۱۵] وَإِنَّ هٰذَا الْمَالَ خَضِرَةٌ حُلْوَةٌ، [۱٦] فَمَنْ أَخَذَهُ بِحَقِّهِ، [۱۷] وَوَضَعَهُ فِي حَقِّهِ فَنِعْمَ الْمَعُونَةُ هُوَ، [۱۸] وَمَنْ أَخَذَهُ بِغَيْرِ حَقِّهِ كَانَ كَالَّذِي يَأْكُلُ وَلَا يَشْبَعُ، [۱۹] وَيَكُونُ شَهِيدًا عَلَيْهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ»). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه: [۸] حقیقت دادی، چې نیکي د ځان سره بدي نه راولي. (یعني جائز ذرائعو سره مال ودولت حاصلول او رزق کې وسعت او فراخي او د خوشحالي نصیب کیدل د خیرونو نه یو خیر دی) او په دي وجه څه بدي نه پیښیږي بلکي په اصل کې د بدی بدخیري پیښیدل د هغه عوارضو په وجه وي چې د دولتمندی او خوشحالی سره لاحق کیږي لکه بخل او اسراف او حدّ اعتدال نه تجاوز کول) [۹] او د سپرلی (د موسم په) نباتاتو کښي هغه دی چې د خپل ذات په اعتبار سره نه خو، ښه او فائده مند وي، (خو) خیټه خرابوی (یعنی هاضمه نه راځی) اوخوړونکې هلاکت ته نزدي کوی [۱۰] البته د هغه نه ضرر او

نقصان هغه وخت رسیږي کله چې یو څاروي شینکی اوخوري اوبنه ئې اوخوري ⑫ تر دې د ډیر خوراک په وجه یې دواړي تشي او پړسیږي ⑬ نو هغه د نمر طرف ته اوږدو سره وغزیدي [څرنګه چې د څناورو عادت وي، چې کله د بدهضمي په وجه د هغه خیټه وپړسیږي، نو هغه نمر (دهوپ) کې پریوزي، او د هغه خیټه ګرمي پیدا کیدو سره نرمه شي او په هغه کې چې څه وي، بهر راووځي.] ⑭ او بیا چې هغه نرم خاشنړه او متیازي کولو سره خیټه یي سپکه شي، نو بیادوبنو (چراګاه) طرف ته لاړ شي. او په سبزه کې څرند شروع کړي، ⑮ او حقیقت دادی، چې د دنیا دا مال وزر ډیر سرسبز، تروتازه، نرم او دلکش دی، [چې په ظاهره په سترګو او طبیعت بنه لګیږي. چې د هغه په وجه زړه غواړي چې زیات نه زیات حاصل کړي] ⑯ نو کوم سړی چې د دنیا مال وزرپه حق سره. [یعنی به وخت ضرورت او جائز وسائل او ذرائعو سره] حاصل کړي، ⑰ او هغه د هغه په حق کې یعنی بنه مصارفو کې [که واجب وي، یا مستحب] خرچ کړي، نو هغه مال وزر د هغه په حق کې د دین بهترین مددګار ثابتیږي، ⑱ او کوم سړی چې هغه مال وزر دحق نه بغیر یعنی ناجائز طور سره حاصل کړي، نو هغه د هغه سړي په شان وي، چې خوري څکي. خو خیټه یي نه مړیږي، ⑲ او هغه مال وزر به د قیامت په ورځ دهغه په خلاف د هغه د اسراف او د هغه د حرص وطمع ګواه وي (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** - ① الْخَضِرَ: هغه خوله کومه چه دَ تبې دَ وجې نه په مخ کومه راځی ② الرَّبِيعُ: د بهار موسم. سپرلې. ③ حَبَطًا: د زیات خوراک په وجه بدهضمئ سره هلاکیدل. ④ يُلِمُّ: اَلمیلم نیزدې کیدو په معنی کښې دې یعنی چه هلاکت ته نیزدې شی. ⑤ الْخَضِرِ: سبزه، شنه واخه. ⑥ امْتَدَّتْ: اوپړسیږی. ⑦ خَاصِرَتَاهَا: خاصرة: ډډې ته یعنی تشی ته وائی. ⑧ ثَلَطَتْ: سوتې اومتیازې چه کله نرمې او نرئی شی او دست ترې جوړشی نوهغې ته ثلط وائی. ⑨ بَالَتْ: متیازې اوکړی.

**تسهیلات:**

**قوله:** فَقَالَ رَجُلٌ: يَارَسُولَ اللهِ! أَوَيَأْتِي الْخَيْرُ بِالشَّرِّ؟

**دسائل د تپوس مطلب:** دَدې سړی دَ سوال مقصد دادې چه قرآن عظیم کښې الله تعالی مال ته دَ الخیر نوم ورکولوسره یاد کړې دې سورت عادیات کښې دی ﴿وَإِنَّهُ لِحُبِّ الْخَيْرِ لَشَدِيدٌ﴾ [سوة عادیات:۸] کله چه دَ دنیامال خیردې نودا دَ خوف سبب دَ شر سبب او دَ ضرر سبب څنګه جوړیږی؟

**قوله:** فَسَكَتَ حَتَّى ظَنَنَّا أَنَّهُ يُنَزَّلُ عَلَيْهِ،

**د خاموشۍ وجه:** دَ وحی دَ نازلیدو په انتظارکښې حضورپاك خاموش شو دې دَپاره چه دَ الله تعالی دَ طرف نه دَ دغه سوال جواب راشی

**قوله: وَكَأَنَّهُ حَمِدَهُ**

**د مذكوره جملې مطلب:** يعنى حضورپاك دَ دغه سړي سوال خوښ كړو ځكه چه دا علمى سوال وو كوم چه دَ امت دَپاره فائده مند وو "انه" داضميرشان دې

**قوله: إِنَّهُ لَا يَأْتِي الْخَيْرُ بِالشَّرِّ**

**في نفسه دمال عدم كراهت:** يعنى حضورپاك اوفرمائيل چه نيكى بدى نه راوړى يعنى بنفسه مال سره دَدې چه زيات وى دا دَخپل ذات په اعتبارسره بدى نه راوړى په دې كښې كه چرې بدى راځى نوهغه دَ عارض او خارج دَ وجې راځى چه سړې دَ اعتدال دَ حد نه اوځى بخل حرص لالچ او په اسراف كښې پريوځى.بيا مال نقصان كوى.

**قوله: وَإِنَّ مِمَّا يُنْبِتُ الرَّبِيعُ:**

**د مال تشبيه د سپرلى سره:** نبى عليه السلام د مثال په رنړا كښې د سائل د پوهولو كوشش كوى.اوفرمائى چې دَ الله تعالى قدرت او ارادې سره دَ سپرلى موسم كښې چه كله زمكه قسم قسم واښه راپيدا كوى او څاروى دَ دې دَ خوراك طرف ته متوجه كيږى اوواښه ښكلې ګنړلوسره دَ اعتدال دَحد نه زيات خورى نودَ بدهضمئ دَ وجې نه دَهغې خيټه پړسيږى بلكه كولمې ئې شليږى اوڅاروى په حقيقت كښې مړه كيږى يا كه چرې واقعةً نه مړه كيږى نومرګ ته نيزدې كيږى.نوځنګه چه دلته دَ سپرلى دَ موسم څه قصور نشته دې بلكه دَ اعتدال دَ حد نه زياته اندازه كښې واښه خوړونكې دَ ځناور قصور دې هم دغه شان معامله دَ دنيا دَ مال او انسان هم ده كه چرې انسان مال داسې راجمع كوى چه دَهغې حق نه اداكوى او دَ حلال اوحرام فرق نه كوى

يا دَمال دَ كثرت دَ وجې نه ډيرزيات عيش اوعشرت او عياشئ اوغفلت كښې ژوند تيره وى نودغه شان به هغه په اخلاق رذيله كښې راګيرشى او هلاك به شى دلته قصوردَمال نه دې بلكه دَ هغې دَ غلط استعمال دې.

**قوله: مَا يَقْتُلُ حَبَطًا أَوْ يُلِمُّ، الخ**

**دبدهضمئ په وجه د څاروى هلاكت:** حبط دَ هلاكت په معنى كښې دې مګر هغه هلاكت چه دَ يوڅيز دَ خوراك سره په خيټه كښې بدهضمى پيدا كيدو دَ وجې نه وى اوخوراك كونكې فورى مړشى.

**قوله: إِلَّا آكِلَةَ الْخَضِرِ:**

**د مذكوره جملې په تركيب كښې درې اقوال:** ① علامه طيبى رحمه الله دا ليكلى دى چه دا استثناء منقطع ده چه دَ لكن په معنى كښې ده.نوې كلام دې دا ډير آسان دې

② علامه طيبى رحمه الله فرمائى آكلة منصوب دې اودا يقتل دَپاره مفعول به دې او استثناء

مفرغ ده عبارت داسې دي "إن مما ينبت الربيع ما يقتل آكله إلا آكل الخضر"

③ ملا علی قاري رحمه الله داسې عبارت راوْباسی "إن مما ينبت الربيع ما يقتل أو يلم كل آكلة إلا آكل الخضر" دا عبارت په مستثنی متصل باندې هم حمل كولې شی

**قوله:** **اسْتَقْبَلَتْ عَيْنَ الشَّمْسِ فَثَلَطَتْ وَبَالَتْ:**

**نمر ته د مخامخ كيدو فائده:** دَ څناور خيته چه كله دَ زياتو وابښو په خوړلو سره اوپړسيږی نو هغه دَنمر مخې ته اودريږی يا كينی دې دَپاره چه دَ نمر په تاوْ سره په خيته كښې دننه هرڅه هضم شی.

**دعلامه طيبي په نيز په حديث كښې څلور مثالونه:** ① اول مثال خودَ هغه كافر دې چه دَ دنيا دَ زهرژن وابښو په خوړلو سره هلاكيږی.په "ما يقتل حبطاً" كښې دې مثال طرف ته اشاره ده

② دويم مثال دَهغه ظالم مسلمان دې چه په ګناهونو كښې ككړ كيدو سره هلاكت ته ورنيزدې شی.په "أو يلم" كښې دې مثال طرف ته اشاره ده.

③ دريم مثال دَ درميانه مسلمان دې چه كله ګناه او كله نيكی كوی په "آكلة الخضر" كښې دې مثال طرف ته اشاره ده

④ څلورم مثال سره دَدې چه په دې حديث كښې نه دې ذكر مګر په دويم حديث كښې دی چاچه دنيا ترك كړه اوعقبٰی ئی اختيار كړه كوم ته چه سابق بالخيرات وائی په قرآن پاك كښې الله تعالی دا ذكر كړې دې.

**دعلامه ازهری په نيز په حديث كښې دوه مثالونه:** ① په حديث كې دَهغه لالچی سړی دې چه په ناجائز اوحرام طريقې سره مال راجمع كوی اودَهغې حقوق نه اداكوی دا دَ زهرژن وابښو په شان دې دَدې باره كې ئی اوفرمائيل چه "ما يقتل حبطاً" دامال دغه سړې هلاكوی

② په حديث كښې دَ هغه درميانه سړی مثال دې كوم چه "إلا آكلة الخضر" سره حضور پاك بيان كړې دې.دا مال دَ زهرژن وابښو په شان نه دې بلكه دَ ژمی دَ موسم دَ وابښو په شان دې كوم چه دَ خوراك قابل دی سره دَدې چه دَ حرص او لالچ دَ وجې نه دغه سړی دَ دې په جمع كولو كښې دَ اعتدال دَ حد نه تجاوز اوكړو او اسراف ئی اوكړو ليكن ډير زر دغه سړې خبردار شو توبه ئی اوكړه اودَحرص نه منع شو لكه څنګه چه دَ دغه څناور مثال دې كوم چه وابښه زيات اوخوړل مګر زر ئی خپل علاج هم اوكړو نو بچ شو

**دمذكوره تسهيل خلاصه:** دَ حديث چه څومره حصه تيره شوې ده دَهغې مطلب اوخلاصه دا راووتله چه مال خير دې اوخير شر نه راوړی مګر كله كله دغه مال په غلطه طريقه سره حاصلولې شی او دَهغې حقوق هيرولې شی كوم چه انسان هلاكوی څنګه چه زهرژن وابښه

ځناور هلاکوی نو مال صالح کیدل پکاردی په زهرو ککړ نه دی کیدل پکار دغه شان کله کله مال صالح وی مګرد اعتدال دَ حد نه زیات استعمال سره نقصان کوی څنګه چه ښکلي وابنه وی مګر کله چه ځناور دا زیات خوری نوپه دې سره بدهضمی پیدا کیږی اودست راځی نوچه دنیاکله زیاته شی نو داهم انسان په دستونوکښې اخته کوی یو الله والا اوونیل دَدنیامثال دَ زهریلا مار دې که دَ مار منتربانددې پوهیږې نومار به دې په قابوکښې وی ګنی تك لګولو سره به دې هلاك کړی.اودَ دغه مار منتردادې چه دَ دنیا مال په جائز طریقې سره حاصل کړې شی او په جائز طریقه استعمال کړې شی

**قوله:** وَإِنَّ هَذَا الْمَالَ خَضِرَةٌ حُلْوَةٌ،

**د دنیا دلفریبی:** دې جملې سره حضورپاك دَدنیا محبت کښې دَ خلقو مختلف احوال بیان کړی دی.چنانچه اوفرمائیلې شو چه دا دنیا دَ زیب اوزینت په اعتبار سره شنه آباده زړه راښکونکې اوخوږه ده.طبعًا دَ هرسړی خوښه ده

**قوله:** فَمَنْ أَخَذَهُ بِحَقِّهِ، وَوَضَعَهُ فِي حَقِّهِ فَنِعْمَ الْمَعُونَةُ هُوَ:

**نیک عمله انسان اودنیا:** نوچا چه دا په صحیح اوجائز طریقه حاصله کړه او په جائز طریقه ئې خرج کړه نودا دَ یو صالح انسان دَ خو مقاصدو دَپاره بهترین معاون او مددګاره ده

**قوله:** وَمَنْ أَخَذَهُ بِغَيْرِ حَقِّهِ كَانَ كَالَّذِي يَأْكُلُ وَلَا يَشْبَعُ،

**بدعمله انسان اودنیا:** اوکوم سړی چه دا مال اودنیا ناجائز طریقې سره حاصل کړه او ناجائز کارونوکښې ئې خرج کړه نودا دَ هغه دَ پاره دَ ځان دښمن ده.دکوم په وجه سره چه به دَ غه سړې په لاعلاج بیمارئی کې اخته شی.هغه به دَدنیا غلام جوړیدوسره دَ دې څوکیدار جوړشی اودَ هغه مثال به دَ جوع البقر والا مریض په شان شی چه خوراك کوی لیکن اولږه ئې نه ختمیږی یا دَ استقاء دَ بیمار په شان شی چه اوبه به څکی خو تنده به ئې نه ماتیږی

**قوله:** وَيَكُونُ شَهِيدًا عَلَيْهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ

**د قیامت په ورځ دمال ګواهی ورکول:** هم دغه نه بلکه دَقیامت په ورځ به دا مال دَهغه خلاف اودریږی اودا ګواهی به ورکوی چه دا سړې ډیر حرص کونکې لالچی حرام خوراو غل وو

### [۵۴۳] د مال ډیر والي دَ خطرې سبب دې

۵۴۳-(¹)[۹] ①وَعَنْ عَمْرِو بْنِ عَوْفٍ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ②" «فَوَاللَّهِ لَا الْفَقْرَ أَخْشَى عَلَيْكُمْ، ③وَلَكِنْ أَخْشَى عَلَيْكُمْ أَنْ تُبْسَطَ عَلَيْكُمُ الدُّنْيَا كَمَا بُسِطَتْ عَلَى مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ،

¹) اخرجه البخاری فی کتاب المغازی/باب (رقم-۴۰۲۵) ومسلم فی کتاب الزهد والرقائق (رقم-۶ - (۲۹۶۱) والترمذی فی کتاب صفة القیامة والرقائق والورع عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۲۴۶۲) وابن ماجه فی کتاب الفتن/باب فتنة المال (رقم-۳۹۹۷)

۴ فَتَنَافَسُوهَا كَمَا تَنَافَسُوهَا، وَتُهْلِكَكُمْ كَمَا أَهْلَكَتْهُمْ» "مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: ۱ او حضرت عمرو ابن عوف رضي الله عنه فرمايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل. ۲ قسم په الله زما سره ستاسو د فقر او افلاس هيڅ ويره نشته. (ځکه د فقر او افلاس په حالت کې د دين د سلامتيا امکان غالب وي، او داشى ستاسو په حق کې زيات شودمند دى) ۳ بلکي زه د دې نه ويريږم، چې دنيا به تاسو باندې کشاده شي او تاسو به د مالدارو طور طريقه اختيارولو سره د مختلف قسم آفتونو او بلاګانو په ذريعه هلاکت او تباهي کې مبتلا شئ، څرنګه چې په هغه خلقو دنيا کشاده شوي وه، کوم چې ستاسو نه مخکې تير شوى دى او هغوئ د مال ودولت د بې حده رغبت او محبت په وجه فقراء او مساکينو باندې رحم نه کوى او د هغوئ د مدد نه به تښتيدل، د هغوئ نتيجه داشوه. چې هغوئ تباه او برباد شوه، ۴ که تاسو دنيا طرف ته رغبت کوئ. يعنى دنيا اختياروئ او هغه طرف ته رغبت ساتي، چې يوبل نه مال ودولت او جاه وحکومت حاصلولو د پاره جنګ جګړې شروع کوئ څرنګه چې ستاسو نه مخکې خلقو دې طرف ته رغبت کړى وو. او بيا دا دنيا به تاسو داسې تباه او برباد کړي، څرنګه چې هغوئ يې تباه او برباد کړي وه (بخاري، مسلم)

**حل اللغات**:- ① أَخْشَى: زه ويريږم، ② تُبْسَطَ: فراخه به کړې شى، ③ فَتَنَافَسُوهَا: دَ نفيس څيز طرف ته دَ زړه ميلان ته تنافس وائى. مراد رغبت دې. يعنى د يوبل نه وړاندې کيدل.

**تسهيلات**:

**قوله: فَتَنَافَسُوهَا كَمَا تَنَافَسُوهَا**: اي فتتنافسوا فيها دَ يو بل نه وړاندې کيدو سره دَدنيا دَ حصول دَپاره چه منډې وهې اودَدې په جمع کولو کښې لګياشئ په دې کښې حرص کونکې شې بيا دَ کثرت دَ وجې نه تکبر او تجبر او بغاوت کښې پريوځى نو دَ آخرت په اعتبارسره به هلاك شئى يا دَ دنيا خلقو سره به عداوتونه شروع شي نو هغه به تا هلاك کړى دادَ دنياهم هلاکت دې او دآخرت هم هلاکت دې. دَ ريښمو دَ چينجي په شان چه دَخپل بدن نه دَ ريښمو تار ويستلوسره هم په خپل بدن باندې راتاووى او په آخره کښې هم په دې کښې خنبيدوسره مرشى. يا دَ سوتو دَ چينجي ګونګټ په شان چه دَ ګندګئي ګوله جوړلوسره په خپله سوړه کښې دَ داخلولو کوشش کوى مګر دَ سوړې دَتنګوالى دَ وجې نه هغه پريږدى او دننه ځى. انسان هم هرڅه پريخودو سره قبرکښې يوازې داخليږى.

جگہ جی لگانے کی دنیا نہیں ہے      یہ عبرت کی جا ہے تماشا نہیں ہے

بهرحال دَمال په کثرت کښې هلاکت داهم دې چه مال کله سړې راګيرکړى نو هغه بزدل جوړيدو سره دَ جهاد نه ويريږى نو دښمن راځى اوده لره هلاکوى

### [۵۴۳] دَ رزق باره کښې د حضور پاک ﷺ دعا

۵۴۳-(۱)[۱۰] [۱]وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲]" «اللَّهُمَّ اجْعَلْ رِزْقَ آلِ مُحَمَّدٍ قُوتًا» ". [۳]وَفِي رِوَايَةٍ: (كَفَافًا). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** : [۱]او حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دی، چې رسول الله ﷺ دا دعا فرمایله، [۲]اې الله ته آلِ محمد ته بقدر قوت، رزق ورکړې، [۳]او په یوه روایت کې د (قوت په ځای) د کفاف، لفظ دی.(بخاري، مسلم)

**حل اللغات** :- ① قُوتًا: په اندازه د قوت، د ګذارې روزی، ② كَفَافًا: کافی کیدونکې،

**تسهیلات:**

**قوله**: اللَّهُمَّ اجْعَلْ رِزْقَ آلِ مُحَمَّدٍ قُوتًا:

**درزق د سوال کولو مختلف درجات**: ① دَ حضورپاك دَ خپل ذات مبارك دَ پاره دامعیار مقرروو چه خپل ځان سره به ئی هیڅ هم جمع نه ساتل. دَ خپل اهل بیت دَپاره ئی دامعیار ووچه په اندازه د کفاف یعنی ګذارې او قوت لایموت مقدارپورې دَ ساتلو اجازت ئی ورکولو

② دَ عام امت دَپاره ئی دا معیار ساتلې وو چه رزق حلاله ګټه او دَ صحیح استعمال اجازت ئی ورکړې دې.

**دکفاف مدار د اشخاصو په اعتبار**: علامه طیبی رحمه الله لیکی دی چه دکفاف حکم او مفهوم دَ اشخاصو دَ احوالو په اختلاف سره مختلف کیږی.

① بعضې خلق پوره هفته کښې یو ځل خوراك کوی دَهغوی دَپاره دغه کفاف دې

② بعضې خلق په ورځ کښې یو ځل یا دوځل خوراك کوی دَهغوی دَپاره دغه کفاف دې

③ بعضې خلق بال بچه دار وی نو دَهغوی کفاف هم دومره دې چه دَهغوی دَ بچو دَپاره کافی شی

④ بعضې خلق کم بال بچه دار وی دَهغوی دَپاره لږ خوراك کفاف دې خلاصه دا چه دکفاف معین مقدار نشته بلکه په اندازه دَ کفایت کفاف دې دې دَپاره چه په طاعاتو کښې طاقت وی او بې ځایه اشتغال هم نه وی.[الکاشف:۳۳۶/۹]

---

[1]) اخرجه البخاری فی کتاب الرقاق/باب: کیف کان عیش النبی صلی الله علیه وسلم وأصحابه، وتخلیهم من الدنیا (رقم-۶۴۶۰) ومسلم فی کتاب الزهد والرقائق (رقم-۱۸ - (۱۰۵۵) والترمذی فی کتاب صفة القیامة والرقائق والورع عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۲۴۶۱) وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب القناعة (رقم-۴۱۳۹) واحمد فی المسند:۲/۴۶۴

## [٥١٦٥] كامياب سړى څوك دى؟

٥١٠٥-()[١١] ①وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا-قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ②((قَدْ أَفْلَحَ مَنْ أَسْلَمَ وَرُزِقَ كَفَافًا، ③وَقَنَّعَهُ اللّٰهُ بِمَا آتَاهُ)) رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: ①او حضرت عبدالله ابن عمرو ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ②هغه سړى فلاح اونجات ته ورسيدى چاچې اسلام قبول كى (يا أسلمُ نه مراد دادى چې هغه دقضاء وقدر مخكې خپل سر خكته كړي هغه ته حلال او جائز ذرائعو سره) بقدر كفاف رزق وركړل شو (يعني بس هغه ته دومره رزق حاصل شو چې د هغه دضروريات ژوند دپاره كافي شو او هغه دغير مخكې دلاس غزولو ضرورتمند پاتي نه شو) ③او الله تعالى هغه په هغه شي چې هغه ته وركړل شوي دي قناعت اوبخښى (او هغه تقدير باندې راضي او مطمئن شو) (مسلم).

**حل اللغات**:- ①أَفْلَحَ: پوره كامياب شو. ②أَسْلَمَ: چه اسلام ئې راوړو، خان ئې تابع كړو. ③قَنَّعَهُ: قناعت يعنى صبر به وركړى هغه ته.

**تسهيلات**:

د حديث الباب حاصل دا دې چه كوم كس ته ايمان، تقوىٰ بقدر ضرورت مال او په قليل مال باندې صبر او قناعت حاصل شي نو هغه به په دنيا كښې هم كامياب وى او په آخرت كښې به هم كامياب وى.

## [٥١٦٦] دَ انسان اصل مال درې قسمه دي

٥١٦٦-()[١٢] ①وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ②((يَقُوْلُ الْعَبْدُ: مَالِي، مَالِي. ③وَإِنَّ مَا لَهُ مِنْ مَالِهِ ثَلَاثٌ: ④مَا أَكَلَ فَأَفْنَى أَوْ لَبِسَ فَأَبْلَى أَوْ أَعْطَى فَاقْتَنَى ⑤وَمَا سِوَى ذٰلِكَ فَهُوَ ذَاهِبٌ وَتَارِكُهُ لِلنَّاسِ)). (رَوَاهُ مُسْلِمٌ).

**ترجمه**: ①او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ②بنده وايي ځما مال ځما مال (يعني كوم سړى چې مالدار او دولتمند وي هغه خپل مال ودولت باندې فخر كوي او نوروته ددې خودلو كوشش كوي چې زما سره مال ودولت دي ③او حقيقت دادي چې هغه ته هغه مال ودولت نه څه حاصليږي هغه في الجمله درې ځيزونه دي (او هغه درې ځيزونو كې هم صرف يو شى داسې دى چې هغه دپاره حقيقي نفع بخش او باقي پاتي

[1] اخرجه مسلم فى كتاب الزكاة/باب فى الكفاف والقناعة (رقم-١٢٥ - (١٠٥٤)) والترمذى فى كتاب الزهد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى الكفاف والصبر عليه (رقم-٢٣٤٨) وابن ماجه فى كتاب الزهد/باب القناعة (رقم-٤١٣٨) واحمد فى المسند:٢/١٦٨

[2] اخرجه مسلم فى كتاب الزهد والرقائق (رقم-٤ - (٢٩٥٩)) والترمذى فى كتاب الزهد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب منه (رقم-٢٣٤٢)

کیدونکي دي اوبقیه دوخیزونه داسې دي چې دهغه تعلق دنیا سره دي اوفناکیدونکي دي، [٣]یوخوهغه شی چې هغه اوخوړلو اوختم یي کې اودویم هغه شی چې هغه واغوستی اوبوسیده (زوړ) یي کې یعنی اوخکلو سره وي غورخول اودریم هغه شی چې هغه دالله په لار کې ورکی او آخرت دپاره ذخیره یي کی [٥]ددي دري څیزونونه علاوه نورڅه چې دي لکه زمکه څاروي نوکر روپې پیسې اونور قیمتي څیزونه هغه ټول داسې دي چې هغه خلقو دپاره پریخودلو سره (ددي دنیانه) تلونکي دي (مسلم)

**حل اللغات** :- ① أَفْنَى: ختم شی، هضم شی، ② أَبْلَى: زړه ئې کړه، ③ فَاقْتَنَى: ای جعله قنیة وذخیرة للعقبی یعنی دَ آخرت دَپاره ئې ذخیره کیخوده.

**تسهیلات:**

**د بعضې مشکلو جملو وضاحت:**

① وَإِنَّ مَالَهُ مِنْ مَالِهِ ثَلَاثٌ: ماموصوله په معنی دَ الذی دې او دَ لـه حرف حصل سره متعلق دي اومن ماله هم دې سره متعلق دي اوثلاث خبر دې.

② وَمَا سِوَى ذَٰلِكَ فَهُوَ ذَاهِبٌ وَتَارِكُهُ لَكَ:

یعنی هغه بنده تلونکې دي اومال دَ خلقودَپاره په توګه دَمیراث پریخودونکې دي

**دري څیزونه دانسان اصلي مال**: یعنی دَ انسان اصل مال کوم چه دَهغه په کارراغلو هغه په دري قسمه دي.

① کوم چه هغه اوخوړلو دا مال دي.

② کوم ئې چه واغوستلو دغه دَده مال دي.

③ کوم چه ئې دَ الله تعالی په نوم ورکړو دادَ هغه مال دي دکوم اجر چه به په آخرت کښې ملاویږی.دي نه علاوه وبال دي نه چه دَ هغه مال دي

**[٥١٦٧] انسان سره به قبر ته صرف دَهغه عمل ځی**

٥١٦٧ - (١)[١٣] [١]وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢]( «يَتْبَعُ الْمَيِّتَ ثَلَاثَةٌ: فَيَرْجِعُ اثْنَانِ، وَيَبْقَى مَعَهُ وَاحِدٌ: [٣]يَتْبَعُهُ أَهْلُهُ وَمَالُهُ وَعَمَلُهُ، فَيَرْجِعُ أَهْلُهُ وَمَالُهُ، وَيَبْقَى عَمَلُهُ» ). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** : [١]او حضرت انس ﷛ وايي، چی رسول الله ﷺ وفرمايل، [٢]مړي سره قبر پورې دري څيزونه ځي، په هغه کې دوڅيزونه خو هغه يوازي پريخودلو سره واپس راځي، او يوشی هغه سره پاتې کېږي، [٣]دَ هغه متعلقين لکه اولاد، عزيز وآقارب، دوست او

(١) اخرجه البخاری فی کتاب الرقاق/باب سکرات الموت (رقم-٦٥١٤) ومسلم فی کتاب الزهد والرقائق (رقم-٥ - ٢٩٦٠) والنسائی فی کتاب النکاح/ يحرم من الرضاع ما يحرم من النسب (رقم-١٩٣٧) واحمد فی المسند:٣/١١٠

احباب او د پیژندګلو خلق او د هغه اموال (لکه نوکر، پلنګ څاروي، ګاډي وغیره او د هغه (اسباب) او د هغه اعمال هغه سره ځي، دغه دریو سرو کې متعلقین او مال خو هغه تنها پریخودلو سره ځني واپس راشي، او د هغه اعمال هغه سره پاتې شي (مسلم)

**تسهیلات:**

**قوله: فَيَرْجِعُ اثْنَانِ، وَيَبْقَى مَعَهُ وَاحِدٌ:**

**قبر کښې پاتې کیدونکې څیز:** کله چې انسان مړ شي نو قبر ته د تللو نه پس خپل خپلوان او دوستان، مال او دولت ټول ملګرتیا پریږدي او د هغه سره صرف هغه اعمال پاتې شي کوم اعمال چه هغه په دنیا کښې کړي وي، هم په دې وجه دا وئیلې شوي دي "القبر صندوق العمل" قبر د عمل صندوق دې بیا یا خو د دوزخ کنده ده یا د جنت باغ دې

**[۵۱۶۸] خپل مال د آخرت ذخیره جوړول پکار دي**

۵۱۶۸-()[۱۳] [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: [۲] قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَيُّكُمْ مَالُ وَارِثِهِ أَحَبُّ إِلَيْهِ مِنْ مَالِهِ؟» [۳] قَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ! مَا مِنَّا أَحَدٌ إِلَّا مَالُهُ أَحَبُّ إِلَيْهِ مِنْ مَالِ وَارِثِهِ. [۴] قَالَ: «فَإِنَّ مَالَهُ مَا قَدَّمَ وَمَالُ وَارِثِهِ مَا أَخَّرَ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن مسعود رضي الله عنه وایي، [۲] یوه ورځ رسول الله ﷺ اصحاب رضي الله عنهم مخاطب کولو سره ورته وفرمایل، په تاسو کې کوم سړی دی چې خپل مال نه زیات د خپل وارث مال خوښوي، (یعني آیا په تاسو کې څوك داسې سړی شته چې داخبره خوښوي چې د هغه مال او روپۍ پیسې خپله د هغه د پاره نه وي، بلکې د هغه وارثانو د پاره وي) [۳] صحابه رضي الله عنهم عرض وکړو، یارسول الله، په مونږ کې هیڅ سړی داسې نشته چې خپل مال نه زیات د خپل وارث مال خوښوي، [۴] حضور ﷺ وفرمایل واورئ په حقیقت کې د هغه مال هغه دی، چې هغه د صدقې او خیرات وغیره د ثواب په صورت کې مخکې لیږلی دی. او د هغه د وارث مال هغه دی، چې هغه د ځان نه پس پریښې دی

**تسهیلات:**

**قوله: أَيُّكُمْ مَالُ وَارِثِهِ أَحَبُّ إِلَيْهِ مِنْ مَالِهِ:**

**د نبي علیه السلام یو عجیبه تپوس:** یعنې په تاسو کښې څوك داسې سړې دې چاته چه د خپل مال نه دَ خپل وارث مال زیات محبوب وي؟ صحابه کرامو اوفرمائیل داسې څوك هم نشته دې چاته چه دَخپل مال په ځائې دَ وارث مال زیات محبوب وي. حضورپاك اوفرمائیل لږ شان سوچ اوکړئ چه کوم مال دَمړي نه پاتې کیږي هغه دَ ده دَوارثانو دې

[۱] اخرجه البخاري في کتاب الرقاق/باب ما قدم من ماله فهو له (رقم-۶۴۴۲) واحمد في المسند: ۱/۳۸۲

او کوم مال چه دَخپل مرګ نه وړاندې اول دَ الله تعالی په لار کښې خرچ کوی هغه په حقیقت کښې دَهغه خپل مال دې حالانکه دغه سړې دا مال دَ خرچ کولو په ځائی شاته دَ وارثانو دَپاره پریږدی نو په حقیقت کښې دا سړې دَ خپل مال په ځائی دَ وارث دَمال زیات خیال ساتی چه سراسر دَعقل، مشاهدې او دَ تجربې خلاف دی

**[۵۱۶۹] د سړی اصل مال هغه دې چې هغه تړې فائده واخستې**

۵۱۶۹-(۱)[۱۵] [۱] وَعَنْ مُطَرِّفٍ، عَنْ أَبِيهِ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: [۲] «أَتَيْتُ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- وَهُوَ يَقْرَأُ ﴿أَلْهَاكُمُ التَّكَاثُرُ﴾ [التكاثر: ۱] [۳] قَالَ: (يَقُولُ ابْنُ آدَمَ: مَالِي، مَالِي. [۴] قَالَ: (وَهَلْ لَكَ يَا ابْنَ آدَمَ! إِلَّا مَا أَكَلْتَ فَأَفْنَيْتَ، أَوْ لَبِسْتَ فَأَبْلَيْتَ، أَوْ تَصَدَّقْتَ فَأَمْضَيْتَ»؟) رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه :** [۱] او حضرت مطرف (تابعي رحمه الله) خپل پلار بزرګوار (حضرت عبد الله ابن شخير رضي الله عنه) نه نقل کوي، هغه ووېل، [۲] یو ورځ زه د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضرشوم. نو هغه وخت حضور ﷺ اَلْهٰكُمُ التَّكَاثُرُ سورة وئيلو، د دې معنی داده، چې اې خلقو تاسو خپلو کې په خپل ثروت او امارت باندې فخرو ناز کولو په سبب د آخرت د خوف نه بې پرواسوی یې، [۳] نو حضور ﷺ د تکاثر یعنی خپلو کې ثروت او امارت باندې د فخر کولو وضاحت کې وفرمایل، چې ابن آدم ځما مال، ځما مال وایي (یعني د چاسره چې زیات مال وي، هغه په خلقو فخرکوي، چې زه دومره مالداریم، زماسره دومره زیات دولت دی، [۴] بیا رسول الله ﷺ وفرمایل، د خلقو خپل مال او متاع باندې فخر کول بالکل بې حقیقته خبره ده، واقعه داده، چې اې ابن آدم! تاته چې د خپل مال نه څه حاصلیږي، او ته چې څومره فائده ورنه اخلې، هغه خو بس دومره ده، چې کوم څیزونه خوري، او هغه ختموي، کوم څیزونه اغوندې، او هغه زړوي (بوسیده کوي) او کوم څیزونه چې د الله په لار کې خرچ کوي، او هغه د آخرت د پاره ذخیره جوړ وي (مسلم)

**حل اللغات :-** ① أَلْهَاكُمْ: هلاکت کښې واچولئ تاسولره. ② التَّكَاثُرُ: زیادت دمال. ③ أَفْنَيْتَ: فنا دې کړه. هضم دې کړه. ④ أَبْلَيْتَ: زړه دې کړه، ⑤ أَمْضَيْتَ: ذخیره دې جوړه کړه

**[۵۱۷۰] حقیقی مالداری د زړه مالداری ده**

۵۱۷۰-(۲)[۱۶] [۱] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «لَيْسَ الْغِنَى عَنْ كَثْرَةِ الْعَرَضِ، [۳] وَلَكِنَّ الْغِنَى غِنَى النَّفْسِ»). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

[۱] اخرجه مسلم فی کتاب الزهد والرقائق (رقم-۳ - (۲۹۵۸) واحمد فی المسند: ٤/٢٤

[۲] اخرجه البخاری فی کتاب الرقاق/باب الغنی غنی النفس (رقم-٦٤٤٦) ومسلم فی کتاب الزکاة/باب لیس الغنی عن کثرة العرض (رقم-۱۲۰ - (۱۰۵۱) والترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب منه (رقم-۲۳۷۳) وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب القناعة(رقم-٤۱۳۷) واحمد فی المسند:۲/۲٦۱

**ترجمه**: [١] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل. [٢] اصل دولتمندي دانه ده، چې سړي سره ډير مال ومتاع وي، [٣] بلکې حقيقي مالداري او دولتمندي چې د کوم ځيز نوم دی، هغه د نفس يعنی زړه مالدارکيدل او غني کيدل دي (بخاري، مسلم)

**حل اللغات**:- ① الغِنَى: مالداری، ② العَرَض: مال و اسباب.

**تسهيلات**:

**قوله**: لَيْسَ الْغِنَى عَنْ كَثْرَةِ الْعَرَضِ:

**د غنی النفس په مفهوم کښې دوه اقوال**: ① اصل غنی دا نه ده چه انسان سره مال او دولت راشی بلکه د زړه غنی ده او هغه دا ده چه کوم ځيز حاصل وی په هغې باندې قناعت وکړی دمال اودولت او مالداری نه بے پروائی اختيارکړی او د اچتې حوصلې او د عالی همت مالک وی،نه خو په حرص اوپه طمع کښې واقع کيږی اونه دچانه سوال کوی ② غنی النفس څخه مراد دا دی چه انسان ته داسی علمی کمالات حاصل وی کومو نه بغير چه د انسان روحانی اخلاقی ژوند نه خو محفوظ پاتې کيږی او نه ورته آرام اوعظمت حاصليږی،

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [٥١٧١] د حضور پاک ﷺ د پنځو خبرو نصيحت

٥١٧١-(١)[١٧] [١] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ[٢]: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ((مَنْ يَأْخُذُ عَنِّي هَؤُلَاءِ الْكَلِمَاتِ [٣] فَيَعْمَلُ بِهِنَّ أَوْ يُعَلِّمُ مَنْ يَعْمَلُ بِهِنَّ؟)) [٤] قُلْتُ: أَنَا يَا رَسُولَ اللّٰهِ! فَأَخَذَ بِيَدِي فَعَدَّ خَمْسًا، [٥] فَقَالَ: ((اتَّقِ الْمَحَارِمَ تَكُنْ أَعْبَدَ النَّاسِ، [٦] وَارْضَ بِمَا قَسَمَ اللّٰهُ لَكَ تَكُنْ أَغْنَى النَّاسِ، [٧] وَأَحْسِنْ إِلَى جَارِكَ تَكُنْ مُؤْمِنًا، [٨] وَأَحِبَّ لِلنَّاسِ مَا تُحِبُّ لِنَفْسِكَ تَكُنْ مُسْلِمًا، [٩] وَلَا تُكْثِرِ الضَّحِكَ; فَإِنَّ كَثْرَةَ الضَّحِكِ تُمِيتُ الْقَلْبَ)). رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه**: [١] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي، [٢] يوه ورځ رسول الله ﷺ وفرمايل کوم سړی دی چې زما نه پنځه خبري زده کړي، [٣] او بيا په هغه عمل وکړي يا هغه سړي ته يي وښايي، چې په هغه عمل کوونکی وي [٤] حضرت ابوهريره په دي اوريدو سره، [٥] وايي ما عرض وکړو، يارسول الله! هغه سړی زه يم. حضور ﷺ (په دي اوريدو سره) ځما لاس ونيوی، او پنځه يي وشمارل او هغه يي داسې بيان وفرمايه ① ته هغه ځيزونو نه ځان

[١]) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الزهد عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب: من اتقی المحارم فهو أعبد الناس (رقم ٢٣٠٥) وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب الورع والتقوی (رقم ٤٢١٧) واحمد فی المسند:٢/٣١٠

وساته، کوم چې شریعت حرام ګرځولي دي، که ته د هغه نه بچ شي. نو ته به په خلقو کې د ټولو نه زیات عبادت ګذار بنده یې، [٦]② ته په هغه شي راضي او شاکر سه، کوم چې الله ﷻ ستا په قسمت کې لیکلي دي، که ته تقدیر الهي باندې راضي او مطمئن یې. نو ستا شمیر به توانګر دولتمند خلقو کې وي، یعنی کله چې بنده خپل قسمت باندې راضي او مطمئن شي، او د طمع او حرص نه پاکیدو سره د زیات طلبي پروا نه لري. نو هغه مستغني او بې نیازه کېږي او د توانګری دولتمندي اصل مفهوم هم دادی.[٧]③ ته خپل ګاونډي سره نیك سلوك کوه، اګر که هغه ستا سره بد سلوك کوي، که ته داسې کوي نو کامل مؤمن به ګڼل کېږي، [٨]④ ته د دنیا او آخرت خیرونو سره متعلق چې کوم شی خان د پاره خوښوي، هغه نورو خلقو د پاره هم خوښوه، که ته داسې کوي نو کامل مسلمان به ګڼل کیږی، [٩]⑤ او ته زیاتي خندا نه پرهیز کوه، ځکه چې زیاته خندا زړه مړ او د الله د یاد نه غافل کوي که ته زیاتي خندا نه پرهیز کوي نو ستا زړه به روحاني تروتازګي او د نور نه ډك شي، او د ذکر الله په ذریعه به درته ژوند او طمانیت نصیب شي. دا روایت احمد او ترمذي نقل کړی دی او ترمذي ویلي دي، دا حدیث غریب دی

**حل اللغات:-** ①عَدَّ: شمار ئې کړل، ②اَلْمَحَارِمَ: حرام کړې شوی څیزونه.

**قوله: اتَّقِ الْمَحَارِمَ تَكُنْ أَعْبَدَ النَّاسِ:** د "محارم" په مفهوم کښې هر یو ممنوع څیز اختیارول او د کومو څیزونو د اختیارولو چه حکم کړې شوې دې هغه ترک کول شامل دی لهذا ته د محارم یعنی د هغه څیزونو نه ځان بچ کړه، کوم چه شریعت حرام کړی دی ددې مطلب دا شو چه نه صرف د ممنوع او حرام څیزونونه اجتناب اوکړه بلکه شریعت چه د کومو څیزونو د اختیارولو حکم کړې دې دهغې ترک کولو نه هم اجتناب کړو

**قوله: تَكُنْ أَعْبَدَ النَّاسِ:** محارم نه اجتناب کولو والا ته د ټولو نه زیات عبادت ګزار بنده په دې اعتبار سره وئیلې شوې دې چه د محارم نه اجتناب کول ګویا چه هغه فرائض پورا کول دی کوم چه الله تعالی په ذمه اچولی و او ظاهره ده چه د فرائضو پورا کولو نه افضل یو عبادت هم نشته بلکه عام خلق فرائض ترک کوی یا ددې طرف ته کمه توجه ورکوی او په کثرت نوافل کښې مشغوله وی نو دغه شان ګویا چه هغوی اصول او بنیاد خو ضائع کوی او فروعات اوفضائل اختیاروی

**قوله: وَارْضَ بِمَا قَسَمَ اللّٰهُ لَكَ:** په تقدیر الهی باندې راضی او مطمئن کیدل او په خپل تقسیم باندې صبر او شکر کول، یعنی کله چه بنده په خپل تقسیم باندې راضی او مطمئن شی او د طمع او حرص نه پاک شی نو بیا هغه مستغنی او بے پرواه شی او د غنٰی اصل مفهوم

هم دغه دي

**[۵۱۷۲] څکه د پریشانو نه نجات غواړې نو عبادت دپاره ځان فارغ کړه**

۵۱۷۲-() [۱۸] [۱] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲]" «إِنَّ اللّٰهَ يَقُوْلُ: ابْنَ آدَمَ! تَفَرَّغْ لِعِبَادَتِي أَمْلَأْ صَدْرَكَ غِنًى وَأَسُدَّ فَقْرَكَ، [۳] وَإِنْ لَا تَفْعَلْ مَلَأْتُ يَدَكَ شُغْلًا وَلَمْ أَسُدَّ فَقْرَكَ» ). رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت ابوهریره رضی الله عنه وایي، چې رسول الله ﷺ وفرمایل. [۲] الله تعالی فرمایي، اې ابن آدم! ځما عبادت د پاره ته خپل زړه په ښه شان مطمئن او فارغ کړه، زه به ستا سینه (زړه) د استغناء نه ډکه کړم یعنی ستا زړه به د علوم او معارف د دولت نه مالا مال کړم، چې د هغه په سبب به ته د غیر الله نه بي نیازه او مستغني شئ او ستا د پاره به د فقر او افلاس لار بند کړم، [۳] که تا داسي ونه کړه (یعني کوم حکم چې ما درکړی دی چې دنیا نه بي پروایي اختیارولو سره د خپل رب عبادت طرف ته متوجه اوسه، چې داشی دنیا او آخرت دواړه ځایه فائده رسوي، که تاددي حکم نه مخ واړولو، او خپل قوتونه فکر او عمل دي ځما په عبادت کې د مشغول ساتلو په ځای صرف دنیاوي امور او د خپل خواهشاتو تکمیل کې مشغول وساتل) نو زه به ستا لاسونه او نور قوتونه عمل د قسم قسم تفکراتو او مشاغلو نه ډك کړم، او ستا فقر او احتیاج به لري نه کړم (احمد، وابن ماجه)

**حل اللغات**:- ① أَمْلَأْ: زه به ډکه کړم، ② غِنًى: مالداری، بې پرواهی، ③ أَسُدَّ: بند به کړم،

**تسهیلات**:

**قوله**: ابْنَ آدَمَ! تَفَرَّغْ لِعِبَادَتِي: دَدې حدیث مطلب دادې چه الله تعالی انسان ته لارخودنه کوی چه اې انسان ته زما دَ عبادت اوطاعت دپاره ځان فارغ کړه زه به ستا ټول ضرورتونه پوره کړم اودَ فقر اوفاقې لارې به دربانديې بندې کړم او ستا زړه به دَ استغناء نه ډك کړم بس ته دَ آخرت په فکرکښې اخته شه زه به ستا دنیا جوړه کړم

**قوله**: وَإِنْ لَا تَفْعَلْ مَلَأْتُ يَدَكَ شُغْلًا: یعنی که چرې ته داسې نه کوې نوزه به ستالاسونه دَ دنیا په مشاغلو ،مادی تفکراتو او دَ زمانې دَ مشکلاتونه ډك کړم بیا به سرهولې بروهلې ګرځې او در په در به ټکرې خورې نه به په لاس څه درځی او نه به دې زړه مستغنی وی."کونوا أبناء الآخرة ولاتكونوا أبناء الدنيا" یعنی دَ آخرت بندیګان جوړشئ دَ دنیا بندیګان مه

---

[۱]) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب صفة القیامة والرقائق والورع عن رسول الله صلی الله علیه وسلم /باب (رقم-۲۴۶۶) وابن ماجه فی کتاب الزهد /باب الهم بالدنیا (رقم-۴۱۰۷)

جوړيږئی "ابن آدم" دا منادیٰ دي دلته حرف ندا محذوف دي اصل عبارت "یاابن آدم".

**[۵۱۷۳] دَ تقویٰ برابر هيڅ عبادت نشته**

۵۱۷۳ -() [۱۹] [۱] وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «ذُكِرَ رَجُلٌ عِنْدَ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِعِبَادَةٍ وَاجْتِهَادٍ، [۳] وَذُكِرَ آخَرُ بِرِعَةٍ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۴] (لَا تَعْدِلْ بِالرِّعَةِ). (يَعْنِي الْوَرَعَ») رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه :** [۱] او حضرت جابر ﷺ وايي. [۲] د رسول الله ﷺ په مخکې د يو سړي ذکر وشو چې کثرت سره عبادت او طاعت کې مشغول وي، او په دي کې ډير زيات کوشش کوي. اگر که هغه گناهونو نه ډير کم پرهيز کوي [۳] او د يو دويم سړي باره کې ذکر وشو. چې پرهيزگاري اختياروي نو حضور ﷺ نه پوښتنه وشوه. چې مخکنی سړی افضل دی یا دويم سړی نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل [۴] چې پرهيزگاري نه بغير کثرت عبادت او طاعت او په هغه کې کوشش کول د پرهيزگاري برابر مه گرځوئ اگر که د هغه د پرهيزگاری سره د عبادت او طاعت دومره کثرت او کوشش شامل نه وي

**حل اللغات :-** ① الرِّعَةِ: يَعْنِي الْوَرَعَ: دَ عدة په وزن باندې دي، ورع تقویٰ ته وائی.

**تسهيلات:**

**د بعضې مشکلو جملو وضاحت :**

① ذُكِرَ رَجُلٌ عِنْدَ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِعِبَادَةٍ وَاجْتِهَادٍ: يعنی دَ حضورپاك په مخکښې چا دَ يو سړی تذکره اوکړه چه هغه ډير زيات عبادت کوی مگر دَ گناهونو نه بچ کيدو کښې لږ کمزورې دې.

② وَذُكِرَ آخَرُ بِرِعَةٍ: په راء کسره ده او عين باندې زبر دې دا دَ ورع په معنی کښې دې او ورع تقویٰ ته وائی او تقویٰ دَ گناهونونه بچ کيدو ته وائی يعنی دَ يوبل سړی تذکره دَ حضورپاك په مخکښې داسې اوشوه چه هغه دَ گناهونونه دَ بچ کيدو ډير زيات کوشش کوی سره دَدې چه په کثرت سره عبادت نه کوی

**قوله : لَا تَعْدِلْ بِالرِّعَةِ:**

**په مذکوره صيغه کښې دوه احتمالات :** ① دا نهی دَ معروف صيغه ده حضورپاك جواب ورکړو چه کثرت عبادت دَ تقویٰ او گناهونونه دَ بچ کيدو برابر مه گرځوه

② دا مجهول هم کيدې شی يعنی په تاء باندې ضمه وی او په دال به فتحه وی او صيغه

---

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-۲۵۱۹)

به دَنفي وی په دې صورت کښې به مطلب دا وی. چه په شريعت کښې هيڅ يو خصلت د
تقوىٰ مقابله نه شي کولې دَتقوىٰ خصلت دَ ټولو نه اوچت دې

**دَتقوى تعريف**: ورع او تقوىٰ هم يو شيزدې ددې دواړو يوشو تعريفونه دی ونی ګورني
علامه مير سيد سند شريف جرجانی خپل کتاب التعريفات کښې د تقوىٰ او ورع تعريف
داسې فرمائی

① التقوى في اللغة بمعنى الاتقاء وعند أهل الحقيقة هو الاحتراز بطاعة الله عن عقوبته.

② وقيل محافظة آداب الشريعة.

③ وقيل مجانبة كل ما يبعدك عن الله.

④ وقيل ترك حظوظ النفس ومباينة النهي.

⑤ وقيل أن لا ترى في نفسك شيئاً سوى الله.

⑥ وقيل أن لا ترى نفسك خيرا من أحد.

⑦ وقيل الاقتداء بالنبي قولاً وفعلاً.

⑧ والورع هو اجتناب الشبهات خوفا من الوقوع في المحرمات.

⑨ وقيل هو ملازمة الأعمال الجميلة (تعريفات ص:۵۷ وص:۲۲۴)

⑩ وقال الراغب الأصفهاني الورع في عرف الشرع عبارة عن ترك التسرع الى تناول أعراض الدنيا وذلك ثلاثة أضرب (الف) واجب وهو الاحجام عن المحارم وذلك للناس كافة. (ب) وندب وهو الوقوف عن الشبهات وذلك للأوساط من الناس. (ج) وفضيلة وهو الكف عن كثير من المباحات والاقتصار على أقل الضرورات وذلك للنبيين والصديقين والشهداء والصالحين.

پورتنی ټول تعريفونه ما په عربی کښې نقل کړی دی دَ پوهيدونکو دَپاره ذخيره ده اوس
دوه تعريفونه په پښتو کښې اوګورئی. حضرت عمر ﷺ يوه ورځ دَ يو سړی نه تپوس اوکړو
دَ تقوى مفهوم څه دې نودغه سړی اووئيل چه دَ تقوىٰ مفهوم داسې دې چه مثلاً يو سړې
په ازغنه لار تيريږی مګر هغه خپلې کپړې اوخپل بدن دَ جهاړو او ازغنونه بچ کولو سره
تيريږی دا دَ تقوىٰ تصور دې بعضې احاديثو نه دَتقوىٰ مفهوم داسې راوځی چه سړې
ظاهراً اوباطنًا خپله معامله خپل رب سره صفا اوساتی

**[۵۱۷۴] پنځه څيزونه د پنځو څيزونو نه مخکښې غنيمت اوګڼره**

۵۱۷۴–(١) [۲۰] ١ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ مَيْمُونٍ الْأَوْدِيِّ قَالَ: ٢ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لِرَجُلٍ وَهُوَ يَعِظُهُ: ٣ "«اغْتَنِمْ خَمْسًا قَبْلَ خَمْسٍ: ۴ شَبَابَكَ قَبْلَ هَرَمِكَ، وَصِحَّتَكَ قَبْلَ سَقَمِكَ، وَغِنَاكَ قَبْلَ فَقْرِكَ،

١) اخرجه البغوى فى شرح السنه رقم الحديث ۴۰۲۱

۵وَفَرَاغَكَ قَبْلَ شُغْلِكَ، وَحَيَاتَكَ قَبْلَ مَوْتِكَ»" رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ مُرْسَلًا.

**ترجمه** : ۱او حضرت عمرو ابن میمون (تابعي) رحمه الله وايي، ۲رسول الله ﷺ يو سړي ته نصيحت كولو سره وفرمايل، ۳پنځخيزونه د پنځه ځيزونو نه مخكې غنيمت وګڼه، يعنى پنځه حالتونه دا سې دى، چې ترځوپورې هغه مو جود وي، نو هغه پنځه حالتونه غنيمت وګڼه مخكې دهغه حالتونونه كوم چې آئنده زمانه كې پيښيدونكي دي. ۴۱ بوډاتوب د ځواني نه مخكې، يعنى خپله دا زمانه غنيمت وګڼه، او د دې نه پوره فائده واخله، چې په هغه كې تاته د عبادت او طاعت پوره موقع ده او د الله د دين د خورولو طاقت او همت حاصل وي، قبل د دې نه چې ستا د جسماني زوال زمانه راشي او ته د عبادت او طاعت وغيره كولو كې ضعف او كمزوري محسوسول شروع كړې. ۲ بيماري نه مخكې صحت، يعنى ايمان نه پس چې كوم شى د ټولو نه لوى نعمت دى، هغه صحت او تندرستي ده، نو د خپل صحت او تندرستى په زمانه كې اګر كه د بوډاتوب دور كې وي، خپل ديني او دنياوي خير او بهتري د پاره چې څه كولاي شى هغه كوه. ۳ فقر او افلاس نه مخكې توانګري اوخوشحالي، يعنى تاته چې كوم مال ودولت نصيب دى، قبل د دې نه چې هغه ستا دلاس نه ووځي، يا د مرګ پيښنه تا د هغه نه جدا كړي، ته هغه عبادتِ ماليه او صدقات او خيرات كې خرچ كوه، او دا دولتمندي او خوشحالي يوداسې د غنيمت موقع وګڼه، چې په هغه كې ته خپل اخروي فلاح او سعادت د پاره ډير څه كولاي شى، ۵۴ مشاغل او تفكراتو كې مبتلا كيدو نه مخكې د وخت فراغت او اطمينان، ۵ د مرګ نه مخكې ژوند، دا روايت ترمذي رحمه الله بطريق ارسال نقل كړى دى

**حل اللغات** :- ۱اِغْتَنِمْ: غنيمت اوګڼره، ۲شَبَابَ: ځوانى، ۳هَرَمِ: بوډاتوب، ۴سَقَم:بيمارى

**تسهيلات:**

**د بعضې جملو وضاحت:**

۱ **اِغْتَنِمْ خَمْسًا قَبْلَ خَمْسٍ**: دا د "اغتنام" نه مشتق دې چه معنى ئې مال غنيمت ده او غنيمت په اصل كښې هغه مال ته وائى كوم چه د كفارو سره د جنګ نه بعد مسلمانانو ته حاصل شى،

۲ **شَبَابَكَ قَبْلَ هَرَمِكَ**: "**أي زمان قوتك على العبادة قبل كبرك وضعفك عن الطاعة**" يعنى د ځوانى عبادت غنيمت اوګنړه د بوډها والى او د كمزورى په وخت كښې اطاعت او عبادت كولو نه ځكه چه الله تعالى ته محبوب او خوښ هغه عبادت دې كوم چه د قوت او د ځوانى په حالت كښې وكړې شي، ددې وجهې نه په احاديثو كښې ددې فضائل بيان شوى دى.

۳ **وَحَيَاتَكَ قَبْلَ مَوْتِكَ**: "**ولوفي الكبر المقرون بألهرم والمرض والفقر**" ژوند غنيمت اوګنړه اګر كه

هغه په بوډها والی کښې د بیماری او فقر سره ولی نه وی، یعنی څومره ژوند چه باقي دي هغه د الله تعالی په یاد کښې تیرول پکاردی (التعليق الصبيح ج٦، ص١٧)

**[۵۱۷۵] د مرګ دپاره هر وخت تیار اوسیدل**

۵۱۷۵-(١) [٢١] [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [٢] "«مَا يَنْتَظِرُ أَحَدُكُمْ إِلَّا غِنًى مُطْغِيًا، [٣] أَوْ فَقْرًا مُنْسِيًا، [٤] أَوْ مَرَضًا مُفْسِدًا، [٥] أَوْ هَرَمًا مُفَنِّدًا، [٦] أَوْ مَوْتًا مُجْهِزًا، [٧] أَوِ الدَّجَّالَ، فَالدَّجَّالُ شَرُّ غَائِبٍ يُنْتَظَرُ، [٨] أَوِ السَّاعَةَ، وَالسَّاعَةُ أَدْهَى وَأَمَرُّ»" رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه**: [١] او حضرت ابوهریره ﷺ د نبي کریم ﷺ نه روایت کوي، رسول الله ﷺ وفرمایل، [٢] په تاسو کې یو سړی د توانګري انتظار کوي، چې ګنهګارونکی [او د امر او نهي د حدودو نه متجاوز کوونکی] دی، [٣] د فقر او افلاس انتظار کوي، چې طاعت حق هیرونکی دی [یعنی فقر او افلاس کې مبتلا کیدونکی سړی د لوږې او ښکاره مصائبو کې ګرفتاریدو سره او د ضروریات ژوند دحصول په چکر کې منبتو سره د الله عبادت او طاعت نه غافل کیږي]، [٤] یا د بیماري انتظار کوي، چې [د خپلې سختی او شدت په وجه بدن یا د کمزوری یاسستی په سبب دیني ژوند] تباه کونکی دی. [٥] یا د سخت بوډاتوب انتظار کوي، چې [بې عقل او بدحواس او بیهوده ګو] یې جوړوي، [٦] یا د مرګ انتظار کوي. چې ناګهانه کار یې تول کی، [چې بعضې وخت د توبې کولو موقع هم پیدا نه کې]. [٧] یا د دجال انتظار کوي، [چې په آخره زمانه کې به راوځي او خلق به ګمراهي او فتنې کې مبتلا کړي] نو هغه بدخصلت دجال خو لا اوس ښکاره شوی نه دی، د هغه انتظار کیږي. او هغه به په آخره زمانه کې ښکاره کیږي، [٨] یا د قیامت انتظار کوي، چې حوادثو او آفاتو کې د ټولو نه زیات سخت او شدید دی. (ترمذي، نسائي)

**حل اللغات**:- ① غِنًى: مالداری. ② مُطْغِيًا: سرکشه کونکې، نافرمانه کونکې. ③ مُنْسِيًا: هیرونکې. غافل کونکې. ④ هَرَمًا: بوډاتوب. ⑤ مُجْهِزًا: زر، ناڅاپی. ⑥ أَدْهَى: ډیر سخت. خطرناک. ⑦ أَمَرُّ: تریخ. ناخوښه

**تسهیلات**:

**قوله: مَا يَنْتَظِرُ أَحَدُكُمْ**

**دنیکواعمالو دپاره د امت راپیداړول**: دا کلام د زجر، توبیخ او رټنې په انداز کښې دې په دې سره په عبادت کښې سستی کونکی بیداړولې شی مطلب دادې چه اې سستی کونکو مسلمانانو تاسو به د خپل رب عبادت کله کوئی؟ د کوم څیز انتظار دې؟

١) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الزهد عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی المبادرة بالعمل (رقم-٢٣٠٦)

**دحديث د بعضې جملو وضاحت:**

① **أَوْغِنًى مُطْغِيًا**: یادَ داسې مالدارئی په انتظار یئی کوم چه په طغیان او سرکشئی کښې راګیرونکې وی

② **أَوْمَرَضًا مُفْسِدًا**: داسې مرض چه دَ خپل سختوالی په وجه سره بدن بې کاره کړی یا په دین کښې سستی یا کمزوری پیدا کړی.

③ **هَرَمًا مُفَنِّدًا**: ماخوذ من الافناد دې نه مراد داسې بوډاوالې دې چه په عقل کښې خرابوالې او خلل پیدا کړی او چه سړې په صحیح خبروکولو باندې هم قادر نه وی او ذی رائې هم پاتې نه شی.

④ **مَوْتًا مُجْهِزًا**: بالجیم والزاء من الاجهاز بمعنی الاسراع مراد داسې مرګ چه ناځاپې راشی او دتوبه او وصیت موقع هم ورنه کړی

⑤ **أَوِالدَّجَّالَ**: یا دَهغه دجال انتظاردې کوم چه هم شر اوشردې دَ کوم چه انتظارکولې شی

⑥ **أَوِالسَّاعَةَ فَالسَّاعَةُ أَدْهَى وَأَمَرُّ**: ادهی په معنی اشد الدواهی یعنی دَ سخت مصیبت والا قیامت - امر: ای اکثرمرارة زیات تریخ.

**[۵۱۷۶] دنیا ټوله ملعونه ده خو بغیر دَ ذکر الله عالم او متعلم نه**

۵۱۷۶-()[۱] [۲۳] وَعَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [۲] "«أَلَا إِنَّ الدُّنْيَا مَلْعُونَةٌ مَلْعُونٌ مَا فِيهَا، [۳] إِلَّا ذِكْرُ اللهِ وَمَا وَالَاهُ، [۴] وَعَالِمٌ أَوْ مُتَعَلِّمٌ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهریره رضي الله عنه نه روایت دی، چې رسول الله ﷺ وفرمایل، [۲] یادلرئ! دنیا ملعونه ده [یعنی دنیا د بارګاه الهي نه شړل شوي ده، ځکه چې داخلق د الله جل جلاله نه لرې ساتئ] او کوم شی چې په دنیا کې دننه دی، هغه هم ملعون دی، [یعنی د دنیا کوم ځیزونه چې انسان د ذکر الله نه غافل کوي، هغه هم راندهٔ درګاه او شړل شوی ګرځول شوی دی] [۳] البته ذکر الله د الله خوښ ځیزونه [۴] عالم او متعلم [هغه ځیزونه دي، چې بارګاه رب العزت کې مقبول ګرځول شوی دی] (ترمذي، ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① مَلْعُونَةٌ: لعنت کړې شوې، ② مَاوَالَاهُ: کوم چه ددې سره نزدې وی

**تسهیلات:**

**دحديث د بعضې جملو وضاحت:**

**قوله: أَلَا إِنَّ الدُّنْيَا مَلْعُونَةٌ**: دَدنیاچه کوم ځیزونه دَ الله تعالی په نیزباندې ملعون دی دَهغې

---

(۱) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الزهد عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب منه (رقم-۲۳۲۲) وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب مثل الدنیا (رقم-۴۱۱۲)

په مراد حرام او ناخوښه خيزونه دي مطلب دا چه د هغه ناجائز امورو نه اجتناب اوکړئي چه دَ الله تعالى په نيز قابل د لعنت او نفرت دي

**قوله**: إِلَّاذِكْرُاللهِ: يعنى کوم څيزونه چه د الله تعالى په نيز مقبول او خوښ کړې شوی دی هغه خپل کړئي لکه دَ الله تعالى ذکر، تعليم اوتعلم، طاعات اوعبادات شو ددې په خپلولو سره به تاسو دَ الله تعالى په دربارکښې مقبول جوړشئي ځکه چه دا څيزونه دَ الله تعالى په نيز مقبول او محبوب دی

**قوله**: وَمَاوَالَاهُ،وَعَالِمٌ أَوْمُتَعَلِّمٌ: وَالَاهُ

**دموالات په مفهوم کښې درې اقوال**:

① محبوب اوخوښ کړې شوې مطلب به دا شي چه دَ الله تعالى ذکر الله تعالى ته محبوب اومقبول دې دَ ذکرالله نه علاوه چه کوم ښه اعمال دی هغه هم الله تعالى ته محبوب اومقبول دی

② تـبع او لازم مطلب دا چه الله تعالى ته ذکر الله ډير خوښ دې اودَ دې لوازمات اومقتضيات اوتوابع هم ورته ډيرخوښ دی چه هم دَ ذکرالله دَ قسم نور اقسام دی

③ قرب او نيزديکت مطلب داچه الله تعالى ته ذکر الله ډير خوښ دې او کوم څيزونه چه ذکر الله ته نيزدې نيزدې دی يعنى دَ انبياء کرامو او اولياء عظامو تذکرې اودَ هغوی دَ نيکو اعمالو تابعداری وغيره

**[۵۱۷۷] دالله په نزد د دنيا حيثيت د مچ د وزر برابر هم نه دې**

وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② «لَوْ كَانَتِ الدُّنْيَا تَعْدِلُ عِنْدَ اللّٰهِ جَنَاحَ بَعُوضَةٍ ③ مَا سَقَى كَافِرًا مِنْهَا شَرْبَةَ مَاءٍ» " رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَه.[1]

**ترجمه**: ① او حضرت سهل ابن سعد رضی الله عنه وايي، چی رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل. ② که دي دنيا د الله په نز د ماشي د وزر برابر هم وقعت لرلی. ③ نو الله تعالی به د دې نه کافر ته يو غړپ او به هم نه وې ورکړي (احمد، ترمذي، ابن ماجه)

**حل اللغات**: - ① تَعْدِلُ: برابر. ② جَنَاحَ: وزر. ③ بَعُوضَةٍ: ماشې. ④ شَرْبَةَ مَاءٍ: د اوبو ګوټ

**تسهيلات**:

**قوله**: لَوْكَانَتِ الدُّنْيَاتَعْدِلُ عِنْدَاللهِ جَنَاحَ بَعُوضَةٍ:

[1] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الزهد عن رسول الله صلی الله علیه وسلم /باب ما جاء فی هوان الدنيا علی الله عز وجل (رقم-۲۳۲۰) (رقم-۲۳۲۱) وابن ماجه فی کتاب الزهد /باب مثل الدنيا (رقم-٤١١٠)

**دالله تعالى په نيز د دنيا د حقارت مثال:** يعني دَ دنيا وقعت اوقدر اوقيمت دَ الله تعالى په نيز دَ ماشى دَ وزر برابر هم نه دي دا يو بې معنې او بې حقيقته څيز دي څكه كه چرې كافرته هم دنيا حاصله شى نوهيڅ حرج نه دي كه دَ الله تعالى په نيزدَ دنيا معمولى شان هم قدر اوقيمت وې نو په دنيا كښې به كافرانو ته يو گوټ اوبه هم نه ملاويدې لهذا دَدې بې حقيقته اوعارضى متاع نه دي كافران هم فائده اوچته كړى دَدې حديث په اوريدو هرمسلمان له دا عقيده لرل پكاردى چه دَدنيا زياتوالې دَ انسان دَ مقبوليت علامت نه دې بلكه دادَ ذمه وارئى او مسؤليت علامت دې. الله تعالى دنيا مسلمان اوكافر دواړو ته وركوى مگر دين او علم صرف مسلمان ته وركوى.

**[۵۱۷۸] دنيا كښې د پوره مشغوليدو مذمت**

۵۱۷۸ -()[۱][۲۳] وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] " «لَا تَتَّخِذُوا الضَّيْعَةَ [۳] فَتَرْغَبُوا فِي الدُّنْيَا» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي (شُعَبِ الْإِيمَانِ).

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن مسعود رضي الله عنه وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل. [۲] معاش وتجارت وغيره داسې مه اختياروئ، [۳] چې هغه دنيا طرف ته د رغبت سبب جوړ شى (ترمذي. بيهقي)

**حل اللغات:** - ① الضَّيْعَةَ: جائيداد جوړولو ته ضيعة وائى مثلا زمكې اخستل. كارخانې اوتجارت اوكاروبار اوجائيداد جوړول، دا ضيعة دي ② تَرْغَبُوا: رغبت يعنى مينه محبت به پيدا شى ستاسو.

**تسهيلات:**

**قوله:** لَا تَتَّخِذُوا الضَّيْعَةَ فَتَرْغَبُوا فِي الدُّنْيَا:

**دآخرت څخه غافله كونكى دنيا پرستئ ممانعت:** دَحديث مطلب دادې چه داسې جاگيرونه مه جوړوئى په دې سره به دَ قناعت او دَ صبر په ځائى نورپه حرص اولالچ اودَ دنيا په محبت راگيرشئى بيابه داسې مقام ته اورسئى چه واپس به راؤ نه گرځيدې شئى اوهم دَدنيا به شئى آخرت اودَ آخرت اعمال به درنه پاتې شى تجربه گواه ده چه هم دغه شان كيږى.

**ددنيا دَ گټلو جواز:** دَدې حديث دامطلب نه دې چه دَدنيا جائز كاروبار مه كوئى دَ حلالې گټې نه اسلام منع نه كوى بلكه دَهغه كاروبار نه ويره وركړې شوى ده دكوم په وجه چه

---

[۱] ) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب الزهد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب منه (رقم-۲۳۲۸) واحمد فى المسند: ۳۷۷/۱

سرېږ دَ عبادت او طاعت نه غافل شي اوبیا دَ مالي حقوقو دَ ادا کولو نه هم پاتې شي ښکاره خبره ده چه دا هم تباهي ده په حدیث کښې دی «کونوا أبناء الآخرة ولا تکونوا من أبناء الدنیا»، دا واضح اعلان دي

**[۵۱۷۹] دنیا سره زیات محبت آخرت ته نقصان ورکوی**

۵۱۷۹-( )[۱][۲۵] وَعَنْ أَبِي مُوسَى -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«مَنْ أَحَبَّ دُنْيَاهُ أَضَرَّ بِآخِرَتِهِ، [۳] وَمَنْ أَحَبَّ آخِرَتَهُ أَضَرَّ بِدُنْيَاهُ، [۴] فَآثِرُوا مَا يَبْقَى عَلَى مَا يَفْنَى» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي (شُعَبِ الْإِيمَانِ).

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوموسیٰ ﷺ وایي، چې رسول الله ﷺ وفرمایل. [۲] کوم سړی چې خپله دنیا دوست لري (دومره دوست لرل چې د الله په محبت باندې غالب شي) نو هغه خپل آخرت ته نقصان رسوي [یعني په آخرت کې خپله درجه کموي ځکه چې د دې دنیا محبت باندې غالب شي، نو د هغه ظاهر او باطن هروقت دنیاوي امورو کې مشغول وي، او د هغه په وجه هغه امورِ آخرت او طاعتِ الٰهي د پاره فراغت او موقع نه محروم وي]. [۳] او کوم سړی چې خپل آخرت دوست ساتي، هغه خپلي دنیا ته نقصان رسوي. [ځکه چې هغه هر وخت په امورِ اخرت کې مشغولیدو په وجه دنیاوي امورو طرف ته متوجه نه پاتې کېږي، هرکله چې تاسو په دي پوهه شوئ، چې دنیا او آخرت دوستي یوبل سره جمع کیدی نشي]، [۴] نو [تاسو ته پکار دی] چې کوم شی فاني کیدونکی دی، یعنی دنیا په دي هغه شي ته ترجیح ورکړي، کوم چې باقي پاتې کیدونکی دی، یعنی آخرت (احمد، بیهقي)

**حل اللغات:** - ① أَضَرَّ: نقصان رسوی، ② آثِرُوا: ترجیح ورکړئ، ③ يَفْنَى: چه فنا کیږی.

**تسهیلات:**

**قوله: مَنْ أَحَبَّ دُنْيَاهُ أَضَرَّ بِآخِرَتِهِ:**

**د دنیا نزدیکت د آخرت بُعدیت:** کوم څیزسره چه محبت وی دَهغې تذکره په کثرت سره کیږی. اودکوم څیز تذکره چه په کثرت سره کیږی سړې هم په هغې کښې مشغول او مصروف کیږی. دَ بل طرف نه غفلت کښې راځي اوس که په زړه باندې دَ محبت دا کیفیت چرته دَ دنیا راغلو نو آخرت خولاړو اوکه چرې آخرت لاړو نو دنیا دې هم لاړه ځکه چه دنیا

۱) اخرجه احمد في السند: ۴۱۲/۴ والبیهقي في شعب الایمان رقم الحدیث ۱۰۳۳۷

او آخرت دوه بنې دی چه يوه بن راضي کيږي نو دويمه به ناراضه کيږي او څوك چه الله تعالى بچ کول غواړي هغه بچ شي حضورپاك په آخره کښې ترغيب ورکړو چه دنيا ناپائيداره ده د دې محبت بې کاره دې آخرت باقي او پائيدار دې لهذا هم دا اختيارکړئ

يار ناپائيدار دوست مدار دوستی راشايد اين غدار

**[۵۱۸۰] د مال دولت غلام جوړيدونکی با ندې د حضور پاك ﷺ لعنت**

۵۱۸۰-( ) [١] [٢٦] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [٢] " «لُعِنَ عَبْدُ الدِّينَارِ وَلُعِنَ عَبْدُ الدِّرْهَمِ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابوهريره رضی الله عنه د حضور ﷺ نه روايت کوي. حضور ﷺ وفرمايل. [٢] کوم سړی چې د دينار او درهم غلام جوړ شي، هغه ملعون دی (يا دامعنى ده چې کوم سړی د دينار او درهم غلام جوړ شي، په هغه دې لعنت وي) (ترمذي)

**تسهيلات:**

په دې حديث کښې د لعنت تذکره ده، الحاصل کوم کس چه د درهم او دينار عبادت کونکې وی او هر کار د دنيا دپاره کوی نو هغه ملعون دې.

**[۵۱۸۱] د جاه او مال محبت دَ دين دَپاره ډير نقصان دې**

۵۱۸۱-( ) [٢٧] [١] وَعَنْ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] " «مَا ذِئْبَانِ جَائِعَانِ أُرْسِلَا فِي غَنَمٍ [٣] بِأَفْسَدَ لَهَا مِنْ حِرْصِ الْمَرْءِ عَلَى الْمَالِ وَالشَّرَفِ لِدِينِهِ» " رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [١] او حضرت کعب رضی الله عنه ابن مالك خپل پلار نه نقل کوي، هغه ووېل، چې رسول الله ﷺ وفرمايل. [٢] دوه اوږي شرمخان که د بزو په رمه (ريوړ) کې پريخودل شي، [٣] نو دومره نقصان نه رسوي. څومره چې د انسان حرص چې د مال وجاه په حقله د هغه دين ته نقصان رسوي (ترمذي، دارمي)

**حل اللغات:** - ① ذِئْبَانِ: دوه شرمخان. ② جَائِعَانِ: چه اوږی وی دواړه. ③ غَنَمٍ: چيلۍ.

**تسهيلات:**

**قوله: مَا ذِئْبَانِ جَائِعَانِ:**

**د جان او مال د هلاکت تشبيه د شرمخانو سره:** شرمخ هسې هم يوجذباتی او ناخاپی حمله کونکې ناترسه ځناور دې ليکن چه کله سخت اوګې هم وی نو په حمله کولو کښې هغه

[1] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الزهد عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-٢٣٧٥)

[2] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الزهد عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-٢٣٧٦) واحمد فی السند: ٤۶٠/٣

بالکل پاگل کیږی دَ دوو لیوه ګانو شرمخانو تذکره کیدې شی دَدې وجې نه شوې وی چه په فساد خورولو کښې دا کامل اومکمل وی ځکه چه دوه جوړه شی نو ښه مسابقت سره به دَ چیلو رمه اوشلوی.په دې حدیث کښې یو طرف ته دَ هغه فساد اونقصان صورت پیش کړې شوې دې اوخودلې شوی دی چه دَ دوو شرمخانو نقصان د چیلودَپاره دَهغه نقصان نه کم تر دې کوم نقصان چه دَ سړی دین ته دَ حب مال اوحب جاه دَ وجې رسیږی دا دَ یو هیئت تشبیه دَ دویم هیئت سره ده کوم ته چه علم معانی اوعلم بیان کښې دَتمثیل نوم ورکړې شوې دې

**[۵۱۸۲] دَضرورت نه زیات په آبادئ باندې د پیسو خرچ کولو ممانعت**

۵۱۸۲-( )[۲۸] [۱] وَعَنْ خَبَّابٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] «مَا أَنْفَقَ مُؤْمِنٌ مِنْ نَفَقَةٍ إِلَّا أُجِرَ فِيهَا، [۳] إِلَّا نَفَقَتَهُ فِي هَذَا التُّرَابِ» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت خباب ﷺ د رسول الله ﷺ نه نقل کوي. حضور ﷺ وفرمایل. [۲] مسلمان د خپل معیشت مصارفو کې چې څه خرچ اخراجات کوي هغه ته د هغه ثواب ورکول کیږی [۳] علاوه د هغه خرچ نه چې هغه په خاوره کې کوي (ترمذي. ابن ماجه)[1]

**د راوي مختصر تعارف:**

**حضرت خباب بن ارت:** نوم خباب،کنیت ابوعبدالله،د پلار نوم ارت بن جندله وو نه جاهلیت په زمانه کښې غلام جوړ کړې شوې وو او په مکه کښې خرڅ شوې وو (۲)

**دخباب بن ارت مقام:**- خباب بن ارت ځکه نبی ﷺ ته د الله تعالی نه د عا او مدد غوستلو درخواست اوکړو.چه د الله تعالی په دین کښې دنور صحابو پشان دوی ته هم ډیر تکلیفونه رسیدلی وو.مولانا زکریا ﷫ فرمائی.حضرت خباب بن ارت په اولنو ورځ کښې د پنځو شپږو سړو نه پس ایمان ر راوړې وو.ځکه ئې ډیر وخته پورې تکیفونه برداشت کول.د کافرانو به ورته د اوسپنې زغره واغوستله.او په تکنړه غرمه کښې به ئې په شګلنه زمکه به واچولو.چه خولې به ترې نه بهیدلې.په زیاتو وختونو کښې به ستونی ستغ په ګرمو شګو واچولو.چه د هغې په وجه به ئې د ملا غوښه ورسته شوه.او او به غورځیدله.د ے د یو ے ښځې غلام وو.هغې ته چه خبر اورسیدو.چه د ے نبی ﷺ ته ورځی.نو د دې په سزا کښې به ئې اوسپنه ګرمه کړه.او په سر به ئې ورته داغ ورکولو.حضرت عمر په خپل دور خلافت کښې د حضرت خباب بن ارت نه د هغې تکلیفونو تپوس اوکړو.چه ده ته د کافرانو دوجے رسیدلی وو.چه د هغې څه تفصیل راته بیان کړه.دوی ورته عرض اوکړو.زه به درته څه یوه یوه واقعه بیانوم.زما د ملا نه قمیص اوچت کړئ.او اوګورئ.چه زما ملا

---

[1]) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الزهد عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء أن الغنى غنى النفس (رقم-۲۳۷۳) وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب فی البناء والخراب (رقم-۴۱۶۳)واحمد فی المسند:۱۱۰/۵

درته په زبان حال سره گويا شي.چه ما ته د الله په دين کښې دومره تکليفونه اومصيبتونه رسيدلي دي.چه حضرت عمر ئے ملا ښکاره کړه.او وے کتله.نو ټوله داغي داغي وه.په دغه وخت کښې حضرت عمر دا اقرار او اعتراف کوی.چه د کوم وخت نه پيدا شوې يم. ډيرے ملاګانې مے ليدلي دي.خو داسې داغداره او سوے لوے ملا خو ما د چا نه دهليدلې.بيا ورته دوی په خپله گويا شو.او ورته ئې عرض اوکړو.اې د مسلمانانو خليفه زه به د اسلام د حمايت او د ايمان راوړو په سزا کښې په ګرمو سروټکو باندې واچولې شوم.او په هغې به ئې راخکلم.تردې چه زما د ملا په وازګو او وينو به هغه بلے سروټکے مړے شوې.پکار خو دا وه.چه د هغوی زړه مطمئن وو.چه دومره تکيفونه مے د الله د دين د خاطره برداشت کړی د ی.الله تعالی به راته جنت راکوی.خو داسې نه وه.بلکه چه کله د اسلامی فتوحاتو دروازه پرانستے شوه.او دنياوی نعمتونه زيات شو.نو حضرت خباب به په دې ژړل.چه هسې نه زمونږ د تکليفونو بدله مونږه ته به دنيا کښې ملاو شي.او بيا په آخرت کښې د ابدی او لازواله نعمتونو نه محرومه شو.حضرت خباب د ديرشو کالو په عمر کښې په کوفه کښې وفات شو.او هم هلته کښې دفن شو.څه موده پس حضرت علی د خباب په قبر تيريدو.نو داسې ئے اوفرمائيل.الله تعالی دے په خباب رحم اوکړ ی په خپل شوق سره مسلمان شو.او په خوشحالئ ئے هجرت اوکړو.او په جهاد کښې ئې ژوند تير کړو.او مصيبتونه ئې اوزغمل.مبارك دے هغه کس وی.چه قيامت ياد ساتی.او د حساب کتاب تياري کوی.او په لږ مال صبر کوی.او خپل مالك راضی کوی.(٣)

**حل اللغات:** - ① أَجْرَ: ثواب ورکولې شی.

**تسهيلات:**

**قوله: إِلَّا نَفَقَتَهُ فِي هٰذَا التُّرَابِ:**

**د مذکوره حديث مصداق:** خپل ضروورياتو باندې مال خرچ کول. کور جوړول دا به ضروورياتو د ژوند کښې شامل دی، د کور په جوړولو کښې چه کومې روپۍ خرچ شی هغه نه ضائع کيږی ليکن که د ضرورت نه زيات کورونه جوړ کړې شی يا په عمارت کښې فضول نقش ونګار کول نو دا صحيح نه دې په حديث کښې هم دغه د ضرورت نه زيات تعمير مراد دې

**[٥٨٣] بې ضرورته په آبادئ باندې مال خرچ کولو کښې هيڅ خير نشته**

٥٨٣-(١)[٢٩] ① وَعَنْ أَنَسٍ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② «النَّفَقَةُ كُلُّهَا فِي

(١) اخرجه الترمذی فی السنن كتاب الزهد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی معيشة أصحاب النبی صلى الله عليه وسلم (رقم-٢٣٧٢)

سَبِيلِ اللَّهِ [٣] إِلَّا الْبِنَاءَ فَلَا خَيْرَ فِيهِ» ". [٤] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [١] او حضرت انس رضي الله عنه وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل، [٢] د ضروريات ژوند ټول اخراجات د الله په لار کې د خرچ کولو برابر دي، (يعنې انسان چې خپل خان او د خپل متعلقينو ضرورياتو باندې څه خرچ کوي، د هغه ورته ثواب ورکول کېږي، په شرط د دې چې د تقرب الهي نيت سره يې خرچ کړي). [٣] البته ضرورياتو او حاجت نه زيات تعمير باندې خرچ کول څه نيکي او ثواب نه لري، [٤] دا حديث امام ترمذي رحمه الله نقل کړی دی. او ويلې يې دی چې دا حديث غريب دی.

**حل اللغات:** - ① اَلْبِنَاءَ: آبادی، تعمير،

**تسهيلات:**

**قوله: النَّفَقَةُ كُلُّهَا فِي سَبِيلِ اللَّهِ إِلَّا الْبِنَاءَ فَلَا خَيْرَ فِيهِ:**

**د مذکوره آبادۍ څخه مراد:** په حديث الباب کښې ذکر دی چه داسې عمارت د مالک دپاره د قيامت په ورځ د وبال او د سختی سبب جوړيږي. دا خبره د واضح وی چه دا حکم د هغه عمارت دپاره دې کوم چه د ضرورت نه زيات وی او د شان وشوکت د اظهار او خان خودلو دپاره جوړ کړې شوې وی گنی چه کوم عمارت د ضرورت او د خير خيگړی او د مساجد ومدارس دپاره جوړ کړې شوې وی د هغې دا حکم نه دې.

### [٥٨٣] په بې ضرورته عمارت جوړولو باندې عذاب

٥٨٣ - (١) [٣٠] [١] وَعَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - «خَرَجَ يَوْمًا وَنَحْنُ مَعَهُ، [٢] فَرَأَى قُبَّةً مُشْرِفَةً، فَقَالَ " مَا هَذِهِ؟ " [٣] قَالَ أَصْحَابُهُ: هَذِهِ لِفُلَانٍ رَجُلٍ مِنَ الْأَنْصَارِ، [٤] فَسَكَتَ وَحَمَلَهَا فِي نَفْسِهِ، حَتَّى إِذَا جَاءَ صَاحِبُهَا [٥] فَسَلَّمَ عَلَيْهِ النَّاسُ فَأَعْرَضَ عَنْهُ، [٦] صَنَعَ ذَلِكَ مِرَارًا [٧] حَتَّى عَرَفَ الرَّجُلُ الْغَضَبَ فِيهِ وَالْإِعْرَاضَ عَنْهُ،

**ترجمه:** [١] او حضرت انس رضي الله عنه وايي، يوه ورځ رسول الله ﷺ يو ځای تلو د پاره بهر ووتی. زمونږ صحابه رضي الله عنهم يو جماعت هم په حضور ﷺ پسې پسې وو [٢] حضور ﷺ په لار کې يوه بلنده قُبّه وليده (د تحقير او نفرت لهجه کې) وفرمايل، دا څرنګه قبه ده؟ (يعني دا ناخوښه عمارت چا جوړ کړی دی) [٣] صحابه رضي الله عنهم عرض وکړو، دا قبه فلاني سړي جوړه کړي ده، چې يو انصاري دی، [٤] حضور ﷺ (په دي اوريدو سره) خاموش شو او (څه يي ونه فرمايل. ليکن) دا خبره يي د ناخوښی او غصي په طور په خپل زړه کې وساتله، تردي چې د هغه قبې مالک د حضور ﷺ په خدمت کې حاضر شو، [٥] او هغه د خلقو موجودگی کې حضور ﷺ ته سلام اووئيلو، نو حضور ﷺ خپل مخ مبارک واړولو [يعني يا خو حضور ﷺ د هغه د سلام جواب ورنه کی يا جواب خو يي ورکی، ليکن هغه نه يي

[1]) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأدب/ كتاب الأدب/باب ما جاء في البناء (رقم-٥٢٣٧) واحمد في المسند: ٣/٢٢٠

مخ مبارك وارولو او هغه طرف ته يي هيڅ توجه ونه کړه، چې هغه ته سبق حاصل شي، او نورو خلقو ته هم تنبيه اوشي) ۶ حضور ﷺ داسي څو ځله وکړل. [چې هغه سړي به ورته سلام کوي، او حضور ﷺ به جواب نه ورکوي، او هغه نه به يي مخ مبارك اړويا. ۷ آخر هغه سړي د حضور ﷺ په مخ مبارك دغصي اثار محسوس کړه. او د حضور ﷺ مخ مبارك ګرځولو سره د حضور ﷺ نفرت يي معلوم کې.

**حل اللغات:** - ① قُبَّةٌ: بالاخانه. ② مُشْرِفَةٌ: اوچته وه. ③ حَمَلَهَا فِي نَفْسِهِ: په زړه کښې ئې پټه او ساتله

۱ فَشَكَا ذَلِكَ إِلَى أَصْحَابِهِ وَقَالَ: ۲ وَاللَّهِ إِنِّي لَأُنْكِرُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. ۳ قَالُوا: خَرَجَ فَرَأَى قُبَّتَكَ. ۴ فَرَجَعَ الرَّجُلُ إِلَى قُبَّتِهِ فَهَدَمَهَا حَتَّى سَوَّاهَا بِالْأَرْضِ. ۵ فَخَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ذَاتَ يَوْمٍ، فَلَمْ يَرَهَا ۶ قَالَ: "مَا فَعَلَتِ الْقُبَّةُ؟" ۷ قَالُوا: شَكَا إِلَيْنَا صَاحِبُهَا إِعْرَاضَكَ، فَأَخْبَرْنَاهُ، فَهَدَمَهَا. ۸ فَقَالَ: "أَمَا إِنَّ كُلَّ بِنَاءٍ وَبَالٌ عَلَى صَاحِبِهِ إِلَّا مَا لَا، إِلَّا مَا لَا ۹" يَعْنِي إِلَّا مَا لَا بُدَّ مِنْهُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ۱ نو هغه سړي د هغه صحابه ؓ ته [چې د حضور ﷺ خاص مصاحب او همنشين وو]، د دې امر شکايت کولو سره يي وويل، ۲ په الله قسم زه داسي وينم لکه چې رسول الله ﷺ زما نه نا اشنا وي، [يعني زه د رسول الله ﷺ په مخ مبارك د اسي دغضب او غصي آثار وينم، چې هغه ما مخکې هيڅ کله نه وو ليدلي. او ماته د دې سبب هم معلوم نه دی چې حضور ﷺ ولې دومره سخت ناراضه دی] ۳ هغه صحابه ؓ ورته وخودل چې يوه ورځ رسول الله ﷺ ستا طرف ته تشريف وړی، هلته يي ستا قبه وليده. نو ناراضه شو ۴ هغه سړی په دې اوريدو سره سمدستي خپلي قبي طرف ته ورغلی او هغه يي وغورځوله، تردې چې د زمکي سره يي برابره کړه ۵ د دې واقعي نه پس، حضور ﷺ بيا هغه طرف ته تشريف يووړی او قبه يي هلته ونه ليده، ۶ نو معلومات يي وکړل. چې هغه قبه څه شوه، ۷ صحابه ؓ عرض وکړو، چې قبه جوړونکی ستاسو ﷺ د بې توجهي او ناراضګي مونږ ته شکايت کړي وو، او د هغه سبب يي د ريافت کی نو مونږ د صورت حال نه آګاه کی [چې حضور ﷺ ستا نه څکه ناراضه دی، چې تا د دې قبي په صورت کې يو ناخوښه تعمير کړی دی]، نو هغه سړي هغه قبه خرابه کړي ده، ۸ بيا حضور ﷺ د هغه عمارت د نا خوښئ او خپلي ناراضګي سبب بيانولو سره وفرمايل، چې يادلرئ، دا عمارت به دخپل جوړونکي د پاره په آخرت کې د وبال يعني عذاب سبب جوړيږي، إِلَّا مَا لَا إِلَّا مَا لَا ۹ يعنی علاوه د هغه څيز نه چې د هغه نه بغير څه چاره نه وي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ④هَدَمَهَا: ورانه ئې كره. ⑤وَبَالٌ: عذاب. ⑥مَالَا: يَعْنِي إِلَّا مَالَا بُدَّ مِنْهُ: يعني علاوه د هغه څيز نه چې د هغه نه بغير څه چاره نه وي

**تسهيلات:**

**نوټ** په آبادۍ باندې د پيسو لګولو وضاحت وراندې د حديث نمبر(۵۱۸۲) په تسهيل کښې تيرشوې دې

**[۵۱۸۵] د کفايت او قناعت يعني د ګذارې کولو نصيحت**

۵۱۸۵-() [۳۱] ① وَعَنْ أَبِي هَاشِمِ بْنِ عُتْبَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: ② «عَهِدَ إِلَيَّ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ③ " إِنَّمَا يَكْفِيكَ مِنْ جَمْعِ الْمَالِ خَادِمٌ وَمَرْكَبٌ فِي سَبِيلِ اللَّهِ» ④ " رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ. ⑤ وَفِي بَعْضِ نُسَخِ (الْمَصَابِيحِ) عَنْ أَبِي هَاشِمِ بْنِ عَتْبَدَ، بِالدَّالِ بَدَلَ التَّاءِ، وَهُوَ تَصْحِيفٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابو هاشم رضي الله عنه ابن عتبه رضي الله عنه وايي، ② چې رسول الله صلى الله عليه وسلم ماته وصيت کولو سره وفرمايل، ③ د دنيا د ټول مال نه څه چې ستا د پاره کافي دی، **هغه** د دې نه علاوه نورهيڅ نه دی، چې ستاسره يو خادم وي، او يوه سورلی وي، چې د الله په لار کې په کار راځي. [يعني که ته په دنياوي څيزونو کې څه ځان سره ساتل غواړې نو بس دا دوڅيزونه ساته. چې د سورلی د ځناورو په ذريعه جهاد، حج او حصول علم د پاره سفر وشي. او خادم هغه سفر کې ستا خدمت کوي، د دنيا داموالو نه د دې دوو څيزونو نه زيات هيڅ مه ساته. بلکې صرف يې کړه، حاصل داچې د دې ارشاد مقصود د دې امر تلقين کول دي. چې بقدر ضرورت مال او اسباب باندې اکتفاء او قناعت وشي او په هغه کې هم هغه څيزونه اختيار شي. چې د آخرت د لارې توښه وي] ④ داروايت احمد رحمه الله. ترمذي. نسائي او ابن ماجه نقل کړی دی ⑤ او د مصابيح بعضې نسخوکې د حديث سند. عن ابي هاشم ابن عتبد منقول دی. يعني عتبة کې د تاء په ځای دال دی. او دا غلط دی. چې د يو راوي د سهو نتيجه ده ګويا صحيح هاشم ابن عتبة دی

**حل اللغات:** - ①مَرْكَبٌ: سورلی

**تسهيلات:**

**قوله: إِنَّمَا يَكْفِيكَ مِنْ جَمْعِ الْمَالِ خَادِمٌ وَمَرْكَبٌ فِي سَبِيلِ اللَّهِ:**

**دخادم او سورلۍ ضرورت اصليه کښې داخليدل:** ددې مطلب دا دې چه خادم او سورلئ دې هم د الله رضا دپاره د وساتلې شي. محض د نفساني خواهشاتو يا نمائش دپاره دې

[1]) اخرجه الترمذي في السنن كتاب الزهد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-۲۳۲۷) وابن ماجه في كتاب الزهد/باب الزهد في الدنيا (رقم-۴۱۰۳) واحمد في المسند:۵/۲۹۰

اونه ساتلې شي، يعنى ددې نه مقصود بالذات دينى فوائد وى دنياوى فوائد بالتبع وى.
ددې وجې چه كوم كس ځان سره سورلى، خادمان، او مال په دې نيت اوساتى چه كله هم ضرورت شى نو دا به ددينى فوائدو دپاره استعمالولې نو بيا دا صحيح دى ځكه چه دا نيت خير دې لهذا د حديث الباب هرګز دا مطلب نه دې چه د سورلئ او خادم نه علاوه دې هيڅ يو څيز ځان سره اونه ساتلې شى بلكه مطلب دا دې چه بغير د ضرورت نه دا څيزونه ځان سره ساتل نه ډى پكار

**[۵۱۸۶] د ژوند دپاره د ضرورى څيزونو حد**

۵۱۸۶-()[۳۲] ۱ وَعَنْ عُثْمَانَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ۲ "«لَيْسَ لِابْنِ آدَمَ حَقٌّ فِي سِوَى هَذِهِ الْخِصَالِ: ۳ بَيْتٌ يَسْكُنُهُ، ۴ وَثَوْبٌ يُوَارِي بِهِ عَوْرَتَهُ، ۵ وَجِلْفُ الْخُبْزِ ۶ وَالْمَاءِ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت عثمان رضي الله عنه نه روايت دى، چې رسول الله ﷺ وفرمايل. ۲ ابن ادم ددې څيزونو نه علاوه په بل شي خپل حق نه لري. ۳ يو خو كور چې په هغه كې استوګنه اختيار كړي، [يعنى داسې كور چې د رهائشي ضرورياتو په قدروي. چې د يخنئ اوګرمئ نه يې محفوظ وساتي]، ۴ دويم كپړه چې په هغه سره ستر پټ شي. ۵ دريم بغير سالن خشكه روټۍ چې د هغه سره خپله لوږه دفع كي، ۶ او څلورم اوبه چې د هغه سره خپله تنده مړه كي. (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① الْخِصَالِ: د خصلة جمع ده. خوئى. ② يُوَارِي: چه پټ كړى. ③ جِلْفُ: اوچه روټۍ. روټۍ بغير د سالن نه.

**تسهيلات:**

**قوله**: وَجِلْفُ الْخُبْزِ وَالْمَاءِ: يعنى دتركارئ نه بغير روټئى يا هغه روټئى كومه چه زړه وى سخته او اوچه شوې وى دا دواړه مطلبونه به هغه وخت اخستې شى كله چه جلف كښې په جيم باندې كسره وى ليكن كه په جيم باندې زبر وى نو هغه وخت به دا دجلفة جمع وى كوم چه د روټئى اوچې ټكړې ته وائى

**[۵۱۸۷] د الله تعالى او د انسانانو په نيز د محبوب جوړيدو نسخه**

۵۱۸۷-()[۳۳] ۱ وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: ۲ «جَاءَ رَجُلٌ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! ۳ دُلَّنِي عَلَى عَمَلٍ إِذَا أَنَا عَمِلْتُهُ أَحَبَّنِيَ اللَّهُ وَأَحَبَّنِيَ النَّاسُ. ۴ قَالَ: "ازْهَدْ فِي الدُّنْيَا يُحِبَّكَ اللَّهُ ۵ وَازْهَدْ فِيمَا عِنْدَ النَّاسِ يُحِبَّكَ النَّاسُ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ۱ او سهل ابن سعد رضي الله عنه وايي، ۲ يو سړى (دربار رسالت كې) حاضريدو سره

---

[1] اخرجه الترمذى فى السنن كتاب الزهد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب منه (رقم-۲۳۴۱)واحمد فى المسند: ۶۲/۱
[2] اخرجه ابن ما جه فى السنن كتاب الزهد/باب الزهد فى الدنيا (رقم-۴۱۰۲)

عرض وکړو، یارسول الله، [٣] ماته څه داسې عمل وښايي، چې هغه اختيار کړم. نو الله زماسره محبت وساتي او خلق هم زماسره محبت کوي، [٤] حضور ﷺ ورته وفرمايل، دنيا نه زهد اختيار کړه ايعنى د دنيا محبت کې مه گرفتاريږه، د دې د فضولياتو نه مخ واړوه، او د امور آخرت طرف ته متوجه شه، که ته داسې وکړې، نو گويا ته به هغه شی نه نفرت کونکی شی کوم نه چې الله ﷻ نفرت کوي، او د دې په وجه به الله ﷻ ستاسره محبت کوي. [٥] او هغه شي طرف ته رغبت مه کوه، څه چې خلقو سره وي، يعنى جاه ودولت نو خلق به هم ستاسره محبت کوي (ترمذي، وابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① اِزْهَدْ: بې رغبتي اختيار کړه.

**تسهيلات:**

**قوله: اِزْهَدْ فِي الدُّنْيَا يُحِبَّكَ اللّٰهُ:**

**د زهد تعريف:** زهد هغه څيز ترک کولو ته وائي کوم چه د الله تعالى د ياد نه علاوه په بل څيز کښې مشغوله کونکې وى.

**د دنيا بې رغبتى د الله تعالى د محبت سبب:** د حديث مطلب دا دې که د الله تعالى د محبت طلبگار ئې نود دنيامحبت د زړه څخه اوباسه نوهله به درته د الله تعالى محبت ملاويږي ځکه چې دنيا الله تعالى ته مبغوض ده. اوڅوک چې د چا سره محبت کوى نو دمحبوب خوښ به ئې خوښ وى اودهغه ناخوښه به ئې ناخوښه وى.

**[٥٠٨٨] د دنيا په عيش اوآرام کښې د حضورپاک ﷺ نمونه**

٥٠٨٨-(١)[٣٠٢] ① وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - نَامَ عَلَى حَصِيرٍ، ② فَقَامَ وَقَدْ أَثَّرَ فِي جَسَدِهِ، ③ فَقَالَ ابْنُ مَسْعُودٍ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ، ④ لَوْ أَمَرْتَنَا أَنْ نَبْسُطَ لَكَ وَنَعْمَلَ ⑤ فَقَالَ: "مَا لِي وَلِلدُّنْيَا؟ وَمَا أَنَا وَالدُّنْيَا ⑥ إِلَّا كَرَاكِبٍ اسْتَظَلَّ تَحْتَ شَجَرَةٍ، ⑦ ثُمَّ رَاحَ وَتَرَكَهَا» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابن مسعود رضی الله عنه نه روايت دی، حضور ﷺ بوري باندې اوده شوي وو. ② او اوده کيدو نه پس څنې ولاړسو نو د حضور ﷺ په جسم مبارک د بوري نښاني لگيدلي وي. ③ دهغه په ليدو سره حضرت ابن مسعود رضی الله عنه عرض وکړو يارسول الله، ④ تاسو ﷺ مونږ ته اجازت وکړئ، چې مونږ ستاسو د پاره نرمه بستره جوړه کړو، او د ښو کپړو انتظام درته وکړو اچې تاسو ﷺ سختي بوري باندې څملاستلو سره بي آرامي محسوس نه کړيا. ⑤ حضور ﷺ ورته وفرمايل، ځما د دې دنيا آرام سره او د دې دنيا

---

(١) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب الزهد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-٢٣٧٧)وابن ماجه فى كتاب الزهد/باب مثل الدنيا (رقم-٤١٠٩)

زما سره څه کار؟ زما او د دنيا مثال خو داسې دی،[٦] څرنګه چې يو سوار د يوې ونې لاندې د سايې په تلاش کې راشي، او هلته څه وخت د پاره سايې نه فائده پورته کولو نه پس په خپله سورلۍ لاړ شي،[٧] او هغه ونه هلته پرېخودلو سره خپل منزل (پړاو) طرف ته روان شي.(احمد، ترمذي، ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① حَصِير: پوزکې، د ميزرې نه جوړشوې ټاټ، ② أَثَرَ: اثرات او نشانات ئې جوړ کړی وو، ③ تَنْشَطَ: مونږ به خورکړو، ④ اسْتَظَلَّ: سورې او سايه تلاش کوی، ⑤ رَاحَ: روان شی

**تسهيلات: قوله: مَا لِي وَلِلدُّنْيَا؟:**

په دې کښې حرف ما د نفی دپاره دې او مطلب ئې دا دې چه نه زما ددې دنيا سره څه محبت شته او نه ددې دنيا زما سره څه محبت شته چه زه ددې دنيا رغبت اوغواړم او ددې عيش وآرام اوغواړم او ددې د بے آرامۍ نه بچ کيدلو دپاره ددې نرمې بستری استعمال کړم.

"مالی" کښې ما صرف استفهاميه هم مراد اخستلې شی نو په دې صورت کښې به د جملې مطلب دا شی چه زما ددې دنيا سره څه تعلق دې او کوم محبت مې دې يا ددې دنيا طرف ته زما رغبت اوميلان ولی وی يا زما ددې دنيا سره د محبت کولو په وجه به ما ته څه نفع مند څيز حاصل شی ځکه چه زه خو د آخرت طلبګار يم او دنيا د آخرت بنه او ضد دې چه يو اخلې نو بل خفا کيږی.

**[٥١٨٩] دَ پسخيدو قابل صفات**

٥١٨٩-(¹) [٣٥] [١] وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [٢] «أَغْبَطُ أَوْلِيَائِي عِنْدِي لَمُؤْمِنٌ خَفِيفُ الْحَاذِ،[٣] ذُو حَظٍّ مِنَ الصَّلَاةِ،[٤] أَحْسَنَ عِبَادَةَ رَبِّهِ،[٥] وَأَطَاعَهُ فِي السِّرِّ،[٦] وَكَانَ غَامِضًا فِي النَّاسِ،[٧] لَا يُشَارُ إِلَيْهِ بِالْأَصَابِعِ،[٨] وَكَانَ رِزْقُهُ كَفَافًا، فَصَبَرَ عَلَى ذَلِكَ [٩]" ثُمَّ نَقَدَ بِيَدِهِ فَقَالَ:[١٠] «عُجِّلَتْ مَنِيَّتُهُ،[١١] قَلَّتْ بَوَاكِيهِ،[١٢] قَلَّ تُرَاثُهُ»). رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابو امامه رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه نقل کوي، حضور ﷺ وفرمايل.[٢] ځما په نزد (يعني ځما د دين او مذهب د اعتبار نه) ځما په دوستانو (ټول مؤمنانو) کې ډير قابل رشک [د پسخيدو قابل يعني د اموالو د اعتبار نه د ټولو نه ښه او د مال ودولت د اعتبار نه د ټولو نه افضل] هغه مؤمن دی، چې سپك بوج وی،[٣] مانځه نه ډير زيات حصه اخستونکي وي،[٤] او د خپل رب ټول عبادتونه په ښه شان کوي،[٥] او [څرنګه چې په ظاهر کې عبادت کوي، دغه شان] مخفي طور سره خلوت کې هم طاعت الٰهي کې

¹) اخرجه الترمذی فی السنن كتاب الزهد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی الكفاف والصبر عليه (رقم-٢٣٤٧) واحمد فی المسند:٥/٢٥٢

مشغول وي،[٦] په خلقو کې گمنام وي.[٧] چې هغه طرف ته په گوتو سره هم اشاري نه کېږي، ايعنی د خپل علم وعمل په سبب خلقو کې مشهور او معروف نه وي. بلکې ډيري بې نفسی سره گوشه نشيني او گمنامي کې پاتې کيدو سره د علم وعمل په ذريعه د دين وملت خدمت کوي]،[٨] او د هغه روزي (يعني د ضروريات ژوند خرچ) بقدر کفايت وي. او په هغه صابر او قانع وي،[٩] په دي فرمايلو سره حضور ﷺ د خپلو دواړو لاسونو مبارکو د گوتو په ذريعه ټك وركولو سره وفرمايل.[١٠] د هغه مرگ بس داسې يو دم خپل كار زر پوره كوي،[١١] او د هغه په مرگ ژړا كونكي ښځې هم كمې وي[١٢] او د هغه تركه ميراث هم ډيره مختصر يعنی د نه كيدو برابر وي (احمد، ترمذي. ابن ماجه)

**حل اللغات**:- ①أَغْبَطُ: دا دَ غطبه نه دې كوم چه دَ پسخيدو په معنى كښې دې ②خَفِيفُ الْحَاذِ: حاذ ملا اوشاته وائی يعنی دكم مال والا اوسپك بوج والا وی ③ذُوحَظٍّ: پوره حصه ئې وی ④الْبَزَّ: په پټه. ⑤غَامِضًا: هيركړې شوې وی په خلقو كښې مشهورنه وی. ⑥نَقَدَ: گوتو له ئې ټق وركړو. ⑦مَنِيَّتُهُ: مرگ دهغه. ⑧قَلَّتْ بَوَاكِيهِ: ژړيدونكی پرې كم وی، ⑨قَلَّ تُرَاثُهُ: ميراث او تركه ئې كمه وی

**تسهيلات**:

**د بعضې مشكلو جملو وضاحت**:

①أَغْبَطُ أَوْلِيَائِي عِنْدِي لَمُؤْمِنٌ خَفِيفُ الْحَاذِ: يعنی زما مسلمانانو دوستانو اومحبوبانو كښې دَ ټولو نه زيات دَ پسخيدو قابل كس هغه مسلمان دې. "أي أحق أحباءوأنصاری بأن يغبط به" [الكاشف: ٣٥٢/٩]

②لَا يُشَارُ إِلَيْهِ بِالْأَصَابِعِ: يعنی په گوتو او لاسونو سره دَ هغه طرف ته اشارې نه كيږی يعنی مشار اليه بالبنان نه وی دا دَ غامضًا تفصيل اوتفسير دې

**قوله**: ثُمَّ نَقَدَ بِيَدِهِ فَقَالَ:

**د مذكوره جملې وضاحت**: عام رواج دې چه دَ يو كار زركيدو طرف ته چه كله خلق اشاره كوی نودوه گوتې يوبل سره يوځائی كړی اوټق ترې اوباسی په كوم سره چه آواز اوځی دَ ښی لاس غټه گوته او مينځنئ گوتې بندونه يوبل سره زوره يوځائی كړی او كله چه جدا كوی نودَهغې نه يوآواز اوځی هم دغه په "نقدبيده" سره تعبيركړې شوې دې دكوم نه مراد چه زر پاسيدل اوتلل دی لكه چه دا سړې دَ دنيا نه بې تعلق كيدوسره دَالله تعالى په عبادت كښې لگيا شو دَ دنيا دَ لانجونه پاك اوصفا وتلوسره دَ ورك كس غوندې حالت كښې ډير زر خپل رب سره لاړو ملاؤ شو اودَدنيا دَ لانجو نه آزاد وو ځكه ئی نه څوك ژړا كونكې وونه مال اونه دَ ميراث جگړې وې نه تقسيم وونه حساب اونه كتاب وو

۵۱۹۰-(۱)[۳۶] ① وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② «عَرَضَ عَلَيَّ رَبِّي لِيَجْعَلَ لِي بَطْحَاءَ مَكَّةَ ذَهَبًا ③ فَقُلْتُ: لَا، يَا رَبِّ! وَلٰكِنْ أَشْبَعُ يَوْمًا وَأَجُوعُ يَوْمًا، ④ فَإِذَا جُعْتُ تَضَرَّعْتُ إِلَيْكَ وَذَكَرْتُكَ، ⑤ وَإِذَا شَبِعْتُ حَمِدْتُكَ وَشَكَرْتُكَ» "رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابو امامه رضي الله عنه وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل. ② خما رب خما مخکې دا امر ظاهر کی، چې هغه زما د پاره د مکې شګلنه زمکه سره زر (سونا) جوړ کړي ③ ليکن ما عرض وکړو، اې خما پروردګاره! (ماته د داسې شي قطعًا خواهش نشته، زه خو بس دا غواړم چې يوه ورځ په ډکه خيټه وخورم، او يوه ورځ اوږی يم. ④ چې کله اوږی يم، نو ستا په حضور کې زاری عاجزي بيان کړم، او تاياد کړم ⑤ او کله چې په خيټه موړ يم، نو ستا حمد او تعريف وکړم، او ستا شکر اداء کړم (احمد ، وترمذي)

**حل اللغات:** - ① عَرَضَ: پيش کړل، را وړاندې کړل. ② بَطْحَاءَ: د مکې شګلنه علاقه ده. ③ أَشْبَعُ: موړ يم. ④ أَجُوعُ: اوږې يم

**تسهيلات:**

**قوله: عَرَضَ عَلَيَّ رَبِّي لِيَجْعَلَ لِي بَطْحَاءَ مَكَّةَ ذَهَبًا:**

**نبی عليه السلام دپاره د مکې خوړونه سره زر کرځول:** په حديث الباب کښې نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه الله تعالی ما لره اختيار راکړې دې چه په دې دنيا کښې زه أوغواړم نو وسعت او د رزق فراخي خوښه کړم او چه اوغواړم نو د دنيا نه بے رغبتی اختيار کړم او د آخرت دپاره ځه توښه جمع کړم لهذا ما دنيا پريښودله او آخرت مې خوښ کړو.

**دحديث مفهوم:** په يو بل حديث کښې داسی دی چه تاسو د مکې غرونه په سرو زرو سره بدل کړی نو د حديث د آخری جملو حاصل دا دې چه د الله تعالی د طرف نه زما دپاره د دنياوی وسعت او فراخي او خوشحالی پيش کش کولو باوجود ما د دنيا مال پريخودلو او فقر مې اختيار کړو چه يو ورځ موړ يم او بله ورځ اوږې يم دې دپاره چه د صبر او شکر فضيلت حاصل کړم

**[۵۱۹۱] دَ دنيا اصلی نعمتونه**

۵۱۹۱-(۲)[۳۷] ① وَعَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ مِحْصَنٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "② «مَنْ أَصْبَحَ مِنْكُمْ آمِنًا فِي سِرْبِهِ، ③ مُعَافًى فِي جَسَدِهِ، ④ عِنْدَهُ قُوتُ يَوْمِهِ، ⑤ فَكَأَنَّمَا حِيزَتْ لَهُ الدُّنْيَا بِحَذَافِيرِهَا» ⑥" رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

---

(۱) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الزهد عن رسول الله صلی الله عليه وسلم /باب ما جاء فی الکفاف والصبر عليه (رقم-۲۳۴۷) واحمد فی المسند:۵/۲۵۴

(۲) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الزهد عن رسول الله صلی الله عليه وسلم /باب (رقم-۲۳۴۶)

**ترجمه:**[۱]او حضرت عبید الله ابن محصن ﷺ وایي، چی رسول الله ﷺ وفرمایل[۲]په تاسو کې چې کوم سړی داسې حال کې صباکړي، چې هغه د خپل ځان د طرف نه بې خوفه وي.[۳] ظاهري طور سره هم او باطني طور سره هم د هغه بدن درست او باعافیت وي.[۴] او د هغه سره په حلال ذریعې سره حاصل کړئ د یوې ورځې بقدر ضرورت د خوراك سامان وي.[۵]نو ګویا د هغه د پاره د ټولې دنیا قیمتونه جمع شوي دي.[۶] دا روایت ترمذي رحمه الله نقل کړی دی، او ویلي یې دي، چې دا حدیث غریب دی

**حل اللغات:-** ①سِرْبِهٖ: دَ دې نه مراد دَهغه سړی ځان او ذات دې، ②حِيزَتْ: راجمع کړې شوی دی. ③حَذَافِيرِ: ټول په ټوله. ټول انواع او اقسام.

**تسهیلات:**

**قوله: مَنْ أَصْبَحَ مِنْكُمْ آمِنًا فِي سِرْبِهٖ:**

**دمذكوره جملې په مفهوم كښې درې اقوال:** ①که په سین باندې کسره شی نو په دې دې صورت کښې دَدې لفظ اطلاق په جماعت باندې هم کیږی.مطلب به داشی چه دا سړې په خپل بال بچ کښې امن سره او سیږی.

② چې هم په سین باندې کسره شی نود دې دا معنی هم ده یعنی چه دَ خپل ځان باره کې بې ویرې وی نه ئی دَ دښمن څه ویره وی اونه ئی څه بدنی ویره وی بلکه فارغ البال وی

③ بعضې شارحینو په سین باندې دَ زبر قول کړې دې کوم چه دَ کور په معنی کښې دې خاص کر چه کوم کور دَ ځمکې لاندې په سورنګ کښې وی لکه چه دَ لومبړې او مږې د ځمکې لاندې کور وی

**د حدیث د بعضې جملو وضاحت:**

①فَكَأَنَّمَا حِيزَتْ لَهُ الدُّنْيَا: دادَ حاز یحوز نه دَمجهول صیغه ده دَ جمع کولو اوجمع کیدلو په معنی کښې دې لکه چه پوره دنیا دَ ده نه چاپیره جمع کړې شوې ده

②بِحَذَافِيرِهَا: دادَ حذفور جمع ده لکه عصافیر چه دَعصفور جمع ده او جماهیر دَ جمهور جمع ده طرفونه او جانبونه ترې مراد دی اي بتمامها وبجميع أطرافها

**[۵۱۴۲] زیات نه زیات څومره طعام خوړل پکار دی**

۵۱۴۲-(¹)[۳۸] [۱] وَعَنِ الْمِقْدَامِ بْنِ مَعْدِي كَرِبَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ:[۲]" «مَا مَلَأَ آدَمِيٌّ وِعَاءً شَرًّا مِنْ بَطْنٍ،[۳] بِحَسْبِ ابْنِ آدَمَ أُكُلَاتٌ يُقِمْنَ صُلْبَهُ،[۴] فَإِنْ كَانَ لَا مَحَالَةَ

---

¹) اخرجه الترمذی فی السنن كتاب الزهد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی كراهية كثرة الأكل (رقم-۲۳۸۰) وابن ماجه فی كتاب الزهد/باب القناعة (رقم-٤١٤١) واحمد فی المسند: ١٣٢/٤

فَثُلُثٌ طَعَامٌ ⑤وَثُلُثٌ شَرَابٌ، وَثُلُثٌ لِنَفَسِهِ» "رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت مقدام ابن معدیکرب رضی الله عنه وایي، ما د رسول الله ﷺ نه واوریدل. ۲ که انسان خپل نس (خیټه) د حد نه زیاته ډك کړي، نو هغه د خیټې نه بدتر هیڅ لوښی ډك نه کی (ځکه چې خیټه زیاته ډکولو سره چې کومې خرابې پیدا کېږي د هغه څه شمیر نشته) ۳ ابن ادم د پاره بس څو نمړۍ کافي دي، چې د هغه د ملا هډوکي سیده او ولاړ و ساتي (چې هغه د اطاعت الهي په ځای راوړل او بقدر ضرورت خپل معاشي جد وجهد جاري ساتل و باندې قادر پاتې شي) ، ۴ خو که ضروري وي (یعني څوك نس (خیټه) ډکول غواړي، او د خوراك کم مقدار کفایت باندې قناعت نشي کولی) نو هغه ته پکار دی چې د خیټې درې حصې کړي، یوه حصه خوراك د پاره وي، ۵ یوه حصه اوبو د پاره وي. ۶ او یوه حصه ساه اخستو (یعني د ساه تلو راتلو) د پاره خالي پرېږدي. [ چې د ساه بندیدو په وجه په هلاکت کې مبتلا نشي] (ترمذي، ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① وِعَاءً: لوښي، ② اُكُلَاتٌ: یوڅو نوړۍ، ③ يُقِمْنَ: ولاړ ساتی، مضبوطوی. ④ صُلْب: ملا . شا

**تسهیلات:**

**قوله: بِحَسْبِ ابْنِ آدَمَ أُكُلَاتٌ يُقِمْنَ صُلْبَهُ:**

**دضرورت مطابق خوراک کول:** یعنی دَانسان دَپاره په خوراك کښې یو څو نمړئی کافی دی چه دَ هغه ملا پرې نیغه وی.

**د کم خوراک لس فائدې:** امام غزالی رحمه الله دَ کم خوراك او اولګې لس فائدې لیکلی دی. مختصرأئی اوګورئی.

① زړه ئی صفا او طبیعت ئی بیدار وی.

② زړه ئی نرم وی.

③ په انسان کښې عاجزی راځی اوتکبر ترې نه ځی.

④ دَ الله تعالی ویره او دَ هغه عذاب ته ئی خیال وی.

⑤ دَټولو ګناهونو خواهشات ئی مړه کیږی.

⑥ دَ ډیر خوب نه خلاصیږی.

⑦ په عبادت باندې ورته مداومت حاصلیږی.

⑧ دَ مرضونونه خلاصې او بدنی صحت ورته حاصلیږی

⑨ دَزیات مال جمع کولو دَمشقتونونه پرې سرې محفوظ پاتې کیږی.

⑩ دَ الله تعالی دَ مخلوق دَپاره دَ قربانئی اوهمدردئی جذبه په کښې پیدا کیږی.

## [سمه] د زيات خوراک نقصان

سمه-()[۳۹] ۱ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - سَمِعَ رَجُلًا يَتَجَشَّأُ ۲ فَقَالَ: "أَقْصِرْ مِنْ جُشَائِكَ ۳ فَإِنَّ أَطْوَلَ النَّاسِ جُوعًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَطْوَلُهُمْ شِبَعًا فِي الدُّنْيَا» ۴". رَوَاهُ فِي (شَرْحِ السُّنَّةِ). وَرَوَى التِّرْمِذِيُّ نَحْوَهُ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابن عمر رضي الله عنهما نه روايت دى، رسول الله ﷺ ديو سړى اوړقي اورېدې واوريدى. ۲ نو هغه ته يې وفرمايل خپل اوړې بند كړه (يعني دومره مه خوره چې اوږده اوږده اوړې شروع كړي) ۳ ځكه چې د قيامت په ورځ به خلقو كې د ټولو نه زيات اوږدى هغه وي چې په دنيا كې هغوئ د ټولو نه لويې خيټې والاوو (يعني كوم سړى چې په دې دنيا كې ډير زيات خوراك كونكى وي نو هغه ته به د قيامت په ورځ د ټولو نه زيات نه لوږه راځي چې د هغه په وجه به هغه په ډيرې پريشاني كې مبتلا وي) ۴ بغوي او ترمذي هم دغه شان روايت نقل كړى دى.

**حل اللغات:-** ① يَتَجَشَّأُ: اوړمى ئې وكړو ② أَقْصِرْ: كم كړه، بند كړه، ③ شِبَعًا: لوږه،

**تسهيلات: قوله:** سَمِعَ رَجُلًا يَتَجَشَّأُ فَقَالَ..الخ:

**دمذكوره رجل نوم:** په حديث كښې چه د كوم صحابى ذكر دې ددو نوم وهب ابن عبدالله وو او ددوې شمير په هغه كم عمر والا صحابه كرامو كښې كيږى كوم چه د نبى كريم ﷺ په زمانې كښې بالغ شوى نه وو

**د زيات خوراک په وجه د اړرقى راتلل:** دوې خپله بيان كوى چه يو ورځ ما د غونښې ثريد اوخوړلو او اړرمې مې كولو او د نبى كريم ﷺ په خدمت كښې حاضر شوم نو نبى كريم ﷺ وفرمائيل چه ته دا څه كوى زمونږ طرف ته اړرمى مه كوه او خپل اړرمى دې بند كړه نو دارنګ د اړرمى نه منع كول د ډير خوراک نه منع كول دى بيا ئې مذكوره الفاظ ارشاد اوفرمائيل ددې نه مقصود ماشومانو ته په وركوتوالى كښې تربيت وركول دى او اړرمې كول شرعًا څه مكروه نه دي

## [سمه] ددې امت فتنه د مال ډيروالې دې

سمه-()[۴۰] ۱ وَعَنْ كَعْبِ بْنِ عِيَاضٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: ۲ "«إِنَّ لِكُلِّ أُمَّةٍ فِتْنَةً ۳ وَفِتْنَةُ أُمَّتِي الْمَالُ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

[1] والترمذي فى كتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-۲۴۷۸)وابن ماجه فى كتاب الأطعمة/باب الاقتصاد فى الأكل، وكراهة الشبع (رقم-۳۳۴۹) واحمد فى المسند: ۱۳۲/۴

[2] اخرجه الترمذي فى السنن كتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ومن سورة ويل للمطففين (رقم-۳۳۳۶)واحمد فى المسند: ۱۶۰/۴

**ترجمه**: [۱] او حضرت كعب ابن عياض ﷺ وايي، ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل [۲] چي حق تعالى د طرف نه هرامت د پاره (څه نه څه) فتنه او آزمائش وي (چي په هغه كې هغه امت مبتلا كولو سره ازميښت كول كيږي) [۳] او زما امت د پاره چې كوم څيز فتنه او آزمائش دى، هغه مال او دولت دى، [يعنى الله ﷻ زما امت ته مال او دولت وركولو سره دا ازمائيل غواړي چې هغوئ په صراطِ مستقيم او حدِّ اعتدال باندې قائم پاتې كيږي يانه] (ترمذي)

**تسهيلات**:

**دمال دوه حيثيتونه**: دَ مال دوه اړخونه شوخير او شر او په دې دواړو اړخونو كښې فرق كول ډير مشكل دى په دې وجه د دې څخه په فتنه او امتحان سره تعبيراوكړې شو قال تعالى﴿ اِنَّمَآ اَمۡوَالُكُمۡ وَاَوۡلَادُكُمۡ فِتۡنَةٌ ﴾ مثلاً

① كه مال وى نودَ دې دَ آفتونونه محفوظ كيدل هم سخت دى

② كه مال نه وى نوفقر دې چه ډير خلې سړې كفر ته رسوى.

**په مال كښې فتنې لس صورتونه**:

① دَ مالدار دَ پاره مال دَ سركشئى ذريعه ده.

② كه مالدارمال خرچ نه كړى نودَ بخل اوكنجوسيا په صفت موصوف كيږى

③ كه خرچ كوى ئې نو فضول خرچئى او اسراف كښې اخته كيږى.

④ مال سړې دَ گناه په لارو باندې اچوى

⑤ په مال سره مباحاتوكښې تنعم پورې نوبت رسى بلكه اكثر كه په حلال مال باندې دَ تنعم تقاضې پوره نشى نو مشكوك او حرام ذرائع اختيارولو باندې مجبورشى دې دَ پاره چه دَهغه دَ دنيا نظام دَ هغه دَ خوښې مطابق شى دَ هغه په تنعم كښې كمې رانشى

⑥ چاسره چه مال زيات وى هغه ته دَ خلقو ډير حاجت وى بيا هغه خپل كار ويستو كښې منافقانه لارې اختياروى اودَ هغوى رضا حاصلولو كښې دَ الله تعالى دَ نافرمانئى نه هم مخ نه اړوى

⑦ د مال په وجه د انسانان دشمنان هم پيدا كيږى زمونږ په ملك كښې چې څوك مالدار شى نوبعضې وخت اغوا كړې شى اود پيسو مطالبه ترې كولې شى په دې لنډو ورځو كښې په افغانستان كښې د مزار ښار يو صراف اغوا (اوتختولې)كړې شوې اود يوكروړ امريكنى ډالرومطالبه ترې كولې شى.

⑧ دَ مال په گټلو اودَ دې په حاصلولوكښې دَ الله تعالى دَ ياد نه دَ غافل كيدو قوى

امکان وی او ښکاره خبره ده چه کوم څيز دَ الله تعالی دَ یاد نه غافل کونکې وی هغه یوه خساره ده دَ کومې تلافی چه په هیڅ قسم ممکن نه ده.

⑨ دمال دحفاظت دپاره انسان مختلف ذرائع استمالوی.اودې د بې فکرۍ د ژوندڅخه محروم وی

⑩د مالدارو خلقو ملګری اکثرفضول اوعبث خلق وی.د دوی څخه خپل مفادات حاصلولو دپاره د دوی خوشامندې کوی.اودې په غرور اوتکبرکښې اخته کوی

## [٥٥٩٥] په مالی حقونوکښې د کوتاهی وعید

٥٥٩٥-()[١] ١ وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ٢ «يُجَاءُ بِابْنِ آدَمَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ كَأَنَّهُ بَذَجٌ ٣ فَيُوقَفُ بَيْنَ يَدَيِ اللَّهِ، ٤ فَيَقُولُ لَهُ: أَعْطَيْتُكَ وَخَوَّلْتُكَ وَأَنْعَمْتُ عَلَيْكَ، فَمَا صَنَعْتَ؟ ٥ فَيَقُولُ: يَا رَبِّ! جَمَعْتُهُ وَثَمَّرْتُهُ وَتَرَكْتُهُ أَكْثَرَ مَا كَانَ، ٦ فَارْجِعْنِي آتِكَ بِهِ كُلِّهِ. ٧ فَيَقُولُ لَهُ: أَرِنِي مَا قَدَّمْتَ. ٨ فَيَقُولُ: رَبِّ! جَمَعْتُهُ وَثَمَّرْتُهُ وَتَرَكْتُهُ أَكْثَرَ مَا كَانَ، ٩ فَارْجِعْنِي آتِكَ بِهِ كُلِّهِ. ١٠ فَإِذَا عَبْدٌ لَمْ يُقَدِّمْ خَيْرًا ١١ فَيُمْضَى بِهِ إِلَى النَّارِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَضَعَّفَهُ.

**ترجمه**: ١ اوحضرت انس ﷛ د رسول الله ﷺ نه نقل کوي، حضور ﷺ وفرمايل ٢ د قيامت په ورځ به ابن اٰدم داسې (حقارت او ذلت سره) پيش شي، ګويا چې هغه د بزي (چيلۍ) بچی دی، ٣ بيا به هغه د الله ﷻ په مخکې ودرول شي، ٤ او الله ﷻ به [د فرشتې په وساطت سره يا خپله براه راست (زبانِ قال يازبانِ حال سره] هغه ته وفرمايي، چې ما په دنيا کې تاته ژوند، علم او دانش، صحت او تندرستي او د امن او عافيت پشان نعمتونه درکړی وو، [او د مال ودولت، جايداد او خادمانو او جاه وعزت په شان د نعمتونو مالك مې جوړ کړی وي، او د ټولو نه لوی نعمت مې درته درکړی وو، چې خپل کتاب مې نازل کی. خپل رسول ﷺ مې راوليږلو او د هدايت او راستی نور مې خورکی]، نوتا څه کار وکی، [آيا تا د دې څيزونو حقوق اداء کړه، او د دې ټولو نعمتونو شکرُدي اداء کی] ، ٥ ابن اٰدم به عرض وکړو. اې څما پروردګاره ماخوبس دا وکړل، چې د تجارت او کارو بار په ذريعه مال ودولت مې جمع کوی او د هغه زياتولو کې لګيدلی وم، او د مړکيدو پر وقت مې دهغه نه زيات مال پريخودلو سره راغلم، څومره چې څما د ژوند په ورځو کې مخکې زماسره وو، ٦ او اوس مې دنياته دوباره وليږه، چې زه هغه ټول مال ودولت ستا په لار کې خرچ کړم، او د هغه ثواب آخستو سره ستا په خدمت کې حاضرشم، ٧ الله ﷻ به ورته فرمايي. [داخو ممکن نه ده، چې ته دې دنيا ته دوباره وليږل شي، او تاچې په دنيا کې کوم مال پريښی دی، هغه اوس ستا د پاره کارګر (په کار راتلونکي) نه دی]،

[1]) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب منه (رقم -٢٤٢٧)

خو که تا د هغه [مال او دولت نه څه حصه هم صدقه او خیرات کولو د ثواب په صورت کې] مخکې دلته آخرت د پاره رالیږلی وي نو ماته هغه وښايه. [لیکن هغه خوبه د هغه مال او دولت نه هیڅ حصه هم د آخرت په کارونو کې خرچ کړی نه وي، نو هغه بهٔ د الله ﷻ په دې ارشاد سخت شرمنده شي، او څرنګه چې دمجرمانو عادت دی، چې هغوئ به په خپل جرم کې ونیول شي، او خپلې صفايي کې څه معقول عذربیان نه کې، نو بار بار دغه یوه خبره چې مخکې یې ویلې ده کوي نو ابن آدم به یوخو په دې وجه او دویم د خپلې خبرې جواب نه پیدا کیدو په وجه] ⑧ دوباره عرض کوي، چې زه خوبس مال ودولت جمع کولو او د هغه زیاتولو کې لګیدلی وم، او هغه مې په دنیا کې د هغه نه زیات پریخودلو، څومره چې مخکې راسره وو، ⑨ او اوس ما دنیا ته دوباره ولیږه، چې زه هغه مال او دولت اخستو سره ستا په خدمت کې حاضر شم. ⑩ دغه شان [دا به ښکاره شي، چې هغه ته په دنیا کې کوم مذکورڅیزونه ورکول شوي وه] په هغه کې یې هیڅ هم د خیر کار مخکې آخرت د پاره نه دی لیږلی، ⑪ نو د هغه به دوزخ ته د لیږلو حکم ورکول شي. دا روایت ترمذي رحمه الله نقل کړی دی، او اسناد یې ضعیف ګرځولي دي، اګر که د معنی د لحاظ نه بالکل صحیح دی.

**حل اللغات:** - ① بَذَجٌ: دَ ګډې وړوکی بچې ② خَوَّلْتُكَ: أي جعلتك ذاخول یعنی تاته مې شان او شوکت درکړې وو، ③ ثَمَّرْتُهُ: زیات کړې مې وو دا (مال).

**تسهیلات:**

**قوله: أَعْطَيْتُكَ وَخَوَّلْتُكَ:**

**دخولت په مفهوم کښې دوه اقوال:**

① یعنی تاته مې په ژوند کښې بدنی نعمتونه درکړی وو.

② ستا دپاره مې یاران دوستان پیدا کړی وو.

③ **وَأَنْعَمْتُ عَلَيْكَ، فَمَا صَنَعْتَ؟:**

**الله تعالی ته دناشکر انسان جواب:** یعنی دَدې دَ پاسه مې ستادَ هدایت دَپاره کتاب نازل کړو اودَ شان والا رسول په رسالت سره مې ته پوره کړې نوتادَ دې څه حق ادا کړو؟ دا ناشکر انسان جواب ورکوی ما مال جمع کړو او ښه مې زیات کړو اوشاته مې پریخودې راغلې یم. ته ماته اجازت راکړه چه زه واپس دنیا ته لاړشم تول ستا مخکې کښې حاضرکړم کله چه فرښتې اوګوری چه ده مالی حقوق نه دی ادا کړی نوهغوی به دې واخلی او په دوزخ کښې به ئی ورواغورزوی.

**[۵۰۲۶] قیامت کښې به دټولو نه اول دَ کومو نعمتو لو سوال کیږی؟**

۵۶۹۶-()[۳۲] ۱ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "۲ «إِنَّ أَوَّلَ مَا يُسْأَلُ الْعَبْدُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مِنَ النَّعِيمِ أَنْ يُقَالَ لَهُ: ۳ أَلَمْ نُصِحَّ جِسْمَكَ وَنُرْوِكَ مِنَ الْمَاءِ الْبَارِدِ؟» " رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابوهریره رضی الله عنه وایي، چې رسول الله ﷺ وفرمایل، ۲ د قیامت په ورځ به د ټولو نه مخکې د نعمتونو باره کې چې کومه پوښتنه کېږي، هغه به داوي. ۳ آیا مونږ ستا بدن ته تندرستي نه وه درکړې، او ته مونږه یخو اوبو سره نه وې اوبه کړې (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① أَلَمْ نُصِحَّ: آیا مونږ صحت نه وو درکړې، ② نُرْوِكَ: اوبه کړې او سیراب کړې مې وې. ③ البَارِدِ: یخې (اوبه).

**تسهیلات:**

**قوله: إِنَّ أَوَّلَ مَا يُسْأَلُ الْعَبْدُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ:** "مایسال" کښې "ماموصوله أی أول شئ یحاسب به فی الاخرة".

**قوله: إِنَّ أَوَّلَ مَا يُسْأَلُ الْعَبْدُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ:**
**اشکال:** په ډیرو احادیثو کښې راځي چه د قیامت په ورځ به د ټولو نه مخکې د بنده نه د مونځ متعلق سوال کیږي او په بعضې روایاتو کښې راځي چه د بنده نه به د ټولو مخکې د قتل متعلق سوال کیږي، او په دې حدیث کښې ذکر دی چه د بنده نه به د ټولو نه مخکې د نعمت په باره کښې سوال کیږي نو ددې روایاتو نه په ظاهر تعارض معلومیږي؟

**داشکال جواب:** په حقوق الله کښې به د ټولو نه مخکې د مونځ او په حقوق العباد کښې به د ټولو نه مخکې د قتل متعلق سوال کیږي او په مخلوقاتو کښې چه د نورو څیزونو متعلق سوال کیږي نو هغه به د نعمتونو متعلق سوال وی او په نعمتونو کښې به د ټولو نه مخکې د اوبو متعلق سوال کیږي. (کمامر)
او په حدیث کښې د تندرستی او د اوبو دواړو نعمتونو یو ځائې ذکر کولو کښې دې طرف ته اشاره کول مقصود دی چه دا دواړه دومره عظیم الشان او اهم نعمتونه دی چه ټول ملک اوسلطنت یو طرف ته او دا نعمتونه بل طرف ته.

[۵۶۹۷] قیامت کښې به د پنځو څیزونو تپوس کیږي

---

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب تفسیر القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ومن سورة ألهاکم التکاثر (رقم-۳۳۵۸)

۵۰۸۷-()[۴۳] [۱] وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] "«لَا تَزُولُ قَدَمَا ابْنِ آدَمَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ حَتَّى يُسْأَلَ عَنْ خَمْسٍ: [۳] عَنْ عُمُرِهِ فِيمَا أَفْنَاهُ، [۴] وَعَنْ شَبَابِهِ فِيمَا أَبْلَاهُ، [۵] وَعَنْ مَالِهِ مِنْ أَيْنَ اكْتَسَبَهُ، وَفِيمَا أَنْفَقَهُ، [۸] وَمَاذَا عَمِلَ فِيمَا عَلِمَ؟»" [۹] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن مسعود رضي الله عنه د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه روايت كوي. حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل، [۲] د قيامت په ورځ به د انسان پښي به د خپل ځاى نه نه ښوري، او هغه به بارګاه رب ذوالجلال كښ هغه وخته پوري ولاړ وي، ترڅو پوري چې د هغه نه د پنځه خبرو جواب وانه خستل شي، [۳] هغه نه به پوښتنه كيږي، چې خپل عمر يي كوم كار كښ صرف كى، [۴] بالخصوص داچي هغه خپله ځواني كوم كار كښ تيره كړه [يعنى ځواني ګويانوي لباس دي چې په قلاره قلاره زړيږي هغه مال څرنګه وګټى، [۵] بالخصوص هغه په دنيا كښ چې كوم مال ودولت، روپى پيسي وګټلي، هغه حلال وسائل او ذرائعو سره يي حاصلي كړي يا حرام ذرائعو سره هغه مال كوم ځاى خرچ كى [يعنى خپل مال وزر، روپى پيسي يي نيك كارونو كښ صرف كړي، يا خراب كارونو كښ يي ولګولي] [۸] او داچي هغه كوم علم حاصل كړى وو، د هغه مطابق يي عمل كړى وو، يانه [۹] ترمذي دا روايت نقل كړى دى او ويلي يي دي چې دا حديث غريب دى.

**حل اللغات:** - ① أَفْنَاهُ: ختم ئې كړو، تير ئې كړو، ② أَبْلَاهُ: زړه ئې كړه،

**تسهيلات:**

**قوله: وَمَاذَا عَمِلَ فِيمَا عَلِمَ؟:**

**دعمل اوجهل باره كښي تپوس:** د حضرت ابو الدرداء رضي الله عنه په باره كښې منقول دى چه دوي حضرت عويمر رضي الله عنه ته اوفرمائيل چه عويمر ستا به د قيامت په ورځ څه كيفيت وى كله چه تا نه سوال وكړې شى چه ته عالم وې كه جاهل ؟نو كه تا دا جواب وركړو چه زه عالم ووم نو بيا ستانه به پوښتنه اوكړى شى چه تا په دې علم باندې څومره عمل كړې وو او كه ته دا جواب وركړې چه زه جاهل ووم نو بيا به ستا نه دا پوښتنه اوكړې شى چه ستا د جاهل پاتې كيدو څه وجه وه او تا علم ولې نه وو حاصل كړې.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۵۰۸۸] ذا انسان افضليت صرف په تقوىٰ سره دي**

[1] اخرجه الترمذي في السنن كتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب في القيامة (رقم-۲۴۱۶)

٥٠٩٨-(١)[٣٣] ١ (عَنْ أَبِي ذَرٍّ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-قَالَ لَهُ: ٢ "«إِنَّكَ لَسْتَ بِخَيْرٍ مِنْ أَحْمَرَ وَلَا أَسْوَدَ ٣ إِلَّا أَنْ تَفْضُلَهُ بِتَقْوَى»". رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه**: ١ حضرت ابوذر رضي الله عنه نه روايت دی، چې رسول الله ﷺ هغه ته وفرمايل ٢ اې ابوذره رضي الله عنه! ته نه خو د سور رنګ والا نه بهتر يې او نه تور رنګ والا نه. ٣ خو داچې ته په دې دواړو کې دچا نه د تقوىٰ د اعتبار نه افضل شې (احمد)

**تسهيلات**:

**قوله**: إِنَّكَ لَسْتَ بِخَيْرٍ مِنْ أَحْمَرَ وَلَا أَسْوَدَ:

**دانسانی فضيلت معيار**: مطلب دا دې چه انسانی فضيلت اوکاميابی په ظاهری شکل اوصورت او په رنګ اونسل او په حسب نسب باندې موقوف نه دې بلکه ددې مدار د دينی او د اخلاقی کردار په عظمت او تقوىٰ باندې دې.

**قوله**: أَحْمَرَ وَلَا أَسْوَدَ إِلَّا أَنْ تَفْضُلَهُ بِتَقْوَى:

**دانسانی فضيلت کښې د تقوی کردار**: امام طيبی رحمه الله فرمائي چه دلته د احمر نه مراد اهل عرب او اسود نه مراد اهل عجم دی. ځکه چه په هغې زمانه کښې به اهل عرب عجمو ته احمر وئيل ځکه چه ددوی رنګونه به سرخی طرف ته مائل وو او اهل عجم به عربو ته اسود وئيل ځکه دهغوې رنګونه تورالی طرف ته مائل وو يا د سور نه مراد مولی دې او د تور نه مراد غلام دې يا د سور نه مراد مالدار دې او د تور نه مراد غريب دې دارنګ ددې دوه رنګونو ذکر ئې ځکه وکړو چه عمومًا په انسانانو کښې دا دوه رنګونه وی. مطلب دا دې چه ته د مال وغيره په وجه د نورو نه افضل کيدې نه شې بلکه د تقوی په ذريعه افضل کيدې شې.

شيخ عبدالحق رحمه الله فرمائي چه د حديث معنی دا ده چه يو تور لره په سپين باندې او يو سپين لره په تور باندې څه فضيلت حاصل نه دې بلکه فضيلت والا هغه دې کوم چه په تقوی او پرهيزګاری کښې مخکې وی کما في القرآن: ان اکرمکم عند الله اتقاکم.

## [٥٠٩٩] دَدنيا نه دبې رغبتۍ فضيلت

٥٠٩٩-(٢)[٣٥] ١ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ٢ "«مَا زَهِدَ عَبْدٌ فِي الدُّنْيَا إِلَّا أَنْبَتَ اللّٰهُ الْحِكْمَةَ فِي قَلْبِهِ، ٣ وَأَنْطَقَ بِهَا لِسَانَهُ، ٤ وَبَصَّرَهُ عَيْبَ الدُّنْيَا وَدَاءَهَا وَدَوَاءَهَا ٥ وَأَخْرَجَهُ مِنْهَا سَالِمًا إِلَى دَارِ السَّلَامِ»". (رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ).

---

[١] اخرجه احمد فی المسند: ١٥٨/٥

[٢] اخرجه البيهقی فی شعب الايمان رقم الحديث ١٠٥٣٢

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوذر رضي الله عنه وايي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل. [۲] كوم بنده چې (په دنيا كې د ضرورت او حاجت نه زيات دنياوي مال وجاه نه زهد) يعنى بې رغبتي اختيار كړي، الله تعالى د هغه په زړه كې حكمت [يعنى د معرفت او يقين دولت] پيدا كوى. [۳] د هغه ژبه په هغه حكمت سره گويا كوي، [۴] او هغه د دنيا د عيوب نه (لكه كثرت غم ورنج. قلت غناء، سرعت فناء او ذكرالهى نه د زړه غفلت وغيره د يقين سترگو سره ليدونكى كى. او د دې دنيا بيماري (يعني د دنياوي محبت علت او سبب) او (علم وعمل. صبر وقناعت او دنيا نه اجتناب او بې رغبتي اختياورنكى او تقدير الهي باندې د راضي كيدو، توفيق بخښلو سره) د هغه بيماري علاج هم ورته وښووى. [۵] او دې دنيا نه اعراض كولو او عقبىٰ طرف ته د متوجه كيدو په سبب حق تعالى هغه د دنيا د آفاتو او بلياتو نه سلامتيا سره دار السلام ته ورسوى. (بيهقي)

**حل اللغات:** - ① زَهِدَ: بې رغبتي ئې اوكړه. ② أَثْبَتَ: زرغون به كړى، پيدا به كړى. ③ أَنْطَقَ: گويا به كړى. ④ بَصَّرَهُ: ليدونكې به ئې كړى.

**تسهيلات:**

**قوله: وَأَخْرَجَهُ مِنْهَا سَالِمًا إِلَى دَارِ السَّلَامِ:**

په حديث كښې مذكور دارالسلام نه مراد جنت دې او په دې حديث كښې دې خبرې طرف ته اشاره ده چه ټوله حقيقى سلامتى به په آخرت او جنت كښې حاصليږى، ددې حديث نه دا معلومه شوه چه دنيا طرف ته رغبت لرونكو انجام به ددې برعكس وى

**[۵۰۰۰] د كاميابۍ راز په خالص ايمان كې دې**

۵۰۰۰ - (۱)[۳۶] [۱] وَعَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] " «قَدْ أَفْلَحَ مَنْ أَخْلَصَ اللهُ قَلْبَهُ لِلْإِيمَانِ [۳] وَجَعَلَ قَلْبَهُ سَلِيمًا، [۴] وَلِسَانَهُ صَادِقًا، [۵] وَنَفْسَهُ مُطْمَئِنَّةً، [۶] وَخَلِيقَتَهُ مُسْتَقِيمَةً، [۷] وَجَعَلَ أُذُنَهُ مُسْتَمِعَةً، [۸] وَعَيْنَهُ نَاظِرَةً، [۹] فَأَمَّا الْأُذُنُ فَقِمْعٌ، [۱۰] وَأَمَّا الْعَيْنُ فَمُقِرَّةٌ لِمَا يُوعِي الْقَلْبُ [۱۱] وَقَدْ أَفْلَحَ مَنْ جَعَلَ قَلْبَهُ وَاعِيًا» " رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي (شُعَبِ الْإِيمَانِ).

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوذر رضي الله عنه نه روايت دى، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل، [۲] هغه سړى كامياب شو. چې د هغه زړه الله تعالى (د نفاق د آميزش نه پاكولو سره) ايمان د پاره يې خالص او مخصوص كى [يعنى هغه ته يې ايمان خالص وركړيا]، [۳] د هغه زړه يې [د بغض وحسد او ټول خراب كارونو او خراب احوالو لكه د دنيا محبت او مولى او عقبىٰ نه بې پروايي وغيره نه] محفوظ او سالم وساتى، [۴] او خپله ژبه رښتيني اوگرځوى. [۵] د

[۱]) اخرجه البيهقى فى شعب الايمان رقم الحديث ۱۰۸ واحمد فى المسند: ۱۴۷/۵

هغه نفس یي د الله ذکر او د هغه د محبت په ذریعه مطمئن کی (او هغه یي د حق مطیع جوړ کی) ⑥ د هغه خلقت او طبیعت (کوږوالی او باطل طرف ته مائل کیدو او افراط وتفریط کې مبتلا کیدو نه بچ کولو سره) مستقیم او سیده وساتی، ⑦ د هغه غوږونه یي (حقه خبره) اوریدونکي جوړ کړه، ⑧ او د هغه سترګي یي (د وحدانیت دلائل او مشاهدات او د پروردګار د نظام قدرت او صنعت) لیدونکی جوړي کړي، ⑨ نو غوږ خوتیل دان دي (یعنی دغوږ په ذریعه خبره زړه ته خکته کیږي) ⑩ او سترګه هغه شی قائم او ثابت ساتونکي ده چې زړه یي محفوظ کوي، ⑪ او په دي کې هیڅ شك نشته، چې هغه سړی کامیاب شو، چې د هغه زړه الله یا خپله هغه سړی خپل زړه د حقي خبري او برحق څیزونو محافظ جوړ کی (احمد، بیهقي)

**حل اللغات:** - ①أَخْلَصَ: خالص او مخلص ئې کړو، ②مُسْتَقِيمَةً: نیغ، سیدها. ③مُسْتَمِعَةً: اوریدونکې، ④قَمِعٌ: دَ قیف په معنی کښې دې او قیف پیک ته وائی کوم سره چه په بوتل کښې تیل وغیره اچولې شی، ⑤تُقِرُّ: برقرار او قائم او ثابت ساتونکې دې، ⑥وَاعِيًا: محفوظ ساتونکې.

**تسهیلات:**

**قوله: قَدْأَفْلَحَ مَنْ أَخْلَصَ اللهُ قَلْبَهُ:**

**د زړه د اخلاص نتیجه:** یعنی دکوم سړی په زړه او دماغو کښې چه الله تعالی خالص ایمان کینولې دې اودَ هغه زړه ئې دَ بغض اوحسد، دَ دنیادَ محبت، رذیل اخلاقو اودَ شیطانی وسوسو نه پاکه کړو او په قول اوقرار کښې ئې هغه له رښتونی ژبه ورکړه اودَ الله تعالی طاعت اودَ الله تعالی په ذکر کښې دَ هغه نفس ته اطمینان اوتسلی ئې ورکړه اودَ هغه طبیعت او مزاج ئې دَ زیاتی اوکمی نه پاك او په حق باندې قائم پاتې کیدونکی جوړکړو دَ هغه غوږونه ئې دَ حق اوریدو او سترګې ئې دَ حق کتو قابلې جوړې کړې.

**د بعضې مشکلو جملو وضاحت:**

①**فَأَمَّا الْأُذُنُ فَقِمَعٌ: قِمَعٌ:** په قاف باندې زبر اوزیر دواړه وئیلی شی اومیم ساکن دې که په قاف باندې زبر اووئیلې شی او په میم باندې زیر اووئیل نو داهم صحیح دې

② **فَقِمَعٌ:** دَ قیف په معنی کښې دې او قیف هغه آلې ته وائی دَ کوم په ذریعه چه دَتنګې خلې والا لوښې مثلاً بوتل وغیره کښې تیل وغیره اچولې شی. دې آلې سره نلکه لګیدلې وی. پاس خله ئې کولاؤ وی دغه نلکه دَ تنګې خلې په لوښی کښې کیخودلې شی اوبیا په هغې کښې تیل وغیره اچولې شی. مطلب دا چه غوږونه ئې دَ حق اوریدودپاره قیف جوړ کړې دې. ددې په ذریعه حق زړه اودماغوته رسیدو سره په هغې کښې ورپیوست کیږی او

زړه او دماغ هغه قبلوي

⑭وَأَمَّا الْعَيْنُ فَمُقِرَّةٌ: يعني ستركه دغه څيز برقرار ثابت او قائم ساتي مطلب دا چه سترګو يو څيز اوليدلو اوډ هغې نقش او صورت ئې زړه ته اورسولو او زړه دغه څيزمحفوظ کړو لکه چه اوريدونکي حقائق غوږونو زړه ته اورسول او په نظر راتلونکي څيز سترګو زړه ته اورسولو. زړه بادشاه دې او حواس ظاهره دَ هغې دَپاره جاسوس او خادمان دي هرخادم چه په کوم کار باندې مقرردې هغه هم دغه پوره کوي

⑮مَنْ جَعَلَ قَلْبَهُ وَاعِيًا: دا جمله دَ مخکينو جملودَپاره په توګه دَ نتيجې ده چه زړه ته کوم اطلاعات وراورسولې شو زړه هغه برقرار اوساتل.خلاصه دا ده چه هغه سړې کاميآب دې دَ چا زړه چه الله تعالى دَ حق او دَ صداقت محافظ جوړکړو

**[۵۰۲۰] دګناهونوباوجود ګناهګارته دنياوى نعمتونه ورکول**

۵۰۲۰-()[۲۷] ۱ وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ۲ «إِذَا رَأَيْتَ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ يُعْطِي الْعَبْدَ مِنَ الدُّنْيَا عَلَى مَعَاصِيهِ مَا يُحِبُّ ۳ فَإِنَّمَا هُوَ اسْتِدْرَاجٌ». ۴ ثُمَّ تَلَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۵ ﴿فَلَمَّا نَسُوا مَا ذُكِّرُوا بِهِ ۶ فَتَحْنَا عَلَيْهِمْ أَبْوَابَ كُلِّ شَيْءٍ ۷ حَتَّى إِذَا فَرِحُوا بِمَا أُوتُوا ۸ أَخَذْنَاهُمْ بَغْتَةً فَإِذَا هُمْ مُبْلِسُونَ﴾ [الأنعام: ۴۴] رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه**: ۱ او حضرت عقبه ابن عامر ﷺ د رسول الله ﷺ نه نقل کوي، حضور ﷺ وفرمايل، ۲ هرکله چې ته ووينې چې الله ﷻ يوبنده ته د هغه ګناه او معصيت کې د مبتلاکيدو باوجود د هغه محبوب ترين څيزونه (يعني دنياوي مال ودولت او جاه ومرتبت وغيره) ورکوي، ۳ نو پوه شه، چې هغه [يعني هغه ته د هغه محبوب ترين څيزونو ورکول] استدراج دى. ۴ د دې نه پس حضور ﷺ د استشهاد په طور دا آيت تلاوت وفرمايه. ۵ هرکله چې دوې الهى هدايات هيرکړل ۶ نوموږ ورباندى دآسمان نه دنعمتونو دروازې خلاصې کړې ۷ کله چې دوى خوشحاله شول په هغوئ نعمتونو چې موږورله ورکړې وو ۸ ناڅاپه موپه خپل ګرفت کې ونيول چې بيا دهرى خوا نه امداد نه مايوس وو (احمد)

**حل اللغات**: - ① اسْتِدْرَاجٌ: درجه په درجه مرحله وار خوك يوځائى ته رسول، ② فَرِحُوا: خوشحاله شول، ③ بَغْتَةً: ناڅاپه، ④ مُبْلِسُونَ: مايوس او نا اُميده شول

**تسهيلات:**

**قوله: فَإِنَّمَا هُوَ اسْتِدْرَاجٌ:**

[۱] اخرجه احمد فى المسند: ۴/۱۴۵

**د استدراج تعریف:** په لغت کښې استدراج درجه په درجه مرحله وار څوك يوځائی ته رسول او اورلوته وائی لکه چه څوك دَ پاوړئی په ذريعه پاتکې په پاتکې باندې خيژولې شی کوم نه چه په نورو الفاظو کښې وخت ورکولو او مهلت ورکولو سره تعبير کيږی

**د حديث مفهوم:** په دې دنياکښې الله تعالى يو فاسق فاجر ياکافرته دَ هغه دَمقصود مطابق دَدنيا شان او شوکت ورکوی نودا دَ هغه سرې دَ الله تعالى په نيزدَ قبوليت نښه نه ده بلکه دا يو استدراج ډهيل او مهلت دې کله چه دَهغه دَ ګناهونو پيمانه ډکه شی اوهغه په پوره سرکشئی کښې راشی نوکله الله تعالى هم په دنياکښې په هغه باندې لاس اچوی اوکله په آخرت کښې دَ هغه سخته راګيرونه کيږی.لهذا په ګناهونوکښې ککړسړی له دا خيال کول پکاردی چه آيا هغه په راحت کښې دې اوکه په مصيبت کښې دې.[احمد: ۲۵۲/۵]

**[۵۲۰۳] د زاهدانو دپاره څان سره د نيا ساتل**

۵۲۰۳-() [۳۸] ۞ وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - «أَنَّ رَجُلًا مِنْ أَهْلِ الصُّفَّةِ تُوُفِّيَ وَتَرَكَ دِينَارًا، ۞ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كَيَّةٌ" ۞ قَالَ: ثُمَّ تُوُفِّيَ آخَرُ فَتَرَكَ دِينَارَيْنِ، ۞ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كَيَّتَانِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي (شُعَبِ الْإِيمَانِ).

**ترجمه:** ۞ او حضرت ابوامامه رضی الله عنه وايي، اصحاب صفه کې يو سړی وفات شو، او ديو دينار په صورت کې خپله ترکه ميراث پريخودله ۞ رسول الله صلی الله علیه وسلم چې هغه دينار وليدی نو وي فرمايل، چې دا دينار د هغه سړي [په تندي، شا او اړخ باندې] يو داغ دی. ۞ حضرت ابوامامه رضی الله عنه وايي، بيا څه ورځې وروسته صفه والاوو کې يو بل سړی وفات شو، او هغه خپل ترکه کې دوه ديناره پريخودله، ۞ رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه دينار ليدو سره وفرمايل، دا دوه ديناره دوه داغونه دي (احمد وبيهقي)

**حل اللغات:** - ① كَيَّةٌ: بدن باندې د ګرمې اوسپنې داغ ته وائی.

**تسهيلات:**

**د مذکوره حديث په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① ملاعلی قاری رحمه الله دَدې حديث مطلب داسې بيان کړې دې چه کله دَ صفې دا دواړه صحابه کرام فقيران او مسکينان وو نو خلقوبه په زکوة او صدقاتو سره دَهغوی امداد اواعانت کولو.چونکه هغوی سره دوه دينار وو نو په هغې باندې زکوة نه لګيدلو کله چه دوی دَ زکوة مستحق نه وو او بيائی هم دَ زکوة اوصدقاتو طرف ته لکه دَ سوال لاس وړاندې کولو نو دا ناجائز وو په دې وجه سخت وعيد واؤرولې شو

[1] اخرجه احمد فى المسند: ۲۵۸/۵ والبيهقى فى شعب الايمان رقم الحديث ۶۹۶۴

④ یو کس دَمال حق اداکړی اومړشي او یو یا دوه یا دي نه زیات دینار دَمرګ نه پس کورکښې پریږدی نودا عمل خو شرعاً جائز دې خونبی علیه السلام دَ عام امت دَپاره اود خیلو صحابه کرامودَپاره دَ دنیا جمع کولو اوعبادت کولو جدا جدا معیار ساتلی وو دغه شان حضورپاك دَخپل اهل بیت دَپاره هم جدا معیار ساتلې وو اودَ خپل ځان دَپاره ئی هم په عملی میدان کښې جدا معیار ساتلې وو لهذا یو عمل داسې وی چه دَعام امت دَپاره جائز وی مګر دَ صحابه کرامو شان اوچت وی هغه عمل دَهغوی شان سره مناسب نه وی دلته دَ اصحاب صفه هغه دوو کسانوته هم دَدې په تناظر کښې وعیداورولې شوې دې چه دا دنیا پریخودونکی زاهد او درویش خپل شاته مال بریږدی دا ښه خبره نه ده خلق دوی زاهدان ګڼړی په دوی باندې خرچ کوی او دوی خپل شاته میراث کښې دینار پریږدی دادَ هغوی دَ اوچت شان منافی دی

**[۵۰۳] دنیاوی مال او اسباب نه پرهیز پکار دی**

۵۰۳-()[۳۹] ①«وَعَنْ مُعَاوِيَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - أَنَّهُ دَخَلَ عَلَى خَالِهِ أَبِي هَاشِمِ بْنِ عُتْبَةَ يَعُودُهُ ② فَبَكَى أَبُو هَاشِمٍ، فَقَالَ: مَا يُبْكِيكَ يَا خَالِ؟ ③ أَوَجَعٌ يُشْئِزُكَ أَمْ حِرْصٌ عَلَى الدُّنْيَا؟ ④ قَالَ: كَلَّا وَلَكِنْ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَهِدَ إِلَيَّ عَهْدًا لَمْ آخُذْ بِهِ ⑤ قَالَ: وَمَا ذَلِكَ؟ قَالَ: سَمِعْتُهُ يَقُولُ: "إِنَّمَا يَكْفِيكَ مِنْ جَمْعِ الْمَالِ خَادِمٌ وَمَرْكَبٌ فِي سَبِيلِ اللَّهِ" ⑥ وَإِنِّي أَرَانِي قَدْ جَمَعْتُ». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① او حضرت معاویه ابن ابي سفیان ﷺ نه روایت دی، هغه یوه ورځ د خپل ماما ابوهاشم ابن عتبه ﷺ پوښتنې ته ورغلی، ② نو ابوهاشم هغه لیدو سره په ژړا شو حضرت معاویه ﷺ ځني پوښتنه وکړه، ماماجي، تاسو ولې ژاړئ ③ آیا د ناروغی شدت تاسو په پریشاني کې مبتلا کړي یي، یاد دنیا حرص او ارزو. ④ هغه وویل. اې عزیزه داسې هیڅ کله نه ده د پریشانی باعث دادی، چې رسول الله ﷺ مونږ صحابه ﷺ ته یو وصیت کړی وو. او زه په هغه د عمل کولو نه قاصر پاتې شوم. ⑤ معاویه ﷺ ځني پوښتنه وکړه. هغه وصیت څه وو. هغه وویل. ما د رسول الله ﷺ نه دا واوریدل. چې ستا دپاره د دنیا د مال نه دومره قدري جمع کول کافي دی چې ستا سره یو خادم وي. او د الله په لار کې دجهاد کولو د پاره یوه سورلی وي. ⑥ او ځما خیال دی. چې ما دي دواړو څیزونو نه څه زیات مال و اسباب ځان سره جمع کړی دی (احمد .ترمذي.نسائي.ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① يَعُودُ: عیادت او بیمار پُرسی نې کوله. ② خَالِ: ماما. ③ وَجَعٌ: د بیمارئ درد او تکلیف. ④ يُشْئِزُكَ: أي يقلقك یعنی بدنی درد تا پریشانه کوی ⑤ مَرْكَبٌ: سورلی. ⑥ أَرَانِي: زه

[1]) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الزهد عن رسول الله صلی الله علیه وسلم باب (رقم-۲۳۲۷) والنسائی فی کتاب الزینة/باب اتخاذ الخادم والمرکب (رقم-۵۳۷۲) وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب الزهد فی الدنیا(رقم ۴۱۰۳)

وينم. زما خيال دي

**تسهيلات:**

**قوله**: يُشْئِزُكَ: اشئاز دَ باب افعال نه دې قلق او اضطراب په معنى كښې دې په اصل كښې كانړيږنه لار باندې دَتلو تكليف ته وائى

**[۵۰۰۴] څوك چې مال نه جمع كوى هغه به دآخرت په منزلونو په آساني تيريږى**

۵۰۰۴ – ([1])«[۵۰۱] ① وَعَنْ أُمِّ الدَّرْدَاءِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - قَالَتْ: قُلْتُ لِأَبِي الدَّرْدَاءِ: ② مَا لَكَ لَا تَطْلُبُ كَمَا يَطْلُبُ فُلَانٌ؟ ③ فَقَالَ: إِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: ④ "إِنَّ أَمَامَكُمْ عَقَبَةً كَؤُودًا ⑤ لَا يَجُوزُهَا الْمُثْقَلُونَ". ⑥ فَأُحِبُّ أَنْ أَتَخَفَّفَ لِتِلْكَ الْعَقَبَةِ».

**ترجمه**: ① او بي بي ام درداء ﷺ وايي، يوه ورځ ما خپل خاوند ابودرداء ﷺ ته وويل. ② تاته څه شوى دى چې ته حضور ﷺ نه يا صحابه وُ ﷺ نه مال واسباب او منصب نه غواړې څرنګه چې فلانى فلانى يي غواړي ③ حضرت ابودرداء ﷺ په دې اوريدو سره. اوويل [زه د چا نه د مال ودولت، خواهش كولو او د هغه د جمع كولو نه ځكه پرهيز كوم چې] ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلي دي ④ ياد لره ستا مخكې يو دشوار ګذار سخت كنډاو دى ⑤ د دې نه هغه خلق په آساني او سهولت سره نشي تيريدى چې ګران باروالاوي [يعنى چا سره چې ډير مال ويا] ، ⑥ نو زه داخوښوم چې مال ودولت نه ډډه كولو سره او كم نه كم دنياوي مال واسباب باندې صبر او قناعت كولو سره سپك يم چې دي كنډاو نه آساني او سهولت سره تيرشم.

**حل اللغات**:- ① عَقَبَةً: دَ غر اوچتې غونډئ وائى، ② كَؤُودًا: دَ باب فتح نه مصدردې چه دَ سختئ او مشقت په معنى كښې دې ③ الْمُثْقَلُونَ: دَ باب افعال نه دې، دروند بوج اوچتونكى خلق.

**تسهيلات:**

**د بعضې مشكلو جملو وضاحت:**

① عَقَبَةً كَؤُودًا: دلته دَ دغه مشكل غونډئ نه دَ مرګ سختى اودَ قبر احوال اودَ ميدان محشر مصيبتونه مراد دى.

② لَا يَجُوزُهَا الْمُثْقَلُونَ: دلته دَ حب دنيا او حب جاه دروندبوج اوچتونكى خلق مراد دى هم په دې وجه وئيلى شوى دى "فاز المخفون وهلك المثقلون"

**[۵۰۰۵] د دنيادار د ګناه څخه د بچ كيدو كم امكان**

---

[1]) اخرجه البيهقي في شعب الايمان رقم الحديث ۱۰۴۰۸

۵۰۰۵-()[۵۱] ۱ وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "۲ «هَلْ مِنْ أَحَدٍ يَمْشِي عَلَى الْمَاءِ إِلَّا ابْتَلَّتْ قَدَمَاهُ؟ ۳". قَالُوا: لَا، يَا رَسُولَ اللّٰهِ! ۴ قَالَ: "كَذٰلِكَ صَاحِبُ الدُّنْيَا لَا يَسْلَمُ مِنَ الذُّنُوبِ»" ۵ رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي (شُعَبِ الْإِيمَانِ).

**ترجمه:** ۱ او حضرت انس رضی الله عنه وايي، يوه ورځ مجلس نبوي کې موجود صحابه رضی الله عنهم نه رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه، ۲ آيا يو سړی اوبو باندې داسې تلی شي چې د هغه پښې لندې نشي، ۳ صحابه وُ رضی الله عنهم عرض وکړو يارسول الله داسې خو ممکن نه ده، ۴ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل، داحال د دنيا دار دی، چې هغه د ګناهونو نه محفوظ او سلامت نشي پاتې کيدی، ۵ دا دواړه روايتونه بيهقي رحمه الله په شعب الايمان کې نقل کړی دی

**تسهيلات:**

**قوله: كَذٰلِكَ صَاحِبُ الدُّنْيَا لَا يَسْلَمُ مِنَ الذُّنُوبِ:**

**د دنيا دار د ګناه څخه د بچ کيدو کم امکان:** يعني په سمندرباندې يا چرته په اوبوباندې تيريدونکې سړې دَ اوبو دَ لوندوالی نه بچ کيدې نه شی. دغه شان په دنيا کښې پريونکې سړې دَ ګناهونونه محفوظ نه شی پاتې کيدې.

**[۵۰۰۶] د نبی علیه السلام شان عبادت**

۵۰۰۶-()[۵۲] ۱ وَعَنْ جُبَيْرِ بْنِ نُفَيْرٍ مُرْسَلًا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ "«مَا أُوحِيَ إِلَيَّ أَنْ أَجْمَعَ الْمَالَ وَأَكُونَ مِنَ التَّاجِرِينَ، ۳ وَلٰكِنْ أُوحِيَ إِلَيَّ أَنْ: سَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ وَكُنْ مِنَ السَّاجِدِينَ ۴ ﴿وَاعْبُدْ رَبَّكَ حَتّٰى يَأْتِيَكَ الْيَقِينُ﴾ [الحجر: ۹۹]»" ۵ رَوَاهُ فِي (شَرْحِ السُّنَّةِ) وَأَبُو نُعَيْمٍ فِي (الْحِلْيَةِ) عَنْ أَبِي مُسْلِمٍ.

**ترجمه:** ۱ او جبير ابن نفير (تابعي رحمه الله) بطريق ارسال روايت کوي، رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ په مابانديې دا وحي نه ده نازله شوي، چې زه مال ودولت جمع کړم، او تاجر جوړ شم. ۳ بلکې په مابانديې دا وحي نازله شوي ده، چې ته د خپل پروردګار حمد او تعريف سره د هغه پاکي بيانوه او سجده کونکو (يعني مونځ ګذارو) نه جوړ شه، ۴ او د خپل رب عبادت کې مشغول اوسه، ترديې چې ستا ددنياوي ژوند آخري وخت راشي، ۵ دا حديث بغوي رحمه الله په شرح السنه کې او ابونعيم کتاب حليه کې د ابومسلم نه نقل کړی دی.

**حل اللغات:** - ① الْيَقِينُ: د ژوند آخری وخت يعنی مرګ،

**تسهيلات:**

**قوله: مَا أُوحِيَ إِلَيَّ أَنْ أَجْمَعَ الْمَالَ:**

---

[1] اخرجه البيهقی فی شعب الايمان رقم الحديث ۱۰۴۵۷

[2] اخرجه البغوی فی شرح السنه رقم الحديث ۴۰۳۶

**د نبي عليه السلام د ژوند مقصد:** يعني زما د ژوند مقصد تجارت او مال جمع كول نه دي بلكه زما د ژوند مقصد دعوت او تبليغ او د الله تعالى اطاعت دې لهذا د نبي كريم ﷺ د ضرورت په اندازه خپل ځان سره مال ساتل هم اطاعت خداوندي د پاره وو

**[۵۲۰۷] په جائزه طريقه د مال ګټلو فضيلت**

۵۲۰۷-() [۵۳] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«مَنْ طَلَبَ الدُّنْيَا حَلَالًا [۳] اسْتِعْفَافًا عَنِ الْمَسْأَلَةِ، [۴] وَسَعْيًا عَلَى أَهْلِهِ، [۵] وَتَعَطُّفًا عَلَى جَارِهِ، [۶] لَقِيَ اللَّهَ تَعَالَى يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَوَجْهُهُ مِثْلُ الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ. [۷] وَمَنْ طَلَبَ الدُّنْيَا حَلَالًا، [۸] مُكَاثِرًا، مُفَاخِرًا مُرَائِيًا [۹] لَقِيَ اللَّهَ تَعَالَى وَهُوَ عَلَيْهِ غَضْبَانُ»". [۱۰] رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي (شُعَبِ الْإِيمَانِ)، وَأَبُو نُعَيْمٍ فِي (الْحِلْيَةِ).

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل، [۲] كوم سړی چې جائز وسائل او ذرائع سره د دنيا مال واسباب حاصل كړي، [۳] چې د چا په مخكې د لاس غزولو د ذلت نه بچ شي، [۴] او دخپل اهل وعيال ضروريات ژوند پوره كړې شي [۵] او خپل ګاونډي سره احسان كولو د خاطره [مال حاصل كړي]، [۶] هغه به د قيامت په ورځ الله سره داسې حال كې يوځاى شي، چې د هغه مخ به د (كمال نور او ډير مسرت او سرور په وجه) د څوارلسمې شپې د سپوږمی په شان روښانه او منور وي [۷] او كوم سړی چې جائز وسائل او ذرائعو سره هم د دنيا مال واسباب حاصل كړي، [۸] خو په مال ودولت كې اضافه كولو (خپل امارت او دولت مندی په ذريعه غرباء او فقراء باندې) فخر كولو او محض خپل اثر او رسوخ قائمولو د پاره [صدقه او خيرات او داد ودهش صورت كې نام ونمود دپاره حرام وسائل او ذرائع خو جدا دي]، [۹] نو هغه به الله جل جلاله سره په داسې حال كې يوځاى شي. چې الله جل جلاله به په هغه غضبناك وي، [۱۰] دا روايت بيهقي رحمه الله په شعب الايمان كې او ابونعيم خپل كتاب حليه كې نقل كړی دی.

**تسهيلات:**

**قوله: مَنْ طَلَبَ الدُّنْيَا حَلَالًا..الخ:**

**دګټلو درې مقاصد:**

① خپل ذات دپاره دا واجب دی.

② د خپل اهل وعيال د حقوقو ادا كولو دپاره دا هم واجب دی.

③ د ګاونډيانو د حقوقو ادا كولو دپاره.دا مستحب دی

**قوله: وَوَجْهُهُ مِثْلُ الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ:**

[1]) اخرجه البيهقي في شعب الايمان رقم الحديث ۱۰۳۷۵

**دمالي حقوقو ادا كولكي اعزاز:** يعني د الله تعالى د رحمت او د زړه د خوشحالى په وجه به د هغې مخ منور وى، ددې حديث نه دا معلومه شوه چه د دنيا جمع كولو په غرض مال گټل جائز نه دى او د خير په نيت سره دنيا گټل عبادت دې بد كار نه دې ځكه چه مال خير د ډيرو عباداتو ذريعه ده

**قوله: لَقِيَ اللّٰهَ تَعَالٰى وَهُوَ عَلَيْهِ غَضْبَانُ:**

**په غلطو اغراضودپاره د دنيا گټلووعيد:** يو كس د غرور او تكبر دپاره حلال مال جمع كول هم بد دى نو حرام مال په غلط نيت سره جمع كول په طريق اولى بد دې او د قيامت په ورځ به د ذلت او رسوائى باعث وى.

### [۵۳۰۸] د خير او شر خزانې او دهغې كنجيانې

۵۳۰۸- ()[۵۳] ۱ وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ۲ «إِنَّ هٰذَا الْخَيْرَ خَزَائِنُ، ۳ لِتِلْكَ الْخَزَائِنِ مَفَاتِيحُ، ۴ فَطُوبٰى لِعَبْدٍ جَعَلَهُ اللّٰهُ مِفْتَاحًا لِلْخَيْرِ، ۵ مِغْلَاقًا لِلشَّرِّ، ۶ وَوَيْلٌ لِعَبْدٍ جَعَلَهُ اللّٰهُ مِفْتَاحًا لِلشَّرِّ، ۷ مِغْلَاقًا لِلْخَيْرِ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت سهل ابن سعد ﷺ نه روايت دى رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ دا خير (يعني مال ودولت) خزاني دي، ۳ او دي خزانو د پاره كنجياني دي، [يعني الله چي خپل كوم نيك او مخير بندگان مال ودولت سره نوازي، هغوئ گويا د هغه الله خزانو كنجياني دي چې د هغوئ د مالي عطيات او صدقه او خيرات په ذريعه فقير، مفلس او ضرورت مند بندگانِ خدا ته فائده رسوي] ۴ نو [د دنيوي كاميابي، ترقي او د اخروي فلاح وسعادت] بشارت دي وي، هغه بنده ته چې د خيركنجي جوړشو ۵ او د شر قلف جوړ شو ۶ اوتباهي دي وي هغه سړى ته چې دخير قلف جوړ شو ۷ اود شر كيلى جوړه شو. (ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① خَزَائِنُ: خزاني، ② فَطُوبٰى: خوشحالى او زيرې دې وى، ③ مِفْتَاحًا: چابى. كنجى. ④ مِغْلَاقًا: قلف، تاله. ⑤ وَيْلٌ: تباهى ده.

**تسهيلات:**

**قوله: إِنَّ هٰذَا الْخَيْرَ خَزَائِنُ، لِتِلْكَ الْخَزَائِنِ مَفَاتِيحُ:**

**دمذكوره جملې تركيب:** دا دَ خزانة جمع ده خزانه جمع كړې شوى مال ته وائى اودا لفظ دَ "إنّ" دَپاره خبر دې او "هذا الخير" دَدې اسم دې "لتلك الخزائن" اسم اشاره اومشاره اليه دواړه خبرمقدم دې اومفاتيح دَدې دَپاره مبتداء مؤخرده

**د خير څخه مراد:** دَخيرنه مراد دَ مال خزانې او انبارونه دى كوم چه انسان راجمع كړى دى

[1] اخرجه ابن ماجه فى السنن كتاب فى الإيمان وفضائل الصحابة والعلم باب من كان مفتاحًا للخير (رقم-۲۳۸)

او الله تعالی پیدا کړی دی علامه طیبی رحمه الله لیکی چه په مال باندې دَ خیر اطلاق هغه صورت کښې کیږی کله چه هغه زیات او کثیروی

**قوله** فَطُوبَى لِعَبْدٍ جَعَلَهُ اللَّهُ مِفْتَاحًا لِلْخَيْرِ مِغْلَاقًا لِلشَّرِّ:

**دینداره مالدار که د نیکۍ کنجی:** دا اموال کثیره دَخزانو په صورت کښې دی کوم چه الله تعالی پیدا کړی دی اودَ الله تعالی دَ طرفه دَ هغه بندیګان په دغه خزانوباندې مقرر اووکیلان دی لکه چه دَ دغه خزانو په کولاوولو اوبندولو کښې دَ کنجیانو په شان دی نو هغه بنده دَ مبارکئی مستحق دې چالره چه الله تعالی په هره نیکئی کښې یعنی دَ مال خرچ کولو دَپاره کنجی جوړکړې دې چه دَدې خزانې مال په نیکئی او دَ ښیګړې په کارکښې خرچ کوی اودې الله تعالی دَ شر اودَ فساد دروازه دَ بندولو کنجی جوړکړې دې چه دا مال په غلطه طریقه نه خرچ کوی اودَ بخل اوکنجوسئی نه کار نه اخلی

**قوله** وَوَيْلٌ لِعَبْدٍ جَعَلَهُ اللَّهُ مِفْتَاحًا لِلشَّرِّ مِغْلَاقًا لِلْخَيْرِ:

**ګناهګار مالدار که د ګناه کنجی:** اودَ هغه بنده دَپاره دې هلاکت وی خوك چه الله تعالی دَ شر اوفساد خورولو دَپاره کنجی جوړ کړې دې اودَ نیکئی دَ دروازوې بندولو دَپاره ئی کنجی جوړکړې دې یعنی دا مالونه دَخیر په لارکښې نه خرچ کوی اودَ شرپه لاروکښې ئی ښه په کولاؤ زړه سره خرچه کوی. دَدې حدیث نه معلومه شوه چه دَ انسان ګټلې شوې مال دَ جنت او دوزخ دواړه دَپاره یوه لویه پرده ده. دا مال دَ دوزخ دَ اور دَپاره هم پرده جوړیدې شی چه دَدې په ذریعه ثواب اوګټلې شی اوهم دغه مال دَ جنت دَپاره هم پرده جوړیدې شی چه دَدې په ذریعه سره ګناه اوګټلې شی او دوزخ ته لاړشی.

## [۵۲۰۹] دَبې برکته مال علامت

۵۲۰۹—(¹)[۵۵] [۱] وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ تَعَالَى عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "إِذَا «لَمْ يُبَارَكْ لِلْعَبْدِ فِي مَالِهِ [۳] جَعَلَهُ فِي الْمَاءِ وَالطِّينِ»".

**ترجمه:** [۱] حضرت علي رضی الله عنه وايي، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل، [۲] هرکله چې د يو بنده مال ودولت کې برکت ورنه کړې شي [يعني هغه ته خپل مال او روپۍ پیسې د خیر ښیګڼې امورو او د عقبی ښائسته کونکو څیزونو کې د خرچ کولو توفیق نه نصیب کیږي] [۳] نو هغه، هغه مال اوبو او خاوروکې يو ځای کوي، [يعنی خپل دولت د ضرورت نه زيات عمارتونو جوړولو او د هغه زينت او آرائش کې خرچ کړي]

**حل اللغات:** — ① الطِّين: خاوره، خټه.

¹) اخرجه البیهقی فی شعب الایمان رقم الحدیث ۱۰۷۱۹

**تسهیلات:**

**قوله: إِذَا لَمْ يُبَارَكْ لِلْعَبْدِ فِي مَالِهِ..الخ:**

**په آبادۍ کښې د پیسو لګولو کراهت**:د حدیث الباب مطلب دا دې چه مال په دنیا او آخرت کښې د ذلت او رسوائی سبب جوړیږی نو په دنیا کښې د فقر ذلت او په آخرت کښې د بے صبری او بې شکری په وجه د جهنم عذاب او ددې ذلت اعاذنا الله من ذالك.

**[۵۲۱۰] په تعمیر کولو کې د حرام مال نه پرهیز پکار دې**

۵۲۱۰—(۱)[۵۲] [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] «اتَّقُوا الْحَرَامَ فِي الْبُنْيَانِ; [۳] فَإِنَّهُ أَسَاسُ الْخَرَابِ» "[۴] رَوَاهُمَا الْبَيْهَقِيُّ فِي (شُعَبِ الْإِيمَانِ).

**ترجمه**: [۱] او حضرت ابن عمر ﷺ نه روایت دی، چې رسول الله ﷺ وفرمایل. [۲] اې خلقو! تاسو عمارتونو کې حرام مال خرچ کولو نه پرهیز وکړئ، [۳] ځکه چې عمارتونو کې حرام مال لګول ددین یا د هغه عمارت د خرابې بنیاد او ویخ دی، [۴] دا دواړه روایتونه بیهقي رحمه الله په شعب الایمان کې نقل کړی دی.

**حل اللغات**:- ① الْبُنْيَانِ: آبادی، عمارتونه، ② أَسَاسُ: بنیاد، اصل، ③ الْخَرَابِ: بې کاره

**تسهیلات:**

**د بعضې مشکلو جملو وضاحت:**

① **اتَّقُوا الْحَرَامَ فِي الْبُنْيَانِ**: دَدې جملې یو مطلب دادې چه په تعمیراتو کښې حرام مال لګولو نه ځان اوساتئی دا معنی بعیدده.دویمه معنی داده چه په تعمیراتو کښې داسې دَ حد نه تجاوز مه کوئی چه هغه تعمیر دَ حرام په زمره کښې راشی دا مطلب زیات واضح دې

② **فَإِنَّهُ أَسَاسُ الْخَرَابِ**: دا جمله ما سبق مفهوم باندې متفرع ده چه دَ تعمیراتو انجام خو خرابې دې نو دا بې ځایه تکلیف ولې کوئ؟

**[۵۲۱۱] مال او دولت جمع کول د بې عقلو خلقو کار دې**

۵۲۱۱—(۲)[۵۳] [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] «الدُّنْيَا دَارُ مَنْ لَا دَارَ لَهُ، [۳] وَمَالُ مَنْ لَا مَالَ لَهُ، [۴] وَلَهَا يَجْمَعُ مَنْ لَا عَقْلَ لَهُ». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي (شُعَبِ الْإِيمَانِ).

**ترجمه**: [۱] او بي بي عائشه ﷺ د رسول الله ﷺ نه روایت کوي، حضور ﷺ وفرمایل، [۲] دنیا د هغه سړی کور دی، چې د هغه د پاره (په آخرت کې) کور نه وي، [۳] او مال د هغه

---

(۱) اخرجه البیهقی فی شعب الایمان رقم الحدیث ۱۰۷۲۲

(۲) اخرجه احمد فی المسند: ۶/۷۱ والبیهقی فی شعب الایمان رقم الحدیث ۱۰۶۳۸

سړي دی، چې د هغه د پاره (په آخرت کي) مال نه وي، [۳] او مال ودولت هغه کس جمع کوي، چې د هغه عقل نه وي (احمد، بيهقي)

**تسهیلات:**

**قوله: الدُّنْيَا دَارُمَنْ لَادَارَلَهُ:**

**د موضوع عنوان:** امام طيبی رحمه الله فرمائي چه د اول دار نه مراد دنياوی کور دې کوم کښې چه انسان په عيش او عشرت سره اوسيږی يعنی دنيا لره د عيش ځائی هم هغه کس ګڼړی د کوم په مقدر کښې چه د آخرت عيش نه وی ځکه چه دينا دارالعمل دې لهذا کوم کس چه په دنيا کښې کور (عيش وعشرت) اختيار کړو نو دغه کس دپاره په آخرت کښې کور نشته. "لقوله تعالٰی "وان الدار الاخرة لهی الحيوان لوکانوا يعلمون.(الاية)

**قوله: وَمَالُ مَنْ لَامَالَ لَهُ:**

**ددنيا مالداری د بل چا دپاره:** ددې مطلب دا دې چه د کوم کس سره د دنيا مال او اسباب وی او هغه دا د الله تعالی په لاره کښې خرچ نه کړی بلکه دا د دنيا په عيش او عشرت کښې خرچ کړی نو ګويا چه دده مال د ماليت حکم نه خارج دې لهذا دا د هغه کس په شان شو کوم سره چه بالکل مال نه وی، د مشکوة په بعضې حواشی کښې ليکلی دی چه ددې ارشاد مبارک مطلب دا دې چه د دنيا کور او د دنيا مال ډير زر فناء کيدونکې دې او ددې هيڅ حيثيت او وقعت نشته ددې وجهې نه دې ته کور او مال نه دې وئيل پکار

**قوله: وَلَهَا يَجْمَعُ مَنْ لَاعَقْلَ لَهُ:**

**د دنيا دپاره عمل د غافل کار:** ددې مطلب دا دې چه کوم کس خالص ددې دپاره مال او دولت جمع کوی چه ده ته دنيا ډيره خوښه وی او دا مال هميشه دپاره ځان سره د ساتلو نيت لري يا خالص دنياوی لذت وخواهشات دده په نظر کښې وی نو داسی کس ته عقل مند او دانش مند وئيل صحيح نه دی، ددې نه معلومه شوه چه غافل سړې د دنياوی عيش او آرام دپاره مال جمع کوی او مومن د آخرت دپاره مال جمع کوی لهذا غافل بې قوف شو او مومن عقل مند شو. په ددې وجه نه ئي اوفرمائيل چه عقل مند هغه دې کوم چه د مرګ نه وړاندې د مرګ دپاره تياری وکړی او بې وقوف هغه دې کوم چه د خپلو خواهشاتو تابعداری کوی او بيا هم د الله تعالی نه اميد لري.

**[۵۲۳] شراب د ټولو ګناهونو مجموعه ده**

۵۲۳-(¹)[۵۸] [۱] وَعَنْ حُذَيْفَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: «سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ فِي

¹) رواه رزين

خُطْبَتِهِ [٢] "اَلْخَمْرُ جِمَاعُ الْإِثْمِ [٣] وَالنِّسَاءُ حَبَائِلُ الشَّيْطَانِ [٤] وَحُبُّ الدُّنْيَا رَأْسُ كُلِّ خَطِيئَةٍ" [٥] قَالَ: وَسَمِعْتُهُ يَقُولُ: [٦] "أَخِّرُوا النِّسَاءَ حَيْثُ أَخَّرَهُنَّ اللّٰهُ»". رَوَاهُ رَزِينٌ.

**ترجمه:** [١] او حضرت حذيفه ﷺ وايي، ما د رسول الله ﷺ نه د يوي خطبي په دوران کي واوريدل [٢] (ياد لرئ) شراب ځکل د ګناهونه مجموعه ده، [يعني شراب د ټولو خرابيو بيخ دی، ځکه چې شراب ځکلو سره قسم قسم ګناهونه سرزد کېږي] [٣] او ښځي د شيطان جالونه دي، [٤] او د دنيا محبت د هري ګناه سر دی، [٥] حضرت حذيفه ﷺ وايي. ما دحضور ﷺ نه دا هم اوريدلي دي، [٦] چې ښځي مؤخر کوی څرنګه چې الله ﷻ مؤخرکړي دي، [يعني په قرآن کريم کي چيرته چې د ښځو ذکر راغلی دی، د سړو نه پس دی، دغه شان دشاهدی، جماعت او د فضيلت مرتبه کي هغوئ د سړو نه پس ايخودل شوي دي نو تاسو هم په دي ځيزونو کي هغوئ مه مقدم کوئ او په سړو فضيلت مه ورکوئ] . رزين دا پوره روايت نقل کړی دی.

**حل اللغات:** - ① جِمَاعُ: په جيم باندي کشره ده دَ جمع کولو په معنی کښي دي. ② اَلْإِثْمِ: ګناه. ③ حَبَائِلُ: جالونه، دامونه، ④ رَأْسُ: سر، بنياد، ⑤ أَخِّرُوا: روستو کړئ.

**تسهيلات:**

**قوله:** اَلْخَمْرُ جِمَاعُ الْإِثْمِ: مطلب دا چه شراب ځکل دَ ټولو ګناهونو جرړه ده دَ هرقسم فحاشئ او دَهرقسم قتلونوبنياد شراب دې ځکه چه کله عقل لاړشی نو انسان هره ګناه کولې شی. عقل خو بريک دې چه کله بريک فيل شی نو ګاډې يا انسانی ډهانچه هريو ديوال سره جنګيږی.

٥٢٣ — (١) [١] وَرَوَى الْبَيْهَقِيُّ مِنْهُ فِي (شُعَبِ الْإِيمَانِ) عَنِ الْحَسَنِ مُرْسَلًا: "«حُبُّ الدُّنْيَا رَأْسُ كُلِّ خَطِيئَةٍ»".

**ترجمه:** [١] او بيهقي ﷫ په شعب الايمان کي د حضرت حسن بصري ﷫ نه بطريق ارسال د روايت صرف دا حصه نقل کړي ده، چې حُبُّ الدنيا رءس كل خطيئة

**[٥٢٣] د دوو خوفناکو ځيزونو ذکر**

٥٢٣ — (٢) [٥٩١] [١] وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] "«إِنَّ أَخْوَفَ مَا أَتَخَوَّفُ عَلَى أُمَّتِي [٣] الْهَوَى وَطُولُ الْأَمَلِ [٤] فَأَمَّا الْهَوَى فَيَصُدُّ عَنِ الْحَقِّ [٥] وَأَمَّا طُولُ الْأَمَلِ فَيُنْسِي الْآخِرَةَ، وَهَذِهِ الدُّنْيَا مُرْتَحِلَةٌ ذَاهِبَةٌ [٧] وَهَذِهِ الْآخِرَةُ مُرْتَحِلَةٌ قَادِمَةٌ [٨] وَلِكُلِّ وَاحِدَةٍ مِنْهُمَا بَنُونَ [٩] فَإِنِ اسْتَطَعْتُمْ أَنْ لَا تَكُونُوا مِنْ بَنِي الدُّنْيَا فَافْعَلُوا [١٠] فَإِنَّكُمُ الْيَوْمَ فِي دَارِ الْعَمَلِ وَلَا حِسَابَ [١١] وَأَنْتُمْ غَدًا فِي دَارِ الْآخِرَةِ وَلَا عَمَلَ»

---

(١) اخرجه البيهقی فی شعب الايمان رقم الحديث ١٠٥٠١

(٢) اخرجه البيهقی فی شعب الايمان رقم الحديث ١٠٦١٦

".رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ".

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل، [۲] د خپل امت باره کې دکومو دوو څيزونونه چې زه ډير زيات ويريږم، [۳] په هغه کې يو خو خواهش دنفس دی، دويم [تاخير عمل او نيکيو نه د غفلت په ذريعه] د عمر د اوږدوالی ارزو ده، [۴] نو د نفس خواهش (چې د حق مخالف او د باطل موافق دی) دحق قبلولو او په هغه دعمل کولو نه منع کوی، [۵] او ترځوپوري چې د اوږدوالی عمر د ارزو تعلق دی. نو هغه آخرت هيروي، [۶] او ياد لرئ دا دنيا کوچ کولو سره تلونکي ده [۷] او آخرت کوچ کولو سره راتلونکي دې ايعنی دا دنيا لمحه به لمحه تيريږي او آخرت لمحه په لمحه ستاسو طرف ته رارروان دی] [۸] او دي دواړو (يعني دنيا او آخرت) کې د هر يو ځامن دی [يعنی څه خلق خو هغه دی، چې د دنيا تابع او محکوم او د هغه دوستي لرونکي دي، ګويا هغوئ د دنيا ځامن دي او څه خلق هغه دي، چې د آخرت محکوم او تابع او د هغه دوست او طلبګار دی، ګويا هغوئ د آخرت ځامن دي] [۹] نو که تاسو نه داکيدي شي، چې تاسو د دنيا ځامن جوړ نه شی نو داسې ضرور وکئ [يعنی داسې کار وکئ او داسې لار باندې روان شئ چې د دنيا دباو په تاسو اونه چليږي او تاسو د هغه د اتباع او فرمانبرداري او د هغه د محبت د دائري نه وتلو سره د آخرت تابع او محکوم او د هغه طلبګار جوړ شئ] [۱۰] ځکه چې تاسو نن په دنيا کې يي چې دار العمل يعنی د کار ځای دی، چيرته چې دعمل حساب نشي اخستی [نو دا موقع غنيمت وګنئ اود اجل راتلو نه مخکې عمل وکئ] [۱۱] هرکله چې تاسو به صباته د آخرت کورته لاړشئ، نو هلته به د عمل موقع پيدا نه کي. بلکي هلته به محاسبه وی (بيهقي)

**حل اللغات:** - ① أَخْوَفُ: زيات ويرونکې، ② الْهَوَى: د نفس خواهش، ③ الْأَمَلِ: اميدونه. ④ يَصُدُّ: منع کوی. بندوی. ⑤ مُرْتَحِلَةٌ: کوچ کونکې، واپس تلونکې، ۶ ذَاهِبَةٌ: تلونکې، ⑦ قَادِمَةٌ: راتلونکې. ⑧ بَنُونَ: ځامن. يعنی تابعدار دی.

**تسهيلات:**

**قوله: أَتَخَوَّفُ عَلَى أُمَّتِي الْهَوَى وَطُولُ الْأَمَلِ:**

**په امت باندې د دوو څيزونو ويره:** د حديث الباب حاصل دا دې چه نبی کريم ﷺ ارشاد اوفرمائيلو چه زه د امت نه د دوه څيزونو متعلق خوف او ويره لرم ① خواهش نفس ② اوږده اميدونه دا دواړه څيزونه داسی دی کوم چه انسان د نيکونه لری کوی.

**قوله: وَهَذِهِ الدُّنْيَا مُرْتَحِلَةٌ ذَاهِبَةٌ:** يعنی دنيا او آخرت دواړه په حرکت کښې دی خو دنيا تلونکې ده او آخرت راتلونکې دې او دنيا چه لاړه شی نو واپس به نه راځی او آخرت چه

راشي نو واپس به نه ځي، او په دنيا کښې عمل شته، حساب نشته او په آخرت کښې حساب شته، عمل نشته.

**قوله: لَا تَكُونُوا مِنْ بَنِي الدُّنْيَا:** يعنى تاسو دنيا والا مه جوړيږی بلکه دنيا دې ستاسو تابعداره جوړه شي او کوم کس چه د الله تعالى شي نو ټوله دنيا د هغه شی کما فی الحديث "من كان لله كان الله له.

**[۵۲۱۵] دنيا د عمل ځای دی**

۵۲۱۵-() [۲۰] ①وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: ارْتَحَلَتِ الدُّنْيَا مُدْبِرَةً، ②وَارْتَحَلَتِ الْآخِرَةُ مُقْبِلَةً، ③وَلِكُلِّ وَاحِدَةٍ مِنْهُمَا بَنُونَ، ④فَكُونُوا مِنْ أَبْنَاءِ الْآخِرَةِ، ⑤وَلَا تَكُونُوا مِنْ أَبْنَاءِ الدُّنْيَا; ⑥فَإِنَّ الْيَوْمَ عَمَلٌ وَلَا حِسَابَ، ⑦وَغَدًا حِسَابٌ وَلَا عَمَلَ. ⑧رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ فِي تَرْجَمَةِ بَابٍ.

**ترجمه:** ①او حضرت علي ﷺ نه بطريق موقوف روايت دی، هغوئ وفرمايل دا دنيا کوچ کولو سره مخ ګرځوي روانه ده، ②او آخرت اخوا نه کوچ کولو سره مونږ طرف ته مخ کړی راروان دی [يعني د دنيا زمونږ طرف نه مخ ګرځولو سره خپلي فناء طرف ته مخکښې کيدل او د آخرت خپلي بقاء سره زمونږ طرف ته متوجه کيدل ښکاره کېږي] ③او په دي دواړو (دنيا او آخرت) کښې د هر يو ځامن دي، ④نو تاسو [نيک عمل اختيارولو سره او آخرت طرف ته متوجه کيدو سره] د آخرت ځامن جوړ شئ ⑤او [د آخرت نه بې پروا او دنيا طرف ته راغب او متوجه کيدو سره] د دنيا د ځامنو نه مه جوړيږئ ⑥ياد لرئ نن ورځ د عمل کولو ده، د حساب ورځ نه ده [يعني دا دنيا دار العمل دی، دار الحساب نه دی، دلته بس زيات نه زيات نيک عمل کوئ] ⑦او صباته د قيامت په ورځ به د حساب ورځ وي، دعمل کولو به نه وي، ⑧دا روايت امام بخاري ﷫ په ترجمة الباب کښې نقل کړی دی.

**حل اللغات:** - ① ارْتَحَلَتْ: کوچ کوی، واپس ځي، ② مُدْبِرَةً: په شا تلونکې. واپس ګرځيدونکې. ③ مُقْبِلَةً: راتلونکې.

**تسهيلات:**

**قوله: رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ فِي تَرْجَمَةِ بَابٍ:** "أي من غير ذكر اسناد في كتاب" يعنى امام بخارى رحمه الله دا روايت په خپل کتاب کښې د يو باب په عنوان سره بغير سند نه د حضرت على ﷺ نه موقوف نقل کړې دې ليکن ددې نه مخکښې د حضرت جابر ﷺ کوم روايت چه نقل شوې دې، هغې نه ثابتيږی چه د حضرت على ﷺ روايت په اصل کښې مرفوع دې يعنى د نبى کريم ﷺ فرمان دې ګويا چه حضرت على ﷺ چه کوم مضمون نقل کړې دې دا هغه دې کوم چه د حضرت جابر ﷺ په روايت کښې منقول دې.

[1]) اخرجه البخاری فی کتاب الرقاق/باب فی الأمل وطوله

**قوله: أَنَّكُمْ مَعْرُوضُونَ عَلَى أَعْمَالِكُمْ:**

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال:**

① ستاسو اعمال به تاسو ته وړاندې کړی شي

② تاسو به د خپل رب مخکې د اعمالو سره پيش کيږي

نو به دې دواړو تراجمو کښې دويمه ترجمه ډيره صحيح او وزنی ده او په دې صورت کښې به مطلب دا شي چه کله تاسو د خپل رب مخکې اودريږي نو تاسو ته به د خپلو اعمالو مطابق سزا او جزاء ملاوشي

**[۵۲۱۷] د دنيا تابعدار مه جوړيږئ د آخرت تابعدار جوړ شئ**

۵۲۱۷-(¹)[۶۲] ① وَعَنْ شَدَّادٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: ② "«يَا أَيُّهَا النَّاسُ! إِنَّ الدُّنْيَا عَرَضٌ حَاضِرٌ ③ يَأْكُلُ مِنْهَا الْبَرُّ وَالْفَاجِرُ ④ وَإِنَّ الْآخِرَةَ وَعْدٌ صَادِقٌ ⑤ يَحْكُمُ فِيهَا مَلِكٌ عَادِلٌ قَادِرٌ ⑥ يُحِقُّ فِيهَا الْحَقَّ، وَيُبْطِلُ الْبَاطِلَ ⑦ كُونُوا مِنْ أَبْنَاءِ الْآخِرَةِ ⑧ وَلَا تَكُونُوا مِنْ أَبْنَاءِ الدُّنْيَا ⑨ فَإِنَّ كُلَّ أُمٍّ يَتْبَعُهَا وَلَدُهَا»".

**ترجمه:** ① او حضرت شداد رضي الله عنه وايي، ما د رسول الله ﷺ نه دا واوريدل ② اې خلقو بلاشبه دا دنيا يوه ناپائيداره متاع ده، ③ چې په هغه کې نيك وبد (يعني مؤمن او كافر) دواړه خوري، ④ او بلاشبه آخرت يوربښتنی او يقيني طور سره پوره کيدونکي وعده ده. ⑤ آخرت کې هرقسم قدرت لرونکي او عدل وانصاف کونکي بادشاه به خپل حکم کوی ⑥ او د فيصلي په ذريعه به حق ثابت کړي، او باطل به ختم کړي [يعني د ثواب او عذاب په ذريعه اهل حق او اهل باطل به د يوبل نه جدا کړي] ⑦ تاسو د آخرت ځامن جوړ شئ. ⑧ او د دنيا ځامنو کې ځان مه شميرئ ⑨ ځکه چې د هري مور ځوی د هغه تابع وي

**تسهيلات:**

**قوله: كُونُوا مِنْ أَبْنَاءِ الْآخِرَةِ:** چه تاسو د آخرت ځامن جوړ شی د دنيا ځامن مه جوړيږی، يعنی که د دنيا په طلبگاری او محبت کښې مشغوله اوسيږی نو دوزخ ته به ځی. ځکه چه د باطل دنيا استوګنه دوزخ دې او که تاسو د آخرت ځامن جوړيږی يعنی د آخرت طلب او اخروی امور په صحيح طريقې سره کوی نو جنت ته به ځی

**[۵۲۱۸] غوره مال هغه دې چې لږ وی او کافی وی**

۵۲۱۸-(²)[۶۳] ① وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "② «مَا

¹) ابو نعيم فی الحليه ۱/ ۲۶٤

²) اخرجه احمد فی المسند: ۱۹۵/۵

طَلَعَتِ الشَّمْسُ إِلَّا وَبِجَنْبَتَيْهَا مَلَكَانِ يُنَادِيَانِ، [۳] يُسْمِعَانِ الْخَلَائِقَ غَيْرَ الثَّقَلَيْنِ: [۴] يَا أَيُّهَا النَّاسُ! هَلُمُّوا إِلَى رَبِّكُمْ، [۵] مَا قَلَّ وَكَفَى خَيْرٌ [۶] مِمَّا كَثُرَ وَأَلْهَى» "[۷] رَوَاهُمَا أَبُو نُعَيْمٍ فِي (الْحِلْيَةِ).

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابودرداء ﷺ وایي، چې رسول الله ﷺ وفرمایل، [۲] کله چې نمر راخیژي، د هغه دواړه طرف ته دوه فرښتې وي، چې اعلان کوي [۳] او د جن او اخیتې نه علاوه نور ټول، مخلوق تـه اوروي [یعني د هغوئ اعلان جنات او انس نه اوري. باقي ټول مخلوق یې اوري او هغه اعلان داوي] [۴] اې خلقو! خپل پروردګار طرف ته راشئ، [یعنی د خپل پروردګار د احکامو اتباع کوئ یا دا معنی ده، چې هر طرف نه بې تعلقي اختیارولو سره خپل رب طرف ته رجوع وکړئ، څرنګه چې قرآن کریم فرمایلي دي وَتَبَتَّلْ إِلَيْهِ تَبْتِيلًا] [۵] او [په دي خبره پوهه شئ] چې کوم مال قلیل وي، او [د دیني معاملاتو تکمیل یا د زادِ عقبٰی (د آخرت د توښې) په طور] کفایت کوي، هغه د هغه مال نه ډیر زیات ښه دی [۶] چې زیات وي، اود عباداتِ خداوندي نه یې منع کوي [او د اطمینان او سکون د ژوند نه یې محروم کوي]، [۷] دا دواړه روایتونه ابونعیم کتاب حلیه کې نقل کړي دي.

**حل اللغات:** - ① بِجَنْبَتَيْهَا: په دواړو طرفونو دهغې، ② يُنَادِيَانِ: آواز کوی دواړه. ③ يُسْمِعَانِ: آورولي شی. ④ الثَّقَلَيْنِ: جنس او انس، ⑤ هَلُمُّوا: راشئ، ⑥ أَلْهَى: مشغوله ساتونکې، بې پرواه کونکې.

**تسهیلات:**

**قوله: يُسْمِعَانِ الْخَلَائِقَ غَيْرَ الثَّقَلَيْنِ:**

**دجناتواوانسانانو نه اوریدو وجه:** دَ فرښتو آواز د انسانانو او جناتو نه علاوه ټول اوری ددې وجه دا ده چه دې آواز تعلق د علم غیب سره دې نو که انسانان آواز واروی نو بیا به علم غیب پاتې نه شي او د سزا وجزا دارومدار په ایمان بالغیب دې نو ددې وجهې نه وئیلې شوی دې چه انسان باندې لازم دی چه ایمان بالغیب باندې یقین ولری (والله اعلم)

**اشکال:** د فرښتو دا آواز لګول د انسانانو ته خبرداری دپاره دې نو کله چه انسانان او جنات دا آواز نه اوری نو بیا دوې څنګه خبرداره کیږی؟

**داشکال جواب:** ددې انحصار صرف د غوګ په اوریدلو باندې موقوف نه دې بلکه مطلب ئې دا دې چه انسان د په خبر داری سره خبر شی او دا اطلاع او خبر د نبی کریم ﷺ په خبر ورکولو او د هغوی په ارشاد فرمائیلو سره حاصل شو

**دویم اشکال:** په دې کښې صرف انسانانو ته خطاب ولې کړې شوې دې او جناتو ته ولی

خطاب نه دې کړې شوې؟

**د دویم اشکال جواب:** په انس او جن کښې ډیر غافل انسان دې ځکه چه هم انسان د ډیر مال ودولت حریص او د عقبی نه غافل دې نو ددې وجهې نه صرف د انسان ذکر کړې شوې دې، خلاصه دا شوه چه ترځو پورې انسان د دنیا په حاصلولو کښې مصروف او مشغول وی نو ددې انسان اخروی ژوند به تباه کیږی نو ددې وجهې نه انسان له پکار دی چه د دنیا لار پریږدی او د آخرت دپاره دې کوشش اوکړی او د آخرت په لاره کښې کامیابی ده.

## [۵۲۱۹] د نیاوي مال او اسبابو د پاره دانسان حرص

۵۲۱۹-()[۲۴] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- يَبْلُغُ بِهِ، قَالَ: [۲] (إِذَا مَاتَ الْمَيِّتُ قَالَتِ الْمَلَائِكَةُ: مَا قَدَّمَ؟ [۳] وَقَالَ بَنُو آدَمَ: مَا خَلَّفَ؟". [۴] رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي (شُعَبِ الْإِيمَانِ).

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت منقول دی چې هغه یې رسول ﷺ ته رسوي. ایعنی د حضور ﷺ ارشاد گرامي نقل کوي، چې حدیث مرفوع ورته وایي] ، هغه وایي، [۲] [د حضور ﷺ ارشاد گرامي دی] ، چې کله یو سړی مري نو فرښتې خو دا وایي. چې دې سړي آخرت د پاره د اعمال خیر په صورت کې څه لیږلی دي؟ [۳] او هغه خلق یعنی د مړي وارثان او نور متعلقین وغیره داپوښتنه کوي، چې دې سړي خپله ترکهٔ میراث کې څه پریښی دی [گویا د فرښتو نظر خو اعمال باندې وي، او د خلقو نظر دنیاوي مال ومتاع باندې لگیدلی وی] ، [۴] دا روایت بیهقي رحمه الله په شعب الایمان کې نقل کړی دی

**حل اللغات:** - ① مَا قَدَّمَ؟: مخکښې ئې څه لیږلی دی؟ ② مَا خَلَّفَ؟: روسته ئې څه پریښې دی

**تسهیلات:**

**قوله: قَالَتِ الْمَلَائِكَةُ: مَا قَدَّمَ؟:** یعنی کله چه انسان مرګ ته قریب شی نو خپلوانو سره ئې د ترکې (میراث) فکر وی او د فرښتو په اعمالو باندې نظر وی او روح قبض کونکې فرښتې د قریب الموت د اعمالو په اعتبار سره راځی، نو که ښه اعمال وی نو د رحمت والا فرښته روح قبض کوی او که بد اعمال وی نو د عذاب والا فرښته روح قبض کوی.

## [۵۲۲۰] آخرت ډیر نزدې دی

۵۲۲۰-()[۲۵] [۱] وَعَنْ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ: أَنَّ لُقْمَانَ قَالَ لِابْنِهِ: [۲] (يَا بُنَيَّ! إِنَّ النَّاسَ قَدْ تَطَاوَلَ عَلَيْهِمْ مَا يُوعَدُونَ، [۳] وَهُمْ إِلَى الْآخِرَةِ سِرَاعًا يَذْهَبُونَ، [۴] وَإِنَّكَ قَدِ اسْتَدْبَرْتَ الدُّنْيَا مُنْذُ كُنْتَ، [۵] وَاسْتَقْبَلْتَ الْآخِرَةَ، [۶] وَإِنَّ دَارًا تَسِيرُ إِلَيْهَا أَقْرَبُ مِنْ دَارٍ تَخْرُجُ مِنْهَا). رَوَاهُ رَزِينٌ.

() اخرجه البيهقى فى شعب الايمان رقم الحديث ۱۰۴۷۵
() رواه رزين

**ترجمه**: [۱] او امام مالك رحمه الله نه روايت دي چې (مشهور حكيم) حضرت لقمان رحمه الله خپل خوی ته اوويل [۲] اې خما ځويه! د كومې خبرې (يعني د مړو دوباره ژوندي كولو سره راپاځول، حساب او ثواب وعذاب وغيره) چې خلقو سره وعده شوې وه، د هغه موده، (آدم نه تردې دمه) په هغه اوږده شوه، [۳] حالانكې خلق تيزي سره آخرت طرف ته ځي، [۴] او اې خما ځويه! كوم وخت چې ته پيدا شوی وې، هغه وخت نه ستا شا دنيا طرف ته ده [۵] او ستا رُخ آخرت طرف ته دی، (يعني ته د خپل پيدائش د ورځې نه گويا دنيا وروسته پريښې را روان يې آخرت ته په مخه روان يې) [۶] او په دې كې هيڅ شك نشته چې كوم كور او مقام طرف ته روان يې، هغه تا ته د دې كور او مقام په نسبت زيات نزدې دی. كوم چې ته پريخودلو سره ترې ځې. (رزين)

**حل اللغات**: - ① تَطَاوَلَ: اوږده شوه، ② يرَاعًا: جلتئ او تيزئ سره، ③ اسْتَدْبَرْتَ: شا گرځولې ده ت. ④ اسْتَقْبَلْتَ: مخ كړې دې تا.

**تسهيلات**:

**قوله**: وَإِنَّ دَارًا تَسِيرُ إِلَيْهَا أَقْرَبُ مِنْ دَارٍ تَخْرُجُ مِنْهَا:

**د آخرت نژديكت**: يعنى قيامت لرې نه دې بلكه قريب دې او هر ساعت او هر لمحه هغه يوم موعود ته ورنيزدى كيږي په دې حديث كښې اگر كه دا خطاب خپلو ځامنو ته دې ليكن په حقيقت كښې ددې نه مراد عام دې،

**قوله**: وَإِنَّكَ قَدِ اسْتَدْبَرْتَ الدُّنْيَا مُنْذُ كُنْتَ، وَاسْتَقْبَلْتَ الْآخِرَةَ:

**د هر انسان مخه د دنيا پاتې كيدل**: يعنى كوم كس منزل مقصود طرف ته يو قدم اوچتوى نو دده منزل نيزدى كيږي، هم دغه شان چه كله انسان پيدا شي نو دده مراحل د آخرت طرف ته شروع شي او هر لمحه ده ته قيامت را نيزدى كيږي نو يو ورځ به داسې راشي چه هغه مسافت به پورا شي او منزل مقصود ته به اورسيږي.

دا خبره دې واضح وى چه هر راتلونكې څيز قريب دې اگر كه هغه لرى معلوميږى او هر تلونكې څيز لرى دې اگر كه هغه قريب معلوميږى، لهذا قبر او آخرت نيزدى دى او دواړه څيزونه په جلدى سره را روان او دنيا په جلدى سره ځي

**[۵۲۳] صفا زړه والا انسان د ټولو نه غوره دې**

۵۲۳-(¹)[۲۶] [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- قَالَ: «قِيلَ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] أَيُّ النَّاسِ أَفْضَلُ؟ [۳] قَالَ: "كُلُّ مَخْمُومِ الْقَلْبِ صَدُوقِ اللِّسَانِ". [۴] قَالُوا: صَدُوقُ اللِّسَانِ نَعْرِفُهُ، فَمَا مَخْمُومُ

¹) اخرجه ابن ماجه في السنن كتاب الزهد/باب الورع والتقوى(رقم-۴۲۱۵)

الْقَلْبِ؟[۵]قَالَ: "هُوَالنَّقِيُّ، التَّقِيُّ، لَا إِثْمَ عَلَيْهِ[۶]وَلَا بَغْيَ، وَلَا غِلَّ، وَلَا حَسَدَ» ". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي " شُعَبِ الْإِيمَانِ".

**ترجمه:** [۱] او حضرت عبد الله ابن عمرو ﷛ وايي، يوه ورځ رسول الله ﷺ نه پوښتنه وشوه، [۲] چې كوم سړى ښه دى؟ [۳] حضور ﷺ وفرمايل، هرهغه سړى چې مخموم القلب [يعنى دپاك زړه خاوند وى] او د ژبي ربنتيني وي [۴] په دي اوريدو سره صحابه وﷺ عرض وكړو، د ژبي ربنتيني خومونږپيژنو [هغه سړي ته وايي چې هيڅ كله دروغ نه وايي] ليكن مخموم القلب كوم سړي دي؟ [۵] حضور ﷺ وفرمايل داهغه سړى دى چې د هغه زړه پاك صاف وي، پرهيز ګار وي، هغه كې څه ګناه نه وي، [۶] هغه څه ظلم نه كوي، د حد نه تجاوز نه كوي، او په هغه كې كدورت او كينيه او د حسد ماده نه وي. (ابن ماجه وبيهقي)

**حل اللغات:** - ① مَخْمُومِ: دځم نه مشتق دې دَ كوم معنى چه صفا كول دى. دې نه پاك او صفا زړه مراد دې، ② النَّقِيُّ: پاک زړه والا، ③ التَّقِيُّ: پرهيزګار، ④ لَا بَغْيَ: ظلم نه كوى. ⑤ لَا غِلَّ: دحد نه زياتې نه كوى.

**تسهيلات:**

**قوله: كُلُّ مَخْمُومِ الْقَلْبِ:** دې نه هغه پاك او صفا زړه مراد دې په كوم كښې چه دَ غير الله هيڅ شك اوشبه نه وى اودَ غير الله دَ دوړو نه بالكل پاك او صفا وى. كوم چه په غلطو خيالاتو ګنده اخلاقو اودَ رذيل صفاتونه محفوظ وى هم دغې ته قلب سليم هم وئيلې شوې دې. په حديث كښې دَدې تشريح پخپله موجود ده.

**قوله: وَلَا بَغْيَ:** سركشئ اوتجاوز ته بغى وئيلى شوى دى او دَ زړه خرابوالې او كينه ته غل وئيلې شوې دې اوحسد خو حسد دې.

**[۵۲۲۳] څلور خبرې د دنيا د نفع او نقصان نه بې پروا جوړوي**

۵۲۲۳-()[۱۷] [۱] وَعَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] " «أَرْبَعٌ إِذَا كُنَّ فِيكَ فَلَا عَلَيْكَ مَا فَاتَكَ مِنَ الدُّنْيَا: [۳] حِفْظُ أَمَانَةٍ، [۴] وَصِدْقُ حَدِيثٍ، [۵] وَحُسْنُ خَلِيقَةٍ، [۶] وَعِفَّةٌ فِي طُعْمَةٍ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي (شُعَبِ الْإِيمَانِ).

**ترجمه:** [۱] او حضرت عبد الله ابن عمرو ﷛ نه روايت دى، چې رسول الله ﷺ وفرمايل، [۲] اې خلقو! څلور خيزونه داسې دى، كه په تاسو كې پيدا شي، نو د دنيا د فوت كيدو يانه فوت كيدو به تاسو ته هيڅ غم نه وي، [۳] ۱ يوخود امانت حفاظت كول ايعني د حقوق حفاظت او آدائيكى كول او د هغه حقوقو تعلق خواه دپروردګار سره وي يا بنده ګانو سره يادخپل نفس سره [۴] ۲ دويم ربنتيني خبره كول، [۵] ۳ دريم د اخلاقو ښه

[۱]) اخرجه احمد فى السند: ۱۷۷/۲ والبيهقى فى شعب الايمان رقم الحديث ۵۲۵۸

کېدل، [٦] ۴ څلورم خوراك کې احتياط او پرهيزگاري اختيارول [يعني حرام او ناجائز طعام نه پرهيز کول] او زيات طعام نه پرهيز کولو سره بقدرِ حاجت او ضرورت باندې اکتفاء کول ] (احمد، وبيهقي)

**حل اللغات**: - ①صِدْقُ حَدِيثٍ: رښتوني خبرې کول. ②حُسْنُ خَلِيقَةٍ: ښه اخلاقو والا. ③عِفَّةٌ: پاکدامني. ④طُعْمَةٍ: خوراک

**تسهيلات**:

**قوله**: أَرْبَعٌ إِذَا كُنَّ فِيكَ فَلَا عَلَيْكَ مَا فَاتَكَ:

**د څلورو صفاتو خپلولو ترغيب**: مطلب دا دې چه د کوم کس ژوند په دې څلورو څيزونو باندې معمور شو نو گويا چه هغه د اخروی نعمتونو جړ ونيولې[دې او د روحانی کمال درجه ئي حاصل کړه، ده قلب وباطن منور شو لهذا په دې صورت کښې که هغه د دنيا د ټولو نعمتونو او ټولو خواهشاتو او لذاتو نه محرومه شی نو دې هغه له غم او افسوس نه دی کول پکار

### [۵۲۲۳] دَ دريو خبرو نصيحت

۵۲۲۳-()[٦٨] [١] وَعَنْ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: بَلَغَنِي أَنَّهُ قِيلَ لِلُقْمَانَ الْحَكِيمِ: [٢] مَا بَلَغَ بِكَ مَا نَرَى؟ يَعْنِي الْفَضْلَ [٣] قَالَ: صِدْقُ الْحَدِيثِ، [۴] وَأَدَاءُ الْأَمَانَةِ، [۵] وَتَرْكُ مَا لَا يَعْنِينِي. رَوَاهُ فِي (الْمُوَطَّأ).

**ترجمه**: [١] او امام مالك رحمه الله وايي، ماته دا روايت رسيدلی دی، چې کوم وخت لقمان حکيم رحمه الله نه دا پوښتنه وشوه، [٢] چې په کومه مرتبه (يعني د فضيلت په کوم مقام) چې مونږ تاوينو دي ته تاسو کوم شی رسولی يي، [٣] نو لقمان حکيم رحمه الله ورته وفرمايل. رښتيا ويلو [چې ما د رښتيا لمن هيڅ کله نده پرې ايښې، که ما خپله څه خبره کړې وي، يا د چا څه خبره مې نقل کړې وي، هميشه رښتيا ويلو باندې عامل وم] ، [۴] او بل آدائيگی امانت. [يعنی که څه مالي معامله وي يافعلي، ماهميشه په هغه کې د ديانت داری خيال ساتلی دی] ، [۵] او کوم څيزونه چې زما د پاره بې فائدې او غير ضروري دی، د هغه ترك کولو سره (موطا)

**حل اللغات**: - ①لَا يَعْنِي: فضول اوبې فائدې کارونه،

**تسهيلات**:

**قوله**: بَلَغَنِي أَنَّهُ قِيلَ لِلُقْمَانَ الْحَكِيمِ:

**دلقمان حکيم مختصر تعارف**: په حکمت اوهوښيارتوب کښې دَ دنيا په ټول عالم باندې چه

---

[١] اخرجه مالک فی الموطا کتاب الکلام/باب ما جاء فی الصدق والکذب (رقم-۱۷)

دَ چا نوم مشهور شوې دي او غټو غټو دانشورو او مدبرانو چه دَ چا حکمتونو نه حصه اخستې ده هغه هستی دَ حضرت لقمان حکیم په نوم سره مشهوره ده چه دَ حضرت ایوب عليه السلام خوريئی یا دَ ترور خوئی وو.

**د لقمان حکیم په منصب کښې اقوال:** دَعلماء کرامو په دې کښې اختلاف دې چه آیا هغه پیغمبر او نبی وو که نبی نه وو. او په دې باندې دَ ټولو اتفاق دې چه هغه کامل ولی وو. حیوٰة الحیوان کښې لیکلی دی چه دَ الله تعالی دَ طرف نه هغوی ته اختیار ورکړې شوې وو چه نبوت اختیارکړه یا حکمت او ولایت اختیارکړه. هغه ولایت اختیارکړو او وئی وئیل چه دَ نبوت ذمه وارئی ډیرې دی. نقل دی چه هغوی دَ زرو انبیاء کرامو نه فیض حاصل کړې وو. الله تعالی په قرآن مجید کښې دَ حضرت لقمان نوم اخستو سره تذکره کړې ده. حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائیلی دی چه لقمان نه نبی وو او نه بادشاه وو بلکه یو تك تور غلام وو چیلئی به ئی څرولې الله تعالی هغه مقبول جوړکړو او هغه ته ئی حکمت هوښیارتوب عقل او دانش ورکړو.

[۵۲۳۳] دَ قیامت په ورځ به نیک اعمال د بندګانو شفاعت کوی

۵۲۳۳-()[۲۹] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«تَجِيءُ الْأَعْمَالُ، فَتَجِيءُ الصَّلَاةُ فَتَقُولُ يَارَبِّ أَنَا الصَّلَاةُ. ③ فَيَقُولُ: إِنَّكِ عَلَى خَيْرٍ. ④ فَتَجِيءُ الصَّدَقَةُ، فَتَقُولُ: يَارَبِّ! أَنَا الصَّدَقَةُ. ⑤ فَيَقُولُ: إِنَّكِ عَلَى خَيْرٍ. ⑥ ثُمَّ يَجِيءُ الصِّيَامُ فَيَقُولُ: يَارَبِّ! أَنَا الصِّيَامُ ⑦ فَيَقُولُ: إِنَّكَ عَلَى خَيْرٍ. ⑧ ثُمَّ تَجِيءُ الْأَعْمَالُ عَلَى ذَلِكَ. يَقُولُ اللَّهُ تَعَالَى: إِنَّكِ عَلَى خَيْرٍ. ⑨ ثُمَّ يَجِيءُ الْإِسْلَامُ فَيَقُولُ: يَارَبِّ! أَنْتَ السَّلَامُ وَأَنَا الْإِسْلَامُ ⑩ فَيَقُولُ اللَّهُ تَعَالَى: إِنَّكَ عَلَى خَيْرٍ ⑪ بِكَ الْيَوْمَ آخُذُ، وَبِكَ أُعْطِي. ⑫ قَالَ اللَّهُ تَعَالَى فِي كِتَابِهِ: ﴿وَمَنْ يَبْتَغِ غَيْرَ الْإِسْلَامِ دِينًا فَلَنْ يُقْبَلَ مِنْهُ ⑬ وَهُوَ فِي الْآخِرَةِ مِنَ الْخَاسِرِينَ﴾ [آل عمران:۸۵]».

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهریره رضي الله عنه وایي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمایل، ② د قیامت په ورځ به اعمال (د خداوند برتر وبزرګ حضور کې) راشي، د ټولو نه مخکې به مونځ پیش شي، او عرض به وکړي، اې پروردګاره! زه مونځ یم ③ الله تعالى به ورته وفرمایي، بیشکه ته په خیر یې، ④ بیابه صدقه یعنی زکاة پیش شي او عرض به وکړي، اې پروردګاره، زه صدقه یم. ⑤ الله به ورته فرمایي بیشکه ته په خیر یې، ⑥ بیابه روژه پیش شي او عرض به وکړي، اې پروردګار زه روژه یم. ⑦ الله تعالى به ورته فرمایي، بیشکه ته په خیر یې. ⑧ دغه شان یوبل پسې نور اعمال لکه حج، جهاد او طلبِ علم وغیره به پیش شي، او هر یو عمل به مذکوره بالا الفاظو کې خپله پیژندګلو تعارف پیش کړي او الله تعالى به ورته فرمایي، بیشکه ته په خیر باندې یې، [ګویا هر نیك عمل به د خپل تعارف په ذریعه د بنده ګانو په

[۱] اخرجه مالک فی الموطا کتاب الکلام/باب ما جاء فی الصدق والکذب (رقم-۱۷) واحمد فی المسند:۳۶۲/۲

حق کې چې کوم شفاعت کوي، د هغه قبولیت به حق تعالی موقوف ساتي، او د هریوه درخوئ به ډیرپه ملائمت نرمي او مهرباني سره ملتوي (بانده) ساتي. [۹] بیا د ټولو نه په آخرکي به اسلام پیش شي، او عرض به وکړي، اې پروردګاره ستانوم سلام دی او ځما باره کې تا خپله فرمايلي دي ﴿إِنَّ الدِّينَ عِنْدَ اللهِ الْإِسْلَامُ﴾ [۱۰] نو الله ﷻ به فرمايي، بيشکه ته په خير يي. [۱۱] نن ورځ زه ستا په سبب مواخذه کوم او ستاپه وسيلي سره ورکوم. [يعنی نن د جزاء او سزا په ورځ کې زه ستا اصل او طاعت او معصيت د فيصلو مدار ګرځوم چې چا اختيار نه کړي، او ستا په لار نه لا رو، دهغه به مواخذه کوم او هغه به په عذاب کې مبتلا کوم، او چاچي ته اختيار کړي او ستا په لار ګامزن شو، هغه ته به جزا او ثواب ورکوم، نو ته چې څه غواړي مونږ ته عرض کړه، مونږ ستا سفارش او شفاعت قبلوو] [۱۲] نو الله ﷻ خپل کتاب کې فرمايلي دي ﴿وَمَن يَبْتَغِ غَيْرَ الْإِسْلَامِ دِينًا فَلَن يُقْبَلَ مِنْهُ وَهُوَ فِي الْآخِرَةِ مِنَ الْخَاسِرِينَ﴾ يعنی کوم سړی چې د اسلام نه پس بل دين اختيار کی، هغه نه به هغه دين هيڅ کله نشي قبلولی، [۱۳] او هغه به په آخرت کې د تاوانيانو نه وي.

**تسهيلات:**

**قوله: تَجِيءُ الْأَعْمَالُ، فَتَجِيءُ الصَّلَاةُ فَتَقُولُ يَا رَبِّ أَنَا الصَّلَاةُ.:**

**د قيامت په ورځ د اعمال شهادت:** د قيامت په ورځ به نيک اعمال د الله تعالی په وړاندی پيش کړې شی او په دنيا کښې چه کوم خلقو نيک اعمال کړی وی هغه نيک اعمال به ددوی خلقو په حق کښې ګواهی ورکړی او ددوی شفاعت به اوکړی او کومو خلقو چه نيک اعمال پريخودی وی نو نيک اعمال به ددوی په خلاف احتجاج او شکايت کوی

**اشکال:** د چا مخکې پيش کيدل خو د ذی جسم علامت دې حالانکه د اعمالو خو هيڅ جسم نشته. چا چه دا اعمال وکړل نو هغه ته به ثواب ملاويږی نو دلته ئي څنګه اوفرمائيل چه اعمال به پيش کيږی؟

**داشکال جواب:** د قيامت په ورځ به الله تعالی اعمالو ته ښه صورت او شکل ورکړی، بعضې رواياتو کښې ذکر دی چه د الله تعالی د قدرت نه څه بعيد او لرې نه دی چه هغه اعراضو ته د اجسامو شکل ورکړی او ددې تفصيل د اعمالو د وزن په بحث کښې تير شوې دې. ګويا د قيامت په ورځ به مونځ، روژې، صدقې وغيره ته د اجسامو شکل ورکړې شی، د کوم وضاحت چه د حديث په ترجمه کښې واضح دې، باقی حديث کښې اسلام نه مراد کيدې شی چه دين اسلام نه وی بلکه صفت د رضا تسليم او ترک اختيار وی کوم چه د الله تعالی د مقرب بندګانو د اعلی مراتبو نه دې

**[۵۲۲۵] د نيا طرف ته مائل کونکی څيزونه پريږده**

۵۲۲۵-()[۷۰] ۱«وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - قَالَتْ: ۲كَانَ لَنَا سِتْرٌ فِيهِ تَمَاثِيلُ طَيْرٍ، ۳فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَا عَائِشَةُ! حَوِّلِيهِ؛ ۴فَإِنِّي إِذَا رَأَيْتُهُ ذَكَرْتُ الدُّنْيَا"».

**ترجمه:** ۱ او بي بي عائشه رضي الله عنها وايي، ۲ زمونږ سره چې (په دروازه) يا (بطور دد يوار كيري) كومه پرده لګيدلې وه، په هغه د مرغانو تصويرونه جوړ شوي وو. ۳ يوه ورځ رسول الله ﷺ وفرمايل، اې عائشې رضي الله عنها ! دا پرده بدله كړه ۴ ځكه چې زه دې ته ګورم، نو دنيا راياديږي.

**حل اللغات:** - ① سِتْرٌ: پرده، ② تَمَاثِيلُ: بتان، ③ حَوِّلِيهِ: بدله كړه دا (پرده).

**تسهيلات:**

**قوله: كَانَ لَنَا سِتْرٌ فِيهِ تَمَاثِيلُ طَيْرٍ:**

**اشكال:** په ماقبل حديث كښې تير شو "لاتدخل الملائكة بيتا فيه كلب أو تصاوير" خو د حديث الباب نه معلوميږي چه د حضرت عائشه رضى الله عنها په كور كښې په پردې باندې د ذى روح تصويران موجود وو نو دا څنګه كيدې شي؟

**داشكال دوه جوابونه:** ① دا واقعه د نهى نه مخكې واقع شوې وه او په هغه وخت كښې د تصويرانو حرمت نه وو نازل شوى.

② په دې پردې باندې داسې تصويران وو كوم چه واضح نه ښكاريدل بلكه هغه نقوش دومره واړه او غير واضح وو، كومو باندې چه په حقيقى معنى كښې د تصوير اطلاق نه كيدو.

**غفلت راوستونكې څيزونه نه كتل:** ددې حديث نه دا معلوميږي چه هغه اشياء او اسبابو ته كتل كومو سره چه دولت مند خلق په عيش وعشرت سره زندګى تيروى او داسې اسباب د فقيرانو په زړونو باندې اثر انداز كيږي لهذا د عيش وعشرت څيزونه او دنيا طرف ته مائل كولو والا څيزونه نه صرف نه اختيارول بلكه دې څيزونو طرف ته نظر هم نه دى كول پكار، ددې وجې ئې اوفرمائيل چه هر هغه څيز كوم چه د الله تعالى نه غافل كوى د هغې طرف ته كتل بد نظرى ده.

**[۵۲۲۶] يو څو قيمتى نصيحتونه**

۵۲۲۶-()[۷۱] ۱ وَعَنْ أَبِي أَيُّوبَ الْأَنْصَارِيِّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: ۲«جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: عِظْنِي وَأَوْجِزْ. ۳فَقَالَ: "إِذَا قُمْتَ فِي صَلَاتِكَ فَصَلِّ صَلَاةَ مُوَدِّعٍ، ۴وَلَا تَكَلَّمْ بِكَلَامٍ تَعْتَذِرُ مِنْهُ غَدًا، ۵وَأَجْمِعِ الْإِيَاسَ مِمَّا فِي أَيْدِي النَّاسِ"».

---

١) اخرجه احمد فى المسند: ۶/۲۴۱

٢) اخرجه ابن ماجه فى السنن كتاب الزهد/باب الحكمة (رقم-۴۱۷۱) واحمد فى المسند: ۵/۴۱۲

**ترجمه**: [۱] او حضرت ابوبوب انصاري ﷺ وايي، [۲] يو سړي د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو، او عرض يې وکې يارسول الله، ماته څه نصيحت وفرمايه چې مختصر او جامع وي، [۳] حضور ﷺ ورته وفرمايل، هرکله چې ته مونځ د پاره ودريږي، نو د هغه سړي په شان مونځ کوه، چې د الله نه ماسوا د هرشي يعنى مخلوق او خپل نفس رخصتونکى او پريخودنکى وى، [حاصل داچي کله مونځ کوئ نو تولي دنيا نه خپله توجه او خپل خيال گرځولو سره کامل اخلاص او پوره توجه سره درېږه] [۴] اودخپلې خولې نه داسې خبره مه راباسه، چې د هغه په سبب تاته صباته د قيامت په ورځ د الله په حضور کې عذر کول راځي، [يا داچي د عذر خواهي مفهوم عموم باندې محمول دى. يعنى څه داسې خبره د خولې نه مه راباسه، چې د هغه په سبب تاته د خپلو دوستانو. ملگرو، متعلقينو او ټولو مسلمانانو مخکې پښيمانه کيدل راځي او د معذرت کولو ضرورت پيښ شي] [۵] او د هغه څيز نه د نا اميده کيدو پخه اراده وکړه، کوم چې د خلقو په لاسونو کې وي يعنى الله چې ستا په قسمت کې څومره ليکلي، او تاته يې څه درکړى دى. په هغه قناعت او کفايت وکړه، او د خلقو مال ومتاع سره خپل اميد مه وابسته کوه مه تړه

**حل اللغات**: - ① عِظْنِي: نصيحت اوکړه ماته، ② أَوْجِزْ: مختصر اوجامع، ③ مُوَدِّعٍ: رخصتونکي. پريخودونکي. ④ الإِيَاسَ: نا أميدى.

**تسهيلات**:

**قوله**: عِظْنِي وَأَوْجِزْ: يعنى مختصر نصيحت اوکړو.حضورپاك اوفرمائيل چه کله مونځ کوې نوداسې په اخلاص سره ئى کوه لکه چه دا ستا آخرى مونځ دې.دويم نصيحت دا چه دَ ژبې نه داسې نامناسب خبره مه اوباسه چه صبا دَ قيامت په ورځ دَ الله تعالى په مخکښې يا صبا دَ خپلو دوستانو په مخکښې عذرونه پيش کوې.اول خبره تله بيا ئى کوه دريم نصيحت دا چه دَ خلقو دَطرف نه بالکل نااميده اوسيږه چه هغوى به تاته څه روپيئى پيسې درکړى دې دَپاره چه په حرص اولالچ کښې پرينوځې

**[۵۲۲۷] دَرسول الله ﷺ بعضې لوړ نصيحتونه**

۵۲۲۷-()[۴۷] [۱] «وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: لَمَّا بَعَثَهُ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِلَى الْيَمَنِ، [۲] خَرَجَ مَعَهُ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يُوصِيهِ، [۳] وَمُعَاذٌ رَاكِبٌ وَرَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَمْشِي تَحْتَ رَاحِلَتِهِ، [۴] فَلَمَّا فَرَغَ قَالَ: "يَا مُعَاذُ! [۵] إِنَّكَ عَسَى أَنْ لَا تَلْقَانِي بَعْدَ عَامِي هَذَا، [۶] وَلَعَلَّكَ أَنْ تَمُرَّ بِمَسْجِدِي هَذَا وَقَبْرِي [۷]" فَبَكَى مُعَاذٌ جَشَعًا لِفِرَاقِ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۸] ثُمَّ الْتَفَتَ فَأَقْبَلَ

[۱] اخرجه احمد فى المسند:۵/۲۳۵

بِوَجْهِهِ نَحْوَ الْمَدِينَةِ،⑨ فَقَالَ: " إِنَّ أَوْلَى النَّاسِ بِيَ الْمُتَّقُونَ،⑩ مَنْ كَانُوا وَحَيْثُ كَانُوا» " رَوَى الْأَحَادِيثَ الْأَرْبَعَةَ أَحْمَدُ.

**ترجمه:**① او حضرت معاذ ابن جبل ﷺ نه روايت دى كوم وخت چې رسول الله ﷺ هغه قاضي ياعامل جوړولو سره يمن ته ليږى،② نو حضور ﷺ دهغه درخصتولو د پاره څه لري پورې ورسره لا ړو، او په دي دوران كې يې ورته تلقين او نصيحت كوى.③ او هغه وخت معاذ ﷺ خو په سورلى سپور وو، او رسول الله ﷺ د هغه سورلى سره پياده روان وو،④ كوم وخت چې حضور ﷺ د نصائحو او هدايت نه فارغه شو، نو وي فرمايل. اې معاذ ﷺ!⑤ څما د عمر ددي كال نه پس شايد ستا زماسره ملاقات ونه شي.⑥ او ممكنه ده، چې ته يمن نه واپس راځې، نو زماسره د ملاقات په ځاى څما دي مسجد او څما قبر باندې تيرشي،⑦ معاذ ﷺ په دي اوريدو سره د رسول الله ﷺ د جدائي په غم كې په ژړا شو،⑧ او رسول الله ﷺ د معاذ ﷺ طرف نه مخ مبارك ګرځولو سره مديني جانب ته مخامخ شو،⑨ بيايي وفرمايل، ماته زيات نزدې هغه خلق دي، كوم چې پرهيز ګاردى،⑩ كه هغه هرڅوك وي، او هرچيرته وي، [يعنى كه هغه د كوم رنګ او نسل، كوم ملك او قوم او كومي طبقي او مرتبي والاوي]، دا څلور روايتونه امام احمد ﷺ نقل كړى دى.

**حل اللغات:** - ①رَاحِلَة: سورلى، ②جَشَعًا: په جيم اوشين دواړو باندې فتحه ده، جزع فزع سره ژړا كولو ته وائى.③اِلْتَفَتَ: متوجه شو، ④نَحْوَ: طرف.

**تسهيلات:**

**قوله: فَبَكَى مُعَاذٌ جَشَعًا لِفِرَاقِ رَسُولِ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:**

**د معاذ رضي الله عنه د ژړا وجه:** حضرت معاذ ﷺ چه كله حضورپاك دَ يمن ګورنر جوړولوسره دَمديني منورې نه روان كړو نو په ډير اهتمام سره ئى هغه ته اهم نصيحتونه اوكړل.دَ نصيحتونونه فارغيدوسره حضورپاك دَ خپل وفات طرف ته اشاره اوفرمائيله چه ممكن دى چه ته بيا زما دَ قبر زيارت اوكړې.دَ محبوب په فراق باندې حضرت معاذ ﷺ په چغو چغو اوژړل

**قوله: ثُمَّ الْتَفَتَ فَأَقْبَلَ بِوَجْهِهِ نَحْوَ الْمَدِينَةِ:**

**د نبى عليه السلام د معاذ څخه د مخ په اړولو كښې دوه وجوهات:**

① نبى عليه السلام دَحضرت معاذ ﷺ دَ ژړا نظاره نه شوه كتله بيا دَ مديني منورې طرف ته مخ مبارك كولو سره

② نبى عليه السلام دَحضرت معاذ ﷺ نه مخ واړولو چه هغه ته عملى تعليم وركړى څكه چه په دنيا كښې فراق لازمى دې.

**قوله:** فَقَالَ: "إِنَّ أَوْلَى النَّاسِ بِيَ الْمُتَّقُونَ، مَنْ كَانُوا وَحَيْثُ كَانُوا:

**امت ته تسلي ور کول:** حضور پاك حضرت معاذ ﷺ ته تسلي ورکړه چه دا عارضي فراق او جدائي ده کومه چه دَ حضرت آدم ﷺ په نسل کښې جاري او ساري ده. بیا حضور پاك حضرت معاذ ﷺ او ټول امت ته خوشخبري ورکړه چه څوك نيك او پرهيزګار وي هغه ما سره نيزدې دي که هرڅوك وي او هرچرته چه وي په ظاهري او بدني لحاظ سره اګرچه لرې وي مګر په قلبي اعتبار سره به نيزدې وي.

**[۵۲۲۸] په اسلام باندې دَ شرح صدر علامت**

۵۲۲۸ - (۱) [۴۳] ۞ وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: «تَلَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۞ ﴿فَمَنْ يُرِدِ اللَّهُ أَنْ يَهْدِيَهُ يَشْرَحْ صَدْرَهُ لِلْإِسْلَامِ﴾ [الأنعام: ۱۲۵] ۞ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ النُّورَ إِذَا دَخَلَ الصَّدْرَ انْفَسَحَ ۞". فَقِيلَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! هَلْ لِتِلْكَ مِنْ عِلْمٍ يُعْرَفُ بِهِ؟ ۞ قَالَ: "نَعَمْ، التَّجَافِي مِنْ دَارِ الْغُرُورِ، ۞ وَالْإِنَابَةُ إِلَى دَارِ الْخُلُودِ، ۞ وَالِاسْتِعْدَادُ لِلْمَوْتِ قَبْلَ نُزُولِهِ»".

**ترجمه:** ۞ او حضرت ابن مسعود ﷺ وايي، چې رسول الله ﷺ دا آيت اووئيلو: ۞ فَمَنْ يُرِدِ اللَّهُ أَنْ يَهْدِيَهُ يَشْرَحْ صَدْرَهُ لِلْإِسْلَامِ، الله ﷻ چې کوم سړي ته هدايت کول غواړي، يعنی خاص هدايت چې هغه مرتبهٔ اختصاص ته ورسوي نو د هغه سينه اسلام د پاره خلاصه کړي په دې طور چې هغه ته د شرائع اسلام اخلاص سره د قبلولو توفيق ورکوي ۞ بيا حضور ﷺ ګويا د آيت تفسير کې وفرمايل: هرکله چې د هدايت نور سينه کې داخل شي، نو سينه فراخه او کشاده شي، ۞ صحابه ؤ ﷺ عرض وکړ، يا رسول الله! آيا د دې حالت او کيفيت څه علامه نشته، چې هغه سره هغه وپيژندل شي، ۞ حضور ﷺ ورته وفرمايل، هو د هغه نښه شته، دار الغرور دنيا نه لرې کيدل، ۞ او آخرت طرف ته [چې هميشه هميشه د پاره باقي پاتې کيدونکي جهان دى] ، رجوع کول او پوره طور سره متوجه کيدل. ۞ او د مرګ نه مخکې دمرګ د پاره تياري کول دي.

**حل اللغات:** ① انْفَسَحَ: فراخه او کشاده شي. ② التَّجَافِي: دده کول، لرې کيدل. ③ الْإِنَابَةُ: رجوع او رغبت کول. ④ دَارِ الْخُلُودِ: د هميشوالي کور، آخرت. ⑤ الِاسْتِعْدَادُ: تياري کول.

**تسهيلات:**

**قوله:** فَمَنْ يُرِدِ اللَّهُ أَنْ يَهْدِيَهُ يَشْرَحْ صَدْرَهُ لِلْإِسْلَامِ:

**د شرح صدر درې نښې:** د سينې کولاويدل هم يو نعمت دې او د شرح صدر د پيژندګلو

(۱) اخرجه البيهقي في شعب الايمان رقم الحديث ۱۰۵۵۲

درې علامات مقرر کړې شوی دی.

① دارالغرور (دنیا) نه بعد یعنی زهد او قناعت اختیارول.

② د دنیا طرف نه بے پرواه کیدل او آخرت طرف ته همیشه متوجه کیدل.

③ مرګ راتللو نه مخکې د مرګ دپاره تیاری کول، یعنی توبه او استغفار کول او د الله تعالی نه د خپلو ګناهونو ببښنه غوښتل

**د شرح صدر مقام:** په کوم کس کښې چه دا درېواړه خصلتونه وی نو ګویا چه دې کس تمام شرائع اسلام په پورا یقین او اخلاص سره قبول کړی دی او هغه دې مقام ته رسیدلې دې.شرح صدر یعنی سینه فراخ کیدلو نه مراد په زړه کښې د قبول حق استعداد او صلاحیت پیدا کیدل دی او قلب مومن کوم چه د هدایت د نور نه ډک وی هغه پخپله د لوې مرتبې حامل وی حتی چه په وسعت کښې د عرش او کرسی، د لوح او قلم، او زمکې او آسمان د ټولو نه وسیع شی نو تر دې چه دا د عرش رب سره تعبیر کړې شوې دې لکه چه یو حدیث قدسی کښې الله تعالی فرمائي چه "لا يسعني أرضي ولا سمائي ولكن يسعني قلب عبدي المؤمن" یعنی نه خو زما زمکه زما ګنجائش لری او نه زما آسمان لیکن زما د مومن بنده زړه زما ګنجائش لری.

**قوله: التَّجَافِي مِنْ دَارِ الْغُرُورِ:**

**دنیا ته د دهوکې کور وئیلو وجه:** دنیا ته دارلغرور ځکه وئیلې شوی دی چه ددې دنیا نمود او نمائش ډیر دې لیکن په حقیقت کښې څه هم نشته او د دنیا نه ډیرو خلقو دهوکه خوړلې ده او مال ئې جمع کړې دې او آخرت ئې هیر کړې دې خو کله چه مړ شو نو خالی لاسونه ددې دنیا نه لاړل.

**[۵۰۳۴] کمې خبرې کولکې او دنیا نه بې رغبتې کولکې ته حکمت ملاویږی.**

۵۰۳۴-()،۵۰۳۰-()(۱)[۴۷] [۱]وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ وَأَبِي خَلَّادٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا: أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲]" «إِذَا رَأَيْتُمُ الْعَبْدَ يُعْطَى زُهْدًا فِي الدُّنْيَا، [۳]وَقِلَّةَ مَنْطِقٍ فَاقْتَرِبُوا مِنْهُ ; [۴]فَإِنَّهُ يُلَقَّى الْحِكْمَةَ» ". [۵]رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي (شُعَبِ الْإِيمَانِ).

**ترجمه:** [۱]حضرت ابوهریره رضی الله عنه او حضرت ابو خلاد رضی الله عنه نه روایت دی، چې رسول

---

[1]) اخرجه ابن ماجه فی السنن كتاب الزهد/باب الزهد فی الدنیا (رقم-۴۱۰۱) والبیهقی فی شعب الایمان رقم الحدیث ۴۹۸۵

[2]) اخرجه ابن ماجه فی السنن كتاب الزهد/باب الزهد فی الدنیا (رقم-۴۱۰۱) والبیهقی فی شعب الایمان رقم الحدیث ۴۹۸۵

الله ﷻ وفرمایل، [۲] هرکله چې تاسو یوبنده ووینئ، چې هغه ته ددنیا نه بې رغبتي ورکړې شوې ده [۳] او د لغو او بیهوده کار نه اجتناب او کم ګوئي ورکړې شوی ده، نو د هغه قربت او صحبت اختیار کړئ، [۴] ځکه چې هغه ته د حکمت او دانائي دولت ورکول شوی دی. [۵] دا دواړه روایتونه بیهقي رحمه الله په شعب الایمان کې نقل کړی دی او مخکنی حدیث ډیرو طرقو سره ثابت دی

**حل اللغات:** - ① زُهْدًا: بې رغبتي، ② قِلَّةَ مَنْطِقٍ: کمې خبرې، کم ګوئی. ③ الْحِكْمَةَ: دانائي. پوهه

**تسهیلات:**

**قوله إِذَا رَأَيْتُمُ الْعَبْدَ يُعْطِي زُهْدًا فِي الدُّنْيَا، وَقِلَّةَ مَنْطِقٍ فَاقْتَرِبُوا مِنْهُ:**

**اهل الله ته د نږدیکت حکم:** یعنی کوم سړې چه الله تعالی زهد قناعت اوترك دنیا په صفت سره متصف کړې دې او کمې خبرې کول ئې دَهغه عادت جوړکړې دې نودَداسې سړی نه فیض حاصلولو دَپاره دَهغه صحبت اختیارکړئی هغه به زهد اودَترك دنیا صفت نورو ته منتقل کړی اودَ قلت کلام په وصف سره به نور خلق متصف کړی

**دنیکانو خلقو د صحبت برکت:** حضرت لاهوری رحمه الله لیکلی دی دَ صوفیاوَ دَ ځپلونه هغه مرغلرې ملاویږی چه دَ بادشاهانو دَ تاجونونه نه شی ملاویدې

# [ ۱ ] بَابُ فَضْلِ الْفُقَرَاءِ وَمَا كَانَ مِنْ عَيْشِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

**دَ فقراء دَ فضيلت او دَ حضورپاک ﷺ د معاشي ژوند بيان**

**خلاصة الباب**

**فيه خمسة وثلاثون حديثاً مشتملة على ثماني مسائل:**

① فضيلة الفقراء: ۱، ۲، ۳، ۴، ۵، ۶، ۱۳، ۱۴، ۱۵، ۱۶، ۲۶، ۲۷، ۲۸۔
② ذكرعيش النبي صلى الله عليه وسلم: ۷، ۸، ۹، ۱۰، ۲۲، ۲۳، ۲۹، ۳۰۔
③ ذكر عيش الصحابة : ۱۱، ۲۳، ۲۴، ۲۶، ۳۵۔
④ ينظر إلى الأدنى حالاً في الدنيا،لاعلى العكس: ۱۲، ۱۷، ۲۵۔
⑤ عيش المؤمن في الدنيا: ۱۸، ۳۱۔
⑥ فضيلة الحماية عن الدنيا وقلة المال : ۱۹، ۲۰، ۳۲۔
⑦ كون حب النبي صلى الله عليه وسلم مقروناً بالفقر: ۲۰۔
⑧ فضيلة التعفف والصبر على الفقر: ۳۳، ۳۴۔

**دفقير لغوی معنی:** فقراء دَ فقيرجمع ده.دَ فقيرمعنی مفلس، محتاج او غريب دي.

**دفقير او مسكين په ترادف او تباين كښې څلور اقوال:** ①دا دواړه مترادف الفاظ دی دَ دواړو معانی يو دی.

② مسكين هغه وی چاسره چه څه مال وی لكه چه قرآن كريم كښې دی ﴿ أَمَّا السَّفِينَةُ فَكَانَتْ لِمَسَاكِينَ ﴾ [سورت الكهف: ۷۹] نو دلته مسكينان دَ كشتئی مالكان گرځولې شوی دی او فقير هغه وی چاسره چه هيڅ هم نه وی.

③ فقيرهغې ته وائی چاسره چه څه مال موجود وی مګردَ نصاب نه كم وی او مسكين هغه وی چاسره چه څه هم نه وی.

④ ضابطه دا ده چه چرته چه فقير او مسكين يوځائی ذكر وی نودَ دواړو به جدا جدا معنی اخستې شی اوچرته چه دواړه جدا جدا ذكروی نوبيابه دَ ترادف په توګه هم يو مفهوم اخستې شی.ضابطه دا ده "الفقير والمسكين اذا اجتمعا افترقا واذا افترقا اجتمعا"

**د مالدارۍ او غريبۍ په افضليت كښې مذاهب:**

① دَبعضې علماؤ په نيز غنا او مالداری افضل ده

② دعامو علماؤ اودَ جمهورو صوفيانو په نيزفقروفاقه دَ غنا نه مطلقًا افضل ده.

**داول فريق دليل:** دوی دَحضرت ابوهريره ﷺ دَروايت او واقعې څخه استدلال كوی. په كوم كښې چه فقيرانو صحابه كرامو دَ حضورپاك په مخكښې دَ غنيانودَ درجاتو ذكراوكړو چه هغوی عبادت هم كوی اومالدار هم دی اوخرچ هم كوی په دې باندې

حضورپاك هغه فقیرانو صحابه کرامو ته دَ یو څو تسبیحاتو وظیفه اوخودله چه په دې سره به تاسو دَ دغه مالدارانو نه مخکښې شئ. کله چه هغه مالدارانو ته معلومه شوه نو هغوی هم دغه وظیفه وئیل شروع کړه هغه فقیرانو دَ حضورپاك په وړاندې بیا شکایت اوکړو نو حضورپاك اوفرمائیل چه ﴿ ذٰلِكَ فَضْلُ اللّٰهِ يُؤْتِيْهِ مَنْ يَّشَآءُ ﴾ [سورت الجمعة:۴] دا په دې خبره باندې دلیل دې چه دَ اغنیاؤ مقام اوچت دې

**ددویم فریق دلیل:** دَ فقروفاقې ژوند ټولو انبیاء کرامو اختیارکړې دې اودَ الله تعالی نه ئی دا غوښتې دې معلومه شوه چه دا غوره دې حضورپاك فرمائیلی «الفقرفخري»'

**سعدی بابا اویوعالم مناظره:** په دې موضوع باندې باباسعدی رحمه الله په ګلستان کښې اوږد بحث کړې دې اویوعالم سره ئی اوږده مناظره کړې ده. باباسعدی رحمه الله پخپله دَ غنادَ افضل کیدو قائل وو اودَ هغه مقابله کښې عالم دَ فقروفاقې دَ فضیلت قائل وو دَ دواړو جګړه اونخته نو دواړه دَ ښارقاضی له لاړل.هغه داسې فیصله واوروله چه دَ غنا اوفقر جدا جدا مواقع دی.په یو موقع باندې فقر افضل وی او په بله موقع باندې غنا افضل وی.ځنی جګړه مه کوئی او یوبل مه ذلیل کوئی.

**دنبی علیه السلام د غریبۍ وجه:** اوس دا خبره چه دَحضورپاك فقر و فاقه ځنګه وه نو علماء لیکی چه دَ هغوی فقر شاهانه وو عاجزانه نه وو هغه اختیاری فقر وو اضطراری نه وو. دلته په دې خبره باندې هم ځان پوهه کول پکار دی چه حضورپاك دَخپل ځان دَپاره اودَ خپل اهل بیت دَپاره عزیمت باندې مبنی یو امتیازی فقیرانه ژوند اختیارکړې وو اوعام امت ته ئی دا اختیارورکړې وو چه هغوی دَوسعت ژوند دَ جائز حدودو په دائره کښې خپلولې شی. "الحمدلله لاضیق ولاحرج ففی الامرسعة".

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۵۲۳۱] دَغربت فضیلت**

۵۲۳۱-(۱)[۱] [۱] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«رُبَّ أَشْعَثَ مَدْفُوْعٍ بِالْأَبْوَابِ [۳] لَوْ أَقْسَمَ عَلَى اللّٰهِ لَأَبَرَّهُ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابوهریره رضی الله عنه وایي، چې رسول الله ﷺ وفرمایل، [۲] ډیر خلق داسې دي چې په ظاهره خو ښبر سر او غبار الود (یعني په ښاورو ککړ ډیر غریب حال اود پریشاني په صورت کې) په نظر راځي، چې هغوئ (دلاس یا ژبې په ذریعه) د دروازو نه شړل کیږي، [۳] لیکن (هغوئ د الله په نزد دومره اوچته درجه لري)، که هغوئ د الله په بروسه قسم

[۱] اخرجه مسلم في كتاب البر والصلة والآداب/باب فضل الضعفاء والخاملين (رقم-۱۳۸ - (۲۶۲۲)

واخلي، نو الله یقینًا د هغوئ قسم پوره کوي.(مسلم)

**حل اللغات:-** ①رُبَّ: ډیر خلق، ②أَشْعَثَ: خیرنو ګډ وډ ویښتو والا، بیرسر، ③مَدْفُوعٍ: دفع کولې شی، شړلې شی، ④لَأَبَرَّهُ: بری به ئې کړی، قسم به ئې رښتیا کړی،

**تسهیلات:**

**قوله: رُبَّ أَشْعَثَ مَدْفُوعٍ بِالْأَبْوَابِ لَوْ أَقْسَمَ عَلَى اللهِ لَأَبَرَّهُ:**

**دبعضې غریبانانو دالله تعالی په نیز مقام:** هغه سړې داسې ورك لاچار او فقیروی فرض کړه که دَ چادروازې له ورشی او اودریږی نو هغه دَ هغه خائی نه زغلولې شی اودَهغه هیڅ قدروقیمت نه شی کولې.نه عام محفلونو اومجلسونو کښې دَهغه څوك تپوس کونکې وی.خلاصه دا چه دَدنیا والو په نیز هغه ډیرحقیر اوډیر فقیر وی لیکن دَ الله تعالی په نیز هغه دومره معزز وی که په الله تعالی باندې یقین کولو سره هغه قسم اوخوری چه دَ الله تعالی جل جلاله په ذات مې دې قسم وی چه الله تعالی به دا کارکوی نو الله تعالی دَ هغه دَ قسم لحاظ ساتلو سره دَهغه قسم پوره رښتیاکوئی.دادَ هغه سړی لوئی شان دې.معلومه شوه چه دَ فقروفاقې اودَ غربت دَ الله تعالی په نیزډیر قدر دې.

**د حضرت بلال په قسم صبا راخیژی:** په مسند فردوس کښې یوه واقعه ذکرده چه یوځل حضرت بلال په رمضان کښې د صبا د اذان په انتظار وو چه کله صبا راوخیژی نو اذان به کوی بل طرف ته نبی کریم د پیشمنی قجورې خوړلې حضرت بلال د خپلې تجربې مطابق نبی کریم ته عرض اوکړو حضرت تاسو خوراک بند کړئ صبا راوختلو خو نبی ﷺ د هغوی په خبره څه غوږ اونه ګرولو بلکه برابر ئې قجورې خوړلې حضرت بلال دوباره عرض اوکړو حضرت خوراک بند کړئ صبا راوختلو خونبی بیا هم خوراک جاری اوساتل په دریم ځل حضرت بلال رضی الله عنه عرض اوکړو په الله قسم صبا راوختلو تاسو خوراک بند کړئ نبی صلی الله خپله هم خوراک بند کړواو صحابو ته ئې هم اوفرمائیل چه خوراک بند کړئ صبا راوختلو صحابه کرامو ترې تپوس اوکړو حضرت په دې پوښه نشو چه د دویم او دریم ځل په وینا کښې خو دومره وخت نه وو تیر شوې حالانکه په دویم ځل وینا باندې تاسو خوراک کولو او په دریم ځل مو سمدستی بند کړو او اوموفرمائیل چه صبا راوختلو نو نبی ﷺ ورته اوفرمائیل حقیقت دا وو چه صبا راختلې نه وو خو چه کله بلال قسم اوخوړلو چه صبا راختلو نو الله تعالی د بلال د قسم د وجې صبا راوخیژولو چه هسې نه زما بنده بلال په خپل قسم کښې حانث شی د دې واقعه نه هم معلومه شوه چه کله الله تعالی د چا سره محبت کوی نو بیا دا هم نه غواړی چه زما دا بنده دې په خپل قسم کښې حانث شی [۱]

[۱]) مسند فردوس للدیلمی)

[۵۲۳۳] دَضعيف په برکت الله تعالى نورو خلقوته رزق ورکوی

۵۲۳۳-(¹) [۱] [۲] وَعَنْ مُصْعَبِ بْنِ سَعْدٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «رَأَى سَعْدٌ أَنَّ لَهُ فَضْلًا عَلَى مَنْ دُونَهُ، [۳] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "هَلْ تُنْصَرُونَ وَتُرْزَقُونَ إِلَّا بِضُعَفَائِكُمْ؟!» ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت مصعب ابن سعد تابعي رحمه الله وايي، [۲] څما پلار حضرت سعد رضی الله عنه خپل باره کې داګمان وکی، چې هغه د هغه سړي نه افضل دی، چې هغه نه کمتر دی (يعني ضعيف او ناتوان سړی يا فقير او مفلس) [۳] نو رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغه داګمان ختمولو اود نور آګاه کولو د پاره وفرمايل، تاسو ته د دښمنان دين په مقابله کې مدد او سهاره او رزق چې د کومو خلقو په وجه حاصليږي هغه د غه ضعيف او ناتوان او غريب او نادارخلق وي. (بخاري)

**د راوي مختصر تعارف:**

**حضرت مصعب بن سعد بن ابي وقاص رضی الله عنه**: نوم مصعب دَ پلار نوم سعدوو تابعی دې. دوی عموماً دَحضرت علی بن ابی طالب ابن عمروغيره نه روايت نقل کوی. اودَ هغه نه عموماً مجاهد ابواسحاق رحمهم الله وغيره روايت نقل کوی. دَ اسماء الرجال والا دَ هغه په ثقاهت باندې متفق دی. صاحب طبقات بن سعد رحمه الله فرمائی کان ثقه كثير الحديث.

**حل اللغات**: - ① مَنْ دُونَهُ: څوک چه کمتر دی دهغه نه.

**تسهيلات:**

**قوله**: رَأَى سَعْدٌ أَنَّ لَهُ فَضْلًا عَلَى مَنْ دُونَهُ:

**دسعدبن ابی وقاص مقام**: حضرت سعد رضی الله عنه دَ حضوراکرم صلی الله علیه وسلم ماما وو دَ لوئی شان والا صحابی وو دَ عراق فاتح وو او دَ ديرو زياتو خوبيانو مالك وو مثلاً دَ اعلی درجې بهادر وو. فياض وو. په اعلی شرافت باندې فائز وو.

**دسعدرضی الله عنه اصلاح**: دَهغه په ذهن کښې داخبره راغله چه کوم خلق زما په شان خوبيانې او خصوصيات نه لرى دَهغوی په مقابله کښې دَ خدمت په حوالې سره زه دَ اسلام او دَ مسلمانانو زيات خدمت کوم لهذا دَ اسلام دَپاره زما وجود زيات فائده مند دې لکه چه نور غيرمشهورقسم غريبانان مسلمانان زما دَ وجې نه روستو دی. کيدې شی چه حضرت سعد رضی الله عنه په ژبه سره اظهارهم کړې وی. دَدې په جواب کښې حضورپاك اوفرمائيل چه دا خيال مه کوه بلکه حقيقت خود ادې چه هم دَ دغه فقيرانو مسکينانو او درويشانو په برکت سره ته خورې څکې او په دښمن باندې غالب راځې لهذا دوی سپك مه ګڼره.

¹) اخرجه البخاری فی کتاب الجهاد والسير/باب من استعان بالضعفاء والصالحين فی الحرب (رقم-۲۸۹۶) واحمد فی المسند: ۱۷۳/۱

**[۵۲۳۳] غريبانو مسلمانانو ته د جنت زيري**

۵۲۳۳-(۳۱) [۱] وَعَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «قُمْتُ عَلَى بَابِ الْجَنَّةِ، فَكَانَ عَامَّةُ مَنْ دَخَلَهَا الْمَسَاكِينَ، [۳] وَأَصْحَابُ الْجَدِّ مَحْبُوسُونَ، [۴] غَيْرَ أَنَّ أَصْحَابَ النَّارِ قَدْ أُمِرَ بِهِمْ إِلَى النَّارِ، [۵] وَقُمْتُ عَلَى بَابِ النَّارِ فَإِذَا عَامَّةُ مَنْ دَخَلَهَا النِّسَاءُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت اسامه بن زيد رضي الله عنهما وايي، يوه ورځ رسول الله ﷺ وفرمايل. [۲] زه د معراج په شپه يا په خوب کې يا په حالتِ دکشف کې د جنت په دروازه ولاړ وم، ما وليدل چې کوم خلق په جنت کې داخليږي، په هغوئ کې زيات تعداد د غريبانو دى. [۳] او مالدار به د قيامت په ميدان کې حصار شوي وي، [۴] البته اصحابِ نار يعنى کافروته به دوزخ ته د تلو حکم ورکول شوی وي، [۵] اوکله چې زه د دوزخ په دروازه ودريدم نو اومو ليدل، چې کوم خلق په دوزخ کې اچول شوي دي، په هغوئ کې زيات تعداد د ښځو دى. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** - ① أَصْحَابُ الْجَدِّ: مال ته جد اووئيلې شو او اصحاب الجد مالدار خلق دى ② مَحْبُوسُونَ: ايسار شوى به وى، ③ أُمِرَ: حکم به کولې شى.

**تسهيلات:**

**قوله: قُمْتُ عَلَى بَابِ الْجَنَّةِ، فَكَانَ عَامَّةُ مَنْ دَخَلَهَا الْمَسَاكِينَ:**

**دجنت او جهنم منظر په کتلو کښې دوه احتمالات:**

① رسول الله ﷺ دا نظاره دَ معراج په شپه ليدلې وى يائى په کشف کښې ليدلې وى

② رسول الله صلى الله عليه وسلم دا نظاره خوب کښې ليدلى وى

**دجنت زيات اوسيدونکى:** نبى عليه السلام فرمائى چه دَ جنت په دروازه کښې اودريدو سره دننه نظر او کړو نو اکثر داخليدونکى غريبان نادار او مسکينان خلق وو

**قوله: وَقُمْتُ عَلَى بَابِ النَّارِ فَإِذَا عَامَّةُ مَنْ دَخَلَهَا النِّسَاءُ:**

**دجهنم زيات اوسيدونکى:** په جهنم کښې دښځوزياتې تعداد ځکه وو چه ښځې دَ خاوندانو ناشکرى کوى او خپل مينځ کښې لعن طعن يعنى پيغورونه کوى، په غيبت او چغلئى کښې وخت تيره وى. کيدې شى چه په شروع کښې په دوزخ کښې زياتې وى اودَ سزا تيرولونه پس به په جنت کښې زياتې وى يا چه څومره وې دا تعداد هم ډير زيات وو.

[۱] اخرجه البخارى فى كتاب الرقاق/باب صفة الجنة والنار (رقم-۶۵۴۷) ومسلم فى كتاب الذكر والدعاء والتوبة والاستغفار/باب أكثر أهل الجنة الفقراء وأكثر أهل النار النساء وبيان الفتنة بالنساء (رقم-۹۳ - (۲۷۳۶)) واحمد فى المسند: ۲۰۵/۵

**[۵۳۳٤] په جنت او دوزخ کې په دکومو خلقو اکثريت وى؟**

۵۳۳٤ -(١) [٣] ١ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ٢ "«اطَّلَعْتُ فِي الْجَنَّةِ، فَرَأَيْتُ أَكْثَرَ أَهْلِهَا الْفُقَرَاءَ. ٣ وَاطَّلَعْتُ فِي النَّارِ فَرَأَيْتُ أَكْثَرَ أَهْلِهَا النِّسَاءَ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ او حضرت ابن عباس ﷺ وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ ما په جنت کې وکتل، نو په هغه کې اکثره تعداد د غريبو او نا دارو خلقو په نظر رالى، ٣ او په دوزخ کې مې وکتل، نو په هغه کې اکثريت د ښځو په نظر رالى. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** - ① اطَّلَعْتُ: اومې کتل (سر اوچتولو سره کتلو ته وائى).

**تسهيلات:**

**نوټ:** ددې حديث د مضمون تشريح وړاندې د حديث نمبر (۵۳۲۳) په تسهيل کښې تيره شوه

**[۵۳۳۵] فقيران مهاجرين به جنت ته مخکښې ځى**

۵۳۳۵ -(٢) [۵] ١ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ٢ "«إِنَّ فُقَرَاءَ الْمُهَاجِرِينَ يَسْبِقُونَ الْأَغْنِيَاءَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِلَى الْجَنَّةِ بِأَرْبَعِينَ خَرِيفًا»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ١ او حضرت عبد الله بن عمرو ﷺ وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ فقراء مهاجرين به د قيامت په ورځ په جنت کې د مالدارو نه څلويښت کاله مخکې په جنت کې داخليږي. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① يَسْبِقُونَ: مخکښې به ځى. ② الْأَغْنِيَاءَ: مالدار، ③ خَرِيفًا: خريف دَ خزان موسم ته وائى. دلته ترې کال مراد دې.

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّ فُقَرَاءَ الْمُهَاجِرِينَ يَسْبِقُونَ الْأَغْنِيَاءَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِلَى الْجَنَّةِ بِأَرْبَعِينَ خَرِيفًا:

**دغريبانانود مالدارانو مخه جنت ته وړاندې داخليدل:** په کال کښې چونکه يو ځل دَخريف يعنى خزان موسم راځى لهذا دې نه کال هم مراد اخستې شى. مطلب دا چه مهاجرينو کښې کوم فقيران دى هغوى به دَمالدارانو نه څلويښت کاله مخکښې جنت ته ځى.

**اشکال:** په دې حديث کښې او راتلونکى حديث نمبر (۵۳۳۶) کښې واضح تعارض دې ځکه چه هلته پنځه سوا کاله مخکښې جنت ته دَ تلو ذکر دې؟

---

(١) ومسلم فى كتاب الذكر والدعاء والتوبة والاستغفار/باب أكثر أهل الجنة الفقراء وأكثر أهل النار النساء وبيان الفتنة بالنساء (رقم-٩٤ - (٢٧٣٧) والترمذى فى كتاب صفة جهنم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء أن أكثر أهل النار النساء (رقم-٢٦٠٢) واحمد فى المسند:١/٢٣٤

(٢) اخرجه مسلم فى كتاب الزهد والرقائق (رقم-٣٧ - (٢٩٧٩) وابن ماجه فى كتاب الزهد/باب منزلة الفقراء (رقم-٤١٢٣)

**داشکال دریم جوابونه:**

① پخپله په دغه فقراؤ کښې فرق دې دَ څلويښتو کالو والا هغه فقراء دی چه مجبوراً فقيران دی تارك الدنيا زاهدان نه دی بلکه جبری فقيران دی. او پنځه سوا کاله مخکښې تلونکی هغه فقيران دی چه تارك الدنيا ، زاهدين، متوکلين دی.

② په حديث کښې تعيين اوتحديد بيانول مقصود نه دی بلکه تکثير بيانول دی نو څلويښت کاله نه هم تکثير بيانول مقصود دی او پنځوسوو کالو نه هم تکثير بيانول مطلوب دی. يعنی ډيره موده مخکښې به ځی.

③ دلته کوم حديث دَ عبد الله بن عمرو ﷺ نه نقل دې دَ دې نه هغه فقراء مراد دی کوم چه دَ مهاجرينو نه علاوه وی. دَهغوی دَپاره دَ څلويښتو کالو ذکر دې اودَ فصل ثانی حديث کوم چه دَ ابوهريره ﷺ نه نقل دې هلته دَ فقراء نه دَمهاجرينو فقراء مراد دی هغوی به پنځه سوا کاله مخکښې جنت ته ځی.

درویش خدا است نہ شرقی ہے نہ غربی　　گھر اس کا نہ دلی نہ صفاہان نہ سمرقند

**[٥٢٣٦] په مالداره سری د غريب ديندار سری فضيلت**

٥٢٣٦-(١)[٢] ① وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: «مَرَّ رَجُلٌ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ② - فَقَالَ لِرَجُلٍ عِنْدَهُ جَالِسٍ: "مَا رَأْيُكَ فِي هَذَا؟ ③" فَقَالَ رَجُلٌ مِنْ أَشْرَافِ النَّاسِ: هَذَا وَاللَّهِ حَرِيٌّ ④ إِنْ خَطَبَ أَنْ يُنْكَحَ، ⑤ وَإِنْ شَفَعَ أَنْ يُشَفَّعَ. ⑥ قَالَ: فَسَكَتَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ⑦ ثُمَّ مَرَّ رَجُلٌ فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا رَأْيُكَ فِي هَذَا؟ ⑧" فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! هَذَا رَجُلٌ مِنْ فُقَرَاءِ الْمُسْلِمِينَ، ⑨ هَذَا حَرِيٌّ إِنْ خَطَبَ أَنْ لَا يُنْكَحَ، ⑩ وَإِنْ شَفَعَ أَنْ لَا يُشَفَّعَ، ⑪ وَإِنْ قَالَ أَنْ لَا يُسْمَعَ لِقَوْلِهِ. ⑫ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "هَذَا خَيْرٌ مِنْ مِلْءِ الْأَرْضِ مِثْلَ هَذَا"». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او حضرت سهل بن سعد ﷺ وايي، يوه ورځ د رسول الله ﷺ و مخې ته يو سړی تير شو، ② نو حضور ﷺ د هغه په ليدو سره دناست يو سړی نه پوښتنه وکړه، دا سړی چې تير شو، د ده باره کې ستا څه خيال دی (يعنی دې څه ښه سړی دی يا خراب سړی دی)، ③ هغه سړي جواب ورکړو، دا سړی ډير معزز اود شريف ترين خلقو نه دی، په الله قسم، د دې سړي حيثيت دادی ④ که يوې ښځې ته د نکاح پيغام وليږي، نو هغه ښځې سره به يې نکاح وشي، ⑤ او که يو حاکم او سردارته د يوسړي باره کې سفارش وکړي، نو د ده سفارش به ومنل شي، ⑥ راوي حضرت سهل ﷺ وايي، رسول الله ﷺ په دې جواب اوريدو سره خاموش وو، ⑦ په دې کې يودويم سړی مخې ته تير شو،

[١] اخرجه البخاری فی كتاب الرقاق/باب فضل الفقر (رقم-٦٤٤٧) وابن ماجه فی كتاب الزهد/باب فضل الفقراء (رقم-٤١٢٠)

نو حضور ﷺ د هغه په ليدو سره ناست سړي نه پوښتنه وکړه، ښه د دې سړي باره کې ستا څه خيال دی،[۸] هغه جواب ورکړو يارسول الله، دا سړی د نادارو، اوغريبانو مسلمانانو نه دی،[۹] د ده حيثيت خو دادی، که د نکاح پيغام وليږی نو څوك به ورسره نکاح ونه کړي،[۱۰] او که د چا سفارش وکی، نو سفارش به يې قبول نشي.[۱۱] او که څه خبره وکړي، نو د هغه اوريدو ته به څوك تيار نشي (يعنی دا سړی د خپل فقر او افلاس په وجه دومره قدر او منزلت هم نه لري چې يوسړی د ده خبره اوريدو ته اماده شي. او ده طرف ته توجه وکړي)[۱۲] رسول الله ﷺ چې دا واوريدل، نو وي فرمايل اې نادانه دا سړی چې تا ورته د حقارت په نظر کتلی دی، او يوبې حيثيته سړی دې گڼلی دی، د هغه سړي په شان د خلقو نه د ډکې زمکې نه هم دې زيات بهتر دی د چاچې تاتعريف کړی دی (بخاري. مسلم)

**حل اللغات:-** ① حَرِيٌّ: لائقه، حقداره، ② مِلْءُالْأَرْضِ: ډکه زمکه.

**تسهيلات:**

**قوله: هَٰذَا خَيْرٌ مِنْ مِلْءِ الْأَرْضِ مِثْلَ هَٰذَا:**

**دېې قدره اوګمنامه خلقو فضيلت:** ددې مطلب دا دې چه دا ټول زمکه د غه کس په شان خلقو نه ډکه شی کوم چه ددې نه مخکې تيرشوې او د کوم چه تعريف او صفت کيږی نو هغه يو کس چه د خپل فقر په وجه ستاسو په نظر کښې هيڅ قدر نه لري، د مرتبی او د فضيلت په اعتبار به ددې ټولې زمکې نه بهتر وی،

**دفضيلت وجه:** ددې فضيلت وجه دا بيان شوی ده چه عام طور باندې د غريب مسلمان زړه ډير صفا وی په دې وجه هغه حق ډير زر قبلوی او د الله تعالی د احکاماتو تابعداری ډيره کوی. د حديث ظاهری مفهوم نه دا معلوميږی چه مخکې تير شوې کس هم د مالداره مسلمانانو نه وو. کافر نه وو ځکه چه د فضيلت تعلق د مسلمانانو او د کافرانو په مينځ کښې نه کيږی، ځکه چه کفارو کښې يو کس ته هم د خير نسبت نه شی کيدې، په دې وجه بعضې علماء کرامو دا وئيلی دی چه کوم مسلمان په خپله ژبه دا اوونيل "النصراني خيرمن اليهودي" نو دهغه په باره کښې ويره ده چه هغه په کفر کښې داخل نه شی ځکه چه هغه په دې جملی سره گويا د هغه خلقو کښې خير وجود ثابت کړو په چا کښې چه بلکل د خير وجود نشته بهرحال په دې باندې د کفر اطلاق په جزم سره نه شی کيدلې

## [۵۲۳۷] دَ حضور پاك ﷺ د معاش حالت

۵۲۳۷-(۱)[۷] [۱] «وَعَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا- قَالَتْ: [۲] مَا شَبِعَ آلُ مُحَمَّدٍ مِنْ خُبْزِ الشَّعِيرِ يَوْمَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ [۳] حَتَّى قُبِضَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او بي بي عائشه ﷺ وايي، [۲] داسې هيڅ كله نه دي شوي، چې د حضور ﷺ اهل بيت يعنې ازواج مطهرات او متعلقين دوه ورځي مسلسل د وربشو روټۍ په ډك نس (خيټه) خوړلي وي، [چيرته لاد غنمو روټۍ] ، [۳] تر دي چې رسول الله ﷺ د دي دنيا نه تشريف يووړى. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** - ① شَبِعَ: موړ شو. ② الشَّعِيرِ: وربشې، ③ مُتَتَابِعَيْنِ: پرله پسې، ④ قُبِضَ: وفات شو

**تسهيلات:**

**قوله: مَا شَبِعَ آلُ مُحَمَّدٍ مِنْ خُبْزِ الشَّعِيرِ:**

**دنبي عليه السلام غريبي:** يعنى دَ غنمو خبره پريږده دَ اوربشو په روټئى سره هم مسلسل دَ حضورپاك دكور والو خيټه نه ده ډكه شوې كه چرې يو ورځ خوراك ملاؤ شوې دې نو بله ورځ نه دې ملاؤ شوې. اوس دلته سوال دادې چه حضورپاك او صحابه كرام خو په آخرى عمركښې دَ كثرت فتوحات دَوجې نه ښه آسوده حال شوى وو بيا دا فاقې اولګې څنګه وې؟ دَدې جواب دادې چه دَ رسول الله ﷺ فقر اختيارى وو په آخر وخت كښې هم حضورپاك دَ دنيا نه فائده نه ده اوچته كړې او اولګې ئې تيرې كړې دى سره دَدې چه آسانى وه. دلته دا خبره هم ياد لرئى چه دا معيار او پيمانه حضورپاك دَخپل ځان دَپاره اودَ خپل اهل وعيال دَ پاره قائم كړې وه دَعام امت دَپاره دا معيار نه وو.

## [۵۲۳۸] حضور ﷺ چرته په مړه خيټه خوراك نه وو كړې

۵۲۳۸-(۲)[۸] [۱] وَعَنْ سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، «عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: [۲] أَنَّهُ مَرَّ بِقَوْمٍ بَيْنَ أَيْدِيهِمْ شَاةٌ مَصْلِيَّةٌ، [۳] فَدَعَوْهُ، فَأَبَى أَنْ يَأْكُلَ، [۴] وَقَالَ: خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الدُّنْيَا وَلَمْ يَشْبَعْ مِنْ خُبْزِ الشَّعِيرِ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت سعيد مقبري (تابعي ﷫) د حضرت ابو هريره ﷺ نه روايت كوي، [۲] چې يوه ورځ حضرت ابوهريره ﷺ په څه خلقو باندې تير شو، چې په يوځاى كې د طعام په څيزونه جمع وو، او د هغوئ مخې ته سره كړي بزه (چيلئ) پرته وه، [۳] هغوئ

(۱) اخرجه البخارى فى كتاب الأطعمة/باب ما كان النبى صلى الله عليه وسلم وأصحابه يأكلون (رقم-۵۴۱۶) ومسلم فى كتاب الزهد والرقائق (رقم-۲۲ - (۲۹۷۰) والنسائى فى كتاب الضحايا/باب الادخار من الأضاحى (رقم-۴۴۳۲) وابن ماجه فى كتاب الأطعمة/باب خبز البر (رقم-۳۳۴۳)

(۲) اخرجه البخارى فى كتاب الأطعمة/باب ما كان النبى صلى الله عليه وسلم وأصحابه يأكلون (رقم-۵۴۱۴)

خوراك د پاره حضرت ابوهريره ﷺ هم وبللي، ليکن هغه انکار وکی،[۲] او (د خپل نه خوړلو عذر کي) يي وفرمايل رسول الله ﷺ ددي دنيا نه تشريف يووړی، او هيڅ کله يي په ډك نس (خيټه) د وربشو روټۍ ونه خوړه، انو داڅرنګه زغمل کيدلی شی، چې زه د سري کړي بزي (چيلئ) په شان لذيذي غذا نه خپل نس ډك کړم، هرکله چې حضور ﷺ ته په ډك نس (خيټه) د وربشو روټۍ هم حاصله نه وه] (بخاري)

**حل اللغات**:- ①شَاةٌ: چيلئ، ②مَصْلِيَّةٌ: دَ مَرْمِيَّةٌ په وزن باندې وريته شوې،

**تسهيلات**:

**قوله**: خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الدُّنْيَا وَلَمْ يَشْبَعْ مِنْ خُبْزِ الشَّعِيرِ:

**دابوهريره رضى الله عنه د نبى عليه السلات تابعدارى:**

په زهد کښې حضرت ابوهريره رضى الله عنه د نبى عليه السلام تابعدارى کوى اوکله چې ورته د ورتې شوې چيلۍ د خوراک دعوت ورکړې شو نو انکار ئې وکړو. اوپه دليل کښې ئې دا خبره وکړه چې زه څنګه دا ورته شوې چيلۍ اوخورم حال دا چې نبى عليه السلام خپل ټول عمرپه لوږه تنده کښې تيرکړې وو.

**[۵۲۳۹] درسول الله ﷺ معاشى حالت**

۵۲۳۹-()[۹] [۱] «وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- أَنَّهُ مَشَى إِلَى النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- بِخُبْزِ شَعِيرٍ[۲] وَإِهَالَةٍ سَنِخَةٍ،[۳] وَلَقَدْ رَهَنَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- دِرْعًا لَهُ بِالْمَدِينَةِ عِنْدَ يَهُودِيٍّ،[۴] وَأَخَذَ مِنْهُ شَعِيرًا لِأَهْلِهِ[۵] وَلَقَدْ سَمِعْتُهُ يَقُولُ: "مَا أَمْسَى عِنْدَ آلِ مُحَمَّدٍ صَاعُ بُرٍّ وَلَا صَاعُ حَبٍّ،[۶] وَإِنَّ عِنْدَهُ لَتِسْعَ نِسْوَةٍ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه**:[۱] او حضرت انس ﷺ نه روايت دی، يووار هغه د رسول الله ﷺ په خدمت کې د وربشو روټۍ راوړه[۲] او داسې چربي راوړه چې زياتي ورځې د ايخودلو په وجه بدبويه شوي وه،[۳] او حضرت انس ﷺ بيان وکی، چې رسول الله ﷺ يو ځل خپله زغره په مدينه کې يو يهودي سره ګرو ايخودلې وه[۴] چې دهغه نه يې خپل اهل بيت د پاره څه وربشې اخستې وې،[۵] حضرت انس ﷺ نه روايت کونکی داهم بيان وکی، ما د حضرت انس ﷺ نه واوريدل، چې د حضرت محمد ﷺ په اهل بيتو هيڅ داسې مانښام نه وو شوی، چې په هغه کې هغوئ سره به يوصاع غنم ياڅه بله غله وه،[۶] اوحال داوو چې د حضور ﷺ نه بيبياني مبارکي وې (بخاري)

**حل اللغات**:- ①شَعِيرٍ: وربشې، ②إِهَالَةٍ: وازګه، ③سَنِخَةٍ: سخا شوې، بد بويه شوې، ④رَهَنَ: ګانړه، ⑤دِرْعًا: زغره، ⑥بُرٍّ: غنم، ⑦حَبٍّ: دانې، غله.

[۱] اخرجه البخاري في كتاب الاعتكاف/باب باب: لا يدخل البيت إلا لحاجة (رقم-۲۰۲۹) وابن ماجه في كتاب الزهد/باب معيشة آل محمد صلى الله عليه وسلم (رقم-۴۱۴۷) واحمد في المسند:۳/۱۳۳

**تسهيلات:**

**قوله : وَإِهَالَةٍ سَنِخَةٍ:**

**د اهدالة په مصداق کښې دوه اقوال:** ① اهالة وازګې ته وائی که کلکه وی او که ویلې کړې وی.

② دغه شان دَ ګډ دَلم غوړنه اودَ هغې تیل هم مراد اخستې شی

ملاعلی قاری رحمه الله لیکی "کل دهن یؤتدم به" یعنی هرهغه تیل چه دَ ترکارئی په توګه باندې استعمالولې شی

**د سَنِخَةٍ مطلب:** دَدې مطلب دادې چه په هغې کښې بدلون راغلې وو دَډېروخته پورې کیخودو سره دَهغې بوئی بدل شوې وو لکه چه معمولی شان بدبوئی محسوس کیدله دا قسم وازګه وغیره عام قبائل خلق خوری دا سخاشوې غوړنه نه وی صرف دَ ډیروخته پورې کیخودو سره یوقسم بوئی پیدا کیږی.

**قوله : وَلَقَدْ رَهَنَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- دِرْعًا لَهُ بِالْمَدِينَةِ عِنْدَ يَهُودِيٍّ:**

**یهودی سره د زرغې په کیخودو کښې دوه احتمالات:** ① حضورپاك دامعامله یهودی سره اوکړه نوکیدې شی چه په مسلمانانو کښې څوك ملاؤ شوې نه وی

② دَ جواز دَبیان دَپاره نبی علیه السلام د یهودی سره خپله زرغه کیخودې وه چې کافر سره خپل یوڅیزګانړه کیخودل جائز دی.

**قوله : مَا أَمْسَى عِنْدَ آلِ مُحَمَّدٍ صَاعُ بُرٍّ:**

**اشکال:** حضورپاك خودَ خپلو ازواج مطهراتو دَپاره دَټول کال خرچه مخکښې ورکوله لکه چه په نورو احادیثو کښې ذکردی دلته ئی څنګه اوفرمائیل چه یوصاع غنم یا غله به نه وه؟

**داشکال دوه جوابونه :** ① دلته دَ آل لفظ مقحم او زائد وی مطلب دا چه دا معامله دَمحمد ﷺ خپله وه چه حضورپاك سره به هیڅ هم نه وو

② دا حالت دَ اسلام په شروع کښې وو که په مکه کښې وو او که په مدینه کښې بیا چه کله وسعت راغلو نوحضورپاك به دَ پوره کال خرچه ورکوله څنو بیبیانو قبوله کړه او څنو اولګې اختیار کړې.

## [۵۲۴۰] دَ دنيا زياتوالي دَ كافرانو طريقه ده

۵۲۴۰-()[۱۰] [۱] وَعَنْ عُمَرَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: «دَخَلْتُ عَلَى رَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [۲] فَإِذَا هُوَ مُضْطَجِعٌ عَلَى رِمَالِ حَصِيرٍ [۳] لَيْسَ بَيْنَهُ وَبَيْنَهُ فِرَاشٌ [۴] قَدْ أَثَّرَ الرِّمَالُ بِجَنْبِهِ [۵] مُتَّكِئًا عَلَى وِسَادَةٍ مِنْ أَدَمٍ، حَشْوُهَا لِيفٌ [۶] قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! ادْعُ اللّٰهَ فَلْيُوَسِّعْ عَلَى أُمَّتِكَ؛ [۷] فَإِنَّ فَارِسَ وَالرُّومَ قَدْ وُسِّعَ عَلَيْهِمْ وَهُمْ لَا يَعْبُدُونَ اللّٰهَ! [۸] فَقَالَ: "أَوَفِي هَذَا أَنْتَ يَا ابْنَ الْخَطَّابِ؟ [۹] أُولَئِكَ قَوْمٌ عُجِّلَتْ لَهُمْ طَيِّبَاتُهُمْ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا" [۱۰] وَفِي رِوَايَةٍ: "أَمَا تَرْضَى أَنْ تَكُونَ لَهُمُ الدُّنْيَا وَلَنَا الْآخِرَةُ؟"» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عمر فاروق ﷺ فرمايي، يوه ورځ زه د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شوم. [۲] نو اومي ليدل چې حضور ﷺ د کجورو د پانو په تاټ باندې ناست دی. [۳] د رسول الله ﷺ د بدن مبارك او د تاټ په منځ کې څه بستره وغيره نه وه. [۴] چې د هغه په وجه د حضور ﷺ په اړخ (طرف) کښې لګيدلي وو. [۵] او د حضور ﷺ د سرمبارك لاندې چې کومه تکيه پرته وه، هغه د څرمې وه، او هغه د کجورو د پوستکو نه ډکه وه. [۶] ماسرکار دو عالم ﷺ په دې حالت کې ليدو سره ورته عرض وکړو. يارسول الله، الله ﷻ نه دعا ولي نه غواړې، چې هغه ستاسو امت ته مالي وسعت او فراخي عطا کړي. [۷] د فارس اوروم خلقو ته څومره مالي وسعت اوفراخي عطا شوی ده، حالانکې هغوئ د الله ﷻ بندګي نه کوي. [۸] حضور ﷺ وفرمايل، اې ابن خطاب! داته څه وايې، آيا ته تر اوسه پورې په هغه ځاې يې، [چيرته چې ته د شروع نه وې، او دومره موده وروسته هم ستا انداز فکر او د سوچ معيار دومره مخکښو نه نه دی چې ته حقيقت ته ورسې] [۹] ياد لره دا اهل فارس او روم او ټول کفار هغه خلق دي، چې دوئ ته ټول نعمتونه او خوبي بس دې دنياوي ژوند کې ورکول شوی دي، [اوداچې د هميشه ژوند يعنې په آخرت کې به دوی ته د فقر او افلاس. ذلت وخواري خسران او نقصان نه ماسوا نور هيڅ نه حاصليږي] [۱۰] او په يوه روايت کې دا الفاظ دي، آيا ته په دې راضي او مطمئن نه يې چې اهل فارس وروم او نورو کفارو ته دنيا حاصله شي، چې فناء کيدونکي ده او مونږ ته آخرت حاصل شي چې دخپلو ټول تر نعمتونو سره هميشه هميشه باقي پاتې کيدونکې دي (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** - ① مُضْطَجِعٌ: ډډه نې وهلې وه. ② رِمَالِ: بونړلې شوې. ③ حَصِيرٍ: پوزکې. ④ فِرَاشٌ: بستره. ⑤ أَثَّرَ: اثرات. نښې. ⑥ وِسَادَةٍ: بالخت. ⑦ أَدَمٍ: څرمن. ⑧ حَشْوُهَا: د بالخت دننه څيزونو ته وائی لکه مالوچ وغيره. ⑨ لِيفٌ: دکهجورو پوستکی. پانړې.

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب تفسير القرآن/باب {تبتغى مرضاة أزواجک} (رقم-۴۹۱۳) ومسلم فی کتاب الطلاق/باب فی الإيلاء، واعتزال النساء، وتخييرهن وقوله تعالى: {وإن تظاهرا عليه} [التحريم: ۴] (رقم-۳۰ - (۱۴۷۹)) وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب ضجاع آل محمد صلی الله عليه وسلم (رقم-۴۱۵۳) واحمد فی المسند: ۱۴۰/۳

**تسهیلات: قوله**: هُوَ مُضْطَجِعٌ عَلَى رِمَالِ حَصِيرٍ:

**د رمال لغوی تحقیق**: رمال کښې په راء باندې کسره او ضمه دواړه جائز دی دا جمع ده دَدې مفرد رمیل دې کوم چه دَمرمول په معنی کښې دې او مرمول دَ منسوج په معنی کښې او دَمنسوج ترجمه بونړل ده یعنی بونړلې شوې رسئی بیا رمال مضاف دې دَ حصیر ته او حصیر پوزکی ته وائی ای رمال من حصیر پوزکې چه کله جوړولې شی نو په هغې کښې کله کله رسئی استعمالیږی کله صرف ډکی یوخائی کولې شی دَ پوستکونه جوړشوې پوزکې لږ نرم او بهتر وی لیکن دَ رسو نه جوړشوې پوزکې سخت وی ځکه چه دا بونړلې شوې رسئی راولاړې شوې وی چه په بدن کښې ورخښیږی او په بدن باندې نښې جوړیږی دلته دَدې قسم پوزکی نقشه پیش کړې شوې ده چه دَ بونړلې شوې رسو پوزکې وو او په هغې باندې څه بستره نه وه دکوم په وجه چه په بدن مبارک باندې نښې جوړې شوې وې.

**قوله**: أَوَفِي هَذَا أَنْتَ يَا ابْنَ الْخَطَّابِ؟:

**عمر روضی الله عنه ته عتاب**: یعنی دا سوال خودَ یو وړې مرتبې والا سړی له هم نه وو کول پکار دَ خطاب ځویه ستا خو لوئی شان دې تاله دا سوال نه وو کول پکار

**[۵۲۳۱] دَاصحاب صفه دَصحابو غربت**

۵۲۳۱-() [۱] ۱ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: لَقَدْ رَأَيْتُ سَبْعِينَ مِنْ أَصْحَابِ الصُّفَّةِ، ۲ مَا مِنْهُمْ رَجُلٌ عَلَيْهِ رِدَاءٌ، إِمَّا إِزَارٌ وَإِمَّا كِسَاءٌ، ۳ قَدْ رَبَطُوا فِي أَعْنَاقِهِمْ، ۴ فَمِنْهَا مَا يَبْلُغُ نِصْفَ السَّاقَيْنِ، وَمِنْهَا مَا يَبْلُغُ الْكَعْبَيْنِ ۵ فَيَجْمَعُهُ بِيَدِهِ كَرَاهِيَةَ أَنْ تُرَى عَوْرَتُهُ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه**: ۱ او حضرت ابوهریره رضی الله عنه وایي، ما داصحاب صُفَه نه اویا افراد ولیده. ۲ چې په هغوئ کې هیڅ سړی داسې نه وو، چې د هغه سره څه خادر وي، اچې هغه د دویمې کپړې د پاسه اچولی وي، یا په اوږو یې واچوي ګویا هغوئ سره صرف د یوې کپړې نه علاوه دویمه کپړه نه وه[ . او هغه کپړه هم یا خو لنګ وو یاشړی (کمبله) وه ۳ چې خپلو غاړو سره به یې تړلي وه. (او د هغه په ذریعه به یې خپل جسم او ستر پټوی) ۴ هغه لنګ او شړو(کمبلو) کې بعضې خو داسې وه، چې صرف نیمې پنډی پورې به راتلل او بعضې داسې وو، چې دواړو پنړکوته به رسیدل ۵ اوکله چې یو سړی به سجدې ته تلی یا ګنډې پورته کولو سره به کیناستی، نو هغه به د دې خوف نه چې ستر یې خلاص نشي، هغه لنګ یا کمبل به یې په لاس سره نیولی وو. (بخاري)

**حل اللغات**: - ۱ رِدَاءٌ: څادر، ۲ إِزَارٌ: لنګ، ۳ كِسَاءٌ: کمبل. شړئ. ۴ رَبَطُوا: تړلې ئې وه

---

[۱] اخرجه البخاري فی کتاب الصلاة/باب نوم الرجال فی المسجد (رقم-۴۴۲)

**[۵۴۳۲] د غریبی په وجه د احساس کمتری لرې کولو طریقه**

۵۴۳۲-(۱)[۱۳] ① وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② "«إِذَا نَظَرَ أَحَدُكُمْ إِلَى مَنْ فُضِّلَ عَلَيْهِ فِي الْمَالِ وَالْخَلْقِ ③ فَلْيَنْظُرْ إِلَى مَنْ هُوَ أَسْفَلَ مِنْهُ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. ④ وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ، قَالَ: "«انْظُرُوا إِلَى مَنْ هُوَ أَسْفَلَ مِنْكُمْ ⑤ وَلَا تَنْظُرُوا إِلَى مَنْ هُوَ فَوْقَكُمْ ⑥ فَهُوَ أَجْدَرُ أَنْ لَا تَزْدَرُوا نِعْمَةَ اللهِ عَلَيْكُمْ»".

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهریره ﷺ وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② په تاسو کې چې کوم سړی يو داسې سړی ووينې، چې د هغه نه زيات مالدار او زيات خوبصورته وي، (او د هغه په ليدو سره خپل حالت باندې ورته رنځ او حسرت وشي، د الله شکر اداکولو کې سستي او کوتاهي ورنه واقع کېږي، او د هغه سړي پحقله د رشك او حسد جذبات يې پيدا شي) ③ نو هغه ته پکار دی، چې هغه سړي باندې نظر واچوي. کوم چې د هغه نه د کمې درجې وي، چې د هغه په ليدو سره په خپل حالت د الله شکر اداکړي او د نعمت عطا کونکي پروردګار نه خوشحاله شي. (بخاري، مسلم) ④ او د مسلم ﷫ په يوه روايت کې دا الفاظ دي، چې حضور ﷺ وفرمايل، تاسو هغه سړي ته وګورئ چې په مرتبه کې درنه کمتر وي، ⑤ او هغه سړي طرف ته مه ګورئ چې په مرتبه کې درنه لوی وي، ⑥ نو داسې کول به ستاسو د پاره ډير مناسب وی چې تاسو هغه نعمت کوم چې الله درکړي دی، (حقير) سپك ونه ګنئ.

**حل اللغات:** - ① أَسْفَلَ: ښکته درجې والا، ② أَجْدَرُ: ډير لائق او مناسب دی. ③ لَاتَزْدَرُوا: سپک او حقير اونه ګنړئ.

**تسهيلات:**

**قوله: انْظُرُوا إِلَى مَنْ هُوَ أَسْفَلَ مِنْكُمْ:**

**په دنيا کښې ځان څخه ښکته ته کتل:** يو سړې دَ درميانه طبقې سره تعلق لری دَ هغه نه زيات مال والا هم شته او دکم مال والا هم هغه له پکاردی چه کله دَ ځان نه دَ اوچت شان والا مالدار سړې اوګوری نو په حرص اولالچ کښې دې دَهغه طرف تـه سترګې ارتولو سره دَ خلې نه واه واه نه کوی بلکه دَدنيا په حوالې سره چه دَهغه نه کم خلق دی هغوی تـه دې ګوری اودَ الله تعالی شکردې اداکوی اودَ دين په حوالې سره دې دَ ځان نه لوئی سړی ته ګوری اودَ هغې مرتبې ته دَ رسيدو کوشش دې کوی. که چرې داسې اونه کړی نوخطره ده چه دَ الله تعالی دَ نعمت ناقدری اونه شی

[۱]) اخرجه البخاری فی کتاب الرقاق/باب: لينظر إلى من هو أسفل منه. ولا ينظر إلى من هو فوقه (رقم-۶۴۹۰) ومسلم فی کتاب الزهد والرقائق (رقم-۸ - (۲۹۶۳) والترمذی فی کتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-۲۵۱۳) وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب القناعة (رقم-۴۱۴۲)واحمد فی المسند:۳۱۴/۲

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[٥٢٣٣] فقيران به د مالدارو نه مخكښې جنت ته ځي**

٥٢٣٣-(١) [١٣] ١ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ٢ "«يَدْخُلُ الْفُقَرَاءُ الْجَنَّةَ قَبْلَ الْأَغْنِيَاءِ بِخَمْسِمِائَةِ عَامٍ نِصْفِ يَوْمٍ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ١ حضرت ابوهريره ﷺ وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل، ٢ فقراء به جنت ته د غنيانونه پنځه شوه کاله مخکې داخليږي، چې د نيمې ورځې برابر ده. (ترمذي)

**[٥٢٣٤] رسول الله ﷺ په مسکينانو کې د شامليدو دعا غوښتلې ده**

٥٢٣٤-(٢) [١٤] ١ وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ٢ "«اللَّهُمَّ أَحْيِنِي مِسْكِينًا وَأَمِتْنِي مِسْكِينًا، ٣ وَاحْشُرْنِي فِي زُمْرَةِ الْمَسَاكِينِ ٤". فَقَالَتْ عَائِشَةُ: لِمَ يَا رَسُولَ اللهِ؟ ٥ قَالَ: "إِنَّهُمْ يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ قَبْلَ أَغْنِيَائِهِمْ بِأَرْبَعِينَ خَرِيفًا، ٦ يَا عَائِشَةُ! لَا تَرُدِّي الْمِسْكِينَ وَلَوْ بِشِقِّ تَمْرَةٍ، ٧ يَا عَائِشَةُ أَحِبِّي الْمَسَاكِينَ وَقَرِّبِيهِمْ، فَإِنَّ اللهَ يُقَرِّبُكِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ»". ٨ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي (شُعَبِ الْإِيمَانِ).

**ترجمه:** ١ او حضرت انس ﷺ نه روايت دی، چې رسول الله ﷺ دا دعا وفرمايله، ٢ اې الله ما مسکين جوړولو سره ژوندی لرې، د مسکينيې په حالت کې ماته مرګ راکړې ٣ او د مسکينيانو په ډله کې څما حشر وفرمايې، ٤ بي بي عائشه ﷺ چې د حضور ﷺ نه دا دعا کول واوريدل، نو هغه وويل، يارسول الله، تاسو داسې دعا ولې کوئ، ٥ حضور ﷺ ورته وفرمايل، ځکه چې مساکيني [د خپل نورو فضائلو او خصوصياتو او حسن اخلاق وکردار په وجه د آخرت د سعادتونو او نعمتونو خوبه بهره ور وي، ليکن د دې نه قطع نظر د هغوئ د ټولو نه لوی فضيلت دادی، چې هغوئ] به د دولتمندو نه څلويښت کاله مخکې په جنت کې داخليږي، ٦ اې عائشې ﷺ! ګوره چې يو مسکين د خپلې دروازې نه نا اميده ونه ليږې، [بلکې په هرحالت کې هغه سره احسان او حسن سلوك کوه]، اګر که هغه ته ورکولو د پاره ستاسره د خرما يوه ټکړه وی، ٧ اې عائشې خپل په زړه کې د مسکينيانو محبت ساته، او هغوئ په خپلو مجلسونو کې نزدې کوه يعنې هغوئ حقير او کمتر ګڼلو سره د خپل در نه مه منع کوه که ته داسې کوی، نو الله ﷻ به دې د قيامت په ورځ خپل قربت سره ونوازي ځکه چې فقراء او مساکينو سره د محبت او همدردي سلوك د الله ﷻ د قربت حاصلولو ذريعه ده. ٨ دا روايت ترمذي

[١] اخرجه الترمذى فى السنن كتاب الزهد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء أن فقراء المهاجرين يدخلون الجنة قبل أغنيائهم (رقم-٢٣٥٤) وابن ماجه فى كتاب الزهد/باب منزلة الفقراء (رقم-٤١٢٢)

[٢] اخرجه الترمذى فى السنن كتاب الزهد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء أن فقراء المهاجرين يدخلون الجنة قبل أغنيائهم (رقم-٢٣٥٢)

نقل كړي دي، او بيهقي هم په شعب الايمان كې نقل كړې دي

**حل اللغات:** - ① زُمْرَةٌ: ډله، جماعت، ② خَرِيفًا: خريف دَ خزان موسم تـه وائـي دلتـه تـرې كـال مـراد دي ③ شِقٌّ: حصه، نيمه حصه

٥٣٣٥-()[١] [١٥] وَرَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ إِلَى قَوْلِهِ (فِي زُمْرَةِ الْمَسَاكِينِ).

**ترجمه:** [١] او ابن ماجه دا روايت د حضرت ابوسعيد رضي الله عنه نه صرف، زمرة المساكين پورې نقل كړی دی، يعنی د هغوئ په روايت كې د بي بي عائشه رضي الله عنها سوال وجواب او د حديث باقي جمله نشته.

**[٥٣٣٦] د كمزورو خلقو په وجه رزق ملاويدل**

٥٣٣٦-()[١٦] [١] وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [٢] «اِبْغُونِي فِي ضُعَفَائِكُمْ، [٣] فَإِنَّمَا تُرْزَقُونَ -أَوْ تُنْصَرُونَ- بِضُعَفَائِكُمْ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابودرداء رضي الله عنه د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه روايت كوي، حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل. [٢] تاسو خلق ما په خپلو كمزورو خلقو كې تلاش كړئ [٣] ځكه چې تاسو ته رزق دركول كيدل يا وي فرمايل، چې تاسو ته د خپل دښمن په مقابله كې مدد حاصليدل د دې خلقو د بركته دی، كوم چې په تاسو كې كمزوري دی. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① اِبْغُونِي: اولټوئ تلاش كړئ ما.

**تسهيلات:**

**قوله: اِبْغُونِي فِي ضُعَفَائِكُمْ:**

**د مذكوره جملې په مفهوم كښې دوه احتمالات:** ① نبی عليه السلام فرمائی كه چرې زما رضا اوزما خوشحالی غواړئ نو دَ غريبانو كمزورو او نادارو خلقو امداد كوئی او دَ هغوی خوشحالی حاصله كړئ.

② نبی عليه السلام فرمائی چې ما په مالدارانو او طاقتورو خلقو كښې مه لټوئی بلكه غريبانانو او كمزورو خلقو سره يم لهذا تاسو دَ مالدارو دَ مجلسونو اوتعلق وغيره نه ځان ساتئی

**قوله: فَإِنَّمَا تُرْزَقُونَ -أَوْ تُنْصَرُونَ- بِضُعَفَائِكُمْ:**

**د او په كلمه كښې دوه احتمالات:** ① دلته دَ او لفظ دَ تنويع دَ پاره دې چنانچه بعضې روايتونو كښې واؤ دې كوم چه دَ دې تائيد دې

---

[١] اخرجه ابن ما جه فی السنن كتاب الزهد/باب مجالسة الفقراء (رقم-٤١٢٦)

[٢] اخرجه ابوداود فی السنن كتاب الجهاد/باب فی الانتصار برذل الخيل والضعفة (رقم-٢٥٩٤) والترمذی فی كتاب الجهاد عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی الاستفتاح بصعاليک المسلمين (رقم-١٧٠٢) والنسائی فی كتاب الجهاد/باب الاستنصار بالضعيف (رقم-٣١٧٩) واحمد فی المسند:١٩٨/٥

② داهم ممکن دی چه دلته اودَ شك دَپاره وی او راوی ته شك شوې دې چه حضورپاك کوم یولفظ ارشاد فرمائیلې وو

**قوله: بضعفائكم:**

**د کمزور خلقو په وجه دالله تعالی مدد راتلل:** یعنی الله تعالی دَ دغه نادارو او کمزورو خلقو په برکت سره میدان جنګ کښې ستاسو امدادکوی او هم دَدغه نادارو خلقو په برکت سره تاسوته رزق درکوی ځکه چه داخو په ظاهره نیغ بیغ ساده خلق دی لیکن په دوی کښې لوئی دَ الله والا خلق وی دَچا په وجه چه الله تعالی په عامو انسانانوباندې رحمت او شفقت کوی.راتلونکی حدیث کښې هم دا مضمون بیان کړې شوې دې

**[۵۲۴۷] رسول الله ﷺ به د فقراء مهاجرینو په برکت دَفتح دعا غوښتله**

۵۲۴۷-(۱) [۱۷] ① وَعَنْ أُمَيَّةَ بْنِ خَالِدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَسِيدٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - «عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ② أَنَّهُ كَانَ يَسْتَفْتِحُ بِصَعَالِيكِ الْمُهَاجِرِينَ» ". رَوَاهُ فِي (شَرْحِ السُّنَّةِ).

**ترجمه:** ① او حضرت امیه ابن خالد ابن اسید د رسول الله ﷺ نه نقل کوي، ② چې حضور ﷺ به چې د الله ﷻ نه د کفارو په مقابله کې دفتح حاصلولو د پاره دعا کوی، نو د فقراؤ مهاجرینو د برکت په ذریعه به یي دعا غوښتله.(شرح السنه)

**حل اللغات:** - ① يَسْتَفْتِحُ: فتح او کامیابی به ئې غوښتله، ② صَعَالِيكِ: دَ صعلوك جمع ده لکه څنګه چه عصافیردَ عصفور جمع ده.دې نه فقیران مسکینان او کمزوری نادارخلق مراد دی.

**تسهيلات:**

**قوله: يَسْتَفْتِحُ بِصَعَالِيكِ الْمُهَاجِرِينَ:**

**دغریبانانو په وسیله په دشمنانود غلبې سوال کول:** ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی حضورپاك چه به کله دَ جنګ په موقع دکافرانوخلاف دَنصرت او غلبې دعا غوښتله نو په هغې کښې به ئی فقیران مهاجرین واسطه جوړوله اودَ هغوی دعاګانې به ئی یه دښمن باندې دَ فتح ذریعه جوړوله چنانچه ابن ملك فرمائی حضورپاك به داسې دعا فرمائیله «اللهم انصرنا علی الأعداء بعبادك الفقراء المهاجرين» په دې حدیث سره دَ مهاجرینوضعیفانو لوئی فضیلت ثابتیږی.

**[۵۲۴۸] د کافر فاجر خوشحالۍ ته مه پسخیږئ**

۵۲۴۸-(۲) [۱۸] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " ② «لَا

(۱) اخرجه البغوی فی شرح السنه رقم الحدیث ۴۰۶۲

(۲) اخرجه البغوی فی شرح السنه رقم الحدیث ۴۱۰۳

تَغْبِطَنَّ فَاجِرًا بِنِعْمَةٍ،[۳] فَإِنَّكَ لَا تَدْرِي مَا هُوَ لَاقٍ بَعْدَ مَوْتِهِ،[۴] إِنَّ لَهُ عِنْدَ اللهِ قَاتِلًا لَا يَمُوتُ". يَعْنِي النَّارَ». رَوَاهُ فِي (شَرْحِ السُّنَّةِ).

**ترجمه:**[۱] او حضرت ابوهريره ﷜ وايي، چی رسول الله ﷺ وفرمايل،[۲] د يو فاجر (يعني کافر يا فاسق) د دنياوي نعمتونو (يعني جاه وحشمت او دولت سره مالا مال ليدو سره) په هغه رشك مه کوه [۳] ځکه چې تاته نه ده معلومه، چې مرگ نه پس قبر يا په حشر کې هغه ته څه پيښيدونکی دی [يعنی هغه دلته خو بيشکه دنياوي نعمتونو سره مالامال دی. ليکن د دې برعکس په آخرت کې به قسم قسم عذاب او سختيو سره مخ وي] ،[۴] او ياد لره فاجر د پاره د الله په نزد يو داسي قاتل دی چې هغه ته مرگ او فناء نشته، او دهغه قاتل نه د حضور ﷺ مراد اور دی. (شرح السنه)

**حل اللغات:**- ① لَاتَغْبِطَنَّ: رشک مه کوه، ② لَاقٍ: پيښيدونکی،

**تسهيلات:**

**قوله:** قـاتلا" يعنی مرکونکې او قتل کونکې داسې دَ عذاب به وی چه هغه عذاب نه پخپله مرکيږی اونه به فناکيږی. دې نه دَ دوزخ اور مراد دې. دَحديث تعليم دادې چه دَ آخرت نه غافل فاسق، فاجر او مالدار آسوده حالی اوشان اوشوکت ته مه گورئی او مه هغې ته پسخيږئی ځکه چه دَهغه دَپاره راتلونکی حالات ډير سخت دی.

### [۵۲۳۹] دنيا د مؤمن دپاره قيد خانه ده

۵۲۳۹-(¹) [۱۹] [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو -رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[۲] «الدُّنْيَا سِجْنُ الْمُؤْمِنِ وَسَنَتُهُ،[۳] وَإِذَا فَارَقَ الدُّنْيَا فَارَقَ السِّجْنَ وَالسَّنَةَ»". رَوَاهُ فِي (شَرْحِ السُّنَّةِ).

**ترجمه:**[۱] او حضرت عبد الله ابن عمرو ﷜ وايي، چی رسول الله ﷺ وفرمايل،[۲] دا دنيا د مؤمن د پاره قيد خانه او قحط دی،[۳] هرکله چې هغه مؤمن د دنيا نه رخصتيږي، نو گويا قيد خاني او قحط نه نجات خلاصون پيدا کي. (شرح السنه)

**حل اللغات:**- ① سِجْنُ: جيل، قيد خانه، ② سَنَتُهُ: قحط.

**تسهيلات:**

**قوله:** الدُّنْيَا سِجْنُ الْمُؤْمِنِ:

**نوټ:** د مذکوره جملې تشريح وړاندې د حديث نمبر (۵۱۵۸) په تسهيل کښې تيره شوې ده.

¹) اخرجه احمد فی المسند: ۲/۱۹۷

**[۵۲۵۰] الله تعالی خپل محبوب بندیگان دَ دنیا نه لرې ساتی**

۵۲۵۰-()[۲۰] ۱ وَعَنْ قَتَادَةَ بْنِ النُّعْمَانِ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: "۲ «إِذَا أَحَبَّ اللّٰهُ عَبْدًا حَمَاهُ الدُّنْيَا ۳ كَمَا يَظَلُّ أَحَدُكُمْ يَحْمِي سَقِيمَهُ الْمَاءَ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت قتاده ابن نعمان رضی الله عنه نه روایت دی، رسول الله ﷺ وفرمایل، ۲ هرکله چې الله تعالی یو بنده دوست لرې، نو هغه د دنیا نه ساتی، ۳ څرنګه چې په تاسو کې یو سړی خپل مریض د اوبو نه ساتي. (احمد)

**حل اللغات:** - ① حَمَاهُ: ساتی هغه، ② يَظَلُّ: همیشه وی، ③ سَقِيم: مریض

**تسهیلات:**

**قوله: كَمَا يَظَلُّ أَحَدُكُمْ يَحْمِي سَقِيمَهُ الْمَاءَ:**

**دالله تعالی خپل نیکان بندګان د دنیا څخه لرې ساتل:** څوك په داسې څه مرض کښې اخته شي دَ کوم دَپاره چه دَ اوبو استعمال منع وی مثلاً دَ استسقاء بیماری نو ده لره دَ اوبو والا هغه څیزونو نه دَهمیشه دَپاره لرې ساتلو کوشش کیږی دې دَپاره چه زر نه زر جوړ شي. دغه شان الله تعالی چه څوك خپل محبوب جوړول غواړی هغه دَ ګناهونو نه دغه شان لرې کوی.لکه څنګه چه دَ استسقاء والا بیمار سړې دَ اوبونه لرې ساتلې شي

**[۵۲۵۱] د مال کمی په حقیقت کې لوی نعمت دې**

۵۲۵۱-()[۲۱] ۱ وَعَنْ مَحْمُودِ بْنِ لَبِيدٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ۲ "«اثْنَتَانِ يَكْرَهُهُمَا ابْنُ آدَمَ: ۳ يَكْرَهُ الْمَوْتَ، وَالْمَوْتُ خَيْرٌ لِلْمُؤْمِنِ مِنَ الْفِتْنَةِ، ۴ وَيَكْرَهُ قِلَّةَ الْمَالِ وَقِلَّةُ الْمَالِ أَقَلُّ لِلْحِسَابِ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت محمود بن لبید رضی الله عنهما نه روایت دی، رسول الله ﷺ وفرمایل، ۲ دوه څیزونه داسې دي چې ابن آدم (یعني انسان) یي نه خوښوي، (اګر که د حقیقت د اعتبار نه هغه دواړ څیزونه ډیر ښه دي) ۳ انسان یوخو مرګ نه خوښوي، حالانکي د مؤمن د پاره مرګ د فتنې نه ښه دی ۴ دویم د مال ودولت کمی نه خوښوي، حالانکي د مال کمی د حساب د کمی موجب دی. (احمد)

**تسهیلات:** قوله: وَالْمَوْتُ خَيْرٌ لِلْمُؤْمِنِ مِنَ الْفِتْنَةِ:

**د فتنې په مراد کښې اقوال:**

① "فتنة" نه مراد په کفر شرك او ګناهونو کښې اخته کیدل،

---

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الطب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الحمیة (رقم-۲۰۳۶) واحمد فی المسند:۴۲۷/۵

[۲] اخرجه احمد فی المسند:۴۲۷/۵

④ دَ ظالم جابر خلقولره په داسې کاربانديې مجبوره کول کوم چه دَ اسلامي عقيدو او تعليماتوخلاف وی اوداسې حالاتو سره مخ کيدل په کوم سره چه دَانسان ژوند مجروح کيږی
⑤ دَظالم اوجابر په مخکې دَ خپلې عقيدې او دَ اسلام اظهار چه په ښکاره نه شی کولې
⑥ دَ ظالم جابر په وينا دَ اسلام خلاف الفاظ جاری کيدل لهذا که داسې صورت حال هم پيښ شی نوبيا هم دَ مرګ خواهش کول صحيح نه دی.

**قوله: وَقِلَّةُ الْمَالِ أَقَلُّ لِلْحِسَابِ:**

**دقيامت په ورځ غريب سره د حساب آسانتيا:** د دنياوی مال دولت کمې دَهرمسلمان دَپاره بهتر دې لهذا چه کوم مسلمان غريب وی هغه له خوشحاليدل پکاردی چه الله تعالی زه دَمال او دولت دَ زياتوالی نه بچ اوساتلم لکه چه دَ آخرت دَ حساب اوعذاب نه ئی بچ کړې يم ځکه چه دَمال اودولت ډيروالی وبال او دَ مال دَحساب دَ وجې نه به ډيرې سختئی په آخرت کښې پيښيږی

**[٥٢٥٣] دنبی عليه السلام په عاشق باندې د غريبی راتلل**

٥٢٥٣-()[٢٢] [١]وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُغَفَّلٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: «جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَقَالَ: [٢] إِنِّي أُحِبُّكَ. قَالَ: " انْظُرْ مَا تَقُولُ ". [٣] فَقَالَ: وَاللَّهِ إِنِّي لَأُحِبُّكَ، ثَلَاثَ مَرَّاتٍ. [٤] قَالَ: " إِنْ كُنْتَ صَادِقًا فَأَعِدَّ لِلْفَقْرِ تِجْفَافًا، [٥] لَلْفَقْرُ أَسْرَعُ إِلَى مَنْ يُحِبُّنِي مِنَ السَّيْلِ إِلَى مُنْتَهَاهُ» ". [٦] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [١] او حضرت عبد الله بن مغفل ﷺ وايي، يوسړی د نبي کريم ﷺ په خدمت کې حاضريدو سره عرض وکړو، يارسول الله! [٢] زه ستاسو سره ډير محبت لرم، حضور ﷺ (په دې اوريدو سره) ورته وفرمايل، ګوره دا څه وايې؟ (يعني په ښه شان سوچ وکړه چې ته څه وايې، ځکه چې ته د يو ډير لوی شي دعوی کوې، داسې نه چې وروسته په خپله خبره ټينګ پاتې نه شې) [٣] هغه سړي عرض وکړو، يارسول الله قسم په الله زه تاسو سره محبت لرم، او درې ځلې يې دا جمله اداکړه، [٤] حضور ﷺ ورته وفرمايل، که ته (خما د محبت په دعوی کې ريښتنی يې) نو بيا فقر د پاره زغره تياره کړه، [٥] ځکه چې کوم سړی زماسره محبت لري، فقر او افلاس هغه ته د اوبو د رفتار نه هم ډير زر رسيږي چې خپل منتها طرف ته ځي، [٦] دا حديث ترمذي نقل کړی دی، او ويلي يې دي چې دا حديث حسن غريب دی.

**حل اللغات:-** ① أَعِدَّ: تياره کړه. ② تِجْفَافًا: په جنګ کښې د حفاظت دپاره يو قسم آله يعنی زغره، خو دلته ترې مصيبتونو باندې صبر او برداشت مراد دې.

[١] اخرجه الترمذی فی السنن كتاب الزهد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی فضل الفقر(رقم- ٢٣٥٠)

**تسهيلات:**

**قوله: فَأَعِدَّ لِلْفَقْرِ تِجْفَافًا:**

**دتجفاف څخه مراد:** دَتجفاف په تاء باندې کسره ده او جيم ساکن دي او فاء باندې فتحه ده دښمن سره په جنګ کښې اس ته يو قسم وسله اچولې شي په کوم سره چه اس دَ دښمن دَ وار نه محفوظ وی لکه چه زغره دَانسان بدن محفوظ ساتی دغه شان دا يو قسم زغره ده چه دَ اس بدن دَ دښمن دَ زخم نه بچ کوی دې آلې ته په اردو کښې پاکهر وائی دلته تجفاف نه په مصيبتونو باندې صبر کول او مصيبتونه برداشت کول مراد دی

**دنبی عليه السلام سره د مينې تقاضا:** دَ عشقِ مصطفیٰ تقاضا داده چه دَ دين مصطفیٰ ترقی او حفاظت دَپاره هرقسم قربانی باندې صبر کول پکاردی په دې کښې فقر او فاقه هم شامل ده او دَ دښمن مقابله هم شامل ده يعنی دَ محبت دعوی کولو سره دَمصيبتونو دَپاره ملا اوتړه څکه چه دَ حضورپاك سره دَ محبت رښتونی دعوی باندې دَدغه سړی طرف ته مصيبتونه داسې رامنډې وهی لکه څنګه چه ښکته طرف ته زور دار سيلاب راځی دَدې حديث په رڼړا کښې مونږ چه کله بريلوی حضراتو ته ګورو نودَ هغوی مشاهداتی ژوندون ښائی چه هغوی دَ عشقِ مصطفیٰ په دعوی کښې دروغژن دی

**[۵۲۵۳] دَ الله تعالی په لارکښې دَ حضورپاک ﷺ د تکليفونو ذکر**

۵۲۵۳-()[۲۳] [۱] وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[۲] «لَقَدْ أُخِفْتُ فِي اللَّهِ وَمَا يُخَافُ أَحَدٌ، [۳] وَلَقَدْ أُوذِيتُ فِي اللَّهِ وَمَا يُؤْذَى أَحَدٌ، [۴] وَلَقَدْ أَتَتْ عَلَيَّ ثَلَاثُونَ مِنْ بَيْنِ لَيْلَةٍ وَيَوْمٍ، وَمَا لِي وَلِبِلَالٍ طَعَامٌ يَأْكُلُهُ ذُو كَبِدٍ، [۵] إِلَّا شَيْءٌ يُوَارِيهِ إِبْطُ بِلَالٍ» " [۶] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. قَالَ: وَمَعْنَى هَذَا الْحَدِيثِ: حِينَ خَرَجَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- هَارِبًا مِنْ مَكَّةَ وَمَعَهُ بِلَالٌ، [۷] إِنَّمَا كَانَ مَعَ بِلَالٍ مِنَ الطَّعَامِ مَا يَحْمِلُ تَحْتَ إِبْطِهِ.[1]

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس رضی الله عنه وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل. [۲] د الله د دين ظاهرولو او د هغه طرف ته د خلقو بللو، په لار کې چې خومره زه خوف او دهشت کې مبتلا شوي يم. دومره بل څوك خوف او دهشت کې نه دی اخته شوی. [۳] او د الله د دين په لار کې چې څومره تکليفونو سره زه مخ شوی يم دومره بل څوك نه دی مخ شوی [يعنی ابتداء کې چې ما د اسلام دعوت پيش کړو، او د الله وحدانيت او د خپل رسالت اعلان مې وکی، نو هغه وخت زه بالکل تنها وم، بل سړی زما سره نه وو نو په دې لار کې راتلونکي ټول مصيبتونه هرقسم دهشت انګيزي برداشت کونکی واحد سړی زه وم]. [۴]

[1] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب (رقم-۲۴۷۲) وابن ماجه فی کتاب فی الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضل سلمان، وأبی ذر، والمقداد (رقم-۱۵۱)

بلاشبه په ماباندې متواتر ديرش ورځې او ديرش شپې داسې تيرې شوې دي چې په هغه کې ځما او بلال ﷺ د پاره څه شی نه وو ⑤ علاوه د هغه ډير معمولي څيز نه چې بلال ﷺ په خپل ترخ کې پټ ساتی ( او ښکاره ده چې کوم څيز انسان بغل کې اخستی وي. د هغه حيثيت څه وي، خاص طور سره په داسې صورت کې چې دبهر نه هم هغه په نظر نه راځي. چې بغل کې څه دی) ⑥ ترمذي دا روايت نقل کړی دی، او ويلې يې دی. چې په دې حديث کې د حضور ﷺ کوم صورت حال بيان شوی دی، د دې تعلق د هغه وخت شره دی. کوم وخت چې حضور ﷺ د مکې نه وتلو باندې مجبوره شوی وو او هغه وخت حضور ﷺ سره حضرت بلال ﷺ وو، ⑦ او حضرت بلال ﷺ سره د خوراك څيزونه صرف دومره وه، چې هغه خپل بغل کې دباو کړي وه.

**حل اللغات:** - ① أُخِفْتُ: په خوف او ويره کښې اچولې شوې يم، ② ذُوكَبِدٍ: تشی والا. يعنی ساه لرونکې. ③ يُوَارِيهِ: پټ ئې ساتی، ④ إِبْطُ: ترخ، ⑤ هَارِبًا: تختيدونکې.

**تسهيلات:**

**قوله:** هَارِبًا مِنْ مَكَّةَ" دا دَمکې نه دَ مدينې طرف ته دَ هجرت واقعه نه ده، نه دَ طائف دَ سفرواقعه ده. څه بله واقعه ده په کومه کښې چه حضرت بلال ﷺ ورسره وو.

**[٥٠٥٣] د رسول الله ﷺ او صحابه کرامو د لوږې نه په خيټه باندې کانړی ترل**

٥٠٥٣-() [٢٣] ① وَعَنْ أَبِي طَلْحَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: «شَكَوْنَا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - الْجُوعَ ② فَرَفَعْنَا عَنْ بُطُونِنَا عَنْ حَجَرٍ حَجَرٍ ③ فَرَفَعَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنْ بَطْنِهِ عَنْ حَجَرَيْنِ». ④ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوطلحه ﷺ وايي، مونږ رسول الله ﷺ ته د لوږې شکايت وکی، ② او په خپل نس (خيټه) باندی کانې ترلې مو ورته وخودل (يعنې په مونږ کې هرسړی د لوږې د شدت نه بيتابه کيدو سره په خپل نس (خيټه) يويو کانی ترلی وو، چې مونږ خپل نس کهولاؤولو سره حضور ﷺ ته مو وخودل) ③ بيا حضور ﷺ خپل نس مبارك خلاص کی. نو په هغه باندې دوه کانې ترلې وه، ④ ترمذي ﷺ دا روايت نقل کړی دی، او ويلې يې دی، چې دا حديث غريب دی.

**حل اللغات:** - ① الْجُوعَ: اولږه، ② حَجَرٍ: کانړې، تيکه،

**تسهيلات:**

**قوله:** فَرَفَعْنَا عَنْ بُطُونِنَا عَنْ حَجَرٍ حَجَرٍ:

**په لوږه کښې په خيټه د کانړی ترلو فائده:** کله چې اولږه سخته شی اوخيټه بالکل خالی

---

(١) اخرجه الترمذی فی السنن كتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-٢٤٧١)

شی نو په دغه صورت کښې په خیټه پورې کانړې تړل خیتې، معدې او کولموته د هغه حده پورې طاقت وررسوی چه انسان ته د خپل کار روزګار د کولو طاقت حاصلیږی.

**دخیټوځخه دکانړو په ښکاره کولو کښې دوه وجوهات:** ① په مذکوره حدیث کښې صحابه کرامو ﷺ سوچ اوکړو چه مونږ خود اولږې د وجې نه په خیټه پورې کانړی تړلی دی کیدې شی چه حضورپاك ته زمونږ د اولږې علم نه وی

② دصحابه کرامو ﷺ په زړونو کښې دا خیال راغلې وی چه مونږه اوګې شوی یو حضورپاك به اوګې شوې نه وی.

**دنبی علیه السلام په خیټه پورې دوه کانړی:** خو چه کله صحابه کرامو خپلې خیټې ښکاره کړې نو په هغوی کښې هریو کس یو یو کانړې تړلې وو خو چه کله حضورپاك کپړا اخوا کړه نود محبوب عالم په خیټه پورې دوه کانړی تړلې شوی وو. په دې حدیث کښې رسول کریم ﷺ خپل امت ته په خپل قول سره هم د صبر کولو حکم ورکړو او په خپل حال سره هم

**[۵۲۵۵] د لوږې په وخت د رسول الله ﷺ یوه یوه قجوره تقسیمول**

۵۲۵۵-(¹)[۲۵] ۱ «وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - أَنَّهُ أَصَابَهُمْ جُوعٌ ۲ فَأَعْطَاهُمْ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - تَمْرَةً تَمْرَةً». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابوهریره ﷺ نه روایت دی چې د لوږې شدت فقراء صحابه پریشانه کړه، ۲ نو رسول الله ﷺ په هغوئ کې هریوه ته یوه یوه خرما عطا کړه. (ترمذي)

**تسهیلات:**

**قوله: فَأَعْطَاهُمْ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - تَمْرَةً تَمْرَةً:**

**دصحابؤ د غریبۍ ژوند:** د دې حدیث نه د حضرت ابوهریره ﷺ مقصد دا وو چه په دغه صحابه کرامو باندې د غربت اولږې تندې، د خوراك څښاك د تنګی دومره زیاته غلبه وه چه اکثر وختونو کښې به هغوی په یوه یوه کهجوره باندې صبر کولو په یوه کهجوره باندې به اکتفاء داسې کیدله چه الله تعالی به په هغې کښې برکت واچولو د کوم په وجه چه به یوه کهجوره د یو صحابی د پاره کافی کیدله

**[۵۲۵۶] صبر کونکې اوشکر کونکې څوک دې؟**

۵۲۵۶-(²)[۲۶] ۱ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: "

¹) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب صفة القیامة والرقائق والورع عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۲٤۷٤) وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب معیشة أصحاب النبی صلی الله علیه وسلم (رقم-٤۱۵۷)

²) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب صفة القیامة والرقائق والورع عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۲۵۱۲)

[۲] «خَصْلَتَانِ مَنْ كَانَتَا فِيهِ كَتَبَهُ اللَّهُ شَاكِرًا صَابِرًا: [۳] مَنْ نَظَرَ فِي دِينِهِ إِلَى مَنْ هُوَ فَوْقَهُ، فَاقْتَدَى بِهِ، [۴] وَنَظَرَ فِي دُنْيَاهُ إِلَى مَنْ هُوَ دُونَهُ، [۵] فَحَمِدَ اللَّهَ عَلَى مَا فَضَّلَهُ اللَّهُ عَلَيْهِ؛ [٦] كَتَبَهُ اللَّهُ شَاكِرًا صَابِرًا. [۷] وَمَنْ نَظَرَ فِي دِينِهِ إِلَى مَنْ هُوَ دُونَهُ، [۸] وَنَظَرَ فِي دُنْيَاهُ إِلَى مَنْ هُوَ فَوْقَهُ [۹] فَأَسِفَ عَلَى مَا فَاتَهُ مِنْهُ، [۱۰] لَمْ يَكْتُبْهُ اللَّهُ شَاكِرًا وَلَا صَابِرًا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. [۱۱] وَذَكَرَ حَدِيثَ أَبِي سَعِيدٍ: «أَبْشِرُوا يَا مَعْشَرَ صَعَالِيكِ الْمُهَاجِرِينَ» فِي بَابٍ بَعْدَ فَضَائِلِ الْقُرْآنِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عمرو بن شعیب خپل والد نه او هغه خپل نیکه نه نقل کوي، رسول الله ﷺ وفرمایل، [۲] دوه خصلتونه داسې دي، چې په کوم سړي کې پیدا شي، الله ﷻ هغه صابر او شاکر ګرځوي، [۳] یو هغه سړی چې دیني معامله (یعني نیك اعمال وغیره، کې یو سړي ووینې چې [د علم وعمل طاعات او عبادات، قناعت او استقامت او ریاضت او مجاهدې د اعتبار نه] د هغه نه برتروي، نو د هغه اقتداء کوي [یعني د هغه دیني برتري او فضیلت نه داسې فیضان حاصل کړي چې خپله دې هم د علم او عمل په لار خې. د طاعاتو او عباداتو، محنت او مشقت او بدو (برائیو) نه پرهیز باندې صبر او استقامت اختیار کړي، او کوم دیني او باطني کمالات چې تري مخکې فوت شوي وي چې په هغه افسوس وکړي] [۴] او دویم داچې هرکله د دنیا معامله کې هغه سړی ووینې چې مال ودولت او جاه ومنصب د اعتبار نه هغه نه کمتر وي، [۵] نو د الله ﷻ حمد وثناء وکړي. او د هغه شکر ادا کړي، چې هغه په هغه سړي هغه ته فضیلت او برتري ورکړې ده. [٦] نو الله ﷻ داسې سړی صابر او شاکر ګرځوي، [یعنی شاکر، خو د دې د پاره چې هغه دنیاوي اعتبار نه ځان نه کمتر سړی لیدو سره د الله شکر اداکی، او صابر، د دې د پاره چې هغه دیني اعتبار سره د ځان نه برتر لیدو سره هغه نه رهنمایي او فیضان حاصل کی] . [۷] او کوم سړی چې داسې وي، چې یوداسې سړی ووینې چې د هغه نه دیني یعنی د اعمال صالحه وغیره اعتبار سره د هغه نه د کمتر درجې وي نو غرور او تکبر کې اونخلي [۸] او هرکله چې یوداسې سړی ووینې چې د هغه نه دنیاوي یعنی جاه ومال اعتبار نه برتر وي (نو رشك. حسد. حرص. او خواهش کې اونخلي) [۹] او هغه شی (یعني جاه ومال) باندې رنج وغم وکړي. چې د هغه نه هغه محروم دی [۱۰] نو داسې سړی الله ﷻ نه شاکر ګرځوي او نه صابر (ترمذي) [۱۱] او د حضرت ابو سعید ﷺ، روایت (ابشروا یامعشر صعالیك المهاجرین الخ) په هغه باب کې نقل شوی دی، چې د فضائل قرآن د باب نه پس دی

**حل اللغات:** - ① خَصْلَتَانِ: دوه صفات یا خوبیانې. ② أَسِفَ: افسوس اوکړی. ③ صَعَالِيكِ: د صعلوك جمع ده لکه څنګه چه عصافیر د عصفور جمع ده دې نه فقیران مسکینان او کمزوری نادار خلق مراد دی

**تسهيلات:**

**قوله خَصْلَتَانِ مَنْ كَانَتَا فِيهِ كَتَبَهُ اللّٰهُ شَاكِرًا صَابِرًا:**

**دصبر او شكر په صفت موصوف مسلمان مقام:** شكر او صبر دواړه په يو كس كښې په يو وخت جمع كيدل مشكل دى ځكه چه شكر خودَ نعمت په ملاويدلو باندې كيږى او صبر دَ نعمت په نه ملاويدو يا دَ نعمت په ختميدو باندې كيږى خو چه كوم كس په دغه مذكوره دواړو خبرو باندې عمل كوى هغه به هم په يو وخت كښې صابر هم وى او شاكر به هم وى دَدې مطلب دادې چه الله تعالى دغه كس لره كامل مؤمن جوړوى. چنانچه په دې آيت كښې ﴿إِنَّ فِي ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّكُلِّ صَبَّارٍ شَكُوْرٍ﴾ دَ صابر او شاكر اطلاق هم په هغه چا باندې كيږى كوم چه كامل مؤمن وى.

**په ايمان كښې د صبر او شكر حصه:** بل په دې حديث كښې دا هم فرمائيلى شوى دى چه دَ ايمان دوه نصف دى. يو نصف صبر دې او بل نصف شكر دې. لكه چه خپل ځان دَ بدو نه منع كول صبر سره تعبير دې او دَ ظاهرى اعضاؤ په ذريعه دَ طاعاتو پوره كول دَ شكر په مفهوم كښې دى او ښكاره خبره ده چه دَ كوم بنده ژوند په دغه دواړو اجزاؤ معمور وى هغه كامل مؤمن وى.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [۵۲۵۷] په فقر باندې د صبر كولو فضيلت

۵۲۵۷-()[۲۷] [۱] وَعَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمٰنِ الْحُبُلِيِّ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَمْرٍو، وَسَأَلَهُ رَجُلٌ قَالَ: [۳] أَلَسْنَا مِنْ فُقَرَاءِ الْمُهَاجِرِينَ؟ [۴] فَقَالَ لَهُ عَبْدُ اللّٰهِ: أَلَكَ امْرَأَةٌ تَأْوِي إِلَيْهَا؟ قَالَ: نَعَمْ. [۵] قَالَ: أَلَكَ مَسْكَنٌ تَسْكُنُهُ؟ قَالَ: نَعَمْ. [۶] قَالَ: فَأَنْتَ مِنَ الْأَغْنِيَاءِ [۷] قَالَ: فَإِنَّ لِي خَادِمًا قَالَ: فَأَنْتَ مِنَ الْمُلُوكِ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابو عبد الرحمن حبلي رحمه الله (چې د هغه اصل نوم عبد الله بن زيد مصري دى، او د هغه شمير ثقه تابعين نه كېږي) وايي [۲] ما د حضرت عبد الله ابن عمرو ابن عاص رضي الله عنه نه واوريدل، كله چې يو سړي د هغه نه پوښتنه وكړه [۳] چې آيا مونږ د هغه فقراء مهاجرينو نه نه يو ،[ چې د هغوئ باره كې دا بشارت وركول شوى دى، چې هغوئ به د دولتمندو نه څلويښت كاله مخكې جنت كې داخليږي] ،[۴] حضرت عبد الله په دې اوريدو سره هغه سړي نه پوښتنه وكړه آيا ته ښځې والا يې، چې د هغه سره تاته سكون او قرار حاصليږي، هغه سړي وويل، هو[۵] بيا حضرت عبد الله پوښتنه ورنه وكړه، آيا ستا سره مكان شته چې په هغه كې ته رهائش اختياروي، هغه سړي اوويل هو، مكان هم

[1]) اخرجه مسلم في كتاب الزهد والرقائق(رقم-(رقم-۳۷ - (۲۹۷۹)

شته ⑥ حضرت عبد الله ورته وويل، بيا تـه دولتمند وكي يي [يعني تـه د هغـه مهاجرينو حيثيت منـد سړی يي چې فقر او افلاس کې مبتلا نـه وو، فقراء مهاجرينو کې ستا شمير نشي کيدی، ځکـه چې هغـه فقراؤ سره نـه ښځه وه، نـه کوربار وو، کـه د چا سره پـه دې دواړو کې يوشی وو، نو دويم نه محروم وو] ⑦ هغـه سړی چې دا واوريدل چې حضرت عبد الله د ښځي او کور والا کيدو په وجه هغه ته ګويا دولتمند ويلی دی، نو هغه وويل، زما سره يو خادم هم شته يعنی غلام يا منځه حضرت عبد الله ورته وفرمايل، بيا خو ته د بادشاهانو نه يي، [يعنی پـه دې صورت کې خو ستا شمير رئيسانو او بادشاهانو کې کيدل پکار دی، تاته فقير او مفلس وئيل په هيڅ شان نه درست کېږي]

⑧ قَالَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ: وَجَاءَ ثَلَاثَةُ نَفَرٍ إِلَى عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو وَأَنَا عِنْدَهُ ⑨ فَقَالُوا: يَا أَبَا مُحَمَّدٍ! إِنَّا وَاللّٰهِ مَا نَقْدِرُ عَلَى شَيْءٍ. ⑩ لَا نَفَقَةَ وَلَا دَابَّةَ وَلَا مَتَاعَ. ⑪ فَقَالَ لَهُمْ: مَا شِئْتُمْ إِنْ شِئْتُمْ رَجَعْتُمْ إِلَيْنَا، فَأَعْطَيْنَاكُمْ مَا يَسَّرَ اللّٰهُ لَكُمْ ⑫ وَإِنْ شِئْتُمْ ذَكَرْنَا أَمْرَكُمْ لِلسُّلْطَانِ، وَإِنْ شِئْتُمْ صَبَرْتُمْ ⑬ فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: "إِنَّ فُقَرَاءَ الْمُهَاجِرِينَ يَسْبِقُونَ الْأَغْنِيَاءَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِلَى الْجَنَّةِ بِأَرْبَعِينَ خَرِيفًا". ⑭ قَالُوا: فَإِنَّا نَصْبِرُ لَا نَسْأَلُ شَيْئًا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: ⑧ حضرت ابو عبد الرحمٰن راوي دابيان هم وکی، چې (يوه ورځ) حضرت عبد الله ابن عمرو ﷛ ته دري سړي راغلل، هغه وخت زه هم د هغوئ په خدمت کې حاضر وم، ⑨ هغه دريو سړو وويل، اې ابو محمد! په الله قسم مونږ د هيڅ شي استطاعت نه لرو، ⑩ نه د خرچ کولو چې حج ته لاړ شو، نه د څه څناورو چې پـه جهاد کې شريك شو او نـه د څه نور سامان چې هغه خرڅولو سره خپل ضروري اخراجات پوره کړو، ⑪ حضرت عبد الله ﷛ د هغوئ خبره اوريدو سره ورته وفرمايل، تاسو څه غواړئ، که ستاسو دا خواهش وي، چې زه ستاسو سره مدد وکړم او تاسو ته د خپل طرف نه څه درکړم، نو تاسو خلق بيا څه وخت پس راشئ، زه به تاسو ته هغه شی درکړم، چې د هغـه بـه الله ستاسو د پاره انتظام وکړي، ځکه چې تاسو ته درکولو د پاره دا وخت زما سره هيڅ نشته ⑫ او کـه تاسو غواړئ چې زه ستاسو حالت بادشاه امير معاويه ﷛ ته بيان کړم، او هغـه تاسو خپلې ورکړي سره فارغ کړي، او د ټولو نه ښه خبره داده، که تاسو د اهل کمال رتبه حاصلول غواړئ نو صبر کوئ يعنی په دې خپل حالت فقر او افلاس باندې استقامت اختيار کئ ⑬ ځکه چې ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلي دي چې فرمايل به يې: چې فقراء مهاجرين به د قيامت په ورځ جنت ته د مالدارو نه څلويښت کاله مخکې ځي هغه دريو سړو چې دا حديث واوريدی ⑭ نو هغوئ اوويل بيشکه مونږ د صبر وثقامت لار اختيارولو عهد کوو، اوس مونږ ستاسو نـه هيڅ نـه غواړو يا داچې اوس به آينده مونږ د هيچا نه هيڅ نه غواړو (مسلم)

**حل اللغات**: ① خَرِيفًا: خريف دَ خزان موسم ته وائی دلته ترې کال مراد دی.

**تسهیلات:**

**نوټ:** د حديث د مشکلو جملو وضاحت د مختلفو احاديثو په تسهيل کښې ذکر شوې دې او دکومو تسهيل چې نه دې شوې هغه مضمون کښې څخه مشکل نشته

**[۵۲۵۸] د فقراء مهاجرينو فضيلت**

۵۲۵۸—()[۲۸] [۱] «وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: [۲] بَيْنَمَا أَنَا قَاعِدٌ فِي الْمَسْجِدِ وَحَلْقَةٌ مِنْ فُقَرَاءِ الْمُهَاجِرِينَ قُعُودٌ [۳] إِذْ دَخَلَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَعَدَ إِلَيْهِمْ، فَقُمْتُ إِلَيْهِمْ، [۴] فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لِيُبْشِرْ فُقَرَاءُ الْمُهَاجِرِينَ بِمَا يَسُرُّ وُجُوهَهُمْ، [۵] فَإِنَّهُمْ يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ قَبْلَ الْأَغْنِيَاءِ بِأَرْبَعِينَ عَامًا" [۶] قَالَ: فَلَقَدْ رَأَيْتُ أَلْوَانَهُمْ أَسْفَرَتْ». [۷] قَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَمْرٍو: حَتَّى تَمَنَّيْتُ أَنْ أَكُونَ مَعَهُمْ أَوْ مِنْهُمْ. رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عبد الله ابن عمرو وايي، [۲] مونږ خلق په مسجد نبوي کې ناست وو. او د فقراء مهاجرين حلقه جوړه وه، [۳] چې ناڅاپه رسول الله ﷺ تشريف راوړې او د فقراؤ طرف ته مخ کولو سره کينستی، زه هم خپل ځای نه لاړم، او د حضور ﷺ اتباع کې فقراؤ طرف ته نزدې رسيدو سره هغوئ طرف ته متوجه شوم (چې حضور ﷺ هغوئ ته څه فرمايي هغه ملفوظات زه هم واورم) [۴] نو حضور ﷺ وفرمايل، فقراء مهاجرينو ته هغه بشارت رسول ضروري دی، چې هغوئ خوشحاله کي، [۵] نو (هغه بشارت دادی) چې فقراء مهاجرين به په جنت کې د دولتمندو نه څلويښت کاله مخکې داخليږي، [۶] حضرت عبد الله وايي په الله قسم چې ما دا وليدل چې دی بشارت اوريدو سره د فقراء د مخ رنګ روښانه شو، [۷] بيا حضرت عبد الله وفرمايل، دې بشارت اوريدو سره او د فقراؤ د مخونو روښانه ليدو سره ځما په زړه کې دا ارزو پيدا شوه، چې کاش آرمان زه هم د دوئ په شان وی، [يعنی دې دنيا کې په ماهم فقر او افلاس خور شوی وی، او د فقراؤ دې جماعت کې شمير شوی وی، يا داچې د هغوئ نه وی، يعنی په آخرت کې دې جماعت سره پورته کيدای، او د دوئ سره ځما حشر کيدای] (دارمي)

**حل اللغات:** - ① حَلْقَةٌ: ډله، جماعت. ② أَسْفَرَتْ: زير شوی وو.

**تسهیلات:**

**قوله:** لِيُبْشِرْ فُقَرَاءُ الْمُهَاجِرِينَ بِمَا يَسُرُّ وُجُوهَهُمْ:

**د وجوه څخه په مراد کښې دوه احتمالات:** ① دَ وجوه څخه مراد ذات دې اومخ ئې ځکه ذکر کړلوچې دا په انساني اعضاؤ کښې مشرف اومعزز اندام دې چې مخ کوم طرف ته ورروان وی تول بدن هغې طرف ت ورروان وی.

---

۱) اخرجه الدارمي فی السنن رقم الحديث ۲۸۴۴

② د وجوه څخه څيله اصلي معنى مراد ده. چې مخ دې. په دې صورت کښې به معنى دا شي چه هغه به دَهغوی زړونه خوشحاله کړي او دَ دغه خوشحالئی اثربه دَهغوی په مخونو باندې ښکاره شي.

**قوله: حَتَّى تَمَنَّيْتُ أَنْ أَكُونَ مَعَهُمْ أَوْمِنْهُمْ:**

**په کلمه د ،،او،، کښې دوه احتمالات:** ① حرف "أو" تنویع دَپاره دې ② کلمه د او دَ راوی د شك ښکاره کولو دَپاره راوړلې شوې دې

یعنی حضرت عبد الله رضي الله عنه يا خو "أن أكون معهم" فرمائيلی دی يا دا چه "أن أكون منهم" یعنی زما په زړه کښې دا تمنا پیدا شوه چه افسوس زه دَ فقیرانو او دَ مهاجرینو نه یو وې

**[۵۰۵۹] دَرسول الله صلی الله علیه وسلم نصیحتونه**

۵۰۵۹-()[۲۹] ① وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: «أَمَرَنِي خَلِيلِي بِسَبْعٍ: ② أَمَرَنِي بِحُبِّ الْمَسَاكِينِ وَالدُّنُوِّ مِنْهُمْ، ③ وَأَمَرَنِي أَنْ أَنْظُرَ إِلَى مَنْ هُوَ دُونِي ④ وَلَا أَنْظُرَ إِلَى مَنْ هُوَ فَوْقِي، ⑤ وَأَمَرَنِي أَنْ أَصِلَ الرَّحِمَ وَإِنْ أَدْبَرَتْ، ⑥ وَأَمَرَنِي أَنْ لَا أَسْأَلَ أَحَدًا شَيْئًا، ⑦ وَأَمَرَنِي أَنْ أَقُولَ بِالْحَقِّ وَإِنْ كَانَ مُرًّا، ⑧ وَأَمَرَنِي أَنْ لَا أَخَافَ فِي اللَّهِ لَوْمَةَ لَائِمٍ، ⑨ وَأَمَرَنِي أَنْ أُكْثِرَ مِنْ قَوْلِ: لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللَّهِ، ⑩ فَإِنَّهُنَّ مِنْ كَنْزٍ تَحْتَ الْعَرْشِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوذر رضي الله عنه وايي، څما خليل (رسول الله صلی الله علیه وسلم) ماته د اوو خبرو حکم کړی دی، ② يو خوبې دا حکم راکی چې زه فقراء او مساکينيو سره محبت کوم، او هغوئ سره قربت ساتم ③ دویم حکم دا چې زه هغه سرې طرفته گورم چې جاه ومال او منصب کې څمانه کمتر دې ④ او هغه سرې ته نه گورم چې جاه ومال او منصب کیڅمانه بالاتر دې ⑤ دریم حکم يې دا راکی، چې زه قرابتدارو سره رشته قائم وساتم، اګر که يو قرابتدار رشته منقطع کوي، ⑥ څلورم حکم داوو، چې زه د چا نه څه شی نه غوارم ⑦ پنځم حکم يې دا راکی، چې زه په هرحالت کې حقه خبره کوم، اګر که هغه اوريدونکی ته ترخه معلومیږي، ⑧ شپږم حکم يې دا وکی، چې زه د الله د دين په حکم کې او د امر بالمعروف او نهي عن المنکر په سلسله کې د ملامت کونکي دملامتيانه ونه ويريږم، ⑨ او اووم حکم يې راته دا وکی چې زه کثرت سره د لاحول ولاقوة الا بالله ورد کوم ⑩ بیا حضور صلی الله علیه وسلم وفرمايل. نو دا اووه خبري او عادتونه دهغه خزاني نه دی، چې د عرشِ الٰهي لاندې ده، او د هغه فيوض او برکات نازليږي. (احمد)

**حل اللغات:** – ① الدُّنُوّ: قربت او نزديکت، ② دُونِي: ښکته په مرتبه کښې، ③ أَصِلَ: چه زه قائم او ساتم، ④ الرَّحِمَ: رشته داری، ⑤ مُرًّا: تريخ، ⑥ كَنْز: خزانه.

---

(۱) اخرجه احمد في المسند: ۱۵۹/۵

**تسهیلات:**

**قوله فَإِنَّهُنَّ مِنْ كَنْزٍ تَحْتَ الْعَرْشِ:**

**د انهن د ضمیر په مرجع کښې دوه اقوال:** ① د دې مرجع مذکوره اووه خبرې دی. د دې قول قائلین فرمائی چې دا اووه واړه خبرې اوعادتونه هم خزانې دی کومې چه دَ الله تعالی دَعرش دَ لاندې ده.

② ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی دَدې ضمیر مرجع صرف آخری خبره یعنی "لاحول ولا قوة إلا بالله" ګرځولې دې بیا فرمائی چې دکنز څخه د هغه کنز معنوی یوه حصه ده کوم چه دَ الله تعالی دَعرش لاندې محفوظ ساتلې شوې ده. اودا هم احتمال لری چې د دې څخه دَ جنت دَخزانوڅخه یوه خزانه مراد ده. په دې صورت کښې به دَ الله تعالی دَعرش دَ لاندې دَ کیدو مفهوم بالکل واضح وی ځکه چه عرش دَ جنت دَ پاسه دې.

**د خزانوڅخه د کیدو په اعتبار کښې درې اقوال:** ① دې الفاظوته خزانې ځکه وئیلی شوی دی چه لکه څنګه چه خزانه دَعامو خلقو دَ نظر نه پټه وی دغه شان دا الفاظ دَ خپل حقیقت، فضیلت او پاکوالی په اعتبارسره دَ خلقو دَ نظر نه پټ دی.

② دا الفاظ په دې وجه خزانې سره تعبیر کړې شوی دی چه دا دَ جنت دَ ذخیرونه یوه ذخیره ده.

③ دا الفاظ څوك وائی دَ هغه دَپاره دَډیرې اوچتې مرتبې اجر او ثواب په جنت کښې محفوظ کولې شی لکه څنګه چه خزانه محفوظ پاتې وی.

**[۵۲۶۰] دَرسول الله ﷺ خوښ څیزونه**

> ۵۲۶۰-()[۱] [۳۰] وَعَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا- قَالَتْ: [۲] «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يُعْجِبُهُ مِنَ الدُّنْيَا ثَلَاثَةٌ: [۳] الطَّعَامُ وَالنِّسَاءُ، وَالطِّيبُ، [۴] فَأَصَابَ اثْنَيْنِ وَلَمْ يُصِبْ وَاحِدًا، [۵] أَصَابَ النِّسَاءَ وَالطِّيبَ، وَلَمْ يُصِبِ الطَّعَامَ». رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** [۱] او بي بي عائشه رضی الله عنها وایي، [۲] د دنیا د څیزونو نه دري څیزونه د رسول الله ﷺ په نظر کې ډیر خوښ وو، [۳] یوخوطعام (چي د هغه په ذریعه جسم او بدن محفوظ او توانا ساتلو سره دیني خدماتو باندې قدرت او طاقت حاصل شي، دویم ښځي (چي د هغوئ په ذریعه نفس د خرابو خیالاتو نه محفوظ وساتل شي) او دریم خوشبو (چي د هغه په ذریعه دماغ ته نشاط او تقویت حاصل شي، ځکه چې د حکماء د قول مطابق د عقل وفراست مخزن دماغ دی) [۴] نو دي دریو څیزونو نه دوه څیزونه زیات حاصل شوه، لیکن

[۱] اخرجه احمد فی المسند:۶/۷۲

دریم څیز (خوراك) ورته زیات حاصل نه شو. ⑤ یعنی یوخو ښځي [ورته زیاتي حاصلي شوی په دي طور چې حضور ﷺ نه ودونه وکړل] او دویم [خارجي طور سره] خوشبو [حضور ﷺ ته ډیره حاصله شوه باوجود د دې چې د حضور ﷺ سینه مبارکه د ټولو خوشبویو نه زیاته معطره او خوشگواره وه] لیکن دریم څیز (خوراك) ورته زیات حاصل نه شو. (احمد)

**تسهیلات:**

**قوله: يُعْجِبُهُ مِنَ الدُّنْيَا ثَلَاثَةٌ:**

درې څیزونو سره د محبت وجه: دا څیزونه چونکه د آخرت په امورو کښې معاون ثابتیږی ځکه نبی علیه السلام ته دا خوښ کړی شوی وو.

د دې سره محبت کولو شوو څیزونو سره محبت چونکه دَ آخرت امور رایادوی. الله تعالی دَ حضورپاك دَ خوښو کړې شوو څیزونو نه دوه څیزونه ورکړل په هغې کښې اولنې څیز بیبیانې دی

**قوله: أَصَابَ النِّسَاءَ**

**د زنانوَ خوښولو دوه وجوهات:** ① خپلې بی بی سره محبت دَ نسل کثرت او دَ نصف ایمان سبب دې. بلکه دا چه دَ خپلې ښځې سره محبت دَ تقوٰی اصل هم دې. کوم سړې چه خپلې بی بی سره محبت نه کوی هغه بدکاره کیږی.

② بعضې شرعی مسئلې داسې وی چه په ښکاره چاته خودلو کښې حیاء محسوسیږی په دې وجه دَ خپلې بی بی په ذریعه مسئلې خودلو کښې آسانی وی.

**قوله: وَالطِّيبَ،**

**خوشبوئې سره د محبت وجه:** په خوشبوئی سره روحانی تازه والې راځی څومره چه روحانیت قوی وی هم هغه هومره اندازه باندې به خوشبوئی هم خوښه وی. هم په دې وجه دَ قرآن پاك دَ تلاوت او په نورو موقعو باندې دَ خوشبوئی دَ استعمال ډیر فضائل راغلی دی. رسول کریم ﷺ ته بیبیانې او خوشبوئی په کثرت سره ملاؤ شوی وی خو خوراك ورته په کثرت سره ملاؤ نه شو

**قوله: وَلَمْ يُصِبِ الطَّعَامَ**

**د نبی علیه السلام غریبی:** دَ حضورپاك دَ پاره به دَ خوراك ضروریات دومره کم وو چه دَ نشت برابر وو لکه څنګه چه مخکښې دا روایات تیرشوی دی چه حضورپاك مسلسل دوه ورځې دَ اوربشو روټئی په مړه خیټه نه ده خوړلې. سره دَدې چه دَ خوراك دا تنګی او کمې حضورپاك پخپله اختیار کړې وو ځکه چه حضورپاك دَ خپل ځان دَپاره دَ ژوند تنګئی او دَ فقر او غریبئی ژوند ته ترجیح ورکړې وه.

**[۵۳۶] د رسول الله ﷺ نور خوښ څیزونه**

۵۳۶-() [۳۱] ① وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " ②«حُبِّبَ إِلَيَّ الطِّيبُ وَالنِّسَاءُ، ③ وَجُعِلَتْ قُرَّةُ عَيْنِي فِي الصَّلَاةِ» ". ④ رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالنَّسَائِيُّ. وَزَادَ ابْنُ الْجَوْزِيِّ بَعْدَ قَوْلِهِ (حُبِّبَ إِلَيَّ): "مِنَ الدُّنْيَا".

**ترجمه:** ① او حضرت انس رضي الله عنه وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② ماته خوشبوا و ښځې خوښ کړل شويدي ③ اوزما قلبي سکون او نشاط په مونځ کې ايخودل شوی دی ④ (احمد، ونسائي) او ابن جوزي رحمه الله دي ارشاد کې، حُبِّبَ إِلَيَّ نه پس مِنَ الدُّنْيَا الفاظ هم زيات نقل کړيدي.

**تسهيلات:**

**قوله وَجُعِلَتْ قُرَّةُ عَيْنِي فِي الصَّلَاةِ:**

**دقرة لغوی تحقيق:**

**د قرة په ماده اشتقاق کښې دوه احتمالات اودهر يو معنی:**

① "قرة" دَ قُرَّة نه مشتق دې دَ دې معنی هم دَ هغه يخوالی او خوند دې چه دَ يو ډير خوښ او دَ محبوب څيز په ليدو او دَ مشاهدې په خوند سره سترګو ته حاصليږی. هم دغه شان خوند په مانځه کښې حاصليږی.

② "قرة" دخوقرّ نه مشتق دې دکوم معنی چه قرار او ثبات ده. چونکه سترګو ته چه کله دمحبوب ديدار نصيب کيږی نو په هغې سره نظر ته قرار حاصليږی او دغه سترګې بيا بل چا ته دَ کتو رواداري نه وی بلکه زړه او دماغو ته په هغې سره راحت حاصليږی او دَ نه کتلو په وجه نظر پريشان او زړه بې آرام وی. لهذا دغه قرار او سکون رسول الله ﷺ "قرة عينی" سره ذکر کړو

**د نبی عليه السلام د سترګو يخوالي په مانځه کښې:** يعنی زما دَ زړه سکون او تازه والې په مونځ کښې کيخودلې شوې دې. دَ دې مطلب دادې چه ماته کوم ذوق، خوند، استغراق او حضور او سرور په مونځ کښې حاصليږی هغه په بل هيڅ يو وخت او په بل يو عبادت کښې هم نه حاصليږی

**اشکال:** که چرې دَ روايت دواړه الفاظ دې سره شامل شی نو سوال راځی چه په مانځه باندې دَ دنياوی څيز اطلاق څنګه کيدې شی ځکه چه مونځ خودَ دنياوی امورو څخه نه دې؟

**داشکال جواب:** دَدنيا نه مراد دَ حضورپاك دَدې عالم حيات دې يعنی لکه چه حضورپاك

[1]) اخرجه النسائي في السنن كتاب عشرة النساء/باب حب النساء (رقم-۳۹۳۹)واحمد في المسند:۱۲۸/۳

داسي لو فرمائيل چه په دې عالم كښې درې څيزونه زما خوښ دي په كوم كښې چه دوه څيزونه خو طبعي او دنياوي امورو سره تعلق لري يعني خوشبوئي او ښځې او دَ دريم څيز تعلق ديني امورو سره دې دَ صلوة نه مراد اكثر محدثينو هم مونځ اخستې دې ليكن بعضې حضراتو په حضورپاك باندې درود وئيلو باندې محمول كړې دی

**[۵۳۳] د ځان آسانی څخه د پرهيز كولو تاكيد**

۵۳۳-(¹)[۳۲] [۱] وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-[۲] «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-لَمَّا بَعَثَ بِهِ إِلَى الْيَمَنِ،[۳] قَالَ: "إِيَّاكَ وَالتَّنَعُّمَ؛[۴] فَإِنَّ عِبَادَ اللَّهِ لَيْسُوا بِالْمُتَنَعِّمِينَ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** [۱] او د حضرت معاذ بن جبل ﷺ روايت دی [۲] چې كله هغه لره رسول الله ﷺ د يمن قاضي جوړ كی (وي ليږي) [۳] نو د انصيحت يي ورته وفرمايه چې خپل ځان د راحت طلبي اوآرايش نه ساته [۴] ځكه چې د الله پاك خاص بندگان د ارام او د آسائش ژوند نه تيروي

**حل اللغات:** - ① إِيَّاكَ: ځان بچ ساته، ② التَّنَعُّمَ: عيش او راحت، آرائش.

**تسهيلات:**

**قوله إِيَّاكَ وَالتَّنَعُّمَ:**

**دتنعم تعريف:** "تنعم" وئيلی شی دَنفس دَ خواهشاتو په پوره كولو كښې دَزيات نه زيات اهتمام او انصرام كول، ډير زيات دنياوي خوندونو اونعمتونو په مينځ كښې اوسيدل او دَ خوراك څښاك او طبيعت او دَ نفس دَ مرغوباتو حريص كيدل دی

**دنياوي خواهشات پوره كولو او مؤمن:** حاصل دا چه راحت طلب كول او ځان آسانئی څيزونو كښې پريوتل اودَ عيش اوعشرت ژوندون اختيارول، دا دكافر، فاجر، غافل، نادان او جاهلو خلقو خاصه ده. دَ الله تعالى دَ بنديگانودَ دنياوي خبرو نه څه كار دې لكه چه دَ الله تعالى فرمان دې ﴿ذَرْهُمْ يَأْكُلُوا وَيَتَمَتَّعُوا وَيُلْهِهِمُ الْأَمَلُ فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ﴾ يعنی ته دا كافران دَ دوی په حال باندې پريږده چه دووی ښه خوراكونه اوكړی او ښه آرام اوكړی او خيالی منصوبې دوی لره په غفلت كښې واچوی دوی ته به ډير زر حقيقت معلوم شی

**[۵۳۴] د رزق د كموالی فضيلت**

۵۳۴-(²)[۳۳] [۱] وَعَنْ عَلِيٍّ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[۲] «مَنْ رَضِيَ مِنَ اللَّهِ بِالْيَسِيرِ مِنَ الرِّزْقِ[۳] رَضِيَ اللَّهُ مِنْهُ بِالْقَلِيلِ مِنَ الْعَمَلِ» ".

¹) اخرجه احمد فی السند:۲٤۳/۵
²) اخرجه البيهقی فی شعب الايمان رقم الحديث ٤۵۸۵

**ترجمه:** ١ او حضرت علي کرم الله وجهه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ کوم سړی چې لږ رزق باندې د الله نه راضي کېږي، (يعني د خپل معاشي ضروریاتو قلیل مقدار باندې قناعت کوي ٣ نو الله ﷻ هغه نه (طاعات او عبادات) لږ عمل باندې راضي کېږي

**حل اللغات:** - ① الْيَسِيرِ: لږ، معمولی، ② الْقَلِيلِ: لږ، کم.

**تسهيلات:**

دَ حديث مطلب دادې چه که چرې ته معمولی رزق حاصل کړې او شکرېږې ادا کړی نو الله پاك به ستا دَ معمولی اعمالو ډير قدراو کړی.

**[٥٣٣] دَ فقر او فاقې د خلقو نه د پټ ساتلو فضيلت**

٥٣٣ -() [٣٣] ١ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ٢ «مَنْ جَاعَ أَوِ احْتَاجَ، فَكَتَمَهُ النَّاسَ ٣ كَانَ حَقًّا عَلَى اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ أَنْ يَرْزُقَهُ رِزْقَ سَنَةٍ مِنْ حَلَالٍ». ٤ رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي (شُعَبِ الْإِيمَانِ).

**ترجمه:** ١ او حضرت ابن عباس ؓ وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ کوم سړی چې اوږی وي، يا د څه شي محتاج وي او خپله لوږه او محتاجي خلقو نه پټه کړي (يعني د طعام طلب کې چاته دانه وايي، چې زه اوږی يم او نه غوښتو د پاره چاته خپل احتياج او ضرورت بيان کړي) ٣ نو د الله ﷻ دايقيني وعده ده چې هغه سړي ته حلاله طريقه باندې د يو کال رزق رسوي، ٤ دا دواړه روايتونه بيهقي ؒ په شعب الايمان کې نقل کړی دی

**حل اللغات:** - ① جَاعَ: اوږې وی، ② احْتَاجَ: محتاج وی.

**تسهيلات:**

**قوله: مَنْ جَاعَ أَوِ احْتَاجَ فَكَتَمَهُ النَّاسَ:**

**دخلقو څخه دخپلې محتاجی پټولو فضیلت:** په حديث کښې دَ اولږې نه مراد هغه اولږه ده کومه چه برداشت کول ممکن وی اودَ خلقو نه دَ دغه اولږې پټول جائز وی څکه چه کومه اولږه ناقابل برداشت حد ته اورسيږی اودَهغې دَ وجې نه دَ هلاکت خطره وی نو داسې اولګه پټول جائز نه دی په دې وجه علماء کرام فرمائی چه کوم کس ته مرګ دَدې وجې نه راغلو چه هغه دَ اولږې ذکر هم چاته اونه کړو او نه ئې دَ چا نه څه څيز اوغوښتلو او نه ئې چرته څه داسې څيز اوخوړلو په کوم سره چه هغه ځان بچ کيدې شو چونکه په داسې اولږه هغه ته مرګ راغلو نو په دې وجه به هغه ګناهګار وی.

[١]) اخرجه البيهقی فی شعب الايمان رقم الحديث ١٠٠٥٤

## [۵۲٦۵] الله تعالی غریب بال بچ دار سره مینه کوي

۵۲٦۵-()[۳۵] ۱ وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "۲ «إِنَّ اللهَ يُحِبُّ عَبْدَهُ الْمُؤْمِنَ الْفَقِيرَ ۳ الْمُتَعَفِّفَ أَبَا الْعِيَالِ» ". (رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ).

**ترجمه:** ۱ او حضرت عمران بن حصین رضی الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل. ۲ الله تعالی هغه مسلمان محبوب لري، ۳ چې مفلس ځان ساتونکي او عیالدار وي (ابن ماجه).

**حل اللغات:** - ۱ اَلْمُتَعَفِّفَ: ځان ساتونکي (دسوال نه). ۲ أَبَا الْعِيَالِ: عیالدار. اهل وعیال والا

**تسهیلات:**

**قوله: اَلْمُؤْمِنَ الْفَقِيرَ الْمُتَعَفِّفَ:**

**څداره غریب سره د الله تعالی محبت:** کوم سړي دَ غربت او اولږې دَ وجې نه صبر کوي اودَ حرام او ناجائز څیزونو نه ځان ساتی اودَ خلقو مخکښې دَ لاس خورولو نه هم پرهیز کوی نوهغه کامل مسلمان دې. په دې وجه الله تعالی هغه لره محبوب جوړوی ځکه چه دَ کثرت عیال نه پس دَ پاکدامنئی، دَ صبر اوشکر ژوند دَ الله تعالی دَ محبوب جوړیدو سبب دې

## [۵۲٦٦] دَ مشتبهاتو څخه د عمر فاروق رضی الله عنه ځان ساتل

۵۲٦٦-()[۳٦] ۱ وَعَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: اسْتَسْقَى يَوْمًا عُمَرُ، ۲ فَجِيءَ بِمَاءٍ قَدْ شِيبَ بِعَسَلٍ، ۳ فَقَالَ: إِنَّهُ لَطَيِّبٌ، ۴ أَسْمَعُ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ نَعَى عَلَى قَوْمٍ شَهَوَاتِهِمْ فَقَالَ: ۵ ﴿أَذْهَبْتُمْ طَيِّبَاتِكُمْ فِي حَيَاتِكُمُ الدُّنْيَا وَاسْتَمْتَعْتُمْ بِهَا﴾ [الأحقاف: ۲۰] ۶ فَأَخَافُ أَنْ تَكُونَ حَسَنَاتُنَا عُجِّلَتْ لَنَا، فَلَمْ يَشْرَبْهُ. رَوَاهُ رَزِينٌ.

**ترجمه:** ۱ حضرت زید بن اسلم رحمه الله (تابعي) فرمایي چې یوه ورځ امیر المؤمنین حضرت عمر رضی الله عنه د څکلو د پاره اوبه وغوښتلي ۲ نو د هغه په خدمت کې چې کومې اوبه مخکې شوی په هغه کې شهد ګډ شوی وو، ۳ حضرت عمر رضي الله عنه ته چې دا معلومات وشو چې په دې کې شهد ملاو شوی دی نو وي فرمایل یقیناً چې دا اوبه پاکې، مزیداري او حلالي دي الیکن زه دا نه څکم ۴ ځکه چې ماد الله باره کې قرآن کریم نه اوریدلي دي او پوهیږم چې هغه یوقوم د نفس د خواهشاتو په وجه باندې مجرم ګرځولی دی. او د تنبیه په طور باندې یې وفرمایل ۵ چې تاسو د دنیا په دې ژوند کې خپل خوندونه او نعمتونه حاصل کړه او د دې نه موپوره پوره فائده واخسته اوس په آخرت کې ستاسو د پاره څه پاتې شوی دی، ۶ لهذا زه ویریږم چې چیرته زمونږ نیکي هم داسې نه وي چې د

۱) اخرجه ابن ماجه فی السنن كتاب الزهد/باب فضل الفقراء (رقم-۴۱۲۱)
۲) رواه رزين

هغه بدله د دنیاوي نعمتونو په صورت کې زر مونږ ته په دنیا کې ملاوشي او بیا په آخرت کې محروم والي سره مخامخ شو، دي وجه نه حضرت عمر رضی الله عنه په عسلو (شهد) کې هغه ملاو شوی اوبه ونه څکلي. (رزين)

**حل اللغات:** - ① اسْتَسْقَى: اوبه اوغوښتلې، ② شِيبَ: ګډ شوی وو، ③ طَيِّبٌ: پاکې، ④ نَعَى. خیرې کول ⑤ عُجِّلَتْ: جلتی اوکړې شی، زر شی

**تسهيلات:**

**قوله: فَجِيءَ بِمَاءٍ قَدْ شِيبَ بِعَسَلٍ فَقَالَ: إِنَّهُ لَطَيِّبٌ:**

**دعمر رضی الله عنه د دنیاوی نعمتونو د استعمال نه ویریدل:** دَحضرت عمر رضی الله عنه دَ وینا مطلب دادې چه شاتو سره ملاؤ شوي اوبه دادَ دنیا دَ نعمتونو نه یو نعمت دې چه دَنفس هم ډیر زیات خوښ دې. که چرې دام اوڅکلو نو دَ ډیر لوئی نعمت نه به فائده اوچته کړم. په دې صورت کښې زه ویریږم چه داخو ماته چرته زما دَ اعمالو اجر هم په دنیا کښې نه ملاویږی لکه چه کافرانو ته دَهغوی دَ نیکو اعمالو اجر هم په دنیا کښې ورکولې شی او په آخرت کښې به هغوی ته هیڅ نه نصیب کیږی. دا دَحضرت عمر رضی الله عنه کمال تقوی ده ګنی دَدې په څکلو کښې هیڅ کراهت نشته دې.

**[٥٢٦٧] دَ اسلام په شروع کښې دَ صحابه کرامو د فقر حالت**

٥٢٦٧-()[٣٧] [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا-قَالَ: [۲] مَا شَبِعْنَا مِنْ تَمْرٍ حَتَّى فَتَحْنَا خَيْبَرَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عمر رضی الله عنهما فرمايي [۲] چې مونږ صحابه کرامو رضی الله عنهم د حضور صلی الله علیه وسلم سره د فقر او غربيي د وجي يوځاى په ډك نس (خيټه) خرماوي نه دي خوړلي تردي پورې چې مونږ خيبر فتح کړ (چيرته چې خرماوې ډيرې کېږي بيا مونږ ته په ډك نس کې خرماوې راکول شي. (بخاري)

[1]) اخرجه البخاري في كتاب المغازي/باب غزوة خيبر (رقم-٤٢٤٣)

# [۲] بَابُ الْأَمَلِ وَالْحِرْصِ

## دَ آرزو او د حرص بیان

**خلاصة الباب:**

**فيه ستة عشر حديثاً مشتملة على أربع مسائل:**

① شناعة طول الأمل : ۱، ۲، ۳، ۱۰، ۱۱، ۱۴۔

② شناعة حرص الدنيا : ۳۔ ۶۔

③ ما يتعلق بطول العمر: ۵، ۱۲، ۱۳۔

④ الأمر بترك الأمل والحرص وفضيلته: ۷، ۸، ۹، ۱۵، ۱۶۔

**قوله**: الأمل:

**داَمل تعریف**: اوږده اوږده امیدونه تړل اوډ اوږدو آرزوګانو قطارونه لګول اودَهغې دَپاره منصوبه سازی کولونوم امل دې.

**قوله**: الحرص:

**دحرص تعریف**: دَ اوږدو ارادو پوره کول اودَهغې لالچ ته حرص وائی.

**دحرص دوه قسمونه:**

① **دنیکی حرص**: په نیکوکنبې حرص کول او دَخو ارادو خو اهش کول مذموم نه دی دَ الله تعالى ارشاد دې ﴿إِن تَحْرِصْ عَلَىٰ هُدَاهُمْ، حَرِيصٌ عَلَيْكُم بِالْمُؤْمِنِينَ رَءُوفٌ رَّحِيمٌ﴾ [سورت نحل: ۳۷. توبه: ۱۲۸]

② **دخواهشاتو حرص**: مکرنفسانی خواهشات پوره کول، دَ دنیا په هرځیزکنبې ډیروالی حرص کول. دَ جائز حدودو نه تیریدوسره مقاصد په ناجائز طریقې حاصلول. دا حرص اولالچ مذموم او خراب ځیز دې

**[۵۲۶۸] دَانسان دَآرزواو نَعفه دَمرګ مثال**

۵۲۶۸-(١)[١] ① عَنْ عَبْدِ اللَّهِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: ② «خَطَّ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - خَطًّا مُرَبَّعًا، ③ وَخَطَّ خَطًّا فِي الْوَسَطِ خَارِجًا مِنْهُ، ④ وَخَطَّ خُطُطًا صِغَارًا إِلَى هَذَا الَّذِي فِي الْوَسَطِ ⑤ مِنْ جَانِبِهِ الَّذِي فِي الْوَسَطِ، ⑥ فَقَالَ: "هَذَا الْإِنْسَانُ، وَهَذَا أَجَلُهُ مُحِيطٌ بِهِ، ⑦ وَهَذَا الَّذِي هُوَ خَارِجٌ أَمَلُهُ، ⑧ وَهَذِهِ الْخُطُوطُ الصِّغَارُ الْأَعْرَاضُ، ⑨ فَإِنْ أَخْطَأَهُ هَذَا نَهَشَهُ هَذَا، ⑩ وَإِنْ أَخْطَأَهُ هَذَا نَهَشَهُ هَذَا» ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

---

[١]) اخرجه البخارى فى كتاب الرقاق/باب فى الأمل وطوله (رقم-٦٤١٧) والترمذى فى كتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-٢٤٥٤) وابن ماجه فى كتاب الزهد/باب الأمل والأجل (رقم-٤٢٣١) واحمد فى المسند: ٣٨٥/١

**ترجمه:** [۱] حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه وایي، [۲] یوه ورځ رسول الله ﷺ زمونږ پوه کولو د پاره څلور کرښي اوخکلو سره یو مربع شکل جوړ کړي [۳] بیا د هغه مربع په منځ کې یوه بله کرښه واوخکله چې مربع نه وتلي وه [۴] د دې نه پس حضور ﷺ وړې وړې څو کرښي په منځ طرف کې اوخکلي [۵] د هغه درمیاني کرښي هغه حصي طرف ته چې د مربع کرښو په منځ کې وې [۶] اوبیا یي وفرمایل [په دي نقشه په ښه شان پوهه شئ] درمیاني کرښي داحصه چې د مربع کرښو په منځ کې ده ګویا انسان دی او داخط چې د هغه څلورم طرف نه مربع جوړ شوی دی د هغه انسان مرګ دی [یعنی د مربع څلور کرښي ګویا د هغه د مرګ وخت او د هغه د عمر آخري حد دی، چې د څلورو طرفونه یي هغه راګیر کړی دی]، [۷] او د درمیاني کرښي دا حصه چې مربع نه وتلي ده، د انسان هغه ارزو او خواهش دی [چې د هغه باره کې هغه داخیال لري چې زه به د مرګ نه مخکې داحاصل کړم. حالانکي هغه یوبې بنیاده خیال کې مبتلا دی ځکه چې د هغه د ارزوګانو خواهشاتو سلسله اوږده وي چې د هغه نه د هغه زړه او دماغ هیڅ کله خالي کېږي نه حال دا چې د هغه مرګ د هغه د ارزوګانو د تکمیل نه زیات نزدې دی] [۸] او د درمیانه کرښي دننه حصه باندې چې دا وړې وړې کرښي دي هغه عوارض [یعنی آفات او حادثات لکه لوږه. تنده افلاس او بیماري وغیره دي چې په انسان باندې هروقت مسلط وي، که هغه عوارض خپل کار کوي نو هغه هلاك شي] [۹] او که هغه انسان د یوي حادثي عارضي نه وساتل شي نو دویمه حادثه او عارضه یي راګیر کړي، [۱۰] او که دهغه حادثي او عارضي نه وساتل شي، نو بیا دریمه حملهورباندې کوي [غرض دا چې متعدد حوادثات او عارضات ده ته په تاك کې وي چې یوه په بلي پسي کېږي، تردي چې مرګ راتلو سره د هغه کار تول کړي] (بخاری)

**حل اللغات:** - ① خَطَّ: خط او کرښه ئې راښکله، ② مُرَبَّعًا: څلور ګوټه، ③ مُحِيطٌ: احاطه کونکې. راګیرونکې، ④ أَمَلٌ: امید، ⑤ الْأَعْرَاضُ: آفات او حادثات وغیره، ⑥ نَهَشَهُ: په غاښونو سره پرې کول او تك ورکولو ته نهس وائی، دلته ترې حمله کول مراد دی

**تسهیلات:**

**قوله: خَطَّ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- خَطًّا مُرَبَّعًا:**

**د انسانی ژوندد مشکلاتو نقشه:** دَ انسان او دَ هغه دَمرګ اودَ هغه دَ خواهشاتو نقشه پخپله حضورپاك هم په خپل لاس مبارك سره په خاورو باندې جوړه کړه او انسان ئې ښه پوهه کړو. شارحین دَ حدیث دَدې حدیث مطابق دغه نقشه داسې جوړه کړې ده ملاعلی قاری رحمه الله دَدننه وړې کرښې اوه اوه جوړې کړی دی او فرمائیلې ئې دی چه دَ انسان غټ اوه اعضاء یعنی اندامونه دی لهذا دا نقشه راجح ده. هغه نقشه داده:




**دانسان امیدونه:** دَدې حدیث حاصل اومطلب دا دې چه انسان په قسم قسم آرزوګانو کښې اخته وی او هروخت په دې فکرکښې راګیر وی چه فلانکې تمنا پوره شی. فلانکې تمنا پوره شی مګر پخپله دا انسان دَ مرګ په مربع خط کښې راګیر پروت دې دَ څلورو وارو طرفونه دا بې چاره دَمرګ په ګیره کښې دې.ددې باوجود دَ حیرانتیاخبره ده چه دَ ده بعضې امیدونه او آرزوګانې داسې دی چه دَ مرګ دَ مربع خط نه بهر دی اوس که د انسان خپلې آرزوګانې پوره کول غواړی نوسره دَ ده دَ بدن اول خو ډیرزیات حادثات او عوارضات لګیدلی دی چنانچه دا انسان دَ اولګې، غربت، آفاتو اوبلیاتو په موجونوکښې دننه غوپې وهی هره حادثه داسې ده چه دَ مرګ نه کمه نه ده اوهغه یو شان په ده باندې حملې کوی که چرې دا انسان دَ دغه عوارضاتونه بچ وتلوکښې کامیاب هم شی اود خپلې آرزو طرف ته په ورتوپ کولو سره څی هم نوبیاهم دې خپله آرزو نه شی حاصلولې ځکه چه د آرزو او دَ ده دَ مرګ په مینځ کښې یوداسې دیوال ولاړ دې چه دې وراندې کیدو ته نه پریږدی اومرګ دَنیزدې نه راشی او دې راقابو کړی

**[۵۲۳۹] انسان ته مرګ لزدې وی او امیدونه ئې اوږده وی**

۵۲۳۹-(¹)[۲] ① وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: «خَطَّ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- خُطُوطًا فَقَالَ: ② "هَذَا الْأَمَلُ، وَهَذَا أَجَلُهُ، ③ فَبَيْنَمَا هُوَ كَذَلِكَ إِذْ جَاءَهُ الْخَطُّ الْأَقْرَبُ» ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

[1]) اخرجه البخاری فی کتاب الرقاق/باب فی الأمل وطوله (رقم-۶۴۱۸) وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب الأمل والأجل (رقم-۴۲۳۱)

**توجمه:** [۱] او حضرت انس رضي الله عنه وايي يوه ورځ رسول الله ﷺ څو کرښي واوخکلي [حرکه چې په مخکې حديث کې تير شو چې حضور ﷺ څلور کرښي اوخکلو سره يو مربع شکل جوړکړي او د هغه مربع په منځ کې يوه بله کرښه واوخکل، چې د مربع نه وتلي وه]. بيايي وفرمايل، [۲] چې د درميانه کرښي داحصه چې مربع نه بهر وتلي ده د انسان ارزو ده او داکرښه چې څلورو طرف نه يي يوه مربع جوړه کړي وه، د انسان مرګ دی. [۳] نو انسان په دي حالت کې يعنی داميدونو او ارزوګانو پوره کولو په فکر کې وي، چې ناڅاپه د مرګ کرښه هغه راګير کړي چې هغه ته زياته نزدې ده. (بخاري)

**حل اللغات:** - ① الْأَمَلُ: اميدونه، ② أَجَلُ: نيته، مرګ.

**[۵۰۷۰] انسان بوډا کيږي خو د مال او عمر حرص لې زياتيږي**

| ۵۰۷۰ - ( )[۳] [۱] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[۲] «يَهْرَمُ ابْنُ آدَمَ وَيَشِبُّ مِنْهُ اثْنَانِ: [۳] الْحِرْصُ عَلَى الْمَالِ، [۴] وَالْحِرْصُ عَلَى الْعُمُرِ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
| --- |

**توجمه:** [۱] او حضرت انس رضي الله عنه وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] انسان په خپله خو بوډا کيږي خو په هغه کې دوڅيزونه ځوان اوقوي کيږي، [۳] يو د مال د جمع کولو حرص [او د هغه د نه خرچ کولو عادت]، [۴] او دويم د عمر د اوږدوالی ارزو. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** - ① يَهْرَمُ: بوډا کيږي، ② يَشِبُّ: ځوانيږي.

**تسهيلات:**

**قوله: يَهْرَمُ ابْنُ آدَمَ وَيَشِبُّ مِنْهُ اثْنَانِ:**

**په انسان کښې دوو څيزونو حرص نه کميدل:** دَحديث مطلب دادې چه انسان څومره بوډا کيږي هم دومره په هغه کښې دوه څيزونه ځوانيږي. اول دَ مال حرص او دويم دَ اوږد عمر حرص يعني دَ عقل تقاضا خودا وه چه دَ بوډاوالی دَ وجې نه دَ دنيا په څيزونو دَ انسان ګرفت مستيږي مګر کيږي داسې چه بدني ټول قوتونه کمزوريدو باوجود په انساني طبيعت کښې دوه څيزونه ځوانيږي. يو مالي حرص دويم دَ عمر حرص، په دې کښې دَ بوډا انسان ګرفت دَ سستيدو په ځائې نور مضبوطيږي لکه چه سرې بوډا او حرص ئې ځوان.

[۱]) اخرجه البخاري في كتاب الرقاق/باب من بلغ ستين سنةً، فقد أعذر الله إليه في العمر (رقم-۶۴۲۱) ومسلم في كتاب الزكاة/باب كراهة الحرص على الدنيا(رقم-۱۱۴ - (۱۰۴۷) والترمذي في كتاب الزهد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في قلب الشيخ شاب على حب اثنتين (رقم-۲۳۳۹) وابن ماجه في كتاب الزهد/باب الأمل والأجل (رقم-۴۲۳۴).

**[۵۲۷۰] بوډا په زړه کې د دوه څيزونو محبت ساتي**

۵۲۷۰-(۱)[۳] ۱ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ۲ "«لَا يَزَالُ قَلْبُ الْكَبِيرِ شَابًّا فِي اثْنَيْنِ: ۳ فِي حُبِّ الدُّنْيَا وَطُولِ الْأَمَلِ». (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابوهريره ﷺ د رسول الله ﷺ نه روايت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل، ۲ د بوډا زړه هميشه دوو خبرو کې ځوان قوي وي ۳ يو خو د دنيا محبت کې او دويم د عمر د اوږدوالي په ارزو کې [او دا دواړي خبري مضري دي ځکه چې د دنيا محبت مرګ نه خوښوي او د عمر د اوږدوالي ارزو د تاخير عمل او کوتاهي عمل مقتضي وي]. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** - ① الْكَبِيرِ: بوډا، ② شَابًّا: ځوان، ③ الْأَمَلِ: اميدونه.

**تسهيلات:**

**قوله: فِي حُبِّ الدُّنْيَا وَطُولِ الْأَمَلِ:**

**په انساني زړه کښې د دنيا د محبت او اوږده اميدونو ځوانيدل:** دَ حديث الباب حاصل دادې چه "حب دنيا" دَ مرګ نه دَ نه ويريدو ذريعه ده او "طول امل" په أعمال صالحه کښې دَ سستى او دَ بنديز ذريعه ده. "امل" دَ دنيا اميد او "رجاء" دَ آخرت اميد ته وائى په الله تعالى باندې اميد دَ کمالِ ايمان علامت دې.

**[۵۲۷۱] د شپيتو کالو بوډا معذوره نه دې**

۵۲۷۱-(۲)[۵] ۱ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ۲ "«أَعْذَرَ اللَّهُ إِلَى امْرِءٍ أَخَّرَ أَجَلَهُ ۳ حَتَّى بَلَّغَهُ سِتِّينَ سَنَةً»". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابوهريره ﷺ وايي: چې رسول الله ﷺ وفرمايل، ۲ الله ﷻ د هغه سړي د پاره د عذر هيڅ موقع نه ده پريښي (يعني د هغه عذر يې لري کی) ۳ چې د هغه عمر يې دومره مؤخر کی چې هغه يې د شپيتو کالو عمر ته ورسوی (بخاري)

**حل اللغات:** - ① أَعْذَرَ: په دې کښې همزه د سلب ماخذ دَ پاره ده يعنى الله تعالى دَ هغه ټول عذرونه او بهانې ختمې کړې.

---

[1]) اخرجه البخاري فى كتاب الرقاق/باب من بلغ ستين سنةً. فقد أعذر الله إليه فى العمر (رقم-٦٤٢٠) ومسلم فى كتاب الزكاة/باب كراهة الحرص على الدنيا(رقم-١١٤ - (١٠٤٦) والترمذى فى كتاب الزهد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى قلب الشيخ شاب على حب اثنتين (رقم-٢٣٣٨) وابن ماجه فى كتاب الزهد/باب الأمل والأجل (رقم-٤٢٣٣)

[2]) اخرجه البخاري في كتاب الرقاق/باب من بلغ ستين سنةً. فقد أعذر الله إليه فى العمر (رقم-٦٤١٩)

**تسهيلات:**

**قوله: أَعْذَرَ اللَّهُ إِلَى امْرِءٍ أَخَّرَ أَجَلَهُ حَتَّى بَلَّغَهُ سِتِّينَ سَنَةً:**

**په شپيته كاله دحجت اتمام:** يعني الله تعالى چه يو سړى له شپيته كاله عمر وركړو اودغه سړى په دې دومره اوږد عمر كښې هم توبه اونه كړه نو اوس دَ الله تعالى په نيز ددې سړى هيڅ څه عذر باقى پاتې نه شو.دَ ده ټول عذر معذرت او بهانې ختمې شوې اوس دَ سزا نه علاوه ده ته څه ملاويدې شى؟ ځكه چه دومره اوږده موده ملاويدو او اوږد عمر تيريدونه پس هم هغه دګناهونونه منع نه شو.دَ سر او ږيرې سپينو ويښتو دَخطرې ټنګونه كړى دى مګر هغه په هوش كښې رانغلو.نو اوس دَ الله تعالى په نيز دَ ده هيڅ عذر باقى پاتې نه شو ځكه چه ځوان خو دَ ښه جوړيدودپاره دَ بوډا والى انتظاركولې شى مګر يوبوډا چه دَ هغه په سر باندې مرګ چكرې وهى هغه آخر دَ كوم څيز انتظاركوى.

**[٥٠٤٣] دَانسان خيټه صرف په خاورو ډكيدې شى**

٥٠٤٣-()[٢] [١] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [٢] "«لَوْ كَانَ لِابْنِ آدَمَ وَادِيَانِ مِنْ مَالٍ لَابْتَغَى ثَالِثًا، [٣] وَلَا يَمْلَأُ جَوْفَ ابْنِ آدَمَ إِلَّا التُّرَابُ، [٤] وَيَتُوبُ اللَّهُ عَلَى مَنْ تَابَ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابن عباس ﷺ د رسول الله ﷺ نه روايت كوي، چې حضور ﷺ وفرمايل [٢] كه بالفرض والتقدير سړي سره د مال ودولت نه ډك دوه كندي هم وي بيا به هم هغه د دريمي كندي تلاش كوي [يعنى د هغه د حرص او طمع د اوږدوالى دا عالم وي د هغه حد رسيدو سره هغه ته شيري يعنى موړوالى نه حاصليږي] [٣] او د سړي نس (خيټه) د خاورو نه علاوه بل شى نشي مړولى [يعنى ترڅوپوري چې هغه قبر ته نه وي رسيدلى هغه پورې د هغه د حرص او طمع خاتمه نه كيږي، بيا هم داخبره د اكثرو خلقو د اعتبار نه فرمايل شوي وه ګينې داسې دالله بندګان هم شته چې هغوئ كې د حرص او طمع پيداكيدو خوڅه سوال نه پيداكيږي بلكه د خپل ضرورت بقدر د مال او اسباب هم هغوئ ته پروانه وي] [٤] او الله ﷻ د خراب حرص نه د كوم بنده توبه چې غواړي قبلوي يې.(بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① وَادِيَانِ: دوه كندې، ② جَوْفَ: خيټه، نس

(١) اخرجه البخاري في كتاب الرقاق/باب ما يتقى من فتنة المال (رقم-٦٤٣٦) ومسلم في كتاب الزكاة/باب لو أن لابن آدم واديين لابتغى ثالثًا (رقم-١١٨ - (١٠٤٩))والترمذي في كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب فضل ابي بن كعب رضي الله عنه (رقم-٣٨٩٨) وابن ماجه في كتاب الزهد/باب الأمل والأجل (رقم-٤٢٣٤)

**تسهیلات:**

**قوله: وَلَا يَمْلَأُ جَوْفَ ابْنِ آدَمَ إِلَّا التُّرَابُ:**

**په دنیا مړیدل نشته:** یعنی دَ انسان په جبلت او دَ ده په ضمیرکښې دَ دنیا حرص اولالچ داسې پیوست دې که چرې ده ته دَ دوو غرونو په مینځ کښې دوه وادئی ډکې دَمال ورکړې شی نودا انسان به دَ دریمې وادئی په لټون کښې سرګردان ګرځی.په دنیاکښې دَ ده دَ مړیدو هیڅ صورت نشته دې نه ترننه پورې یو مالدارځه حد متعین کړې دې چه دې حد ته په رسیدوسره سړی ته کفایت او قناعت حاصلیدې شی.لهذا دَ انبیاء کرامو علیهم السلام دَتعلیماتو په رڼاکښې دا خبره سل فیصد صحیح ده چه دَ انسان خیټه صرف هم دَ قبر خاورې ډکولې شی.په دې حدیث کښې زیات مالونه دَ آسوده ژوند سبب نه دې خودلې شوې بلکه کمه دنیا اوقناعت دَ آسوده ژوندون سبب خودلې شوې دې.لهذا دَ قناعت په توره سره اودَ سخاوت په تیره څوکه سره دَ بخل دیوال راغورزول پکاردی

**[۵۷۴] په دنیا کښې لکه دروان مسافر په شان اوسیږه**

۵۷۴-()[۷] ①وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا-قَالَ: ②«أَخَذَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-بِبَعْضِ جَسَدِي فَقَالَ: ③"كُنْ فِي الدُّنْيَا كَأَنَّكَ غَرِيبٌ أَوْعَابِرُ سَبِيلٍ، ④وَعُدَّ نَفْسَكَ مِنْ أَهْلِ الْقُبُورِ» ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ①او حضرت ابن عمر ﷠ وایي ②یوه ورځ رسول الله ﷺ څما د جسم یوه حصه یعنی دواړي اوږي نیولو سره وفرمایل ③ته په دنیا کې داسې اوسیږه لکه چې یو مسافر یې یا په لار تلونکي یې، ④او ته خپل شمیر هغه خلقو کې کوه چې دنیا نه تیر شوي وي یا خپلو قبرونو کې په خوب اوده وي [یعني د مړو مشابهت اختیار کړه چې څرنګه هغوئ د دنیا د ټول څیزونو نه منع کیدولو سره یو کونج کې پراته دي، دغه شان ته هم د دنیا د علائقو نه خپله لمن بچ کولو سره ډیري سادګي او یکسوئي سره ژوند تیروه] (بخاري)

**حل اللغات:** - ①غَرِيبٌ:نا آشنا. مسافر ②عَابِرُ: تیریدونکې، ③عُدَّ: شمیره،

**تسهیلات:**

**قوله: كُنْ فِي الدُّنْيَا كَأَنَّكَ غَرِيبٌ أَوْعَابِرُ سَبِيلٍ:**

**دمسافر دوه قسمونه:** : دَاو لفظ دَ بل په معنی کښې دې کوم چه دَ ترقئی دَپاره دې.

① هغه مسافر دې چه یوځائی ته راتلوسره دَ سفرژوند تیره وی او په هغه ځائی کښې قیام اختیاروی.

---

[1]) اخرجه البخاری فی کتاب الرقاق/باب قول النبی صلی الله علیه وسلم: «کن فی الدنیا کانک غریب أو عابر سبیل» (رقم-۶۴۱۶)والترمذی فی کتاب الزهد عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی قصر الأمل(رقم-۲۳۳۳) وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب مثل الدنیا (رقم-۴۱۱۴) واحمد فی المسند:۲/۲۴

④ دويم هغه مسافردې چه په لاره تيريدونكي او روان مسافر دې هغه يو ځائى كښې قيام نه كوى بلكه منزل مقصود طرف ته هروخت روان وى.

**په حديث كښې مراد مسافر** :په دې حديث كښې هم دَدويم قسم مسافر ته توجه راګرځولې شوې ده چه دَ آخرت تيارى او خپل مقصود كښې اخته كيدو كښې صرف مسافر نه بلكه روان مسافر جوړشه اودنياوى تعلقات پريخودوسره خپل مقصود پسې شاته اولګه

**قوله**: وَعُدَّ نَفْسَكَ مِنْ أَهْلِ الْقُبُورِ:

**هروخت مرګ ته د تيار اوسيدو حكم** :يعنى خپل ځان په مړوكښې شميركړه اوخلقوته اووايه چه بس ما مړه اوګڼړئى.لهذا زمانه دَ دنياپه لانجو او جګړو كښې اميد مه ساتئى.بهرحال څنګه چه دَحقيقى مرګ سره دَ دنيا څيزونه هم دغه شان پاتې شى دغه شان هرمسلمان له پكار دى چه هغه دې دَ دنيا دا عارضى څيزونه يوطرف ته كړى اوپخپله دې په مكمل توګه باندې دَ آخرت طرف ته متوجه شى اوخپل نفس آماره دې مړكړى چه دَ دنيا يو څيز سره دَ ده څه تعلق باقى پاتې نه شى.هم دا مضمون په يوحديث كښې داسې بيان كړې شوې دې «موتوقبل أن تموتوا»يعنى دَ مرګ راتلونه مخكښې خپل ځان مړ اوګڼړئى.

**په تخريج كښې تسامح** :په دې حديث كښې چه دَ وعدنفسك نه تر آخره پورې چه كوم الفاظ دى دا بخارى كښې نشته دې.صرف دَ حديث دا ابتدائى كلمات دى لهذا دا رواه البخارى طرف ته منسوب كول صحيح نه دى بلكه رواه الترمذى وئيل پكار وو.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [٥٠٣٥] د دنيا په ځاى دَ آخرت د څيزونو اصلاح پكار ده

٥٠٣٥-(١)[٨] ① عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو-رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا-قَالَ: ②«مَرَّ بِنَا رَسُولُ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- وَأَنَا وَأُمِّي نُطَيِّنُ شَيْئًا ③فَقَالَ: "مَا هَذَا يَا عَبْدَ اللهِ؟ ④" قُلْتُ: شَيْءٌ نُصْلِحُهُ. ⑤قَالَ: "الْأَمْرُ أَسْرَعُ مِنْ ذَلِكَ» ". ⑥رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه** :①حضرت عبد الله ابن عمرو ﷺ وايي، ②يوه ورځ زه او زما مورپه ختې سره څه شى يعنى د خپل مكان ديوالونه يا چهت ګلوي رسول الله ﷺ زمونږ طرف ته تير شو③ رسول الله ﷺ مونږ په دې حالت كې ليدلو سره راته وفرمايل اې عبد الله ﷺ داڅه دي يعنى داڅه آبادوئ ④ما عرض وكړو چې د دې شي يعنى د ديوالونو يا چهت درست كولو او مرمت كولو دپاره ابادوو⑤ حضور ﷺ وفرمايل، امر يعنى اجل چې دى هغه

[1] اخرجه ابوداود فى السنن رقم ٢٥٣٦ والترمذى فى السنن رقم ٢٣٣٥ ابن ماجه فى السنن رقم ٤١٦٠ واحمد فى المسند ٣/ ١٦١

ترډي زيات زر راتلونکی دی ٦ احمد وترمذي او امام ترمذي ويلي دي، چې داحديث غريب دی

**حل اللغات:-** ① نُطَيِّنُ: مونږ ختې کولې، ② نُصْلِحُهُ: جوړؤو ئې، مرمت ئې کوو، ③ الْأَمْرُ: حکم. دلته ترې مرګ مراد دې،

**تسهيلات:**

**قوله: وَأَنَا وَأُمِّي نُطَيِّنُ شَيْئًا:**

**په کور پخولو باندې عبدالله بن عمرو ته تنبيه ورکول:** حضرت عبدالله بن عمروبن عاص رضي الله عنهما کيدې شي چه ضرورت ګنړلو سره دَ کور ليو اوکړو چه ديوالونه اوچت چرته راپريونځي حضورپاك لکه چه دا دَ ضرورت نه زيات اوګنړلو په دې وجه ئې هغوی له تنبيه اوفرمائيله چه دَ ليو دَ مضبوطوالی سره خو به مکان مضبوط شی مګر دَدې مکان پريوتلو اوخرابيدلو نه مرګ مخکښې راتلې شی.لهذا دَخپل آخرت اصلاح مقدم ساتل پکاردی دَمکان په اصلاح کښې خپل وخت ولې ضائع کوې.

يوشاعرڅه ښه وئيلی دی

مانړې څه له آبادوې آخر به کوچ کړې　　　دومره بس دې چې په تا څخيږی نه

**[٥٢٧٦] مرګ هميشه په يادکې ساتل پکاردی**

٥٢٧٦-( )[٩] ١ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- ٢ «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- كَانَ يُهَرِيقُ الْمَاءَ فَيَتَيَمَّمُ بِالتُّرَابِ، ٣ فَأَقُولُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! إِنَّ الْمَاءَ مِنْكَ قَرِيبٌ، ٤ يَقُولُ: "مَا يُدْرِينِي لَعَلِّي لَا أَبْلُغُهُ" ». ٥ رَوَاهُ فِي (شَرْحِ السُّنَّةِ)، وَابْنُ الْجَوْزِيِّ فِي كِتَابِ (الْوَفَاءِ).

**ترجمه:** ١ او حضرت ابن عباس نه روايت دی ٢ کله به داسې کيده چې حضور ﷺ به متيازو کولو نه پس او اودس کولو نه مخکې خاورې سره تيمم کوی، ٣ په دې ليدو سره به ما يعنی ابن عباس عرض کوی، يارسول الله اوبه خوتاسو ته ډيرې نزدې دی ايعنی هرکله چې اوبه ستاسو نه دومره لرې نه دې چې اودس کولی نشې، بياتيمم ولې کوی؟ ٤ نو حضور ﷺ به څما د دې خبرې جواب کې فرمايل ماته څه معلومه ده چې زه به هغه اوبو ته ورسيږم يانه؟ ٥ دا روايت بغوي رحمه الله شرح السنه کې او ابن جوزي کتاب الوفاء کې نقل کړی دی.

**حل اللغات:-** ① يُهَرِيقُ: توبول کنايه ده د تش اودس ماتی کولو نه.

١) اخرجه البغوی فی شرح السنه رقم الحديث ٤٠٣١، واحمد فی المسند: ١/٢٨٨

**تسهيلات:**

**قوله: مَا يُدْرِينِي لَعَلِّي لَا أَبْلُغُهُ:**

**د نبی علیه السلام کم امید:** یعنی ماته دا خو معلومه نه ده چه زما عمرخومره دې او هروخت مرګ متوقع دې. په دې وجه زه ویریږم چه دَ متیازو کولو نه پس به ماته دومره مهلت هم ملاؤ نه شي چه دَ اوبو پورې وراورسم او اودس اوکړې شم لهذا فوری توګه باندې تیمم کوم دې دَ پاره چه یو قسم طهارت خوحاصل شي.

**[۵۰۷۷] دَ انسان مرګ دهغه دآرزوګانو نه زیات نیزدې دې**

۵۰۷۷-()[۱۰۱] ۱ وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- «أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ۲ هَذَا ابْنُ آدَمَ وَهَذَا أَجَلُهُ" ۳ وَوَضَعَ يَدَهُ عِنْدَ قَفَاهُ ۴ ثُمَّ بَسَطَ، فَقَالَ: "وَثَمَّ أَمَلُهُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ۱ د حضرت اخیتمي نه روایت دی رسول الله ﷺ وفرمایل ۲ داخو ابن آدم (انسان)دې او داد هغه مرګ دې، ۳ په دې فرمایلو سره رسول الله ﷺ خپل لاس مبارك شاطرفته کیخو دلو [یعنی مخکې خو یوځای ته اشاره کولو سره یې وخودل چې انسان دی او بیا هغه ځای نه لږ وروسته طرف ته اشاره کولو سره وخودل چې دا د هغه مرګ دی] ، ۴ د دې نه پس حضور ﷺ خپل لاس مبارك خور کی او لرې اشاره کولو سره یې و فرمایل، چې داځای د انسان ارزو ده، یعنی د انسان مرګ هغه ته ډیر نزدې دی. هرکله چې د هغه ارزو د دې نه ډیره لرې ده. (ترمذي)

**حل اللغات:** - ۱ أَجَلُ: نیټه، مرګ، ۲ قَفَاهُ: شټ، ۳ بَسَطَ: خوراه ئې کړل.

**تسهيلات:**

**قوله:** وهذا أجله" یعنی حضورپاك خپل لاس مبارك په خپل ستې مبارك باندې بالکل متصل اوساتلو او وئی فرمائیل دَ انسان مرګ دومره نیزدې دې بیا حضورپاك خپل لاس دَ ستې نه اخوا کولوسره لرې کړو اواشاره ئی اوفرمائیله دا دَ انسان امید دې یعنی مرګ ورله بالکل نیزدې راغلې دې او آرزو ترې ډیره لرې تلې ده.

**قوله: ووضع یده عند قفاه:** حضورپاك اول لاس په خپل ستې مبارك باندې متصل کیخودو او وئی فرمائیل چه دَ انسان مرګ دومره نیزدې دې بیا حضورپاك خپل لاس مبارك دَ ستې مبارك نه اخوا کړو او اشاره ئی اوفرمائیله چه دغه دَ انسان امید دې یعنی مرګ بالکل رانیزدې شو او خواهشات ډیر اوږده او ترلرې پورې ترلی دی.

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الزهد عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی قصر الأمل (رقم-۲۳۳۴) وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب الأمل والأجل (رقم-۴۲۳۲) واحمد فی المسند:۳/۲۵۷

[۵۲۷۸] انسان آرزوګانې پوره کولو کې لګیا وي چې مرګ ئې رانګیر کړي

۵۲۷۸-(۱)[۱] ① وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- ②«أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- غَرَزَ عُودًا بَيْنَ يَدَيْهِ، ③وَآخَرَ إِلَى جَنْبِهِ، وَآخَرَ أَبْعَدَ مِنْهُ. ④فَقَالَ: "أَتَدْرُونَ مَا هَذَا؟" قَالُوا: اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ. ⑤قَالَ: "هَذَا الْإِنْسَانُ وَهَذَا الْأَجَلُ" ⑥أُرَاهُ قَالَ: "وَهَذَا الْأَمَلُ، ⑦فَيَتَعَاطَى الْأَمَلَ فَلَحِقَهُ الْأَجَلُ دُونَ الْأَمَلِ»". رَوَاهُ فِي (شَرْحِ السُّنَّةِ).

**ترجمه:** ①او د ابوسعید خدري رضي الله عنه نه روایت دی ② چې رسول الله ﷺ خپل مخې ته یولرګی په زمکه کې ښخ کی بیایې یوبل لرګي د مخکې لرګي برابر ښخ کی ③ د دې نه پس یو دریم لرګی دوارو سره یا دوارو لرګو نه څه فاصله باندې نصب کی ④ بیایې وفرمایل تاسو خلق پوهیږئ چې داڅه دي یعنی دې لرګو نه څه مراد دي؟ او دا د څه شي مثالونه دي صحابه وو عرض وکړو الله او د هغه رسول بهتر پوهیږي، ⑤ حضور ﷺ وفرمایل واوري، مخکني لرګي ګویا انسان دی، دویم لرګی د انسان مرګ دی (چې انسان ته دومره نزدې دی څومره چې دا دویم لرګی مخکنی لرګي ته نزدې دی) ⑥ حضرت ابوسعید رضي الله عنه وایي څما ګمان دی چې د دې نه پس حضور ﷺ دا وفرمایل او دا دریم لرګی چې ما کافي فاصله باندې ښخ کړی دی ګویا د انسان ارزو ده چې هغه نه ډیره لرې ده. ⑦ نو انسان د دې خپل امید او ارزو د تکمیل په تلاش کې وي، او خپل وخت دې کوشش کې صرف کوي، چې دا ارزو حاصله کړي، خو داسې وشي چې د هغه مرګ د هغه د ارزو پوره کیدو نه مخکې هغه ختم کړي.

**حل اللغات:-** ①غَرَزَ: ښخ ئې کړو، ②عُودًا: لرګې، ③فَيَتَعَاطَى: نو دې په تلاش کښې وی. ④الْأَمَلَ: امیدونه. آرزوګانې.

[۵۲۷۹] د دې امت د خلقو عمرونه د شپیتو نه تر اویا ؤ کالو پورې وي

۵۲۷۹-(۲)[۲] ①وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- «عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ② "عُمُرُ أُمَّتِي مِنْ سِتِّينَ سَنَةً إِلَى سَبْعِينَ»". ③رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ①او حضرت ابوهریره رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه روایت کوي، رسول الله ﷺ وفرمایل ② څما د امت د خلقو عمر شپیتو کالو نه اویا کالو پورې دی، ③ دا روایت امام ترمذي نقل کړی دی او ویلې یې دی چې دا حدیث غریب دی

---

[1] اخرجه البغوی فی شرح السنه رقم الحدیث ۴۰۹۳. وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب الأمل والأجل (رقم-۴۲۳۲) واحمد فی المسند:۱۸/۳

[2] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الزهد عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی فناء أعمار هذه الأمة ما بین الستین إلی السبعین (رقم-۲۳۳۱)

**تسهيلات:**

**قوله: عُمُرُ أُمَّتِي مِنْ سِتِّينَ سَنَةً إِلَى سَبْعِينَ:**

**دامتي محمدی اوسطاً عمر:** يعنې دَ شپيتو کالونه تر اوياؤ کالوپورې دَدې امت دَ کسانو عمرونه دی دا اکثری حکم دې.کنې څه خلق خو شپيتو کالو ته رسيږ ی هم نه او څه په کښې دَ اوياؤ نه هم اوړی.مګر دغه خلق ډير کم وی.دَدې امت دَ کسانو طبعي عمر ۶۳ کاله دې اودې نه وړاندې اضافي عمر دې.خلاصه دا چه دَ يوانسان عمر پنځلس کاله خودَ بلوغ نه مخکښې ضائع کيږی.باقي پنځلسوکښې دَ څه ليك لوست دَ زده کولو تيارې کوی.نيم عمر خو ترې ديخواه لاړو باقی ۳۰ کالو عمر که چرې ملاؤ شی نوهغه څه عمر دې دکوم دَپاره چه انسان دَ زمکې آسمان غارې ملاووی او مار داړ سره دَحلال اوحرام تميز کولونه بغير ګټه کوی اوخپل دَآخرت دَ هميشه ژوند خرابوی.

**[۵۲۸۰] ددې امت د ډيرو کمو خلقو عمر به د اويا کالو نه زيات وی**

۵۲۸۰-() [۱۳] [۱] وَعَنْهُ، قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] "أَعْمَارُ أُمَّتِي مَا بَيْنَ السِّتِّينَ إِلَى السَّبْعِينَ، [۳] وَأَقَلُّهُمْ مَنْ يَجُوزُ ذَلِكَ» ". [۴] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ. وَذُكِرَ حَدِيثُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الشِّخِّيرِ فِي (بَابِ عِيَادَةِ الْمَرِيضِ).

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره ﷺ وايي، چی رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] څما د امت د اکثرو خلقو عمر به د شپيتو او اويا ترمنځ وي [۳] او څما په امت کې د داسې خلقو تعداد به کم وي چې اويا کالو نه به زيات وي،[او د هغوئ عمر به سل يا سل کالو نه هم زيات وي] [۴] ترمذي ابن ماجه او د حضرت عبد الله ابن شخير روايت باب عبادة المريض کې نقل شوی دی.

**تسهيلات:**

**قوله: أَعْمَارُ أُمَّتِي مَا بَيْنَ السِّتِّينَ إِلَى السَّبْعِينَ:**

**بعضې د اوږد عمر صحابه کرام:** دَ رسول الله ﷺ په مبارکه زمانه کښې څه خلق داسې هم موجود وو دَ چا عمر چه دَ اوياؤ کالونه هم اوړيدلې وو مثلاً دَ حضرت انس بن مالك ﷺ عمر يوسل درې کاله وو.دَ حضرت اسماء بنت ابی بکر ﷺ سل کاله عمر وو اودَ آخر عمر پورې دَ هغې غاښونه نه وو پريوتلی او عقل او حواس ئی بالکل په ځائی وو.دَ هغې نه زيات عمر والا حسان بن ثابت ﷺ دې چه دَ يو سل او شلو کالو په عمرکښې دَدې دنيا نه لاړو.دَ شروع شپيته کالو په کفر کښې پاتې شوې وو او شپيته کاله ئی دَاسلام په حالت

---

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن كتاب صفة الجنة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی سوق الجنة (رقم-۲۵۵۰)وابن ماجه فی كتاب الزهد/باب الأمل والأجل (رقم-۴۲۳۶)

کښې تیر کړل. دَ هغه نه هم اوږد عمر دَ سلمان فارسي رضي الله عنه دې ځکه چه بعضې حضراتو وئیلې دی چه دَ هغوی وفات دَ یو نیم سل کالو په عمر کښې شوې وو. بعضې روایاتو کښې راځي چه دَ هغوی وفات په درې نیم سوا کاله کښې شوې دې لیکن اول قول زیات راجح دې.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۵۲۸] ددې امت لولنې فساد بخل او آرزوګانې دی

۵۲۸ـ(۱)[۱۳] ۱ عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ۲ "«أَوَّلُ صَلَاحِ هَذِهِ الْأُمَّةِ الْيَقِينُ وَالزُّهْدُ، ۳ وَأَوَّلُ فَسَادِهَا الْبُخْلُ وَالْأَمَلُ»". رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي (شُعَبِ الْإِيمَانِ).

**ترجمه:** ۱ حضرت عمرو بن شعیب خپل پلار نه او هغه د خپل نیکه دادا نه نقل کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ۲ د دې امت اولنی اصلاح یقین کول او زهد اختیارول دي ۳ او د دې امت مخکني فساد بخل او دنیا کې د باقي پاتې کیدو ارزو کول دي. (بیهقي)

**حل اللغات:** - ① صَلَاحِ: اصلاح، ② الزُّهْدُ: بې رغبتی کول.

**تسهیلات:**

**قوله: أَوَّلُ صَلَاحِ هَذِهِ الْأُمَّةِ الْيَقِينُ وَالزُّهْدُ:**

**دامت د اصلاح دوه څیزونه:** دَ یقین نه مراد دَدې خبرې کامل عقیده ده چه رازق دَ الله تعالی ذات دې هم هغه الله جل جلاله رزق ورکوی او هم هغه الله جل جلاله دَ رزق ضامن او کفیل دې. کله چه دا یقین پیدا شی نو بیا به بخل حرص او لالچ نه پاتې کیږی او دا ویره به هم نه وی چه که چرته نن خرچ او کړم نو صبا له به څه خورم؟ دا دَ بې یقینئی کیفیت دې.

**دیقین تعریف:** شیخ عبد الوهاب متقی په خپل کتاب الحبل المتین فی تحصیل الیقین کښې لیکلی دی چه یقین دَ هغه اعتقاد جازم نوم دې چه په دلائلو سره دومره مضبوط شی چه دَ سړی دَپاره دَحق خبرې اعلان کول آسان شی دا دَ حکماؤ اصطلاح ده لیکن دَ صوفیاؤ په نیز یقین دَ هغه قلبی کیفیت نوم دې چه دَ شریعت په اوامرو باندې انسان راپاسوی او منهیات شرعیه نه انسان منع کړی.

**دیقین بنیادی ارکان:** یقین په بنیادی توګه په خلورو ارکانو باندې مشتمل دې.

① دَ الله تعالی په توحید باندې کلك یقین ساتل چه الله تعالی وحده لا شریك دې او هم هغه دَدې کائناتو مدبر او متصرف دې

② توکل یعنی دا عقیده لرل چه رزاق یودَ الله تعالی ذات دې او هم هغه دَ رزق ضامن دې.

---

۱) اخرجه البیهقی فی شعب الایمان رقم الحدیث ۱۰۸۴۴

③ چه دَ جزا او سزا داسې عقيده وی چه دَ هرې نيکئی او بدئی بدله به په قيامت کښې ملاويږی.
④ دا عقيده چه الله تعالی دَ بنديګانو په ټولو احوالو باندې هروخت خبر دې

**[۵۲۸۲] داصلی زُهد حقيقت**

۵۲۸۲ – (') [۱۵] ① وَعَنْ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ قَالَ: ② لَيْسَ الزُّهْدُ فِي الدُّنْيَا بِلُبْسِ الْغَلِيظِ وَالْخَشِنِ، ③ وَأَكْلِ الْجَشِبِ، ④ إِنَّمَا الزُّهْدُ فِي الدُّنْيَا قِصَرُ الْأَمَلِ. رَوَاهُ فِي (شَرْحِ السُّنَّةِ).

**ترجمه:** ① او حضرت سفيان ثوري رحمه الله نه منقول دی وي فرمايل ② په دنيا کې زهد د دې نوم نه دی چې کلکي او سختي کپړي وا چوي ③ او اوچه سپيره روټی او بې مزي طعام وخوري ④ بلکې دنيا کښی زهد اختيارول په حقيقت کې دارزوګانو او اميدونو د کمی نوم دی.

**حل اللغات:** - ① الزُّهْدُ: بې رغبتی کول، ② لُبْس: اغوستل، ③ الْغَلِيظ: سختې يا پيړې جامې. لکه دَ خامتا يا د وړئ کپړې، ④ الْخَشِن: زيګه کپړې، ⑤ الْجَشِب: اوچه سپوره روټئ، بې خونده روټئ، ⑥ قِصَرُ: مختصر، لږ، ⑦ الْأَمَل: اميدونه.

**تسهيلات:**

**قوله: إِنَّمَا الزُّهْدُ فِي الدُّنْيَا قِصَرُ الْأَمَلِ:**

**حقيقی زهد:** قصر په معنی دَ قصر، لنډ او مختصر آرزوګانې مراد دی يعنی اصل زهد دا نه دې چه شاره کپړا وی، بې خونده خوراك وی بلکه اصل زهد دَ آرزوګانو مختصرکولونوم دې چه دَ دنيانه داسې بې رغبتی وی چه دَدې په جوړولو کښې بالکل دلچسپی نه وی نه اوږده منصوبه بندی وی او نه څه رغبت وی بلکه دَ دنيا نه ويزاره اودَ آخرت طرف ته راغب وی.

**قوله: لَيْسَ الزُّهْدُ فِي الدُّنْيَا بِلُبْسِ الْغَلِيظِ:**

**د زهد دوه صورتونه:** ① کوم زاهد چې په بدنی توګه خودَ دنيا نه اجتناب کوی ليکن په زړه کښې دنيا سره محبت لری. اودَ هغه زړه دَ دنيا دَ محبت نه ډك وی نودا مهلك مرض دې او تباه کن صورت حال دې.

② کوم زاهد چې په جسمانی توګه باندې يوسرې دَ دنيا دَ مباح خوندونو نه فائده اوچته کړی ليکن دَهغه زړه دَدنيا دَ محبت نه بالکل خالی وی بلکه دآخرت طرف ته متوجه وی. نودا بهترصورت حال دې لکه چه دَ دنيا مال په لاس کښې دې اودَ آخرت ايمان په زړه کښې دې.

') اخرجه البغوی فی شرح السنه

**ددنیا دضرورت او محبت مثال:** دَدې مثال داسې دې چه یوه کشتئی په اوبو کښې چلیږی په هغې کښې خلق سواره دی که دَ سمندر اوبه دَ کشتئی نه بهر دی نو دادَ کشتئی دَپاره ډیرې ضروری دی ځکه چه دَ اوبو نه بغیر کشتئی نه شی چلیدې لیکن که هم دغه اوبو کشتئی ته دننه ورشی او ډکه شی نو کشتئی به هم غرقه شی او خلق به هم ډوب شی بالکل هم دغه شان دَ دنیا مال دې کوم چه دَ ظاهری بدن دَ پاره ضروری دې لیکن که دَدنیا هم دغه مال دَ سړی په زړه کښې ورننوځی په هغې قبضه اوکړی نو په دې سره به ایمان بربادشی اوبیابه دا سړې هلاك شی

**انسانی بدن د آخروی سفر سورلی:** دَ انسان بدن په شان دَ سورلئی دې اوکه سورلئی باندې ښه خوراك څښاك اوکړی اوښه چاق او تازه ئی اوساتې نوهغه سورلی به ښه ښت په کار راشی لیکن که دا دې کمزورې کړه نوهغه به هلاك شی اودَ سورلئی قابل به پاتې نه شی دغه شان که بدن دې زیات کمزورې کړو نودا بدن بیا هم دَ عبادت په کار نه راځی

[۵۲۸۳] دنیا نه دزُهد اختیارولو څه مطلب دې؟

۵۲۸۳—()[۲۱] [۱] وَعَنْ زَيْدِ بْنِ الْحُسَيْنِ، قَالَ: سَمِعْتُ مَالِكًا [۲] وَسُئِلَ أَيُّ شَيْءٍ الزُّهْدُ فِي الدُّنْيَا؟ [۳] قَالَ: طِيبُ الْكَسْبِ وَقِصَرُ الْأَمَلِ. رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي (شُعَبِ الْإِيمَانِ).

**ترجمه:** [۱] او حضرت زید ابن حسین رحمه الله [چې د امام مالك د رفقاؤ او مصاحبینو نه وو] وایي ما د امام مالك نه واوریدل [۲] کله چې هغوئ نه پوښتنه وشوه چې دنیا نه زهد اختیارول د څه شي نوم دی؟ [۳] هغوئ وفرمایل حلاله ګټه او د ارزوګانو کمي زهد دی (بیهقي)

**حل اللغات:** - ① طِيبُ الْكَسْبِ: پاکه ګټه، ② قِصَرُ الْأَمَلِ: کم او مختصر امیدونه

[۱]) اخرجه البیهقی فی شعب الایمان رقم الحدیث ۱۰۷۷۹

# [۳] بَابُ اسْتِحْبَابِ الْمَالِ وَالْعُمُرِ لِلطَّاعَةِ

## دَعبادت دَپاره مال او عمر خوښولو بیان

**خلاصة الباب**

**فيه أحد عشر حديثاً مشتملة على ثلث مسائل:**

① فضل المال الذي ينفق في الطاعات: ۱، ۴، ۷، ۸.

② فضل طول العمر للطاعة: ۲، ۳، ۵، ۶، ۱۰، ۱۱.

③ فائدة طول العمر: ۹.

**دښه مقاصدو دپاره دمال حاصلولو جواز:** په دې باب کښې به هغه احادیث بیانیږي دکوم نه چه معلومیږي چه دَ الله تعالی دَ عبادت او طاعت په خاطر اودَ دین دَ خدمت په غرض سره اخروی خیر ښیګړې اومور سر ته دَ رسولو دَپاره دَ مال اودولت طلب کول اودَدې غوښتل جائز دی.

**دمالدارۍ دوه صورتونه:** ① اسلام چونکه دَ انساني ژوند دَپاره کامل اومکمل ضابطهٔ حیات دې اودَ زیاتي کمی نه پاك دَ الله تعالی مبارك قانون دې په دې وجه چه په دې کښې چه څنګه دَ خرابۍ پیدا کونکی مال مذمت کړې شوې دې

② کوم مال چې د هغې په ذریعه انسان نیکۍ کوی نو د هغې تعریف هم شوې دې مثلاً جمات جوړول، نهریا کوهې کنستل، مدرسه جوړول، رفاهي اداره قائمول وغیره

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [۵۲۸۳] د الله تعالی محبوب بنده څوك دې؟

۵۲۸۳ -(۱) [۱] [۱] عَنْ سَعْدٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "[۲] «إِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْعَبْدَ التَّقِيَّ الْغَنِيَّ الْخَفِيَّ» ". [۳] رَوَاهُ مُسْلِمٌ. وَذُكِرَ حَدِيْثُ ابْنِ عُمَرَ: " لَا حَسَدَ إِلَّا فِي اثْنَيْنِ " فِي (بَابِ فَضَائِلِ الْقُرْآنِ).

**ترجمه:** [۱] حضرت سعد رضي الله عنه وايي، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل [۲] یقیناً الله تعالی هغه ډیر خوښوي چې متقي او غني او ګوشه نشین وي. [۳] (مسلم) او د حضرت ابن عمر رضي الله عنه روایت لاحَسَدَ إِلَّا فِي اثْنَيْنِ، د فضائل قرآن په باب کې نقل شوی دی.

**حل اللغات:** - ① التَّقِيَّ: تقوی دار سړی. ② الْغَنِيَّ: مالدار. ③ الْخَفِيَّ: پټ، غیرمعروف.

---

(۱) اخرجه مسلم فی کتاب الزهد والرقائق (رقم-۱۱ - (۲۹۶۵) واحمد فی المسند: ۱/۱۷۷

**تسهيلات:**

**د بعضې مشکلو جملو وضاحت:**

①التقي" صاحب تقویٰ سړی ته تقي وئيلې شوې دې.دلته دَتقي نه مراد هغه سړې دې چه په خپل مال کښې بې ځايه اسراف نه کوی.

②الغني:صاحب مال ته غنی وئيلې شوې دې.دې نه مراد حقوق الله او حقوق العباد اداکونکې شکرګذار مالدار خلق دې.

**قوله:** إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْعَبْدَ..... الْغَنِيَّ الْخَفِيَّ:

**د خفي څخه مراد:** هيرکړې شوې غيرمعروف چرته ګوټ کښې ناست ته خفی وئيلې شوې دې.دې نه مراد هغه مالدارسړې دې چه دَ ډيرې زياتې مالدارئی باوجود عاجز مسکين اوغيرمعروف اوسيږی.دَ مال دَ کثرت دَ وجې نه کبر کوی اونه په نورو خلقوباندې خپل ځان اوچت ګنړی بلکه دَخاموشئی ژوند تيروی اوپه خاموشئی سره خپل دغه حلال مال دَ نيکئی په لاروکښې خرچ کوی.

داسې الله تعالی ته ځکه ګران دې چه په دې کښې ډيرې زياتې نيکئی راجمع شوی دی.حالانکه الدارخلق خو کبرسره سره ظلمونه کوی اودَ بدمعاشئی تولې ادې چلوی

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۵۲۸۵] غوره خلق څوک دی؟

۵۲۸۵-() [۲] ۱ عَنْ أَبِي بَكْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ۲ «-أَنَّ رَجُلًا قَالَ: يَارَسُولَ اللَّهِ! أَيُّ النَّاسِ خَيْرٌ؟ ۳ قَالَ: "مَنْ طَالَ عُمُرُهُ، وَحَسُنَ عَمَلُهُ ۴ ". قَالَ: فَأَيُّ النَّاسِ شَرٌّ؟ ۵ قَالَ: "مَنْ طَالَ عُمُرُهُ وَسَاءَ عَمَلُهُ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ۱ حضرت ابوبکره ﷺ نه روايت دی ۲ يو سړي پوښتنه وکړه يارسول الله ﷺ کوم سړی ښه دی ۳ حضور ﷺ وفرمايل: هغه سړی چې د هغه عمر زيات وي او اعمال يې ښه وي، ۴ بيا هغه سړي پوښتنه وکړه، او کوم سړی خراب دی ۵ حضور ﷺ وفرمايل هغه سړی چې د هغه عمر زيات وي، او اعمال يې خراب وي.(احمد، ترمذي دارمي)

**تسهيلات:**

**قوله:** مَنْ طَالَ عُمُرُهُ وَحَسُنَ عَمَلُهُ:

**خوش قسمته انسان:** دَ حديث دَظاهر نه معلوميږی چه مذکوره حکم دَ اغلب په اعتبار سره دې يعنی ښه يا بد عملونه به ئی زيات وی نو هغه کس ته به يا ښه وئيلی شی او يا بد

() اخرجه الدارمي في السنن رقم ۲۷۴۲، والترمذي في السنن رقم ۲۳۳۱

وئيلي شي او كه چري بد عملونه ئي برابر وي نو بيا به هغه ته په يوه وجه خو ښه وئيلي شي او په يوه وجه بد اګر چه دَدې خبرې ثبوت نادر دې.

**[۵۲۸۶] د اورد عمر په شهادت باندې فضيلت**

۵۲۸۶-()[۳] [۱] وَعَنْ عُبَيْدِ بْنِ خَالِدٍ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-[۲]«أَنَّ النَّبِيَّ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-آخَى بَيْنَ رَجُلَيْنِ، [۳]فَقُتِلَ أَحَدُهُمَا، ثُمَّ مَاتَ الْآخَرُ بَعْدَهُ بِجُمُعَةٍ أَوْ نَحْوِهَا، [۴]فَصَلَّوْا عَلَيْهِ، [۵]فَقَالَ النَّبِيُّ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "مَا قُلْتُمْ؟[۶]" قَالُوا: دَعَوْنَا اللَّهَ أَنْ يَغْفِرَ لَهُ وَيَرْحَمَهُ وَيُلْحِقَهُ بِصَاحِبِهِ، [۷]فَقَالَ النَّبِيُّ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "فَأَيْنَ صَلَاتُهُ بَعْدَ صَلَاتِهِ، وَعَمَلُهُ بَعْدَ عَمَلِهِ؟[۸]" أَوْ قَالَ: "صِيَامُهُ بَعْدَ صِيَامِهِ; لَمَا بَيْنَهُمَا أَبْعَدُ مِمَّا بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ» "رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت عبيد ابن خالد نه روايت دی [۲] رسول الله ﷺ د دوو سړو په منځ کې ورورولی (بهائي چاره) قائمه کړې وه (يعني هغه دواړه صحابه وو ترمنځ دورورولی حالت يې جوړ کړی وو) [۳] په هغوئ کې يو د الله په لار کې ووژل شو (يعني په جهاد کې شهيد شو) او د هغه د شهادت نه پس نژدې يوه هفته وروسته هغه دويم سړی هغه صاحب فراش کېدو سره وفات شو، [۴] صحابه وو د هغه سړي د جنازې مونځ وکړو، [۵] کوم وخت چې د جنازې د مانځه نه فارغه شو، رسول الله ﷺ د هغوئ نه پوښتنه وکړه تاسو چې د مرحوم جنازه کړې ده، په هغه کې مو څه ويلي دي، [يعنی تاسو نماز جنازه کې مرحوم د پاره څه دعاء کړې ده] [۶] صحابه وو عرض وکړو مونږ الله ﷻ نه دا دعا غوښتې وه، چې د ده ګناه وبخښي په ده رحمت نازل کړي او دې هغه شهيد کېدونکی سړي سره جنت کې اعلى درجې ته ورسوي څرنګه چې هغوئ په دنيا کې اتفاق او اتحاد سره يوځای اوسېدل. [۷] رسول الله ﷺ په دې اورېدو سره وفرمايل نو بيا د هغه هغه مونځ څه شو، چې هغه د خپل ملګري د مونځ نه پس ورځو کې کړی وو او د هغه د هغه اعمالو ثواب چيرته لا ړو چې هغه د خپل ملګري د اعمالو نه پس ورځو کې کړی دی [۸] او يا يې دا وفرمايل چې د هغه د روژو هغه ثواب څه شو چې هغه د خپل ملګري د روژو نه پس ورځو کې نيولی وې [يعنی تاسو چې د مرحوم په حق کې دا دعا کړې ده چې الله ﷻ هغه خپل ورور او ملګری سره جنت ته ورسوي کوم چې شهيد شوی دی نو د دې مطلب دا دی چې ستاسو ګمان کې د هغه سړي درجه او مرتبه د خپل ورور د درجې او مرتبې نه کمه ده که تاسو داسې ګڼی نو بيا دا اووائي: چې د دې مرحوم هغه مونځونه، هغه روژې او هغه نورنيک اعمال او د هغه اجر او ثواب چيرته لا ړو، چې هغه د خپل ورور د تګ نه پس ورځو کې کړي وه]

[1] اخرجه ابوداود فی السنن كتاب الجهاد/باب فی النور يرى عند قبر الشهيد (رقم-۲۵۲٤) والنسائی فی كتاب الجنائز/باب الدعاء (رقم-۱۹۸۵) واحمد فی المسند:۵/٤۰

بلاشبه په جنت کې دننه او قرب الهي کې د دوارو سرو په منځ کې چې کومه فاصله ده هغه د هغه فاصلې نه هم زياته ده، کومه چې د زمکې او آسمان په منځ کې ده.

**حل اللغات:** - ① آخَى: رونړه رونړه ئې کړل، ② أَبْعَدُ: لرې والې.

**تسهيلات:**

**قوله: فَأَيْنَ صَلَاتُهُ بَعْدَ صَلَاتِهِ، وَعَمَلُهُ بَعْدَ عَمَلِهِ؟:**

**د اوږد عمر څاوندنيک انسان فضيلت په شهيد باندې:** حضورپاك دَ جنازې مونځ کولونه پس صحابه کرامونه تپوس اوکړو تاسو دَ جنازې په مونځ کښې دَدې مړی دَپاره کومه دعا اوغوښتله يا تاسو دَدې دوارو دوستانو باره کښې څه وايئ؟ دَدې دوارو دَ درجو باره کښې ستاسو څه خيال دې؟ صحابه کرامو جواب ورکړو چه دا دواړه په دنياکښې ملګرې وو مونږ دا دعا اوغوښتله چه الله تعالى دا مړې هم دَ ده ملګرې سره په يوه درجه کښې اوساتې دې دَپاره چه په آخرت کښې هم يوځائې وی. هغه که شهيد شوې دې ليکن الله تعالى دې دا مړې هم دَهغه درجوته وراورسوی زمونږ هم دغه دعا ده او زمونږ خپل مينځ کښې خبرې اترې هم دغه وې. حضورپاك اوفرمائيل چه نه بلکه دَدې دواړو په درجو او په مرتبه کښې ډير لوئی فرق دې ځکه چه دَ يوې هفتې مونځونه او روژې دَدې مړی دَ شهيد نه زياتې دی.

**اشکال:** دَ شهيد درجه خوډيره اوچته وی. دَاحاديث کثيره نه ثابته خبره ده چه دَ شهيد درجه دَ ټولو نه اوچته ده. هسې هم دَ شهيد احکام عجيبه دی ترديې چه دَ غسل ضرورت هم ورته نه وی. دَ جنازې مونځ دَ اکثر فقهاؤ په نيزنشته دې په وينه کښې لړېږ هم په هغه کپړو کښې الله تعالى ته ورروانولې شی. دَ هغه دَ حقوق العباد نه علاوه ټول صغائر اوکبائر معاف کولې شی. نوبيا دلته يو عام سړې صرف دَ يوې هفتې دَ نيکودَ وجې نه هغه دَدې شهيدنه دومره وړاندې لاړو

داشکال جواب:

① څه خصوصی معامله ده او الله تعالى بعضې وخت مفضول عمل باندې افضل ثواب ورکوی لکه چه دَ ذکرالله په احاديثو کښې ذکردی.

② ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی "وذلك لأنه أيضا كان مرابطا فى سبيل الله فله المشاركة فى الشهادة حكمًا وطريقةً وله الزيادة فى الطاعة والعبادة شريعة وحقيقة وإلا فمن المعلوم أن لا عمل أزيد ثوابًا على الشهادة جهادًا فى سبيل الله وإظهارًا الدينه لاسيما فى مبادءالدعوة مع قلة أعوانه من أهل الملة".

ترجمه: په دې دوارو کښې دا فرق ځکه دې چه روستو په خپل مرګ باندې مرکيدونکې دا صحابی په رباط فی سبيل الله کښې وو يعنی دَ اسلامی مملکت په سرحدباندې ئې پهره

ورکوله نودَ ضابطې مطابق هغه شهید سره په شهادت کښې شریك وو او دَ شریعت مطابق په عملی توګه هغه ته دَ دغه نیکئی او عبادت درجه حاصل شوه که چرې دا خاص صورت حال نه وی نودا حقیقت معروف اومشهور دې چه دَ ثواب په اعتبار سره د شهادت نه لوئی هیڅ عمل نشته دې.اودَ الله تعالی په لارکښې جهاد کولو سره چه سړې شهید شی اودَ الله تعالی دَ دین دَ غالب کولو پاره اووژلې شی خصوصًا چه دې دَجهاد اود دین غلبې، دَ اسلام دَ دعوت په شروع مرحله کښې وی اودَ دین منونکی اودَ هغې معاونین ډیر کم هم وی.

دَملاعلی قاری رحمه الله دَ دې عبارت دَ آخری جملې نه په واضح توګه باندې معلومیږی چه دَ صحابه کرامو دعوت جهاد فی سبیل الله وو.هم په دې وجه فقهاؤ دَ دعوت دې قسم ته "دعوت قهریة" وئیلې دې.

③ دا سړې دَ شهادت په جذبه سره مست وو پخپله مجاهد وو لکه چه ټول صحابه کرام مجاهدین وو.دَ شهادت دې جذبه دې دَ شهید درجې ته اورسولو اودَ یوې هغتې عبادت ئی زیات شو په دې وجه وراندې شو.

**[۵۲۸۷] صدقې کولو سره مال زیاتیږی**

۵۲۸۷-()[۳] ① وَعَنْ أَبِي كَبْشَةَ الْأَنْمَارِيِّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: ② " «ثَلَاثٌ أُقْسِمُ عَلَيْهِنَّ، ③ وَأُحَدِّثُكُمْ حَدِيثًا فَاحْفَظُوهُ، ④ فَأَمَّا الَّذِي أُقْسِمُ عَلَيْهِنَّ فَإِنَّهُ مَا نَقَصَ مَالُ عَبْدٍ مِنْ صَدَقَةٍ، ⑤ وَلَا ظُلِمَ عَبْدٌ مَظْلِمَةً صَبَرَ عَلَيْهَا إِلَّا زَادَهُ اللَّهُ بِهَا عِزًّا، ⑥ وَلَا فَتَحَ عَبْدٌ بَابَ مَسْأَلَةٍ إِلَّا فَتَحَ اللَّهُ عَلَيْهِ بَابَ فَقْرٍ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوکبشه انصاري رحمه الله نه روایت دی هغه رسول الله ﷺ نه واوریدل ② دري خبري دي چې د هغه حقانیت او صداقت باندې زه قسم اخلم، ③ او زه تاسو ته یوه خبره کوم، یعنی ستاسو مخکې یوحدیث بیانوم تاسو هغه یاد لری او په هغه عمل کونکي اوسی ④ هغه دري خبري (چې د هغه په حقانیت او صداقت زه قسم اخستی شم)، دادی چې د بنده مال د الله په لار کې خرج کولو صدقه او خیرات کولو په وجه کمیږي نه (یعني د یو بنده خپل مال د الله رضا او خوشنودي د پاره خرج کول په ښکاره خو خپل مال کمول ښکاري خو د حقیقت د اعتبار نه هغه ته هیڅ نقصان او تاوان نه کېږي، ځکه چې د هغه صدقه او خیرات کول دنیاوي طور سره هم د هغه مال واسباب کې د خیر او برکت موجب وي او په اخرت کې هم دحصول ثواب ذریعه ده او ښکاره ده چې داشی به د کثرت

[1]) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الزهد عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء مثل الدنیا مثل أربعة نفر (رقم-۲۳۲۵) وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب النیة (رقم-۴۲۲۸)

او زیاتوب په حکم کې وي نه چې د نقصان په حکم کې! ۵ په کوم بنده چې ظلم وشي او د هغه مال په ناحقه واخستل شي او هغه بنده په هغه ظلم او زیاتی صبر وکړي. نو الله ﷻ د هغه عزت زیاتوي [یعنی د هغه سره ظلم او زیاتی کیدل اګر که ظاهري طور سره د هغه دذلت برابر وي، خو حقیقت دادی، چې په هغه ظلم او زیاتوب کولو په وجه د الله په نزد د هغه بنده عزت او مرتبه زیاتیږي، څرنګه چې یو سړی ظلم کوی نو دهغه دظلم په وجه دالله په نزد دهغه ذلت زیاتیږي، یادامطلب دی چې د ظلم او زیاتوب ښکار کیدونکی بنده اګر که وقتي طور سره ذلت او کمتري کې مبتلا کیږي خو په انجام کې الله ﷻ په دنیا کې هم د هغه عزت او مرتبه زیاتوي. څرنګه چې ظالم اګر که وقتي طور سره سربلند کیږي. خو آخر د خپل ظلم په وجه ډیر ذلت او رسوائي سره مخ کیږي. او د دنیا والو په نظر کې وغورځیږي، اګر که هغه اوږدي مودي نه پس هغه انجام بد ته ولې ونه رسیږي اګر که داسې کیږي، چې د قدرت کرشمه سازي صورت حال داسې بدل کړي. چې ظالم یوه نه یوه ورځ خپل سربلندي ضائع کړي، او کله د زورورکیدو په وجه په کوم سړي چې یې ظلم او زیاتي کولي خپل انجام ته رسیدو سره د هغه مظلوم ترلاس لاندي او د هغه مخکې ذلیل اوسرنګون کیږي! ۶ او کوم بنده چې خپل نفس باندي د سوال دروازه خلاصه کې [یعنی د ضرورت او حاجت په وجه نه، بلکې د مال اودولت جمع کولو اود خواهشات نفس دتکمیل دپاره د خلقونه یې غوښتل شروع کړل نو الله ﷻ هغه دپاره د فقر دروازي خلاصي کړي یعنی هغه په قسم قسم احتیاج او افلاس کې مبتلا کوي. یا د هغه سره چې څه وي هغه هم ختم کړي، چې د هغه په وجه هغه ډیري خرابي کې راځي].

| ۱ وَأَمَّا الَّذِي أُحَدِّثُكُمْ فَاحْفَظُوهُ" ۲ فَقَالَ: "إِنَّمَا الدُّنْيَا لِأَرْبَعَةِ نَفَرٍ: ۳ عَبْدٍ رَزَقَهُ اللَّهُ مَالًا وَعِلْمًا، ۴ فَهُوَ يَتَّقِي فِيهِ رَبَّهُ، وَيَصِلُ رَحِمَهُ، ۵ وَيَعْمَلُ لِلَّهِ فِيهِ بِحَقِّهِ، فَهَذَا بِأَفْضَلِ الْمَنَازِلِ. ۶ وَعَبْدٍ رَزَقَهُ اللَّهُ عِلْمًا وَلَمْ يَرْزُقْهُ مَالًا، فَهُوَ صَادِقُ النِّيَّةِ ۷ يَقُولُ: لَوْ أَنَّ لِي مَالًا لَعَمِلْتُ بِعَمَلِ فُلَانٍ، فَأَجْرُهُمَا سَوَاءٌ. |
|---|

**ترجمه:** ۱ او پاتې شوه د دې حدیث خبره چې ماتاسو ته اورولو د پاره ویلې وه، نو اوس زه هغه بیانوم غور سره یې واورئ او دایاد وساتئ ۲ د دې نه پس حضور ﷺ وفرمایل په دې کې څه شك نشته. چې دا دنیا بس څلور سړو د پاره ده،[یعنی دا دنیا د خپل مال دولت د احوالو او د خپل ښه وبد په اعتبار سره څلور قسمه سړو کې منحصره ده]۳ یو خو هغه بنده چې الله ﷻ ورته مال وزر عطا کی. او د علم ودولت سره یې هم و نوازی ۴ داسې علم اچې د هغه په ذریعه هغه خپل مال مصارف خیر کې د خرچ کولو طریقه پیژني او د هغه د اثراتو او کیفیاتو نه هم باخبر وي، نو هغه بنده د خپل مال دولت باره کې! د الله ﷻ نه ویریږي. [یعنی هغه حرام او ناجائز او ناخوښه اوخلاف حق امورو کې نه خرچ کوي]، د هغه په ذریعه خپل قرابت دارو او عزیزانو سره حسن سلوك او احسان کوي، ۵

او د هغه مال زر نه د هغه د حق مطابق الله ﷻ د پاره خرچ کوي. ايعنى د مال ودولت په حقله الله ﷻ چې کوم حقوق متعين کړي دي هغه د احکام خداوندي د تکميل د پاره اداء کوي، مثلاً زکاة باسي صدقه او خيرات کوي، مالي کفارات اداء کوي او نيك اعمالو کې يې خرچ کوي]، نو د هغه بنده ډيره لويه او کامل مرتبه ده ايعنى هغه بنده په دنيا کې نيك خصائل او احوال سره متصف ګرځول کيږي يا په آخرت کې د اعلى مراتبو مستحق ګرځول کيږي] [٦] دويم هغه بنده چې هغه ته الله ﷻ علم خو عطا کړى اچې د هغه په ذريعه په ښه شان پوهيږي چې مال کوم کارکي صرف کول د الله رضا او خوشنودي او د هرقسم د اجر او ثواب باعث دى او کوم کار کې خرچ کول د الله د ناراضګي او د هرقسم خسران او عذاب سبب دى] ليکن هغه ته يې مال ندي ورکړي، نو هغه بنده د خپل علم په سبب رښتينى نيت لري،[٧] او د حصول دولت خواهش او ارزو لرلو سره وايي، که زما سره مال او روپۍ پيسي وى،نو مابه په هغه کې نيك کارونه کولاى،څرنګه چې هغه فلانى سړى د خپل مال زرباره کې وو د الله نه ويرېدي، [يعنى څرنګه چې فلانى سړي ته الله علم صادق سره مال دولت هم عطا کړى دى او هغه هغه مال د الله د رضا او خوشنودي له خاطره نيك کارونه کې خرچ کوي يعنى اداثيګى زکاة اقرباوو سره حسن سلوك او د صدقه او خيرات په ذريعه د دنيا او د آخرت سرخروئي حاصلوي دغه شان که الله ﷻ ماته هم ددى علم سره مال دولت هم عطا کړى وې نو مابه هم د هغه سړي په شان خپل مال وزر د الله په لار کې د خرچ کولو سعادت حاصل کړى واى] نو ددواړو سړو ثواب برابر دى ايعنى مخکنى سړى که دننه مالدار کيدو په وجه د الله په لار کې هيڅ نه خرچ کوي، ليکن د رښتني نيت ساتلو په سبب هغه اجر او ثواب پيداکي کوم چې مخکني سړي پيداکيا .

**حل اللغات :-** ① مَا نَقَصَ: نه کميږى، ② عِزًّا: عزت،

[١] وَعَبْدٍ رَزَقَهُ اللَّهُ مَالًا وَلَمْ يَرْزُقْهُ عِلْمًا [٢] فَهُوَ يَخْبِطُ فِي مَالِهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ، [٣] لَا يَتَّقِي فِيهِ رَبَّهُ وَلَا يَصِلُ فِيهِ رَحِمَهُ، [٤] وَلَا يَعْمَلُ فِيهِ بِحَقٍّ، فَهَذَا بِأَخْبَثِ الْمَنَازِلِ، [٥] وَعَبْدٍ لَمْ يَرْزُقْهُ اللَّهُ مَالًا وَلَا عِلْمًا، فَهُوَ يَقُولُ: [٦] لَوْ أَنَّ لِي مَالًا لَعَمِلْتُ فِيهِ بِعَمَلِ فُلَانٍ، [٧] فَهُوَ نِيَّتُهُ وَوِزْرُهُمَا سَوَاءٌ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ.

**ترجمه:** [١] دريم بنده هغه دى چې هغه ته الله ﷻ مال ورکړى دى ليکن علم يې نه دى ورکړى. [داسې علم چې د هغه سره د الله نه ويريږي او خپل مال د حقوق اداثيګى کې خرچ کړي]، نو هغه بنده د بي علم کيدو په وجه د خپل مال باره کې وغوليږي.[٢] په دي طور [چې اول خو د لالچ او حرص او د دنيا د محبت په وجه بخل کوي]، چې هيڅ ښه کار او د حقوق اداثيګى کې د خرچ کولو اراده نه کيږي [او که څه فلاحي او رفاهي کار يا د چا مدد او اعانت کې خرچ هم کوي. نو مقصد محض نوم ښوونه او خپلي لويي او دولتمندي اظهار وي. هغه د خپلي بي علمى په سبب د هغه مال او دولت باره کې خپل

رب نه نه ویریږي، یعنی د آمدني داسې وسائلو او ذرائعو نه پرهیز او احتیاط نه کوي. کوم چې حرام ناجائز او مشتبه وي، او نه داسې امورو کې خپل مال خرچ کولو نه منع کېږي، چې غیر شرعي او دحق خلاف وي، او د علم وتربیت کمی اود جذبه ترحم دفقدان او د حرص وبخل د کثرت په وجه] خپل قرابتدار او عزیزانو سره مالي احسان او سلوك نه کوي.۞ او نه د هغوئ د حقوقو تعمیل کوي، چې د هغه مال دولت سره متعلق وي. ایعنی نه خو زکاة او نور صدقات واجبه په ذریعه د الله حق اداء کوي، او نه د بنده ګانو د حقوقو او مطالباتو د ادائیګی پرواه کوي] نو دا بنده د بدترین مرتبې دي.۞ او څلورم بنده هغه دی چې الله ﷻ نه مال ورکړی وي، او نه یې علم ورته عطا کړی وي. [داسې علم چې د هغه په ذریعه د خیر او شر په منځ کې تمیز وشي او دا پیژندی شي. چې څما په حق کې کوم شی ښه دی او کوم شی خراب دی] نو هغه بنده وایې ۞ که زما سره مال او روپی پیسې وې نو ما به هم دهغه فلاني سړي په شان خرابو کارونو کې خرچ کولای.۞ نو دابنده د خپل نیت په سبب مغضوب دی [یا داترجمه هم کیدي شي چې دابنده خراب نیت لرونکی دی] او د ده ګناه د هغه دریم سړی د ګناه برابر ده، یعنی هغه دریم سړی اګر که خپل مال خرابو کارونو کې د خرچ کولو په وجه ګنهګاریږي، او داڅلورم سړی مالدار نه کیدو په وجه خرابو کارونو کې د خرچ کولو مرتکب کېږي خونه، لیکن خرابو کارونو کې د خرچ کولو نیت لري په دي سبب هغه ته هم هغه ګناه رسیږي چې خرابو کارونو کې واقعةً خرچ کونکي ته رسیږي]، دا روایت ترمذي نقل کړی دی، او ویلي یې دي چې داحدیث غریب دی

**حل اللغات:** - ۞ يَتَخَبَّطُ: دهوکه شی. اوغولیږی، ۞ أَخْبَثِ الْمَنَازِلِ: بدترین مرتبې والا. ۞ وِزْرُ: بوج. ګناه

**تسهیلات:**

**قوله: ثَلَاثٌ أُقْسِمُ عَلَيْهِنَّ:**

**د درې څیزونو په یقین کیدو باندې د نبی علیه السلام قسم خوړل:** یعنی حضورپاك فرمائی چه درې څیزونه داسې یقینی او پاخه دی چه په هغې باندې زه قسم خوړلې شم

① یودا چه صدقه اوخیرات سره کله هم مال کمیږی نه سره دَدې چه خلق په ظاهره ګنړی چه مال ورکولو سره مال کمیږی.

② دَمظلوم په ظلم باندې صبر کولو سره دَهغه عزت نه کمیږی بلکه زیاتیږی خلق ګنړی چه عزت ئې کمیږی ځکه چه هغه بدله وانخستله

③ په خیرغوښتلو سره اولګه تنده راځی سره دَدې چه سوال کونکې ګنړی چه دې سره دَهغه اولګه تنده ختمیږی

**قوله**: أحدكم:

**دخلقو څلور قسمونه**: یعنی ماچه څه وئیلی وو چه ستاسو په وړاندې یو حدیث بیانوم. نو هغه واؤرئی چه دَ دنیا او مال په اعتبار سره خلق څلور قسم دی

① یو هغه سړې دې چاته چه الله تعالی مال او علم دواړه ورکړې وی دا ډیر ښه سړی دې که چرته دَمال او علم حق ادا کړی.

② دویم هغه سړې دې چاته چه الله تعالی علم ورکړې دې او مال ئی نه دې ورکړې کله چه دې په علم باندې عمل کوی نو دا هم ډیر ښه سړې دې.دا دَ رښتونی نیت والا دې که چرې مال ورله راغلونو په خوکارونو کښې به ئې خرچ کوی لهذا دې هم دَ اولنی سړی په شان ښه سړې دې

③ دریم هغه سړې دې چاته چه الله تعالی ډیر ښه مال ورکړې دې او علم ئی ورته هیڅ نه دې ورکړې هغه جهالت سره په مال کښې ناجائز تصرف کوی ګړی دا بدترین سړې دې

④ څلورم هغه سړې دې چه نه هغه سره مال شته اونه علم لیکن هغه آرزو کوی که چرې ماسره مال وې نوما به دَ فلانکی سړی په شان په غلطو کارونو کښې الوزولو نو دا سړې هم دَ دریم نمبر سړی په شان دې.دَ ګناه په آرزو کښې دا ګناهګارشو لهذا دې هم دَهغه په شان دې.

**قوله**: وزرهما سواء"

**دغریب اومالدار په ګناه کښې دیوشان والی وجه**: یعنی مفلس جاهل دې او تمناکوی وائی که چرې ماسره مال راغلو نو دَفلانکی فاسق اوفاجر مالدار په شان به عیش کوم.ډمې به ګډوم، شراب به څکم، پردی حقونه به لاندې کوم، نودَده ګناه اودَ مالدارفاسق سړی دَ ګناه بوج به برابر وی.لکه چه په ښه نیت سره ښه ثواب ملاویږی او په خراب نیت سره خرابه بدله ملاویږی.

سوال: دلته دا سوال دې چه دَمعصیت دَ ارتکاب نه مخکښې خو په نیت باندې نیول نه کیږی دادلته ولې کیږی؟

جواب: دَ نیت پنځه درجې دی کوم چه شاعر داسې بیان کړی دی

| | |
|---|---|
| مراتب القصد خمس هاجس ذكروا | فخاطر فحديث النفس فاستمعا |
| يليه هم فعزم كلها رفعت | إلا الأخيرة ففيه الأخذ قد وقعا |

نو که دَعزم په درجه کښې نیت وی نو په هغې باندې نیول کیږی دلته دَغه سړی نیت دَعزم په درجه کښې دې په دې وجه دَ نیولو ذکرکړې شوې دې.عزم دادې چه سړې ګناه ته سل فیصد تیاردې صرف دَموقعې ملاویدو انتظار دې

## [۵۲۸۸] دَ نیکئ توفیق دَ حسن خاتمې نښه

۵۲۸۸-() [۵] [۱] وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [۲] "«إِنَّ اللَّهَ تَعَالَى إِذَا أَرَادَ بِعَبْدٍ خَيْرًا اسْتَعْمَلَهُ ". [۳] فَقِيلَ: وَكَيْفَ يَسْتَعْمِلُهُ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ [۴] قَالَ: "يُوَفِّقُهُ لِعَمَلٍ صَالِحٍ قَبْلَ الْمَوْتِ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس رضی الله عنه نه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] الله جل جلاله چې د بنده د خیر یعنی د هغه دحسن انجام اراده وفرمایي، [۳] نو د هغه نه دنیکي کارونه کېږي پوښتنه وشوه، یارسول الله الله جل جلاله په هغه د نیکي کار څرنګه کوي، [۴] وي فرمایل دمرګ نه مخکې هغه ته د نیک کار توفیق عطا کوي.

**حل اللغات:** - (۱) اسْتَعْمَلَهُ: کارونه ترې اخلی.

**تسهیلات:**

**قوله: يُوَفِّقُهُ لِعَمَلٍ صَالِحٍ قَبْلَ الْمَوْتِ:**

**دمرګ څخه وړاندې د نیک عمل توفیق ورکول:** دَ حدیث الباب حاصل دادې چه په کوم بنده باندې دَ الله تعالی کرم او مهربانی اوشی هغه ته دَ مرګ نه مخکښې دَ توبې اودَ انابت او دَ عبادت توفیق الله تعالی ورکوی. لکه چه حدیث الباب دَ ژوند اهمیت او فضیلت ښکاره کوی چه هم دغه ژوندون دې په کوم کښې چه انسان دَ آخرت ښیګړې او کامیابئ دَ پاره څه کولې شی.

## [۵۲۸۹] هوښیار څوک دې او کم عقل څوک دې؟

۵۲۸۹-() [۶] [۱] وَعَنْ شَدَّادِ بْنِ أَوْسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " [۲] «الْكَيِّسُ مَنْ دَانَ نَفْسَهُ، وَعَمِلَ لِمَا بَعْدَ الْمَوْتِ. [۳] وَالْعَاجِزُ مَنْ أَتْبَعَ نَفْسَهُ هَوَاهَا [۴] وَتَمَنَّى عَلَى اللَّهِ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت شداد بن اوس وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] عقلمند او بهادر سړی هغه دی. چې خپل نفس د الله جل جلاله دحکم [او فیصله تقدیر وقضا او د هغه درضا او خوشنودي] په وړاندې تیټ کړي [او د فرمان الهي مطیع او فرمانبردار جوړ شي]، او هغه داجر او ثواب د پاره نیکي وکړي، کوم چې دمرګ نه پس به یې پیدا کې، [۳] او احمق او نادان او بزدل سړی هغه دی چې خپل نفس د خواهشاتو تابع جوړ کړي، [یعنی نفس

---

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب القدر عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء أن الله کتب کتابًا لأهل الجنة وأهل النار(رقم-۲۱۴۲) واحمد فی المسند: ۳/ ۱۰۶

[۲] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب صفة القیامة والرقائق والورع عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۲۴۵۹) وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب ذکر الموت والاستعداد له (رقم-۴۲۶۰) واحمد فی المسند: ۴/ ۱۲۴

چې کوم حرام او مشتبخیزونه او دنیاوي لذت او د مرغوباتو خواهشمندوي، هغه اختیارولو سره ګویا خپل ځان د خواهش نفس قیدي جوړکړي وي، او ګناهونو کې مبتلا کیږي د فرمان حق خلاف چلیږي، د عمل خیر او توبه او استغفار لار نه اختیارولو باوجود د الله ﷻ نه] د دې خبري ارزو مند وي، چې هغه به ورنه راضي وي، هغه به وبخښي او هغه ته به جنت ورکړي.

**حل اللغات:** - ①الْكَيِّسُ: عقلمند، هوښيار، ②دَانَ: کنټرول کړی، قابو کړی، ③الْعَاجِزُ: بې وقوف، ناپوهه، ④هَوَاهُ: دنفس خواهشات، ⑤تَمَنّٰى: آرزو،

**تسهیلات:**

**د بعضې مشکلو جملو وضاحت:**

① الكيّس "دا کیس دَ کیاسة نه دې دَعقلمند هوښیار په معنی کښې دې.په دې کښې دَبهادرئی مفهوم هم پروت دې یعنی هوښیا بهادر عقلمند سړې هغه دې.

② دان:دَ ټيټولو په معنی کې دې یعنی نفس ئی تابعدار او حکم منونکې جوړکړې دې.

**قوله: وَالْعَاجِزُ مَنْ أَتْبَعَ نَفْسَهُ هَوَاهَا:**

**دعاجز څخه مراد:** دَعاجز نه دلته کم عقل بې همت او بزدل سړې مراد دې چه دَ هغه نفس دې داسې راګذار کړو چه هغه خپل نفس پسې شاته اولګیدو.په ګناهونو کښې ککړ پاتې شو او صرف دَ آرزوګانو په طمع کیناستو نه ئی توبه اوکړه او نه ئی استغفار اوکړو.په ګناهونو کښې راګیر دې او تمنائی داده چه الله تعالی غفور اورحیم دې ما ته به جنت راکوی.بې شکه الله تعالی غفور او رحیم دې مګر قهار اوجبارهم دې.دا خویو قسم توقې دی چه یو طرف ته څوك ناراض کوی هم اوپه هغه باندې دَ رضا دَحالت فیصله هم کوی.

**دمذکوره په مضمون کښې د عالمانو اقوال:** ① حسن بصری رحمه الله اوفرمائیل "من ظن أنه يصل الى الله بعمل فهو متعن ومن ظن أنه يصل الى الله بغير عمل فهو متمن" یعنی کوم سړی چه دا خیال اوکړو چه هغه صرف دَعمل په زور باندې الله تعالی ته رسیدې شی نوهغه خپل ځان په مشقت کښې اچونکې دې اوکوم سړې چه دا خیال کوی چه دَعمل نه بغیربه الله تعالی ته اورسی نو دې صرف آرزو کونکې دې.

② امام غزالی رحمه الله فرمائی چه اول خپل ځان مستحق دَ رحمت محسن جوړکړه بیا دَ رحمت دعاغواړه ځکه چه ﴿إِنَّ رَحْمَتَ اللَّهِ قَرِيبٌ مِّنَ الْمُحْسِنِينَ﴾ دَ قرآن آیت دې.[سورت اعراف: ۵۶]

③ علامه کرخی رحمه الله فرمائیلی دی چه دَنیك عمل نه بغیر دَ جنت غوښتل دَ ګناهونو نه یوه ګناه ده.

بې عمله د جنت امید ساتلو مثال

امام غزالی رحمه الله فرمائیلی دی بې عمله د الله تعالی د مغفرت امید ساتل داسې دی لکه یو زمیندار په پټی ځه تخم کرلې نه وی اودې په دې امید ناست وی چې کله نور زمینداران د خپلو پټو څخه فصلونه کټ کوی زه به هم کټ کړم که دې چاته دا خبره اوکړی نو هغه به ورپورې خندا کوی.دغه شان مثال دهغه چا دې چې نیک عمل نه کوی. اودا امید ساتی چې الله تعالی غفور او رحیم دې ماته به معافی اوکړی د الله تعالی نیک بندګان هغه دی چې نیک اعمال کوی خو د دې باوجود په ویره کښې وی چې دا نیک اعمال به الله تعالی قبول کړی که نه؟ لکه څنګه چې یو زمیندار په پټی کښې تخم اوکری اووخت په وخت د هغې د اوبه خور انتظام کوی.د مرغواو ځاروو وغیره څخه ئې حفاظت کوی.اوهروخت دهغې په خسمانه کښې لګیا وی خوبیا هم دې په یقین سره نشی وئیلې چې دا فصل به زه کټ کوم بلکه دا ویره ورسره وی چې هسې نه په دې باندې سیلۍ راشی طوفان راشی اور پرې اولګوی ددې دا ویره ترهغه وخته پورې وی ترڅو چې ئې هغه فصل کټ کړې نه وی.دغه شان نیکان بندګان نیک اعمال کوی خوبیا هم په ویره کښې وی چې دا عمل به الله تعالی ته قبول وی که نه؟

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [٥٢٩٠] دَپرهیزګارو دَپاره مال اودولت بد څیز نه دې

٥٢٩٠ -(١) [٧] ١ عَنْ رَجُلٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ٢«كُنَّا فِي مَجْلِسٍ، فَطَلَعَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ٣وَعَلَى رَأْسِهِ أَثَرُ مَاءٍ ٤فَقُلْنَا: يَا رَسُولَ اللَّهِ! نَرَاكَ طَيِّبَ النَّفْسِ. قَالَ: " أَجَلْ ". ٥قَالَ: ثُمَّ خَاضَ الْقَوْمُ فِي ذِكْرِ الْغِنَى، ٦فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " لَا بَأْسَ بِالْغِنَى لِمَنِ اتَّقَى اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ، ٧وَالصِّحَّةُ لِمَنِ اتَّقَى خَيْرٌ مِنَ الْغِنَى، ٨وَطِيبُ النَّفْسِ مِنَ النَّعِيمِ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:**١ د رسول الله ﷺ صحابه وو کې یو سړی وایي ٢ مونږ خلق په یو مجلس کې ناست وو. چې رسول الله ﷺ راتلو سره زمونږ په منځ کې تشریف فرماشو ٣ هغه وخت د رسول الله ﷺ په سرمبارك د غسل د اوبو لوندوالی وو. ٤ مونږ عرض وکړو یارسول الله دا وخت مونږ تاسو ډیر خوشحاله وینو چې د هغه آثار د مخ مبارك نه ښکاره کیږي حضور ﷺ وفرمایل هو. ٥ راوي وایي د دې نه پس اهل مجلس د دولتمندي ذکر کې مشغول شو، یعنی په خپلو کې خبري کولې، چې مالداري او دولتمندي ښه شی دی یا خراب شی ٦ رسول الله ﷺ زمونږ داخبري اوریدو سره وفرمایل د هغه سړي دولتمندي کې څه حرج نشته، چې د الله ﷻ نه ویریږي، ٧ او د جسم صحت مندي دالله نه

[١] اخرجه ابن ماجه في السنن كتاب التجارات /باب الحث على المكاسب (رقم-٢١٤١) واحمد في المسند:٥/٣٧٢

ويربدونکی سری یعنی دمتقي او پرهیزګار سړي د پاره ددولتمندي نه زیاته ښه ده، [اګر که هغه صحت مندي فقر او افلاس سره ولې نه وي]٨ او شادماني او خوش دلي خوشحالي د الله ﷻ د نعمتونو نه یو نعمت دې [چې په هغه د الله ﷻ شکر اداء کول واجب دی، او په دي باره کې به د قیامت په ورځ د بنده نه پوښتنه کېږي، څرنګه چې قرآن کریم کې فرمایل شوي دي، ثُمَّ لَتُسْأَلُنَّ يَوْمَئِذٍ عَنِ النَّعِيمِ] (احمد)

**حل اللغات :-** ① طِيبُ النَّفْسِ: ښه زړه والا، خوشحاله، ② أَجَلْ: د نَعَمْ په معنی کښې دې، یعنی آؤ، ③ خَاضَ: مشغول شو، ④ الغِنَى: مالداری.

## [۵۲۹] مال او دولت دَ مؤمن ډهال دې

۵۲۹-(١)[٨] ١ وَعَنْ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: ٢ كَانَ الْمَالُ فِيمَا مَضَى يُكْرَهُ ٣ فَأَمَّا الْيَوْمَ فَهُوَ تُرْسُ الْمُؤْمِنِ. ٤ وَقَالَ: لَوْلَا هَذِهِ الدَّنَانِيرُ لَتَمَنْدَلَ بِنَا هَؤُلَاءِ الْمُلُوكُ. ٥ وَقَالَ: مَنْ كَانَ فِي يَدِهِ مِنْ هَذِهِ شَيْءٌ فَلْيُصْلِحْهُ، ٦ فَإِنَّهُ زَمَانٌ إِنِ احْتَاجَ كَانَ أَوَّلَ مَنْ يَبْذُلُ دِينَهُ. ٧ وَقَالَ: الْحَلَالُ لَا يَحْتَمِلُ السَّرَفَ. رَوَاهُ فِي (شَرْحِ السُّنَّةِ).

**ترجمه:** ١ او حضرت سفیان ثوري ﷫ فرمايي ٢ مخکې زمانه کې به مال بد ګڼل کیدي [ځکه چې د هغه زماني خلقو کې زهد او قناعت ډیر زیات وو، اوددي نه علاوه د هغه وخت د بادشاهانو او حاکمانو دطرف نه درعایاؤ بنیادي ضرورتونو دفراهمي خاص انتظام وو اوخلقو به بغیردځه کوشش اوبغیر دځه پریشاني په کور کښې ناست قوت لايموت حاصلول اوپه دي سلسله کې به دهغه بادشاهانو اوحاکمانو دطرفه ځه ذلت اوخواری یې هم نه محسوسولي]٣ اوهر چې نن ورځ نو روپئ پیسي ګټل اومال دولت دمسلمانانو سپر(ډهال) دی ٤ حضرت سفیان ﷫ داهم وفرمایل که زمونږ خلقو سره دادرهم ودینار او روپی پیسي نه وی، نو نن صبا سلاطینو او امراؤ به مونږ ذلیل او پامال کړی وي ٥ او هغوئ وفرمایل، که یوسړي سره ځه لږ ډیر مال وي، نو هغه ته پکار دي چې د هغه اصلاح وکړي، ایعنی هغه لږ مال هسي ضائع نه کړي، بلکې تدبیر او هنر سره هغه تجارت وغیره کې لګولو سره د زیاتولو کوشش وکړي، یا داچي هغه ډیر کفایت او قناعت سره خرچ کړي، چې زر ختم نشي]٦ ځکه چې زمونږ دا زمانه داسې ده، که په دي کې څوك محتاج او مفلس وي، نو هغه به د حاصلولو په غرض خپل دین د خپل لاسه پامال کیدونکی اولنی سړی وي،٧ د حضرت سفیان یوقول داهم دی چې حلال مال کې د اسراف احتمال نه وي (شرح السنه)

**حل اللغات :-** ① تُرْسُ: ډهال، ② لَتَمَنْدَلَ: پامال کړي او ذلیل کړي به وي مونږ لره ③ يَبْذُلُ: خرچ کړی

[١] اخرجه البغوی فی شرح السنه رقم الحدیث ٤٠٩٨

**تسهيلات:**

**قوله: كَانَ الْمَالُ فِيمَا مَضَى يُكْرَهُ:**

**مال که د مؤمن ډهال:** پخوانئي زمانه کښې به مال اودولت ناخوښه ګڼړلې شو مؤمن او متقي حضراتو به مال مکروه ګڼړلو ځکه چه عام ماحول دَ زهد اوتقوىٰ وو خلقو به غريب او فقير ذليل او سپك نه ګڼړلو. دَ مالي کمزورئي دَ وجې نه به ئې دَ هغه ايمان نه تباه کولو بل دا چه بادشاهان اوحکمرانان به هم ښه وو چه غريب او فقيرته به ئې حوصله ورکوله نوځکه به خلقو مال او دولت نه راجمع کولو او راجمع کول به ئې معيوب ګڼړل مګر اوس معامله دَدې برعکس ده غريب اوفقير سړې په معاشره کښې ذليل او حقير ګڼړلې شي او دَ پيسو په زور دَ هغه ايمان اخستلې شي. بل دا چه حکمرانان هم خيرخواه پاتې نه شونونتيجه به دا راوځي چه غريب سړې به دَمالدارانو او دَحکمرانانو لاس ته ناست وي اودَ هغوي دَ لاس پناه به جوړشي او دَ هغوي لاسونه صفا کول اوخيرې صفاکولودَپاره به توليه او رومال جوړشي.

**قوله: مَنْ كَانَ فِي يَدِهِ مِنْ هَذِهِ شَيْءٌ فَلْيُصْلِحْهُ:**

دمال د اصلاح په مفهوم کښې دوه اقوال: ① مطلب دا چه لږه پيسه هم وي نو هغه دې په ځه کاروزګار کښې اولګوي دا دَهغې اصلاح ترقي اوزياتوالې دې.

② مطلب دادې چه دادې په قناعت سره خرچ کوي اسراف دې نه کوي.

**قوله: الْحَلَالُ لَا يَحْتَمِلُ السَّرَفَ:** يعنې حلال مال اسراف نه برداشت کوي ځکه چه هغه دومره زيات خو نه وي په کوم کښې چه دَ اسراف ګنجائش وي. په حلال طريقې سره حاصل شوې مال دومره زيات چرته وي په کوم کښې چه سړې اسراف شروع کړي. اسراف خو په هغه مال کښې کيږي چه په ناجائز اوحرام طريقې سره حاصل کړې شوې وي. نوکوم مال چه دغه شان د حرامو په طريقه په زيات مقدارکښې راځي هم دغه شان به دَحرامو په لارو ځي

**[۵۲۳] شپيته کاله عمر ډير لوئې عمر دې**

۵۲۳ ـ (١) (٩١) ١ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " ٢ «يُنَادِي مُنَادٍ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَيْنَ أَبْنَاءُ السِّتِّينَ ٣ وَهُوَ الْعُمُرُ الَّذِي قَالَ اللَّهُ تَعَالَى: ٤ ﴿أَوَلَمْ نُعَمِّرْكُمْ مَا يَتَذَكَّرُ فِيهِ مَنْ تَذَكَّرَ وَجَاءَكُمُ النَّذِيرُ﴾ [فاطر: ٣٧] ». ٥ رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي (شُعَبِ الْإِيمَانِ).

**ترجمه:** ١ او حضرت ابن عباس ﷺ وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل. ٢ يوه اعلان کونکي فرشته به د قيامت په ورځ د الله ﷻ په حکم سره دا اعلان وکړي، چې شپيته

۱) اخرجه البيهقي في شعب الايمان رقم الحديث ۱۰۲۵۴

کالو عمر والا خلق چیرته دی، [یعنی په دنیا کې چې کومو خلقو شپیته کاله عمر پیدا کړی وو، هغوئ دي د خپل عمر حساب ورکولو د پاره خپل ځان پیش کړي] ،[۳] او داعمر هغه عمر دی چې د هغه باره کې الله ﷻ دافرمایلي دي [۴] أَوَلَمْ نُعَمِّرْكُم مَّا يَتَذَكَّرُ فِيهِ مَن تَذَكَّرَ وَجَاءَكُمُ النَّذِيرُ، ایا مونږ تاسو ته داسې عمر نه وو درکړی، چې په هغه کې نصیحت حاصلونکی نصیحت حاصل کړي، حالانکي تاسو ته ویرونکې هم راغلی وو [۵] دا روایت بیهقي په شعب الایمان کې نقل کړی دی.

**حل اللغات:-** ① النَّذِيرُ: ویرونکې،

**تسهيلات:**

**قوله: وَجَاءَكُمُ النَّذِيرُ:**

**د نذیر په مصداق کښې دوه اقوال:**

① دَ ویرونکی نه مراد دَ الله تعالی هدایات او احکامات رسونکی یعنی قرآن مجید او دَ هغه رسولان دی.

② د نذیر څخه مراد بوډاوالې او مرګ دې.په دې وجه دَ بوډاوالی عمر ته رسیدو باندې دَ الله تعالی نه توبه او استغفار نه کونکې ډیر لوئی بدقسمت دې.

**[۵۰۳] نیک عمل سره عمر زیاتیږی او درجات ورسره اوچتیږی**

**۵۰۳-(¹)[۱۰] [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ شَدَّادٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: [۲] «إِنَّ نَفَرًا مِنْ بَنِي عُذْرَةَ ثَلَاثَةً أَتَوُا النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَأَسْلَمُوا [۳] قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "مَنْ يَكْفِينِيهِمْ؟" [۴] قَالَ طَلْحَةُ: أَنَا. فَكَانُوا عِنْدَهُ، [۵] فَبَعَثَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- بَعْثًا، فَخَرَجَ فِيهِ أَحَدُهُمْ، فَاسْتُشْهِدَ، [۶] ثُمَّ بَعَثَ بَعْثًا فَخَرَجَ فِيهِ الْآخَرُ، فَاسْتُشْهِدَ، [۷] ثُمَّ مَاتَ الثَّالِثُ عَلَى فِرَاشِهِ،**

**ترجمه:** [۱] او حضرت عبد الله ابن شداد وايي [۲] دبني عذره د قبيلي خلق چې د هغوئ تعداد دري وو د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شوه او اسلام يې قبول کی [او هغه خلق د حصول دين د خاطره، د الله په لار کې د رياضت او مجاهدي په نيت سره دحضور ﷺ سره پاتې شو د هغوئ مالي حالت ډير کمزوري وو او هغوئ خپل ضروريات د ژوند کفالت باندې خپله قادر نه وو] ،[۳] نو رسول الله ﷺ وفرمايل څوك نشته چې د دې خلقو کفالت و کړي، [يعنى حضور ﷺ صحابه وو نه پوښتنه وکړه چې په تاسو کې څوك شته داسي، چې د دې خلقو د ضروريات ژوند کفالت او د هغوئ د خير ګيري او دلداري ذمه داري برداشت کې چې ماته د دوئ د خير ګير جوړيدو ضرورت پاتي نشي او

---

¹) اخرجه احمد في المسند: ۱۶۳/۱

زه د دوئ د طرف نه بې فکره شم]، ⓸ حضرت طلحه رضي الله عنه عرض وکړو يارسول الله زه د دوئ ذمه داري قبلوم، ⓹ نو هغه دري سره حضرت طلحه رضي الله عنه سره اوسيدل څه ورځې وروسته چې رسول الله ﷺ يو طرف ته يو لښکر وليږی نو هغه لښکر سره هغه دري سره يو سړی هم لاړو او په ميدان جنګ کې د دښمنانو سره جنګيدو سره شهيد شو، ⓺ د دې نه پس بې يو بل لښکر وليږی د هغه سره دويم سړی لاړ، هغه هم شهيد شو، ⓻ بيا دريم سړي خپله بستره باندې په حق ورسيدی، [او دې سړي اګر که په ميدان جنګ کې د شهيد کيدو موقع پيدا نه کړه، ليکن مرابط ضرور وو ميدان جنګ کې دښمنانو سره د جهاد کولو نيت يې هم لرې]،

⓵ قَالَ: قَالَ طَلْحَةُ: فَرَأَيْتُ هَؤُلَاءِ الثَّلَاثَةَ فِي الْجَنَّةِ، ⓶ وَرَأَيْتُ الْمَيِّتَ عَلَى فِرَاشِهِ أَمَامَهُمْ ⓷ وَالَّذِي اسْتُشْهِدَ آخِرًا يَلِيهِ، وَأَوَّلَهُمْ يَلِيهِ، فَدَخَلَنِي مِنْ ذَلِكَ، ⓸ فَذَكَرْتُ لِلنَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ذَلِكَ، ⓹ فَقَالَ: "وَمَا أَنْكَرْتَ مِنْ ذَلِكَ؟! ⓺ لَيْسَ أَحَدٌ أَفْضَلَ عِنْدَ اللَّهِ مِنْ مُؤْمِنٍ يُعَمَّرُ فِي الْإِسْلَامِ: ⓻ لِتَسْبِيحِهِ وَتَكْبِيرِهِ وَتَهْلِيلِهِ»".

**ترجمه**: ⓵ راوي وايي حضرت طلحه رضي الله عنه بيانوي چې هغه دريو سړو کې د دوو شهادت او د يو قدرتي مرګ نه پس يوه ورځ ماخوب وليدی، چې دري سره په جنت کې دي، ⓶ او ما وليدل چې کوم سړی په خپله بستره په حق رسيدلی وو، هغه د ټولو نه مخکې وو ⓷ او کوم سړی چې دويم لښکر سره شهيد شوی وو، هغه د هغه نه پس دی، او هغه ته بالکل نزدې دی، او هغه دريو سړو کې چې د ټولو نه مخکنی سړی لښکر کې شهيد شوی وو، هغه د ټولو نه په آخر کې دی نو دا دري سره دغه شان يو بل نه مخکې وروسته ليدو سره خما په زړه کې انديښنه پيدا شوه [چې د قاعدې مطابق خو د ټولو نه مخکې او نمايان هغه سړی کيدل پکار وو، کوم چې مخکې د الله په لار کې شهيد شوی وو، ياداچې دواړه شهيدان يوځای برابر برابر وي ځکه چې د دواړو د شهيد حيثيت سره ديوشان د مرتبې مستحق وو او کوم سړی چې په خپله بستره وفات شوی وو، هغه د ټولو نه په آخر کې کيدل پکار وو. ليکن ما هغه دري سره چې کوم ترتيب سره وليدل هغه زما د پاره غټ تعجب او شك شبه کې مبتلا کونکی وو]، ⓸ نو ما حضور ﷺ ته د خپل خوب ذکر وکی، ⓹ حضور ﷺ هغه خوب او په هغه خما رد عمل واوريدو سره وفرمايل چې ستا د پاره په دې کې د شك او شبهې او د انکار باعث کوم شی دی؟ ⓺ تاچې خپل خوب کې دادري سره کوم ترتيب سره ليدلی دی، هغه بالکل موزون دی، ځکه چې د الله په نزد هغه مسلمان نه زيات افضل هيڅوك نشته، چې هغه د اسلام په حالت کې زيات عمر پيدا کی، ⓻ او د هغه په وجه ورته د الله د تسبيح وتکبير او تهليل او نور ټول مالي او بدني عبادتونو زياته موقع حاصله شوه.

**تسهيلات:**

**قوله:** لَيْسَ أَحَدٌ أَفْضَلَ عِنْدَ اللَّهِ مِنْ مُؤْمِنٍ يُعَمَّرُ فِي الْإِسْلَامِ:

**د اوږد عمر دخاوند فضيلت:** کوم سړي چه اول شهيد شو هغه دَ تولو نه په آخري درجه کښې وو او کوم چه څه موده پس شهيد شو هغه دَ ده نه په مخکښې درجه کښې وو ليکن کوم چه په آخره کښې په خپل مرګ باندې مړه شوی وو هغه دَ تولو نه مخکښې په اعلی درجه کښې وو. صحابی په دې باندې حيران شو چه ښه ده څه دَ اول شهيدنه دويم شهيد مخکښې اووتلو نوهغه زيات اعمال اوکتل ليکن دا په آخره کښې مړه کيدونکی خو شهيدان نه وو دادَ تولو نه څنګه مخکښې شو؟ په دې باندې حضورپاك اوفرمائيل چه دَ روستو پاتې کيدونکی سړی هغه نيك اعمال چرته لاړل؟ ګورې نه چه هغه په دغه موده کښې څومره نيك اعمال اوکړل.

په دې حديث باندې هم هغه اعتراض او سوال دې چه دَدې باب په حديث نمبر (۵۲۸۶) باندې شوې ووهلته په تفصيل سره جوابونه ليکلې شوی دی.

**[۵۲۹۳] د قيامت په ورځ دَ دنياوی ژوند قدر معلوميدل**

| ۵۲۹۳-(١)[١] ① وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ أَبِي عَمِيرَةَ- وَكَانَ مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ- صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ②«إِنَّ عَبْدًا لَوْ خَرَّ عَلَى وَجْهِهِ مِنْ يَوْمِ وُلِدَ إِلَى أَنْ يَمُوتَ هَرَمًا فِي طَاعَةِ اللَّهِ ③ لَحَقَّرَهُ فِي ذَلِكَ الْيَوْمِ، ④ وَلَوَدَّ أَنَّهُ رُدَّ إِلَى الدُّنْيَا ⑤ كَيْمَا يَزْدَادَ مِنَ الْأَجْرِ وَالثَّوَابِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ. |
|---|

**ترجمه:** ① او حضرت محمد ابن ابي عميره، چې د رسول الله ﷺ د صحابه وو نه دی فرمايي ② که يوبنده د خپل پيدائش د وخت نه بوډاتوب کې مرګه پورې د خپل پوره او طويل ژوند په دوران کې صرف د الله طاعت او عبادت کې مصروف وي، ③ نو هغه به هم د قيامت په ورځ د خپل عمل ثواب ليدو سره خپل هغه طاعت او عبادت ډير کم وګڼي، ④ او دا ارزو به کوي چې کاشکې دې دنيا ته واپس وليږل شي ⑤ د پاره د دې چې د هغه اجر او ثواب زيات شی دا دواړه روايتونه امام احمد نقل کړی دی.

**حل اللغات:** - ① خَرَّ: راپريوتو، ② هَرَمًا: بوډاتوب، ③ لَحَقَّرَهُ: سپک او معمولی به اوګنړی.

**تسهيلات:**

**قوله:** ابوعميرة" په عين زبر او ميم باندې زير دې. دَده دَ څوئی نوم محمد دې چونکه دَ محمد صحابی کيدل زيات مشهور نه وو په دې وجه دَهغه نوم سره دا تعارف لګولې شی چه هغه دَ حضورپاك صحابی وو. په دې حديث کښې دَ اعمالو ډيرلوئی ترغيب دې چه يو

[١] اخرجه احمد في المسند: ۱۸۵/٤

سرې دَ تصور نه هم زيات عبادت اوکړو ليکن د قيامت په ورځ به هغه هم آرزو کوى چه که ما لږ شان زيات عبادت کړې وې نو څومره به ښه وه

# [۴] بَابُ التَّوَكُّلِ وَالصَّبْرِ

## دَ توکل او د صبر بيان

**خلاصة الباب**

**فيه ثمانية عشر أحاديث مشتملة على ست مسائل:**

① فضيلة التوكل على الله : ۱، ۳، ۵، ۷، ۱۰، ۱۴، ۱۶-

② فضيلة الصبر: ۳، ۷، ۱۸-

③ المنع عما ينافي التوكل: ۴-

④ كون الرضاء بالقضاء من التوكل: ۶، ۷، ۹، ۱۱، ۱۲، ۱۷-

⑤ عدم تعلق الرزق بالحرفة : ۱۳-

⑥ ثمرات طاعة الله تعالى: ۱۵-

**دتوکل او صبر په يوباب کښې دجمع کولووجه:** توکل او صبر چونکه لازم اوملزوم دى په دې وجه دواړه هم په يوباب کښې جمع کړې شوى دى. خودَ توکل اکثر استعمال دَ ارزاقو په معاملاتوکښې کيږى اودَ صبر اکثر استعمال مصائبو او شدائدوکښې کيږى.

**د توکل لغوى معنى:** حواله کولو اواعتماد او يقين ته وائى

**دتوکل اصطلاحى تعريف:** دَ قضاء الهى په مخکښې دَمنلو دَپاره سرښکته کولو نوم توکل دې

**داسبابو اختيارول اوتوکل:** په شريعت کښې توکل دَ اسبابو دَ تعطل نوم نه دې بلکه ټول اسباب استعمالول د توکل لاندې دى څومره چه دَ بنده نه کيدې شى هغه دې کوى وراندې دې په الله تعالى باندې يقين ساتى

لکه څنګه چه په يوحديث کښې راغلى دى چه حضورپاك يوصحابى ته اوفرمائيل «قيدو توکل» يعنى اوښ اوتړه اوبيا په تړلو توکل مه کوه بلکه په الله تعالى توکل کوه بهرحال دَ اسبابو استعمال جائز دې په اسبابو باندې يقين او اتکال جائز نه دې. دَ اسبابو دَ استعمال نه پس دَ الله تعالى دَ طرف نه دغه اسبابو ته مستقل حکم کيږى چه هغه اثر اوکړى يا اونه کړى دې نه معلومه شوه چه اسباب څه مستقل علت نه دې بلکه داهم ذرائع دى دَدوى په لاس کښې هم هيڅ نشته دې ټول هرڅه دَ الله تعالى په قبضه کښې دى.

**دتوکل عموميت:** توکل يوعام لفظ دې په ټولو امورو او ټولو معاملاتوکښې توکل جارى وى ليکن دَدې زيات استعمال رزق او کسب او دَ اکتساب په باب کښې کيږى او هم په

دي کښې زيات مشهور دي

**قوله**: وَاصْبِرْ

**دصبر لغوی معنی**: په لغت کښې صبر منع کيدو او منع کولو ته وائی

**دصبر شرعی تعریف**: "الصبر هو حبس النفس على ما يقتضيه العقل والشرع" يعنى په هغه څيز باندې نفس ايسارول چې دعقل او شريعت د تقاضا مطابق وی دې ته صبر وائی (قاله ملا على قاري في مرقاة)

**د صبر درې قسمونه**:

① الصبر على العبادة: يعنى دعبادت په مشقت باندې صبر کول

② الصبر عن المعصية: يعنى د ګناه څخه ځان ساتلو کښې د نفس په مقابله باندې صبر کول

③ الصبر على المصيبة: يعنى په مصيبت باندې صبر کول.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [۵۲۹۵] دکامل توکل کونکو فضیلت

۵۲۹۵-()[۱] ۱ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ۲ " «يَدْخُلُ الْجَنَّةَ مِنْ أُمَّتِي سَبْعُونَ أَلْفًا بِغَيْرِ حِسَابٍ ۳ هُمُ الَّذِينَ لَا يَسْتَرْقُونَ وَلَا يَتَطَيَّرُونَ، ۴ وَعَلَى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُونَ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: ۱ حضرت ابن عباس وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل، ۲ زما په امت کې اويا زره خلق به بې حسابه په جنت کې داخل شي، ۳ داهغه کسان دي چې طلب ددم نه کوي، بدفالي نه کوي ۴ او خپلو ټولو کارونو کې چې د هغه تعلق ديو شى دکولو سره وي يا د هغه پريخودلو سره وي صرف په خپل پروردګار باندې بهروسه کوي (بخاري، مسلم)

**حل اللغات**: - ① لَا يَسْتَرْقُونَ: رقيه منترته وائی. يعنى طلب نه کوى د دم درها. ② لَا يَتَطَيَّرُونَ: نه بد فالى کوى.

**تسهيلات**:

**قوله**: لَا يَسْتَرْقُونَ وَلَا يَتَطَيَّرُونَ:

**د رقيه لغوى معنى**: سين او تاء دَ طلب دَپاره ده رقيه طلب کول مراد دى. رقيه منترجنترته وائى.

---

[۱] اخرجه البخارى فى كتاب الرقاق/باب: {ومن يتوكل على الله فهو حسبه} [الطلاق: ۳] (رقم-۶۴۷۲) ومسلم فى كتاب الإيمان/باب الدليل على دخول طوائف من المسلمين الجنة بغير حساب ولا عذاب (رقم-۳۷۲ - (۲۱۸) والترمذى فى كتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب منه (رقم-۲۴۳۷) وابن ماجه فى كتاب الزهد/باب صفة أمة محمد صلى الله عليه وسلم (رقم-۴۲۸۶) واحمد فى المسند: ۴۴۱/۴

**دمنتر دوه قسمونه:** ① دَ جاهلیت منتر جنتر دي دا اسلام مطلقا منع کړي دي که چرې دلته دَ رقیه نه دَ جاهلیت منتر جنتر مراد دې نودا دَ ادنی مؤمن دَپاره هم جائز نه دي
② دم درود او علاج معالجه ده

**د حدیث په مصداق کښې دوه اقوال:** ① شیخ عبد الحق رحمه الله اشعة اللمعات کښې لیکلی دی چه زیاته واضحه خبره داده چه په دې حدیث کښې دَ منتر چه کوم ذکر کړې شوې دې دې نه دَ جاهلیت دَ زمانې تونکې او مشرکانه منترمراد دې دَ کوم چه قرآن اوحدیث سره هیڅ تعلق نشته دې [اشعة اللمعات] دَ "لایتطیرون" جمله په دې باندې واضح دلالت کوی ځکه چه دَتطییرعمل دَ جاهلت دَ بدفالئی شامل دې کوم چه په اسلام کښې منع دې لهذا منتر جنترهم منع دې اودَ تطییرعمل هم منع دې.

② په دې حدیث کښې دَ دم درود او علاج معالجه دَترك کولو ذکر دې دې نه دَ خواصو توکل مراد وی اودا خواص الناس او عارفینو اودَ مخلصینو دَتوکل درجه وی. دَ کوم شان چه دا وی چه کله هغوی ته اووئیلې شی چه "اَدْعِیَ لكَ الطبیب؟" آیا دَ علاج دَ پاره طبیب راوْغوښتې شی؟ نوپه جواب کښې وائی "والطبیب أمرضنی" یعنی هم طبیب خو زه په بیمارئی کښې اخته کړې یم نوعلاج ولې اوکړم. یعنی دا ټوله معامله دَ الله تعالی په لاس کښې ده

**[٥٢٩٦] ددې امت د متوکلینو اویا زره کسان به بغیر حساب کتاب جنت ته داخلیږی**

(۱)[۲] ۱ وَعَنْهُ قَالَ: ۲ «خَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَوْمًا فَقَالَ: " ۳ عُرِضَتْ عَلَيَّ الْأُمَمُ ۴ فَجَعَلَ يَمُرُّ النَّبِيُّ وَمَعَهُ الرَّجُلُ، ۵ وَالنَّبِيُّ وَمَعَهُ الرَّجُلَانِ، ٦ وَالنَّبِيُّ وَمَعَهُ الرَّهْطُ، ۷ وَالنَّبِيُّ وَلَيْسَ مَعَهُ أَحَدٌ، ۸ فَرَأَيْتُ سَوَادًا كَثِيرًا سَدَّ الْأُفُقَ، ۹ فَرَجَوْتُ أَنْ يَكُونَ أُمَّتِي. ۱۰ فَقِيلَ: هَذَا مُوسَى فِي قَوْمِهِ ۱۱ ثُمَّ قِيلَ لِي: انْظُرْ، ۱۲ فَرَأَيْتُ سَوَادًا كَثِيرًا سَدَّ الْأُفُقَ،

**ترجمه:-** ۱ او حضرت ابن عباس وایي ۲ یوه ورځ رسول الله ﷺ بهر ته تشریف راوړی او وي فرمایل ،حالت کشف یا په خوب کې چې ځما په مخکې امتونه د هغوئ دانبیاؤ وو سره پیش شو، ۳ هرنبي د هغه امت سره ماته وخودل شو ۴ هرکله چې هغه نبیانو خپلو امتونو سره تیریدل شروع کړل نو ما ولیدل چې یونبي سره صرف یوسړی وو [یعنی په دنیا کې د هغه پیروي کونکي یو سړي نه علاوه بل څوك نه وو] ۵ او یونبي داسې وو چې هغه سره دوه کسه وه ٦ یوبل نبي تیر شو نو هغه سره پوره یوجماعت وو، ۷ او بیا یونبي

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب الرقاق/باب: یدخل الجنة سبعون ألفا بغیر حساب (رقم-٦٥٤١) ومسلم فی کتاب الإیمان/باب الدلیل علی دخول طوائف من المسلمین الجنة بغیر حساب ولا عذاب (رقم-۳۷٤ - (۲۲۰) والترمذی فی کتاب صفة القیامة والرقائق والورع عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۲٤٤٦)

داسې هم تیر شو چې د هغه سره یو سړی هم نه وو ایعنی به دنبی کې د هغه پیروي یو سړی هم نه وه کړي] [٨] د دې نه پس ماخپل مخې ته یو ډیر لوی جماعت ولیدی. چې د اسمان دکنارو پورې خورشوی وو [٩] دومره لوی جماعت لیدو سره ما امید وکی چې دابه څما امت وي، [١٠] لیکن ماته وخودل شو، چې دا حضرت موسی علیه السلام او د هغه د امت خلق دي، [چې هغه باندې ایمان راوړی وو] [١١] بیا ماته اوویل شو چې لږ پورته نظر کولو سره وګوره [١٢] ماچې پورته وکتل نو خپل مخې ته مي ولیدل چې یوبې انتهاء لوی جماعت دی، چې د آسمان دکنارو پورې خورشوی وو [دومره لوی جماعت لیدو سره مطمئن شوم او د الله شکر مي اداء کی]

**حل اللغات:-** ① الرَّهْطُ: ډله، جماعت، ② سَوَادًا: لوئې جماعت، ③ سَدَّ: بند کړې وو. ګیر کړې وو. ④ الْأُفُقَ: کنارې او اطراف (د آسمان)،

[١] فَقِيلَ لِي: [٢] انْظُرْ هَكَذَا وَهَكَذَا، [٣] فَرَأَيْتُ سَوَادًا كَثِيرًا سَدَّ الْأُفُقَ. [٤] فَقَالَ: [٥] هَؤُلَاءِ أُمَّتُكَ، [٦] وَمَعَ هَؤُلَاءِ سَبْعُونَ أَلْفًا قُدَّامَهُمْ يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ بِغَيْرِ حِسَابٍ، [٧] هُمُ الَّذِينَ لَا يَتَطَيَّرُونَ، [٨] وَلَا يَسْتَرْقُونَ، [٩] وَلَا يَكْتَوُونَ، [١٠] وَعَلَى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُونَ" [١١] فَقَامَ عُكَّاشَةُ بْنُ مِحْصَنٍ فَقَالَ: [١٢] ادْعُ اللَّهَ أَنْ يَجْعَلَنِي مِنْهُمْ. [١٣] قَالَ: (اللَّهُمَّ اجْعَلْهُ مِنْهُمْ). [١٤] ثُمَّ قَامَ رَجُلٌ آخَرُ فَقَالَ: ادْعُ اللَّهَ أَنْ يَجْعَلَنِي مِنْهُمْ. [١٥] فَقَالَ: "سَبَقَكَ بِهَا عُكَّاشَةُ")). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** [١] بیا ماته اوویل شوه، [چې یوازې دایو جماعت مه ګڼه د دې نه به نور زیات خلق هم ووینې] ، [٢] لږ اخوا [یعنی ښي او ګڅ طرف ته هم] وګوره، ماښي او ګڅ طرف ته وکتل [٣] نو دواړه طرف ته بي انتهاء هجوم وو، چې دآسمان کنارو پورې د انسانانو یو ډیر لوئې تعداد په نظر راغې، [٤] او ماته اوویل شوه [٥] چې داټول ستا د امت خلق دي، [٦] او د دوئ نه علاوه (یعنی منجمله د دې خلقو نه یا دوئ نه علاوه مزید دوئ نه مخکې] اویازره خلق داسې دي چې بي حسابه به په جنت کې داخلیږي، [٧] او داهغه دی چې نه بدفالي کوي، [٨] نه دَم، [٩] او نه خپل جسم ته داغ ورکوي [١٠] او په خپل پروردګار باندې توکل کوي، [١١] په دې اوریدو سره یوصحابي عکاشه ابن محصن رضی الله عنه عرض وکړو یارسول الله! [١٢] الله تعالی نه زماد پاره دعا وغواړئ چې ماهم په دې خلقو کې شامل کی، کوم چې په الله توکل کوي، او بي حسابه په جنت کې داخلیږي [١٣] حضور صلی الله علیه وسلم ورته دعا وکړه یاالهي! عکاشه رضی الله عنه دې خلقو کې شامل کی.

[١٤] بیا یوبل سړی اوریدلو هغه هم عرض وکړو یارسول الله! زما د پاره هم د الله تعالی نه دعا وغواړئ چې دې خلقو کې مې شامل کی، [١٥] حضور صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل د دې دعا په سلسله کې عکاشه ستا نه سبقت یووړی. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:-** ⑤ لَا يَتَطَيَّرُونَ: بدفالي نه کوي، ⑥ لَا يَسْتَرْقُونَ: دم درها نه کوي، ⑦ لَا يَكْتَوُونَ: دَاکتوا نه دي داغ ورکولو په معنی کښې دي.

**تسهیلات: قوله**: مَعَ هٰؤُلَاءِ سَبْعُونَ أَلْفًا"

**د مذکوره جملې په مصداق کښې دوه اقوال**: ① ددې کثیر جماعت نه علاوه اویا زره داسې دی چه بغیرد حساب کتاب نه به جنت ته ځي

② هم ددوی نه به اویا زره داسې وی چه د حساب کتاب نه بغیربه جنت کښې داخلیږی په یو روایت کښې دی چه په دوی کښې هریوسره به اویا زره کسان جنت ته ځی دا تعداد دیر زیات دې.

**قوله**: سَبَقَكَ بِهَا عُكَّاشَةُ:

**د عکاشه پیژندګلو**: دا عکاشه بن محصن اسدی مشهورصحابی دې.د دوی تعلق د غنم سره وو چې د بنو اسد یو شاخ وو. په مکه مکرمه کښې د قریشو د حلیف په طور اوسیدو. د دوی کنیت ابو محصن وو. په خلقو کښې په بهادرۍ اوکمال عقل او پرهیزګارۍ سره مشهور وو. د نبی ﷺ د وفات په وخت د دوی عمر څلورڅلوېښت کاله وو په د طلیحه مدعی نبوت سره په یوه جهادی معرکه کښې شهید شو.

**د عکاشه د سبقت مطلب**: یعنی د الله تعالی په نیز دادرجه صرف یو سړی دپاره وه اوهغه عکاشه مخکښې یوړه. اوس ئی ته غواړې خو مګر هغه عکاشه نه مخکښې اوړلې ده حضرت عکاشه ؓ جنګ یمامه په موقع باندې شهید شوې وو.

**[۵۲۹۷] دَ مؤمن خاص شان**

٥٢٩٧-()[٣] ١ وَعَنْ صُهَيْبٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: ٢ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "٣ «عَجَبًا لِأَمْرِ الْمُؤْمِنِ! إِنَّ أَمْرَهُ كُلَّهُ لَهُ خَيْرٌ ٤ وَلَيْسَ ذٰلِكَ لِأَحَدٍ إِلَّا لِلْمُؤْمِنِ، ٥ إِنْ أَصَابَتْهُ سَرَّاءُ ٦ شَكَرَ ٧ فَكَانَ خَيْرًا لَهُ، ٨ وَإِنْ أَصَابَتْهُ ضَرَّاءُ صَبَرَ ٩ فَكَانَ خَيْرًا لَهُ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: ١ او حضرت صهیب ؓ وایي، ٢ چې رسول الله ﷺ وفرمایل، ٣ د مؤمن هم عجیبه شان دی چې د هغه هرحالت هغه د پاره د خیر ښیګنې باعث دی ٤ او داخبره صرف د مؤمن د پاره مخصوص ده بل څوك ورسره په دې وصف کې شریك نه دی، ٥ که هغه ته [رزق او فراخي او وسعت، راحت ارام صحت وتندرستي، نعمت ولذت او د طاعت او عبادت د توفیق په صورت کې] خوشحالي حاصلیږي ٦ نو هغه د الله شکر اداء کوي، ٧ او دا شکر د هغه د پاره د خیر او ښیګړې باعث کېږي. ٨ او که هغه ته [د فقر او افلاس، امراض وتکلیف رنج والم او آفات او حادثات په صورت کې] مصیبت رسیږي، نو په هغه صبر کوي ٩ بس دا صبر هم د هغه د پاره د خیر او فلاح باعث کېږي. (مسلم)

**حل اللغات**:- ① سَرَّاءُ: خوشحالی. ② ضَرَّاءُ: تکلیف

[1]) اخرجه مسلم فی کتاب الزهد والرقائق/باب المؤمن أمره کله خیر (رقم-٦٤ - (٢٩٩٩) واحمد فی المسند: ١٧٧/١

**تسهیلات:**

**قوله** وَعَنْ صُهَيْبٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ:

**د صهیب پیژندګلو**: حضرت صهیب بن سنان دَموصل او سیدونکي وو موصل په عراق کښې مشهور ښار دي رومیانوډاکه واچوله اوهغه ئې یوړو او بیائې غلام جوړ کړو حضرت صهیب ﷜ هلته ځوان شو بیا بنوکلب هغه واخستلو او د هغه ځائې نه ئې راوړو په مکه کښې ئې په عبدالله بن جدعان باندې خرڅ کړو هغه دَ اخستلو نه پس دې آزاد کړو په مکه مکرمه کښې دې مسلمان شو دَ ضعفاء مسلمین نه وو په ۸هجری مدینه کښې وفات شو او په جنت البقیع کښې دفن کړې شو. یاد لرئې چه صهیب ﷜ رومی نه دې اصلاً دې عراقی موصلی دې هغوی ته رومی ددې وجې نه وائې چه دې دَهغوی په خاندان کښې غټ شوې دې. خلق ورته دَ غلطئې نه رومی وائې

**قوله**: عَجَبًا لِأَمْرِ الْمُؤْمِنِ

**د مؤمن دوه حالتونه**: ① که چرې په مؤمن مصیبت راشي نو په صبر کولو باندې ورته ثواب ملاویږی

② که چرې په مؤمن راحت راشي نو په شکر کولو ورته ثواب ملاویږی

ددې وجې په حدیث کښې راغلو چه دَ مؤمن عجیبه شان دې دَهغه هر حالت دَ آخرت دَ پاره فائده مند دې

**[۵۲۹۸]طاقتور مسلمان دَ ضعیف مسلمان نه بهتر دې**

۵۲۹۸-(۱)[۳] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " [۳] «الْمُؤْمِنُ الْقَوِيُّ خَيْرٌ [۴] وَأَحَبُّ إِلَى اللّٰهِ مِنَ الْمُؤْمِنِ الضَّعِيفِ، [۵] وَفِي كُلٍّ خَيْرٌ، [۶] احْرِصْ عَلَى مَا يَنْفَعُكَ [۷] وَاسْتَعِنْ بِاللّٰهِ، [۸] وَلَا تَعْجِزْ، [۹] وَإِنْ أَصَابَكَ شَيْءٌ فَلَا تَقُلْ: [۱۰] لَوْ أَنِّي فَعَلْتُ كَانَ كَذَا وَكَذَا، [۱۱] وَلَكِنْ قُلْ: [۱۲] قَدَّرَ اللّٰهُ وَمَا شَاءَ فَعَلَ، [۱۳] فَإِنَّ لَوْ تَفْتَحُ عَمَلَ الشَّيْطَانِ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت ابوهریره ﷜ وایي، [۲] چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۳] قوي مسلمان د ضعیف مسلمان نه ښه دی [۴] او الله د کمزوري مسلمان څخه زیات خوښ دي [۵] اوپه هریوښه والې شته [۶] کوم شی چې تاسو ته د دین او اخرت په اعتبار سره نفع رسونکی وي، د هغه حرص کوه [۷] الله ﷻ نه د نیك عمل کولو مدد او توفیق طلب کوي. [۸] او دي طلب مدد او توفیق نه مه عاجزه کېږي، ځکه چې الله ﷻ په دې پوره قادر دی چې تاسو ته د خپل طاعت او عبادت توفیق عطا کړي، په شرط د دې چې تاسو د هغه په استعانت

[۱] اخرجه مسلم فی کتاب القدر/باب فی الأمر بالقوة وترک العجز والاستعانة بالله وتفویض المقادیر لله(رقم- ۳۴ - (۲۶۶۴) واحمد فی المسند:۲/۳۷۰

ــــ د ضور سره قـائم اوو سيږي، او بعضي حضراتو د دې مطلب دا بيـان كړى دى، چې ... هغه سي باندې عمل كولو نه مه عاجزه كېږئ، د كوم چې تاسو ته حكم دركول شوى دى او هغه مه ترك كوى[۹] او كه تاسو ته د دين دنيا څه مصيبت او افت ورسيږي، نو داسي مه وايئ،[۱۰] كه ماداسي كړي وي نو داسې به وه،[۱۱] بلكه زبان قـال يازبان حال سره دا وايئ، [۱۲]چې الله ﷻ مقدر كړى دى نو څه چې پيښ شوى دى، د قضاء وقدرِ الهي مطابق پيښ شوى دى، او الله چې څه غواړي هغه كوي، او داځكه چې لفظ دلَوْ (يعنې كه چيرته داسې واي) په يو شي باندې د حسرت او پريشاني د اظهار،اود تقدير الهي سره د معارضي او مقابلې او خپل قوت او تدبير باندې اعتماد كولو د پاره استعماليږي،[۱۳]نو دشيطان دعمل دخل دروازه خلاصه كړي،[او په زړه كې داغلطه وسوسه او خيال اچوي چې د هركار نتيجه زمونږ په تدبير سره راوځي، د تقدير الهي هيڅ اهميت نشته]. (مسلم)

**حل اللغات:-** ① احْرِصْ: لالچ كوه، ② لَاتَعْجِزْ: عاجزه كيږه مه.

**تسهيلات: قوله: اَلْمُؤْمِنُ الْقَوِيُّ"**

**د قوى په مصداق كښې درې اقوال:** يعنې دَ قوت والا قوى مسلمان دَ ضعيف مسلمان نه بهتر دې.

① دلته دَ مؤمن دَ ايمان هغه غيرمتزلزل حوصله او عزم مراد دې دَ كوم دَ وجې نه چه دا مؤمن دَ جهادميدان ته وردانګى او ښه جنګ كوى اودَ هغه جذبه دَ نيكو كولوحكم او دَ بدو نه په منع كولو كښې ډير مضبوط وى او په دغه لاركښې په هرمصيبت باندې ښه صبر كوى

② قوى مسلمان هغه دې چه خلقو سره تعلق ساتى دَهغوى ښه رهنمائى كوى او په دغه لاركښې دَ خلقو تكليف برداشت كوى دادَ كناره كش مسلمان نه بهتردې.

③ قوى مسلمان هغه وى چه دَ اسبابو په ځائى مسبب الاسباب ته ګورى چه دَ هغه ايمان دومره مضبوط وى چه هلته دَ اسبابو امكان نه وى دَ ده په مقابله كښې ضعيف مسلمان په اسبابو باندې نظر ساتى دَ هغه يقين كمزورې وى. (كذا في مرقاة بتغير)

**قوله: فَإِنَّ لَوْتَفْتَحُ عَمَلَ الشَّيْطَانِ:**

**د مذكوره جملې مفهوم:** يعنى دَ لوكلمه دَ شيطان دَ عمل دروازه كولاووى مطلب دادې چه لفظ "لو"په قضاء الهى باندې مه داخلوئى چه كه چرې داسې شوې وې نوداسې به كيدل اوكه چرې داسې نه كيدل نوداسې به شوې وې وغيره وغيره ځكه چه په دې سره دَ شيطان عمل شروع كيږى يعنى دَ تقدير الهى مقابله شروع كيږى اودَ شيطان دَ وسوسو دروازه كولاويږى.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۵۲۹۹] کامل توکل سره رزق فراخه کیږي

۵۲۹۹-(۱)[۵] ۱ عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: ۲ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "۳ «لَوْ أَنَّكُمْ تَتَوَكَّلُونَ عَلَى اللّٰهِ حَقَّ تَوَكُّلِهِ ۴ لَرَزَقَكُمْ كَمَا يَرْزُقُ الطَّيْرَ، ۵ تَغْدُو خِمَاصًا وَتَرُوحُ بِطَانًا» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه**: ۱ حضرت عمر بن خطاب رضی الله عنه وايي، ما د رسول الله ﷺ نه دا واوريدل ۲ که تاسو الله جل جلاله باندې توکل او اعتماد وکړي څرنګه چې د توکل حق دی ۴ نو يقيناً هغه به تاسو ته داسې روزي درکوي څرنګه چې مرغانو ته روزي ورکوي ۵ چې هغه مرغان سهار اوږی نسونه (خيټې) وځي او ماښام ته په ډک نس (خيټه) خپلو ځالوته واپس راځي

**حل اللغات**:- ① تَغْدُو: سحر وتل او رزق لټولو ته تغدو وئيلې شوې دې ② خِمَاصًا: دَ خميص جمع ده خالی خيټې ته وائی. ③ تَرُوحُ: دماښام په وخت کښې راتلل ④ بِطَانًا: دَ بطين جمع ده غټې او ډکې خيټې ته وائی.

**تسهيلات:**

**قوله: تَغْدُو خِمَاصًا وَتَرُوحُ بِطَانًا:**

**د رزق په تالاش کښې کوشش کول**: دې نه معلومه شوه چه دَ رزق په لټون کښې سحر وتل يا ماښام وتل منع نه دی اونه دَ توکل خلاف دی دا سعی ده فيصله دَ الله تعالی په لاس کښې ده.

دَدې حديث نه معلومه شوه چه اصل رازق الله تعالی دې. بنده که څه کارکسب کوی نوهغه دَ توکل منافی نه دې. دَ قرآن پاك آيت ﴿وَمَا مِنْ دَآبَّةٍ فِي الْأَرْضِ إِلَّا عَلَى اللّٰهِ رِزْقُهَا﴾ [سورت هود: ۶] دَ انسان دَ سعی اوکسب لټولو خلاف نه دې ځکه چه دَ رزق وعده په دې آيت کښې اجمالی ده. دَ دې تفصيل دادې چه سړې دې اوځی محنت دې کوی، حرکت دې کوی، تجارت دې کوی، دا آيت انسان معطل کولو سره نه کينوی بلکه په تفصيلی مواقعو کښې دَ رزق لټولو دَپاره انسان راپاسوی

**د عزرائيل په يوکس دوه ځله افسوس کول**: ملاعلی قاری رحمه الله دويمه قصه ليکلې ده چه الله تعالی دَ عزرائيل نه تپوس اوکړو چه دَ ساخستلو په وخت ستا په چا باندې ترس هم راغلې دې؟ نو عزرائيل اووئيل چه په يوماشوم باندې مې ترس راغلې وو يوځل چه کله په درياب کښې کشتئی ماته شوه نويو پيئی روونکې ماشوم مور سره پاتې شو. ستا

---

۱) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الزهد عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب فی التوکل علی الله (رقم-۲۳٤٤)وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب التوکل والیقین (رقم-٤١٦٤)

حکم اوشو چه دَ ده دَ مور نه سا واخله ما دَهغې نه سا واخستله اوهغه ماشوم په ژړا باندې پاتې شو په هغه باندې زما ډیر لوئی ترس راغلې وو.

الله تعالی اوفرمائیل چه وړاندې واوره ما هغه یو جزیرې ته اورسولو او یوه ازمرئی مې دَ هغه په پیئو ورکولو باندې مقرر کړو. کله چه داماشوم لږ شان غټ شو نودَ پیریانو په ذریعه مې هغه ته دَ انسانانو خبرې اوخودلې کله چه داماشوم ښه لوئی شو نودې آبادئی ته راغلو تردې چه هغه ته حکومت ملاؤ شو. کله چه مضبوط شو نوهغه دَ خدائیٔ دعویٰ اوکړه دَ هغه نوم شداد وو. "فتبارك الله من هوعالم بأسرار العباد".

**د کانړي په مینځ کښې چینچی ته رزق ورکول:** حضرت مولانا پیر ذوالفقار صاحب دامت فیوضاتهم یوه واقعه بیان کړې ده چې زما یو دوست د سیل دپاره سوات ته تلې وو.هلته هغه ته یوډیرښکلې ګول کانړي په نظر راغلو،په لیدو سره ئې خوښ شو ماشومانو ورته اووئیل چې دا کانړی به ځان سره کور ته یوسو، دوی دا خبره خوښه کړه چې زه د ډیکوریشن او ښائست ذریعه هم ده او بله دا چې د سوات د چکر یادګار به هم وی وائی چې دوه کال ئې دغه کانړی په کور کښې د زیب او زینت دپاره کیښودو وو دوه کاله پس دوئ هغه کانړي راواخستلو او وئ ئیل چې څومره ښکلې کانړې دې په دې کښې ناڅاپه هغه کانړې ئې د لاس څخه راپریوتلو اومات شو دوی ډیر خفه شو خو چې وې کتل نو د کانړي په مینځ کښې یو سورې وو او په هغې کښې یوژوندې چینړې وو.په دې لیدلو سره هغه ډیر حیران شو او وئې وئیل رشتا ده ربه چې ته روزی رسان ئې.

**د کارغه د بچو رزق:** ملاعلی قاری رحمه الله دَدې حدیث لاندې لیکلی دی چه کارغه خپل بچی سپین لیدوسره پریږدی نو الله تعالی مچان دَ دغه بچو طرف ته متوجه کوی. مچ دَهغوی په منبوکه باندې زیروالې کښې خپل رزق لټولو له راځی نودا بچې هغه خوری. تردې چه لوئی شی بیا کارغه راشی دې سنبال کړی.

**[۵۳۰۰] د رزق حاصلولو باره کښې هدایات**

۵۳۰۰–(¹)[۶] ۞ وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: ۞ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "۞ «أَيُّهَا النَّاسُ! لَيْسَ مِنْ شَيْءٍ يُقَرِّبُكُمْ إِلَى الْجَنَّةِ ۞ وَيُبَاعِدُكُمْ مِنَ النَّارِ ۞ إِلَّا قَدْ أَمَرْتُكُمْ بِهِ، ۞ وَلَيْسَ شَيْءٌ يُقَرِّبُكُمْ مِنَ النَّارِ ۞ وَيُبَاعِدُكُمْ مِنَ الْجَنَّةِ ۞ إِلَّا قَدْ نَهَيْتُكُمْ عَنْهُ، وَإِنَّ الرُّوحَ الْأَمِينَ–

**ترجمه :**۞ او حضرت ابن مسعود وایي ۞ چی رسول الله ﷺ وفرمایل ۞ اې خلقو هیڅ شی داسې نشته، چې تاسو جنت ته نزدې ۞ او دوزخ نه مولیري کې ۞ مګر د هغه د اختیارولو حکم ماتاسو ته درکړی دی ۞ اوهیڅ شی داسې نشته،چې تاسودوزخ ته نزدې

¹) اخرجه البیهقی فی شعب الایمان رقم الحدیث ۱۰۴۷۶، والبغوی فی شرح السنه رقم الحدیث ۴۱۱۱

کړي، [۸] او د جنت نه مو لري کړي، [۹] مګر هغه نه ما تاسو منع کړي يي او روح الامين .

**حل اللغات:** - ① يُبَاعِدُكُمْ : چه لرې کړی تاسو ،

[۱] وَفِي رِوَايَةٍ: [۲] وَإِنَّ الرُّوحَ الْقُدُسَ - [۳] نَفَثَ فِي رُوعِي [۴] أَنَّ نَفْسًا لَنْ تَمُوتَ حَتَّى تَسْتَكْمِلَ رِزْقَهَا، [۵] أَلَا فَاتَّقُوا اللَّهَ، [۶] وَأَجْمِلُوا فِي الطَّلَبِ، [۷] وَلَا يَحْمِلَنَّكُمُ اسْتِبْطَاءُ الرِّزْقِ أَنْ تَطْلُبُوهُ بِمَعَاصِي اللَّهِ، [۸] فَإِنَّهُ لَا يُدْرَكُ مَا عِنْدَ اللَّهِ إِلَّا بِطَاعَتِهِ» ". رَوَاهُ فِي (شَرْحِ السُّنَّةِ) وَالْبَيْهَقِيُّ فِي (شُعَبِ الْإِيمَانِ) إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يَذْكُرْ (وَإِنَّ رُوحَ الْقُدُسِ).

**ترجمه** : [۱] او په يوه روايت کې دي، [۲] چې روح القدس [يعنی حضرت جبرائيل] [۳] څما په زړه کې داخبره واچوله، [يعنی ماته يي وحي خفي راوړه] [۴] چې بلا شبه، هيڅ سړی هم هغه وخته پورې نه مري، ترڅو پورې چې هغه دنيا کې خپل رزق پوره نه کړي، [يعنی کوم سړی چې هم دي دنيا ته راځي، هغه خپل رزق پوره کولو نه بغير د دې دنيا نه نه ځي، چې د هغه پيدائش سره د هغه مقدر کې ليکلي دي څرنګه چې حق تعالی دي طرف ته اشاره فرمايلي ده اللّٰهُ الَّذِي خَلَقَكُمْ ثُمَّ رَزَقَكُمْ ثُمَّ يُمِيتُكُمْ، هرکله چې دا معامله ده، چې کوم رزق مقدر شوی دی هغه په هرحال کې ورته حاصليږي] ، [۵] نو ګوری د الله د نافرماني نه ويره کوي [۶] او د حصول معاش سعي او جد وجهد کې نيک روی، او اعتدال اختيار کړي [چې ستاسو رزق تاسو ته جائز او حلال وسائلوا وذرائعو او مشروع طور طريقو سره ورسيږي] ، [۷] او چيرته داسې نه وي، چې رزق رسيدو کې تاخير تاسو دي خبري ته اماده کی چې تاسو د ګناهونو کولو په ذريعه د رزق حاصلولو کوشش شروع کی، [۸] حقيقت دادی چې کوم شی د الله سره دی هغه د طاعت او خوشنودی په ذريعه پيدا کيدي شي، دا روايت بغوي په شرح السنه کې او بيهقي په شعب الايمان کې نقل کړی دی، ليکن بيهقي د إِنَّ رُوحَ الْقُدُسِ، الفاظ نه دي نقل کړي.

**حل اللغات:** - ② نَفَثَ : په پټه طريقې سره پوکې وهلوته نفث وائی. دلته دَ وحی القاء کول اوخبره اچولو په معنی کښې دې. ③ رُوعِي : زړه اونفس ته روع وائی. مراد دادې چه جبرائيل امين دَ پټې وحی په ذريعه سره داخبره رارسولې ده. ⑦ اسْتِبْطَاءُ : روستو کيدل،

**تسهيلات:**

**قوله : لَيْسَ مِنْ شَيْءٍ يُقَرِّبُكُمْ إِلَى الْجَنَّةِ**"

**دجنت او جهنم اسبابو تفصيل بنودل** :يعنی چه کوم اعمال افعال اواقوال جنت ته دَ نيزدې کولودی اودَ دوزخ نه لرې کونکی دی ما تاسو ته دَهغې حکم درکړې دې اوکوم چه دَدې برعکس دی ما تاسو دَهغې نه منع کړی يئی.

**قوله : فَاتَّقُوا اللَّهَ، وَأَجْمِلُوا فِي الطَّلَبِ،**

**د الله تعالی رزق په جائزه طريقه د طلب کولوحکم** :دادَ جمال نه جوړدې يعنی تاسو دَ رزق

په حصول او د معاش په کسب کښې د اعتدال لار اختیاره کړئی په کوم کښې چه د شریعت د حقوق او د حقوق العباد پوره پوره خیال ساتلې شوې وی. په جائز طریقې سره د رزق رسیدو کښې که چرې تاخیراوشی نو ناجائز طریقې مه اختیاروئی. ځکه چه د الله تعالی د طرف نه حلال او خوښ کړې شوې رزق د هغه په اطاعت سره ملاویږی په معصیت سره نه ملاویږی.

**[۵۳۰۱] د زهد حقیقت**

۵۳۰۱-(۱)[۷] ① وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: "«الزَّهَادَةُ فِي الدُّنْيَا لَيْسَتْ بِتَحْرِيمِ الْحَلَالِ② وَلَا إِضَاعَةِ الْمَالِ،③ وَلَكِنَّ الزَّهَادَةَ فِي الدُّنْيَا④ أَنْ لَا تَكُونَ بِمَا فِي يَدَيْكَ أَوْثَقَ بِمَا فِي يَدَيِ اللَّهِ،⑤ وَأَنْ تَكُونَ فِي ثَوَابِ الْمُصِيبَةِ إِذَا أَنْتَ أُصِبْتَ بِهَا أَرْغَبَ فِيهَا لَوْ أَنَّهَا أُبْقِيَتْ لَكَ» " رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، وَعَمْرُو بْنُ وَاقِدٍ الرَّاوِي مُنْكَرُ الْحَدِيثِ.

**ترجمه** : او حضرت ابوذر د رسول الله ﷺ نه روایت کوي حضور ﷺ وفرمایل ② دنیانه زهد اختیارول دانه دي چې حلال څیزونه حرام کړل شي ② او مال واسباب ضائع شي ③ بلکې دنیا نه زهد اختیارول دادي [یعنی ددي دنیا په حقله کامل اومعتبر زهد دادي] چې مال دولت اونور دنیاوي اسباب نه چې څه ستا په لاس کې دي په هغه دهغه څیزونونه زیات اعتماد اوبهروسه مه کوه کوم چې د الله تعالی په لاس کې دي⑤ اوزهد دادی چې ته څه مصیبت کې مبتلا شی نو دطلب ثواب له خاطره هغه مصیبت طرف ته چې تا دپاره باقي وي زیات رغبت ساته. ترمذي ابن ماجه اوترمذي ویلي دي چې دا حدیث غریب دي اوددي یو راوي عمرو ابن واقد منکر الحدیث دي.

**حل اللغات:**- ① الزَّهَادَةُ: بې رغبتی کول، ② أَوْثَقَ: زیات اعتماد، ③ أَرْغَبَ: زیات رغبت والا.

**تسهیلات:**

**قوله: الزَّهَادَةُ فِي الدُّنْيَا لَيْسَتْ بِتَحْرِيمِ الْحَلَالِ**

**د حلالو حراموا وزهد:** یعنی زهد فی الدنیادا نه دې چه سړې په خپل ځان باندې حلال څیزونه مثلاً غوښه میوې وغیره خوندونه حرام کړی لکه څنګه چه عیسائی پادری اوخشك غوندې صوفیان داسې کوی داخود حلالو حراموالې دې چه بالکل ناجائز دې.

**قوله: أَنْ لَا تَكُونَ بِمَا فِي يَدَيْكَ أَوْثَقَ بِمَا فِي يَدَيِ اللَّهِ،**

**د خپل ملکیت څخه زیات د الله په ملکیت باندې اعتماد کول:** اصل زهد دادې چه د انسان په خپل لاس کښې کوم مال او اسباب دی په هغې باندې ئی دومره یقین او اعتماد نه وی

[1] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الزهد عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الزهادة فی الدنیا (رقم-۲۳۴۰) وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب الزهد فی الدنیا (رقم-۴۱۰۰)

څومره يقين او اعتماد چه دَ الله تعالى دَ غيب په خزانو باندې دې. هغه انسان زاهد دې چه دَ الله تعالى دَغيبو په خزانو باندې هغه زيات يقين ساتي.
په دې حديث كښې دَ زهد دا يو صورت بيان كړې شوې دې. دې نه پس دَ زهد دويم صورت دا سې بيان كړې شوې دې.
**قوله:** وَأَنْ تَكُونَ فِي ثَوَابِ الْمُصِيبَةِ إِذَا أَنْتَ أُصِبْتَ بِهَا أَرْغَبَ فِيهَا لَوْ أَنَّهَا أُبْقِيَتْ لَكَ
**د مصيبت په ثواب كښې زيات رغبت كول**: د زهد يو صورت دا دې. چه كله مصيبت راشى نو دَ هغې په بدله كښې چه كوم ثواب ملاويږى تاته دې دَهغه ثواب رغبت دَ هغه مصيبت دَ نه راتلو اوثواب نه ملاويدو نه زيات وى يعنى دَ دغه مصيبت راتلل دې دَ هغې دَ نه راتلونه دې تاته زيات محبوب اومرغوب وى څكه چه په دې باندې ثواب ملاويږى.
**قوله:** لَوْ أَنَّهَا أُبْقِيَتْ لَكَ:
**ابقيت د عدم اصابت په معنى**: كوم لفظ دې دادَ "لم يصب" په معنى كښې دې يعنى دَ مصيبت نه راتلل او دَهغې منع كولو سره دفع كول إبقاء ده. بهرحال دَ زهد دا دواړه صورتونو ښه په ذهن كښې ساتل پكاردى.

**[۵۳۰۲] نفع او نقصان رسونكې ذات صرف الله تعالى دې**

۵۳۰۲-()[۸] ۱ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- قَالَ: ۲ «كُنْتُ خَلْفَ رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَوْمًا فَقَالَ: ۳ "يَا غُلَامُ احْفَظِ اللَّهَ يَحْفَظْكَ، ۴ احْفَظِ اللَّهَ تَجِدْهُ تُجَاهَكَ، ۵ وَإِذَا سَأَلْتَ فَاسْأَلِ اللَّهَ، ۶ وَإِذَا اسْتَعَنْتَ فَاسْتَعِنْ بِاللَّهِ، ۷ وَاعْلَمْ أَنَّ الْأُمَّةَ لَوِ اجْتَمَعَتْ عَلَى أَنْ يَنْفَعُوكَ بِشَيْءٍ لَمْ يَنْفَعُوكَ ۸ إِلَّا بِشَيْءٍ قَدْ كَتَبَهُ اللَّهُ لَكَ،

**ترجمه**: ۱ او حضرت ابن عباس ﷠ وايي، ۲ يوه ورځ (د سفر په دوران كې) زه د رسول الله ﷺ په سورلى د حضور ﷺ پسي وروسته ناست وم چې حضور ﷺ (زه مخاطب كولو سره) وفرمايل ۳ اې هلكه! د الله ﷻ د ټول احكامو امر ونهي خيال ساته، نو الله به هم ستا خيال ساتي ۴ كه ته د الله ﷻ د احكامو فرمانبرداري كولو سره هغه څيزونو باندې عمل كوي چې په هغه د عمل كولو هغه حكم كړى دى او د هغه څيزونو پرهيز كوي د كومو نه چې هغه د منع حكم كړى دى [او ته هروقت او هره معامله كې د هغه د رضا او خوشنودي طالب يې، نو يقيناً الله ﷻ به هم ستا خيال ساتي په دې طور چې تا به په دنيا كې هم د هرقسم آلام او مصيبتونو نه بچ ساتي، او په آخرت كې به دې هم هغه د عذاب د سختى نه محفوظ ساتي، څرنگه چې فرمايل شوي دي، من كان لله كان الله له يعنى كوم

[۱] اخرجه الترمذى فى السنن كتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-۲۵۱۶)واحمد فى المسند: ۲۹۳/۱

سری چې د الله شي، نو الله هم د هغه شي، که د الله جَلَّ جَلَالُهُ د حق خيال ساتي، نو الله جَلَّ جَلَالُهُ به د خان سره پيدا کي يعنې که ته د الله جَلَّ جَلَالُهُ د حقوق ادائيگى هره لمحه يادلري د هغه نظام قدرت کې غور او فکر کوي د هغه د نعمتونو شکر اداء کوي، نو ته د هغه بي انتهاء رحمتونه او د هغه انعامات به خپل مخې ته پيدا کيا ؛ ٥ او هرکله چې سوال کوي، نو صرف د الله جَلَّ جَلَالُهُ مخکې د سوال لاس اوږدوه، ٦ اوهرکله چې ته د دنيا او آخرت څه معامله کې مدد غواړې، نو صرف د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه مدد غواړه. ٧ او په دې پوه سه، که ټول مخلوق [که عوام وي، ياخواص، انبياء وي يا اولياء او آئمه دين وي ياسلاطين دنيا]، ټول يوځای کيدو سره هم تا ته څه نفع رسول وغواړي، [يعنې که بالفرض محال داټول مخلوق په دي خبره اتفاق وکړي، چې ټول يوځای کيدو سره تا ته څه دنيا وي يا اخروي معامله کې څه فائده ورسوي نو هغوئ هيڅکله تا ته څه نفع نشي رسولی] ؛ ٨ علاوه دهغه څيز نه چې الله جَلَّ جَلَالُهُ ستا په مقدر کې ليکلي وي

> ١ وَلَوِ اجْتَمَعُوا عَلَى أَنْ يَضُرُّوكَ بِشَيْءٍ لَمْ يَضُرُّوكَ ٢ إِلَّا بِشَيْءٍ قَدْ كَتَبَهُ اللَّهُ عَلَيْكَ، ٣ رُفِعَتِ الْأَقْلَامُ وَجَفَّتِ الصُّحُفُ» "رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ١ او که د دنيا خلق ټول يوځای شي او تاته څه نقصان او ضرر رسول غواړي نو هغوئ هيڅکله تاته څه نقصان او ضرر نشي رسولی، ٢ علاوه دهغه څيز نه چې الله جَلَّ جَلَالُهُ ستا په مقدر کې ليکلي وي ٣ قلم پورته کولو سره کيخودل شو او صحيفي اوچې شوي دي. (احمد، ترمذي)

**حل اللغات:-** ① جَفَّتِ: اوچې شوی دی. ② الصُّحُفُ: کاغذونه. رُفِعَتِ الْأَقْلَامُ: يعنی کوم احکام چه صادريدل وو هغه ټول ليکلي شوی دی.

**تسهيلات: قوله:** تَجِدْهُ تُجَاهَكَ:

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① که چرې ته دَ الله تعالی دَ حقوق اداکول يعنی دَ هغه عبادت، اطاعت او دَ هغه دَ احکامو په منلو باندې په پابندئ سره عمل کوې نو الله پاك به تا په خپل حفاظت او پناه کښې ساتی او تاسره به په معاملاتو کښې امداد او په مشکل کښې آسانی کوی. او ستا په ارادو او مقصدونو کښې به تاله کاميابی درکوی.

② ته دَ الله تعالی دَ حقوقو ادا کولو دَ هغه دَ تابعدارئ او عبادت پابندئ او دَ هغه دَ رضا او خوشحالولو په طلب کښې مشغول او مستغرق اوسيږه نوهغه وخت به ستانظر الله تعالی لره داسې اوموږی لکه چه هغه ستا مخې ته موجود دې اوهغه ستا دَ امداد اونصرت دَ پاره موجود دې.

**قوله**: وَإِذَا سَأَلْتَ فَاسْأَلِ اللّٰهَ

**د هر حاجت دپاره دالله تعالى څخه سوال کول**: يعني دَ الله نه علاوه دَ بل چا په مخکښې لاس مه خوروه څکه چه دَ ورکړې او بخشش خزانې ټولې دَ هغه سره دی او دَ هغه دَ قدرت په لاس کښې دی. په دنيا او آخرت کښې هرقسم ښيګړه اوهرقسم رحمت چه دررسيږی هغه هم دَ هغه دَ طرف نه رسيږی. او دَ الله تعالى په مخکښې لاس خورول په حقيقت کښې دَ هغه په وړاندې دَ خپلې عاجزئی، بې کسئی او دَ محتاجئی اظهار کول دی کوم چه دَ بندګئی شان دې.

**په غوښتلو د الله تعالى خوشحاليدل**: يو شاعر څه ښه وينا کړې ده:

الله يغضب إن تركت سؤاله　　وابناء آدم حين يسأل يغضب

يعني الله تعالى تانه هغه وخت خفه کيږی کله چه ته دَ هغه نه سوال نه کوې او بنيادم هغه وخت خفه کيږی چه کله ته دَ هغه نه څه سوال کوې.

**قوله**: جَفَّتِ الصُّحُفُ.

**د تقدير څخه فراغت**: دَدې مطلب دادې چه ترقيامته پورې څه کيدونکی دی او دَ چا په حق کښې چه څه پيښيدونکی دی هغه ټول دَ تقدير په کتاب کښې ليکلې شوی دی. کتاب اوچ شو کوم څه چه ليکلې شوی دی هغه نه ورانيدې شی او نه دَ هغې دَ پاسه نور څه ليکلې کيدې شی.

**اشکال**: دا روايت چه قلم اوچتولو سره کيخودې شوې دې او صحيفې اوچې شوی دی دا دَ قرآن آيت ﴿ يَمْحُوا اللّٰهُ مَا يَشَآءُ وَيُثْبِتُ ۚ وَعِنْدَهٗٓ أُمُّ الْكِتٰبِ ﴾ خلاف دې.

**د اشکال دوه جوابونه**: ① محو او إثبات هم په اصل کښې دَهغه څيزونونه دی کوم چه مقدر شوی دی او دَ کوم دَ ليکلو نه پس چه قلم کيخودې شوې دې او صحيفې اوچې شوی دی.

② بعضې حضراتو وئيلی دی چه الله تعالى سره دوه کتابونه دی يو خو په لوح محفوظ کښې دې چه په هغې کښې هيڅ ادل بدل نه کيږی او بل کتاب هغه دې په کوم کښې چه فرښتې دَ خلقو اعمال ليکی او دَ محو او اثبات تعلق هم دې کتاب سره دې. بهرحال په دې حديث کښې دا ترغيب دې چه بنده له دَ حقوق الله او دَ حقوق العباد خيال کول پکار دی او په الله تعالى باندې توکل او يقين او اعتماد ساتل پکاردی او دَ الله تعالى په رضا باندې راضی کيدل پکاردی.

## [٥٣٠٢] دَ انسان د نیک بختئ او بد بختئ علامت

٥٣٠٢-( )[٩] [١] وَعَنْ سَعْدٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "[٢] «مِنْ سَعَادَةِ ابْنِ آدَمَ رِضَاهُ بِمَا قَضَى اللهُ لَهُ، [٣] وَمِنْ شَقَاوَةِ ابْنِ آدَمَ تَرْكُهُ اسْتِخَارَةَ اللهِ، [۴] وَمِنْ شَقَاوَةِ ابْنِ آدَمَ سُخْطُهُ بِمَا قَضَى اللهُ لَهُ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

ترجمه: [١] او حضرت سعد وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] د ابن آدم (انسان) نيک بختي داده، چې الله ﷻ د هغه مقدر کې څه ليکلي دي، په هغه راضي شي، [٣] او د ابن آدم بدبختي داده، چې هغه د الله ﷻ نه خير او نيکي غوښتل پريږدي، [۴] او د ابن ادم بدبختي نه داهم ده، چې الله د هغه په مقدر کې څه ليکلي دي، په هغه ناراضه وي.
داروايت احمد او ترمذي نقل کړی دی او ترمذي ويلي دي چې داحديث غريب دی.

**حل اللغات:-** ① سَعَادَةِ: نيک بختی، ② شَقَاوَةِ: بدبختی.

**تسهيلات:**

**قوله: تَرْكُهُ اسْتِخَارَةَ اللهِ،**

**د استخارې ترغيب:** په دې جمله کښې دَ استخاره کولو ترغيب طرف ته هم اشاره کيدې شی. دَ استخارې په ترغيب کښې يو عجيبه حديث دې فرمائی: «ماخاب من استخار ولاندم من استشار ولاعال من اقتصد» دَ استخاره کونکې ناکام کيږی، مشورې والا پښيمانه کيږی نه او ميانه رو فقير کيږی نه.

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① په دې کښې سين او تاء دَ طلب دَپاره دی يعنی خير او شر نفع اوضرر دواړه دَ الله تعالی دَ تقدير فيصلې دی ليکن انسان له پکاردی چه هروخت دَ الله تعالی نه دَخير اودَ نيکئ طلبګاروی نيکی نه طلب کول او دَ دې سوال پريخودل دَ انسان دَ بدبختئ علامت دې.

② دَ انسان دَ خوشبختئ علامت دا دې چه په هغه څيز باندې راضی اوخوشحال پاتې شی کوم چه الله تعالی دَهغه دَپاره خوښ کړې دې. دَ الله تعالی په فيصله باندې خفه کيدل دَبدبختئ علامت دې. لهذا هغه له پکاردی چه هروخت دَ الله تعالی نه دَخير غوښتونکې وی.

**داستخارې آسان طريقه:** دَ استخاره کولو يوه طريقه خو معروف ده کوم چه په کتابونو کښې ليکلې شوې ده. مګر يو مختصر طريقه دا هم ده چه سړې دا کلمات دَ استخارې په نيت سره اووائی. "اللّٰهُمَّ خِرْلِيْ وَاخْتَرْلِيْ فَلَاتَكِلْنِيْ إِلَى اِخْتِيَارِيْ"

[١] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب القدر عن رسول الله صلی الله عليه وسلم /باب ما جاء فی الرضا بالقضاء (رقم-٢١٥١) واحمد فی المسند: ١/١٦٨

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [٥٣٠٤] په الله تعالى باندې د کامل اعتماد اثر

٥٣٠٤-()[١٠] ① عَنْ جَابِرٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- ② «أَنَّهُ غَزَا مَعَ النَّبِيِّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قِبَلَ نَجْدٍ، ③ فَلَمَّا قَفَلَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَفَلَ مَعَهُ، ④ فَأَدْرَكَتْهُمُ الْقَائِلَةُ فِي وَادٍ كَثِيرِ الْعِضَاهِ، ⑤ فَنَزَلَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ⑥ وَتَفَرَّقَ النَّاسُ يَسْتَظِلُّونَ بِالشَّجَرِ، ⑦ فَنَزَلَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ⑧ تَحْتَ سَمُرَةٍ فَعَلَّقَ بِهَا سَيْفَهُ ⑨ وَنِمْنَا نَوْمَةً،

**ترجمه:** حضرت جابر رضي الله عنه نه روایت دی ② چې هغه رسول الله ﷺ سره په یو جهاد کې شریك وو، چې د نجد اطرافو کې شوی وو، ③ او کله چې رسول الله ﷺ د جهاد نه فارغه شو او واپس راغلو نو حضرت جابر رضي الله عنه هم ورسره راغلو، [د دې سفر په دوران کې دا واقعه پېښه شوه] ④ چې یوه ورځ صحابه رضي الله عنهم د غرمې په وخت یو داسې جنګل ته ورسیدل، چې په هغه کې د کیکر زیاتې ونې وې، ⑤ نو رسول الله ﷺ صحابه وو سره هلته خکته شول، ⑥ او ټول خلق د و نوسایي په تلاش کې اخوا دیخوا خواره شوه [یعنی هرسړی د یوې یوې ونې د سایې لاندې آرام د پاره پریوتی] ⑦ رسول الله ﷺ د یوې لوی ونې لاندې پریوتی، ⑧ او خپله توره یې د هغه ونې په څانګه کې وځوړندوله. ⑨ حضرت جابر وایې مونږ خلق لږ شان اوده شوي وو،

**حل اللغات:** - ① نَجْدٍ: دَزمکې اوچتې حصې ته نجد وائي. دلته د عربو د حجاز علاقې مراد دی. ② قَفَلَ: راواپس شو، ③ الْقَائِلَةُ: قیلولې ته قائله وئیلې شوې ده. ④ الْعِضَاهِ: دَ کیکر اونه. ⑤ يَسْتَظِلُّونَ: سوری، سایه ئې تلاش کوله،

① فَإِذَا رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَدْعُونَا، ② وَإِذَا عِنْدَهُ أَعْرَابِيٌّ فَقَالَ: ③ "إِنَّ هٰذَا اخْتَرَطَ عَلَيَّ سَيْفِي وَأَنَا نَائِمٌ، ④ فَاسْتَيْقَظْتُ وَهُوَ فِي يَدِهِ صَلْتًا. ⑤ قَالَ: مَنْ يَمْنَعُكَ مِنِّي؟ ⑥ فَقُلْتُ: اللّٰهُ، ثَلَاثًا" ⑦ وَلَمْ يُعَاقِبْهُ، وَجَلَسَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① چې ناخاپه مونږ واوریدل، چې رسول الله ﷺ مونږ ته اواز کوي، [نو مونږ خلق خپل ځای نه اودریدو سره رسول الله ﷺ ته ورسیدو] ، ② چې ګورو حضور ﷺ سلامت دی، او هلته رسول الله ﷺ سره یو بانډچي (کلیوال) کافر موجود دی حضور ﷺ زمونږ جمع کیدو سره وفرمایل، ③ دا بانډچي (کلیوال) هغه وخت چې زه اوده وم، په ما ځما توره اوخکلو سره ودریدی، ④ او هرکله چې ځما سترګې وغړیدی نو ماولیدی، چې برښده (بغیر تیکی) توره د ده په لاس کې ده، ⑤ ده ماته اوویل اوس به تا زما نه څوك

[1]) اخرجه البخاری فی کتاب الجهاد والسیر/باب من علق سیفه بالشجر فی السفر عند القائلة (رقم-٢٩١٠) ومسلم فی کتاب الفضائل/باب توکله علی الله تعالی، وعصمة الله تعالی له من الناس (رقم-١٣ - (٨٤٣) واحمد فی المسند:٣/٣٦٥

خلاصوي، [۶] ما سمد ستي جواب ورکړو، خما الله به ما خلاصوي حضور ﷺ داخبره دري ځلي وکړله، د [۷] او هغه باندې چي (کليوال) ته يي هيڅ سزا ورنه کړل، بيا حضور ﷺ کينا ستی (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:-** ⑨ اخْتَرَطَ : دَ وژلودَپاره توره راويستلو ته اختراط وائی. ⑥ صَلْتًا: دَ تيکی نه بربنډه توره ويستلو ته صلتا وائی.

**تسهيلات:**

**قوله : غَزَامَعَ النَّبِيِّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قِبَلَ نَجْدٍ"**

**د نجد محل وقوع :** دَنجد علاقه په اوچته زمکه باندې واقع ده دَدې مقابل تهامه ده کومه چه په ښکته زمکه کښې واقع ده. پخوانئی زمانه کښې نجد ډېره مختصر علاقه وه مګر اوس دَ جزيرة العرب ټولې مينځمې علاقې ته نجد وئيلې کيږي. دکوم چه انتهائی طول يعنی اوږدوالي تقريباً ۸ سوا ميله دې او پلنوالې تقريباً پاؤ باندې دووه سوا ميله دې. نن صبا دَ سعودی حکومت کښې رياض او دې طرف ته ټولې علاقې په نجد کښې راځی او په سعودی باندې هم دَدغه قبائلو حکومت دې کوم چه نجدی دی.

**قوله : فَقُلْتُ: اللّٰهُ، ثَلَاثًا:**

**د الله د نوم اثر :** لفظ الله سره حضورپاك په دغه سړی باندې جلالی توجه واچوله نو په هغه باندې رچ شروع شو اودَ لاس نه ئی توره پريوتله.

**[۵۳۰۵] بچ کونکی او حفاظت کونکي ذات صرف يو الله دي**

> ۵۳۰۵-()[۱] وَفِي رِوَايَةِ أَبِي بَكْرٍ الْإِسْمَاعِيلِيِّ فِي (صَحِيحِهِ)[۲] «فَقَالَ: مَنْ يَمْنَعُكَ مِنِّي؟[۳] قَالَ: (اللّٰهُ)[۴] فَسَقَطَ السَّيْفُ مِنْ يَدِهِ،[۵] فَأَخَذَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- السَّيْفَ فَقَالَ:[۶] "مَنْ يَمْنَعُكَ مِنِّي؟"[۷] فَقَالَ: كُنْ خَيْرَ آخِذٍ.[۸] فَقَالَ: "تَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ، وَأَنِّي رَسُولُ اللّٰهِ؟"[۹] قَالَ: لَا،[۱۰] وَلٰكِنِّي أُعَاهِدُكَ عَلَى أَنْ لَا أُقَاتِلَكَ وَلَا أَكُونَ مَعَ قَوْمٍ يُقَاتِلُونَكَ[۱۱] فَخَلَّى سَبِيلَهُ،[۱۲] فَأَتَى أَصْحَابَهُ، فَقَالَ: جِئْتُكُمْ مِنْ عِنْدِ خَيْرِ النَّاسِ». هٰكَذَا فِي (كِتَابِ الْحُمَيْدِيِّ) وَفِي (الرِّيَاضِ).

**ترجمه :** [۱] او په هغه روايت کې چې ابوبکر اسماعيلي خپل صحيح کې نقل کړی دی، د ده الفاظ دي، [۲] چې هغه باندچي (کليوال) حضور ﷺ باندې توره را خکلو سره وويل، اوس به تا زما نه څوك بچ کوي؟ [۳] حضور ﷺ وفرمايل الله به مي بچ کوي، [۴] په دي اوريدو سره باندچي (کليوال) د لاس نه توره ولويده [۵] حضور ﷺ توره پورته کړه او وي فرمايل که زه تاقتلول غواړم، [۶] نو وښايه چې اوس به تا زما نه څوك بچ کوي؟ [۷]

[1] اخرجه البخاری فی کتاب الجهاد والسير/باب تفرق الناس عن الإمام عند القائلة. والاستظلال بالشجر (رقم-۲۹۱۳) ومسلم فی کتاب الفضائل/باب توکله علی الله تعالی، وعصمة الله تعالی له من الناس (رقم-۱۳ - (۸٤۳) واحمد فی المسند:۳۹۰/۳

باندې (کلیوال) جواب ورکړو تاسو ښه آخستونکي شی [یعنی ستا د شان نه خو ځما دا امید دی چې زما د پاره به انتقامي کار وايي نشي کولی، او تاسو به ما د لطف وکرم د مخې معاف کړیا.]⑧ حضور ﷺ ورته وفرمایل، ښه دی د دې خبرې ګواهي کوې، چې د الله نه سوا بل معبود نشته، او بلا شبهه زه د الله رسول یم. [ګویا حضور ﷺ هغه ته دا وفرمایل، که ستا په ماباندې د ومره زیات اعتماد دی، نو بیا یقینًا په دې خبره به هم ښه پوهیږې چې ځما دعوت اسلام بالکل برحق او صداقت باندې مبني دی. په دې صورت کې خو تاته پکار دی، چې کلمه اووائې، او مسلمان شې.]⑨ باندې (کلیوال) اوویل زه خو مسلمانیدی نشم،⑩ البته تاسو سره دا وعده ضرور کوم، چې نه به خپله درسره جنګ کوم اونه به هغه خلقوسره ملګري کېږم، کوم چې ستاسو سره جنګ کوي.⑪ بهرحال حضور ﷺ هغه باندې (کلیوال) پریخودلو.⑫ او کوم وخت چې هغه باندې (کلیوال) خپل قوم ته رالی، نو هغه اوویل، زه تاسو ته دیوداسې سړي د طرفه راغلی یم چې تولو نه ښه انسان دی. د بخاري او مسلم مذکوره بالاروایات د دې الفاظو اضافي سره کتاب حمیدي اود امام محي الدین نووي په تصنیف، ریاض الصالحین کې هم منقول دی

**تسهیلات:**

**قوله: فَسَقَطَ السَّيْفُ مِنْ يَدِهِ:**

**دَ حدیث نه مستنبط فوائد:** ① په ونه وغیره کښې توره او وسله دَ حفاظت په غرض زوړندول صحیح دی او دا امر معمول به دې. او په سنت کښې دَ دې اصل موجود دې.

② دَ شپې او قیلولې په وخت کښې دَ امام اوْ سلطان حفاظت کول په خلقو باندې واجب او ضروری دی اودَ دې خبرې خیال نه ساتل غلطی او امر قبیح دې.

③ دَ حدیث باب نه دَ رسول الله ﷺ دَ صبر او برداشت پته لګی چه سره دَ دې خبرې چه هغوی ﷺ ته دَ دغه اعرابی نه دَ بدلې اخستلو طاقت حاصل وو لیکن حضور ﷺ معاف کړلو. جاهلانو سره هم دغه طریقه اختیارول پکار دی.

④ دَ مصنف ابن ابی شیبه رحمه الله دَ روایت نه معلومیږی چه دَ حدیث واقعه دَ آیت مبارک

﴿والله يعصمك من الناس﴾

دَ نزول سبب جوړ شوې وو، حضرت ابوهریره رضي الله عنه فرمائی:

((كنا إذا نزلنا طلبنا للنبي صلى الله عليه وسلم أعظم شجرة وظلها قال: فنزلنا تحت شجرة فجاء رجل وأخذ سيفه فقال: يا محمد من يمنعك مني؟ قال: الله، فأنزل الله: ﴿والله يعصمك من الناس﴾.

یعنی چه کله به یو ځایْ کښې کوزیدو نو دَ نبی ﷺ دَپاره به مو لویه ونه اودَ دې سورې لټولو نو یوځل موږ دَ یوې ونې لاندې اوده شو نو یو سړې راغلو اوهغه دَ حضور ﷺ

توره راوچته کړه او ونی وئیل اې محمد مانه به تاخوك بچ کوی؟ نو نبی ﷺ اوفرمائیل الله! الله تعالی دا آیت نازل کړو ﴿والله یعصمك من الناس﴾.
او دَ نبی اکرم ﷺ دَ حراست او حفاظت په سلسله کښې تفصیلي بحث روستو تیرشو.

**[۵۳۰۶] تقوی سره د رزق لارې کهلاویږی**

۵۳۰۶-( )[۱] ۞ وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ۞ «إِنِّي لَأَعْلَمُ آيَةً لَوْ أَخَذَ النَّاسُ بِهَا لَكَفَتْهُمْ: ۞ ﴿وَمَنْ يَتَّقِ اللَّهَ يَجْعَلْ لَهُ مَخْرَجًا وَيَرْزُقْهُ مِنْ حَيْثُ لَا يَحْتَسِبُ﴾ [الفاتحة: ۲-۸۸۷]» رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَابْنُ مَاجَه، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه**: ۞ او حضرت ابوذر ﷺ نه روایت دی، چې رسول الله ﷺ وفرمایل. ۞ بلاشبه زه داسې آیت پیژنم که خلق په دې آیت باندې عمل وکړي نو د هغوئ په حق کې دایو آیت کافي کیږي ۞ وَمَن يَتَّقِ اللهَ......الخ کوم سړی چې د الله نه ویریږي، نو الله ﷻ د هغه د پاره د دنیا او آخرت د غمونو نه د نجات لار پیداکوي، او هغه ته دداسې ځای نه د محنت او مشقت او فکرو تردد نه بغیر، روزي ورکوي، چیرته چې دهغه وهم او گمان هم نه کیږي (ابن ماجه، دارمي)

**حل اللغات**:- ① مَخْرَجًا: ځائې د وتل، د نجات لاره،

**تسهیلات**:

**قوله**: وَمَن يَتَّقِ اللهَ يَجْعَل لَّهُ مَخْرَجًا ۙ وَيَرْزُقْهُ مِنْ حَيْثُ لَا يَحْتَسِبُ:

**دَ مذکوره آیت شان نزول**: دَحضرت عبدالله بن عباس ﷺ نه روایت دې چه عوف بن مالك اشجعی ﷺ دَ رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو اوعرض ئې اوکړو چه زما خوئې سالم دښمنانو گرفتارکړو بوئې تللو. دَهغه مور سخته پریشانه ده ماله څه کول پکاردی رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه زه تاته اودَ هلك مور ته دا حکم درکوم چه تاسو په کثرت سره لاحول ولاقوة الا بالله لولئی. دې دواړو دَحکم تعمیل اوکړو په کثرت سره ئې دغه کلمه لوستله دَدې دا اثر اوشو چه کوم دښمنانو هغه هلك قید کړې وو هغوی یوه ورځ لږ شان غافل شو اوهلك دَهغوی دَ قید نه په څه طریقه راؤوتلو اودَهغوی څه چیلئی ئې ځان سره راؤشړلې رائی وستلې اوخپل پلار له راغلو بعض روایاتوکښې دی چه دَهغوی یو اوښ هغه ته ملاؤشو په هغې سور شو او نور اوښان ئې ځان سره کړل تول ئې پلار له راؤرسول دَهغه پلار دَدې خبر سره دَ حضورپاك په خدمت کښې حاضرشو. او بعض روایاتوکښې دی چه دا سوال ئې هم اوکړو چه دا اوښان اوچیلئی کوم چه زما خوئې ځان

[۱] اخرجه ابن ماجه فی السنن کتاب الزهد/باب الورع والتقوی (رقم-۴۲۲۰)واحمد فی المسند: ۲۴۸/۱ والدارمی فی السنن رقم ۲۷۲۵

سره راوستلې دی دا زمونږ دپاره جائز اوحلال دی که نه په دې باندې دا آیت نازل شو ﴿وَمَن يَتَّقِ اللَّهَ﴾ الایه [1]

**د تقوی لغوی معنی:** دَ لفظ تقوی اصلی اولغوی معنی دَ بچ کیدلو ده

**د تقوی اصطلاحی تعریف:** دَ شریعت په اصطلاح کښې د ګناهونونه د بچ کیدلو دپاره دا لفظ وئیلې شی اوکله چه دَالله تعالی طرف ته اضافت او نسبت کیږی نوترجمه دالله تعالی نه دَ ویریدلو کولې شی اومطلب دا وی چه دَالله تعالی دَ نافرمانئی اومصیبت نه بچ شئی او اوویریږئی ؟

**د تقوی دوه برکتونه:** په دې آیت کښې دَ تقوی دوه برکتونه بیان کړې شوی دی

① تقوی اختیارونکی دپاره الله تعالی دَبچ کیدلو لار راوباسی دَ یوخیزنه بچ کیدل. په دې کښې صحیح خبره داده چه داعام دی دَ دنیادَ ټولومشکلاتو اومصیبتونودپاره هم اودَ آخرت دَ ټولو مشکلاتو او مصیبتونودپاره هم اودَ آیت مطلب دادې چه الله تعالی دَمتقی یعنی دَ ګناهونونه دَ بچ کیدونکی سړی دپاره دَ دنیا اوآخرت دَهرمشکل نه دَخلاصی لار راوباسی.

② متقی ته دَداسې ځائی نه رزق ورکوی دکوم ځائی نه چه دَ هغه خیال اوګمان هم نه وی صحیح خبره داده چه دلته دَ رزق نه مراد هردَ ضرورت څیز دې که هغه دَ دنیا وی اوکه دَ آخرت وی دَمؤمن متقی دَپار دَالله تعالی وعده په دې آیت کښې ده چه دَهغه هرمشکل هم آسانوی اودَ هغه ضرورتونه هم پوره کوی. اودَ داسې لارونه دَهغه ضرورتونه راپیداکوی دکوم چه دَ هغه وهم اوګمان هم نه وی. [کذا فی الروح] [2]

**[۵۳۰۷] رازق صرف الله دې**

۵۳۰۷-(۳) [۱۳] ① وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ-رَضِيَ اللهُ عَنْهُ-قَالَ: ② «أَقْرَأَنِي رَسُولُ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-إِنِّي أَنَا الرَّزَّاقُ ذُو الْقُوَّةِ الْمَتِينُ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابن مسعود رضی الله عنه وایي، ② چې رسول الله ﷺ ماته دا آیت وښووی إِنِّي أَنَا الرَّزَّاقُ...الخ. یعنی اې انسانه پوه شه چې بلاشبه زه رزق ورکونکی یم او غالب طاقت والایم. (ابوداؤد، وترمذي) اوترمذي ویلي دي، چې دا حدیث حسن صحیح دی

**حل اللغات:** - ① ذُو الْقُوَّةِ: طاقت والا، ② الْمَتِينُ: مضبوط، غالب

[1] جامع العلوم والحكم لإمام ابن رجب الحديث التاسع عشر: [ج: ۲۱ ص:۴۱]
[2] روح المعاني [ج: ۲۱ ص:۶۸]
[3] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب القراءات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب: ومن سورة الذاریات (رقم-۲۹۴۰)

**تسهیلات:**

**قوله:** إِنِّي أَنَا الرَّزَّاقُ ذُو الْقُوَّةِ الْمَتِينُ"

**د آیت دوه قرآءتونه:** ① دا قرات شاذ دي مشهورقرات په قرآن کښې داسې دي ﴿إِنَّ اللَّهَ هُوَ الرَّزَّاقُ ذُو الْقُوَّةِ الْمَتِينُ﴾

② په شروع کښې آیت هم داسې وو لکه څنګه چه ابن مسعود رضي الله عنه اووئیل روستو یا آیت منسوخ شو یا شاذ شو

**[۵۳۰۸]دَ دینی زده کړې دَ وجې هم الله تعالی رزق ورکوی**

۵۳۰۸-( )[۳] ۱ وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: «كَانَ أَخَوَانِ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ۳ فَكَانَ أَحَدُهُمَا يَأْتِي النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-، ۴ وَالْآخَرُ يَحْتَرِفُ، ۵ فَشَكَا الْمُحْتَرِفُ أَخَاهُ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-، ۶ فَقَالَ: "لَعَلَّكَ تُرْزَقُ بِهِ"». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت انس رضي الله عنه وايي، ۲ د رسول الله ﷺ په زمانه کې دوه ورونه وو. ۳ چې په هغوئ کې يوخو د نبي کريم ﷺ په خدمت کې اوسيدی، [ځکه چې د هغه اهل وعيل نه وو او هغه د حصول معاش ذمه واري نه بي فکر کيدو سره طاعت او عبادت او ديني خدمت کې مشغول وو، په دي وجه د هغه اکثره وخت بارګاه رسالت کې د حاضر بـنې په ذريعه حصول علم او د معرفت کې صرف کيدی] ۴ او دويم ورور څه کار کوی ايعنی حصول معاش د پاره د څه هُنر اوکاروبار په ذريعه يي ګټه کوله. او دواړو ورونو به يوځای خوړل څکل کول]

۵ نو ګټه کونکی د خپل دويم ورور باره کې رسول الله ﷺ ته شکايت وکی. [چې څما ورور نه خو زماسره څماپه کار کې راسره مدد کوی، او نه په خپله څه کار کوي. او دغه شان د خوراك څکاك بوج يي زه برداشت کوم] ، ۶ حضور ﷺ د هغه دا شکايت اوريدو سره وفرمايل کيدي شي چې تاته د هغه د برکته رزق درکولی شي. دا روايت ترمذي نقل کړی دی او ويلي يي دي چې داحديث صحيح غريب دی

**حل اللغات:-** ① أَخَوَانِ دوه ورونړه. ② يَحْتَرِفُ د احتراف نه دي حرفه کار روزګار او کاريګرئ ته وائی ③ فَشَكَا نو شکايت اوکړو

**تسهیلات:**

**قوله:** فَشَكَا الْمُحْتَرِفُ أَخَاهُ"

**د کاسب ورور د طالب ورور باره کښې شکایت:** دا دوه رونړه په مدينه منوره کښې اوسيدل يو به کار روزګار کولو اودَ کورخرچه به ئې برداشت کوله او دويم دَ اصحاب صفه طالب

---

[۱]) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الزهد عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب فی التوکل علی الله (رقم-۲۳۴۵)

علم وو دَ حضورپاك درس او مجلس كښې به ناست وو ښكاره خبره ده چه دَ هغه به ټول وخت دَ علم په حصول كښې خرچ كيدلو دَ هغه رور شكايت اوكړو چه زما رور كار روزگار نه كوى زه يوازې يم دَ كور بوج زيات دې كه چرې دې هم ماسره په كار كښې شريك شى نوزمونږ حالت به لږ شان ښه شى تاسو دې ماسره كړئى چه دې هم گټه وټه كوى او مونږ ټول ئى خورو دَ شكايت لاندې داټول ځيزونه راتلې شى اگرچه په ژبه باندې هغه صرف دَ شكايت په لهجه كښې اشاره كړې وى عوام ډير هوښيار وى دَهغوى دَ اشارونه شاته لويه منصوبه وى مگر دنياوى منصوبه وى دَ نن صبا عامې معاشرې هم دغه خيال دې چه دَ دې دينى مدارسو نظام بې كاره دې په دې كښې سبق ويونكى طالب علم بې كاره دى، فضول ناست دى، وخت ضائع كوى وغيره وغيره

**قوله**: لَعَلَّكَ تُرْزَقُ بِهِ"

**د ديندارۍ په وجه درزق ملاويدل**: يعنى نبى كريم ﷺ دَ دغه سړى دَ پوره منصوبې اندازه اولگوله نوحضورپاك هغه ته دَ اقتصادى اومعاشى گټې په حوالې سره جواب وركړو مطلب دا چه ته دا ولې گنړې چه تاسو ته كوم رزق ملاويږى هغه ستاسو دَمحنت او گټې دَ وجې ملاويږى تاسو داسې خيال ولې نه كوئى چه دَدې طالب علم دَخدمت كولو په بركت سره الله تعالى تاسو ته رزق دركوى نو په دې صورت كښې ستاسو دَ شكايت او احسان كولو هيڅ وجه نشته دې. تاسو له خودَه احسان منل پكاردى چه دَ ده په وجه ستاسو په مال كښې بركت راځى. دَدې حديث نه معلومه شوه چه دَ دينى علومو دَ حصول دَپاره دَ دنيانه ځان ددې ته كول جائز دى اودا هم معلومه شوه چه كمزورو او دَ ضرورت مندو كسانو په كفالت سره په مال كښې بركت راځى په يوروايت كښې دى «إنما تأكلون بضعفائكم»

**[۵۲۰۹]په توكل سره د ټولو كارونو سميدل**

۵۲۰۹-()[۱۳] [۱] وَعَنْ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: [۲] قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: " [۳] «إِنَّ قَلْبَ ابْنِ آدَمَ بِكُلِّ وَادٍ شُعْبَةٌ، [۴] فَمَنْ أَتْبَعَ قَلْبَهُ الشُّعَبَ كُلَّهَا [۵] لَمْ يُبَالِ اللَّهُ بِأَيِّ وَادٍ أَهْلَكَهُ، [۶] وَمَنْ تَوَكَّلَ عَلَى اللَّهِ كَفَاهُ الشُّعَبَ» ". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه** : او حضرت عمرو ابن عاص رضی الله عنه وايي، [۲] چي رسول الله ﷺ وفرمايل [۳] بلاشبه د انسان زړه د پاره هرجنگل كې يوښاخ او يوه گوښه ده. (يعني د انسان زړه او د هغه جبلت كې) اد رزق اسباب وذرائع او د هغه د حصول تعلق سره قسم قسم فكرونه او غمونه وي). [۴] كوم سړى چي خپل زړه دې ښاخونو او گوښو طرف ته متوجه وساتى. [يعنى هغه

() اخرجه ابن ماجه فى السنن كتاب الزهد/باب التوكل واليقين (رقم-۴۱۶۶)

خپل زړه به دي تفکراتو او غمونو کې مشغول وساتي، او د پریشان حالي ښکار شوا.
[٥] نو الله ﷻ ته هیڅ پرواه نشته، چې هغه په کومه کنده کې هلاك کړي ایعني هرکله چې هغه سړی به الله ﷻ باندې توکل او اعتماد نه بې پروا کیدو سره تو له توجه خپل ذاتي تدبیر او کوشش کی مشغول ساتي، نو بیا الله ته څه پروا ده، چې هغه څرنګه هلاکت او تباهي کی مبتلا کړي، او د دې دنیا نه په کومه مشغله کې رخصتیږي، او په کوم حالت کې وریاندی مرګ راځي) [٦] او کوم سړی چې الله ﷻ باندې توکل او اعتماد وکړي او خپل تول کارونه یې هغه ته وسپارل، نو الله ﷻ د هغه د ټول کارونو درست کولو د پاره کافي کیږي ایعني د الله ﷻ مدد او رحمت د هغه د زړه او دماغ، پریشان حالي او د ضروریاتو د تکمیل د پاره اخوا دیخوا ګرځیدو او د قسما قسم جسماني محنت او مشقت د غم نه نجات ورکوي) (ابن ماجه)

**حل اللغات** - ① شُعْبَةٌ خانګه. ② كَفَاهُ کافي کیږي ده لره

**تسهیلات**:

**قوله**: إِنَّ قَلْبَ ابْنِ آدَمَ بِكُلِّ وَادٍ شُعْبَةٌ -

**د ژوند د ضروریاتو د لټون په اعتبار سره دانسانانو دوه قسمونه**: ① یعني د انسان د زړه د یو نه یو څ او د هغه د سوچ او خیال څه نه څه لار د رزق په لټون کښې په هره وادئی او هردښت او بیابان کښې تقسیم شوې ده یعنی هغه ته دا فکر لګیدلې وی چه څنګه او د کوم ځای نه به ګټه کوم؟ بیا کله په عملی توګه باندې په دغه وادیانو کښې د آخرت نه غافل کیدو سره اوځی او سروهلې بروهلې ګرځی او ناڅاپی هلاك شی نو د الله تعالی هیڅ پرواه نه وی چه دا غافل او د دنیا عاشق په کومه وادئی کښې هلاکیږی

② بل هغه انسان چې د خپل ژوند مقصود آخرت جوړکړی او د الله تعالی په عبادت کښې اخته شی نود دغه ټولو وادیانو د منډو تړرو نه به محفوظ پاتې شی او د هرې وادئی د پاره به الله تعالی کافی شی

**[٥٢١٠] دټولو بندګانو د فرمانبرداری برکات**

٥٢١٠-(١) [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- [٢] أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: " [٣] «قَالَ رَبُّكُمْ عَزَّ وَجَلَّ: لَوْ أَنَّ عَبِيدِي أَطَاعُونِي [٤] لَأَسْقَيْتُهُمُ الْمَطَرَ بِاللَّيْلِ، [٥] وَأَطْلَعْتُ عَلَيْهِمُ الشَّمْسَ بِالنَّهَارِ، [٦] وَلَمْ أُسْمِعْهُمْ صَوْتَ الرَّعْدِ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه**: او حضرت ابوهریره ؓ وایي، [٢] رسول الله ﷺ وفرمایل [٣] ستاسو بزرګ او برتر پرودرګار فرمایي [٤] که څما بندګان څما فرمانبرداري کوي (یعني څما په ښودلي لار

١) اخرجه احمد في المسند: ٢/٣٥٩

خي، او خما د رضا او خوشنودي خلاف څه کار نه کوي،۴ نو يقينا زه به په هغوئ د شپې باران وروم، [چې د راحت او آرام په خوب اوده شي] ۵ او د ورځې به باندې د نمر د رڼا خادر غوړوم چې خپل کار کې مشغول وي. اوکه شپه وي، که ورځ وي. ٦ هغوئ ته به د وريځې د ګړزهاري اواز ونه اوروم. [چې نه خو د هغوئ خوب او آرام کې خلل راځي. او نه هغوئ ويريږي. او د ويرې په وجه خپل کار روزګار کې څه نقصان سره مخ نشي]

**حل اللغات:** - ① لَأَسْقَيْتُهُمْ: خروب به کړم دوی. يعنی اوبه وروم په دوی ② الْمَطَرَ باران. ③ صَوْتَ آواز. ④ الرَّعْدِ ګړزاري. وريځ

**تسهيلات:**

**قوله:** لَوْأَنَّ عَبِيدِي أَطَاعُونِي لَأَسْقَيْتُهُمُ الْمَطَرَ بِاللَّيْلِ"

**د شپې باران او د ورځې نمر:** دَدې اطاعت نه عام اطاعت مراد دي ليکن د دې په ضمن کښې توکل او صبرهم داخل دي کوم چه دلته مقصود دي دَداسې حکم منونکوباره کښې ئې اوفرمائيل که چرې دَ دوی پوره معاشره په اطاعت باندې راشی نوددوی د ضرورت مطابق به دَ شپې باران کيږی چه دَ پړق پړوق ويره دوی ته نه وی اودَ ورځې به نمر راوځی چه دَدوی په کاروزګارکښې خلل پرينوځی دَ شپې ورځې موسم به دَهغوی دَ پاره سازګار شي داسې معلوميږی چه دا فيصله دَ عام کسانودَ خواعمالو نتيجه وی دَ شخصی ژوند دا اثرنه وی او کله کله شخصی کسانوسره شخصی معامله کيدې شی

**[۵۳۱۱] دَصبر اوتوکل يوه عجيبه واقعه**

٥٣١١-()[١] ① وَعَنْهُ، قَالَ: ② «دَخَلَ رَجُلٌ عَلَى أَهْلِهِ، ③ فَلَمَّا رَأَى مَا بِهِمْ مِنَ الْحَاجَةِ ④ خَرَجَ إِلَى الْبَرِّيَّةِ، ⑤ فَلَمَّا رَأَتِ امْرَأَتُهُ قَامَتْ إِلَى الرَّحَى فَوَضَعَتْهَا، ⑥ وَإِلَى التَّنُّورِ، فَسَجَرَتْهُ ثُمَّ قَالَتْ: اللَّهُمَّ ارْزُقْنَا، فَنَظَرَتْ ⑦ فَإِذَا الْجَفْنَةُ قَدِ امْتَلَأَتْ. ⑧ قَالَ: وَذَهَبَتْ إِلَى التَّنُّورِ، ⑨ فَوَجَدَتْهُ مُمْتَلِئًا. ⑩ قَالَ: فَرَجَعَ الزَّوْجُ، ⑪ قَالَ: أَصَبْتُمْ بَعْدِي شَيْئًا؟

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهريره ﵁ وايي، ② د يو سړي واقعه ده چې هغه يوه ورځ خپل کور والاوو ته راغي [يعنی چيرته بهر نه راتلو سره خپل کورکي داخل شو]. ③ هغه کور والاوو باندې د محتاجی او فقروفاقي اثار وليدل، ④ نو هغه د الله ﷻ په حضور کې خپل حاجات پيش کولو او يکسوئي سره د هغه بارګاه کې عرض او مناجات کولو دپاره جنګل طرف ته لاړي ⑤ نو د هغه ښځي چې دا وليدل چې خاوند سره يي هيڅ نشته او د شرم په وجه د کور نه بهر وتلی دی، نو هغه ولاړه شوه او ژرندي ته ورغله، ميچنه يي خپل مخې ته کيخودله، [يا د هغه ميچني پورتني کانړی يي لانديني کانړی باندې

---

[١] اخرجه احمد في المسند: ٥١٣/٢

کیخودله، یا دا معنی ده، چې هغې هغه میچنه صاف کړله، او تیارولو سره یې کیخودله د هغه داخیال وو چې خاوند به د بهر نه څه راوړلو سره به راشي، نو هغه به میده کولو سره روټۍ ځنې پخه کړم] .⑥ بیا هغه تنور ته ورغله او هغه یې ګرم کړ د دې نه پس یې دا دعا وکړه اې الله مونږ ستا محتاج یوستا د غیر نه مونږ خپل امید قطع کړی دی. [ته خیر الرازقین یې. د خپل طرف نه مونږ ته رزق راکړې] . ⑦ بیا چې هغه نظر پورته کړ، نو ګوري چې میچنه داوړو نه ډکه ده، ⑧ راوي وايي د دې نه پس چې هغې هغه اوړه اخښلو سره تنور ته یو وړل چې دهغه نه روټۍ پخې کړي. ⑨ نو تنور یې د روټۍ نه ډك ولیدی ایعنی الله دخپل قدرت داکرشمه ورښکاره کړله، چې خپله د هغه اوړو روټۍ جوړیدو سره تنور کې ولګیدې، یاداچې اوړه خو په خپل ځای میچن کې وو او په تنور کې د غیب نه روټۍ ظاهري شوی] ⑩ راوي وايي لږ ساعت وروسته چې خاوند بارګاه رب العزت کې عرض ومناجات او د دعا نه فارغیدو سره کورته رالی، ⑪ نو ښځې نه یې یو ښتنه وکړه، آیا ځما تلو نه پس تاته دیو ځای نه څه غله وغیره حاصله شوې ده. [چې تا دا روټۍ تیارولو سره ایښې ده] ،

**حل اللغات:-** ① اَلْبَرِيَّةِ: ② اَلرَّحَى: میچن، ③ اَلتَّنُّوْر: تنور، ④ فَسَجَرَتْهُ: نوهغه ئې ګرم کړو. ⑤ اَلْجَفْنَةُ کاسه. وړوکې لوښي ⑥ مُمْتَلِئًا: ډکه،

① قَالَتِ امْرَأَتُهُ: ② نَعَمْ، مِنْ رَبِّنَا، ③ وَقَامَ إِلَى الرَّحَى، ④ فَذُكِرَ ذٰلِكَ لِلنَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -، فَقَالَ: " ⑤ أَمَا إِنَّهُ لَوْلَمْ يَرْفَعْهَا لَمْ تَزَلْ تَدُورُ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** ① ښځې ورته ووي ② او، دا مونږ ته د الله د طرف نه حاصله شوې ده، [یعنی دا دعامې طریقې مطابق یامطلب دا چې یو انسان مونږ ته نه دې راکړې بلکې دارزق محض د غیب نه الله ﷻ راته راکړی دی خاوند چې داواوریدل نو هغه ته ډیر تعجب وشو] ، ③ او هغه اودریدو سره میچن ته ورغلی او میچن یې پورته کړه چې د هغه کرشمه ووینې ④ کله چې د دې واقعې ذکر د رسول الله ﷺ مخکې وشو نو حضور ﷺ پوره واقعه اوریدو سره وفرمایل ⑤ پوهه شوم به دې کې هیڅ شك نشته، که هغه سړی هغه دمیچنې سر نه وې پورته کړې. نو هغه میچن به مسلسل ترقیامته پورې ګردش کې وه [او هغه نه به اوړه راوتل ] احمد،

**حل اللغات.-** ⑤ تَدُوْرُ: تاویدله به

**تسهیلات:**

**قوله: فَلَمَّا رَأَى مَا بِهِمْ مِنَ الْحَاجَةِ خَرَجَ إِلَى الْبَرِيَّةِ.**

**صحرا ته په وتلو کښې درې احتمالات:** ① خاوند د کورنه د صحرا طرف ته ځکه لاړو چه

ځان له دعا اوغواړي.

③ دَ کورنو پريشانو کتلوسره دَ څه وخت دَپاره غائب پاتې کيدل خوښ کړي وي

④ دَ رزق په لټون کښې وتلې وي

**قوله: قَامَتْ إِلَى الرَّحَى فَوَضَعَتْهَا:**

**دښځې عملي اقدام:** ښځې چه کله اوکتل چه خاوندئي دَ دعا يا کور د پريشانۍ يا د مزدورۍ دَپاره وتلې دي نوهغه ميچنې طرف ته وروړاندې شوه اوهغه ئې کيخوده

**قوله: ثُمَّ قَالَتْ: اللَّهُمَّ ارْزُقْنَا:**

**د غيبو څخه د رزق بندوبست:** دا ښځه هم دَ الله تعالى وليه صحابيه وه هغې هم په زاړو سره دعا غوښتله اوبيا ميچنې له دکتلودَپاره لاړه نوهغې اوکتل چه ميچن غاړې دَ اوړو نه ډکې دي او تنور دَ پخو روټونه ډك دي. دَ الله تعالى د قدرت دا کرشمه دَهغوی دَ صبر او توکل دَ وجې ښکاره شوه.

**[۵۲۱۲] رزق دَ انسان په تلاش کښې وي**

۵۲۱۳ – (۱) [۱۷] ① وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: ② قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " ③ «إِنَّ الرِّزْقَ لَيَطْلُبُ الْعَبْدَ كَمَا يَطْلُبُهُ أَجَلُهُ» " رَوَاهُ أَبُو نُعَيْمٍ فِي (الْحِلْيَةِ).

**ترجمه:** ① او حضرت ابودرداء ﷺ وايي، ② چې رسول الله ﷺ وفرمايل، ③ په دې کې هيڅ شك نشته چې رزق بنده داسې تلاش کوي څرنګه چې انسان لره د هغه مرګ تلاش کوي دا روايت ابونعيم په کتاب حليه کې نقل کړی دی.

**حل اللغات:** - ① أَجَلُ: نيټه، مرګ،

**تسهيلات:**

**قوله: كَمَا يَطْلُبُهُ أَجَلُهُ**

**دوه څيزونه د انسان په طلب کښې:** ① رزق انسان پسې داسې لګيدلې وي څنګه چه مرګ دَ هغه په لټون کښې لګيدلې وي. ترکومې چه مرګ دې نه مومی هغه دَ ده په لټون کښې لګياوی.

② ترکومې چه انسان خپل مقررشوې رزق پوره کولو سره اونه خوری رزق دې نه پريږدی. مطلب دا چه رزق لټوي اوکه نه لټوې ګټې هغه تا لټوی. دَ مرګ راتلونه مخکښې رزق راځی سرې هغه خوری نوبيا مرګ راځی

[۱]) ابو نعيم فى الحليه ۶/ ۸۶

**[۵۲۱۲]ذیو نبی بې مثاله صبر**

۵۲۱۲-(۱)[۱]وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-قَالَ:[۲]«كَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-يَحْكِي نَبِيًّا مِنَ الْأَنْبِيَاءِ،[۳]ضَرَبَهُ قَوْمُهُ فَأَدْمَوْهُ[۴]وَهُوَ يَمْسَحُ الدَّمَ عَنْ وَجْهِهِ وَيَقُولُ: "[۵]اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِقَوْمِي فَإِنَّهُمْ لَا يَعْلَمُونَ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**:[۱]او حضرت ابن مسعود ﷺ بیان وکی [۲] چې ګویا زه دا وخت هم رسول الله ﷺ وینم چې د یو داسې نبي قصه بیانوي او د هغه صورت مونږ ته ښايي [۳] چې خپل قوم او وهلی.[۴]او به وینو کې رنګ رنګ کې الیکن هغه نبي په ځای د دې چې خپل قوم سره بغض او نفرت کی اونخلې]. [۵]او د هغوئ په حق کې بد دعاء وکړي.خپل مخ نه یې وینه وچوله او دایې وئیل ابلکې د صبر او تحمل لمن نیولو سره[ [۵] اې الله ځما قوم وبخښې داځلی ځما د حقیقت نه واقف نه دی (بخاري. مسلم)

**حل اللغات**:- ① فَأَدْمَوْهُ نو وینې وینې ئې کړو

**تسهیلات**: قوله يَحْكِي نَبِيًّا مِنَ الْأَنْبِيَاءِ

**د نبی په مصداق کښې اقوال**:① ابن حجر ﷫ فرمائی چه یقین سره نه شی وئیلی کیدی چه دا نبی څوك وو؟

② د دې نبی نه مراد نبی آخرزمان محمدعربی ﷺ ذات بابرکات دې کله چه د احد په موقع باندې کافرانو په حضورپاك باندې حمله اوکړه اوهغوی وینې وینې کړو هغه وخت ئې د مخ نه وینې اوچولې اودا الفاظ ئې فرمائیل «اللهم اغفرلقومی فانهم لایعلمون» یعنی د دغه تکلیف رسولو په وجه په هغوی باندې په دنیاکښې فوری عذاب رانه شی علمه، لیکن چه دا راجح دی چه ددې نه د حضورپاك ذات مراد واخستې شی

③ بعضې روایاتوکښې دی چه دې نه حضرت نوح ﷺ مراد دې د هغه قوم به هغه دومره وهلو چه هغه به بې هوښه شو او په زمکه به راپریوتلو او په هوش کښې راتلو سره به ئې بیا دعوت ورکولو

**قوله**: اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِقَوْمِي

**د دعا محمل**: یعنی اې الله زما قوم اوبخښې دوی نه پوهیږی دلته دمغفرت دعا دهغه قوم د ایمان اوهدایت دپاره هغه نبی غوښتلې ده چه اې الله دوی ته هدایت ورکړه دې دپاره چه ددوی ټول ګناهونه معاف شی

دا مطلب ئې نه دې چه په شرك اوكفرباندې د مركیدونه پس دهغوی دپاره دمغفرت دعاغوښتلې شی

---

۱) اخرجه البخاري في كتاب أحاديث الأنبياء/باب حديث الغار (رقم-۳۴۷۷) وابن ماجه في كتاب الفتن/باب الصبر على البلاء (رقم-۴۰۲۵)واحمد في المسند:۱/۴۴۱

# [۵] بَابُ الرِّيَاءِ وَالسُّمْعَةِ]

## دَ ریاکارئ او شهرت بیان

**خلاصة الباب**

**فیه أربعة وعشرون حدیثاً مشتملة علی ثلاث مسائل:**

① الاعتبار للقلب والنية: ۱، ۴، ۵، ۹، ۱۰، ۲۲، ۲۴۔

② شناعة الرياء: ۲، ۳، ۵، ۶، ۱۱، ۱۲، ۱۳، ۱۴، ۱۶، ۱۷، ۱۸، ۱۹، ۲۰، ۲۳۔

③ فائدة العمل الخالص الرياء: ۴، ۱۵، ۱۸، ۲۱۔

قوله الرِّيَاءِ:

**د ریا لغوی معنی**: دَ ریاء معنی دا ده، خپل ځان دَخلقو په نظر کښې ښه کولو سره پیش کول. هم دې ته ځان خودل او ریاء وائی

**د ریا شرعی مطلب**: دَ ریاء مطلب دادې چه خپل عبادت کښې خلقو ته ځان خودل او د عبادت او نیکئی په ذریعه په خلقو کښې خپل قدر و قیمت او منزلت پیدا کول

**د ریاء کاری محل**: دَدې تفصیل نه معلومه شوه چه دَ ریاکارئی تعلق دَ عباداتو او نیکو سره دې یعنی په ښه اعمالو کښې ریاکاری کیږی

دنیاوی امورو کښې خپل مهارت ښودل لکه په کرکټ وغیره کښې مقابله په امتحان کښې مقابله او خوښودل نو په دې کښې خلقو ته ښودلو ته ریاء نشی وئیلې بلکه دې ته فخر او نمائش او تکبر وئیلې شی

**شاګر او مریدته د عمل ښودلو حکم**: دغه شان بعضې مرشدین حضرات خپلو مریدانو ته ترغیب ورکولو او شوق زیاتولو په غرض سره بعضې اعمال ظاهره وی هغه هم په ریاکارئی کښې نه راځی هم دَدې دَپاره وئیلی شوی دی "رِيَاءُ الصِّدِّيْقِيْنَ خَيْرٌ مِنْ إِخْلَاصِ المُرِيْدِيْنَ" دلته داخیره هم په خیال کښې ساتل پکاردی چه دَ ریاکارئی عمل هغه عمل جوړیدې شی چه په چاکښې هغه عمل موجود وی او په هغه کمال باندې دغه سړې متصف وی او دغه ښه عمل دا سړې په خلقو کښې ځکه مشهورول غواړی چه دَدې په وجه د هغه قدر او منزلت په خلقو کښې پیدا شی لیکن که په دغه سړی کښې دَنیکئی او عبادت څه کمال موجود نه وی او هغه هسې خپل ځان په خلقو کښې مشهوره وی نو دا ریاکاری نه بلکه دهوکه فراډ او صریح دروغ دې دا یو جدا جرم دې

**د ریا دوه صورتونه**: ① امام غزالی رحمه الله لیکلی دی ترکومې پورې چه مخلوق جماداتو، احجارو او اشجارو په درجه کښې اونه ګنړلې شی دَ ریاکارئی نه بچ کیدل ګران دی او

ترکومې پورې چه خلق په نفع او نقصان کښې معذور او مجبور اونه ګڼلې شی نودې قلبی بیمارئی نه وتل ګران دی

④ که یو سړې په اخلاص سره عبادت کوی اوبیا خلقو ته په څه طریقه سره خبر اوشی او په خلقو کښې دَ دې سړی ښه مشهورتیااوشی او په دې باندې دا سړې خوشحال شی نودا ریاکاری نه ده بلکه دادَ دنیاوی بشارت یوه حصه ده اودَ نیکو اعمالو هغه بدله ده چه الله تعالی ئی ورته په دنیاکښې ورکوی سره ددې چه بنده دا پټوی

**دَ ریاکارئ څلور قسمونه:** دَعبادت کولو او دَ ثواب حاصلولو نیت کولو په اعتبارسره دَ ریاکارئی څلورقسمونه دی

① **صرف د خلقودپاره عبادت کول:** دَ ریاکارئی دَ ټولو نه لوئی اوغټ قسم دادې چه یوسړې عبادت او ریاضت دَ الله تعالی دَ رضا او ثواب حاصلولو په ځائی صرف خلقو ته دَ خودنې او خپل قدر زیاتولو دَپاره کوی مثلاً په عام مجمع کښې اوږده اوږده مونځونه کوی اوکله چه ځان له شی نواوږد خوځه چه پخپله هغه مونځ ئی ورك شی په عام مجمع کښې کم خوراك کوی چه بادشاهانو او بااثرخلقوکښې دا ګمان پیدا شی چه دا ډیر پرهیزګاره سړې دې. دَ ریاکارئی په دې قسم کښې دَ بعضې علماؤ داخیال دې چه ددې سړی هیڅ یوعمل قبول نه دې بلکه ددوه فرض هم نه اداکیږی داسړې صرف په سترپوالی اومشقت کښې خپل ځان ساتی

**خپل مونځ هم دوباره اوکړه:** ګلستان کښې باباسعدی رحمه الله یوه قصه لیکلې ده چه یونیك سړې بادشاه سره په خوراك کښې شریك شو نوهغه بادشاه ته دَ خودلودَپاره ډیرکم خوراك اوکړو اوکله چه دَ مونځ وخت راغلو نوډیر اوږدمونځ ئی اوکړو بادشاه ونیل چه دا خو ډیر زاهد اوعابدسړې دې کله چه دا سړې کورته راغلو نوخوئی ته ئی اوونیل ما کم خوراك کړې دې خوراك راوړه خوئی ورته اوونیل چه ته خودَ بادشاه دعوت له تلې وې هلته دې خوراك اونه کړو؟ هغه ونیل بچیه ما کم خوراك اوکړو دې دَپاره چه دَ بادشاه په زړه کښې ځائی پیدا کړم خوئی ورته اوونیل باباجان چه ته کله خوراك دوباره خورې نو ته مونځ هم دوباره اوکړه ځکه چه دَ ریاکارئی دَ وجې نه ستا مونځ هم خراب شوې دې دَ ریاکارئی په دې قسم کښې عابد کس دَ ثواب نیت نه کوی بلکه نیت ئی دَ ځان خودلو وی [ګلستان سعدی:۷۰حکایت:۶]

② **د اخلاص په نسبت د ریا کارئ غلبه:** دَ ریاکارئی دویم قسم دادې چه ریاکار سړې عبادت هم کوی او دَ ثواب نیت هم کوی مګر دې سره سره ځان هم ښائی لیکن دَ ځان خودلو او ریاکارئی اړخ غالب وی اودَ ثواب دَ نیت اړخ مغلوب وی که چرته ځان له وی نوکیدې شی چه عبادت هم اونه کړی ددې قسم ریاکارئی حکم هم دَ رومبی قسم په شان

دې ځکه چه دَدې رياکار د نيکئی چه کومه جذبه ده دَ هغې علت او سبب هم رياکاری ده.

③ **د ريا او اخلاص برابری:** دَ رياکارئی دريم قسم دادې چه دَ رياکارئی اودَ ثواب دَحاصلولو جذبه دواړه برابر وی. په دې قسم کښې په ظاهره داسې معلوميږی چه نفع اونقصان دواړه به وی دَ احاديثونه معلوميږی چه دا صورت هم ډير مذموم اوقبيح دې اودا عمل هم ناقابل قبول دې

④ **د اخلاص غلبه:** دَ رياکارئی څلورم قسم دادې چه دَ ثواب دَ حاصلولو اودَ الله تعالى دَ رضاء جذبه غالب وی ليکن ورسره معمولی شان رياکاری هم ورګډه وی نو په دې صورت کښې خو به عمل باطل نه شی مګر که دا رياکاری دَعمل په شروع کښې راشی نو ډيره خرابه خبره ده اوکه چرته په مينځ کښې راشی نو لږه شان کمه بده خبره ده دَ رياکارئی دا څلورقسمونه دی کوم چه بيان کړې شو.

دلته دَ رياکارئی جدا جدا اعتبارات دی مثلاً يا خو به رياکاردَ رياکارئی پخه اراده کړې وی نودا ډيره خرابه خبره ده يا به ئی دَ رياکارئی اراده پخه نه وی بلکه دَخيال دَ حده پورې به وی دا ډيره کمه درجه ده. بهرحال رياکاری يوداسې خرابه بلا او داسې قلبی بيماری ده دکوم نه چه بچ کيدل ډيرګران دی.

**قوله: وَالسُّمْعَةِ:**

**د سمعت څه مراد:** په عنوان کښې دَ رياکارئی نه پس لفظ سمعة هم دې. دَسمعه تعلق دَ سماعت اوغوږ سره دې نودَ کومو نيکواعمالو خودلوتعلق چه سترګو سره کيږی هغه ريا ده او دَ کوم تعلق چه دَ غوږونو سره وی هغه سمعه ده يعنی خپل درجه زياتولو دَپاره نورو خلقو ته قسم قسم اعمال اورولو سره مقام پيداکوی چه خلق ده ته ښه سرې اووائی

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[٥٢١٤] الله تعالى صورتونو او مالونوته نه ګوری دَزړونو اخلاص ته ګوری**

٥٣١٤-(١) [١] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [٢] قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "[٣] «إِنَّ اللَّهَ لَا يَنْظُرُ إِلَى صُوَرِكُمْ وَأَمْوَالِكُمْ [٤] وَلَكِنْ يَنْظُرُ إِلَى قُلُوبِكُمْ وَأَعْمَالِكُمْ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] حضرت ابوهريره رضی الله عنه وايي، [٢] چی رسول الله ﷺ وفرمايل [٣] الله تعالى ستاسو صورتونو او مال ومتاع ته نه ګوري، [يعنی د هغه نظر رحمت وعنايت کې ستاسو د صورتونو او ستاسو د اموال هيڅ اعتبار نشته، ځکه چې د هغه په نزد نه خو د ښه يا بدصورت څه حيثيت شته، او نه د مال ومتاع دکمی يابيشي څه اهميت شته] ، [٤] بلکي

[١] اخرجه مسلم فی کتاب الزهد والرقائق/باب من أشرک فی عمله غير الله (رقم-٤٦ - (٢٩٨٥) وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب الرياء والسمعة (رقم-٤٢٠٢) واحمد فی المسند:٣٠١/٢

هغه سناسو زړونو او ستاسو اعمال ته ګوري، ايعنی د هغه په نزد خو بس داشی کتل کيږی. چې ستاسو زړونو کې يقين او صدق او اخلاص وغيره شته يا نفاق او رياء سمعه وغيره دغه شان د هغه په نزد د ښه او بد اعمال اعتبار دی. چې د هغه مطابق هغه تاسو ته جزاء او سزاء درکوي! (مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله** : لَا يَنْظُرُ إِلَى صُوَرِكُمْ وَأَمْوَالِكُمْ"

**ظاهر ته نه کتل**:يعنی الله تعالى صرف ظاهری شکل اوصورت اود انسان رنګ روغن جبې اوقبې ته نه ګوری اونه په دې ظاهری شکل اوصورت باندې د قبوليت او د عدم قبوليت فيصله کوی بلکه معامله دانسان د دننه کيفياتو ده لکه چه اوس راځی

**د ينظر څخه مراد**:علامه ابن اثير رحمه الله په خپل کتاب نهايه کښې ليکلی دی چه په دې حديث کښې "لاينظر" او "ينظر" الفاظ د خوښې او ناخوښې. رحمت اوشفقت او اختيارولو اونه اختيارولو په معنی کښې دی په دې مطلب سره ډيرزيات اعتراضات ختميږی خلق وائی زړه صفا کيدل پکاردی د ظاهری شکل اوصورت هيڅ اعتبارنشته دې حالانکه حقيقت دادې چه کله دننه ټيک وی نوبهرهم ټيک کيږی د ونې تکې شنې کيدو مدار په جړو بندې دې که چرې جړه خرابه شی نوپاڼې رژيږی او ونه اوچيږی

**قوله** : وَلَكِنْ يَنْظُرُ إِلَى قُلُوبِكُمْ وَأَعْمَالِكُمْ"

**اخلاص ته کتل**:يعنی الله تعالى د زړه نيت اوجذبې د اخلاص، صداقت او صفائی ته ګوری دغه د زړه حسد، کينه بغض اونفاق اوريائی ته ګوری دغه شان الله تعالى د زړه ښه اوبد صفاتو اود هغې خيالاتو او احساساتو اوجذباتو باندې فيصله کوی

**[۵۳۱۵]د رياکار د عمل مذمت**

د سه-( )[۲] [۱] وَعَنْهُ، قَالَ:[۲] قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "[۳]«قَالَ اللَّهُ تَبَارَكَ وَتَعَالَى: أَنَا أَغْنَى الشُّرَكَاءِ عَنِ الشِّرْكِ، [۴] مَنْ عَمِلَ عَمَلًا أَشْرَكَ فِيهِ مَعِي غَيْرِي، [۵] تَرَكْتُهُ وَشِرْكَهُ» ". وَفِي رِوَايَةٍ: " «فَأَنَا مِنْهُ بَرِيءٌ، هُوَ لِلَّذِي عَمِلَهُ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** :[۱]او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي.[۲] چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل [۳] الله جل جلاله فرمايي زه د ټول شرکاء په اعتبارسره د شرک نه ډير زيات بې نيازه يم! يعنی د دنيا دستوردي چې خلق خپلو معاملاتو او کارو بار کې د يوبل د اشتراك او تعاون محتاج وي. او په خپلو کې يوبل شريك جوړيږي او هغوئ دي شرکت او تعاون باندې راضي او

[1] اخرجه مسلم فی کتاب الزهد والرقائق/باب من أشرک فی عمله غير الله (رقم ۴۶- (۲۹۸۵) وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب الرياء والسمعة (رقم-۴۲۰۲) واحمد فی المسند:۳۰۱/۲

مطمئن وي. او په دې سلسله کې د هغوئ په منځ کې دری درجې مفهمت وي. چې په هغوئ کې هريو شريك متعلقه معاملات او كارو بار کې خپل پوره عمل دخل لري. ليكن خما معامله بالكل جداګانه ده او زه على الاطلاق خالق او حاكم يم. خپل احكام. فيصلې او خپل نظام قدرت کې نه خو ماته د چا د تعاون او اشتراك حاجت او ضرورت شته او نه زه داغوارم چې خما بنده دې څوك زما سره شريك وګرځوي. او خما كيدونكي يو عمل کې دې خما نه علاوه بل څوك مد نظر وساتي. تردې چې خما په نزد دهغوئ صرف د هغه عمل اعتبار دی. چې هغوئ خالص طور سره زما د پاره كوي. واضحه دې وي. چې د الله ﷻ خپل ذكر د شركاوو په ضمن کې كول يعنى خپله ځان د يو سريك په ذريعه تعبير كول محض د هغه بنده ګانو د اعتبار نه دی. چې د خپل جهل او نه داني په وجه د هغه ذات وصفات او د هغه عبادت کې څوك دويم ورسره شريكول. او دغه شان هغوئ الله ته هم د يو شريك درجه وركوي نعوذ بالله د دې نه پس بيا انه دې خبرې سره د خپلې بې نيازي. او ناخوښي اعلان وفرمايه. چې څوك دې د هغه شريك وګرځول شي. نو ارشاد وشوا. ۴ چې كوم سړی خما د اطاعت او عبادت په طور څه داسې عمل وكړي. چې په هغه کې زما سره څوك دويم شريك كړي.۵ نو زه هغه سړي او دهغه شرك سره پريږدم ا او په يوه روايت کې تركته وشركه. په ځای دا الفاظ دي. فانا منه برئ هو للذي عمله. يعنى كوم سړی چې خما عبادت کې څوك دويم شريكوي. نو زه د هغه نه خپله بې نيازي او بيزاري ظاهروم هغه سړی يا د هغه هغه عمل د هغه د پاره دی د چا د پاره چې هغه هغه عمل كړی دیا (مسلم)

**حل اللغات:-** ① أَغْنَى: ډير زيات بې نيازه.

**تسهيلات:**

**قوله:** أَنَا أَغْنَى الشُّرَكَاءِ عَنِ الشِّرْكِ.

**د مذكوره جملې مفهوم:** يعنى زه دَ شرك په معامله كښې دَ ټولو شريكانونه ډير زيات بې نيازه يم دلته شركاء په معنى دَ مشاركت دی كومه چه مصدری معنى ده مطلب دادې چه زه دَ شرك او مشاركت په معامله كښې دَ ټولو شريكانونه بالكل بې نيازه او ويزاره يم زه خالق اومالك يم. زما په ذات اوصفاتو كښې هيڅوك شريك كيدې نه شی كوم سړې چه په يوعبادت كښې په توګه دَ رياكارئ ماسره څوك شريك كوی زه هغه سړې دَ هغه دَعمل سره ديكه كوم اوس رياكار سړې دې خپل ثواب دَ الله تعالى نه نه غواړی بلكه دَ چادپاره چه ئې هغه عمل كړې دې هم دَهغه نه دې خپله بدله غواړی كله چه دې رياكار دغه كار دَ الله تعالى دَپاره نه دې كړې نو الله تعالى به هغه ته څه وركړی او ولې به ئې وركوی

**قوله**: تَرَكْتُهُ وَشِرْكَهُ

**د رياء کار او ريا څخه د الله تعالی بيزاري**: د واؤ حرف د مع معنی کښې دې يعنی رياکارسړی او د هغه رياکاری کوم چه شرك اصغردې دواړه پرېږدم دا عمل هم د هغه دپاره دې د چا دپاره چه هغه کړې دې لهذا هم د هغه نه دې خپله بدله واخلی زه د دغه عمل نه ويزاره يم

**[۵۲۱۶] دَ ريا او شهرت والا عمل باندې سخت وعيد**

| ۵۳۱۶-( )[۲] [۱] وَعَنْ جُنْدُبٍ، قَالَ: [۲] قَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[۳] «مَنْ سَمَّعَ سَمَّعَ اللَّهُ بِهِ، [۴] وَمَنْ يُرَائِي يُرَائِي اللَّهُ بِهِ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
|---|

**ترجمه**: [۱] او حضرت جندب رضی الله عنه وايي، [۲] چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۳] کوم سړی چې خلقو ته اورولو او شهرت حاصلولو د پاره څه عمل کوي نو الله تعالی به د هغه حال خلقو ته واوري. ايعنی د قيامت په ورځ به يې د خلقو مخکښې د هغه عيوبو سره ذليل او رسواء کړيا. [۴] او کوم سړی چې د خلقو د ښوونې د پاره څه عمل کوي، نو الله تعالی به هغه ته د رياء کارې سزا ورکړې [يعنی د قيامت په ورځ به هغه ته وايي، چې خپل اجر او ثواب د هغه نه وغواړه د چا د پاره چې تا عمل کړی وو]. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات**: - ① سَمَّعَ اورول اوکړی. (يعنی ريا دپاره څه عمل اوکړی چه خلق ئې تعريف اوکړی)
② يُرَائِي ريا اوکړی (يعنی خلقو ته د خودنې دپاره څه عمل اوکړی).

**تسهيلات**:

**قوله**: مَنْ سَمَّعَ سَمَّعَ اللَّهُ بِهِ،

**خپل قولی عمل بل ته د ښودلو سزا**: يعنی کوم سړې چه د خلقو د اورولو او خودلو د پاره او شهرت حاصلولو د پاره کوم يو عمل کوی نو الله تعالی به د قيامت په ورځ د هغه عيبونه راښکاره کړی او د هغه پټ احوال به خلقو ته ښکاره کړی او هغه به رسوا کړی دغه شان چه کوم سړې د خودنې په غرض څه عمل کوی الله تعالی به د قيامت په ورځ هغه سړې د ټولو خلقو مخکښې نه راولی او ورته به ئې ښائی چه دې سړی دا عمل د فلانکې د پاره کړې وو اوس ماسره د ده هيڅ ثواب نشته دې دې دې خپل ثواب د هغه سړی نه حاصل کړی د چا د پاره چه ده دا عمل کړې وو دا د ناکامئ او رسوايئ د يرزيات لوئ صورت دې.

---

[1]) اخرجه البخاری فی کتاب الرقاق/باب الرياء والسمعة (رقم-۶۴۹۹) ومسلم فی کتاب الزهد والرقائق/باب من أشرک فی عمله غير الله (رقم-۴۸ - (۲۹۸۷) والترمذی فی کتاب الزهد عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی الرياء والسمعة (رقم-۲۳۸۱) وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب الرياء والسمعة (رقم-۴۲۰۷) واحمد فی المسند: ۴۰/۳

**[٥٣١٧]د يو نيک عمل په وجه پخپله مشهوريدل رياء نه ده**

٥٣١٧-()[٣] ① وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: ②«قِيلَ لِرَسُولِ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ③أَرَأَيْتَ الرَّجُلَ يَعْمَلُ الْعَمَلَ مِنَ الْخَيْرِ وَيَحْمَدُهُ النَّاسُ عَلَيْهِ؟ ④وَفِي رِوَايَةٍ: يُحِبُّهُ النَّاسُ عَلَيْهِ. قَالَ: "تِلْكَ عَاجِلُ بُشْرَى الْمُؤْمِنِ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** :①او حضرت ابوذر ﷛ وايي، ② رسول الله ﷺ نه چا پوښتنه وکړه ③ ماته د هغه سړي باره کښې وښايه، چې يو نيک کار کوي او د هغه په وجه خلق د هغه تعريف او توصيف کوي ④ او په يوه روايت کښې دي چې خلق د هغه تعريف او توصيف کوي (دي نه پس داهم دی چې او هغه خلق هغه سره محبت کوي د داسې سړي څه حکم دی. د هغه اجر او ثواب کالعدم کېږي يا نه) .⑤ حضور ﷺ د دي سوال په اوريدو سره وفرمايل درحقيقت د هغه مؤمن په حق کښې دنياوي پيدا کيدونکی بشارت دی (چې د خلقو د هغه سړي تعريف او توصيف کول، او هغه محبوب ګرځول) ، (مسلم)

**حل اللغات**:- ① عَاجِلُ : جلتي سره، ډير زر (يعني په دنيا کښې).

**تسهيلات**:

**قوله** تِلْكَ عَاجِلُ بُشْرَى الْمُؤْمِنِ:

**د بشارت دوه قسمونه**: ① يو سعادت او بشارت هغه دې کوم چه باقی دې او په آخرت کښې به ملاويږی ② دويم سعادت او بشارت هغه دې کوم چه زرهم په دې دنيا کښې ملاؤ شوې دې.

**دعمل د قبوليت نښه**: حاصل دادې چه الله تعالی دَعمل په برکت سره دَ خلقو په زړونو کښې محبت اچولې دې چه دَ خلقو ژبې دَ هغه دَ نيکئی تعريفونه کوی اودَ هغه په حق کښې دَ خلقو دا معامله لکه چه دَ دې خبرې بشارت دې چه دَ هغه دغه نيک عمل دَ نيکئی قبول شو او په آخرت کښې به ثواب ملاويږی.

**دحديث مطلب**: لکه چه حضورپاك دَ دې ارشاد په ذريعه دا واضح کړه چه دَ دغه کس هغه نيک عمل کړی دَ کوم په وجه چه هغه دَ دنيا والو په نظر کښې دَ احترام قابل او محبوب جوړ شوې دې هغې ته به ريا نه شی وئيلې.

---

[١]) اخرجه مسلم فی کتاب البر والصلة والآداب/باب إذا أثنى على الصالح فهی بشرى ولا تضره (رقم-١٦٦ - (٢٦٤٢) وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب الثناء الحسن (رقم-٤٢٢٥) واحمد فی المسند:٣/١٥٦

# الفصل الثاني

**[۵۳۱۸] د رياكار دپاره سخت وعيد**

۵۳۱۸-( ) [د] [۱] عَنْ أَبِي سَعْدِ بْنِ أَبِي فَضَالَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: " [۲] «إِذَا جَمَعَ اللّٰهُ النَّاسَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ لِيَوْمٍ لَا رَيْبَ فِيهِ [۳] نَادَى مُنَادٍ: [۴] مَنْ كَانَ أَشْرَكَ فِي عَمَلٍ عَمِلَهُ لِلّٰهِ أَحَدًا [۵] فَلْيَطْلُبْ ثَوَابَهُ مِنْ عِنْدِ غَيْرِ اللّٰهِ [۶] فَإِنَّ اللّٰهَ أَغْنَى الشُّرَكَاءِ عَنِ الشِّرْكِ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه**: [۱] حضرت ابو سعيد ابن ابي فضاله ﷺ د رسول الله ﷺ نه روايت كوي چې حضور ﷺ وفرمايل [۲] هركله چې الله د قيامت په ورځ چې د هغه په راتلو كې هيڅ شك او شبه نشته خلق حساب او كتاب د پاره راجمع كړي. [۳] نو يو اعلان كونكي فرشته به دا اعلان وكړي [۴] چې كوم سړى په خپل هغه عمل كې چې هغه د الله د پاره كړى وو [۵] د الله نه سواء بل څوك يي ورسره شريك كړى وي (يعنى كوم سړى چې په دنيا كې د رياء په طور څه نيك عمل كړى وي. نو هغه ته پكار دى چې هغه د خپل هغه عمل ثواب د هغه غير الله نه طلب كړي، كوم چې هغه شريك كړى وو). [۶] ځكه چې الله ﷻ د شرك نه د ټولو شريكانو په نسبت ډير زيات بې نيازه دي (احمد)

**حل اللغات**: - مُنَادٍ آواز كونكي، (يوه فرشته)

**تسهيلات**:

**قوله** يَوْمَ الْقِيَامَةِ لِيَوْمٍ لَا رَيْبَ فِيهِ

**د قيامت په ورځ د خلقو راجمع كيدل**: كله چه الله تعالى ټول خلق د هغه ورځ د پاره راجمع كړى د كومې راتلل چه يقيني دى او د هغه ورځ په راتلو كښې څه شك شبه نشته دې او دا راجمع كول به د دې د پاره وى چه هر يو كس ته د هغه د عمل مطابق جزا او سزا وركړى كوم چه هغه به دنياوى ژوند كښې اختيار كړې وو

**[۵۳۱۹] رياكار به حقير او ذليل وى**

۵۳۱۹-( ) [۲] [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا- [۲] أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: " [۳] «مَنْ سَمَّعَ النَّاسَ بِعَمَلِهِ [۴] سَمَّعَ اللّٰهُ بِهِ [۵] أَسَامِعَ خَلْقِهِ [۶] وَحَقَّرَهُ وَصَغَّرَهُ» ". رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي (شُعَبِ الْإِيمَانِ).

**ترجمه**: [۱] او حضرت عبد الله بن عمرو ﷺ نه روايت دى، [۲] هغه د رسول الله ﷺ نه دا واوريدل. [۳] كوم سړى چې خپل عمل ته د خلقو په منځ كې شهرت وركوي، نو الله ﷻ به

---

(۱) اخرجه الترمذي في السنن كتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب: ومن سورة الكهف (رقم-۳۱۵۴) واحمد في المسند. ۳/۴۶۶

(۲) اخرجه البيهقي في شعب الايمان رقم الحديث ۶۸۲۱ واحمد في المسند:۲/۱۶۲

د هغه دارياء كارانه عمل د خپل مخلوق غوږونو ته ورسوي، ايعني كوم سړى چې څه نيك كار كولو سره خلقوته دا واوروي چې هغه داكار كړى دى، او د هغه په ذريعه د هغه مقصد شهرت او عزت حاصلول وي! ۔[۴] نو الله ﷻ به د هغه هغه رياكاري ښكاره كړي.[۵] او د خلقو غوږونو ته به داخبره ورسوي اچې داسړى رياكار او غير مخلص دى! . [۶] او د قيامت په ورځ به هغه رسواء كړي، او په دنيا او آخرت كې به بې ذلت او خوارې سره مخامخ كړي، داروايت د بيهقي رحمه الله په شعب الايمان كې نقل كړى دى

**حل اللغات:**- ① سَمَّعَ دَ باب تفعيل نه دماضي صيغه ده چه د اورولو په معنى كښې دې ② حَقَّرَهُ رسوا او سپک به ئې كړى ③ صَغَّرَهُ: ذليل او خوار به ئې كړى

**تسهيلات:**

**قوله**: أَسَامِعَ خَلْقِهِ:

**د أَسَامِعَ د صيغې تحقيق**: دا جمع الجمع ده چه دَ اسْمُعٌ جمع ده او ا سْمُعٌ د سمْعٌ جمع ده او سَمْعٌ دَغوږ

معنى كښې استعمال شوې دې لكه أكالب وأكلب وكلب چه دې دې نه مراد دَخلقو غوږونه اودَ اوريدو طاقت دې

**د حديث مطلب**: الله تعالى به دَ خلقو دَ غوږونو نه دَ دغه سړى رياكارى اومكارى عيارى او دعارى او شطارى رسولو سره واوروى دكوم نتيجه چه به دا شى چه داسړې به ذليل اوخوار شى دكوم تفصيل چه دَدې حديث په آخرى كلماتو كښې بيان كړې شوې دې چه حقره وصغره

**[۵۳۲۰] د نيت داخلاص او عدم اخلاص اثر**

۵۳۲۰-(۱)[۱۸] [۱] وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- [۲] أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: "[۳]«مَنْ كَانَتْ نِيَّتُهُ طَلَبَ الْآخِرَةِ جَعَلَ اللَّهُ غِنَاهُ فِي قَلْبِهِ، [۴] وَجَمَعَ لَهُ شَمْلَهُ، [۵] وَأَتَتْهُ الدُّنْيَا [۶] وَهِيَ رَاغِمَةٌ، [۷] وَمَنْ كَانَتْ نِيَّتُهُ طَلَبَ الدُّنْيَا [۸] جَعَلَ اللَّهُ الْفَقْرَ بَيْنَ عَيْنَيْهِ، [۹] وَشَتَّتَ عَلَيْهِ أَمْرَهُ، [۱۰] وَلَا يَأْتِيهِ مِنْهَا إِلَّا مَا كُتِبَ لَهُ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه**: [۱] او دحضرت انس رضی الله عنه روايت دى، [۲] چې رسول الله ﷺ وفرمايل. [۳] د كوم سړي نيت چې محض د آخرت طلب وي، نو الله ﷻ به د هغه زړه غني كړي.[۴] او د هغه پريشاني جمع كولو سره اطمينان خاطر ورته وبخښي [۵] او هغه ته به دنيا راځي.[۶] په داسې حال كښې چې دنيآ په ذليله ده ته راځى [۷] او د كوم سړي نيت او اصل مقصد چې د دنيا طلب وي، ايعنى كوم سړي باندې چې دنيا ددې حده پورې سپره شي. چې هغه

(۱) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-۲۴۶۵) وابن ماجه فى كتاب الزهد/باب الهم بالدنيا (رقم-۴۱۰۵)

خپل اعمال خیر هم محض د دنیا د حصول واسطه جوړول شروع کړیا، [۸] نو الله ﷻ د هغه فقر او احتیاج د هغه د سترګو په مخکې پیش کوي. [۹] نو الله ﷻ هغه د خلقو مخکې د لاس خورولو په ذلت او خوای کې مبتلا کوي. [او دهغه خپل فقرو افلاس او محتاجي د هغه د سترګو مخکې وي، او هغه په هره معامله کې د ذهني انتشار او تفکراتو ښکار ويا، [۱۰] او هغه ته بس دومره حاصلیږي، څومره چې الله د هغه د پاره مقدر کړي وي. [یعنی ددې سړی کارونه دومره متشتت وی چی دهغو په وجه به حیران او سرګردان وی. او هغه ته هغه رزق خو ضرور رسیږي کوم چی دهغه مقدر کی دی. خو دهغه حصول د پاره هم هغه ته سخت محنت او مشقت او پریشانی برداشت کول ویا] ترمذي.

**حل اللغات:** - ① غِنَاهُ: بې پرواهی، مالداری، یعنی محتاجی به نې لرې کړی. ② شَمْلَهُ: اجتماعیت. یعنی رعب او دبدبه. ③ رَاغِمَةٌ: ذلیل.

٥٣٢١-()[۱] وَرَوَاهُ أَحْمَدُ وَالدَّارِمِيُّ عَنْ أَبَانَ، عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ.

**ترجمه:** [۱] او احمد او دارمي دا روایت دابان ﷺ نه او هغه د زید بن ثابت نه نقل کړی دی

**حل اللغات:** شَمْلَ دا دَ شمل جمع ده په معنی دَ حاجت یا عادت

**تسهیلات:**

**قوله وَجَمَعَ لَهُ شَمْلَهُ،**

**دحدیث مطلب:** الله تعالی دَ اخلاص والو ته دَ زړه استغنا هم ورکوی اودَ هغه ګډوډ حاجتونه هم راجمع کوی او په کورکښې په ناسته ناسته (په سهولت) سره دَهغه ټول ضرورتونه پوره کیږي دنیا او دنیادار ټول دَ ده ته خادمان جوړیدو سره راځی کمافی الحدیث «من کان لله کان الله له»

**[٥٣٢٢] دآخرت په نیت سره دَ نیکۍ په شهرت باندې خوشحالیدل ریاکاری نه ده**

٥٣٢٢-()[۱] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! [۳] بَيْنَا أَنَا فِي بَيْتِي فِي مُصَلَّايَ، [۴] إِذْ دَخَلَ عَلَيَّ رَجُلٌ [۵] فَأَعْجَبَنِي الْحَالُ الَّتِي رَآنِي عَلَيْهَا، [۶] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " [۷] رَحِمَكَ اللَّهُ يَا أَبَا هُرَيْرَةَ! لَكَ أَجْرَانِ: [۸] أَجْرُ السِّرِّ وَأَجْرُ الْعَلَانِيَةِ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهریره ؓ وایي، [۲] یوه ورځ ما عرض وکړو؟ یارسول الله [۳] ما خپل کورکې مصلې باندې مونځ کوی، [۴] چې هغه وخت ناڅاپه یو سړی ماته راغی [۵] ماته

[۱]) واحمد في المسند: ١٨٣/٥

[۲]) اخرجه الترمذي في السنن كتاب الزهد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب عمل السر (رقم-٢٣٨٤) وابن ماجه في كتاب الزهد/باب الثناء الحسن (رقم-٤٢٢٦)

دي خبري سره خوشحالي حاصله شوه چې هغه زه د مانځه په حالت کې وليدم.[ نو آيا هغه وخت ځما خوشحاليدل به رياء کې شمار وي يا نه؟] ⑥ رسول الله ﷺ راته وفرمايل ⑦ اې ابوهريره په تا دي د الله رحمت وي، ته د دوو ثوابونو مستحق شوي ⑧ يو خو د پټ او دويم د ښكاره كيدو، امام ترمذي دا روايت نقل كړى دى او ويلي يې دي چې دا حديث غريب دى

**حل اللغات:-** ① السِّرِّ: پټ، ② الْعَلَانِيَةِ: ښکاره

**تسهيلات:**

## قوله: فَأَعْجَبَنِي الْحَالُ.

**د ريا په باره کښې د صحابي تپوس:** يعنى زه په کورکښې په پټه توګه مونځ کوم ليکن دَدې نيکئى په حالت کښې کله ماته څوك ګورى نوزه خوشحاليږم آيا دا رياكارى خونه ده؟

**د دوو اجرونو ملاويدل:** حضورپاك په جواب كښې اوفرمائيل چه دا رياكارى نه ده بلكه په دې باندې به دوه اجرونه ملاويږى

① يو اجر خو په پټه توګه باندې دَ مونځ کولو دَ وجې ملاويږى

② دويم اجر به په دې ملاويږى چه ته دَخپل عبادت په حالت باندې خوشحال شوې په عبادت باندې خوشحاليدل هم عبادت دې. يو روايت كښې دى أجرالسر وأجرالعلانية دواړو مفهوم نيزدې نيزدې دې.

**[۵۳۲۲] دَرياكار ديندار دَپاره سخت وعيد**

> ۵۳۲۲-()[۹] ① وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② " «يَخْرُجُ فِي آخِرِ الزَّمَانِ رِجَالٌ يَخْتِلُونَ الدُّنْيَا بِالدِّينِ، ③ يَلْبَسُونَ لِلنَّاسِ جُلُودَ الضَّأْنِ مِنَ اللِّينِ، ④ أَلْسِنَتُهُمْ أَحْلَى مِنَ السُّكَّرِ ⑤ وَقُلُوبُهُمْ قُلُوبُ الذِّئَابِ ⑥ يَقُولُ اللَّهُ: أَبِي يَغْتَرُّونَ أَمْ عَلَيَّ يَجْتَرِئُونَ؟ ⑦ فَبِي حَلَفْتُ لَأَبْعَثَنَّ عَلَى أُولَئِكَ مِنْهُمْ فِتْنَةً ⑧ تَدَعُ الْحَلِيمَ فِيهِمْ حَيْرَانَ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهريره ﷺ وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② زه تاسو ته ښايم په آخره زمانه کې به داسې خلق هم پيدا شي چې د دين په بهانه د دنيا طلبګار وي [يعنى د دين او اخروي اعمال په ذريعه به دنيا ګټي او چاپلوسي او اظهار تواضع د مخه به] ③ خلقو باندې اثر پريوتلو د پاره د پسونو د څمړی لباس اغوندى [چې خلق ورته عابد او زاهد، د دنيا د نعمتونو نه بې پروا او د آخرت طلبګار ګڼلو سره د هغوئ مريد او معتقد شي] ④ د هغوئ ژبې به د شکرې نه زياتې شيريني وي، ⑤ ليکن د هغوئ زړونه به د

(۱) اخرجه الترمذي في السنن كتاب الزهد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-۲۴۰۴)

شرمخانو د زړونو په شان وي ایعنی د هغوئ خبري به ډیري خوشگواري او نرمي نه ډکي وي د هغوئ تقریر او گفتگو اوریدو سره به خلق داگني چې دا زمونږ ډیر همدرد او خیر خوا او غم خوار دوستان دي. او د هغوئ په زړونو کې د دین وملت ډیر درد دي لیکن حقیقت به داوي چې دخپل ذاتي اغراضو او منافعو د پاره دوستي دښمني کوي او اهل تقوی او ددین او ملت حقیقي خدمتگاروته به نقصان او تکلیف رسوي. او تورو بهیمانه او حیواني خصلتونو کې به د هغوئ زړونه د شرمخ د زړه په شان سخت او شفي وي۱ ⑥ الله ﷻ داسې خلقو ته تنبیه کولو د پاره فرمایي آیا داخلق زمادطرف نه په مهلت ورکولو بندی او وخت ورکولو په سبب مغرور شوی دی. او دهوکه کې مبتلا دی ایعنی آیا دوئ دي غلط فهمي کې مبتلا دي، چې زه د دوئ معین او مددگار یم او په دي دنیا کې چې دوئ ته کومي کامرانی او کامیابی نصیب دي. هغه په دوئ څما د رحمت نازلیدو په بناء دي؟ آیا دوئ ته معلومه نه ده چې مونږ دي قسم خلقو ته دغه شان مهلت ورکوو. یا دي ځای کې د اغتراء نه مراد د الله ﷻ نه نه ویریدل او خپل بد افعال نه توبه نه اوخکل دي په دي صورت کې د يَغْتَرُّونَ، معنی به داوي چې داخلق څما د غضب او عذاب نه نه ویریږي. او یا څما په مقابله کې په دوئ کې دومره جرات پیدا شوی دی چې د اعمال صالحه په ذریعي او د دین په نوم خلقوته دهوکه ورکولو سره گویا څما مخالفت باندې کلک ولاړ دي۱ .⑦ نو زه خپل قسم اخلم، چې زه به یقینًا په دي خلقو فتنه او بلامسلط کړم. ایعنی دي خلقو نه به داسې امراء او حکام او داسې افراد. او ډله بندي متعین کړم. چې دوئ به په آفاتو او مصائبو او قسم قسم نقصان او ضرر کې مبتلا کړي. او هغه آفات او مصائب به داسې وي۱ چې لوی نه لوی دانشور او عقلمند سړی به هم هغه آفات او مصائب لري کول. ۱او دهغه خطرناك حالت نه ځان کهولاؤول۱ او د هغه په سلسله کې څه مناسب او موزون اقدام او کاروایي کولو نه۱ عاجز او حیران کړي (ترمذي)

**حل اللغات:**- ① يَخْتِلُونَ دا صیغه د باب ضرب یضرب نه ده دهوکه ورکولو سره د یوځیز حاصلولوته خَتَلٌ وائی ② يَلْبَسُونَ اغوندی. ③ جُلُودَ څرمن. ④ الضَّأْنِ گډ. ⑤ اللِّينِ دخود غرضئ دپاره عاجزی چاپلوسی او تواضع کوی ⑥ أَحْلَى ډیرې خوږې. ⑦ السُّكَّرِ شکر. چینی. ⑧ الذِّئَابِ د ذئب جمع ده شرمخ. ⑨ يَغْتَرُّونَ په دهوکه کښې پریوتل داخلق. ⑩ يَجْتَرِئُونَ په ما باندې اوچت اوچت راځی. جرأت کوی ⑪ حَلَفْتُ قسم کوم. ⑫ الْحَلِيمَ عقل مند هوښیار بوج وجتونکي. ⑬ حَيْرَانَ پریشان

**تسهيلات:**

**قوله: رِجَالٌ يَخْتِلُونَ الدُّنْيَا بِالدِّينِ**

**دحديث مطلب:** مطلب دادې چه دين دَ دنيا دَ حصول ذريعه جوړول اوپه هغې كښې هم دَ دهوكې نه كاراخستل چه دَ رياكارئى پيرې جامې اختياركړى بلكه دګډو چيلودَ څرمنونه لباس جوړولوسره واغوندى دې دَپاره چه خلق پرې دَ زاهد اوتارك الدنيا ګمان اوكړى ژبه دَ شاتونه زياته خوږه كړى دې دَپاره چه خلق پرې ګمان اوكړى چه زبردست اخلاقو والا دې. خوږې خبرې كوى حالانكه دَ هغه زړه دَ ليوه اوشرمغ دَ زړه په شان سخت سنګين وى

**قوله: تَدَعُ الْحَلِيمَ فِيهِمْ حَيْرَانَ،**

**د سزا په طور دظالم حكمران مقرر كول:** يعنى دَ ظالم حكمرانانو په صورت كښې كوم چه به هم دهغوى نه وى. په هغوى باندې به داسې قهراوغضب نازل كړم چه دا رياكارخلق به دَخپلې غارې خلاصولودَپاره خپې لاسونه وهى مګر دَ خلاصى لار به نه بياموميى اوخوار او ذليل به پاتې شى.

**[٥٣٢٤] خوږه ژبه اوسخت زړه والا خلق**

٥٣٢٤ - ( )[١٠] ① وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا -، عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: " ② «إِنَّ اللَّهَ تَبَارَكَ وَتَعَالَى قَالَ: ③ لَقَدْ خَلَقْتُ خَلْقًا أَلْسِنَتُهُمْ أَحْلَى مِنَ السُّكَّرِ ④ وَقُلُوبُهُمْ أَمَرُّ مِنَ الصَّبِرِ ⑤ فَبِي حَلَفْتُ لَأُتِيحَنَّهُمْ فِتْنَةً تَدَعُ الْحَلِيمَ فِيهِمْ حَيْرَانَ، ⑥ فَبِي يَغْتَرُّونَ أَمْ عَلَيَّ يَجْتَرِئُونَ» ؟ ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابن عمر ﷺ دَ رسول الله ﷺ نه نقل كوي، حضور ﷺ وفرمايل ② الله تبارك وتعالى فرمايې: ③ مايوداسې مخلوق پيداكړى دى، چې د هغوئ ژبې د شكر نه زياتې شيريني وې ④ او د هغوئ زړونه به مصبر(ديو بوټى وى چې په رنګ تور اوډير زيات تريخ وې صبردارو) زيات تريخ وى ⑤ نو زه خپله قسم اخستو سره وايم، چې زه به په هغوئ يقيناً داسې بلاګانې نازلې كړم چې لوى لوى دانشور. عقلمند سړى به هم حيران او عاجزه پاتې كړې ⑥ نو آيا داخلق ماته دهوكه راكوي، يا په ماباندې جرات او زړورتيا د لرې نه نبايې. ترمذې داحديث نقل كړى دى، او فرمايلي يې دي چې داحديث غريب دى

**حل اللغات:** - ① أَمَرُّ : دَ مرارة نه دې يعنى زيات تريخ او تريو. ② الصَّبِرِ: يوه ترخه ونه ده په اردوكښې "ايلوا" وائى، پښتو كښې ورته مصبر وائى. ③ حَلَفْتُ: قسم خورم، ④ لَأُتِيحَنَّهُمْ: دَ إتاحة نه دې مقرر كولو اومسلط كولو په معنى كښې دې.

[١] اخرجه الترمذى فى السنن كتاب الزهد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-٢٤٠٤)

**تسهيلات:**

**قوله:** أَلْسِنَتُهُمْ أَحْلَى مِنَ السُّكَّرِ"

**ظاهري اخلاق اومنافقت:** يعني داخلق به منافقان اوملحدان وی ژبه خو به ئې ډیره خوږه وی دپیغمبرانو والا خبرې به کوی مګر د کردار اوعمل په اعتبارسره به دهغوی زړونه دغلطو عقیدو او غلطوسوچونونه ډك وی

**قوله:** تَدَعُ الْحَلِيمَ فِيهِمْ حَيْرَانَ

عقل مند هوښيار اوبوج اوړونكى سړى ته حليم وئيلې شوې دې مطلب دا چه دغه رياكار منافق او بدكرداره خلقوعيارئى مكارئى او بدكردارئى ته كتلو سره به سنجيده او باوقار خلق هم حيران ګوته په خله پاتې شى دداسې خلقو دپاره په دى حديث كښې اودې نه مخكښې حديث نمبر ٩ كښې سخت وعيد دې

**[٥٣٢٥] د ميانه روى فضيلت**

٥٣٢٥-()(٣) [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] " «إِنَّ لِكُلِّ شَيْءٍ شِرَّةً، [٣] وَلِكُلِّ شِرَّةٍ فَتْرَةً، [٤] فَإِنْ صَاحِبُهَا سَدَّدَ وَقَارَبَ فَارْجُوهُ، [٥] وَإِنْ أُشِيرَ إِلَيْهِ بِالْأَصَابِعِ فَلَا تَعُدُّوهُ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابوهريره وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل. [٢] هرشي د پاره حرص او زياتوب دى. [٣] اوبياد هرحرص او زياتوب د پاره سستي او سپكاوى دى [٤] كه عمل كونكى ميانه روى نه كار واخستى او د اعتدال نزدې وو او دغه شان هغه افراط وتفريط يعنى كمى زياتي نه پرهيز وكى نو د هغه باره كې اميد لرې چې هغه به خپل مراد پيدا كې [٥] او كه د هغه طرف ته په ګوتو سره اشاره وشوه. (معنى هغه طاعت او عبادت او اورادو او د وظائفوپه مشغوليت او دنياوي نعمتونوترك كولو كې په دې وجه مبالغه او كثرت اختيار كى چې خلقو كې عابد او زاهد مشهور شي. او بيا هغه په خلقو كې عابد او زاهد مشهور هم شوا. خو تاسو هغه عابد او زاهد او صالح مه شميرئ اځكه چې درحقيقت د رياكارو نه دى) (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① شِرَّةٌ د تيزئى چالاكئى او تازګئى په معنى كښې دې ② فَتْرَةٌ د فتور نه دې سستئ ته وائى ③ سَدَّدَ اعتدال يعنى برابرى ئې اختيار كړه. ④ قَارَبَ ميانه روى اختيارول ⑤ فَارْجُوهُ د هغه د كاميابئ اميدلرئ ⑥ فَلَا تَعُدُّوهُ مه ئې شميرئ

---

(١) اخرجه الترمذي في السنن كتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب منه (رقم ٢٤٥٣) وابن ماجه في كتاب الزهد/باب التوقي على العمل (رقم-٤٢٠١)

**تسهيلات:**

**قوله**: وَلِكُلِّ شِرَّةٍ فَتْرَةٌ،

**په ابتداء کښې د يو څيز تيزی**: مطلب دا چه کوم يو تحريك يا جماعت کله چه په شروع کښې راپيدا کيږی نو په ډيره تيزئی او تازګئی سره کارکوی دغه شان چه کله انسان په شروع شروع کښې په څه عبادت کښې لګياشی نو ډيره تيزی او چستی ښائی مګر څه موده پس هم دغه خلق او دهغوی تحريکونه سست شی څکه چه د عروج نه پس زوال فطری قانون دې لکه چه په شروع کښې افراط وی او په انتهاء کښې تفريط راځی په دغه دوران کښې رياکاری خامخا شامليږی. په دې حديث کښې دَ سدد او قارب الفاظو سره حضورپاك دَ ميانه روئی اودَ اعتدال تعليم ورکړې دې

**قوله**: وَإِنْ أُشِيرَ إِلَيْهِ بِالْأَصَابِعِ،

**بعضې تعريفونه سبب د هلاکت وی**: يعنی دَ شهرت او نمائش مقام ته اورسيدو اوخلقو په ګوتو سره دَهغه طرف ته اشارې کول شروع کړې چه واه واه روان دې فلانکې دې اوفلانکې داسې دې اوهغه شان دې. دا اشارې چه څنګه په ګوتوسره کيږی دغه شان دَ ژبې په نعرو سره هم کيږی بل دا چه څنګه دا اشارې دَدنيا دَ دولت اودَمنصبونودَ وجې کيدې شی دغه شان دَ دين او دينداربئی په حوالې سره هم کيدې شی دا اشارې څکه مذموم دی چه په دې سره کله انسان دَ شان شوکت، دَ رياکارئی او تکبر او دَ اقتدار په چکر کښې پريوځی

**قوله**: فَلَا تُعِدُّوهُ.

**د مذکوره سړی عدم اعتبار**: يعنی دا قسم سړې په دينداربئی او دنيادارئی يوه درجه کښې هم مه شميرئی که دې دَ آخری انجام پورې هم په دغه حالت باندې پاتې شو نودا تباه حال او برباد سړې دې اوکه چرې توبه اوکړی اودَ دغه حالت نه اوځی نوهغه جدا خبره ده راتلونکې حديث نمبر ١٢ کښې دَدې نور وضاحت دې

**[٥٣٢٦] دَ مشهورتيا ژوند سره خطرات**

٥٣٢٦-(¹) [١٣] [١] وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [٢] " «بِحَسْبِ امْرِءٍ مِنَ الشَّرِّ [٣] أَنْ يُشَارَ إِلَيْهِ بِالْأَصَابِعِ فِي دِينٍ أَوْ دُنْيَا [٤] إِلَّا مَنْ عَصَمَهُ اللّٰهُ» " رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي (شُعَبِ الْإِيمَانِ).

**ترجمه**: [١] او حضرت انس ﷺ د رسول الله ﷺ نه نقل کوي. رسول الله ﷺ وفرمايل. [٢] د انسان دبدي د پاره دومره کافي ده، [٣] چې د دين يا دنيا د اعتبار نه هغه طرف ته په ګوتو سره اشاره وشي. [٤] خو دا چې الله ﷻ څوك محفوظ وساتي نو هغه محفوظ شی. بيهقی

¹) اخرجه البيهقی فی شعب الايمان رقم الحديث ٦٩٧٨

په شعب الايمان کې نقل کړی دی

**حل اللغات:-** ① بِحَسْبِ امْرِئٍ : د انسان دبدئ د پاره دومره کافی ده.

**تسهيلات:**

**قوله:** بِحَسْبِ امْرِءٍ مِنَ الشَّرِّ أَنْ يُشَارَ إِلَيْهِ بِالْأَصَابِعِ

**د دنياوي شهرت اوتباهي:** دَ دنياوي شهرت حاصلولو په غرض يو كار كول په آفتونو او فتنوكښې دَ اخته كيدو اودَ ايماني امن او دَ سلامتيا دَ لارې نه دَ لرې كيدو سبب دي خو كه يو كس دَ خپل ژوند په اعتبار سره مشهور اومعروف دې نوهغه هم دَ خطرې نه خالي نه دې ځكه چه په دې صورت كښې په دغه دَ رياكار كيدو گمان كيدې شي خو چه كوم كس په دنيا كښې مال او دولت لرى اودَ هغه مالدارئي او دولت دَ وجې نه هغه مشهور اومعروف دې او په فسق اوفجوركښې اخته نه وى اودَ دين په اعتبار سره دَ كتاب اوسنت تابعدار او منونكې وى نو هغه په دې حكم كښې داخل نه دې

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [٥٣٢٧]دَ رياكارئ مذمت

٥٣٢٧-()[١٣] ① وَعَنْ أَبِي تَمِيمَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: ②«شَهِدْتُ صَفْوَانَ وَأَصْحَابَهُ،③وَجُنْدَبٌ يُوصِيهِمْ، فَقَالُوا: ④هَلْ سَمِعْتَ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- شَيْئًا؟ قَالَ: ⑤سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: "مَنْ سَمَّعَ سَمَّعَ اللَّهُ بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ،⑥وَمَنْ شَاقَّ شَقَّ اللَّهُ عَلَيْهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ" ⑦⑧قَالُوا: أَوْصِنَا،

**ترجمه :** ① حضرت ابو تميمه رحمه الله تابعي وايي، ② يوه ورځ زه د حضرت صفوان او د هغوئ د ملګروپه مجلس کې هغه وخت حاضرشوم،[کله چې مشهور اوجليل القدر صحابي حضرت جندب ابن عبد الله ابن سفيان بجلي، حضرت صفوان او دهغه ملګرو ته د رياضت او مجاهدي راه مستقيم اختيارولو، او دسمعه او رياء او د حصول شهرت د طلب او خواهش نه د پرهيز کولو وصيت کوي] ،③ نو حضرت صفوان او د هغه ملګرو هغه ته اوويل④ آيا تا د رسول الله ﷺ نه څه اوريدلي دي [يعني که تاڅه حديث اوريدلی وي، نو هغه زمونږ مخکې بيان کې، او مونږ ته د ارشاد نبوي اوريدو موقع راکړي حضرت جندب رضي الله عنه داحديث بيان کې] ،⑤ما رسول الله ﷺ نه دا اوريدلي دي چې کوم سړی اوروي يعنی خلقوته داورولو، او شهرت حاصلولو د پاره څه نيك كار كوي، نو الله تعالی به د قيامت په ورځ هغه رسواکړي،⑥ او کوم سړی چې خپل ځان مشقت کې

---

[١] اخرجه البخاري كِتَاب الأَحْكَامِ /بَاب مَنْ شَاقَّ شَقَّ اللَّهُ عَلَيْهِ

اچوي نو الله ﷻ به د قیامت په ورځ هغه مشقت کې واچوي، ایعنی د خپل همت او د مشقت نه زیات څه کار کولو صورت کې خپل ځان تکلیف کې مبتلا کړي. یا یو دویم سړی مثلاً خپل خادم یانوکر وغیره څه داسې کار باندې مامور کړي چې د هغه د همت او طاقت نه ونلی وي ناقابل برداشت محنت او مشقت اذیت کې مبتلا کړي! ⑧ په دې اوریدو سره هغوئ صحابه وویاحضرت صفوان او د هغه ملګرو حضرت جندب ﷺ ته وویل. چې مونږ ته څه نور نصیحت وفرمایه.

**حل اللغات:-** ① شَاقَّ. سخت مشقت.

① فَقَالَ: ② «إِنَّ أَوَّلَ مَا يُنْتِنُ مِنَ الْإِنْسَانِ بَطْنُهُ، فَمَنِ اسْتَطَاعَ أَنْ لَا يَأْكُلَ إِلَّا طَيِّبًا فَلْيَفْعَلْ، ③ وَمَنِ اسْتَطَاعَ أَنْ لَا يَحُولَ بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْجَنَّةِ مِلْءُ كَفٍّ مِنْ دَمٍ أَهْرَاقَهُ فَلْيَفْعَلْ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① نو حضور ﷺ یا حضرت جندب وفرمایل، ② د انسان کوم شی چې د ټولو نه مخکې ډیرزرخرابیږي په دنیاکي یاپه قبرکي هغه د هغه خیټه ده، ③ نو کوم سړی چې قدرت لري. چې هغه څیز نه علاوه نورڅه خپلي خیټي ته ونه رسوي کوم چې حلال او جائز دی نو بیشکه هغه ته داسې کول پکار دی ④ او کوم سړی چې د دې قدرت لري چې د هغه او جنت په منځ کې ناحق بهیونکی یوچونګ وینه هم حائله نه وي، نو بیشکه هغه ته داسې کول پکار دی چې د چا یوچونګ هم ناحقه وینه بهیولو نه پرهیز وکړي (بخاري)

**حل اللغات:-** ② يُنْتِنُ. بدبوئی دار کیدو ته وائی مراد سخا کیدل او شلیدل دی ③ بَطْنُ. خیټه. ④ أَهْرَاقَ. بهیول. تویول. ⑤ يَحُولُ "دادَ حائل نه دې دَ پردې جوړیدو په معنی کښې دی

**تسهیلات:**

**قوله:** إِنَّ أَوَّلَ مَا يُنْتِنُ مِنَ الْإِنْسَانِ بَطْنُهُ:

**په قبر کښې د ټولو څخه وړاندې خرابیدونکې اندام:** یعنی په قبرکښې دَ ټولو نه مخکښې خیټه بدبویه کیږی اوخرابیږی اوبیا باقی اندامونه متاثرکیږی. لهذا سړی له پکاردی چه دې دَ حرام خوراك نه دې خپله خیټه بچ اوساتی

**قوله:** مِلْءُ كَفٍّ مِنْ دَمٍ أَهْرَاقَهُ فَلْيَفْعَلْ

**دناجائزوینې تویولووعید:** یعنی چه یوچونګ برابر وینه هم په جنت کښې دَ داخلیدو دَپاره بندیز جوړنه شی په اوچه په سیرونو اومنونو اندازې سره وینه وی. بیاخو به داخلیدل ممکن نه وی. دَدغه وینې نه ناجائز وینه تویول مراد دی.

**[٥٣٢٨] د اولياء الله لوئی شان**

٥٣٢٨-()[۱] [١] وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- [٢] «أَنَّهُ خَرَجَ يَوْمًا إِلَى مَسْجِدِ رَسُولِ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [٣] فَوَجَدَ مُعَاذَ بْنَ جَبَلٍ قَاعِدًا عِنْدَ قَبْرِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَبْكِي [٤] فَقَالَ: مَا يُبْكِيكَ؟ [٥] قَالَ: يُبْكِينِي شَيْءٌ سَمِعْتُهُ مِنْ رَسُولِ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [٦] سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: [٧] إِنَّ يَسِيرَ الرِّيَاءِ شِرْكٌ،

**ترجمه**: [١] امير المؤمنين حضرت عمر بن الخطاب نه روايت دی [٢] هغوئ يوه ورځ د رسول الله ﷺ مسجد (مسجد نبوي) ته تشريف يو وړی. [٣] نو هغه حضرت معاذ بن جبل ﷛ د رسول الله ﷺ قبر مبارك سره ناست په ژړا وليدی [٤] حضرت د هغه نه پوښتنه وکړه ولې ژاړې؟ [آيا د حضور ﷺ جدائي دي ژړوي يا د څه آفت او مصيبت په وجه ژاړې. يې د دې نه علاوه څه بل سبب په ژړا مجبوره کړې يې!] [٥] حضرت معاذ جواب ورکړو. ما د يوې خبرې ياد ژړوي [٦] چې ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلي وه. [٧] او هغه دا چې لږ ريا، هم شرك دی.

[١] وَمَنْ عَادَى لِلَّهِ وَلِيًّا [٢] فَقَدْ بَارَزَ اللهَ بِالْمُحَارَبَةِ، [٣] إِنَّ اللهَ يُحِبُّ الْأَبْرَارَ الْأَتْقِيَاءَ الْأَخْفِيَاءَ [٤] الَّذِينَ إِذَا غَابُوا لَمْ يُتَفَقَّدُوا، [٤] وَإِنْ حَضَرُوا لَمْ يُدْعَوْا وَلَمْ يُقَرَّبُوا، [٥] قُلُوبُهُمْ مَصَابِيحُ الْهُدَى، [٦] يَخْرُجُونَ مِنْ كُلِّ غَبْرَاءَ مُظْلِمَةٍ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي (شُعَبِ الْإِيمَانِ).

**ترجمه**: [١] او رسول الله ﷺ داهم وفرمايل کوم سړی چې د الله ولي سره دښمني اختيار کړه [يعنی اولياء الله ته يې څه قول او فعل سره ناحقه تکليف ورسوی هغوئ يې غصه کړل]. [٢] نو هغه ګويا د الله سره مقابله وکړه او هغه سره يې جنګ وکی [او ښکاره ده چې کوم سړی د الله سره مقابله وکړه، د هغه تباهي بربادي ذلت او رسوائي کې هيڅ شك نشته]. [٣] يقيناً الله ﷻ نيکو کار پرهيزګار او مخفي حال خلق دوست لري. [٤] او دا هغه خلق دي چې کله هغوئ د نظر نه غائب وي نوڅوك يې پوښتنه نه کوي.. چې د هغوئ ظاهري حالت خو کمزوري او عام نظرونو کې دومره ناقابل توجه وي. [٤] هر کله چې موجود وي. نو هغوئ په څه دعوت او مجلس کې نه بلل کيږی او که وبلل شي هم. نو د ځان سره نزدې نه کينوي. اليکن باطني او روحاني طور سره د هغوئ مقام ډير بلند وي[ [٥] د هغوئ زړونه د هدايت څراغونه وي چې د هغوئ د نورو نه شيده لار پيدا کوی شي. [٦] او داخلق دهري توري تيارې (تاريك) زمکي نه راوځي. دا روايت ابن ماجه او شعب الايمان کې د بيهقي ﷫ نه نقل شوی دی

[۱] اخرجه ابن ما جه فی السنن کتاب الفتن/باب من ترجی له السلامة من الفتن (رقم -۳۹۸۹) والبيهقی فی شعب الايمان رقم الحديث ۶۸۱۲

**حل اللغات:** - ① بَارَزَ جنګ ته اوکړو ② الْمُحَارَبَةِ مقابله. ③ الْأَبْرَارَ د بر جمع ده نیکانو خلقو ته وائي ④ الْأَتْقِيَاءَ د تقي جمع ده پرهیزګار. ⑤ الْأَخْفِيَاءَ د خفي جمع ده. پټ حال او هیر کړي سوي. ⑥ يُتَفَقَّدُوا د تفقد نه دي دمجهول صیغه ده د لټولو په معنی کښي دي ⑦ مَصَابِيحُ دمصباح جمع ده ډیوه. ⑧ غَبْرَاءَ د خضراء په مقابله کښي زمکي ته وائي

**تسهيلات:**

**قوله** فَوَجَدَ مُعَاذَ بْنَ جَبَلٍ قَاعِدًا عِنْدَ قَبْرِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَبْكِي،

**دمعاذ رضی الله عنه د ژړا وجه:** دحضرت معاذ ﷺ د ژړا وجه دا وه چه د شرك دومره باريك شعبې دی چه کتلو سره د هغې نه بچ کیدل ډیر ګران وی لکه چه ونیلی شوی دی "فإنه أدق من دبيب النملة السوداء على الصخراء الصماء في الليلة الظلماء" یعنی شرك د تور میږی په نوره شپه کښې په مضبوط کاڼری باندې په مزه تللو پتوالی نه هم زیات پټیدې شی

**قوله** وَمَنْ عَادَى لِلَّهِ وَلِيًّا فَقَدْ بَارَزَ اللَّهَ بِالْمُحَارَبَةِ

**دوه قسمه خلقو ته د الله تعالی اعلان جنګ:** د نصوصو نه ثابته ده چه دوه قسمه خلق داسی دی چه هغوی سره الله تعالی د جنګ اعلان کړې دې ① يو سودخور لکه د قرآن پاک په دریمه پاره سورة بقره کښې چه راغلی دی ② اودویم هغه کس سره د جنګ اعلان کوی څوک چه د الله تعالی دوست سره دشمنی کوی

**قوله** وَإِنْ حَضَرُوا لَمْ يُدْعَوْا وَلَمْ يُقَرَّبُوا"

**د مذکوره جملې مطلب:** یعنی که چرته دعوت کښې راؤبللې هم شی یادوی پخپله راشی نو هیڅوك هم دوی خپل څان سره دکینولو دپاره تیارنه وی بلکه څپلو سره خواکې بې کاره څانی کښې کینولې شی دخلقو په نیزخو به دوی دومره کمزورې وی لیکن دالله تعالی په نیز دوی روښانه چراغونه دی ددوی زړونه د هدایت په رڼا سره روښانه دی رحمن بابا هم دداسې خلقو باره کښې په خپل لغت کښې فرمائیلی دی

چه په یوقدم ترعرشه پورې رسی　　　　مالیدلې دې رفتار د درویشانو

**قوله:** يَخْرُجُونَ مِنْ كُلِّ غَبْرَاءَ مُظْلِمَةٍ"

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① علامه طیبی فرمائی ددې خلقو حالت دومره خراب وی چه په تنګ اوتیاره اوکچه کورونوکښې اوسیږی په کوم کښې چه د ژوند آسانتی نه وی هم هغې ته ورځی اود هغې نه راوځی لکه چه ګمنام اوخسته حال دی دامفهوم زیات واضح دې

② داخلق د ایمانی نور په ذریعه سره د هرتور او تنګ تیاره مشکل نه په ډیره آسانه اوځی اوکامیابیږی.

قوله وَمَنْ عَادَى لِلّٰهِ وَلِيًّا:

**دولي په تعريف کښې اقوال:** ① ولي هغه وی چه په دليل محکم سره دَ صحيح عقيدې مالك وی او په پوره شريعت باندې تلونکې وی دَدې تعريف په رڼا کښې علماء په اولياء الله کښې داخليږي چنانچه ملاعلي قاري رحمه الله فرمائي چه بعضې اکبرو ويلي دی "إن كان العلماء ليسوا أولياء الله فليس لله الولي"

② ملاعلي قاري رحمه الله دَ ولي تعريف داسې کړې دې "إن الأولياء هم العلماء العاملون"

**د مذکوره حديث مفهوم پشان نور احاديث:** ① قال الله تعالى أوليائي تحت قبائي لا يعرفهم غيري

② "من عادي لي وليا فقد آذنته بالحرب"

③ "وإني لأغضب لأوليائي كما يغضب الليث للحرو" الله تعالى دې هر يو مسلمان دَ اولياء الله دَ توهين او تحقير نه بچ اوساتي.

**[۵۳۲۹] دَمخلص مسلمان ظاهر او باطن يوشان وی**

۵۳۲۹-() [۱۵] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: ② قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "③ «إِنَّ الْعَبْدَ إِذَا صَلَّى فِي الْعَلَانِيَةِ فَأَحْسَنَ، وَصَلَّى فِي السِّرِّ فَأَحْسَنَ، ④ قَالَ اللّٰهُ تَعَالَى: هٰذَا عَبْدِي حَقًّا» ". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهريره وايي، ② چې رسول الله ﷺ وفرمايل، ③ بنده چې په اخلاص سره د تولو مخکې مونځ کوي، نو په ښه طريقه سره يې کوي (يعنى د مونځ ټول شرائط او واجبات سنن او مستحبات لحاظ ساتلو سره يې کوي، او دغه شان نور عبادات او طاعات هم پوره آداب او شرائط سره اداء کوي)، ④ او هرکله چې پټ طور سره (يعنى تنهائي کې کوي). نو هغه وخت هم داسې خوبي سره يې کوي، کومې خوبي سره چې د خلقو مخکې يې کوي، ④ نو الله ﷻ فرمايي چې ځما بنده د صدق او راستي حامل دی. يعنی د ده طاعت او عبادت درياکاري نه پاك دی (ابن ماجه)

**تسهيلات:**

**قوله** إِذَا صَلَّى فِي الْعَلَانِيَةِ فَأَحْسَنَ،

**په خلوت او جلوت کښې په ښه شان دعبادت کولو ستائنه:** په حديث الباب کښې الله تعالى دَ هغه کس تعريف کړې دې چه کوم په خلوت کښې هم دَ جلوت په شان ښکلې مونځ کوی چه دا مخلص دې رياکار نه دې اودا زما رښتونې بنده دې لکه چه ده ته دَ احسان صفت هم حاصل دې

(۱) اخرجه ابن ما جه فی السنن کتاب الزهد /باب التوقی علی العمل (رقم-۴۲۰۰)

**[۵۳۳۰] دَ ریاکاره خلقو مذمت**

۵۳۳۰-(۱)[۱۶] [۱] وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ-: أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: "[۲]«يَكُونُ فِي آخِرِ الزَّمَانِ أَقْوَامٌ، إِخْوَانُ الْعَلَانِيَةِ، أَعْدَاءُ السَّرِيرَةِ". [۳] فَقِيلَ: [۴] يَا رَسُولَ اللهِ! وَكَيْفَ يَكُونُ ذٰلِكَ؟ [۵] قَالَ: ذٰلِكَ بِرَغْبَةِ بَعْضِهِمْ إِلَى بَعْضٍ، وَرَهْبَةِ بَعْضِهِمْ لِبَعْضٍ»".

**ترجمه:** [۱] او د حضرت معاذ بن جبل ﷺ نه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] په آخره زمانه کې به داسې قومونه او جماعتونه پیدا شي، چې په ظاهرکي به دوست ثابتیږي خو په باطن کې به دښمني کوي. [۳] عرض وشو یا رسول الله ﷺ [۴] داسې به ولي او په څه سبب وي، [۵] حضور ﷺ وفرمایل داسې به په دي وجه وي چې په هغوئ کې به بعضې دبعضوسره غرض او لالچ لري، او بعضې نه به خوف زده وي

**حل اللغات:-** ① إِخْوَانُ الْعَلَانِيَةِ: په ښکاره د یوبل رونړه وی. ② أَعْدَاءُ السَّرِيرَةِ په پټه د یوبل دښمنان وی. ③ رَغْبَةِ: طمع او لالچ. ④ رَهْبَةِ: ویره.

**تسهیلات:**

**قوله: إِخْوَانُ الْعَلَانِيَةِ"**

**په ظاهره دوست باطن کښې دشمن:** یعنی یوبل سره مخامخ ملاویږی نودَ خان خودلو. بناوټ او ریاکارئی دَ وجې نه پاخه دوستان ښکاری لیکن چه لږ اخوا دیخوا غائب شی نوبیا پاخه دښمنان وی. دَ یو بل په خپو باندې تبرونه وهی قیامت ته دَ نیزدې خلقو به هم دغه حالت وی

**قوله: بِرَغْبَةِ بَعْضِهِمْ"**

**د مطلب یارانه:** یعنی لالچ اوطمعې دَ وجې دَ یوبل خودغرض دوستان وی مکر دَ یوبل نه ویره اوخطره او ضرر دَ وجې نه ویریږی. لکه دَ اغراضو اومقاصدو اوطمع اولالچ بنده ګان وی.

**[۵۳۳۱] د ریاکار مونځ، روژه او صدقه هم شرک دي**

۵۳۳۱-(۲)[۱۷] [۱] وَعَنْ شَدَّادِ بْنِ أَوْسٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ-، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: "[۲]«مَنْ صَلَّى يُرَائِي فَقَدْ أَشْرَكَ، [۳] وَمَنْ صَامَ يُرَائِي فَقَدْ أَشْرَكَ، [۴] وَمَنْ تَصَدَّقَ يُرَائِي فَقَدْ أَشْرَكَ»". رَوَاهُمَا أَحْمَدُ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت شداد ابن اوس وایي [۲] ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلي دي [۳] کوم سړی چې ښوونې د پاره مونځ وکړو هغه شرک وکی [۴] کوم سړی چې ښوونې د پاره روژه

---

[۱] اخرجه احمد فی المسند، ۲۳۵/۵

[۲] اخرجه احمد فی المسند، ۱۲۶/۴

ونیوله هغه شرك وکی. [۵] او کوم سړی چې ښوونې د پاره صدقه خیرات وکی هغه شرك وکی دا دواړه روایتونه احمد نقل کړي دي

**تسهیلات:**

**قوله: وَمَنْ صَامَ يُرَائِي فَقَدْ أَشْرَكَ:**

**په روژه کښې د ریاکارۍ ثبوت:** ملاعلی قاري وایی دا حدیث دی طرف ته اشاره کوی چې دریاء دخل روژه کی هم کیدي شی په دی اعتبار سره دا حدیث ګویا دهغه حضرات خلاف یو دلیل دی چې دا وایی چې دریاء تعلق روژی سره نه شی کیدی او ددي سبب دا بیانوی چې د روژی دارو مدار په نیت دی. دکوم سړی نیت چې صحیح نه وی دهغه خوراك څکاك نه دمنع کیدو هیڅ اعتبار نشته او ظاهره ده چې نیت کی ریاکاری. یعنی دښوونی عمل دخل نشي کیدی،

**په روژه کښې د ریا راتلو مطلب:** یکن زمونږ وئیل دا دی چې په دی کی شك نشته چې حقیقي معنی کی ریاء روژه کښی نشی متصور کیدی خو داهم یو حقیقت دی چې ډیر خله ریاء داشتراك په طور وی، یعنی دا هم کیږي چې یو سړی دیو نیك کار او عبادت څکه قصد او اراده کوی چې دالله ﷻ رضا اوخوشنودی حاصله کړی خو دهغه سره دهغه په نیت کی دا خبره هم شامله وی، چې دهغه نیك کار او عبادت په ذریعه هغه ته شهرت حاصل شي. یافلانی غرض پوره شی چې دهغه تعلق دالله ﷻ رضا اوخوشنودی سره نه وی. او داجدا خبره ده چې دواړه مقصد برابر وی، یا په هغه کی یو غالب وی څرنګه چې دباب په ابتداء کی تفصیل تیز شوی دی، معلومه شوه چې په روژه کی هم دریاء دخل کیدي شی

**[۵۳۲۲] د نبی علیه السلام په خپل امت باندې د ریا کارۍ ویره**

۵۳۲۲-( )[۱۸] [۱] وَعَنْهُ، [۲] «أَنَّهُ بَكَى، [۳] فَقِيلَ لَهُ: مَا يُبْكِيكَ؟ [۴] قَالَ: شَيْءٌ سَمِعْتُ مِنْ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ، [۵] فَذَكَرْتُهُ، فَأَبْكَانِي، [۶] سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: "أَتَخَوَّفُ عَلَى أُمَّتِي مِنَ الشِّرْكِ وَالشَّهْوَةِ الْخَفِيَّةِ"، قَالَ: قُلْتُ: [۹] يَا رَسُولَ اللّٰهِ! أَتُشْرِكُ أُمَّتُكَ مِنْ بَعْدِكَ؟

**ترجمه:** [۱] او د حضرت شداد ابن اوس رضی الله عنه باره کې منقول دی، [۲] چې په یوه موقع هغه په ژړا شو [۳] پوښتنه ځني وشوه د ژړا سبب څه دی؟ [۴] جواب یې ورکی زه دي خبرې ژړولی یم. چې ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلي وه، [۵] داوقت ماته هغه خبره رایاده شوه، نو زه په ژړا مجبوره شوم [۶] او هغه خبره داده چې حضور ﷺ وفرمایل [۷] زه خپل امت

[۱] اخرجه ابن ما جه فی السنن کتاب الزهد/باب الریاء والسمعة (رقم-۴۲۰۵) واحمد فی السند: ۱۲۶/۴ والبیهقی فی شعب الایمان رقم الحدیث ۶۸۳۰

باندې د شرك او پټ خواهشاتو نه خوف كوم.[٨] حضرت شداد رضي الله عنه وايي په دې اوريدو سره ما عرض وكړو[٩] يا رسول الله ﷺ ايا ستاسو امت به ستاسو نه پس په شرك كې مبتلا كيږي

**حل اللغات:** - ① أَتَخَوَّفُ: زه ويريږم.

[١] قَالَ: "نَعَمْ،[٢] أَمَا إِنَّهُمْ لَا يَعْبُدُونَ شَمْسًا،[٣] وَلَا قَمَرًا،[٤] وَلَا حَجَرًا،[٥] وَلَا وَثَنًا،[٦] وَلَكِنْ يُرَاؤُونَ بِأَعْمَالِهِمْ،[٧] وَالشَّهْوَةُ الْخَفِيَّةُ أَنْ يُصْبِحَ أَحَدُهُمْ صَائِمًا، فَتَعْرِضُ لَهُ شَهْوَةٌ مِنْ شَهَوَاتِهِ[٨] فَيَتْرُكُ صَوْمَهُ». رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي (شُعَبِ الْإِيمَانِ).

**ترجمه:** [١] رسول الله ﷺ وفرمايل هو يادلره.[٢] خبردار د امت خلق به د نمر عبادت خونه كوي. [٣] د سپوږمۍ عبادت به نه كوي[٤] د كاڼي عبادت به نه كوي[٥] او نه كاڼه بت پرستي به نه كوي [يعنى هغوئ به شرك جلي كې مبتلا نه وي] .[٦] ليكن د خلقو د ښوونې د پاره به نيك كار كوي] او دا شرك خفي دى، چې په هغه كې به هغوئ اخته وي] .[٧] او پټ خواهش دادى چې مثلاً په تاسو كې يو سړى د روژې په حالت كې صبح كړي او بيا په هغه نفساني خواهشاتو كې د يو خواهش غلبه اوشي[٨] او د خپله روژه به ماته كړى [ لكه د خوراك خواهش باندې غالب شي يا جنسي خواهش يې راپورته شي. او هغه د هغه خواهش دخلې په وجه طعام خوړلو سره يا هم بستري كولو سره خپله روژه ماته كړي. اوحال دا چې شرعي طور باندې ديو قابل اعتبار ضرورت او حالت پيش راتلو بغير روژه ماتول حرام دي] (احمد ، بيهقي)

**حل اللغات:** - ② الشَّهْوَةِ الْخَفِيَّةِ: پټ شهوت، ③ وَثَنًا: بت

**تسهيلات:**

**قوله وَالشَّهْوَةُ الْخَفِيَّةُ أَنْ يُصْبِحَ أَحَدُهُمْ صَائِمًا.**

**د شهوت خفي په مصداق كښې دوه اقوال:** ① پټ خواهش ئې ورته ددې وجې نه اوفرمائيلو چه كوم وخت دې سړى د روژې نيت كړې وو هغه وخت دې سړى په خپل نفس كښې دا خواهش پټ ساتلې وو چه كه څه نفساني تقاضا راغله نو زه به روژه ماتوم

② امام طيبي رحمه الله د پټ خواهش نه مراد خوراك اخستې دې ليكن صحيح داده چه د پټ خواهش نه مراد نفساني خواهشاتو نه په خاص توګه هغه نادارالوجود خواهش دې چه هروخت نه پيدا كيږي بلكه په يو خاص موقع باندې يا په خاص وخت كښې پيدا كيږي اوكله چه هغه خواهش راوچت شي نود هغې د پوره كولو داعيه په طبعي توګه باندې غالب راشي او بيا د يو شرعي حكم د مخالفت ويره هم بنديز نه جوړيږي

**[٥٣٢٢] رياكاري د دجال د فتنې نه هم زياته خطرناکه ده**

٥٣٢٢-(١) [١] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: [٢] «خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- وَنَحْنُ نَتَذَاكَرُ الْمَسِيحَ الدَّجَّالَ، فَقَالَ: [٣] "أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِمَا هُوَ أَخْوَفُ عَلَيْكُمْ عِنْدِي مِنَ الْمَسِيحِ الدَّجَّالِ؟" [٤] فَقُلْنَا: بَلَى يَا رَسُولَ اللَّهِ! [٤] قَالَ: "الشِّرْكُ الْخَفِيُّ، [٥] أَنْ يَقُومَ الرَّجُلُ فَيُصَلِّيَ، [٦] فَيُزَيِّنُ صَلَاتَهُ [٧] لِمَا يَرَى مِنْ نَظَرِ رَجُلٍ"» رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه**: [١] او حضرت ابو سعيد ﷺ وايي، [٢] يوه ورځ مونږ د مسيح دجال د فتنو او د هغه د ابتلاء ذکر کوی چې رسول الله ﷺ راتلو سره زمونږ په منځ کې تشريف فرماشو، او بيا زمونږ خبري اوريدو سره يي وفرمايل، [٣] آيا زه تاسو ته د هغه شي باره کې ونه ښايم، چې خما په نزد يعنی خما په شريعت او خما طريقه کې ستاسو د مسيح دجال د فتنې نه هم زيات خوفناك دی [او دي اعتبار نه د هغه خيال ساتل او د هغه نه پرهيز کول ستاسو د پاره ډير ضروري دی] ، [٤] مونږ عرض وکړو، هو يارسول الله د هغه شي باره کې مونږ ته ضرور وښ يه. [٤] حضور ﷺ وفرمايل هغه شی شرك خفي دی [٥] او شرك خفي دي ته وايي چې مثلاً يو سړي مونځ د پاره ودريږي او مونځ کوي، [٦] او هغه د مونځ په ټولو ارکانو يا بعضې ارکانو کې د کيفيت ياکميت د اعتبار نه څه زياتي وکی، [٧] محض د دې وجې نه چې يو سړی هغه په مونځ کولوويني (ابن ماجه)

**تسهيلات**:

**قوله**: أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِمَا هُوَ أَخْوَفُ عَلَيْكُمْ عِنْدِي مِنَ الْمَسِيحِ الدَّجَّالِ؟"

**د رياکارۍ فتنه د دجال د فتنې څخه لويه کيدلو وجه**: دَ دجال فتنه به چونکه ښکاره کيږی په دې وجه به د هغې نه بچ کيدل دومره ګران نه وی مګر دَ رياکارئ فتنه دومره پټه ده چه ښه ښه خلق ددې ښکار کيږی په دې وجه دا دَ دجال دَفتنې نه لويه اوخودلې شوه

**د تشبيه په وجه کښې دوه اقوال**: ① دلته په حديث کښې دانه دی خودلې شوی چه دا فتنه د دجال د فتنې نه لويه ده بلکه دا خودلی شوی دی چه دَهغې نه زياته خطرناکه ده څکه چه په هغې کښې د راګيريدو اودَ ښکارکيدو مواقع زياتې دی

② دا هم ممکن ده چه دا تشبيه دَ ماديا تو اودنياوی امورو باره کښې وی چه دَ دجال په فتنه کښې به سړی ته دنياوی نقصان رسی خوچه کله څوك دَ دجال دَ پروګرام نه انکار اوکړی ليکن په رياکارئ سره دَمسلمانانو ايمان ته نقصان رسی په دې وجه دا ډيره خطرناکه ده

(١) اخرجه ابن ما جه في السنن كتاب الزهد/باب الرياء والسمعة (رقم-٤٢٠٤)

**[٥٣٢٤] رياکاري شرک اصغر دی**

٥٣٣٤-( )[٢٠] [١] وَعَنْ مَحْمُودِ بْنِ لَبِيدٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-: [٢] أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: "[٣] «إِنَّ أَخْوَفَ مَا أَخَافُ عَلَيْكُمُ الشِّرْكُ الأَصْغَرُ" قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ! [٥] وَمَا الشِّرْكُ الأَصْغَرُ؟ [٦] قَالَ: "الرِّيَاءُ»". رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه**: [١] او حضرت محمود ابن لبيد نه روايت دی[٢] چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٣] ډير زيات خوف زده شی چې زه ترې تاسو بيروم. شرك اصغر د وړې درجې شرك دی.[٤] صحابه وو په دي اوريدو سره عرض وکړو، يارسول الله! [٥] شرك اصغر څه څيز دی. [٦] حضور ﷺ وفرمايل رياء (احمد)

[١] وَزَادَ الْبَيْهَقِيُّ فِي (شُعَبِ الإِيمَانِ): "[٢] «يَقُولُ اللَّهُ لَهُمْ يَوْمَ يُجَازِي الْعِبَادَ بِأَعْمَالِهِمْ: [٣] اذْهَبُوا إِلَى الَّذِينَ كُنْتُمْ تُرَاؤُونَ فِي الدُّنْيَا، [٤] فَانْظُرُوا هَلْ تَجِدُونَ عِنْدَهُمْ جَزَاءً وَخَيْرًا؟»".

**ترجمه**: [١] او بيهقي په شعب الايمان کې دا الفاظ زيات نقل کړي دي [٢] چې الله ﷻ به په هغه ورځ هرکله چې هغه بنده گانو ته د هغوئ د اعمالو بدله ورکوي يعنی د قيامت په ورځ رياکارو ته به فرمايي [٣] تاسو خلق هغوئ ته ورشئ چاته دنبوونې د پاره ن سو عمل کوی [٤] پس و گورئ تاسو ته دهغوئ نه څه جزاء او خير حاصليږي؟

**حل اللغات**:- ① يُجَازِي: بدله به ورکوی

**تسهيلات**: قوله الشِّرْكُ الأَصْغَرُ

**ريا او شرک اصغر**: په دې حديث کښې ريا ته شرك اصغر ونيلې شوې دې ځکه چه مشرك به خپل عبادت سره خپل د درغو معبودانو د راضی کولو نيت کوی خو رياکار به خپل عبادت سره خپل د دروغو مقاصدونو يعنی د خلقو د راضی کولو نيت کوی به دې وجه رياکاری د وړې درجې شرك دې

**[٥٣٢٥] په اخلاص سره عمل پخپله خلقو ته ښکاره کيږی**

٥٣٣٥-( )[٢١] [١] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: [٢] قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [٣] «وَلَوْ أَنَّ رَجُلًا عَمِلَ عَمَلًا فِي صَخْرَةٍ لَا بَابَ لَهَا وَلَا كُوَّةَ، [٤] خَرَجَ عَمَلُهُ إِلَى النَّاسِ كَائِنًا مَا كَانَ»".

**ترجمه**: [١] او ابوسعيد خدري ؓ وايي [٢] چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٣] که څوك ديو داسې لوی کانی لاندې هم څه عمل وکړي چې په هغه کې نه خوڅه دروازه وي او نه څه روښن دان [٤] نوبيا به هم د هغه، هغه عمل په خلقو کې مشهور شی که دهغه عمل هررنگه وي

( ) اخرجه البيهقی فی شعب الايمان رقم الحديث ٦٨٣١

( ) اخرجه البيهقی فی شعب الايمان رقم الحديث ٦٩٤٠

**حل اللغات:** - ① صَخْرَةٍ مضبوط کانړی او سخت چټان ② كَوَّةٌ روشندان، طاخ، ③ كَائِنًا مَاكَانَ که هغه هرڅنګه وی

**تسهیلات:**

**قوله:** وَلَوْ أَنَّ رَجُلًا عَمِلَ عَمَلًا فِي صَخْرَةٍ لَا بَابَ لَهَا وَلَا كَوَّةَ،

**دحدیث په مفهوم کښې دوه اقوال:** ①یو مخلص بنده له پکاردی چه هغه دې دخیل نیک اعمالو په هره طریقه دَ پټولو کوشش کوی ځکه چه دَ ریاکارئی ډیره لویه خطره ده اکثریو سړې په بټه توګه عمل کوی مګر بیاهم هغه عمل دَداسې ځایونونه ښکاره کیږی دٌ چرته نه چه پخپله هم دې سړی ته داخیال نه وی لهذا مکمل احتیاط کول پکاردی خودا مطلب زیت واضح نه دې ځکه چه راتلونکې حدیث دَ دویم قول تائید کوی

②که چرې یو سړې په اخلاص سره په مکمل رازه ارئی او پټه توګه څه عمل کوی اوغواړی چه چاته پته اونه لګی مګر بیاهم الله تعالی دَدې سړی عمل خلقو ته ښکاره کوی دې دپاره چه دې سړی ته په دنیاکښې هم دَدې میوه حاصله شی لهذا دَ ریاکارئی هیڅ ضرورت نشته دې

**[٥٣٣٦] دښه اوبد اثر ښکاره کیدل**

| |
|---|
| (٢٢) ① وَعَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: ② قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ③ «مَنْ كَانَتْ لَهُ سَرِيرَةٌ صَالِحَةٌ أَوْ سَيِّئَةٌ، ④ أَظْهَرَ اللَّهُ مِنْهَا رِدَاءً يُعْرَفُ بِهِ» ". |

**ترجمه:** ① او حضرت عثمان ابن عفان ﷺ وایي. ② چی رسول الله ﷺ وفرمایل ③ کوم سړي کي چي څه ښه یابد عادت او خصلت پټ وي. ④ نو الله ﷻ هغه عادت او خصلت ښکاره کونکی څه داسې شی پیداکوي چې دهغه په ذریعه دهغه سړی په هغه عادت اوخصلت سره شناخت کولی شي

**حل اللغات:** - ① سَرِيرَةٌ پټ. ② أَظْهَرَ ښکاره به ئې کړی. ③ رِدَاءً څادر .دلته ترې علامت او شناخت مراد دي.

**تسهیلات**

**قوله:** أَظْهَرَ اللَّهُ مِنْهَا رِدَاءً يُعْرَفُ بِهِ.

**د څادر نه څه مراد:** څادر ته رداء وائی دلته د څادر نه علامت او شناخت یعنی پیژندګلو مراد ده لکه څنګه چه د سړو په عالاماتو کښې جدا قسم څادرې وی دغه شان د ښځو په علامتونو کښې هم جدا قسم څادرې وی په کوم سره چه دَ دواړو جدا جدا پیژندګلو کیږی

---

) اخرجه البیهقی فی شعب الایمان رقم الحدیث ٦٩٤٢

**دحديث مطلب**: په كوم سړی كښې ښه يا بدخصلت وی چه د هغې ساتل كيدو د وجې نه د عامو خلقو په نظر كښې نه راځی ليكن الله تعالى په هغه سړی كښې څه داسې صورت يا هئيت يا علامت ښكاره كوی د كوم د وجې نه چه خلقو ته ښكاری چه دا سړی ددې قبيلې او د دې قسم سړی دی

**[۵۳۳۷] دوه مخی پاليسی داسلام دپاره د ټولو نه زياته خطر ناکه ده**

۵۳۳۷ - (')[۲۳] [۱] وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: "[۲] «إِنَّمَا أَخَافُ عَلَى هَذِهِ الْأُمَّةِ كُلَّ مُنَافِقٍ [۳] يَتَكَلَّمُ بِالْحِكْمَةِ وَيَعْمَلُ بِالْجَوْرِ» " رَوَى الْبَيْهَقِيُّ الْأَحَادِيثَ الثَّلَاثَةَ فِي (شُعَبِ الْإِيمَانِ)

**ترجمه**: [۱] او حضرت عمربن الخطاب ﷺ د رسول الله ﷺ نه روايت كوی حضور ﷺ وفرمايل [۲] زه د دې امت (يعنې امت محمديه) باره كې حې د كوم حيز نه وېرېږم، هغه د يو منافق يعنې رياكار يافاسق شر دی. [۳] چې خبرې خو د علم د حكمت موعظت او نصيحت كوي ليكن كار د ظلم زياتي كوي. دادرې سره روايتونه بيهقي په شعب الايمان كې نقل كړی دی

**حل اللغات**: - ① الحِكْمَةِ: دانائی. د نصيحت خبرې. ② الجَوْر: ظلم

**تسهيلات**:

**قوله**: يَتَكَلَّمُ بِالْحِكْمَةِ"

**دگفتار په څائې د كردار نه خپلول**: يعنې خلقوته د خودلو دپاره دامنافق خلق دعلم حكمت وعظ او نصيحت ښه ښه خبرې كوی مگر پخپله په هغې باندې عمل نه كوی ددوی هم دغه دوه مخيزه منافقانه پاليسی داسې ثيزدی په كوم سره چه اسلام او مسلمانانو ته ډيرزيات نقصان رسيږی كوم چه حضورپاك دخپل امت دپاره خطرناك گرځولی دی او هم دغه نفاق دې د اسلام او مسلمانانو بنيادخوزوی نن صباهم ددې پاليسئی چرچه ده مسلمانان بدنام دی او امريكه اود هغوی غلامان نيك نامه دی د حديث خلاصه داده چه دا منافقان خلق خو به خبرې ډيرې ښائسته كوی خو عمل به خالص د ظلم په بنيادباندې كوی

**[۵۳۳۸] د حسن نيت اهميت**

۵۳۳۸ - (')[۲۴] [۱] وَعَنِ الْمُهَاجِرِ بْنِ حَبِيبٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ [۲]: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " [۳] «قَالَ اللَّهُ تَعَالَى: إِنِّي لَسْتُ كُلَّ كَلَامِ الْحَكِيمِ أَتَقَبَّلُ [۲] وَلَكِنْ أَتَقَبَّلُ هَمَّهُ وَهَوَاهُ، [۴] فَإِنْ كَانَ هَمُّهُ وَهَوَاهُ

') اخرجه البيهقی فی شعب الايمان رقم الحديث ۱۷۷۷

') اخرجه الدارمی فی السنن رقم ۲۵۲

فِي طَاعَتِي[٥] جَعَلْتُ صَمْتَهُ حَمْدًا لِي وَوَقَارًا[٦] وَإِنْ لَمْ يَتَكَلَّمْ» ". رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه** :[١] او حضرت مهاجر ابن حبیب ﷺ وایي [٢] چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٣] الله ﷻ فرمايي زه د عقلمند او دانشور هره خبره نه قبلوم [یعنی ځما دستور دانه دی، چې عالم وفاضل او عقلمند او داناسړی کومه خبره وکړي، هغه قبوله کړم] [٣] بلکه زه د هغه قصد اراده، محبت او نیت قبلوم [یعنی دا ګورم چې هغه کومه خبره کړي ده، هغه په کوم قصداو اراده او کوم نیت سره يي کړي ده ] [٤] که د هغه نیت او محبت ځماد طاعت او فرمانبرداري په حقله وي،[٥] نو زه د هغه خاموشي هم خپل حمد او ثنا او د هغه حلم او وقار برابر ګرځوم،[٦] اګر که هغه څه خبره ونه کړي. (دارمي)

**حل اللغات**:- ① هَمَّهُ : قصد ، اراده، ② هَوَاهُ: مینه،محبت، ③ صَمْتَ : خاموشی، ④ وَقَارًا : عزت

**تسهیلات**:

**قوله**: كَلَامِ الْحَكِيمِ"

**دحکیم څخه مراد**: دَحکیم نه عالم اودانشور مراد دي. مطلب داچه الله تعالى فرمائی چه زه دَهرعالم دانشور اونکته دان خبره نه قبلوم یعنی زما په نیز صرف دَ خبرو کونکوغازیانو هیڅ اعتبارنشته دي بلکه زمونږ په نیزخودَ کردار قدر او قیمت دي کله چه اخلاص اودَ الله تعالى دَ رضا ، ښه نیت ښکلي اوبهترین وی اودَ کردار معیار اوچت وی نوکه دَ خبرو انداز څومره هم ساده ولې نه وی دَالله تعالى په نیز هم دَ دغې اعتباردي

# [۶] بَابُ البُکَاءِ وَالخَوْفِ

## دَ ژړا او دَ الله تعالی نه دَ ویرې بیان

**خلاصة الباب:**

**فيه أحد و عشرون حديثاً مشتملة على ثلاث عشر مسئلة:**

① كون البكاء أثر العلم بأحوال الآخرة: ۱، ۹.
② كون البكاء سبب النجاة في الآخرة: ۲۱،
③ الخوف من عاقبة المستقبل: ۲.
④ الخوف من عذاب المعاصي مطلقا: ۳، ۵، ۱۷، ۱۸.
⑤ الخوف بسبب كثرة الخبث: ۴.
⑥ الخوف من عموم العذاب: ۶، ۷.(هذا من طرد الأول)
⑦ الخوف من النار: ۸.
⑧ خوف الله تعالى سبب الهرب من المعاصي: ۱۰.
⑨ خشية الله سبب النجاة: ۱۱.
⑩ خوف عدم قبول العمل: ۱۲، ۱۹.
⑪ خوف قرب الساعة: والموت: ۱۳، ۱۴.
⑫ خوف سب الشيب: ۱۵، ۱۶.
⑬ لزوم الخوف من الله تعالى فى كل الأوقات: ۲۰.

**د ژړا مختلف مراحل:** ① کله چه په ژړا کښې دَ خلې نه آواز او نه وځی هغې ته بکاء وائی
② که چرته دَ خلې نه دَ ژړا په وخت آواز نه اوځی مګر اوښکې بهیږی نو دغه ژړا ته هم بکاء وائی
③ کله چه د ژړا په آواز کښې چغې وی نو دغې ژړا ته عویل وائی
④ که چرې آواز بالکل ښکته وی نو هغې ته رنین وائی که دې نه هم رو آواز وی او اوښکې جاری وی نو دې ته حنین وائی

**دخلقو د ژړو نو دوه قسمونه:** ① د کومو خلقو چه زړه نرم وی دَ تلاوت په وخت یا دَ الله تعالی دَ ذکر په وخت یا دَ تذکیر او وعظ په وخت هغوی ژاړی نو دا دَ الله تعالی ورکړه او احسان وی ② دَ څه خلقو زړه د کاڼړی نه هم سخت وی شاعر وائی

لاينفع الوعظ قلباً قاسياً ابداً　　وَهَلْ يلين بذكر الواعظ الحجر

**د باب موضوع:** په دې باب کښې درج تولو احادیثو تعلق دَ الله تعالی ویرې او دَ آخرت دَ

وجي نه ژړا سره دي خلاصه دا چه د آخرت عذاب او د الله تعالى عتاب او عقاب د ويرې نه په زارئی سره ژړا ته البكاء والخوف وئيلې شوي دي

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [۵۲۳۹] د آخرت استحضار د ژړا سبب دی

۵۳۳۹-(۱) [۱] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] قَالَ أَبُو الْقَاسِمِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[۳] «وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَوْ تَعْلَمُونَ مَا أَعْلَمُ، [۴] لَبَكَيْتُمْ كَثِيرًا وَلَضَحِكْتُمْ قَلِيلًا» "، رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه**: [۱] حضرت ابوهريره ﷛ وايي [۲] چې ابو القاسم حضرت محمد ﷺ وفرمايل. [۳] قسم دی په هغه ذات چې د هغه په قبضه قدرت کې خما ځان دی که تاسو په هغه شي بوهه شئ کوم چې زه پيژنم. [۴] نو يقيناً ستاسو ژړا به زياته او خندا به کمه شي. [يعني د قيامت احوال او د هغه هولناکی د مبداء او معاد حقيقت د گنهګارو په حقله د الله ﷻ غضب او عذاب د يوم حساب شدت او سختي. او د باري تعالى صفات قهريه او جلاليه چې د خوف او مصيبت باعث دی. څومره قدر چې زه پيژنم. بيا د هغه په تعلق سره ستاسو د انجام باره کې چې ماته کوم معلوم دی. او د هغه په وجه خما زړه بندی چې هروقت غم او خوف خوروي. که تاسو دي ټولو نه آگاه شئ. نو يه دي کې هيڅ شک نشته. چې د خوف او هيبت نه به خندا هيره کړي او زيات وخت به ژړلو او غم خوړلو کې صرف کړي. ځکه چې په دي صورت کې به تاسو د رحمت خداوندي د اميد په مقابله کې د عذاب خداوندي خوف ته زيات ترجيح ورکول شروع کړي] (بخاري.

**حل اللغات**:- ① بَكَيْتُمْ: اوبه ژاړئ تاسو. ② ضَحِكْتُمْ: اوبه خاندئ تاسو

**تسهيلات**:

**قوله**: لَبَكَيْتُمْ كَثِيرًا

**نبی عليه السلام ته د الله تعالى د عظمت استظهار**: يعني د قيامت د احوال اهوال او د مبدأ و معاد حقيقت او د الله تعالى د ذات عظمت او د هغه جلال او جبروت. د هغه قهر او غضب او د يوم حساب سختنی او تکليفونه. د حساب کتاب سختنی او د الله تعالى صفات جماليه او جلاليه چه څومره زه پيژنم او دغه شان د خلقو انجام سره متعلق چه کوم واقعات او سختنی څومره چه زه پيژنم که چرې تاسو په هغه اندازه کښې پيژندل نو تاسو

[۱]) اخرجه البخاری فی کتاب الرقاق/باب قول النبی صلى الله عليه وسلم: «لو تعلمون ما أعلم لضحكتم قليلا ولبكيتم كثيرا» (رقم ۶۴۸۵) ومسلم فی کتاب الکسوف/باب صلاة الکسوف (رقم ۱ (۹۰۱) والترمذی فی کتاب الزهد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم باب فی قول النبی صلى الله عليه وسلم «لو تعلمون ما أعلم لضحكتم قليلا» (رقم ۲۳۱۳) وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب الحزن والبكاء (رقم-۴۱۹۱) ومالک فی الموطا کتاب الصلاة کتاب الطهارة. باب ما جاء فی النداء للصلاة (رقم-۱) واحمد فی المسند:۲/۲۵۷

به کم خندل بلکه نه به موخندل او په ژړا کښې به مو وخت تیرولو مګر ستاسو د دغه څیزونو مشاهده نشته ځکه خاندئ او په عیش او عشرت کښې لګیایئ

**[۵۳۴۰]اُخروی انجام صرف دَ الله تعالی په علم کښې وی**

۵۳۴۰-()[۲][۱] وَعَنْ أُمِّ الْعَلَاءِ الْأَنْصَارِيَّةِ، قَالَتْ: [۲]قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "[۳]«وَاللهِ لَا أَدْرِي، وَاللهِ لَا أَدْرِي، وَأَنَا رَسُولُ اللهِ، [۴]مَا يُفْعَلُ بِي وَلَا بِكُمْ» "، رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه**: [۱]او بی بی ام العلاء انصاریه رضی الله عنها وایي. [۲] چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۳] باوجود د دې چې زه د الله رسول یم. لیکن قسم په الله زه په دې نه پوهیږم قسم په الله زه په دې نه پوهیږم [۴] چې زما سره به څه معامله کول کیږي او ستاسو سره به څه معامله کیږي (بخاري)

**تسهیلات**:

**قوله**: مَا يُفْعَلُ بِي "یعنی دَ الله تعالی رسول کیدو باوجود ماته دا علم نشته دی چه دنیائی اعتبار سره به ستا انجام څه جوړیږی او زما انجام به څه جوړیږی

**په حدیث باندې اشکال**: سوال: په دې مقام باندې یو مشهور سوال دې هغه دادی چه نبی خودَ نورو خلقو دَهدایت دَپاره دَ الله تعالی دَ طرف نه سفیر جوړیدو سره راغلی که چه نبی بخپله د خپل آخرت په عاقبت او خپل انجام کښې مترددوی په ګډوډ کیفیت کښې راګیر وی نو هغه به دَ نورو دَپاره څنګه لارخودونکې جوړشی

بل دا تردد او دَ بې یقینتی کیفیت خودَ نبی دَ معصومیت هم منافی دی نو حضورﷺ داسې قسم جملې څنګه ارشاد اوفرمائیلې؟

**داشکال درې جواب**: ① ددې حدیث مطلب دا دې چې ماته زما او ستا د انجام د تفصیلاتو علم نشته دې په اجمالی توګه باندې خپل نجات او کامیابی خو پیژنم مګر د تفصیل تعلق دَ علم غیب سره دې نو ماته ددې علم نشته دې ځکه چه په دې باندې نه یم خبر کړې شوې

② دې حدیث دوارو تعلق هغه دنیاوی معاملاتو او واقعاتو سره دې کوم چه به راتلونکی وخت کښې راتلونکی وو چه زه به اول مړ کیږم که ته به مړ کیږې یا زه به په تاباندې غالب راځم که ته به په ما باندې غالب کیږې په دې جنګ کښې به نه ماتې خورې که مونږ به ماتې خورو دَمستقبل ددې په شان دَ واقعاتو تعلق چونکه علم غیب سره دې او علم غیب دَ الله تعالی خاصه ده په دې وجه حضورپاک نفی اوفرمائیله او دا څه دینی او اخروی امور هم نه دی دکوم پیژندل چه دَنبی دَپاره ضروری وی

---

(۱) اخرجه البخاری فی کتاب التعبیر/باب العین الجاریة فی المنام (رقم-۷۰۱۸)

۴ دَ حضرت عثمان بن مطعون په وفات باندې حضورپاك د هغه دپاره دعاګاني اوغوښتلې دَنورلو نه مخکښې په بقیع غرقد کښې هم هغوی دفن کړې شو حضورپاك دَهغوی مخ اونندې ښکل کړو په دې باندې یوې ښځې اووئیل عثمان ستادپاره جنت مبارك شه په دې باندې حضورپاك دَ خفګان اظهار اوکړو چه زه د الله تعالی رسول کیدوباوجود دَخپل خان باره کښې داسې خبره نه کوم تاد صحابی باره کښې داسې حکم څنګه اولګولو؟ داخو د مستقبل دَ غیب معامله ده داسې فیصله نه دې کول بکار اولنی دوه جوابونه واضح او راجح دی

**[۵۲٤١] په دوزخ کښې دَبنی اسرائیلو د یوې ښځې کیفیت**

٥٣٤١-( )[٣] ١ وَعَنْ جَابِرٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ٢ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: " ٣ «عُرِضَتْ عَلَيَّ النَّارُ، ٤ فَرَأَيْتُ فِيهَا امْرَأَةً مِنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ ٥ تُعَذَّبُ فِي هِرَّةٍ لَهَا، رَبَطَتْهَا ٦ فَلَمْ تُطْعِمْهَا وَلَمْ تَدَعْهَا تَأْكُلُ مِنْ خَشَاشِ الْأَرْضِ ٧ حَتَّى مَاتَتْ جُوعًا، ٨ وَرَأَيْتُ عَمْرَو بْنَ عَامِرٍ الْخُزَاعِيَّ يَجُرُّ قُصْبَهُ فِي النَّارِ، ٩ وَكَانَ أَوَّلَ مَنْ سَيَّبَ السَّوَائِبَ» "، رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** : ١ او حضرت جابر رضی الله عنه وايي ٢ چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل. ٣ د معراج په شپه يا به يو بله موقع په حالت دخوب يابيداري کې څما مخکې د دوزخ اور خودلو د پاره را وسنل شو. ٤ نو ما په هغه کې د بني اسرائيلو يوه ښځه شوزيدونکي وليده چې د بني اسرائيلو د اهل ايمان نه وه. ٥ هغه ته د يوې پيشو باره کې عذاب ورکول کيدې چې هغې تړلي وه. ٦ نه يې خوراك څکاك ورکوى او نه يې پريخودله چې په خپله حشرات الارض. ابعنى مږې مږکان وغيره. څه وخوري ٧ آخر هغه پيشو د لوږې دبې قراري سره مړه شوه. ٨ او عمرو ابن عامر خزاعي مې وليدى چې خپلې کولمې يې په اور کې راخکلې ٩ دا اول هغه سړى دى چې د سائبو رواج يې په عربو کې رائج کړې وو

**حل اللغات**: - ① هِرَّةٍ پیشو. ② رَبَطَتْهَا تړلې ئې وه. ③ خَشَاشِ چنجې وغیره. ④ جُوعًا اولږه. ⑤ يَجُرُّ رابکلې ئې. ⑥ قُصْبَهُ کولمې ⑦ السَّوَائِبَ دَ سائبة جمع ده هغه اوښې ته وائی چه دَ بتانو په نوم باندې آزاده پريخودې شی

**تسهیلات**:

**قوله تُعَذَّبُ فِي هِرَّةٍ لَهَا**

**د في متعلق**: دا في د علت او سببيت دپاره ده چه پيشو ته ناجائز تکليف رسولو اوقتلولو وجې نه هغه ښځه دوزخ ته لاړه •

[1]) اخرجه البخاری فی کتاب أحادیث الأنبیاء /باب حدیث الغار(رقم -٣٤٨٢) ومسلم فی کتاب الکسوف /باب ما عرض علی النبی صلی الله علیه وسلم فی صلاة الکسوف من أمر الجنة والنار(رقم ٩ - (٩٠٤) والنسائی فی کتاب الکسوف /باب نوع آخر (رقم- ١٤٨٢)واحمد فی المسند٣٣٥/٣٠

**قوله**: وَرَأَیْتُ عَمْرَوبْنَ عَامِرِ الْخُزَاعِیْ یَجُرُّقُصْبَهٗ فِی النَّارِ۔

**دعمروبن عامر پیژندګلو**: عمروبن عامر په خپله زمانه کښې داهل مکه مشر وو دحرم شریف نګران هم وو داسړې کاهن هم وو یوخل دې بیمارشو د چانه ئې اوریدلی وو چه په شام کښې یوځائې د اوبو یوه چینه ده که چرته بیمار په هغې کښې غسل اوکړی نو جوړیږی دا سړې شام ته لاړو اوهلته دې سړی اوکتل چه خلق بت پرستی کوی د ده هم سوق بیدا شو او په واپسئ کښې ئې دهغه خلقو نه یو بت ځان سره راوړلو د کوم نوم چه هُبَل وو چونکه دا سړې کاهن وو نو ابلیس ده ته اوونیل چه جده ته لاړشه په فلانکي ځائې کښې د حضرت نوح علیه السلام دزمانې پنځه بتان پراته دی هغه هم راوړه چنانچه عمرو بن عامر لاړو او دهغه ځائې نه ئې پنځه بتان ود، سواع، یغوث، یعوق او نسر راوړل او بیت الله سره ئې اودرول په کوم سره چه په مزه مزه د شرك او بت پرستئ رسم په حجاز مقدس کښې روان شو بیا دې بدبخته د بتانو په نوم باندې سنډګان آزاد بریخودل

**قوله**: وَکَانَ أَوَّلَ مَنْ سَیَّبَ السَّوَائِبَ:

**د سائب ګرځیدو صورتونه**: ① یومسافر سړې د سفر نه په خیر سره واپس کور ته راغلو
② چه کله به یوې اوښې لس ماده بچی پیدا کړل
③ یو بیمار د بیمارئی نه شفاحاصلوله

نود عربو دا دستور وو چه یوه اوښه به ئې آزاده پریخوده نه به ئې د هغې نه پیئی لوشل اونه به ئې په هغې باندې سورلی کوله نه به ئې هغه د فصل نه منع کوله بس کولاؤ او آزاده به ګرځیدله عربو به د خپل بتانود خوشحالولوپه خاطر داسې کول په دې حدیث کښې هم دغه تفصیل طرف ته اشاره ده

**اشکال**: بعضې روایاتو کښې د دغه سړی د پلار نوم لُحَی یعنی عمرو بن لحی دې. دلته دده نوم عمرو بن عامر خودلې شوې دې

**داشکال جواب**: ممکن ده د ده د نیکه نوم لحی وی. نوکله پلار یعنی د عامر طرف ته منسوب کیږی اوکله د لحی نیکه طرف ته منسوب کیږی

**په جهنم کښې د عمروبن عامرپه لیدو کښې درې احتمالات**: ① د دې حدیث نه معلومه شوه چه جنت اودوزخ هم د اوس نه موجود دی اوځه خلق هم د اوس نه دوزخ کښې اچولې شوی دی لکه څنګه چه په دې حدیث کښې ذکر دی
② کیدې شی چه عالم برزخ کښې د دوزخ یوښاخ وی نوهغه هم دوزخ دې
③ کیدې شی چه حضورپاك ته د وحی په ذریعه د دوزخ دمستقبل حالات خودلې شوی وی چه بیابه دوزخ کښې دې خلقوسره داسې معامله کیږی ·

**[۵۲۴۲] د ګناهونو په وجه هلاکت**

۵۲۴۲-( ) [۱] وَعَنْ زَيْنَبَ بِنْتِ جَحْشٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا - [۲] «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - دَخَلَ عَلَيْهَا يَوْمًا فَزِعًا يَقُولُ: [۳] "لَا إِلَهَ إِلَّا اللّٰهُ، وَيْلٌ لِلْعَرَبِ مِنْ شَرٍّ قَدِ اقْتَرَبَ، [۴] فُتِحَ الْيَوْمَ مِنْ رَدْمِ يَأْجُوجَ وَمَأْجُوجَ مِثْلُ هَذِهِ" [۵] وَحَلَّقَ بِإِصْبَعَيْهِ: الْإِبْهَامِ وَالَّتِي تَلِيهَا، [۶] قَالَتْ زَيْنَبُ: فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! أَفَنَهْلِكُ وَفِينَا الصَّالِحُونَ؟ [۷] قَالَ: "نَعَمْ، إِذَا كَثُرَ الْخَبَثُ» "مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: [۱] او بي بي زينب بنت جحش رضي الله عنها نه روايت دى. [۲] يوه ورځ رسول الله ﷺ هغه سه ته داسي حالت کې تشريف راوړى لکه چې ډير خوف زده وي. بيايې وفرمايل [۳] د الله نه بغير هيڅ معبود د عبادت لائق نه دى. افسوس صد افسوس په عربو د هغه شر او فتنه به وجه چې به خپل آخريني هلاکت سره نزدې را رسيدلې دى [۴] نن د ياجوج ماجوج به ديوال کې د ومره قدر سورى شوى دى. [۵] په دې ويلو سره حضور ﷺ د بهې ګوتې او داترې ګوتې په ذريعه حلقه جوړه کړه. [۶] بي بي زينب رضي الله عنها وايي. ما عرض وکړو يارسول الله! آيا مونږ به په دې صورت کې هلاک شو حال دا چې په مونږ کې صالح او پاکباز خلق موجود وي. [آيا زمونږ په منځ کې د الله د نيک بنده ګانو د وجود د برکت به د دې فتنو دخوړيدولو اود بلاګانو او آفاتو نازليدو کې بنديز نه جوړيږي] [۷] حضور ﷺ وفرمايل هو چې کله په تاسو کې خرابي ډيرې خورې شي. او هرطرف ته د فسق وفجور دور دوره وي نو د هغه خرابيو او فسق وفجور په سبب به نازليدونکي فتنې او آفات د صلحاؤ او بزرګانو موجودګى. او د هغوئ برکت به يي هم بند نه کړى (بخاري، مسلم

**حل اللغات**: - ① فَزِعًا خوف زده، د ويرې په حالت کښې. ② رَدْمِ لوئي بند. مضبوط ديوال ③ يَأْجُوجَ وَمَأْجُوجَ يو فسادي انساني مخلوق. ④ حَلَّقَ حلقه او دائره ئي جوړه کړه. ⑤ الْإِبْهَامَ مټه ګوته. ⑥ الْخَبَثُ فسق اوفجور. فساد

**حضرت ام المؤمنين زينب تعارف**: نوم زينب ام الحکم کنيت دقريشوخاندان اسد بن خزيمه سره ئې تعلق وو د پلار نوم ئې جحش بن رباب د مور نوم اميمه دا دحضور ﷺ د حقيقي ترور لوروه د هغې د اسلام باره کښې صاحب اسدالغابه ليکي کانت قديمة الاسلام هغه په اسلام کښې قديمه وه (۲) دهغې رومبې نکاح حضرت زيد بن حارثه رضي الله عنه چه د حضور ﷺ ازادکړې شوې غلام او متبنی يعنی په خوئ نيولې وو هغه سره شوې وه د هغه نه پس بيا دحضوراکرم ﷺ په نکاح کښې راغله رسول الله ﷺ به هغې سره

---

) اخرجه البخاری فی کتاب أحاديث الأنبياء/باب قصة يأجوج. ومأجوج (رقم ۳۳۴۶) ومسلم فی کتاب الفتن وأشراط الساعة/باب اقتراب الفتن وفتح ردم يأجوج ومأجوج (رقم ۱ (۲۸۸۰) والترمذی فی کتاب الفتن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی خروج يأجوج ومأجوج (رقم-۲۱۸۷) وابن ماجه فی کتاب الفتن/باب ما يكون من الفتن (رقم-۳۹۵۳)

ډیره مینه کوله هم په دې وجه حضرت عائشه صدیقه رضي الله عنها فرمائي هي التي كانت تساويني منهن في المنزلة عند رسول الله صلى الله عليه وسلم په بیبیانو کښې هم هغې د رسول الله ﷺ په نظر کښې په عزت اومرتبه کښې زما مقابله کوله هغه ډیره اخلاقي او عبادت گذاره وه حضرت ام سلمه رضي الله عنها فرمائي كانت زينب صالحة صوامة قوامة (زرقاني) حضرت زینب نیکه روژه داره او مونځ گذاره وه

**وفات**: د هغې وفات په ۲۰ هجری ۵۳ کالو په عمر کښې شوې وو د حضور اکرم ﷺ سره د نکاح په وخت کښې د هغې عمر ۳۸ کال وو علامه واقدی ۳۵ کال لیکلي دي خود اکثرو په نیز رومبي قول راجح دي

**مرويات**: دهغې نه یوولس (۱۱) روایات نقل دی په دوو روایتونوکښې بخاري اومسلم دواړه متفق دی

**تسهيلات**:

**قوله**: مِنْ شَرٍّ قَدِ اقْتَرَبَ.

**د شر مصداق**: یعنی یو شراوفساد دې چه عربو ته بالکل رانیزدې شوی دې د دغه شر نه دغه عامو فتنو طرف ته هم اشاره ده کوم چه د شهادت عثمان نه پس په دی امت کښې شروع شوې وې اوترننه پورې یوشان جاری دی لیکن دهغې فتنونه یوه لویه فتنه اوفساد د یاجوج ماجوج خروج دې کوم چه په دې حدیث کښې بیان کړې سوی دی

**قوله**: مِنْ رَدْمِ يَأْجُوجَ.

**د ردم نه مراد**: د نیزدې شوی شر تفصیل اوبیان په دې جمله کښې کړې سوې دی او دې سره د سلطان سکندر ذوالقرنین د جوړ کړې شوی دیوال طرف ته اشاره ده کوم ته چه یاجوج ماجوج بند کړې ساتلې شوی دی

**د یاجوج ماجوج نه د حفاظت دپاره جوړ شوې دیوالونه**: د یاجوج ماجوج د لوټ مار د ویرې د وجې نه د حفاظت په توګه په دنیا کښې څو دیوالونه جوړ دی په هغې کښې مشهور څلور دیوالونه دی

① دریم دیوال روسی علاقه داغستان کښې واقع دې هغې ته هم دربندواتی

② د ټولو نه لوئی دیوال د چین دیوال دې دافغفور بادشاه جوړ کړې دې چه زر میله اوږد دیوال دې

③ دویم دیوال وسط ایشیاء کښې د بخارا اوترمذ په مینځ کښې واقع دې کوم ته چه دربندواتی دا دیوال دمغل بادشاه تیمور لنګ جوړ کړې دې

④ څلورم دیوال کاکیشیا کښې دې چه هم د دغه داغستان مغربی علاقه کښې واقع دې

چه د ډیرو اوچتو غرونو په مینځ کښې دي دې ځائي کښې درۀ داریال په نوم باندې یوه درۀ مشهوره ده په هغې کښې دا دیوال قائم دي کوم ته چه سد کوه قاف وائي هم دغه سد سکندري دي او هم ددې شاته یاجوج ماجوج بند دي نن صبا د چیچنیا نوم ډیر مشهور دي داغستان او کاکیشیا او درۀ داریال او کوه قاف چیچنیا سره خاوشا علاقې دي

**د یاجوج ماجوج کثرت:** یاجوج ماجوج د زمکې د ټول وسعت پنځه سوا کاله مسافت باندې دي د دریو سوو کالو د مسافت علاقه باندې سمندر محیط دې او د ۱۹۰ کالو د مسافت علاقې باندې یاجوج ماجوج آباد دي او د لسو کالو د مسافت په علاقه باندې انسانان آباد دي یاجوج ماجوج د منګولیا یعنې تاتاریانو دهغه وحشي قبائلو نوم دي کوم نه چه د یورپ او د روسي اقوامو د ابتدائي نسل تاریخي ثبوت حاصل دې د یاجوج ماجوج همسایه کمزور قبائلو دوه لویو قبیلو موګ او یوجي په نوم سره یاد کړل دي نه پس یونانیان دي دې ته ئې یوګاګ میګاګ اوویل دې نه پس عربي او عبراني لغت په دې کښې تصرف اوکړو اودائي یاجوج ماجوج جوړ کړه یاجوج ماجوج ترک. روس. چین او د تاتاریانو دهغه وحشي قبائلو نوم دي چه د سد سکندري نه شاته د غیب پردې کښې لاړل او د هغوی څه مهذب نمونې هم ددې قومونو په صورت کښې د دنیا مخې ته موجود دي کتاب الفتن کښې یاجوج ماجوج مزید څه تفصیل راتلې شي

**په حدیث کښې بیان شوې فتنې مصداق:** بهرحال په دې حدیث کښې د کومې فتنې د نیزدې راتلو طرف ته اشاره کړې شوې ده دا د تاتاریانو د چنګیزخان فتنه وه چه هم د دغه علاقې نه راوتې شوې وه اوکومې چه اسلامي خلافت ټکړې ټکړې کړو او بغداد ئې لوټ کړو د دین او دیندارو نښې ئې ورانې کړې او په لاکهونو انسانان ئې مره کړل دا د یاجوج ماجوج یو مصنوعي شکل وو اصل یاجوج ماجوج به روستو راوځي الله تعالی دې هلاک کړي

## [۵۲۴۲] د قرب قیامت د وخت یو څو عذابونه

۵۲۴۳-(۱)[۵] [۱] وَعَنْ أَبِي عَامِرٍ، أَوْ أَبِي مَالِكٍ الْأَشْعَرِيِّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ -، قَالَ [۲]: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: "[۳] «لَيَكُونَنَّ مِنْ أُمَّتِي أَقْوَامٌ [۴] يَسْتَحِلُّونَ الْخَزَّ وَالْحَرِيرَ وَالْخَمْرَ وَالْمَعَازِفَ [۵] وَلَيَنْزِلَنَّ أَقْوَامٌ إِلَى جَنْبِ عَلَمٍ [۶] يَرُوحُ عَلَيْهِمْ بِسَارِحَةٍ لَهُمْ يَأْتِيهِمْ [۷] رَجُلٌ لِحَاجَةٍ [۸] فَيَقُولُونَ: ارْجِعْ إِلَيْنَا غَدًا، [۹] فَيُبَيِّتُهُمُ اللَّهُ، وَيَضَعُ الْعَلَمَ [۱۰] وَيَمْسَخُ آخَرِينَ قِرَدَةً وَخَنَازِيرَ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ» ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابو عامر رضي الله عنه یا حضرت ابو مالك اشعري رضي الله عنه نه روایت دی هغوی ابو عامر یا ابو مالك بیان وکړو [۲] ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه دا واوریدل [۳] خما په امت کې به

(۱) اخرجه البخاري في كتاب الأشربة/باب ما جاء فيمن يستحل الخمر ويسميه بغير اسمه (رقم-۵۵۹۰) وابوداود في كتاب اللباس/باب ما جاء في الخز (رقم-۴۰۳۹)

څه داسې ډلې او طبقې پیدا شي.[۴] چې وریښمنې کپړې. شراب او باجې به حلال او جائز کړي.[۵] او په هغوئ کې به څه خلق د اوچت غره اړخ کې قیام کوي یعنی هغوی به د قیام کولو ځای داسې مقامات باندې جوړ کړي. چې بلند. ممتاز او نمایان به وي. او د هغه دا ممتاز او نمایان حیثیت لیدو سره غریب او محتاج خلق به خپل حاجتونه او ضرورتونه اخستو سره هغوئ ته ورځي.[۶] د شپې وخت به د هغوئ څاروی چې خرندی د پاره تللي وي. په ډك نس (خیټه) واپس راځي. او هغه څاروي به د هغوئ خرونکی د شیدو نه ډك راولي. [۷] لیکن کوم محتاج چې خپل ضرورت اخستو سره هغوئ ته راځي. [او دا خواهش کوي. چې د هغه څارویو د شیدو نه څه خپل غذائي ضرورت پوره کولو د پاره یوسي] .[۸] نو هغوئ به په دې ویلو سره ټال ورکوي چې صبا مونږ ته راسه. [۹] نو بیا د شپې به الله ﷻ په هغوئ باندې خپل عذاب داسې نازل کړي. چې به هغوئ کې به بعضو باندې غر به د غرځوکه را ولوېږي.[ چې تر هغه لاندې چختانیدو سره به تباه او هلاك شي. او د هغوئ نوم نښان به هم باقي پاتې نشي] . [۱۰] او به هغوئ کې د بعضو صورتونه مسخ کیدلو سره شادوګان او خنزیران به ځنې جوړ شي. چې ترقیامته پورې به هغه شکل کې وي. [یا داچې داسې بدکارو خلقو باندې کوم عذاب هم نازل کړې هغه به ترقیامته پورې مسلط وي] (بخاري)

**حل اللغات:-** ① الْخَزَّ ریښم. ② الْمَعَازِفَ دَ معزف جمع ده. د لهولعب آلاتو. ب جوړوېږو ته وائي ③ جَنْبِ عَلَمٍ غر ته علم وائي یعنی داخلق به دَ غر په لمن کښې استوګنه اخستروی ④ يَرُوحُ دَ مابنام په وخت کښې راتلل ⑤ سَارِحَةٍ څرن کونکی ځناور. ⑥ فَيُبَيِّتُهُمُ د شپې به الله تعالی په هغوی باندې عذاب راولي. ⑦ يَمْسَخُ شکلونه به ئې بدل کړي.

> [۱] وَفِي بَعْضِ نُسَخِ (الْمَصَابِيحِ) : (الْحَرَّ) بِالْحَاءِ وَالرَّاءِ الْمُهْمَلَتَيْنِ، وَهُوَ تَصْحِيفٌ، وَإِنَّمَا هُوَ بِالْخَاءِ وَالزَّايِ الْمُعْجَمَتَيْنِ، نَصَّ عَلَيْهِ الْحُمَيْدِيُّ، وَابْنُ الْأَثِيرِ فِي هَذَا الْحَدِيثِ، وَفِي كِتَابِ (الْحُمَيْدِيِّ) عَنِ الْبُخَارِيِّ، وَكَذَا فِي (شَرْحِهِ) لِلْخَطَّابِيِّ: (تَرُوحُ عَلَيْهِمْ سَارِحَةٌ لَهُمْ يَأْتِيهِمْ لِحَاجَةٍ).

**ترجمه:** اود مصابیح په بعضې نسخو کې د الخز. په خای.حاء. او راء. سره الحر. دی او د ح زیر اود را جزم سره الحر. معنی یې ده د ښځې شرمګاه. په دې صورت کې به مطلب داوي. چې هغه خلق به زنا او بدکاري حلاله او جائز کړي لیکن حقیقت دادی چې د دې لفظ حا او را سره یعنی الحر. نقل کیدل صحیح نه دی. بلکې دا د کتابت غلطي ده. چې کاتب نه واقع شوې ده په اصل کې دالفظ خز. یعنی خ او ز سره دی، حمیدي او ابن الأثیر د دې حدیث په سلسله کې د دې معنی وضاحت کړی دی او د حمیدي په کتاب کې دامام بخاري رحمه الله نه چې کوم روایت نقل شوی دی، او دغه شان خطابي چې شرح

بخاري کې کوم روایت نقل کړی دی. هغه دوا ړو کې یَرُوْحُ عَلَيْهِمْ بِسَارِحَةٍ لَهُمْ يَأْتِيهِمْ رَجُلٌ لِحَاجَةٍ به خای داسې دی. تَرُوحُ عَلَيْهِمْ سَارِحَةٌ لَهُمْ يَأْتِيهِمْ لِحَاجَةٍ.

**حل اللغات** - ⑧ قِرَدَةٌ بيزوګان. ⑨ تصحیف غلطی

**تسهیلات. قوله**: وَالْمَعَازِفَ

**د موسیقی حلال ګنړل**: مطلب دادی چه په آخره زمانه کښې به یو داسې وخت راسي چه خلق به دا حرام کارونه حلال ګنړی لکه ننې صبا هم دغه شان کیږی

**قوله**: وَيَضَعُ الْعَلَمَ

**دعذاب مختلف صورتونه**: یعنی الله تعالی به په دغه خلقو دا غر راغوزار کړی د کوم په نتیجه کښې چه دوی او سیږی دوی به هلته هلاك شي او چه څوك بچ شي هغوی به د بیزوګو او خنزیرانو په شکل کښې مسخ کړی

**[۵۲۴۴] د الله تعالی عذاب عام وی**

۵۲۴۴-(۲)[۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا-قَالَ: [۲] قَالَ رَسُولُ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۳] «إِذَا أَنْزَلَ اللَّهُ بِقَوْمٍ عَذَابًا أَصَابَ الْعَذَابُ مَنْ كَانَ فِيهِمْ، ثُمَّ بُعِثُوا عَلَى أَعْمَالِهِمْ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: [۱] حضرت ابن عمر رضی الله عنهما وايي. [۲] چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۳] هرکله چې الله تعالی یو قوم باندې خپل عذاب نازلوي. نو هغه عذاب هرهغه سړی په خپل ګرفت کې اخلي کوم چې په هغه کې وي. [۴] او بیا په آخرت کې به هغه خلق د خپلو اعمالو سره رابورته کیږي (بخاري. مسلم)

**تسهیلات**:

**قوله** أَصَابَ الْعَذَابُ مَنْ كَانَ فِيهِمْ

**په دنیا کښې د عذاب عمومیت**: د کلام خلاصه دا چه کله د الله تعالی عذاب راځي نو په خو او په خرابو خلقو ټولو باندې راځي اګرچه بعضې وخت الله تعالی په خپل خاص رحمت سره خپل نیکان او صالحان بندیګان د عذاب نه محفوظ کوی

**قوله** ثُمَّ بُعِثُوا عَلَى أَعْمَالِهِمْ

**په قیامت کښې د نیتونو په اعتبار ژوندی کیدل**: یعنی دغه بې قصوره نیکان خلق په دنیاکښې په آفتونو سره متاثر شوي وو په دې وجه به په قیامت کښې هغوی ته ښکلي بدله ورکولې شي لکه چه په دنیاکښې به راتلونکي عذاب د نیکانو خلقو د پاره د درجاتو اوچتیدو سبب وي او د نورو خلقو د پاره به عذاب وي

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب الفتن باب إذا أنزل الله بقوم عذابا (رقم-۷۱۰۸) ومسلم فی کتاب الجنة وصفة نعيمها وأهلها باب الأمر بحسن الظن بالله تعالی عند الموت (رقم-۸۴-(۲۸۷۹))واحمد فی المسند: ۲/۴۰

**[۵۳۴۵]اصل اعتبار خاتمې لره وی**

۵۳۴۵-()[۲] ۞ وَعَنْ جَابِرٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: ۞ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-:"۞«يُبْعَثُ كُلُّ عَبْدٍ عَلَى مَا مَاتَ عَلَيْهِ»".رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: ۞ او حضرت جابر ﷛ وايي ۞ چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۞ د قيامت په ورځ به هربنده په هغه حال راپورته کيږي په کوم حال چې هغه مړشوی دی (مسلم)

**حل اللغات**:- ① يُبْعَثُ راپورته کولې به شي يعنی حشربه ئې کيږی

**تسهیلات**:

**قوله يُبْعَثُ كُلُّ عَبْدٍ عَلَى مَا مَاتَ عَلَيْهِ**

**د اخرې عمل اعتبار**: اعتبار به د خاتمې وی په کوم حال کښې يا په کوم حيثيت کښې چه بنده مړشوې دي هم په هغه حالت کښې به د قيامت په ورځ اوچتولې شی او د هغه اخروی انجام به هم د هغې مطابق وی که چرې د ايمان په حالت کښې مړشوې دې نو هم د ايمان په حالت کښې به اوچتولې شی او که چرې د کفر په حالت کښې مړ شوې دې نو د کفر په حالت کښې به اوچتولې شی يا د دې يو مطلب دادې چه د کومو خلقو مشابهت اختيارکړی او په هغې کښې مړ شوې دي نو هم د هغوی سره به اوچتولې شی

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۵۳۴۶]جنت غوښتونکي او دوزخ نه ويريدونکي د شپې نه اوده کيږی**

۵۳۴۶-()[۱] ۞ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: ۞ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-:"۞«مَا رَأَيْتُ مِثْلَ النَّارِ نَامَ هَارِبُهَا ۞ وَلَا مِثْلَ الْجَنَّةِ نَامَ طَالِبُهَا»".رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه**: ۞ حضرت ابوهريره ﷛ وايي، ۞ چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۞ د شدت، سختي او هولناکي په اعتبار سره، ما د دوزخ د اور په شان داسې هيڅ شی نه دی ليدلی چې د هغه نه تښتيدونکی دي اوده وي، ۞ او د سرور او شادماني د اعتبار نه ما د جنت په شان هيڅ داسې شی نه دی ليدلی چې د هغه طلب کونکی دي اوده وي (ترمذي)

**حل اللغات**:- ① هَارِبُهَا تختيدونکې دهغې نه

**تسهیلات**:

**قوله مَا رَأَيْتُ مِثْلَ النَّارِ نَامَ هَارِبُهَا**

**د جهنم ويره او خوب**: د حديث د اولنې جملې مطلب دادې چه کوم کس يو طاقتور کس

---

[1]) اخرجه مسلم في كتاب الجنة وصفة نعيمها وأهلها/باب الأمر بحسن الظن بالله تعالى عند الموت (رقم-۸۳ - ۲۸۷۸)واحمد في المسند: ۳/۳۳۱

[2]) اخرجه الترمذي في السنن كتاب صفة جهنم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب منه (رقم-۲۶۰۱)

دخپل ځان د پاره ضرري او په هلاکت کښې اخنه کونکې ګڼړي نو هغه کله هم په غفلت سره نه اوده کیږي بلکه خپل ځان سره وسله وغیره ضرور ساتی لیکن د دوزخ نباهي ددې نه ډیره زیاته ده بیا هم انسان د هغې نه په غفلت کښې اوده دې د دوزخ د اور نه لرې تختیدل دادي چه انسان ګناه اوخطا پریږدي او طاعت او عبادت په ځان باندې لازم کړي

**قوله** وَلَامِثْلَ الْجَنَّةِ طَالِبُهَا

**د جنت طلب او خوب:** د دې جملې مطلب دادې چه انسان چرته د یو خوښ کړې شوی خیز طلبګار وی او هغه پوره توګه باندې حاصلول غواړي نو هغه کله هم د غفلت په خوب نه اوده کیږي بلکه هغې پسې شانه منډې وهي او چه هغه څومره منډه تړړه او کوشش کولې شي هم هغه هومره کوی ترڅو پورې چه ورته هغه حاصل شوې نه وی بې آرام وی لیکن څومره د بدقسمتئ او څومره د غفلت خبره ده چه انسان په دنیا کښې مست دې د آخرت نه غافل دې

**[۵۳۴۷] د الله تعالی د بندګۍ عظمت**

۵۳۴۷-()[۹] ① وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "② «إِنِّي أَرَى مَا لَا تَرَوْنَ، وَأَسْمَعُ مَا لَا تَسْمَعُونَ، ③ أَطَّتِ السَّمَاءُ وَحُقَّ لَهَا أَنْ تَئِطَّ، ④ وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ مَا فِيهَا مَوْضِعُ أَرْبَعَةِ أَصَابِعَ ⑤ إِلَّا وَمَلَكٌ وَاضِعٌ جَبْهَتَهُ سَاجِدًا لِلّٰهِ، ⑥ وَاللّٰهِ لَوْ تَعْلَمُونَ مَا أَعْلَمُ لَضَحِكْتُمْ قَلِيلًا، وَلَبَكَيْتُمْ كَثِيرًا،

**ترجمه:** ① او حضرت ابوذر رضی الله عنه وايي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② څه چې زه وينم تاسو يي نه وينی او څه چې زه اورم، تاسو يي نه اورئ ایعنی د قيامت علامې. د قدرت د كرشمه سازيو نښې او د الله جل جلاله صفات قهريه او جلاليه څرنګه چې خما مخې ته دی او زه يي وينم. داسې نه ستاسو مخې ته دی، او نه يي تاسو وينی او د احوال آخرت اسرار او اخبار. د قيامت هولناكي او د دوزخ د عذاب شدت او د سختيو خبري چې څرنګه زه اورم. تاسو يي نه اوري! ③ آسمان چغارکوی. اود هغه لره چغار کول پکاردی. ④ قسم دی په هغه ذات چې د هغه په لاس کې خما ځان دي په آسمان کې د څلور ګوتو برابر هم داسې ځای نشته ⑤ چيرته چې فرښتې د الله په حضور کې خپل سر په سجده نه وي ايښی ⑥ په الله قسم که تاسو هغه شی وپيژنی کوم چې زه يي پيژنم. نو يقيناً تاسو به کم خاندي او زيات به ژاړي،

**حل اللغات:-** ① أَطَّتْ د اطيط نه دې د زانګو يا کيجاوې وغيره د لرګی نه چه کوم د چرچر آواز راوځی هغې ته اطيط وائی مراد آواز راوتل دی ② وَاضِعٌ اينودونکې به وی. ③ جَبْهَتَهُ تندې خپل.

---

) اخرجه الترمذي في السنن كتاب الزهد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب في قول النبي صلى الله عليه وسلم: «لو تعلمون ما أعلم لضحكتم قليلا» (رقم-۲۳۱۲) وابن ماجه في كتاب الزهد/باب الحزن والبكاء (رقم-۴۱۹۰) واحمد في المسند:۵/۱۷۳

[۱]وَمَا تَلَذَّذْتُمْ بِالنِّسَاءِ عَلَى الْفُرُشَاتِ،[۲]وَلَخَرَجْتُمْ إِلَى الصُّعُدَاتِ تَجْأَرُونَ إِلَى اللهِ» "[۳]قَالَ أَبُو ذَرٍّ: يَالَيْتَنِي كُنْتُ شَجَرَةً تُعْضَدُ. رَوَاهُ أَحْمَدُ حسرت اود درد له مخه وويل، كاش آرمان چې زه يوه ونه وې چې هغه كټ كول كيږى (احمد، ترمذي، ابن ماجه)

**حل اللغات**- ④ الْفُرُشَاتِ بسترې. ⑤ الصُّعُدَاتِ صحرا، ځنګل ⑥ تَجْأَرُونَ تاسو به په زارئ سره اوژارئ ⑦ تُعْضَدُ پريكړې شوې.

**تسهيلات:**

**قوله**: إِنِّي أَرَى مَالَا تَرَوْنَ، وَأَسْمَعُ مَالَا تَسْمَعُونَ-

**د نبي عليه السلام مشاهده**: يعنى چه كومې فتنې اوفسادونه او واقعات زه وينم او اورم تاسو نه هغه كتلې شئ او نه ئې اوريدلې شئ

**قوله**: أَطَّتِ السَّمَاءُ:

**د آسمان چغار كول**: يعني آسمان به دَ ملائكو دَ كثرت اودَ ذات بارى تعالى دَ جلال دَ وجې نه دَ چغار(چرچر) آواز راؤباسي دَ حديث راتلونكې حصه كښې ددى چرچر وجه اوسبب بيان كړې شوې دې.

**قوله**: سَاجِدًا:

**د ساجد نه مراد**: يعنى فرښتې دَ الله تعالى په اطاعت كښې لګيادى دَ اطاعت مطلب دادې چه څوك په سجده كښې دى نوڅوك په قيام كښې يا په ركوع كښې دى اوڅوك په نورو عبادتونو كښې دى تولې په سجده كښې نه دى لهذا دَ ساجداً نه اطاعت مراد اخستې شوې دې دې دَپاره چه عام شى

**قوله**: يَالَيْتَنِي كُنْتُ شَجَرَةً تُعْضَدُ،

**دابوذر رضى الله عنه ويره**: يعنى دَ الله تعالى په مخكښې به په زارئ سره ژارئ دا سخت حالات اوريدو سره حضرت ابوذر رضی الله عنه اوفرمائيل چه افسوس زه چرته ونه وې چه پرې شوې وم نو قصه به ختمه وه اودې واقعاتو اوخفګانونو ته به نه مخامخ كيدم

**[۵۳۴۸] يو د حكمت نه ډك نصيحت**

> ۵۳۴۸-()[۱۰] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ-رَضِيَ اللهُ عَنْهُ-قَالَ: [۲]قَالَ رَسُولُ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "[۳]«مَنْ خَافَ أَدْلَجَ،[۴]وَمَنْ أَدْلَجَ بَلَغَ الْمَنْزِلَ،[۵]أَلَا إِنَّ سِلْعَةَ اللهِ غَالِيَةٌ،[۶]أَلَا إِنَّ سِلْعَةَ اللهِ الْجَنَّةُ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه**: [۱]او حضرت ابو هريره رضی الله عنه وايي [۲] چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل[۳] كوم سړى چې دې خبرې نه ويريږي چې په هغه دښمن د شپې په اخري حصه كې حمله كونكى دى نو هغه

[۱] اخرجه الترمذى فى السنن كتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-۲۴۵۰)

د شپې په اولنی حصه کې د خپل بچاو لار اختیاروي چې د دښمن د حملي نه محفوظ شی [۴] او کوم سړی چې د شپې په بې خوابی کښې تلل شروع کړل هغه منزل ته ورسیدي[۵] پوهه شئ چې د الله مال ډیر قیمتي دی. [ چې ډیر اوچت قیمت ورکولو بغیر حاصلیدی نشي ) ، [۷] او هغه اوچت قیمت د هغه په لار کې د خان ومال قرباني ده او یاد لري چې د الله ﷻ مال جنت دی (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① أَدْلَجَ دَ شپې په اوله حصه کښې تلل ② سِلْعَةَ مال. سامان. ③ غَالِيَةٌ قیمتی. ګران.

**تسهیلات:**

**قوله: مَنْ خَافَ أَدْلَجَ، وَمَنْ أَدْلَجَ بَلَغَ الْمَنْزِلَ:**

**د آخرت دسفر دپاره تیار اوسیدل:** علامه طیبی ؒ فرمائی نبی کریم ﷺ دا پورتني مثال دَ آخرت دَ سفرکونکی دَ پاره فرمائیلي دې خکه چه شیطان دَ هغه په لارکښې ناست دې اودغه شان دَ انسان نفس هم هغه سره دې که انسان دَ نیکو اعمالو تیارې کوی اود شیطان دَ مکر اوفریب نه بچ شی نودَ هغه دَ پاره دَ جنت لار آسانیږی. (۲) یوشاعر وائی.

بہر غفلت یہ تیری ہستی نہیں دیکھ جنت اس قدر سستی نہیں

**ترجمه:** - په هرغفلت دا ستا ذات اوهستي نه ده اوګوره دا جنت دومره آسان هم نه دې.

**قوله: أَلَا إِنَّ سِلْعَةَ اللَّهِ غَالِيَةٌ، [۶] أَلَا إِنَّ سِلْعَةَ اللَّهِ الْجَنَّةُ:**

**دجنت د سودا ګرانوالي:** په دې حدیث کښې دا هم ارشاد دې چه دَ آخرت منزلونه پوره کول ډیر سخت او ګران دی دَهغې دَ پاره ډیر کوششونه کول دی خکه چه جنت ډیر قیمتی او ګران څیز دې ترکومې چه سړې ددې دَ پاره دَ خپل خان اومال قرباني ورنکړی دَ جنت دَ نعمتونو مستحق کیدې نه شی ددې طرف ته دَ قرآن مجید په دې آیت کښې هم اشاره ده. ((إِنَّ اللَّهَ اشْتَرَىٰ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ أَنفُسَهُمْ وَأَمْوَالَهُم بِأَنَّ لَهُمُ الْجَنَّةَ)) (۳)

**ترجمه:** - بې شکه الله تعالی ﷻ دَمؤمن مال اوخان دَ جنت په بدله کښې اخستې دې.

**[۵۲۴۹] د ذکرالله باوجود دَ الله تعالی نه ویریدل پکاردی**

۵۲۴۹ - (۱)[۱] [۱] وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - [۲] عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: "[۳] «يَقُولُ اللَّهُ جَلَّ ذِكْرُهُ: أَخْرِجُوا مِنَ النَّارِ مَنْ ذَكَرَنِي يَوْمًا [۴] أَوْ خَافَنِي فِي مَقَامٍ» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي " كِتَابِ الْبَعْثِ وَالنُّشُورِ ".

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس ؓ نه روایت دی، [۲] چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۳] د قیامت په ورځ به الله ﷻ چې د هغه ذکر ډیر باعظمت دی دوزخ باندې مقرر فرشتو ته وفرمایي

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن كتاب صفة جهنم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء أن للنار نفسين. وما ذكر من يخرج من النار من أهل التوحيد (رقم-۲۵۹۴)

چې هغه سړی د دوزخ نه اوباسي چې هغه يوه ورځ هم ايعنی چيرته يو وخت يې هم زه ياد کړی يم]، [۴] يا څه موقع باندې زما نه ويريدلي وي. ترمذي او بيهقي رحمه الله دا روايت کتاب البعث والنشور کې نقل کړی دی

**تسهيلات:**

**قوله: أَخْرِجُوا مِنَ النَّارِ**

**د..من.. په مصداق کښې دوه اقوال:** ① دې کس نه مراد هغه مؤمن دې چه ترمرګه پورې د اخلاص سره په ايمان باندې قائم پاتې شی او هم په دې باندې د هغه خاتمه اوشی ليکن د څه ګناه اوبدعملئ د وجې نه په دوزخ کښې واچولې شو

② ددې څخه داسې کس مراد دې په چا کښې چه د الله تعالی ويره هم وه ليکن د کبائر په وجه په دوزخ کښې واچولې شو نو الله پاك به اوفرمائی چاچه زه په دنيا کښې يوه ورځ ياد کړې ووم يا ئې مانه ويره کړې وه هغه هم د دوزخ نه راوباسئ لقوله تعالی ﴿وَأَمَّا مَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ وَنَهَى النَّفْسَ عَنِ الْهَوٰى ۝ فَإِنَّ الْجَنَّةَ هِيَ الْمَأْوٰى ۝﴾

**قوله: مَنْ ذَكَرَنِي يَوْمًا أَوْخَافَنِي فِي مَقَامٍ**

**د ذکر اوويرې څخه مراد:** امام طيبی رحمه الله فرمائی د ذکر الله نه مراد هغه ذکر دې به کوم کښې چه د ژبې سره زړه هم شريك وی کوم ته چه اخلاص وائی او د الله تعالی د ويرې نه مراد هغه ويره ده د کوم په وجه چه بنده د خپل بدن اندامونه دګناهونو نه منع او په طاعاتو او عباداتو کښې مشغول اوساتی

**[۵۲۵۰] په نيکوکې وراندې کيدونکی خلق څوك دی؟**

-( )[۱۳] [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - قَالَتْ: [۲] «سَأَلْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنْ هٰذِهِ الْآيَةِ ﴿وَالَّذِينَ يُؤْتُونَ مَا آتَوْا وَقُلُوبُهُمْ وَجِلَةٌ﴾ [المؤمنون: ۶۰] [۳] أَهُمُ الَّذِينَ يَشْرَبُونَ الْخَمْرَ وَيَسْرِقُونَ؟ [۴] قَالَ: "لَا يَا بِنْتَ الصِّدِّيقِ! [۵] وَلٰكِنَّهُمُ الَّذِينَ يَصُومُونَ، وَيُصَلُّونَ، وَيَتَصَدَّقُونَ، [۶] وَهُمْ يَخَافُونَ أَنْ لَا يُقْبَلَ مِنْهُمْ، [۷] أُولٰئِكَ الَّذِينَ يُسَارِعُونَ فِي الْخَيْرَاتِ» "رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** او بي بي عائشه رضي الله عنها وايي [۲] ما د رسول الله ﷺ نه ددې ايت باره کې پوښتنه وکړه، وَالَّذِينَ يُؤْتُونَ.....الخ. هغه خلق چې ورکوي. او څه چې ورکوي، ايعنی له قسم د زکاة او صدقاتونه د هغوئ حالت داد‌ی! چې د هغوئ زړونه لرزان او ترسان دي ايعنی هغوئ باندې خوف خور وي، چې هغوئ د الله په لار کې او د هغه د حکم اتباع کې څه چې خرچ کړی دي هغه به قبول شي يانه، او چيرته داسې نه وي چې زمونږ داخرچ او ايثار د

[۱]) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب: ومن سورة المؤمنون (رقم-۳۱۷۵) وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب التوقی علی العمل (رقم-۴۱۹۸) واحمد فی المسند:۱۵۹/۶

شرائطو او آدابو مطابق واقع نه وي، او مونږ برعکس په وبال کې رانشو. د دې آيت متعلق حضور ﷺ نه د بي بي عائشه رضي الله عنها سوال داوو[۳] چې آيا داهغه خلق دي چې شراب څکي او غلا کوي. اڅکه چې د الله ﷻ د عذاب نه ويريدل د ګنهګار کار دې[۴]. حضور ﷺ وفرمايل اې دصديق اکبر رضي الله عنه لورې ينه دا هغه نه دی کوم چې شراب څکي او غلاکوي. [۵] بلکې هغه خلق دي چې روژې نيسي. مونځونه کوي. زکوة ورکوي.[۶] او د دې باوجود هغوئ سره ويره وي چې د هغوئ اعمال شايد قبول نه شي.[۷] داهغه کسان دي چې په نيکيوکې تريوبل وړانديوالي کوي

**حل اللغات:** - ① وَجِلَةٌ ويريدونکی، په لړزان

**تسهيلات:**

**قوله** أَهُمُ الَّذِينَ يَشْرَبُونَ الْخَمْرَ وَيَسْرِقُونَ؟

**دعائشې رضی الله عنها تپوس:** حضرت عائشې رضي الله عنها د حضورپاك نه څکه سوال اوکړو چه کوم خلق ژاړي او ويرېږي نوکيدې شي چه هغوی لوئی لوئی ګناهونه کړی وی په دې وجه به ژاړی نوحضورپاك دحضرت عائشه رضي الله عنها په جواب کښې اوفرمائيل داسې نه ده دا ژړاکونکی ګناهګاران نه دی بلکه نيکان خلق به وی البته ويره به د دې خبرې وی چه هغوی کوم نيك اعمال کړی دی هغه دچرته د الله تعالی په نيز نامنظور نه شی

**[۵۳۵۱] دذکرالله فضيلت او اهميت**

۵۳۵۱-(۱)[۱۳] [۱] وَعَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «كَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا ذَهَبَ ثُلُثَا اللَّيْلِ قَامَ فَقَالَ: [۳] "يَا أَيُّهَا النَّاسُ! اذْكُرُوا اللَّهَ، اذْكُرُوا اللَّهَ، [۴] جَاءَتِ الرَّاجِفَةُ، [۵] تَتْبَعُهَا الرَّادِفَةُ، [۶] جَاءَ الْمَوْتُ بِمَا فِيهِ، [۷] جَاءَ الْمَوْتُ بِمَا فِيهِ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه** :[۱] ابي بن كعب رضي الله عنه بيان کوي [۲] چې دوه حصې شپه به تيره شوه نو حضور ﷺ به د تهجد مونځ د پاره ودريدو او فرمايل به يې [۳] اې خلقو الله د هغه دذات دواحدانيت او د هغه تولو صفاتو سره ياد کی [الله د هغه دثواب اود عذاب سره ياد کی. چې تاسو د الله په حقله د خوف او اميد په منځ کې يي او هغه خلقو کې شمير شی. چې د هغوئ باره کې الله ﷻ فرمايلي دي چې تَتَجَافَى جُنُوبُهُمْ عَنِ....الخ]. [۴] زلزله به راځي [يعنی مخکنی شپيلي پوکونکي ده. چې د هغې سره به ټول مره شي] .[۵] هغه پسې هغه هم راتلونکي ده چې وروسته راتلونکې ده [معنی مخکنی شپيلی نه پس دويمه شپيلی هم پوکل وهونکي ده. چې د هغه آواز باندې به ټول دوباره ژوندي شي. او خپلو خپلو قبرونو نه

۱) اخرجه الترمذی فی السنن كتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب (رقم ۲۴۵۷)واحمد فی المسند: ۱۳۶/۵

پاڅيدو سره په ميدان حشر کې به جمع شي، غرض دې الفاظو نه د حضور ﷺ مقصد د قيامت ياد ورکول او آخرت طرف ته متوجه کول وو چې دا سې طاعات او عبادات او ذکر الله کې د مشغوليدو باعث وي! [۶] مرګ خان سره وابسته ټول احوال سره راځي د دې الفاظو مقصد هم دا تنبيه کول دي، چې غفلت پريخودلو سره هوښيار شي. [۷] ستا سو مرګ ستاسو په سرتيار ولاړ دی، او هغه ټول څيزونو سره چې هغه نه مخکې او هغه نه پس واقع کيدونکي دي به راځي (ترمذي)

**حل اللغات:-** ① الرَّاجِفَةُ: درزيدونکي. د اسرافيل عليه السلام رومبی خل شپيلۍ ترې مراد ده ② الرَّادِفَةُ: روسته راتلونکې يعنی د اسرافيل عليه السلام په دويم خل شپيلۍ وهلو ته الرادفه وائی. ③ تَتْبَعُهَا: ورپسې به راځي.

**تسهيلات:**

**قوله.** يَاأَيُّهَا النَّاسُ! اذْكُرُوا اللهَ، اذْكُرُوا اللهَ،

**داول ذکر څخه مراد:** دَ رسول الله ﷺ "اذکروالله" بار بار وئيل په اصل کښې هغه خلقو ته خطاب دې چه دَ آرام او دَ غفلت په خوب اوده وی اودَ تهجد دَمونځ او دَ ذکرالله نه غافل وی حضورپاك به هغوی لره بيدارول دې دَ پاره چه هغوی په ذکر الله او دَ تهجد په مونځ کښې مشغول شی او راتلونکی حادثات ياد کړی.

**د دويم ذکر څخه مراد:** دَ اذکروالله دَ دويم خل الفاظو مطلب دا وو چه دَ الله تعالی نعمتونه اودَ هغه ورکړې شوی راحتونه اودَ هغه دَ طرف نه پيښيدونکی تکليف او آرام ياد کړئ

**قوله** جَاءَتِ الرَّاجِفَةُ

**د راجفه څخه مراد:** دَدې لفظ په ذريعه حضورپاك دَدې آيت طرف ته اشاره فرمائيلې ده ﴿يَوْمَ تَرْجُفُ الرَّاجِفَةُ ۝ تَتْبَعُهَا الرَّادِفَةُ ۝﴾ دَ امام طيبی رحمه الله په نيز "الراجفة" نه مراد په اول خل دَ شپيلئ پوك وهل دی په کوم سره چه به ټول مخلوق مړ شی

**قوله** تَتْبَعُهَا الرَّادِفَةُ،

**د رادفه څخه مراد:** "رادفة" نه مراد په دويم خل دَ شپيلئ پوك وهل دی

**[۵۲۵۲] مرګ او قبر هروخت ياد ساتل پکار دی**

۵۲۵۲-(۱) [۱۳] [۱] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: [۲] «خَرَجَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- لِصَلَاةٍ [۳]

---

(۱) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب (رقم-۲۴۶۰) والنسائی فی کتاب الجنائز/باب کثرة ذکر الموت (رقم-۱۸۲۴) وابن ماجه فی کتاب الزهد/باب ذکر الموت والاستعداد له (رقم-۴۲۵۸)

فَرَأَى النَّاسَ كَأَنَّهُمْ يَكْتَشِرُونَ، ④ قَالَ: "أَمَا إِنَّكُمْ لَوْ أَكْثَرْتُمْ ذِكْرَ هَادِمِ اللَّذَّاتِ لَشَغَلَكُمْ عَمَّا أَرَى الْمَوْتُ، ⑥ فَأَكْثِرُوا ذِكْرَ هَاذِمِ اللَّذَّاتِ، الْمَوْتِ، ⑧ فَإِنَّهُ لَمْ يَأْتِ عَلَى الْقَبْرِ إِلَّا تَكَلَّمَ، فَيَقُولُ: أَنَا بَيْتُ الْغُرْبَةِ، وَأَنَا بَيْتُ الْوَحْدَةِ، وَأَنَا بَيْتُ التُّرَابِ، وَأَنَا بَيْتُ الدُّودِ،

**ترجمه**: ① او حضرت ابو سعيد ﷺ وايي ② يوه ورځ رسول الله ﷺ مونځ د پاره (مسجد ته) تشريف راوړی ③ نو حضور ﷺ وليدل چې خلق ګويا په خپلو کې په څه خبره خاندي ④ حضور ﷺ د هغوئ د غسي په خندا ليدو سره وفرمايل ⑤ خبردار په تاسو چې کوم غفلت خور شوی دی چې داسې بې فکرې سره خندا کې مشغول يې. ⑥ بلاشبه که تاسو د لذتونو فنا کيدونکی شی اکثره ذکر کولای، [نو هغه به تاسو ددې شی يعنی زياتې خندا او د غافل خلقو په شان دکلام او ګفتګو نه منع کړې وي] ⑦ کوم چې زه يې وينم [او هغه يعنی لذتونه فنا کونکی شی يعنی مرګ ډېر ياد وي] . ⑧ حقيقت دادی چې قبر باندې يوه داسې ورځ يعنی داسې وخت او زمانه نه تيرېږي، چې په هغه کې هغه په زبان قال يا په زبان حال سره دا وايي ⑨ چې زه د غربت کوريم [يعنی زه د يو داسې لرې اود خاموشې والاځای په شان يم، چې هلته هرڅوك راځي، هغه دخپلو عزيز واقاربو اود خپلو متعلقينو اود خپل کوروالو نه ناقابل عبور لرې مسافت باندې پروت وي نو اې انسانه! تاته لازم دی چې ته به دنيا کې داسې اوسې څرنګه چې يو مسافر د خپلو خپلوانو او کوروالو نه لرې د مسافرت په حالت کې وي] ، ⑩ زه د تنهائي کوريم [يعنی زه يوداسې کوريم، چې په هغه کې د تنهائي او وحشت نه علاوه نور هيڅ نه وي هو، کوم خلق چې د الله رب العزت د وحدانيت نور اخستو سره راځي، هغوئ بيشکه تنهائي نه محسوسوي، ځکه چې هغه نور د هغوئ رفيق او دم ساز جوړيږي] ⑪ زه د خاورو کور يم [يعنی زه د هغه خاورو کوريم. چې د هرجاندار اصل او بنياد دی نو د چا اصل او مرجع چې خاوره وي. د هغه شان داوی چې هغه دي مسکيني او خاك نشين وي، چې خاوري د هغه مناسبت هر وخت تازه وي] ⑫ او زه د چينجو کوريم

**حل اللغات**: - ① يَكْتَشِرُونَ دباب افتعال نه دي ددې ماده کشر دې چه غابښونه کولاويدو ته وائي دلته مراد خندل دی ② هَاذِمِ أي قاطع اللذات. هازم د پرې کولو معنی کښې دې مراد مرګ دې ځکه چه مرګ هم ټول خوندونه پرې کوی ③ اللَّذَّاتِ: خوندونه. ④ بَيْتُ الْوَحْدَةِ د يواځې والی کور يعنی قبر. ⑤ الدُّودِ چينجې.

① وَإِذَا دُفِنَ الْعَبْدُ الْمُؤْمِنُ ② قَالَ لَهُ الْقَبْرُ: مَرْحَبًا وَأَهْلًا ③ أَمَا إِنْ كُنْتَ لَأَحَبَّ مَنْ يَمْشِي عَلَى ظَهْرِي إِلَيَّ، ④ فَإِذْ وُلِّيتُكَ الْيَوْمَ ⑤ وَصِرْتَ إِلَيَّ ⑥ فَسَتَرَى صَنِيعِي بِكَ" ⑦ قَالَ: "فَيَتَّسِعُ لَهُ مَدَّ بَصَرِهِ، ⑧ وَيُفْتَحُ لَهُ بَابٌ إِلَى الْجَنَّةِ، ⑨ وَإِذَا دُفِنَ الْعَبْدُ الْفَاجِرُ أَوِ الْكَافِرُ ⑩ قَالَ لَهُ الْقَبْرُ: ⑪ لَا مَرْحَبًا وَلَا أَهْلًا ⑫ أَمَا إِنْ كُنْتَ لَأَبْغَضَ مَنْ يَمْشِي عَلَى ظَهْرِي إِلَيَّ ⑬ فَإِذَا وُلِّيتُكَ الْيَوْمَ ⑭ وَصِرْتَ إِلَيَّ فَسَتَرَى صَنِيعِي بِكَ"

**ترجمه**: [۱] بیا حضور ﷺ وفرمایل هرکله چې یو مومن بنده دفن کول کیږي. [انو څرنګه چې یو خوش اخلاق کوربه (میزبان) د خپل عزیز میلمه د راتګ په وخت د ترحیبي کلماتو په ذریعه د هغه استقبال کوي دغه شان قبر هم د هغه استقبال کوي]. [۲] او هغه ته وایي چې په خیر راغلاست، [ته یو کشاده دارام ځای او خپل مکان ته راغلی یې]. [۳] تاته دې معلومه وي. چې ته خما په نزد دهغه ټولو خلقو نه زیات محبوب یې کوم چې په ما ګرځي. [۴] نو نن چې زه په تاحاکم او قادر جوړ شوی یم. [۵] او ته خما مجبوره او مقهور شوی یې. [۶] نو ته به ډیر نزدې خما نیك سلوك ووینې چې زه به یې ستاسره وکړم. [یعنی زه به ستا د پاره کشاده او فراخه شم]. [۷] حضور ﷺ وفرمایل د دې نه پس هغه قبر دهغه بنده د پاره کشاده او فراخه شي. او هغه کشادګي او فراخي د هغه دحد نظر پورې معلومیږي. [۸] او بیا د هغه د پاره جنت طرف ته یوه دروازه خلاصه شي. [چې په هغه کې هغه په جنت کې خپله ټیکاوېنه ویني دهغه دروازې نه هغه ته یخې او خوشبوداره هواګانې راځي او هغه د جنت مکانات حوري نهرونه. میوې او ونې روح افزا نعمتونه لیدو لیدو سره خپلې سترګې یخوي] [۹] او هرکله چې یو فاسق بنده یا کافر دفن کول کیږي [انو څرنګه چې یو سړی خپل راتلونکي نا آشنا او غیر عزیز او نابللي میلمه سره د بې رخۍ او بې مروتي سلوك کوي]، [۱۰] دغه شان قبر هم هغه کافر ته وایي [۱۱] او ورته وایي چې نه دې ستا راتلل مبارك وي [او نه ته ښه کشاده او د ارام ځای او خپل مکان ته راغلی یې]. [۱۲] تاته دې معلومه وي چې ته خما په نزد هغه ټولو خلقو نه زیات خراب وې کوم چې په ما باندې ګرځي. [۱۳] نو نن چې زه په تاحاکم او قادر جوړ شوی یم. [۱۴] او ته خما مجبوره او مقهور شوی یې. نو زر به ووینې چې زه ستاسره څومره خراب سلوك کوم.

**حل اللغات** - ⑥ مَرْحَبًا وَأَهْلًا مرحبًا فراخه ځاې ته راغلې. او اهلا خپلو له راغلې. یعنی په خیر راغلې ⑤ وَلِيتُك نه زما په قابو کښې راغلې ماله په تاباندې تسلط راکړې شو ⑧ صِرْتَ ته را منتقل شوې. راغلې.

[۱] قَالَ: "فَيَلْتَئِمُ عَلَيْهِ حَتَّى تَخْتَلِفَ أَضْلَاعُهُ" [۲] قَالَ: وَقَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِأَصَابِعِهِ، فَأَدْخَلَ بَعْضَهَا فِي جَوْفِ بَعْضٍ [۳] قَالَ: "وَيُقَيَّضُ لَهُ سَبْعُونَ تِنِّينًا لَوْ أَنَّ وَاحِدًا مِنْهَا نَفَخَ فِي الْأَرْضِ [۴] مَا أَنْبَتَتْ شَيْئًا مَا بَقِيَتِ الدُّنْيَا [۵] فَيَنْهَسْنَهُ وَيَخْدِشْنَهُ حَتَّى يُفْضِيَ بِهِ إِلَى الْحِسَابِ" [۶] قَالَ: وَقَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۷] "إِنَّمَا الْقَبْرُ رَوْضَةٌ مِنْ رِيَاضِ الْجَنَّةِ، أَوْ [۸] حُفْرَةٌ مِنْ حُفَرِ النَّارِ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه**: [۱] حضور ﷺ وفرمایل بیا هغه قبردې دباو کړي. تردې چې د هغه پښتی یو په بل کې سره ورسي. [۲] ابو سعید ؓ وایي. حضور ﷺ د ښختو یو ځای کید وصورت خودلو د پاره خپلې ګوتې یو بل کې داخلې کړې [او وې ښودل چې دغه شان د قبر دباو کولو د هغه کافر پښتی یوې بلې کې ننوځي]. [۳] د دې نه پس حضور ﷺ وفرمایل په هغه کافر

باندې اویا اژدها وي مسلط کول کیږي، ۴ او هغه داسې اژدهاوي دي که په هغه کې یوه اژدها هم په زمکه پوکل وکړي، ۳ نو هغه زمکه ترڅوپورې چې دنیا باقي وي د سبزه زرغونولو قابله به پاتې نشي، ۵ هغه اژدها هغه کافر چیچي او شوکوي یي او داعمل په هغه ترهغه وخته پورې جاري وي ترڅوپورې چې هغه بنده د قیامت په ورځ د حساب د پاره بوتلل شي ۶ حضرت ابوسعید ﷺ وایي، رسول الله ﷺ داهم وفرمایل ۷ په دې کې شك نشته، چې قبر د جنت د باغچونه یوه باغچه ده ۸ یا د اور د کندونه یوه کنده ده (ترمذي)

**حل اللغات:**-⑨ فَيَلْتَئِمُ: نو زور ورکړي، ⑩ أَضْلَاعُ: پوختې. ⑪ يُقَيَّضُ: مقرر کولې شی. ⑫ تِنِّينًا: اژدهاګانې. ⑬ فَيَنْهَشْنَهُ: نو چیچی به ئې، ⑭ يَخْدِشْنَهُ: شوکوی به ئې. ⑮ حُفْرَةٌ: کنده.

**تسهیلات:**

**نوټ:** کتاب الجنائزکښې د داسې قسم احادیثو تشریحات تفصیل سره ذکر شوی دی

**[۵۳۵۴] دآخرت فکر رسول الله ﷺ لره بوډا کړو**

۵۳۵۳-()[۱۵] ① وَعَنْ أَبِي جُحَيْفَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: ②«قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ! ③ قَدْ شِبْتَ ④ قَالَ: "شَيَّبَتْنِي سُورَةُ هُودٍ وَأَخَوَاتُهَا»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه**: او حضرت ابوجحیفه ﷺ وایي ۲ چې صحابه وﷺ عرض وکړو. ې رسول الله ﷺ ۳ تاسو خو بوډا شوئ، [یعنی لوی عمر ته رسیدو نه مخکې ـ سو باندې د بوډاتوب اثرات ظاهر شوي دي]، ۴ نو حضور ﷺ وفرمایل، سورة هود او د دې په شان سورتونو زه بوډا کړی یم. (ترمذي)

**حل اللغات:**-① شَيَّبَتْنِي: بوډا کړي یم زه، ② أَخَوَاتُهَا: جمع د أُختٌ ده دلته مشابه او د دې پشان سورتونه مراد دی.

**تسهیلات:**

**قوله: شَيَّبَتْنِي سُورَةُ هُودٍ وَأَخَوَاتُهَا:**

یعنی سورت هود ﴿فَاسْتَقِمْ كَمَا أُمِرْتَ﴾ په الفاظو کښې دَ استقامت تصور زه بوډا کړم او سورة النبأ سورة التکویر سورة الواقعة په شان سورتونو زه بوډا کړم ځکه چه په دې کښې د قیامت دا حوالو تفصیلات دی

**قوله: شَيَّبَتْنِي سُورَةُ هُودٍ وَأَخَوَاتُهَا:**

**د نبی علیه السلام په امت شفقت**: یعنی په سورت هود کښې ﴿فَاسْتَقِمْ كَمَا أُمِرْتَ﴾ کښې دَ استقامت تصور زه بوډا کړم او دَ دې په شان سورتونه په کوم کښې چه دَ قیامت ذکر دې دَ هغې مضامینو ته چه بار بار اوګورم نو دَ خپل امت دَ طرف نه ماته دا غم پیدا کیږی چه

---

۱) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب تفسیر القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم /باب: ومن سورة الواقعة (رقم ۳۲۹۷)

نه ده معلومه چه زما د امت د خلقو به څه حشر وی هم د دې غم په وجه زما دا حال شو چه ویښته مې سپین شو.

**[۵۲۵٤] د قیامت د ویرې په رسول الله ﷺ باندې اثر**

۵۳۵۳-(۱)[۱٦] ① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - ②«قَالَ أَبُو بَكْرٍ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! قَدْ شِبْتَ، ③قَالَ: "شَيَّبَتْنِي هُودٌ وَالْوَاقِعَةُ وَالْمُرْسَلَاتُ وَعَمَّ يَتَسَاءَلُونَ وَإِذَا الشَّمْسُ كُوِّرَتْ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. وَذُكِرَ حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ: "لَا يَلِجُ فِي النَّارِ" فِي (كِتَابِ الْجِهَادِ).

**ترجمه:** ①او حضرت ابن عباس رضی الله عنهما وایي، ②یوه ورځ حضرت ابوبکر رضی الله عنه ووېل. یا رسول الله ﷺ ته خو ډیر زر بوډا سوي، ③حضور ﷺ ورته وفرمایل. هو سورة هود، سورة واقعه، سورة مرسلات عم یتسائلون او اذا الشمس کورت او د دې په شان نور سورتونو چې په هغه کې د قیامت او د هغه د احوالو ذکر دی زه لوی عمر ته رسیدو نه مخکې بوډا کړم (ترمذي) او.د حضرت ابوهریره رضی الله عنه روایت لایلج النار الخ کتاب الجهاد کې نقل شوی دی.

**حل اللغات:**- ① كُوِّرَتْ: راغونډ به کړې شي. بې نوره او تور به شي. ② لَا يَلِجُ: نه به داخليږی

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۵۲۵۵] هیڅ یوه ګناه سپکه مه ګڼرئ**

۵۳۵۵-(۱)[۱۷] ① عَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: ②«إِنَّكُمْ لَتَعْمَلُونَ أَعْمَالًا هِيَ أَدَقُّ فِي أَعْيُنِكُمْ مِنَ الشَّعْرِ ③كُنَّا نَعُدُّهَا عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مِنَ الْمُوبِقَاتِ، يَعْنِي الْمُهْلِكَاتِ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ①حضرت انس رضی الله عنه د خپلې زماني مسلمانان مخاطب کولو سره وفرمایل ②تاسو داسې کارونه کوئ چې ستاسو په نظر کې د ویښته نه هم زیات باریک وي. ③لیکن مونږ به دا کارونه د رسول الله ﷺ په زمانه کې موبقات یعنی هلاکونکو کارونو کې شمیرل (بخاري)

**حل اللغات:**- ① أَدَقُّ: باریک، معمولی. ② الشَّعْرِ ویښته. ③ الْمُوبِقَاتِ هلاکونکی

**تسهیلات:**

**قوله هِيَ أَدَقُّ فِي أَعْيُنِكُمْ مِنَ الشَّعْرِ،**

**د صحابؤ ګناهونو لره هلاکونکی ګنړل:** "أي عظيمة في نفس الأمر وتستصغرونها" یعنی د روزمره ګناهونه کوم چه تاسو هغه عادتًا واړه او معمولی ګنړئ لیکن په نفس الامر

---

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب تفسیر القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب: ومن سورة الواقعة (رقم۳۲۹۷)
[۲] اخرجه البخاری فی کتاب الرقاق/باب ما یتقی من محقرات الذنوب (رقم-٦٤٩٢) واحمد فی المسند:۶/۷۰

کېنې هغه ډېر لوئي ګناهونه دي او هم په دې وجه به صحابه کرامو ﷺ دې لره هلاکونکې ګناهونه ګڼل امام طيبي ﷫ ددې معنی دا بيان کړې ده "المعنى انکم تعملون اعمالا وتحسبون انکم تحسنون صنعًا وليس كذلك في الحقيقة"

**[٥٢٥٦] د وړو وړو ګناهونو نه هم ځان ساتل**

٥٣٥٦-( )[١٩] [١] وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا - [٢] أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: " [٣] «يَا عَائِشَةُ! إِيَّاكِ وَمُحَقَّرَاتِ الذُّنُوبِ، [٤] فَإِنَّ لَهَا مِنَ اللّٰهِ طَالِبًا» " رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي (شُعَبِ الْإِيمَانِ).

**ترجمه:** [١] د بي بي عائشه ﷺ نه روايت دی [٢] چې رسول الله ﷺ وفرمايل، [٣] اې عائشه ته خپل ځان د هغه ګناهونو نه هم لرې ساته کوم چې معمولي او حقير ګڼلی شي [٤] ځکه چې دي ګناهونو د پاره د الله ﷻ په نزد يو مطالبه کونکی هم شته (ابن ماجه بيهقي)

**حل اللغات:** - ① مُحَقَّرَاتِ: معمولي او حقير

**تسهيلات:**

**قوله فَإِنَّ لَهَا مِنَ اللّٰهِ طَالِبًا:**

**د طالب څخه په مراد کښې دوه اقوال:** ① دَ طالب نه مراد اعمال ليکونکې فرښته ده يعنې صغيره ګناه هم ليکلې شي. يا دَ طالب نه مراد په قيامت کښې تپوس پوښتنه کونکې فرښته ده چه دَ الله پاك دَ طرف نه په دې باندې مقرر ده

② دَ طالب نه مراد دادې چه په داسې ګناهونو باندې يو قسم عذاب مقرر دې چه دَ دغې ګناه مرتکبين په خپل ګرفت کښې اخلی اودا عذاب دَ الله تعالی نه دَ داسې خلقو خپل ځان ته دَ حواله کولو مطالبه کوی او الله تعالی دَ دې مطالبه نه رد کوی په دې صورت کښې به په طالبًا کښې تنوين دَ تعظيم دَ پاره وی لکه چه دا جمله دَ طالبا عظيماً په معنی کښې ده.

**د صغيرې ګناه کبيره ګرځيدو دوه صورتونه:** ① اکثر خلق واړه واړه ګناهونه ډير معمولي ګڼړی او صغيره ګناهونو ته هيڅ اهميت نه ورکوی دکوم نتيجه چه دا وی چه نه هغه دَ ګناه تدارك په توبه او استغفار سره کوی او نه دَ صغيره ګناهونو دَ وجې نه دَ څه عذاب نه ويريږی دارنګ هغوی د دې خبرې نه هم غافل وی چه په يوه وړه ګناه باندې اصرار کولو سره هغه صغيره نه پاتې کيږی بلکه دَ کبيره ګناه په حکم کښې داخليږی

② هره صغيره ګناه دَ الله تعالی دَ عظمت او لوئيئ په نسبت هم کبيره ده هم په دې وجه باندې الله تعالی کله کبيره ګناه معاف کوی او په صغيره باندې عذاب ورکوی لکه چه دَ

[١] اخرجه ابن ما جه في السنن كتاب الزهد/باب المداومة على العمل (رقم-٤٢٤٣)

الله تعالی فرمان دې ﴿وَيَغْفِرُ مَا دُوْنَ ذٰلِكَ لِمَنْ يَّشَآءُ﴾ الآ یة حاصل دا چه هیڅ یو ګناه صغیره مه کنړئی کله کله وړوکې بخیرې پوره کور سوزوی او یوه نیکی هم معمولی ګنړل او پریخودل نه دی پکار ځکه چه کله یو څاڅکې اوبه هم یو ځان بچ کوی. بل دا چه بنده له پکار دی چه دَ الله تعالی دَ ګرفت نه هروخت ویریږی چه هغه هر وخت دَ یوې ګناه په وجه سره هم راګیرولې شی.

**[۵۲۵۷] په حضرت عمر ﷺ د الله تعالی د ویرې کیفیت**

۵۲۵۷-( ) [۱۹] [۱] وَعَنْ أَبِي بُرْدَةَ بْنِ أَبِي مُوسَى - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] قَالَ لِي عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ: [۳] هَلْ تَدْرِي مَا قَالَهُ أَبِي لِأَبِيكَ؟ [۴] قَالَ: قُلْتُ: لَا [۵] قَالَ: فَإِنَّ أَبِي قَالَ لِأَبِيكَ: [۶] يَا أَبَا مُوسَى! هَلْ يَسُرُّكَ أَنَّ إِسْلَامَنَا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۷] وَهِجْرَتَنَا مَعَهُ [۸] وَجِهَادَنَا مَعَهُ [۹] وَعَمَلَنَا كُلَّهُ مَعَهُ بَرَدَ لَنَا؟ [۱۰] وَأَنَّ كُلَّ عَمَلٍ عَمِلْنَاهُ بَعْدَهُ نَجَوْنَا مِنْهُ كَفَافًا [۱۱] رَأْسًا بِرَأْسٍ؟

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوبرده ابن ابي موسٰی اشعري چې د اوچتې درجې تابعینو نه دي، وايي [۲] یوه ورځ حضرت عبد الله ابن عمر ﷺ ماته وویل، [۳] تاته معلومه ده. چې ځما پلار حضرت عمر فاروق ﷺ ستا پلار حضرت ابوموسٰی اشعري ته څه ویلي وه. [۴] حضرت ابوبرده وایي، ما جواب ورکړو چې ماته نه ده معلومه [۵] حضرت عبد الله وفرمایل ځما پلار ستا پلار ته ویلي وه، [۶] اې ابو موسٰی آیا داخبره ستا د پاره خوشحالونکي ده چې زمونږ اسلام چې درسول الله ﷺ سره وو، [۷] زمونږ هجرت چې دحضور ﷺ سره وو، [۸] اوزمونږ جهاد دحضور ﷺ سره وو، [۹] او زمونږ ټول اعمال [یعنی مونځ روژې زکاة حج او دغه شان نورعبادتي اعمال چې دحضور ﷺ سره وو] [۱۰] هغه ټول زمونږ د پاره ثابت او برقرار پاتې شو، [۱۰] او مونږ چې کوم اعمال د رسول الله ﷺ نه پس کړي وي. [۱۱] که مونږ دهغه نه برابر او سرابر هم اووځو نو زمونږ د نجات د پاره به کافي وی،

**حل اللغات:** - ① كَفَافًا: کافي کیدونکې. ② رَأْسًا بِرَأْسٍ: برابر سرابر.

[۱] فَقَالَ أَبُوكَ لِأَبِي: [۲] لَا وَاللّٰهِ، قَدْ جَاهَدْنَا بَعْدَ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۳] وَصَلَّيْنَا [۴] وَصُمْنَا [۵] وَعَمِلْنَا خَيْرًا كَثِيرًا، [۶] وَأَسْلَمَ عَلَى أَيْدِينَا بَشَرٌ كَثِيرٌ [۷] وَإِنَّا لَنَرْجُو ذٰلِكَ [۸] قَالَ أَبِي: وَلٰكِنِّي أَنَا، وَالَّذِي نَفْسُ عُمَرَ بِيَدِهِ [۹] لَوَدِدْتُ أَنَّ ذٰلِكَ بَرَدَ لَنَا [۱۰] وَأَنَّ كُلَّ شَيْءٍ عَمِلْنَاهُ بَعْدَهُ نَجَوْنَا مِنْهُ كَفَافًا رَأْسًا بِرَأْسٍ، [۱۱] فَقُلْتُ: إِنَّ أَبَاكَ وَاللّٰهِ كَانَ خَيْرًا مِنْ أَبِي. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] ستا پلار دا اوریدو سره ځما پلار ته وویل، [۲] نه قسم په الله داسې نه ده حقیقت دا دی چې مونږ د رسول الله ﷺ نه پس جهاد کړی دی [۳] مونځونه مو کړي دي، [۴]

---

[۱] اخرجه البخاري في كتاب المناقب/باب هجرة النبي صلى الله عليه وسلم وأصحابه إلى المدينة (رقم-۳۹۱۵)

روژي مو نيولي دي.۵ او نور ډير نيك اعمال لکه صدقه او خيرات وغيره مو کړي دي.
۶ او ډير خلق زمونږ په لاس يعني زمونږ په وجه مسلمانان شوي دي ۷ او يقينًا مونږ د مذکوره څيزونو داجر او ثواب اميد لرو (چې زمونږ مخکنی اعمالوپه ثواب کې به اضافه وکړي)، ۸ خما پلار حضرت عمر فاروق ﷛ اوويل چې ستاخبره صحيح ده ليکن خما خو قسم دی په هغه ذات چې دهغه په قبضه قدرت کې د عمر ساه ده، ۹ داخبره زياته خوښوم چې مونږ کوم اعمال درسول الله ﷺ سره کړی دی هغه ثابت او برقرار وی،۱۰ او کوم اعمال چې مونږ د حضور ﷺ نه پس کړی دی، هغه برابر سرابر اوسي ۱۱ حضرت ابوبرده وايي په دي اوريدو سره ما حضرت ابن عمر ته اوويل چې ستا پلار قسم په الله خما د پلار نه ښه وو. (بخاري)

**حل اللغات:**-۞ بَرَدَ: برد دَ ثبت په معنی کښې دی. يعنی ثابت او برقرار شی

**تسهيلات:**

**قوله: وَعَمَلَنَا كُلُّهُ مَعَهُ بَرَدَلَنَا؟:**

**په عمر رضی الله عنه باندې د الله تعالی د ويرې غلبه:** مطلب دا چه حضرت عمر ﷛ دَ حضورپاك دَ زمانې دَ خو اعمالوذکراوکړو اوبيائی اوفرمائيل که چرې هغه اعمال زمونږ په عمل نامه کښې باقی پاتې شی او په هغې باندې مونږته ثواب ملاؤشی اودَ حضورپاك نه پس چه مونږ کوم نيك اعمال کړی دی په هغې کښې مونږ ته نه ثواب ملاؤ شی اونه عذاب يعنی برابرسرابر فيصله اوشی نودابه ډيره ښه خبره وی ستاسو هم داخوښه ده که نه؟حضرت ابوموسیٰ اشعری ﷛ اوفرمائيل چه داسې نه ده حضرت مونږ دَ حضورپاك نه پس هم ډير ښه ښه اعمال کړی دی په کوم باندې چه مونږ ته دَ ثواب ملاويدو اميد دې چونکه په حضرت عمرفاروق ﷛ باندې خوف او رجاء کښې دَ الله تعالی ويره غالب وه په دې وجه ئی داسې اوفرمائيل او په ابوموسیٰ ﷛ باندې دَ رجاء کيفيت غالب وو په دې وجه په هغه باندې دويم رنګ غالب وو په خوف اورجاء کښې به حضرت عمر ﷛ فرمائيل که دَ قيامت په ورځ باندې اعلان اوشی چه صرف يو سړې به دوزخ ته ځی باقی ټول به جنت ته ځی نوزه به وايم چه هغه سړې چرته زه نه يم اوکه چرې اعلان اوشی چه صرف هم يو سړې به جنت ته ځی نوزه به وايم چه هغه هم زه يم. بهرحال دَ ابوموسیٰ اشعری ﷛ځوئی حضرت ابوبرده ﷛ حضرت ابن عمر ﷛ ته اوفرمائيل چه ستا پلار زما دَ پلار نه په دې رائې کښې بهتروو

**[۵۳۵۸] رسول الله ﷺ ته د نهو خبرو حکم**

۵۳۵۸-()[۲۰] ۱ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: ۲ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " ۳ «أَمَرَنِي رَبِّي بِتِسْعٍ: ۴ خَشْيَةِ اللّٰهِ فِي السِّرِّ وَالْعَلَانِيَةِ، ۵ وَكَلِمَةِ الْعَدْلِ فِي الْغَضَبِ وَالرِّضَى، ۶ وَالْقَصْدِ فِي الْفَقْرِ وَالْغِنَى، ۷ وَأَنْ أَصِلَ مَنْ قَطَعَنِي، ۸ وَأُعْطِيَ مَنْ حَرَمَنِي، ۹ وَأَعْفُوَ عَمَّنْ ظَلَمَنِي، ۱۰ وَأَنْ يَكُونَ صَمْتِي فِكْرًا، ۱۱ وَنُطْقِي ذِكْرًا، ۱۲ وَنَظَرِي عِبْرَةً، ۱۳ وَآمُرُ بِالْعُرْفِ» " وَقِيلَ: (بِالْمَعْرُوفِ). رَوَاهُ رَزِينٌ.

**ترجمه:** ۱ حضرت ابوهريره رضی الله عنه وايي ۲ چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۳ خما رب ماته د نهه خبرو حکم راکړی دی ۴ يو خو داچې ظاهر او پټ په هرحالت کې د الله نه ويريږي. (يعنی په زړه کې هم د الله خوف ځای وي، او معصيت نه د پرهيز په صورت کې اعضائي جسم باندې هم د خوف خداوندي اثر ظاهر وي، يا داچې که تنهائي وي يا د خلقو موجودګی په هرحالت کې هغه کار کول پکار دی، کوم چې د خوف خداوندي مظهر وي) ، ۵ دويمه خبره دا چې رښتيا اوويل شي، د قهر په حالت کې يا د رضامندی (يعنی دديرو خلقو داعادت وي چې کله چانه راضي اوخوشحاله وي نو دهغه تعريف کوي دهغه ها سره ها يوځای کوي اودهغه عيوب پټوي اوکله چې دچانه ناراضه وي نو دهغه بدي وايي دهغه دهري خبري مخالفت کوي اودهغه عيبونه ښه ښکاره کوي داخبره مناسب نه ده بلکې داسې کيدل پکاردي چې قهر اوخوښي دواړه حالتو کې خپله ژبه اعتدال باندې ساتي اوهغه خبره کوي چې دحقيقت مطابق اوعين ريښتيا وي) ۶ دريمه خبره داچې فقر او غربت او ثروت او مالداري دواړه حالته کې ميانه روی اختيار شي. (يعنی که د فقرو غربت حالت وي يا د ثروت او مالداري بهر صورت د اعتدال لار باندې قائم پاتې شي. چې د فقر او غربت حالت کې غصه او تلخي او جزع وفزع اختيار نشي او د ثروت او مالداري په حالت کې تکبر او سرکشي او سرپورته کولو نه پرهيز وشي. يا دا معنی ده، چې رزق او ضروريات ژوند نور څيزونه بس په دې مقدار کې طلب کړي، چې د اعتدال حد پورې وي. نه خو د فقر وافلاس حده پورې تنګي او سختی برداشت کړي، او نه د عيش وعشرت ژوند اختيار کړي) ۷ څلورمه خبره داچې هغه سړي سره قرابت داري قائمه وساتم. کوم چې زماسره تعلق قطع کوي (يعنی ماته داهم حکم شوی دی که خما څوك عزيز رشته دار زماسره بد سلوك کوي، او د قرابت داري تعلق هم قطع کوي نو زه به هغه سره هم حسن سلوك کوم او هغه سره به قرابتداري قائم ساتلو کوشش کوم، داخبره د حضور ﷺ د وصف حلم بردباري او کمال تواضع او مروت آئينه ده) ۸ پنځمه خبره داچې زه هغه سړی هم په خپلې ورکړي اوجود وسخا سره ونوازم کوم چې ما دخپل

---

[1]) رواه رزين

لين دين نه محروم ساتي ⑨ شپږمه خبره داچي زه د بدل اخستو دطاقت او قوت باوجود هغه سړی هم معاف کړم کوم چې په ماباندې ظلم او زياتي کوي ⑩ اوومه خبره داچي چپ اوسيدل د عبادت ذريعه وي، [يعنی هرکله چې زه د خاموشي په حالت کې يم، او د چاسره خبري اتري يا د ژبي په ذريعه تبليغ او تلقين کې مشغول نه يم. نو هغه وخت دالله اسمائي صفات، د هغه د قدرت د کرشمه سازيو او د هغه د کلام معانيو او مطالبو کې غور او فکر او استغراق کې مشغول اوسم] ⑪ اتم داچي ځما وئيل د ذکر الله مظهر وي [يعنی هرکله چې ځما ژبه جاري وي، او زه خبري کوم، نو د الله خبره کوم. او د هغه تعلق که تسبيح او تحميد تکبير او توحيد سره وي، ياتلاوت کلام الله او د هغه د بنده ګانو تعليم وتلقين او تذکير ونصيحت سره وي] ⑫ او نهمه خبره داچي ځما نظر دعبرت د پاره وي [يعنی کله چې زه د الله مخلوق طرف ته وګورم، نو ځما هغه کتل دعبرت حاصلولو د پاره او توجه او هوښياري سره وي، نه چې ناداني او غفلت سره او ځما پروردګار ماته داحکم راکړی دی]. ⑬ چې زه بندګان خداته د نيکي تلقين وتبليغ کوم او په يوه روايت کې، بالمعروف، لفظ دی] (رزين)

**حل اللغات:**- ① الْغَضَبِ: غصه، ② أَصِلَ: تعلق او رشته اوساتم. ③ حَرَمَنِي: محرومه کړی ما. ④ صَمْتِي: خاموشي زما

**تسهيلات:**

**د بعضې مشکلو جملو وضاحت:**

① خَشْيَةِاللهِ خوف هرې ويرې ته وائی مګر خشيت هغه ويرې ته وائی کوم سره چه تعظيم او توفير وی او تقوٰی هغه ويرې ته وائی کوم سره چه اطاعت وی

② فِي السِّرِّوَالْعَلَانِيَةِ دَدې دوه مطلبونه دی ① ظاهری ويره داده چه په مخ ئی دَ الله تعالی دَ ويرې آثار ښکاره وی او خفيه يعنی پټه ويره داده چه په زړه کښې هم دَ الله تعالی ويره وی ② چه په ښکاره هم ښه اعمال اوکړی او ځان له ځائی کښې هم دَ الله تعالی په نيزهم داسې ويره معتبر ده دَ کوم نه چه په تصوف کښې په خلوت او په جلوت کښې تقوٰی سره تعبيرکوی.

③ وَآمُرُبِالْعُرْفِ په يو روايت کښې دَ بالعرف په ځائی دَ بالمعروف لفظ دې دَ دواړه معانی هم يو دی.

**سوال** په حدیث کښې دَ امربالمعروف ذکر دې دَ نهی عن المنکر ذکر نشته دې؟
**جواب** دَ امر بالمعروف لفظ عام دې دَ کوم په دائره کښې چه دَنهی عن المنکر مفهوم هم راځي لیکن واضح دې وی چه رسول الله ﷺ چه دکوم امربالمعروف ذکرفرمائیلې دې هغه دَمذکوره خبرو نه علاوه دې اوهم دغه حکم دَ جامعیت حامل دې
④ كَلِمَةِ الْعَدْلِ فِي الْغَضَبِ وَالرِّضَى په غصه او رضا کښې دَ انصاف خبرې کولو نه مراد دادې چه په عام توګه چه انسان دَ چانه خوشحاله شی نودَ هغه دَ دروغو تعریفونه کوی اوکله په هغه باندې غصه ورشی نو دَ دروغو عیبونه پرې لګوی دا دواړه خبرې خرابې دی په هرحال کښې دَخپل ځان اودَ بل متعلق په انصاف سره خبره کول پکاردی که هغه دَ غصې حالت وی اوکه دَ رضا
⑤ وَالْقَصْدِ فِي الْفَقْرِ وَالْغِنَى دَدې مطلب دادې چه انسان له پکار دی چه دَ زړه حال او خپل چال هروخت په اعتدال کښې اوساتی نه دې په مالدارئی کښې کبر کوی او نه دې په غریبئی کښې بې صبره کیږی.
**أن اصل من قطعني** دَدې مطلب دادې چه څوك تا سره تعلق پریږدی ته ئې ورسره مه پریږده
⑥ وَأَعْفُوَ عَمَّنْ ظَلَمَنِي دَمعافئی نه مراد اخلاقی معافی او پریخودل دی دَ مجبورئی معافی نه یعنی چه په بدله اخستلو دې قدرت وی اوبیامعافی کړې دا معاف کول دکمال درجې معافیٔ ده لکه څنګه چه حضرت یوسف علیه السلام خپل رونړه معاف کړل او رسول کریم ﷺ دَ فتح مکه په موقع باندې دَ عام معافئی اعلان اوکړو ﴿لَا تَثْرِيبَ عَلَيْكُمُ الْيَوْمَ﴾ هم دَدې متعلق په یو بل حدیث کښې راغلی دی چه دا دَ اولینو او آخرینو اخلاق دی
⑦ وَأَنْ يَكُونَ صَمْتِي فِكْرًا وَنُطْقِي ذِكْرًا الخ مطلب دا چه کله خاموش او سم باتې شې نودَ الله تعالی په نعمتونو اودَ هغه په قدرتونو باندې غور اوفکر اوکړم هم دې غور اوفکرته ذکر وئیلې شوې دې کله چه په خله باندې خبرې کوم نو دَ الله تعالی حمد. تلاوت دَ قرآن اوامربالمعروف او نهی عن المنکر اوکړم په ژبه باندې هیڅ کله غلطې خبرې اترې نه دی کول پکار څکه چه دَ ژبې نه وتونکې هرلفظ لیکلې کیږی کمافی القرآن ﴿مَا يَلْفِظُ مِنْ قَوْلٍ إِلَّا لَدَيْهِ رَقِيبٌ عَتِيدٌ﴾ لهذا په هر دنیاوی خبرو اترو کښې دَ الله تعالی ذکر شاملول پکار دی اودَ خپل نظر حفاظت کوه اودَ دنیا دَ انقلاباتو نه عبرت او نصیحت واخله

انقلابات جہاں واعظ رب ہیں دیکھو ہر تغیر سے آتی ہے صدا فافہم فافہم

## [٥٢٥٩]دَ الله تعالى دَ ويرې نه دَ ژړلو فضيلت

٥٢٥٩-( )[٢١] ١ وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- قَالَ: ٢ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "٣ «مَا مِنْ عَبْدٍ مُؤْمِنٍ يَخْرُجُ مِنْ عَيْنَيْهِ دُمُوعٌ ٤ وَإِنْ كَانَ مِثْلَ رَأْسِ الذُّبَابِ مِنْ خَشْيَةِ اللَّهِ، ٥ ثُمَّ يُصِيبُ شَيْئًا مِنْ حَرِّ وَجْهِهِ إِلَّا حَرَّمَهُ اللَّهُ عَلَى النَّارِ»". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه**: ١ او حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ وايي ٢ چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٣ هر هغه مؤمن بنده چې د هغه د سترګو نه د الله د خوف نه اوښکې وبهيدې ٤ اګر که هغه اوښکې د مچ د سربرابر (يعنی ډير کم مقدار کې وي او بيا هغه اوښکې بهيدو سره د هغه مخې ته ګرمايش ورسيږي)، ٥ نو الله ﷻ په هغه د دوزخ اور حراموي (ابن ماجه)

**حل اللغات**:- ① دُمُوعٌ: اوښکې، ② الذُّبَابِ: مچ.

**تسهيلات**

**قوله**: ثُمَّ يُصِيبُ شَيْئًا مِنْ حَرِّ وَجْهِهِ إِلَّا حَرَّمَهُ اللَّهُ عَلَى النَّارِ:

**دالله تعالى د ويرې د وجې د اوښکو بهيدل**: دَ مخ مخې ته چه کومه ښکاره حصه ده هغې ته حرالوجه وائي يعنی دَ الله تعالى دَ ويرې نه چه دَ کوم يو سړی دَ سترګو نه کم نه کم درې اوښکې راتوئی شي او ښکاره په مخ باندې پريوځي نو الله تعالى په دغه مخ باندې دَ دوزخ اور حراموی سره

دَدې چه هغه اوښکې دَ مچ دَ سر برابر وړې ولې نه وی

[1] اخرجه ابن ما جه في السنن كتاب الزهد/باب الحزن والبكاء (رقم-٤١٩٧)

# [۷] بَابُ تَغَيُّرِ النَّاسِ

## په خلقو کښې د بدلون بیان

**خلاصة الباب:**

**فيه أحد عشر حديثاً مشتملة على أربع مسائل.**

① كثرة شرار الناس وسببه : ۱، ۳، ۷، ۱۰، ۱۱-

② إتباع اليهود والنصارى: ۲-

③ تسلط الشرار : ۴، ۵، ۶، ۹-

④ مجيئ زمن ضعف الدين: ۸-

**د زماني په اعتبار سره په خلقو کښې بدلون راتلل:** په دي باب کښې هغه احاديث بيانولی شی په کومو کښې چې د دي ذکر دې چې په خلقو کښې به تبديلی راشی او د دي تبديلی شروع د نبی عليه السلام د زمانی څخه واخله تر قيامنه پورې کيدي شی

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [۵۲۶۰] د نیکانو خلقو کمیدل

۵۲۶۰-()[۱] ۱ عَنِ ابْنِ عُمَرَ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا-قَالَ: ۲ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "۳ «إِنَّمَا النَّاسُ كَالْإِبِلِ الْمِائَةِ، ۴ لَا تَكَادُ تَجِدُ فِيهَا رَاحِلَةً»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ حضرت ابن عمر رضی الله عنهما وايي، ۲ چی رسول الله ﷺ وفرمايل ۳ خلق د اختلاف حالات او تغير صفات د اعتبار نه د هغه سلو اوښانو په شان دی ۴ چې په هغه کې به تاسو چیرته يو د سورلی قابل پيدا کولی نشي (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:-** ① الْإِبِلِ الْمِائَةِ. سل اوښان، ② رَاحِلَةً: هغه اوښ چه د سورلئی قابل وی صحت مندوی صحيح طاقتور وی او د بار اوړلو ښه قابل وی

**تسهيلات:**

**قوله:** لَا تَكَادُ تَجِدُ فِيهَا رَاحِلَةً:

**د نیکو خلقو کمیدل:** يعنی لکه څنګه په سلو اوښانو کښې په مشکل سره يو اوښ د سورلئ قابل راوځی دغه شان په انسانانو کښې هم د کار سړي په مشکل سره په سلو کښې

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب الرقاق/باب رفع الأمانة (رقم ۶۴۹۸) ومسلم فی کتاب فصائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم/باب قوله صلی الله علیه وسلم: الناس کابل مائة لا تجد فیها راحلة (رقم-۲۳۲ (۲۵۴۷))والترمذی فی کتاب المناقب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی فصل فاطمة رضی الله عنها (رقم-۳۸۷۲) وابن ماجه فی کتاب الفتن/باب من ترجی له السلامة من الفتن (رقم-۳۹۹۰)

یو نیم ملاویدې شی دغه شان عارفین وائی چه اوس د قحط الرجال زمانه ده د سلو عدد دتکثیر دپاره دې تحدید او تعیین مقصودنه دې دغه شان داکیفیت دخیرون القرون نه پس دهري زمانې دپاره عام دې هیڅ تخصیص نشته دې اوس ددې دورِجدید متعلق په خائی وئیلې کیدې شی

**[۵۳٦۱] مسلمانان به دَ یهویانو او نصاری تقلید کوی**

۵۳٦۱-(۱)[۲] [۱] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "[۳] لَتَتَّبِعُنَّ سُنَنَ مَنْ قَبْلَكُمْ، شِبْرًا بِشِبْرٍ، [۴] وَذِرَاعًا بِذِرَاعٍ، [۵] حَتَّى لَوْ دَخَلُوا جُحْرَ ضَبٍّ تَبِعْتُمُوهُمْ". [٦] قِيلَ يَا رَسُولَ اللَّهِ! [۷] الْيَهُودَ وَالنَّصَارَى؟ [۸] قَالَ: "فَمَنْ؟»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: او حضرت ابو سعید وايي، [۲] چی رسول الله ﷺ وفرمایل. [۳] یقینا راتلونکو زمانو کې به تاسو لویشت د لویشت برابر، [۴] او لاس د لاس برابر د هغه خلقو طور طریقې اختیار کړي، کوم چې ستاسو نه مخکې تیر شوی دی. [۵] تردې که هغوئ د سمسارې په غار کې ورننوځي، چې ډیره تنګه او خرابه وي. نو تاسو به په هغه کې هم د هغوئ پیروي کوی [٦] صحابه وو عرض وکړو یارسول الله، [۷] هغه خلق چې مخکې تیرشوي دي او د هغوئ طور طریقې به مونږ اختیار کړو. آیا هغوئ یهود او نصاریٰ دي؟ [۸] حضور ﷺ وفرمایل که هغوئ او نصاریٰ نه وي، نو نور څوك دي [یعنی ستاسو نه مخکې تیرو خلقوته چې ما اشاره کړې ده هغوئ نه مراد یهود او نصاریٰ دي] (بخاري. مسلم)

**حل اللغات**:- ① شِبْرًا بِشِبْرٍ لویشت په لویشت. ② جُحْرَ سوراخ. سوړه. ③ ضَبٍّ: سمسره.

**تسهیلات**:

## د بعضې مشکلو جملو وضاحت:

① ضَبٍّ یعنی بې فائدې تقلید به کوئی بس د یهودو او نصاریٰ تقلید پخپله د مسلمانانو دپاره به د دلچسپئی سبب جوړ شی که فائده په کښې وی او که نه وی لږ شان اوګورئی چه د سمسارې په سوړه کښې د ورننوتلو څه فائده ده؟

② فَمَنْ؟ یعنی هم یهود اونصاریٰ به وی دوی نه علاوه به نور څوك وی؟ چنانچه نن صبا مونږ ګورو چه په هره معامله کښې کلمه ویونکی مسلمان دغیرمسلم قومونو په لار روان دې که هغه په افعال کښې وی او که په اقوالو کښې وی او که په بدعاتو اوتحریفاتو کښې وی په هرمیدان کښې دهغوی تقلید شروع دې

۱) اخرجه البخاري في كتاب أحاديث الأنبياء/باب ما ذكر عن بني إسرائيل (رقم-۳٤٥٦) ومسلم في كتاب القدر/باب اتباع سنن اليهود والنصارى (رقم-٦ - (۲٦٦۹))واحمد في المسند:۵۱۱/۲

**[٥٣٦٢]ښه خلق به مړه شي او فضول خلق به پاتې شي**

٥٣٦٣-()[٣] ① وَعَنْ مِرْدَاسٍ الْأَسْلَمِيِّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: ② قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: " ③«يَذْهَبُ الصَّالِحُونَ، الْأَوَّلُ فَالْأَوَّلُ، ④ وَتَبْقَى حُفَالَةٌ كَحُفَالَةِ الشَّعِيرِ أَوِ التَّمْرِ، لَا يُبَالِيهِمُ اللَّهُ بَالَةً» " رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه**: ①او حضرت مرداس اسلمي وايي، ②رسول الله ﷺ وفرمايل.③ نيک بخت او صالح خلق به يو دبل پسي ددي دنيا نه تيريږي④ او بدکار او ناکاره خلق به دوربشو يا دکجورو د بوسو په شان باقي پاتې شي،⑤ چې د هغوئ به الله ﷻ ته هيڅ پروانه وي. [يعنی د الله ﷻ په نز د دداسي خلقو هيڅ قدر ومنزلت نشته او د هغوئ د وجود هيڅ اعتبار نشته] (بخاري)

**قوله**: وَعَنْ مِرْدَاسٍ الْأَسْلَمِيِّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-:

**دراوي مختصر تعارف**:

**حضرت مرداس الاسلمی** رضی الله عنه: نوم مرداس، دپلار نوم مالک. ددوی تعلق قبیله اسلم سره وو، ددوی شمیر اصحاب شجره کیږی، دوی دکوفې اوسیدنکی وو. دوی نه ابن ابی حازم صرف هم دا روایت نقل کړې دې

**حل اللغات**:- ① حُفَالَةٌ: دغنمو کهجورو او اوربشو بهوسوته حفالة وائی ② بَالَةً: پرواه، باک.

**تسهيلات**: **قوله**: وَتَبْقَى حُفَالَةٌ كَحُفَالَةِ الشَّعِيرِ:

**قیامت ته نزدې د بې کاره خلقو پاتې کیدل**: یعنی بدکار بدکردار او زناکارخلق به پاتې شی اونیکان خلق به د دنیا څخه لاړ شی د دغه پاتو خلقو مثال به داسې وی لکه څنګه چې څوک اوربشې چڼړوی اوپه چاڼرکښې ئې واچوی اوهغې ته پوکې ورکړی نو هغې څخه خاشی بیشی والوزی.دهغې هیڅ څه حیثیت نه وی.نودغه شان به دغه خلق وی په شکلونو به انسانان وی اوکردار به ئې د ځناورو څخه هم بدتر وی الله تعالی به دهغوی هیڅ پرواه نه ساتی حالانکه الله تعالی په ټول مخلوق کښې انسان اشرف المخلوقات پیدا کړې دې

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[٥٣٦٣]یوه پیشنګوئی چه پوره شوه**

٥٣٦٤-()[٣] ① عَنِ ابْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- قَالَ: ② قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "③«إِذَا مَشَتْ أُمَّتِي الْمُطَيْطِيَاءَ ④ وَخَدَمَتْهُمْ أَبْنَاءُ الْمُلُوكِ أَبْنَاءُ فَارِسَ وَالرُّومِ ⑤ سَلَّطَ اللَّهُ شِرَارَهَا عَلَى خِيَارِهَا» ".

[1] اخرجه البخاری فی کتاب الرقاق /باب ذهاب الصالحین (رقم-٦٤٣٤)

[2] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الفتن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم /(رقم-٢٢٦١)

رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه**: ۱ حضرت ابن عمر رضی الله عنهما وايي، ۲ چی رسول الله ﷺ وفرمایل ۳ هرکله چې ځما د امت خلق د تکبر چال شروع کی ۴ او د بادشاهانو ځامن چې هغوئ به د فارس اود روم شهزادګان وه، د هغوئ خدمت به کوي ۵ په دي طور چې الله تعالیٰ به د اهل فارس او روم علاقي او ښارونه د مسلمانانو ماتحته کړی او هغوئ به فتوحات حاصل کړي. انو د هغه په نتیجه کې به د هغه علاقو او ښارونو نه صرف عام سړی، بلکې بادشاهان او شهزادګان به هم قیدي جوړ شي، او مسلمانان به هغوئ ټول بطور غلام خپل خدمت باندې ماموره کړي، نو په داسې صورت کې به الله تعالیٰ د امت خراب خلق نیکو خلقو باندې یعنی ظالمان به په مظلومانو مسلط کړي، امام ترمذي دا روایت نقل کړی دی. او ویلي یې دی چې دا حدیث غریب دی!

**حل اللغات**:- ① مَشَتْ تګ کوی. ② الْمُطَيْطِيَاءَ: دا د تمطی نه دې په فخر سره تلو ته وائی مراد تکبر او کبر دي. ③ سَلَّطَ: مامور کړی دی.

**تسهیلات**:

**قوله**: إِذَامَشَتْ أُمَّتِي الْمُطَيْطِيَاءَ:

**په تکبر سره تګ کول**: په ناز نخرو سره اود ګډا په انداز تلو سره حرکات او سکنات کول او د کبر اوغرور په چال تګ ته مطیطیاء وئیلې شوې دې نن صبا عربو کښې دا څیز دیرزیات شوې دې

**قوله**: وَخَدَمَتْهُمْ أَبْنَاءُ الْمُلُوكِ أَبْنَاءُ فَارِسَ وَالرُّومِ:

**دروم اوفارس فتح کیدل**: د رسول الله ﷺ دا ارشاد مبارک د معجزاتو ځنې دې مسلمانانو چه کله روم او فارس فتح کړل اود هغوی مالونه د مسلمانانو په حق کښې د غنیمت مالونه شول اود هغوی اولاد قید کړې شو چه هغه وخت خادمان شو نوفتنه جوړه شوه او د حضرت عثمان غنی رضی الله عنه د قتل نوبت پیښ شو بیا نوره سلسله اوږده شوه بنو امیه په بنو هاشم باندې مسلط شو او په دنیاکښې څومره د اهل اسلام په مینځ کښې جنګونه اوشو د تاریخ پاڼې د واقعاتو نه ډکې دی.

**قوله**: سَلَّطَ اللّٰهُ شِرَارَهَا عَلٰى خِيَارِهَا:

**دبدکردار خلقو تسلط**: یعنی خراب خلق به په خو خلقو غالب راشی او په دنیاکښې به خرابئی او بدئی زیاتې وی

**د رشیداحمد ګنګوهی رائې**: حضرت ګنګوهی رحمه الله په دې موقع ارشاد فرمائیلې دې تسلط الشرار علی الخیار فی الفور لازم نه دی او د فتنې عام کیدل هم ضروری نه دی لهذا

حضرات صحابه ﷺ دَ دې نه مستثنیٰ دی ځکه چه دَ حضرت عثمان غنی ﷺ قتل کونکی صحابه کرام نه وو بلکه دا دَ فتنه خورونکو منافقانو چال وو

[٥٣٦٤] قیامت به کله راځی؟

٥٣٦٤-(¹) [٥] ① وَعَنْ حُذَيْفَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ -: ② أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: "③ «لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى تَقْتُلُوا إِمَامَكُمْ، ④ وَتَجْتَلِدُوا بِأَسْيَافِكُمْ، وَيَرِثُ دُنْيَاكُمْ شِرَارُكُمْ» " - رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه** :① او د حضرت حذیفه ﷺ نه روایت دی ② چې رسول الله ﷺ وفرمایل ③ هرکله چې تاسو مسلمانان خپل خلیفه یا سلطان او یا حکمران قتل کړې ④ نو ستاسو توري به په خپلو کې د یوبل سرونه الوځوي، ⑤ تردې چې ستاسو د دنیا وارث او والي به مکار خلق شي ایعنی سلطنت او حکمراني به ظالمانو ته ورسي . او د مخلوق خدا د اقتدار واګې به بدکارو اود فاسقانو لاس ته راشي . نو هغه وخت به قیامت قائم شي ا ،ترمذي

**حل اللغات**:- ① تَجْتَلِدُوا: تاسو به وهئ یوبل . ② أَسْيَافِكُمْ: په تورو خپلو .

**تسهیلات**:

**قوله**: حَتَّى تَقْتُلُوا إِمَامَكُمْ، وَتَجْتَلِدُوا بِأَسْيَافِكُمْ:

**دامام په مصداق کښې دوه اقوال**: ① د امام څخه سلطان مراد دې لکه چه امیر المؤمنین حضرت عثمان ﷺ قتل کړې شو

② دَ حضرت مهدی نه لږ شان وړاندې به دَ مؤمنانو امیر خلق قتل کړی یرث دنیکم شرارکم په ملک او مال دواړو به دَظالمانو قبضه وی

[٥٣٦٥] دقیامت نشانی

٥٣٦٥-(²) [٦] ① وَعَنْهُ، قَالَ: ② قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "③ «لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى يَكُونَ أَسْعَدَ النَّاسِ بِالدُّنْيَا لُكَعُ بْنُ لُكَعٍ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي (دَلَائِلِ النُّبُوَّةِ).

**ترجمه** :① او حضرت حذیفه وایي . ② چې رسول الله ﷺ وفرمایل ، ③ قیامت به هغه پورې نه راځي ترڅوپورې چې په دنیا کې کثرت مال وزر ، او د اقتدار او حکمرانې د اعتبار نه د ټولو نه زیات نصیبه ور هغه سړی جوړ نشي چې احمق وی او د احمق ځوی وی ایعنی هرکله چې په دنیا کې بداصل بدسیرت او بدکار خلق د ټولو نه زیات د حکومت او اقتدار او مال ودولت مالك جوړ شي . نو پوهه شئ چې قیامت بس راتلونکی دی . داروایت ترمذي او کتاب دلائل النبوة کې بیهقي نقل کړی دی ا

**حل اللغات**:- ① أَسْعَدَ: نیک بخت . خوش نصیبه ، ② لُكَعُ: احمق . کمینه او رزیل

¹) اخرجه الترمذي في السنن كتاب الفتن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما جاء في الأمر بالمعروف والنهي عن المنكر (رقم-٢١٧٠) وابن ماجه في كتاب الفتن/باب أشراط الساعة (رقم-٤٠٤٣) واحمد في المسند: ٣٨٩/٥

²) اخرجه الترمذي في السنن كتاب الفتن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب منه (رقم-٢٢٠٩) واحمد في المسند: ٣٨٩/٥

**تسهيلات:**

**قوله: يَكُونَ أَسْعَدَ النَّاسِ بِالدُّنْيَا لُكَعُ بْنُ لُكَعَ:**

**د مذکوره جملې ترکیب اومعنی:** أَسْعَدَ النَّاسِ: بالنصب والرفع. ابن مالک فرمائی اسعدالناس منصوب دې چه د يکون خبر دې بعضو رفع ضبط کړې ده چه ضمير شان د يکون اسم دې اود دې نه پس جمله د دې تفسير دې اسعدالناس اسم او لکع بن لکع خبر جوړول صحيح نه دی په دې صورت کښې معنی فاسد يږی کمالايخفی يعنی کوم سړې چه په دنياکښې د ډير مال خاوند وی هغه به خوشحاله او د لوئ منصب والا زيات حکم چلونکې به وی اوهغه به د اوچتې درجې کمينه وی.

**قوله:** لُكَعُ ابْنُ لُكَعَ:

**دلکع بن لکع په تعريف کښې اقوال:** ① دا رذيل بن رذيل ته وائی چې دحسب اونسب په اعتبار سره کم اصل وی.

② دهغه کس دې چې اصل اونسل ئې معلوم نه وی اونه ئې څوک د زړه څخه تعريف کوی.

③ په نهايه کتاب کښې دی چې لکع به په عربوکښې د غلام دپاره استعماليدلو خوبيا ددا د احمق اوبې وقوف دپاره استعماليږی

**دروايت حاصل:** قيامت به هغه وخت قائميږی کله چه په دنياکښې فساد په ښه اوچته درجه باندې وی کوم سړې چه څومره کمينه وی هم هغه هومره به هغه اوچتې درجې والا شميرلې شی اودا نن صبا خو هم داسې کيږی. هغه قومونه کوم چه ډير کم تر شميرلې شو نن هغوی په اوچت منصب باندې دی او هغوی اسعدالناس شميرلې شی.

**[۵۲۶۶] دعيش اوراحت دژوند نه د قناعت ژوند ښه دې**

۵۲۶۶-(١)[٧] ١ وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ كَعْبٍ الْقُرَظِيِّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - ٢ قَالَ: حَدَّثَنِي ٣ «مَنْ سَمِعَ عَلِيَّ بْنَ أَبِي طَالِبٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - ٤ قَالَ: إِنَّا لَجُلُوسٌ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي الْمَسْجِدِ، ٥ فَاطَّلَعَ عَلَيْنَا مُصْعَبُ بْنُ عُمَيْرٍ، ٦ مَا عَلَيْهِ إِلَّا بُرْدَةٌ لَهُ مَرْقُوعَةٌ بِفَرْوٍ، ٧ فَلَمَّا رَآهُ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بَكَى ٨ لِلَّذِي كَانَ فِيهِ مِنَ النِّعْمَةِ وَالَّذِي هُوَ فِيهِ الْيَوْمَ»

**ترجمه:** ١ او حضرت محمد ابن کعب قرظي رحمه الله وايي، ٢ ماته يو سړی دا حديث بيان کی ٣ چې هغه د حضرت علي رضي الله عنه نه اوريدلی وو ٤ هغه سړي بيان وکی، چې حضرت علي رضي الله عنه وفرمايل يوه ورځ مونږ خلق درسول الله ﷺ سره مسجد نبوي ﷺ يا مسجد قباء کې ناست وو. ٥ چې معصب ابن عمير رضي الله عنه هم هلته رالی، ٦ هغه وخت د هغه په بدن صرف يو څادر وو او هغه څادرکي هم د څرمې پيوند لګيدلی وو، ٧ رسول الله ﷺ چې هغه وليدی، نو په ژړا شو ٨ چې يوه زمانه داسې وه، چې مصعب رضي الله عنه دومره خوشحاله او د

[١] اخرجه الترمذى فى السنن كتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-٢٤٧٦)

آرام وراحت ژوند تیروی، او نن یي داحالت دی،

**ترجمه**: بيا رسول الله ﷺ د اظهار تعجب او حسرت په طور وفرمايل څه وخت به ستاسو څه حال وي، هرکله چې په تاسو کې يو سړی سهار يوه جوړه اغوستلو سره راوځي، او بيا ماښام ته دويمه جوړه اغوستلو سره راوځي، ستاسو مخې ته به د طعام يوه پياله ايخودلي شي، او دويمه به پورته کولی شي، او تاسو به خپلو کورونو باندې داسې پردې اچوي، څرنګه چې کعبه باندې پرده غلاف اچولی شي. يعنی حضور ﷺ د دې ارشاد په ذريعه راتلونکي زماني طرف ته اشاره وفرمايله چې هرکله په تاسو باندې د خوشحالي دور راشي الله ﷻ د دنيا د خزانو چابياني ستاسو قدمونو کې واچوي. ستاسو کورونو کې د مال واسباب فراخي شي، نو تاسو به په ورځ کې څو ځله جوړې بدلوي، د سهار لباس به جدا وي او د ماښام جدا ستاسو لوښي به د قسما قسم طعامونو. لذيذ او مرغوب اشياء نه ډك وي، ستاسو کورونه به د راحت او اسائش او زيبائش د څيزونو نه مزين وي، او ګويا ستاسو ژوند به د عيش وعشرت مجموعه او د اسراف وتنعم آئنه دار جوړ شي، نو اووائي چې هغه وخت به ستاسو د زړه څه حالت وي، او تاسو به څه محسوسوی، بعضې صحابه په دې اوريدو سره عرض وکړو، يارسول الله ﷺ مونږ به هغه ورځ کله چې د خوشحالي نعمت سره بهر منديو، د نن ورځې نه چې د فقر او افلاس په منګولو کې يو بهترحالت کې به يو، ځکه چې هغه وخت به مونږ عبادت د پاره د خپل معاشي د جد وجهد او د حصول رزق د فکر نه ازاد او فارغ يو او مونږته به د محنت کولو ضرورت نه وي يعنی هرکله چې هغه وخت مونږ ته معاشي او اقتصادي طور سره خوشحالي حاصله وي، او نوکروغيره به زمونږ کار روزګار کوی، نو مونږ به ذهني او جسماني پوره طور سره بې فکر او ازاد يو، او په هغه صورت کې به طاعت او عبادت او ديني خدمت کې پوره دلجمعي او سکون سره مشغول يو، حضور ﷺ په دې اوريدو سره وفرمايل داسې نه ده چې هغه وخت به تاسو بهتر يي، بلکې حقيقت دادی، چې تاسو د هغه ورځې په نسبت نن ورځ زيات ښه يي (ترمذي)

**حل اللغات**:- ① فِي الْمَسْجِدِ مسجدنبوی مراد دې يا مسجد قباء، ② بُرْدَةٌ څادر، ③ مَرْقُوعَةٌ د رقعه نه دې د پيوند په معنی کښې دې ④ بِفَرْوٍ: فرو څرمن ته وائی ⑤ حُلَّةٍ جوړه. ⑥ رَاحَ د ماښام راتلل.؟ ⑦ سَتَرْتُمْ: پردې به اولګوئ تاسو، ⑧ الْمُؤْنَةَ: ذمه داری، تاوان پورته کول

**تسهيلات**:

**قوله**: بَكَى لِلَّذِي كَانَ فِيهِ مِنَ النِّعْمَةِ:

**دمصعب بن عميرپه حالت نبی عليه السلام ته ژړا ورتلل**: يعنی حضورپاك چه دحضرت مصعب ﷺ فقروفاقه اوکتله نوحضورپاك په ژړا شو. ددې وجه داوه چه حضرت مصعب

په مکه مکرمه کښې د اسلام نه مخکښې په ډیر نازونعم کښې ژوند تیرولو اونن ئې دا کیفیت وو چه پوځادر وو او په هغې کښې هم پیوندونه هم د څرمنې د ټکړو. د حضورپاك ژړا د شفقت اورحمت د وجې نه وه ګنی د اسلام تعلیم خوهم داسې وو چه دنیا مه جوړوئی، لکه څنګه چه په دې حدیث کښې دی چه دنیا جوړه کړئی نود دنیا به شئی حضورپاك پخپله هم ددې نه زیات مشقت اوچت کړې دې. حضرت عمر رضی الله عنه چه کله توجه راواړوله چه تاسو د دنیا د وسعت دعا اوکړئی نوحضورپاك خفه شو.

**[۵۳۶۷]په آخره زمانه کښې به په دین باندې قائم پاتې کیدل ډیر ګران وي**

۵۳۶۸-()[۸] ۱ وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: ۲ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "۳ «يَأْتِي عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ، الصَّابِرُ فِيهِمْ عَلَى دِينِهِ ۴ كَالْقَابِضِ عَلَى الْجَمْرِ» " رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ إِسْنَادًا.

**ترجمه:** ۱ او حضرت انس رضی الله عنه وايي، ۲ چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل ۳ په خلقو به یوه زمانه داسې راشي چې هغه وخت به د خلقو په منځ کې په خپل دین باندې صبر کونکی [یعنی ددنیا نه خپل لمن بچ کولو سره د دین احکامو حفاظت او پیروي کونکی] ۴ د هغه سړي په شان وي، چې هغه په خپل موټ کې سکروټه اخستي وي، امام ترمذي رحمه الله دا روایت نقل کړی دی، او ویلي یې دي، چې داحدیث د سند له مخه غریب دی.

**حل اللغات:** - ① الْقَابِضِ: نیونکې (په موټی کښې)، ② الْجَمْرِ: سکروټه،

**تسهیلات:**

**قوله: الصَّابِرُ فِيهِمْ عَلَى دِينِهِ كَالْقَابِضِ عَلَى الْجَمْرِ:**

**د روایت په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① د دین په اعتبار سره به دومره انحطاط اوشی لکه څنګه چه سروټکه په لاس کښې کیخودل ناممکن وی چه د هغې تکلیف او سوزیدل سړې نشی برداشت کولې دغه شان به په دین باندې عمل کول ګران شی ځکه چه د ګناهګارانو غلبه به وی ایمان به ضعیف شی قاله الطیبی رحمه الله

② ملاعلی قاری فرمائی چه د روایت مطلب دادې چه یوه زمانه به داسې راشی چه په دین باندې قایم پاتې کیدل به د ډیر مشقت سبب وی لکه څنګه چه په موټی کښې سروټکه کیخودل ډیر ګران کار دې نوداسې سړې چه په دغه وخت کښې په دین باندې قایم پاتې شی هغه به ډیر زیات صبر اختیارکړې وی نوهغه ته به اجر او ثواب هم ډیر زیات وی خلاصه دا شوه چه د داسې فتنې په وخت کښې د دین د حفاظت د پاره او د ایمان د حفاظت د پاره د صبر عظیم ضرورت دې چه د اجر او ثواب باعث به وی

() اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الفتن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۲۲۶۰) واحمد فی المسند:۲/۳۹۰

## [۵۳۶۸]په ژوند کښې ښه او بد حالات

۵۳۶۸-()[۹] ۱ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "۲ «إِذَا كَانَ أُمَرَاؤُكُمْ خِيَارَكُمْ، ۳ وَأَغْنِيَاؤُكُمْ سُمَحَاءَكُمْ، ۴ وَأُمُورُكُمْ شُورَى بَيْنَكُمْ، ۵ فَظَهْرُ الْأَرْضِ خَيْرٌ لَكُمْ مِنْ بَطْنِهَا، ۶ وَإِذَا كَانَ أُمَرَاؤُكُمْ شِرَارَكُمْ، ۷ وَأَغْنِيَاؤُكُمْ بُخَلَاءَكُمْ، ۸ وَأُمُورُكُمْ إِلَى نِسَائِكُمْ، ۹ فَبَطْنُ الْأَرْضِ خَيْرٌ لَكُمْ مِنْ ظَهْرِهَا» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابوهریره ﷺ وایي، چې رسول الله ﷺ وفرمایل. ۲ هر کله چې ستاسو قائد او سرداران هغه خلق وي کوم چې په تاسو کې بهترین خلق دي. ۳ او ستاسو دولتمند خلق سخیان وي، ۴ او ستاسو معاملات دیوبل په مشورو سره سرته رسي. [یعنی مسلمانان یو مرکز باندې متحد او متفق وي، او خپل ټول معاملات او امور په رایې او مشوره سره فیصله کوي]. ۵ نو هغه وخت د زمکي شا به ستاسو د پاره د زمکي دختې نه ښه وي، [یعنی داسې مبارکه زمانه کې به ژوند د مرګ نه ښه وي. ځکه چې په دې صورت کې به تاسو ته د کتاب او سنت مطابق د عمل کولو او د دین په لار د تلو توفیق نصیب کېږي، او ښکاره خبره ده چې هغه خلق ډېر خوش بخت وي چې حسن عمل سره اوږد ژوند ورته حاصل شي]. ۶ او هر کله چې ستاسو قائد او سردار هغه خلق وي. چې په تاسو کې بدترین یعنی فاسق او فاجر او ظالم خلق دي. ۷ او ستاسو دولتمند خلق بخیلان وي. ۸ او ستاسو د معاملاتو واګې د ښځو په لاس کې وي. ۹ نو هغه وخت د زمکي خیټه به ستاسو د پاره د زمکي د شا نه ښه وي، یعنی داسې زمانه کې مرکیدل به د ژوند نه ښه وي. دا روایت امام ترمذي نقل کړی دی او ویلي یي دي چې دا حدیث غریب دی. الترمذی: ۵۳۰/۴]

**حل اللغات:** - ① خِيَارَكُمْ: غوره په تاسو کښې، ② سُمَحَاءَ: سخیان. همدرد. ③ فَظَهْرُ الْأَرْضِ: د زمکې پاس حصه.

**قوله: إِذَا كَانَ أُمَرَاؤُكُمْ خِيَارَكُمْ،**

**د حاکمانو نیکی:** کله چه حکمران طبقه ښه دیندار وی نو دَهغوی ښه اثر به په عوامو باندې پریوځي نو عام حالات به ښه وی.

**قوله: وَأَغْنِيَاؤُكُمْ سُمَحَاءَكُمْ،**

**د مالدارانو سخاوت:** یعنی مالداره طبقه به فیاض سخي او همدرد وی نو غریبیو عوام سره به مالی تعاون جاری وی نو ټول به خوشحال وی دین به هم په ترقئی کښې وی او دنیا به هم په ترقئی کښې وی

**قوله: وَأُمُورُكُمْ شُورَى بَيْنَكُمْ،**

**په مشاورت سره کارونه:** یعنی ملکی حالات دَملك خارجه او داخله پالیسی به دَ عقل مندو خیرخواه کسانو په لاس کښې وی نو فیصلې به ښې کیږی

---

[۱]) اخرجه الترمذي في السنن كتاب الفتن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم(رقم-۲۲۶۶)

**قوله: فَظَهْرُ الْأَرْضِ خَيْرٌ لَكُمْ مِنْ بَطْنِهَا:**
**دوژوند د مرګ څخه غوره والې:** یعني دزمکې پاس حصه به دهغې د لاندې حصې نه ستاسو دپاره بهتر وي یعني دمرګ نه به ژوند ښه وي ځکه چه دحکامو د وجې نه به دین اودنیا دواړه محفوظ وي دهمدرد مالدارانود وجې نه به د غریب عوامو سره همدردي کیږي او ملك به په شورائي نظام باندې قائم وي په دې کښې به خودمختاري او استحکام وي نو په ژوندي پاتې کیدو کښې به خیرغالب وي اوژوندي پاتې کیدل به د مرګ نه بهتروي
که چرې دا دریواړه ستنې پریوځي نو بیا د ژوندي پاتې کیدو نه مرګ ښه دې ځکه چه غلط حکام عوام ګمراه کوي لکه څنګه چه نن صبا کیږي

**قوله: ،وَأُمُورُكُمْ إِلَى نِسَائِكُمْ،**
**دښځو مشري:** ناقصات العقل ښځو په اشارو باندې تګ به د خطرې نه خالي نه وي په دې وجه ملاعلي قاري رحمه الله یوروایت نقل کړې دې "شاوروهن وخالفوهن" یعني د ښځو مشوره اوره مګر په هغې باندې عمل مه کوه. بهرحال په دې صورت کښې به شر غالب وي نو د ژوندي پاتې کیدو نه به مرګ ښه وي.

**[۵۲٦۹] د دنیا محبت او د مرګ نه ویره د ذلت اسباب دي**

(۱)-[۱۰] [۱] وَعَنْ ثَوْبَانَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۳] «يُوشِكُ الْأُمَمُ أَنْ تَدَاعَى عَلَيْكُمْ كَمَا تَدَاعَى الْأَكَلَةُ إِلَى قَصْعَتِهَا»، فَقَالَ قَائِلٌ: وَمِنْ قِلَّةٍ نَحْنُ يَوْمَئِذٍ؟ قَالَ: "بَلْ أَنْتُمْ يَوْمَئِذٍ كَثِيرٌ، وَلَكِنَّكُمْ غُثَاءٌ كَغُثَاءِ السَّيْلِ، وَلَيَنْزِعَنَّ اللَّهُ مِنْ صُدُورِ عَدُوِّكُمُ الْمَهَابَةَ مِنْكُمْ، وَلَيَقْذِفَنَّ فِي قُلُوبِكُمُ الْوَهْنَ".

**ترجمه:** [۱] او حضرت ثوبان رضي الله عنه وایي، [۲] چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل [۳] ډیر نزدې دا سې وخت راتلونکی دی چې د کفر او ضلالت نه ډك دخلقو ډله به خپلو کې ستاسو سره د جنګ کولو او ستاسو شان وشوکت ختمولو د پاره به یوه ډله بله ډله رابلي څرنګه چې د طعام کاسه باندې جمع کیدونکي خلق خپلو کې یوبل د طعام کاسې طرف ته متوجه کوي. یعني څرنګه چې څه خلق جمع کیدو سره د طعام محفل کې کاسې ته کښیني، نو په خپلو کې یوبل طرف ته د طعام لوښي ورمخکې کوي. او په هغه کې چې څه شی وي، هغه نه دخوړلو د پاره وایي نو هغوئ تول بې تکلفه او بغیر دڅه بندیز دهغه لوښو نه څه چې غواړي اخستو سره خوري. دغه شان د کفر وضلالت حامل خلق به ستاسو په مقابله کې جمع کیدو سره خپلو کې یوبل راپاروي او آخر هغوئ به تاسو هلاك کړي، ستاسو جائدادونه به تباه کړي ستاسو مال او اسباب به لوټ کړي، او تاسو به برباد کړي په دې کې ګویا دې طرف ته اشاره ده چې تاسو مسلمانان به ددښمنان دین په مخکې د شنه وښو په شان شئ. چې د چا زړه غواړي تاسو به تیر کړي، یوصحابي رضي الله عنه په دې اوریدو

(۱) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الترجل /باب في تداعي الأمم على الإسلام (رقم-۴۲۹۷) واحمد في المسند: ۵/۲۷۸

سره عرض وکړو چې د هغوئ زمونږ پخلاف جمع کیدل او په مونږ غالب راتلل، آیا په دي سبب به وي چې هغه وخت به زمونږ تعداد کم وي، حضور ﷺ وفرمایل، نه داسې به په دي وجه نه وي، چې تاسو به کم تعداد کې یې بلکې هغه وخت به ستاسو تعداد ډیر وي، لیکن ستاسو د ټولو حیثیت به د هغه زګ په شان وي. کوم چې د دریاب یاناليو په غاړو پیداکیږي، یعنی په تاسو کې به جرئت شجاعت او د قوت نیستی وي. او په دي کې څه شک نشته چې الله ﷻ به د دښمنانو د زړونو نه ستاسو هیبت او ستاسو رعب اوباسي، او ستاسو په زړونو کې به ضعف او سستي پیدا کړي.

**حل اللغات:** - ① يُوشِكُ: دَ افعال مقاربه نه دې دَ قریب او نزدې په معنی کښې دې ② الْأَكَلَةُ: روټئ خورونکي، ③ قَصْعَتِهَا: کاسه، ④ غُثَاءٌ: زګ. ⑤ السَّيْلِ: سیلاب. ⑥ الْمَهَابَةُ: هیبت. رعب داب.

قَالَ قَائِلٌ: يَارَسُولَ اللهِ! وَمَا الْوَهْنُ؟ قَالَ: "حُبُّ الدُّنْيَا وَكَرَاهِيَةُ الْمَوْتِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي (دَلَائِلِ النُّبُوَّةِ).

**ترجمه:** چا عرض وکړو، یا رسول الله! زمونږ په زړونو کې به د ضعف او سستی پیدا کیدو سبب څه وي؟ حضور ﷺ وفرمایل د دنیا محبت او د مرګ نه بیزاري یعنی هرکله چې ژوند ستاسو د پاره عزیز او مرګ ستاسو د پاره ناخوښه شي، نو تاسو به د دښمن د مقابلي کولو اود بهادري جوهر خودلو قابل پاتې نه شي. دا روایت ابوداود او بیهقي کتاب دلائل النبوة کې نقل کړی دی.

**حل اللغات:** - ⑤ الْوَهْنَ: بزدلی او ویره.

**تسهیلات: قوله:** أَنْ تَدَاعَى عَلَيْكُمْ كَمَا تَدَاعَى الْأَكَلَةُ:

**د مسلمانانو د مغلوبیت پیشنګوئی:** په اصل کښې تتداعی دې یعنی یو بل به دَ دنیا کافران راغواړی او وائی به چه راشئ مسلمانان اوخورئ دوی تباه اوبرباد کړئ دَ دوی ملکونه او وسائل ددوی نه په زور واخلئ. نن صبا دَ ټولې دنیا کافران دَ مسلمانانو خلاف راجمع شوی دی اوهم دغه نعره لګوی چه مسلمانان ختم کړئ دا دهشت ګرد دی. دَمسلمانانو حکمرانان او اکثر عوام دغه شان دَخس اوخشاك په شان دی لکه څنګه چه په دې حدیث کښې پیشنګوئی ده. دَدنیا په محبت کښې ټول لګیا دی اوجهاد ئې پریخودې دې بلکه انکارترې کوی. ۵۵ ملکونه دی مګر دَ مچ دَ وزر برابر هم نه دی د لویو لویو وسائلو مالکان دی مګر دَ مرګ نه ویریږی دکافرانو رعب دَ هغوی په زړونوکښې ناست دې. او یو څو مجاهدین دی چه نن صبا دَامت مرحومه د فخر نبي دی مګر خپل هم دَهغوی دښمنان دی اودښمنان خوئی هسې هم دښمنان دی

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [۵۲۷۰] دَ یو څو متعدی ګناهونو نقصان اووبال

۵۲۷۰-()[۱] ① عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا - قَالَ: ② "مَا ظَهَرَ الْغُلُولُ فِي قَوْمٍ ③ إِلَّا أُلْقِيَ اللهُ فِي قُلُوبِهِمُ

[۱] اخرجه مالک فی الموطا کتاب الجهاد/باب ما جاء فی الغلول (رقم-۲۶)

الرُّعْبَ، ۳ وَلَا فَشَا الزِّنَا فِي قَوْمٍ إِلَّا كَثُرَ فِيهِمُ الْمَوْتُ، ۵ وَلَا نَقَصَ قَوْمٌ الْمِكْيَالَ وَالْمِيزَانَ إِلَّا قُطِعَ عَنْهُمُ الرِّزْقُ، ۶ وَلَا حَكَمَ قَوْمٌ بِغَيْرِ حَقٍّ إِلَّا فَشَا فِيهِمُ الدَّمُ، ۷ وَلَا خَتَرَ قَوْمٌ بِالْعَهْدِ إِلَّا سُلِّطَ عَلَيْهِمُ الْعَدُوُّ". رَوَاهُ مَالِكٌ.

**ترجمه**: ١ روایت دی، حضرت ابن عباس ﷺ وفرمایل ٢ هر کله چې یو قوم په مال غنیمت کې خیانت کول شروع کړي، ٣ نو الله ﷻ د هغوئ په زړونو کې د دښمن رعب او خوف پیدا کوي. ۴ کوم قوم کې چې زناکاري خوره شي، په هغه کې څه وبا مثلاً طاعون وغیره خوریدل. یا د اهل علم ودانش ددي دنیا نه د رخصتیدو په صورت کې مرګونه زیاتېږي، ۵ او کوم قوم چې ناپ تول کې کمی کوي، [ یعنی د هغوئ تجارت پیشه طبقه په کم ناپ او کم تول په شان عیب کې اونخلي ]، نو د هغوئ په رزق کې برکت ختمول کیږي، [یا د هغه قوم د مقدر نه حلال رزق الوځي] ، ۶ کوم قوم کې چې غیر منصفانه او ناحق احکام جاري کول شروع کېږي، [یعنی د کوم قوم ارباب اقتدار خلق چې احکام فیصلې نافذ کولو کې د عدل وانصاف او مساوات لحاظ نه ساتي. یا د جهل او ناداني په وجه غلطي فیصلې کول شروع کړي] ، نو د هغوئ په منځ کې. خونریزي خورېږي. یعنی د هغه قوم معاشره کې داسې اسباب پیدا کېږي. او داسې عوامل خورېږي. چې د عام فتنه او فساد او خونریزي باعث جوړېږي، ۷ او کوم قوم چې خپل عهد وپیمان ماتوي، نو الله ﷻ په هغوئ د هغوئ دښمن مسلط کوي. (مالك)

**حل اللغات**:- ① الْغُلُولُ: په مال غنیمت کښې خیانت کولو ته غلول وائی. ② الرُّعْبَ: هیبت. ③ فَشَا: خوره شی. عام شی. ④ الْمِكْيَالَ: ناپ تول. ⑤ الدَّمُ: خون ریزی. جنګ جګړې. ⑥ خَتَرَ: په وعده کښې دهوکه او غداری، هم دې نه ختار کفوردي.

**تسهیلات:**

**د بعضې مشکلو جملو وضاحت:**

① الْغُلُولُ" دلته عام خیانت هم مراد کیدي شي دَدي نقصان دادي چه دَقوم په زړونو کښې په اجتماعي توګه باندې دَ دښمن رعب اچولې شی او قوم بزدل کیږی او څوک چه اوویریدو هغه مرشو.

② فَشَا الزِّنَا" کله چه زنا عام شی نو دَ هغې نقصان دادې چه په قوم کښې وبائی مرضونه پیدا کیږی مثلاً طاعون هیضه وغیره لاعلاج بیمارئی عام کیږی نو مرګ عام کیږی. په ناپ تول کښې دکمی نقصان دادې چه حلال رزق او دَ هغې نه برکت اوچتیږی او شریعت پریخودو سره خپل دَ ځان نه جوړشوی قوانینو مطابق دَفیصلو کولو نقصان دادې چه وینې توېول عام کیږی.

③ وَلَا خَتَرَ" دَدې نقصان دادې چه هم هغه دښمن په دې قوم باندې مسلط کیږی کوم دښمن سره چه ئې وعده خلافی کولو سره دهوکه کړې وه. [الحمد لله. لسم جلد ختم شو.]